# توضيحات

پښتو شرح د

# مشكوة شريف

تاليف

حضرت مولانا فضل محمد يوسف زئی دامت برکاتهم

استاذ حديث جامعة علوم اسلامية بنوری ټاؤن کراچی

پښتو ترجمه

مولانا محمد فيض الهادي "حقاني"

سابق مدرس مدرسه تعليم القرآن والحديث

چارسده روډ پشاور

مكتبة الاصلاح

محله جنگی پشاور

0314-9797200

0345-1977797

# توضیحات مشکوة شریف

پښتو شرح

(جلد اووم)

الشیخ حضرت مولانا فضل محمد یوسف زئی صاحب دامت برکاتهم
علامه استاذ حدیث جامعة علوم اسلامیة بنوری ټاؤن کراچی

پښتو ترجمه:
مولوي فیض الهادی حقاني

## د توضیحات پښتو شرح مشکوة خصوصیات:

- په اول جلد کې د اصول حدیث یوه مفیده مقدمه
- په متن باندې اعراب
- په تیبل کې تحت السطور بامفهومه ترجمه
- هر حدیث ته مناسب عنوان ورکول
- د مشکوة المصابیح د آحادیثو تخریج د صحاح سته وغیره کتابونو نه کول
- د مشکوة المصابیح د مشکلو لغاتو حل کول
- په شرحه کې هر یو ځای ته مناسب عنوان ورکول
- د ائمه اربعو د مذاهبو بیان
- د مذاهبو دلائل بیانول
- د احنافو د مذهب د ترجیح وجوهات بیانول
- په شرح کې د مرقاة او د اشعة اللمعات د عباراتو حوالې ورکول
- د کتاب د هرې صفحې په سر د کتاب او باب خودنه
- د هر کتاب په اول کې د ضروري مباحثو بیان
- بین القوسین په اضافي قیوداتو سره مزید وضاحت کول
- د مشکلو ابحاثو د سوال او جواب په ذریعه حل کول
- د جدید او قدیم بعضې مسائلو استنباط
- په آحادیثو کې د تعارض په صورت کې بهترین مطابقت راوستل
- په اتم جلد کې د مشکوة المصابیح د حدیثو د راویانو مفصل حالات

مکتبة الاصلاح
محله جنګی پشاور
0314-9797200
0345-1977797

د چهاپ ټول حقوق د ناشر سره محفوظ دي

## درخواست

د الله تعالیٰ په فضل وکرم سره د کمپوزنګ نظرثاني او تصحيح نه علاوه د چهاپ کولو او جلد سازئ په ټولو مرحلو کښې د ډير احتياط نه کار اخستلې شوی دی خو بيا هم انسان کمزوري دی۔
که ددې احتياط باوجود هم څه غلطي په نظر درشي نو اطلاع راکړئي ان شاء الله په راتلونکې چهاپ کښې به ئې تصحيح اوکړو۔


د کتاب نوم: توضيحات مشکوٰة شريف

مؤلف: الشيخ حضرت مولانا فضل محمد يوسف زئي حفظه الله دامت برکاتهم
علامه استاذ حديث جامعة علوم اسلامية بنوري ټاون کراچي

ترجمه: مولوي فيض الهادي حقاني

کمپوزنګ: مولوي فيض الهادي حقاني

ناشر: مکتبة الاصلاح محله جنګي پشاور
0314-9797200
0345-1977797


د ملاويدو پتې:

| پاکستان | افغانستان |
|---|---|
| شبقدر | جلال آباد |
| اکوړه خټک | کابل |
| صوابي | خوست |
| شيوه اډه | ګرديز |
| مردان | غزني |
| مينګوره | قندهار |
| تيمرګره | کوندوز |
| باجوړ | کنړ |
| ټل هنګو | مزار شريف |
| دوآبه | لغمان |
| ديره اسماعيل خان | |
| بلوچستان | |
| چمن | |

# فهرست

۳۰ ربیع الاول ۱۴۱۸ھ

# باب البیان والشعر

## د تقریر او شعر بیان

قال الله تعالی: ﴿وَشَدَدْنَا مُلْكَهُ وَآتَيْنَاهُ الْحِكْمَةَ وَفَصْلَ الْخِطَابِ﴾ (سورة ص: ۲۰)

شعر په لغت کې بیان وضاحت او د مقصود اظهار ته وایي. په بنایه کې یې لیکلي دي چې خپل مقصود په ډیر فصاحت او بلاغت سره او د زړه په زورتیا او پاکوالي سره د پیش کولو نوم ته بیان ویلی کیږي. فلان ابین فلان یعني فلانکی سړی د فلانکي سړي نه د خپل مافي الضمیر اظهار په غوره طریقې سره کوي. او بنه بیان کوي.

**الشعر:** په لغت کې فهم او ذکاوت او هوښیارتیا او عقل مندۍ ته شعر ویل کیږي. گویا دا د شعور نه جوړ شوی دی. چې هغه د علم او فهم په معنی کې دی. او د شعراؤ په اصطلاح کې د شعر پیژندنه (تعریف) داسې دي: **الشعر هو كلام مقفیٰ موزون عن قصدٍ**. یعنی د قصد او ارادې سره مقفی او موزون کلام پیش کولو نوم شعر دی. په دې تعریف کې د قصد او ارادې لفظ قید احترازي دی، د دینه هغه موزون کلام ووتلو چې د هغې د وزن اراده نه ده کړی شوي. لکه په قرآن او حدیث کې موزون کلام وي. دا اگرچې موزون دی خو د دې د وزن قصد او اراده نه ده کړی شوي. او نه وزن مقصود دی. دغه شان د قرآن او حدیث دا موزون کلام د شعر د قافیو داصولو د لاندې هم نوي. نه دا د شعر د قافیو مطابق دی. دغه شان په حدیث کې موزون دعاوې شته دی، هغه د شعر د تعریف نه خارج دي. ځکه چې د دې وزن قصد او ارادې د لاندې ندی. دغه شان د نبی کریم ﷺ کلام:

انا النبی لا کذب | انا ابن عبد المطلب (او)
هل انت الا اصبع دمیت | وفي سبیل الله ما لقیت

د شعر نه خارج دي ځکه چې د دې د وزن اراده نه ده کړی شوي او نه دا د شعر د اصولو او قواعدو مطابق دی.

**د معجزاتو څیرنه**: نبی ته چې الله تعالی کله معجزه ورکوي نو د هغې په ذریعه سره په معاشره باندې غالبه کوم څیز لره ماتوي مثلاً حضرت موسی علیه السلام په زمانه کې سحر او جادو په معاشره باندې دومره خپور شوی وُ چې د عدالت او معاشرې نظام چلولو د پاره به هم د جادو نه استفاده کیدله. ویلی کیږي چې د فرعون سره د جادو یو حوض وُ په هغې کې به مدعې او مدعّی علیه دواړه واچولی شول نو څوک چې به په حق باندې وُ نو هغه به د اوبو سره ته راغلو او بل به ډوب شو، دغه شان د هغوې سره به د جادو څه بطخي وي، هغه به د ښار په غاړو باندې وسیدلي، که کوم دښمن یا غل به ښار ته ننوتلو نو د جادو دې بطخو به په زوره زوره آوازونه کول، دې عامې جادو د ماتولو د پاره الله تعالی حضرت موسی علیه السلام ته دید بیضاء

او د عصا معجزه ورکړه. او هغه يې فرعون ته راليږلی ؤ. نو دې معجزې د معاشرې د جادو بيخ مات کړو او حق غالبه شو او باطل ورک شو. حضرت عيسی عَلَيۡهِ السَّلَام په زمانه کې معاشره باندې علاج معالجه او طب يونانې خپور شوی ؤ، الله تعالی حضرت عيسی عَلَيۡهِ السَّلَام ته د احياء موتی او مړو ژوندې کولو او مورزادې ړندو د صحيح کولو او د ابرص (برګې) ناروغان صحيح کولو معجزه ورکړه. چې په هغې سره د دغه خلکو د طبّ زور ماتيدلو سره صفر شو. او خلکو اقرار وکړو چې د حضرت عيسی عَلَيۡهِ السَّلَام سره د خدا د اړخ نه معجزه ده. د نبی اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې په عرب معاشره باندې ادب او فصاحت او بلاغت ډير مشهور ؤ. الله تعالی نبی اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د فصاحت او بلاغت اعلی امتياز قرآن عظيم ورکړو چې هغې د ټولو عربو فصاحت او بلاغت په زمکه کې خخ کړو. او هغوې ته د مقابلې اعلان وکړو که دا کلام د الله تعالی د اړخ نه نوي نو تاسو هم دغه شان کلام جوړ کړئ؟ دغه خلک د مرګ وژلو او جنګ کولو ته تيار شول. خو د ژبې په څوکو باندې د دې کلام مقابله يې ونکړې شوه، اګرکه د قرآن کلام شعر نه ؤ، ليکن دې د عربو د شعر او شاعرۍ غرور د خاورو سره يو ځای کړو. او هغوې د اجتماعي ناکامې اقرار وکړو. هغوې ته بيا بيا وويلی شول:

ماتحدا کم به خيرالانام ركب مماتركبوا الكلام

خو هغوې جواب ورنکړی شو. الله تعالی نبی اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د شعر او شاعرې نه ليرې وساتلو. دې لپاره چې څوک دا شک ونکړي چې د شاعرۍ په زور باندې هغه په دې نوي طريقه باندې دا کلام جوړ کړی دی. نو ځکه نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د شعر په جوړولو باندې نه پوهيدلو. بلکه ځينې وخت کې به د ويلو په وخت کې خبره مخکې وروسته شوه او د اصولو او قواعدو مطابق يې شعر نشو ويلی. خو بيا هم که کله به يې بغير د قصد او ارادې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د چا شعر ولوستلو نو هغې ته شاعرې نشي ويلی کيدلی. خلاصه دا ده چې نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په کوم کلام سره د عربو د فصحاؤ مقابله وکړه نو هغه د الله تعالی کلام دی. او د نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غټه معجزه ده، چې هغې ته قرآن وايي.

**شاعران او شاعري**: د شريعت په رڼا کې د شعر حکم دا دی چې دا يو کلام دی. که ښه کلام دی نو ښه دی. که بد دی نو بد دی. **هو کلام حسنه حسن قبيحه قبيح**. صحابه کرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ په مختلفو وختوونو کې شعرونه ويلي دي. نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ښه شعرونو داد ورکړی دی. بلکه د حضرت حسّان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د شعرونو د پاره يې اهتمام کړيدی. لهذا د ښه شعرونو انکار نشي کيدلی. هو خو بد اشعار بد دي، دغسې شان شعرونه د ژود عادت جوړول هم ښه خبره نده. په صحابه کرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ کې مشهور شاعران دري ؤ: (۱) حضرت حسّان بن ثابت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (۲) حضرت کعب بن مالک رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (۳) حضرت عبد الله بن رواحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ. په دوې کې حضرت حسّان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ډير کلام په قوميت او په حسب نسب په حواله سره کړی دی. يعنې د کافرانو حسب نسب يې ښکاره کړيدی. حضرت کعب بن

مالک رضي الله عنه کافران د دين او عقيدې او اعمالو او کردار په اعتبار سره تنګ کړي دي. په کافرو کې چې به دا څوک مسلمان شو نو ويل به يې چې د کفر په حالت کې خو به د حضرت حسّان رضي الله عنه خبرې په مونږ باندې د غشې په شان لګيدلې، خو د اسلام په حالت کې معلومه شوه چې د کعب بن مالک رضي الله عنه خبرې ډيرې سختې وې. حضرت کعب رضي الله عنه په نبی کريم صلی الله عليه وسلم لره په کافرو باندې داسې غوره والی ورکولو:

يبيت يجافي جنبه عن فراشه اذا استثقلت بالمشركين المضاجع

فمن كان او من قد يكون كاحمد نظام الحق او نكال الملحد

حضرت حسّان رضي الله عنه به په دې انداز سره کلام کولو:

اتهجوه ولست له بكفأ فشركما لخيركما الفداء

د آدم عليه السلام د پيدائښت نه تر ننه درې غټ شاعران راغلي دي: (۱) **الملك الضليل امرأ القيس قائدهم وصاحب لوائهم الى النار يوم القيامة** (۲) طرفة بن العبد کم عمری زلمی چې د شل کاله په عمر کې ووژلی شو. (۳) لبيد بن ربيعه عامری. د حضرت لبيد عمر يو سل شل کاله ؤ. ۶۰ کاله يې په کفر کې تير کړل او ۶۰ کاله يې په اسلام کې تير کړل. دهغه نه چا پوښتنه وکړه چې دهغه نه وروسته څوک غټ شاعر تير شويدی، نو وې فرمايل: صاحب الجدری يعنې هغه امرأالقيس په مخ باندې د تنکو داغونه ؤ، بيا پوښتنه وشوه چې دهغه نه وروسته بيا څوک غټ شاعر تير شويدی. نو وې ويل: کم عمری هلک يعنې طرفه بن العبد، بيا پوښتنه وشوه چې دهغه نه وروسته په دريم کې نمبر کې غټ شاعر څوک دی: نو وې ويل صاحب العصاء يعنې خپله زه په دريم نمبر باندې غټ شاعريم.

د اسلام قبلولو نه وروسته به يې شعرونه نه ويل. فرمايل به يې چې سورة بقرة کافي ده. وس د کوم شعر څه اړتيا نشته. کله چې به څوک د هغه د ناروغۍ پوښتنې لپاره ورتلل نو دا شعر به يې ويله:

ولقد سئمت عن الحياة وطولها وسؤال هذا الناس كيف لبيد

بيا به يې فرمايل:

الحمد الله ذلم يأتني اجل حتى اكتسيت من الاسلام سربالا

نبی اکرم صلی الله عليه وسلم د لبيد د يو شعر ستاينه په حديث نمبر: ۴ کې کړيده.

## د ټنګ ټکور اوريدو شرعي حکم

۱ ربيع الثاني ۱۴۱۸ھ

**نوټ**: الحمد لله چې زه د توضيحات دا برخه په تاريخ ۱۵ د رمضان ۱۴۲۶ھ باندې په مسجد نبوي کې روضه رسول صلی الله عليه وسلم ته مخامخا د قبله اړخ نه روضه نبی ته متوجې کيدو کې ليکم:

قال الله تعالى: ﴿وَالشُّعَرَآءُ يَتَّبِعُهُمُ الْغَاوُنَ﴾ (سورة نمل : ۲۲۴)

وقال تعالى: ﴿وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّشْتَرِىْ لَهْوَ الْحَدِيْثِ لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيْلِ اللهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَيَتَّخِذَهَا هُزُوًا اُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ﴾ (سورة المائده : ۶)

وقال تعالى: ﴿وَاسْتَفْزِزْ مَنِ اسْتَطَعْتَ مِنْهُمْ بِصَوْتِكَ وَاَجْلِبْ عَلَيْهِمْ بِخَيْلِكَ وَرَجِلِكَ وَشَارِكْهُمْ فِى الْاَمْوَالِ وَالْاَوْلَادِ﴾ (بنی اسرائیل: ۶۴)

په دې آیتونو کې د ټنګ ټکور او ګانو باجو حرمت په واضحه توګه باندې ذکر کړی شویدی. د دې مسئلې ته مسئلة الغناء ویلی کیږي. د ګڼو احادیثو او مذکوره آیتونو د وجه نه د دې مسئلې نهایت اهمیت اختیار کړی دی. او د علماؤ او فقهاؤ په نزد باندې دا یوه معرکة الاراء مسئله جوړه شویده . علماؤ د دې په اړه باندې مستقل کتابونه لیکلي دي . او په ټولو غټو وړو کتابونو کې یې دې ته اهم مقام ورکړی دی. کف الرعاع فی مسئلة الغناء، د ابن حجر هیتمی مشهورتصنیف دی. چې په هغې کې دا مسئله په نهایت تفصیل سره بیان کړی شوي ده.مفتی اعظم پاکستان حضرت مولانا مفتی محمد شفیع رحمه الله په خپل عربي تفسیر احکام القرآن کې ټنګ ټکور او ګانې او اوریدل باندې ښه پوره کلام کړی دی. دغه شان په عوارف المعارف او نورو کتابونو کې علماؤ دا مسئله ښه واضحه کړیده . ځینو ناپوهه خلکو د ځینې روایتونو نه د ټنګ ټکور د جائز کولو کوښښ کړیدی، نو ځکه د علماؤ په نزد باندې د ټنګ ټکور مسئله د بحث ځای جوړ شو. او نن سبا خو دا ناروغي عامه شویده، نو د عامو خلکو په ذهن کې دا خبره کیناستله یا کېنولی شوه چې ټنګ ټکور او ګانې بجانې خو یوه تفریح ده،د دې د حرامیدلو سره هیڅ تعلق نشته.

## د ټنګ ټکور په حرمت باندې دلائل

د دې بحث په ابتداء کې چې د قرآن کریم کوم آیتونه لیکلی شوي دي، په هغې سره مفسرینو حرمت غنا باندې استدلال کړیدی. او د قرآن د آیتونو مطلب بیانولو کې مفسرینو ته بنیادې او معیارې حیثیت ترلاسه دی. په دې آیتونو کې د سورة لقمان په آیت کې : **لَهْوَ الْحَدِيْثِ**، لفظ راغلی دی .دا لفظ اګرکه په بیکاره کلام او قیصو د پاره ویلی کیږي، خو فتاوی حمادیه او عوارف المعارف کې لیکلي دي چې حضرت ابن عباس رضي الله عنهما او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه دواړو په قسم خوړولو سره وفرمایل چې د **لهوالحدیث** نه ټنګ ټکور او باجې مراد دي.دغه شان سورة نجم په آخر کې﴿وَاَنْتُمْ سٰمِدُوْنَ﴾ د آیت تفسیر په ﴿وَاَنْتُمْ مُغَنُّوْنَ﴾ سره کړی شوی دی. د دې آیتونو نه علاوه بیشمیره احادیثو کې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د ټنګ ټکور دحرمت په اړه باندې واضح ارشاد فرمایلی دی. مثلا : مشکوة شریف :ص:۴۰۹ باندې د حضرت ابوهریره رضي الله عنه حدیث د کتلو قابل دی: بیا ص:۴۱۰ باندې دحضرت

ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث وګوری. بیا ص: ۴۱۱ باندې د حضرت ابو سعید خدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث وګوری، بیا دغه صفحه باندې د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت وګوری، بیا د دې سره د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا روایت وګوری، په یو حدیث کې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې ما تاسو د دوه فاسقه او دوه بیوقوفه آوازونو نه منع کړې وی، یو په مړې باندې د ژړا د آواز نه او دویم د غناء د آواز نه.

یو حدیث کې دي چې ابلیس اولنی هغه څوک دی چې هغه ګانا (لوبه) وویله او ویریې وکړو. په یو حدیث کې دي چې ګانا اوریدل حرام دي. او د دینه خوند اخستل کفر (د نعمت ناشکرې) ده. او د دې لپاره راغونډیدل ګناه او فتنه ده. په یو حدیث کې دي چې کله یو سړی ګانا وایي او د هغه آواز وچت شي نو الله تعالی د هغه اړخ ته دوه شیطانان راولیږي. یو شیطان یې په یوه اوږه باندې او بل شیطان یې په بله اوږه باندې کیني. او مسلسل یې په خپلو خپو باندې په وهلو وهلو سره هغه کس ته شاباسی ورکوي، تر دې چې هغه کس ګانا ختمه کړي. په یو حدیث کې دي چې: **الغناء حرام فی الادیان کلها**. یعني په ټولو دینونو کې ګانې بجانې حرام دي. قاعده دا ده چې کله په نصوص اختلاف وي نو د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ اقوالو ته رجوع کولی شي. صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ هم غناء او سرودونه حرام ګرځوي. حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي: **ما تغنیت ولا تمنیت ولا مسست ذکری بیمینی منذ بایعت رسول الله** صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

یعنې ما نه لوبه ویلې ده، نه مې د دې ارمان کړیدی او د کوم وخت نه چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره بیعت کړی دی نو په خپل ښي لاس سره مې خپل ذکر نه دی مسح کړی. حضرت عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل: **الغناء ینبت النفاق فی القلب کما ینبت الماء البقل.**

تابعین او تبع تابعین هم غناء لره حرام ګرځوي. فضیل بن عیاض رَحِمَهُ اللهُ فرمایي: **الغناء رقیة الزنا**.. علامه ضحاک رَحِمَهُ اللهُ فرمایي: **الغنا مفسدة للقلب سخطة للرب**، ځینو تابعینو ته منسوب ده: **ایاکم والغناء فانه یزید الشهوة ویهدم المروة**. امام مالک رَحِمَهُ اللهُ فرمایي: که چا وینزه واخستله او هغه ډمه وختله نو دا په دې سودا کې عیب (نقص) دی، دا سړی سودا فسخ کولی شي. امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ هم د غناء د حرمت قائل دی. وې فرمایل: زه یو ځل په دې مصیبت سره مې امتحان وشو ما صبر وکړو، خو کله چې زه مقتدی جوړ شوم او بیا مې امتحان وشو، نو د مجلس نه لاړم. واضحه دې وي چې ابتلاء د حرامو د وجه نه وي، لهذا په دې کلام کې د غناء حرمت ته اشاره ده. امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ فرمایي چې کوم سړی ډیر لوبې (ګانې) وایي، هغه احمق، بیوقوف، او مردود الشهادة دی. بهر حال دا ټول دلائل د غناء په حرمت باندې موجود دي. لهذا د دې په حرمت کې د هیڅ اختلاف نشي کیدلی. هو خو خواهش پرستې بیله خبره ده. (مرقات ۸/۵۵۷)

## دغناء په جواز باندې د اهل باطلو باطل استدلال

د غناء حرمت اتفاقي مسئله ده ، په دې کې د اختلاف څه ځاې نشته ، او نه د دې اختلاف څه شرعي حیثیت شته دی ، څه خلکو ته په څه نصوصو کې شک پیدا شویدی یا د باطني فساد په وجه باندې هغوې سره دپوهې نه د نصوصو غلط مطلب بیان کړیدی. دا زه ځکه دلته ذکر کوم چې کوم خواهش پرست سړی عام خلکو ته دهوکه ورنکړی شي. ګنې دلته نه څه دلیل شته او نه څه استدلال.

باطل پرست د سورة مائدة ﴿وَإِذَا سَمِعُوا مَآ أُنزِلَ إِلَى الرَّسُولِ تَرَىٰٓ أَعْيُنَهُمْ تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ مِمَّا عَرَفُوا مِنَ الْحَقِّ﴾ نه استدلال کوي : وګوره چې واې وریدلو په ژړا شول. نو د غناء په اوریدلو سره هم ژړیږي. اهل سماع د دې آیت نهم د تېنګ تکور د اوریدو د یاره د اباحت استدلال کړیدی. د غناء د اثبات لپاره د دې آیت نه استدلال کول تحریف فی القرآن دی. چې هغه حرام دی . دلته د ګانې اوریدلو خبره نه ده بلکه د حق اوریدلو خبره ده. باقې د تېنګ اوریدل (سماع) خبره وروسته راروانه ده .

په دغه توګه باندې اهل باطل دا آیت ﴿تَقْشَعِرُّ مِنْهُ جُلُودُ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ ثُمَّ تَلِينُ جُلُودُهُمْ﴾ (زمر:۲۳) نه هم استدلال کوي. دا هم د قرآن تحریف دی. او دا د هغه خلکو ښکاره ګمراهي ده . دلته یې د ګانا اوریدلو اثرندی ویلی، دلته خو د قرآن اوریدلو اثر ویلی شوی دی. البته سماع والا د دینه استدلال کوي. د هغې بحث راروان دی. اهل باطل د دې آیت نه هم په غناء باندې استدلال کوي: ﴿قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِينَةَ اللَّهِ﴾ د هغوې دا استدلال هم غلط دی. ځکه چې د زینت نه باجي او طبلې مراد ندي. نه کوم مفسر په دغه توګه تفسیر کړیدی. نه په حدیث کې شته دی . اهل باطل په یو حدیث سره هم د غناء نه استدلال کوي. چې د نبی کریم ﷺ په شتون کې د حضرت عائشه رضي الله عنها په کور کې دوه ماشومانو جینکو لوبه (ګانا) ویله. صدیق اکبر رضي الله عنه منع کړې. نبی کریم ﷺ ورته وفرمایل: دعهما یا ابابکر فانها ایام عید. د دینه هم استدلال غلط دي. ځکه دلته د ساده شعرونو ویلو خبره ده. وړې ماشومانې دي. په دې باندې د طبلې او د باجو والا ګانې قیاس کول او د بالغو ښځو د ډانس (نڅا) لپاره استدلال حماقت دی.

دا بیوقوفتیا هغه وخت مخې ته راغلله کله چې په ۱۹۷۴ء کې شیخ الحدیث حضرت مولانا عبدالحق رحمه الله د اکوړه خټک وسیدونکې د بهټو په دور حکومت کې د پاکستان په قومي اسمبلۍ کې د رقص او سرود په خلاف باندې تحریک التوا وړاندې کړو او ګانا بجانا یې حرام وګرځوله. نو کوثر نیازی او د هغه وخت وزیر قانون پیرزاده په ډیر زور سره د دې مخالفت وکړو او د ګانو بجانو په جواز باندې یې مذکوره روایتونه وړاندې کړل. او د رقص او سرود یې ښه کلک ملاتړ وکړو. په دې باندې د جامعه حقانیه اکوړه خټک باني شیخ الحدیث مولانا عبدالحق رحمه الله وویل: ګوره وروه! د ګانو بجانو او د طبلو او باجو دا اثر دی چې نن د یو ښځه د بل په غیږه کې ناسته ده. په دې جملو باندې عبدالحفیظ پیرزاده سخت احتجاج

وکړو او یو غوبل یې جوړ کړو چې دا غیر پارلیماني الفاظ دي. دا به بیرته اخستل وي. مولانا شاه احمد نوراني وویل: چې مولانا د چا نوم ندی اخستلی. بلکې په اخبار کې د چهاب کیدونکو بیانونو خبره یې کړیده. خو پیر زاده هغه شان په ضد ولاړ ؤچې دا الفاظ دي بیرته واخلي. مولانا خپل الفاظ بیرته واخستل. د دینه وروسته وزیر قانون پیرزاده وویل: د سندهـ جهومر نڅا، د پنجاب بهنګړا نڅا، د سرحد خټک نڅا، او د بلوچستان لیوا نڅا، د پاکستان ثقافتي ورثه ده. د پیرزاده نه وروسته حکومتي ممبر کرنل حبیب وویل چې دا خلک بیا بیا د ډرامانو ذکر کوي او حال دا دی چې ټول آداب د ډرامانو د کوټکو نه ترلاسه کیږي. دا خلک دې لاړ شي او د ډرامانو د کوټکو نه اداب زده کړي، زه خپله تر شلو کالو د میوزک ډانس سره پاتې شوی یم، کوم سړی چې په میوزک نه پوهیږي، هغه پاک سړی نشې جوړیدلی. د دې په جواب کې اپوزیشن ممبر قومي اسمبلې محمود علی قصوري وویل چې مونږ ته دې وویلی شي چې قائد ایوان جناب ذوالفقار علی بهټو ترڅومره زمانې دمیوزک سره تړاؤ پاتې شوی دی چې په هغې سره دا پاک سړی جوړ شویدی. خلاصه دا چې کوم خلک تنګ ټکور د قرآن نه ثابتوي، دا دهغوې زیاتې بدبختې ده چې په قرآن وحدیث کې د تحریف مجرمان هم شول. ګنې د دې د ثابت کولو څه ضرورت دی. هغوې به بغیر د جواز نه دې ته جائز وایي او نڅا (رقص) کوي. د میوزک او سماع د پاره یو د ځان نه جوړه شوي قصه هم بیانیدلی دی. وایي چې یو ځل جبریل امین د نبی کریم ﷺ خواته راغلی او وې فرمایل چې یارسول الله ﷺ ستا د جنت فقیران به د مالدارانو نه پنځه سوه کاله مخکې جنت ته ځي، په دې باندې نبی کریم ﷺ ډیر خوشحاله شو، او وې فرمایل: کوم ګانو والا شته؟ یو بدوې وویل: زه ګاني وایم. هغه دا شعر وویله:

قدلسعت حیة الهوی کبدی ‏ فلاطبیب له ولاراقی

الاالحبیب الذی شغفت به ‏ فعنده رقیتی وتریاقی

په دې شعر سره نبی اکرم ﷺ او صحابه کرام رضي الله عنهم په وجد کې راغلل. څادر د نبی کریم ﷺ د اوږو نه خکته پریوتلو. نبی کریم ﷺ هغه څادر وشلولو او څلور سوه ټوټې یې کړو او صحابه کرامو رضي الله عنهم باندې یې وویشلو. دا قصه راباندې دومره مکروه لګي چې د دې د لیکلو نه هم ماته شرم راځي. او په خاصه توګه باندې دا وخت د مسجد نبوی مخې ته دا سطور لیکم، قبه شریف راته مخې ته ده.

کف الرعاع عن مسئلة الغناء کې ابن حجر هیتمی رحمه الله او عوارف المعارف کې دهغې مؤلف دا قصه لیکلې ده او بیا یې په دې باندې رد کړیدی. د دې قصې نه غناء ثابتول بیکاره دی. البته د سماع والا خلک دا قصه ډیره نیغه نیغه کوي. او خوشحالیږي. وس راشي. او د سماع په اړه باندې څه وګوری. دلته د سماع نه مراد سماع موتی نده، بلکې ژوندې، په نشه، او د جوش نه ډک قلندرانو د محفل سماع مراد ده.

چې دا په قديمه زمانه کې ډيرۀ، او نن هم د دې شتون د اهل بدعت په نزد باندې شته دی. چې په هغې باندې د قوالۍ اطلاق ډير مشهور او معروف دی. د قديمې زمانې د سماع په محفل کې د علماؤ اختلاف راغلی دی. جمهور علماء او فقهاء او صلحاء د امت مطلقًا د سماع نه انکار کوي. او دا ناشنا ګڼي. البته د اهل تصوف يو مختصر طبقه د يو څو شرطونو سره د سماع قائل دي. هغه شرطونه دا دي:
(۱) کله چې فقط د وجد او جوش پيدا کولو والا اشعار وي. (۲) کله چې د بې ږيرو هلکانو سره اختلاط نوي. او نه په هغوې باندې اشعار ويلی کيږي (۳) په دې محفل کې د ښځې ذات بيخې شتون نوي (۴) هيڅ قِسم طبله يا باجه ورسره نوي (۵) د آخرت يادولو او د حبيب د تذکرې لپاره وي، په دې کې قبيح اشعار نوي (۶) اوريدونکې رياکار نوي، نه دنياوې غرضونه وي، نه نيت خراب وي (۷) په اجرت (مزدرۍ) باندې دسماع محفل نوي جوړ کړی شوی، نه لوستونکی اجرت اخلي. مفتي محمد شفيع رَحِمَهُ اللهُ په احکام القرآن کې ليکلي دي که يو سړی په يو اځوالۍ کې د وحشت ليرې کولو لپاره اشعار وايي نو دا جائز ده خو په دې شرط سره چې د هغه سره طبلې او باجې نه وي. سوچ کونکې لپاره سوچ ېکار دی چې د کر شوؤ شرطونو په يو محفل کې وجود تقريبًا ناممکن دی، نو سماع ته څنګه جائز ويلی کيدلی شي؟ نن سبا خو الله د ذکر سره په ټيي وي کې ميوزک شريک کړيدی. په هره قوالۍ کې د ډهول په ډنګ سره محفل ګرمولی شي. چيرته هغه نيکه سماع او چيرته دا خرافات؟ هو ! په جلسو کې چې نن سبا کوم نظمونه ويلی کيږي، شائد په دې کې بعض مجلسونه په دې شرطونو باندې پورا وي. او هغه جائز وي، سيد الطائفه شيخ جنيد بغدادی رَحِمَهُ اللهُ قول دی، وې فرمايل: دسماع ناقص ته اجازت نشته او کامل ته يې ضرورت نشته. دا خبره هم نظر کې ساتل ېکار دي چې يو نفس اماره په وجد کې راځي او خوشحاليږي، او کله روح په وجد کې راځي، خلک د روح او نفس په وجد کې فرق نشي کولی. خوند خو ورکوي، نفس اماره باندې چې شهوانيت غالب دی. او سړی دا سوچ کوي چې روحانيت دی.

**حکايت**: حکيم الامت حضرت تهانوی رَحِمَهُ اللهُ په خپل ملفوظات کې يوه قيصه ليکلي ده چې يو ځل په هندوستان کې يو محفل کې سماع د پاره دوه انګريزان راغلل، کيناستل. او په هغوې باندې ډير غټ وجد راغلو. خلکو وويل : واه! واه! دسماع به څه وايې، په انګريز باندې يې هم اثر وکړو. کله چې حضرت تهانوی رَحِمَهُ اللهُ ته معلومه شوه نو وې فرمايل: چې دهغوې نفس باندې وجد راغلی ؤ ، روح ته نهٔ. دا شهوانيت ؤ ، نه دا چې روحانيت، بيا يې وفرمايل چې ګوری د مار مخې ته چې کله بين غږولی کيږي نو هغه څومره په خوشحالۍ سره ټوپونه وهي، دا دهغه روحانيت نه بلکې نفسانيت دی.

**د يو رياکار پير قصه** : د سماع په محفل کې د رياکارۍ او د ټهګ پيرانو هم څه کمی نوي. دمحفل سماع سره اړونده د علماؤ نه مې يوه قصه اوريدلي ده چې يو رياکار پير صاحب محفل سماع جوړ کړو. او په مصنوعی وجد کې يې ټوپونه وهل. د پير صاحب په پګړۍ کې څلور انې بندې وي. چې ناڅاپه پګړۍ

ايله شوه، او څلور اني وغورزيدلې. اوس که پير صاحب په سنجيدګۍ سره هغه لټوي نو د خلکو اعتراض راځي، چې وجد کې نه دی، دروغجن دی. او که څلور اني په زمکه باندې غورزيدلې پريږدي نو دهغې د ضائع کيدلو خطره ده. نو هغه رياکار سر څنډلو سره خپل مريد ته وايې:

آنچه بر سر داشتم بگذاشتم

يعنې په پګړۍ کې چې کومې څلور اني وې نو هغه غورزيدلې، غورزيدلې دي، غورزيدلې، د هغې په جواب کې د هغه ټهګ مريد هم نيم شعر ويله، سرېې څنډلو او جواب يې ورکولو:

غم مخور صوفی که من برداشتم

يعنې غم مه کوه صوفي ما راخستې دي، راخستې دي، نو ټول شعر داسې شو:

آنچه بر سر داشتم بگذاشتم
غم مخور صوفی که من برداشتم

د دغه ډول ټهګانو خلکو به څه سماع وي او دهغې به څه محفل وي؟ او په دې کې به د څه وجد راتلل وي؟ ټوله دهوکه ده.

**د سعدی بابا عجيبه قصه** : سماع (ټنګ ټکور اوريدنه) د اوريدلو په اړه باندې سعدی بابا رَحِمَهُ اللَّهُ په خپل کتاب ګلستان کې خپله يوه قصه ليکلې ده. فرمايې چې ما به د سماع په محفلونو کې ګډون کولو. زما استاد ابو الفرج ابن الجوزی رَحِمَهُ اللَّهُ به زه بيا بيا منع کولم. خو زه به نه منع کيدلم. يو ځل د شپې په وخت کې زه په يو محفل کې شريک شوم، نو ټوله شپه د يو بد رنګ آواز والا سړي محفل کې شعرونه اورول، خلک پريشانه ؤ. زه هم پريشانه وم. مونږ د سحر راتلو ارمان کولو. دې لپاره چې د مصيبت نه خلاص شو. د سحر په راتلو باندې ما خپل پټکی د هغه په سر باندې کيخودلو او هغه مې مچې کړو. او راغلم. زما ملګرو زه په دې باندې ملامته کولم چې دومره غټ سړی يې او دا کار دې وکړو چې خپل پټکی دې يو ډم ته پرسر کړو. ما ورته وويل: چپ شئ، دغه سړې ماته ډيره غټه فائده راکړه، زه د خپل استاذ په منع کولو باندې د سماع نه منع نشوم ليکن د دې ډم شکل او صورت او د ده قبيح آواز زه د هميشه لپاره د سماع نه کرکجن کړم. دا زما مشر استاذ شو، نو ځکه مې ورته پټکی په سر کړو.

## الفصل الاول

## ځينې بيان د جادو اثر لري

| ﴿۱﴾ عَنْ ابْن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَدِمَ رَجُلَانِ مِنَ الْمَشْرِقِ فَخَطَبَا |
|---|
| ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې د ختيځ علاقې نه دوه کسان راغلل او خپل مينځ کې يې خبرې کولې خلکو |

| فَعَجِبَ النَّاسُ لِبَيَانِهِمَا فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : |
|---|
| دهغه په فصیحه او بلیغمو ینا باندې ډېر حیرانتیا او تعجب اظهار وکړو رسول کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل : |
| « إِنَّ مِنَ الْبَيَانِ لَسِحْرًا » (رَوَاهُ الْبُخَارِيّ) (۱) |
| بیشکه ځینې بیان سحر (اثرلري) دی. |

**توضیح:** لسحرا: یعنې ځینې بیان د زړونو مائله کولو کې د جادو اثر لري. (مرقات : ۸/۵۳۶) رجلان: دا د هغه وخت قصه ده چې کله د ختیځ علاقې نه بنو تمیم یو وفد د نبی کریم صلی الله علیه وسلم دربار ته راغلی، په دې وفد کې دوه کسان فصیح او بلیغ راغلي ؤ. د یو نوم زبرقان ؤ. او د دویم نوم عمرو بن هتم ؤ. د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په مجلس کې د صحابه کرامو نه ډکه غونډه کې زبرقان په ډېر فصاحت او بلاغت سره خپل مفاخر او مأثر په ډېر اثرناک انداز سره وړاندې کړل. او بیا یې وویل چې یارسول الله ! دا عمرو بن هتم هم زما بیان کړی شوي صفتونه ښه پیژني چې زه څنګه سړی یم او زما څه کارنامي دي. د دېنه وروسته عمرو بن هتم پاڅیدلو او هغه د زبرقان ټولې بیان کړی شوي دروغ ثابت کړي او وې ویل چې په دې سړې کې هیڅ ښه صفت نشته. دعمرو د بیان انداز هم نهایت اثرناک او برابر ؤ. چې په هغې سره خلک د زبرقان په اړه باندې په شک کې شول. د دېنه وروسته زبرقان بیا پاڅیدلو او په ډېر زړه راخکدونکې انداز کې یې وویل چې د دې سړې زړه پوهیږي چې زه څنګه یم خو کینې دا په دغه شان ویلو باندې مجبوره کړو. د صحابؤ غونډې چې به کله د دې دواړو بیان واوریدلو نو دواړو ته به یې شاباشی ورکړو او حیران به شول او تعجب به یې کولو. په دې باندې نبی کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل:(مرقات: ۸/۵۳۶) ان من البیان لسحرا ، یعنې بیان د زړونو په مائله کولو کې د جادو په شان اثر لري. ځینې محدثینو د نبی کریم صلی الله علیه وسلم دا کلام د بیان په بدۍ باندې حمل کړی دی. ګویا چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم داسې ویل غوختل چې په تکلف کولو سره خلکو لره خپل ځان ته مائله کول او په خله برسیرته کولو سره ناشنا کلام وړاندې کول او د خلې په زور سره فصاحت او بلاغت په پنجه کې خلکو لره راګیرول، د مالوچو غر جوړول او د خبرې باتینګړ راویستل، حقیر لره عظیم ښودل او عظیم لره حقیر ښودل، دا ښه کار ندی. بلکې دا خالص د جادو په شان مهارت دې. او دا د نفرت وړ دی. خو ځینې نورو محدثینو د نبی کریم صلی الله علیه وسلم دا کلام د تقریر او بیان په مدح باندې حمل کړی دی چې په ښه انداز او ښه طریقې سره ما فی الضمیر د نورو مخې ته ایږدل او خلکو لره متاثر کول، په طریقه باندې خبره کول، ناشنا اثر لري. چې دا ښه او د صفت کولو وړ ده. (مرقات : ۸/۵۳۶، ۵۳۷)

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۲۳۷ رقم الحديث ۵۷۶۷ وأبوداؤد في السنن ۵/۲۷۷ رقم الحديث ۵۰۱۱.

## ځینې شعرونه د حکمت نه ډک وي

| ﴿۲﴾وعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ مِنَ الشِّعْرِ حِكْمَةً» (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ) [1] |
|---|
| حضرت ابی ابن کعب رضی الله عنه فرمایي : چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : ځینې شعر حکمت وي . |

**توضیح**: حکمة: یعنې ځینې اشعار د حکمت نه ډک وي. په دې کې د حق خبره وي. او هغه په ربښتیا او عقل باندې بنا وي . ځینې شارحینو دلته د حکمت معنې په نفع سره اخستلې ده . یعنې ځینې اشعار داسې فائده ورکونکې وي چې هغه انسان لره د جهالت او بیوقوفتیا نه ساتي. او د غلطو افعالو نه یې منع کوي. دا عموماً د شاعرانو هغه شعرونه وي چې په هغې کې وعظونه ، مثالونه، او د هوښیارتیا خبرې وي. حقیقت دا دی چې شعر هم د کلام برخه ده. په دې کې چې کومه ښه ده، هغه ښه ده او کومه چې بده ده ، هغه بده ده . که وکتلی شي نو ښه شعر په کوزه کې د سمندر په مثال وي. په زړه او مازغو باندې د هغې اثر د اوږدو اوږدو خطبو نه ډیر اثر لري. بهرحال حکمة د فائدې په معنی باندې اخستل بعید دي. لهذا پاس لیکلی شوی مضمون او مفهوم د دې حدیث واضح مضمون دی.(مرقات : ۸/۵۳۷)

## خله وازه وازه کولو سره خبرې کول تباهي ده.

| ﴿۳﴾ وَ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « هَلَكَ |
|---|
| او ابن مسعود رضی الله عنه فرمایي چې رسول صلی الله علیه وسلم وفرمایل: په هلاکت کې وغورځیده په کلام |
| الْمُتَنَطِّعُونَ » قَالَهَا ثَلَاثًا (رَوَاهُ مُسْلِمٌ) [2] |
| کې مبالغه کونکې، نبی صلی الله علیه وسلم دا الفاظ یې درې ځل وفرمایل. |

**توضیح**: **المتنطعون**: تنطع د باب **تفعیل** نه دی. خله وازه وازه کولو باندې د مبالغې سره کلام کونکې ته متنطع وایې. یعنې د چا په کلام کې چې تصنع او بناوټ هم وي او بې ځایه چاپلوسي هم وي ، د خوشامد کولو په غرض سره بې ځایه عبارت راوستل هم وي،د الفاظو ښودنه هم وي، او د کلکو جملو مستې هم وي. دا ښه کار ندی. نو ځکه نبی کریم صلی الله علیه وسلم د دې بدې بیان کړه . ظاهره ده دروغ یو ځای کولو سره خلاف حقیقت خبره کول او د باطل حق ثابتول څه کمال ندی. (مرقات : ۸/۵۳۸)

**یادونه**: تر دې ځایه په مدینه منوره کې مې په تسلسل سره لیکلی دی .والحمد لله حمداً کثیرا او الحمد الله د دې ځای نه چې څه لیکلی کیږي ، دا د مدینې منورې نه په بیرته راتلو باندې یا په مکه کې

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۵۳۷ رقم الحديث ۶۱۴۵، وأبوداود في السنن ۵/۲۷۶ رقم الحديث ۵۰۱۰.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۵۵ رقم الحديث ۲۶۷۰.

۲۲ رمضان ۱۴۲۶ھ کې لیکلي کیږي.

## حقیقت باندې بنا یو شعر

﴿۴﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَصْدَقُ كَلِمَةٍ قَالَهَا

او ابو هریره رضي الله عنه فرمایي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل: د ټولو نه ریښتوني خبره کومه چې یو

الشَّاعِرُ كَلِمَةُ لَبِيدٍ: أَلَا كُلُّ شَيْءٍ مَا خَلَا اللهَ بَاطِلُ" (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

شاعر کړیده هغه د لبید دا کلام دی چې: خبردار! د الله نه غیره هر څیز فنا کیدونکی دی

**توضیح:** اصدق کلمة: یعني د ټولو ژبو او کلماتو نه ډیره ریښتونې خبره که کوم شاعر ویلي ده نو هغه د لبید دا کلمه ده، کومه چې هغه ویلي ده چې خبردار! د الله جل جلاله د ذات نه علاوه ټول فاني او ختمیدونکې دي. دا معیاري او ریښتونې کلمه ده. په دې کلمه کې د قرآن د دې آیت مفهوم ته اشاره ده: ﴿كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ إِلَّا وَجْهَهُ﴾ او دې آیت ته هم اشاره ده: ﴿كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ ۝ وَيَبْقَى وَجْهُ رَبِّكَ ذُو الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ ۝﴾ د لبید شاعر په اړه باندې په ابتداء کې لیکلی شوي دي. ټول شعر په دې توګه ده:

الا کل شيء ما خلا الله باطل     وکل نعیم لا محالة زائل

## امیه بن ابی صلت شاعر

﴿۵﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الشَّرِيدِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: رَدِفْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا

او حضرت عمرو ابن شرید د خپل پلار نه نقل کوي چې هغوی وویل: یوه ورځ زه نبی کریم صلی الله علیه وسلم

فَقَالَ: «هَلْ مَعَكَ مِنْ شِعْرِ

پسې شاته (د هغه په سورلۍ) باندې ناست وم چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم ماته و فرمایل: آیا تاته د

أُمَيَّةَ بْنِ أَبِي الصَّلْتِ شَيْءٌ؟» قُلْتُ: نَعَمْ. قَالَ: «هِيهِ»

امیه بن ابی صلت څه اشعار یاد دي. ما عرض وکړو چې هو. نبی کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل چې بنه.

فَأَنْشَدْتُهُ بَيْتًا. فَقَالَ: «هِيهِ»

واوروه. ما نبی صلی الله علیه وسلم ته یو شعر واورولو نبی صلی الله علیه وسلم و فرمایل: نور واوروه، ما بل شعر

ثُمَّ أنشدته بَيْتا فَقَالَ: «هيه»

واورولو. نبی صلی الله علیه وسلم و فرمایل بل واوروه. (د غه شان د نورو د اوریدو غوښتنه یې کوله او ما

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۵۳۷ رقم الحديث ۶۱۴۷ ومسلم في ۴/۱۷۶۷ رقم الحديث (۲۲۵۶-۲).

| ثُمَّ أُنْشِدْتُه مِائَةَ بَيت (رَوَاهُ مُسلم)[1] |
|---|
| به اورول) تر دې چې ما سل شعرونه واورول. |

**توضیح**: امیه بن ابي الصلت : د جاهلیت په زمانه کې چې کومو خلکو د بت پرستۍ مخالفت کړی ؤ او د توحید اجمالي اعلان یې کړی ؤ. هغه خلک به د حنفاء او موحدینو په نوم سره یادیدل. په هغوې کې یو امیه بن ابی الصلت ؤ. دا ډیر ښه شاعر او حقیقت خوښونکی سړی ؤ. په خپلو شعرونو کې به یې دالله وحدانیت په ډیر ښه او مدلل انداز سره بیانول. دهغه په زړه کې دا خیال کیناستلی ؤ چې شاید نبی آخرالزمان هغه جوړ شي. کله چې الله تعالی نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نبی آخرالزمان را ولیږلو نو امیه خو مسلمان نشو خو د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخالفت یې هم ونکړو، فقط تماشبین ؤ. لیکن کله چې د جنګ بدر واقعه پیښه شوه او د کافرو ښه ښه مشران جهنم ته ورسیدل، نو امیه بن ابی الصلت دهغوي په خواخوږۍ کې شعرونه وویل، او اسلام او د لشکر اسلام بدې یې وکړه، نو دغه شان هغه په کفرباندې مړ شو. نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دهغه په اړه باندې وفرمایل چې د امیه ژبه مسلمانه شوه خو دهغه زړه کفر وکړو. نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د امیه بن ابی الصلت په حقیقت باندې بنا شعرونه ستاینه وکړه. ددینه امت ته دا تعلیم ترلاسه شو که غیر مسلم سړی یو ښه کار وکړي یا پند او نصیحت باندې مشتمل شعرونه ووایي یا د مسلمانانو په حمایت کې څه خبره وکړي نو دهغه ښه کار ستاینه کول جائز دي. او په نصیحت باندې بنا شعرونو اوریدل او اورول جائز دي.(مرقات : ۸/۵۴۰)

## آیا نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کوم شعر ویلی دی

| ﴿۶﴾وَعَن جُنْدُبٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِي بَعْضِ الْمَشَاهِدِ | | | |
|---|---|---|---|
| او حضرت جندب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبی عَلَيْهِ السَّلَام په یو جنګ (جنګ احد) کې ګډون کړی ؤ چې (په جنګ کې) د نبی عَلَيْهِ السَّلَام | | | |
| وَقَدْ | دَمِيَتْ | أُصْبُعُهُ | فَقَالَ: |
| ګوته (ټپي شوه او دې وجه نه) په وینو ککړه شوه، نبی عَلَيْهِ السَّلَام (د استعاري یا حقیقت کې ګوتې لتسلی ورکولو لپاره هغې ته مخاطب | | | |
| هَلْ أَنْتِ إِلَّا أُصْبُعٌ دَمِيتِ | وَفِي سَبِيلِ اللهِ مَا لَقِيتِ | (مُتَّفق عَلَيْهِ)[2] | |
| کولو باندې دا شعر وویله: یعنې ته څه شی یې، فقط یوه ګوته یې، اینې شوې، او دیا په تا چې څه شویدي. د خدای په لاره کې شویدي. | | | |

**توضیح** :بعض المشاهد : د مشاهد اطلاق په غزواتو او جنګونو باندې کیږي. دلته د بعض مشاهد

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۷۶۷ رقم الحديث (۲۲۵۵-۱) وابن ماجه في السنن ۱۲۳۶ رقم الحديث ۳۷۵۸.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۱۹ رقم الحديث ۲۸۰۲ ومسلم في ۱۴۲۱ رقم الحديث (۱۷۹۶-۱۱۲) وأحمد في المسند ۴/۲۱۳.

نه جنګ احد مراد دی. (مرقات : ۸/۵۴۱)

هل انت الا اصبع دمیت وفی سبیل الله ما لقیت

یعنې ته یو داسې، په اینو باندې کګره ګوته یې چې هغې ته د الله په لاره جهاد کې درد رسیدلی دی.

دلته دا سوال پیدا کیږي چې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په اړه باندې د الله تعالی فرمان دی چې : ﴿وَمَا عَلَّمْنٰهُ الشِّعْرَ وَمَا يَنْۢبَغِيْ لَهٗ﴾ د دینه وروسته نبی صلی الله علیه وسلم دا شعر څنګه وویله؟

د دې جواب دا دی چې په دې کلام کې قصدًا د وزن اراده نده کړی شوي او د شعر لپاره ضروري ده چې په دې کې د وزن قصد وکړی شي، لهذا دا یو کلام دی ، شعر ندی. دا جواب هغه وخت کې دی کله چې دا ومنلی شي چې دا د نبی کریم صلی الله علیه وسلم خپل کلام دی.

دویم جواب دا دی چې ځینې علماؤ ویلي دي چې ﴿وَمَا عَلَّمْنٰهُ الشِّعْرَ﴾ کې د شاعرۍ د فن نفی ده. یو نیم شعر ویلو او جوړولو باندې سړی شاعر نه جوړیږي. (مرقات ۸/۵۴۲)

د دې سوال دریم جواب دا دی چې دا شعر د عبدالله بن رواحه دی یا د ولید بن ولید دی. نبی کریم صلی الله علیه وسلم کله کله د یو شاعر شعر د مثال او متثال لپاره ویلی دی. په دې سره سړی شاعر نه جوړیږي. د شاعرۍ لپاره غټې قاعدې او ضابطې دي . د لطف خبره دا ده چې د بل شاعر شعر ویلو کې به هم کله کله د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه وزن ماتیدلو. نبی صلی الله علیه وسلم د عبرت او مثال په توګه باندې د طرفه بن العبد شعر وویله:

ستبدی لك الایام ما کنت جاهلا ویأتیک من لم تزود بالاخبار

په دې کې دویمه مصرعه مخکې وروسته شوه او وزن یې مات شو . اصل شعر داسې دی:

ویأتیك بالاخبار من لم تزود. هم دا وجه ده چې صدیق اکبر رضی الله عنه نبی صلی الله علیه وسلم ته د شعر ښودنه وکړه او اقرار یې وکړو چې واقعې ﴿وَمَا عَلَّمْنٰهُ الشِّعْرَ وَمَا يَنْۢبَغِيْ لَهٗ﴾ د الله تعالی رینښتونې کلام دی. الله تعالی نبی صلی الله علیه وسلم ته د شعر فن نه دی ښودلی .

٢ ربيع الثاني ١٤١٨هـ

## د حضرت حسان قدر او مرتبه

﴿٧﴾ وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ قُرَيْظَةَ لِحَسَّانَ بْنِ ثَابِتٍ:

او براء رضی الله عنه فرمایلي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم د قریظه په ورځ باندې حضرت حسان بن ثابت رضی الله عنه ته وفرمایل چې

«اهْجُ الْمُشْرِكِينَ فَإِنَّ جِبْرِيلَ مَعَكَ»

ته مشرکانو بدې بیان کړه، حضرت جبرائیل علیه السلام ستا سره دی. (یعنې د مضمونونو په القاء او الهام په لړ کې به ستا مرسته کوی)

| |
|---|
| وَكَانَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لِحَسَّانَ: «أَجِبْ عَنِّي |
| او رسول کریم صلی الله علیه وسلم حضرت حسان رضی الله عنه ته به یې فرمایل چې ته زما د اړخ نه کافرو ته جواب ورکړه (بیا به یې فرمایل) |
| اللّٰهُمَّ أَيِّدْهُ بِرُوحِ الْقُدُسِ »(مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| ای الله د جبرائیل په ذریعه باندې د حسان مرسته وکړه او (د هغه په ژبه او بیان کې) طاقت او قوت ورکړه. |

**توضیح**: یوم قریظه: د دېنه جنګ قریظه مراد دی. په مدینه منوره کې د یهودو درې غټې قبیلې آبادې وې. (۱) بنو قینیقاع (۲) بنو نضیر (۳) بنو قریظه. د مکې مکرمې نه چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم کله هجرت وکړو. نو بنو قینیقاع نبی صلی الله علیه وسلم د مدینې نه وویستلو. او د بنو نضیر او د بنو قریظه سره معاهده وشوه چې هغه د میثاق مدینه په نوم سره مشهوره ده. بنو نضیر ډېر ژر بغاوت وکړو. نو ځکه هغوې د مدینې نه خیبر اړخ ته جلاوطن کړی شول. د دېنه وروسته چې کله د مکې خلکو په جنګ خندق کې د مدینې محاصره وکړه نو بنو قریظه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره کړی وعده ماتولو باندې بغاوت وکړو. د جنګ خندق نه چې کله نبی کریم صلی الله علیه وسلم فارغه شو او غسل یې کولو. نو جبرائیل امین علیه السلام وفرمایل چې د الله تعالیٰ حکم دی چې په بنو قریظه باندې برید وکړی شي. نو مسلمانانو د بنو قریظه د علاقو تقریبًا یوه میاشت محاصره وکړه او په آخر کې یې د هغوې ځوانان ووژل او ښځې او ماشومان یې غلام کړل.

اهج المشرکین: د جنګ احزاب دویم نوم جنګ خندق دی. پنځمه هجرې کې د مکې مشرکانو د مکې د طرافو نه قبیلې راغونډې کړې. او ۱۲ زره لښکر جرار سره د مدینې منورې د لړشان مسلمانانو محاصره کولو باندې یې برید وکړو. تقریبًا یوه میاشت دا محاصره وه. نبی کریم صلی الله علیه وسلم د سلمان فارسی رضی الله عنه په مشوره باندې خندقونه وکنستل او په دې نیک کارېې خپله هم برخه واخستله. حضرت حسان رضی الله عنه ته نبی کریم صلی الله علیه وسلم په دغه موقعه باندې وفرمایل چې د مشرکینو هجو وکړه ځکه چې د بنو قریظه د بغاوت اصل جرړه د مکې مشرکان ؤ. روح القدس: یعنې پاک روح، د دېنه مراد جبرائیل امین دی. هغه ته روح ځکه ویلی کیږي چې هغه به انبیاء کرام علیهم السلام ته د روح اچولو شیز راوړلو چې هغې ته وحې ویلی کیږي. القدس د پاک په معنی سره دی. یعنې جبرائیل امین علیه السلام د هر قسم عیب نه پاک دی. د جبرائیل امین د تائید مطلب دا دی چې د مضامینو په القاء کې به د حضرت حسان رضی الله عنه مرسته کوي. (مرقات: ۸/۵۴۴)

## د جهاد په میدان کې کافرانو ته ردې بدې ویل جائز دي

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت عائشه رضی الله عنها نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم (خپلو شاعرانو ته) فرمایلي ؤ |

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۳۰۴ رقم الحديث ۳۲۱۲ ومسلم في ۴/۱۹۳۳ رقم الحديث (۲۴۸۵-۱۵۱)

| « اهْجُوا قُرَيْشًا فَإِنَّهُ أَشَدُّ عَلَيْهِمْ مِنْ رَشْقِ النَّبْلِ » . ( رَوَاهُ مُسلم) [1] |
|---|
| چې قريش د کافرو هجو کوئ، (ځکه چې دا هجو ) په هغوی باندې د غشو دلګيدلو نه ډير سخت دی. |

**توضيح** :اهجو : يعنې تاسو خلک په خپلو شعرونو کې د مشرکين مکه بدې کوئ. رشق: غشي ويشتلو ته وايي . نبل: غشي ته وايي . يعنې کافر مادي شيانو ته ترجيح ورکوي ، روحانې نقصان باندې نه پوهيږي،لهذا د هغوی په بدی بيانولو باندې هغوی ته سخت تکليف رسيږي، او هغه خپل نقصان ګڼي، ګويا هغوی په غشي ويشتلی کيږي.(مرقات : ۸/۵۴۳)

د دې حديث نه معلومه شوه چې د جهاد په ميدان کې کافرانو ته رَدي بدې ويل او کنځل کول هم جائز دي. دا د جهاد برخه ده او د معمول خبره ده .

| ﴿۹﴾وَعَنْهَا قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لِحَسَّانَ: |
|---|
| او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه حضرت حسان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته دا وينا کول اوريدله ده |
| «إِنَّ رُوحَ الْقُدُسِ لَا يَزَالُ يُؤَيِّدُكَ |
| چې کله ته د الله تعالى او د هغه د رسول د اړخ نه(د کافرو او مشرکانو په هجو سره) مقابله کوي، |
| مَا نَافَحْتَ عَنِ اللهِ وَرَسُولِه». سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَام به هميشه ستا مرسته کوي، حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې ما د نبی عَلَيْهِ السَّلَام نه(دا هم) اوريدلي دي |
| يَقُولُ: «هَجَاهُمْ حَسَّانُ |
| چې حسان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د کافرو هجو وکړه او په دې هجو سره يې مسلمانانو ته شفا ورکړه او خپله يې هم شفا ترلاسه کړه، .يعنې هغه |
| فَشَفَى وَ . اشْتَفَى »(رَوَاهُ مُسْلِمٌ) [2] |
| د کافرو د هجو جواب ورکولو باندې مسلمانانو ته د تسلّي او تشفي اسباب ورسول، او خپله يې هم سکون او اطمينان ترلاسه کړو. |

**توضيح** : نافحت: منافحه مقابلې او دفاع ته ويل کيږي. يعنې کله چې تر څو چې ته د الله تعالى او دهغه د رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دفاع کوي او د مشرکانو د غلطو الزاماتو او تهمتونو او اعتراضونو جواب ورکوي جبرائيل امين به مسلسل ستا مرسته کې وي، او ستا په زړه باندې به د مضامينو القاء کوي، **شفى** : يعنې د مسلمانانو زړونه يې يخ کړل، او دهغوی د زړه سوزيدنه او قهر او غصه ته يې شفا ورکړه، **واشتفى** : يعنې خپل زړه يې هم دغه شان يخ کړو ، او شفايې ترلاسه کړه، (مرقات : ۸/۵۴۴)

---

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۹۳۵ رقم الحديث (۲۴۹۰-۱۵۷)

(۲) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۹۳۵ رقم الحديث (۲۴۹۰-۱۵۷)

## جهاد د ميدان يوه عظيمه ترانه

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ: كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْقُلُ التُّرَابَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ |
| او حضرت براء رضي الله عنه فرمايي چې رسول کريم صلی الله علیه وسلم به د خندق په ورځ په وجود مبارک سره خاوره گوزاروله، |
| حَتَّى اغْبَرَّ بَطْنُهُ يَقُولُ: |
| تردې چې د نبي عليه السلام خيټه مبارکه باندې دوړې ولګيدې، او (په دې موقع به يې د عبدالله بن رواحه د ارجزيه کلام) لوستلو |
| وَالله لَوْلَا الله مَا اهْتَدَيْنَا وَلَا تَصَدَّقْنَا وَلَا صَلَّيْنَا |
| په الله قسم که د الله هدايت نه وې نازل شوې نو مونږ به لاره نشوه موندلې، نه به مونږ صدقه ورکولې شوه، او نه مونږ لمونځ کولې شو، |
| فَأَنْزِلَنْ سَكِينَةً عَلَيْنَا وَثَبِّتِ الْأَقْدَامَ إِنْ لَاقَيْنَا |
| نو اې الله! په مونږ باندې وقار او اطمينان نازل کړه او کله چې د دين د دښمنانو سره زمونږ جنګ شي نو مونږ ثابت قدم وساته، |
| إِنَّ الْأُولَى قَدْ بَغَوْا عَلَيْنَا إِذَا أَرَادُوا فِتْنَةً أَبَيْنَا |
| يشکه دې کافرو په مونږ باندې تيرې (زياتې) کړيدې. او کله چې هغوې زمونږ په فتنه کې داچولو يعنې کفر ته سير ته د بوتللو اراده کوي |
| يَرْفَعُ بِهَا صَوْتَهُ: «أَبَيْنَا أَبَيْنَا». (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| نو مونږ انکار کوؤ. نبي عليه السلام دا شعرونه په اوچت آواز سره ويل، خصوصاً په أَبَيْنَا أَبَيْنَا باندې به يې اواز و چتيدلو. |

**توضيح: يوم الخندق:** د يوم خندق نه مراد جنګ احزاب دی، ديته جنګ خندق ځکه وايي چې په دې کې مسلمانانو د مدينې د دفاع لپاره د دښه ګيرچاپيره خندقونه کنستلي ؤ. ۵هـ کې جنګ احزاب په موقع باندې دولس زره کافرو د مدينې منورې محاصره کړې وه، نبي کريم صلی الله علیه وسلم د سخت تنګځيا په حالت کې د خندقونو کنستلو حکم ورکړې ؤ. سخته يخنې وه، وخت هم ډير کم ؤ. د خوړلو د پاره هم څه نه ؤ. صحابه کرام شپه ورځ د کنستلو په کار کې مشغوله ؤ. ځينو د ولږې د وجې نه خيټه پسې کاڼي تړلي ؤ، نبي کريم صلی الله علیه وسلم خپله هم په کار کې مشغوله ؤ او نبي صلی الله علیه وسلم مذکوره شعرونه ويل.

ان الالى: دا د قصر سره دی. اولآء کې يو لغت دی. کافرو ته اشاره ده. يعنې دې کافرو مونږ باندې سرکشې کولو سره تيرې کړيدې. او زمونږ نه د فتنې يعنې د شرک غوختنه کوي. خو مونږ د هغوې د دې غوختنې نه په مکمله توګه باندې انکار کوؤ. د أَبَيْنَا الفاظ به نبي کريم صلی الله علیه وسلم په وچت آواز سره بيا بيا ويل، صحابه کرامو رضي الله عنهم به هم دا لفظ په وچت آواز سره ورپسې ويلو. جهاد د ميدان دا يوه عظيمه ترانه ده. چې هغه د حقيقتونو او صحيح عقيدې په ښودنه او جرأت او مړانه باندې بنا دی. (مرقات: ۸/۵۴۶)

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۷/۳۹۹ رقم الحديث ۴۱۰۴ ومسلم في ۳/۱۴۳۰ رقم الحديث (۱۸۰۳-۱۲۵).

﴿١١﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: جَعَلَ الْمُهَاجِرُونَ وَالْأَنْصَارُ يَحْفِرُونَ الْخَنْدَقَ

او حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې کله (د غزوه احزاب په موقعه باندې) مهاجرينو او انصارو خندق کنستل

وَيَنْقُلُونَ التراب وهم يَقُولُونَ:

او خاورې يې راوړل او غورزول يې شروع کړل نو (په دې دوران کې) دا رجز به يې ويلو. مونږ هغه خلک

نَحن الذِينَ بَايعُوا محمَّداً عَلَى الجِهَادِ مَا بَقِينا أَبَدَا

مونږ هغه خلک يو چې هغوی د خپل ژوند تر آخري سلګۍ پورې د محمّد صلى الله عليه وسلم په لاس باندې د جهاد

يَقُولُ النَّبِيُّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُجِيبُهُمْ:

کولو بيعت کړيدی. او نبی کريم صلى الله عليه وسلم به د هغوی د رجز په جواب کې دا (دعاء) فرمايله چې

اللهمَّ لَا عَيْشَ إِلَّا عَيْشُ الْآخِرَهْ فَاغْفِرْ لِلْأَنْصَارِ والمهاجرة (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1]

ای الله ژوند خو بس د آخرت ژوند دی، ته انصار او مهاجرين وبښه. (بخاری و مسلم)

د دې حديث نه معلوميږي چې د جنګې ميدان او جهادې ميدان په جهادې نظمونو سره ځود ساتل هم د جهاد برخه ده، او د رسول کريم صلى الله عليه وسلم مسنون طريقه هم ده .

## شعر او شاعرې اصل مشغله جوړول پکار ندي

﴿١٢﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولِ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لِأَنْ يمتلىءَ جَوْفُ رَجُلٍ قَيْحًا

او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل: ياد ساتئ د چا خيټه د قی

يَرِيهِ خَيْرٌ مِنْ أَنْ يمتلئ شعرًا» (مُتَّفق عَلَيْهِ)[2]

نه ډکول چې د هغې خيټه خرابه کړي ، د دېنه بهتره ده چې خيټه د (مذموم) شعرونو نه ډکه کړی شي.

**توضيح** : يريه: وری يری وريًا وعد يعد وعدًا په شان دی. دا هغه ناروغی ته ويل کيږي چې په هغې سره خيټه فاسده او برباده شي، دا د قيح صفت دی. د قيح نه وينه او زوې مراد دي. مطلب دا دی چې د يو سړي خيټه د بدهضمۍ او وينو زوو نه ډکه شي او خيټه بيخي خرابه کړي، دا د دېنه بهتره ده چې هغه خيټه د ګنده او پليد او غليظ شعرونو نه ډکه شي. په دې حديث کې د مذموم شعرونو بدې بيان شويده . او په دې کې اشاره ده چې هغه پليد شعرونه به د دغه سړي په خيټه باندې داسې احاطه وکړي چې په زړه کې به د الله

---

(1) اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۴۶ رقم الحديث ۲۸۳۵، ومسلم في ۳/۱۴۳۲ رقم الحديث (۱۸۰۵-۱۳۰).

(2) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۵۴۸ رقم الحديث ۶۱۵۵، ومسلم في ۴/۷۶۹ رقم الحديث (۲۲۵۷-۷)

ادا او تلاوت د قرآن او علوم شرعيه د پاره هيڅ ځاې پاتې نشي، ظاهره ده دا صورت حال په پليد شعرونو بلکې د ... شعرونو د وجې نه هم جائز ندی. (مرقات : ۸/۵۴۸)

## الفصل الثاني

## جهادي شعرونه ويل جهاد باللسان دی

{۱۳} عَنْ كعبِ بنِ مالكٍ أَنَّهُ قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ اللهَ تَعَالَى قد أُنزلَ فِي الشعرِ مَا أَنْزَلَ. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ الْمُؤْمِنَ يُجَاهِدُ بِسَيْفِهِ وَلِسَانِهِ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَكَأَنَّمَا تَرْمُونَهُمْ بِهِ نَضْحَ النَّبْلِ» رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ وَفِي «الِاسْتِيعَابِ» لِابْنِ عَبْدِ الْبَرِّ أَنَّهُ قَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ مَاذَا تَرَى فِي الشِّعْرِ؟ فَقَالَ : « إِنَّ الْمُؤْمِنَ يُجَاهِد بِسَيْفِهِ. وَ لسَانه »[1]

حضرت کعب ابن مالک رضي الله عنه نه روايت دی چې هغه نبی کريم صلى الله عليه وسلم ته عرض وکړو چې الله تعالی د شعر او شاعری په حق کې چې کوم حکم ورکړی دی هغه په دې آيت سره ښکاره دی. نبی کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: حقيقت دا دی چې مؤمن په خپله تورا سره هم جهاد کوي او په ژبه سره هم. قسم دی په هغه ذات باندې د چا په قبضه کې زما ساه ده تاسو کافرو ته په شعرونو سره داسې ټپونه (زخم) ورکوی لکه څنګه چې يې د غشو په ذريعه سره ورکوی (شرح السنة) او ابن عبد البرّ په کتاب الاستيعاب کې داسې دي چې حضرت کعب رضي الله عنه عرض وکړو چې يا رسول الله صلى الله عليه وسلم د شعر او شاعرۍ په اړه باندې ته څه حکم ورکوي (يا څه بنه شی دی او که بد؟) نبی عليه السلام وفرمايل: مؤمن په خپله تورا سره هم جهاد کوي او په ژبه سره هم جهاد کوي.

**توضيح**: ما انزل: د قرآن آيت ﴿وَالشُّعَرَاءُ يَتَّبِعُهُمُ الْغَاوُنَ﴾ ته اشاره ده. حضرت کعب رضي الله عنه د دېنه ووريدلو چې هسې نه په ګمراهانو خلکو کې دا شامل نشي . نو ځکه يې پوښتنه وکړه . نبی کريم صلى الله عليه وسلم جواب ورکړو چې هغه په دې کې داخل ندی . ځکه چې د ګمراهۍ په کندو باندې سر کافران دي. مسلمانان ندي. دين بلکه د دينِ حق د دفاع لپاره شعرونه ويل خو د مسلمانانو لپاره د جهاد باللسان په حکم کې دی. ځکه چې په دې سره کافر سوزي. ځکه چې د ژبې ټپ (زخم) د تورې د

[1] اخرجه البغوي في شرح السنة ۱۲/۳۷۸ رقم الحديث ۳۴۰۹ واحمد في المسند ۳/۴۵۶.

ټپ نه سخت وي. (مرقات: ۸/۵۴۷)

جراحات السنان لها التيام ولا يلتام ما جرح اللسان

**نضح النبل:** نضح او به شيندلو ته وايي. او نبل غشي ته وايي. مطلب دا دى چې د کافرو په بدې بيانو لو کې ستاسو شعرونه په هغوی باندې داسې سخت لګي ګويا چې په هغوی باندې غشې ورولی کيږي.

**يجاهد بسيفه ولسانه:** په تورا سره جهاد کول خو معلوم او مشهور دي. او د ژبې د جهاد نه مراد جهادي نظمونه دي. شعرونه او ترانې دي. چې په هغې سره جهاد ته فائده رسيږي. دغه شان دا جهاد باللسان هغه وعظ او تقرير ته هم شامل دی چې په هغې کې د جهاد ترغيب يا د جهاد په موضوع باندې څه تصنيف او تاليف وي. چې په هغې سره د جهاد فائده وي. ټول په جهاد باللسان کې داخل دي.

## لږې خبرې کول او حياء د ايمان ښبه ده

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «الْحَيَاءُ وَالْعِيُّ |
| او حضرت ابو امامه رضي الله عنه د نبی کريم صلی الله عليه وسلم نه نقل کوي چې نبی عليه السلام و فرمايل شرم او حياء او ژبه په |
| شُعْبَتَانِ مِنَ الْإِيمَانِ وَالْبَذَاءُ وَالْبَيَانُ شُعْبَتَانِ مِنَ النِّفَاقِ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ [1] |
| خپل واک کې ساتل د ايمان دوه ښاخونه دي. او فحش ګويي او بې فائدې کول د نفاق دوه ښاخونه دي. |

**توضيح: العي:** عين باندې زبر دی او ياء باندې شدّ دی. په اصل کې د ستړيدو کيدو او عاجز کيدلو په معنې دی. دلته په حديث کې لږې خبرې کول او په خبرو کې په مکمله توګه باندې احتياط کول مراد دي. ګويا داسړی ستړی شو او د خبرو نه عاجزه شو. وس دا په ډير سوچ او فکر نه وروسته په احتياط سره خبرې کوي. او د ګناه د خبرو نه بيخې چپتيا کوي. مسلمان لره خو دهغه ايمان حيا ته اړ کړي، نو هغه د بی حيايې د ټولو اړخونو نه ځان ساتي. او دغه شان ايمان هغه د ډيرو خبرو نه ايساروي. دې لپاره چې د ژبې نه غلطه خبره ونوزي. نو ځکه حياء او قلت کلام د ايمان دوه ښاخونه وګرځولی شول.

**البذاء:** يعنې بی حيايې او بدګويې او فحش وينا، والبيان: يعنې ډيرې خبرې، بی احتياطې، دروغ او بهتان تړل، بی ځايه د ژبې زرورتيا او د حد نه ډير په تکلف سره فصاحت او بلاغت دا ټول د نفاق ښاخونه دي. (مرقات: ۸/۵۴۸)

## په وآزه خله سره د ترتر کونکو بدې

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِنَّ أَحَبَّكُمْ إِلَيَّ |
| او حضرت ابو ثعلبه خشنی رضي الله عنه فرمايي چې رسول کريم صلی الله عليه وسلم و فرمايل: د قيامت په ورځ |

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۲۹ رقم الحديث ۲۰۲۷، وأحمد في المسند ۵/۲۶۹.

| وَأَقْرَبَكُمْ | مِنِّي | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ | أَحَاسِنُكُمْ | أَخْلَاقًا | وَإِنَّ |
|---|---|---|---|---|---|---|

به م... بر کران او محبوب او نږدې هغه خلک وي څوک چې په تاسو کې ډير د خائسته اخلاقو والا وي

| أَبْغَضَكُمْ | إِلَيَّ | وَأَبْعَدَكُمْ | مني | مساويكم |
|---|---|---|---|---|

او زما په نزد په تاسو کې د ټولو نه بد او زمانه ليرې به هغه خلک وي څوک چې په تاسو کې د بد اخلاقو والا دي.

| أَخْلَاقًا | الثرثارون | المتشدقون |
|---|---|---|

او د بد اخلاقو نه مراد هغه خلک دي څوک د ډيرې (د ځان نه جوړې شوي) خبري کوي، بغير د احتياط نه

المتفيقهون»رَوَاهُ الْبَيْهَقِيّ فِي «شعب الْإِيمَان» [۱] (وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ نَحْوَهُ

يې بق بق خيژي، او متفيقهين. دا روايت بيهقي په شعب الايمان کې نقل کړيدی او ترمذي هم د

| عَنْ | جَابِرٍ | وَفِي | رِوَايَتِهِ |
|---|---|---|---|

حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه په دغه توګه باندې نقل کړيدی. دغه شان د ترمذي په يو روايت کې داسې دي چې

| قَالُوا: | يَا | رَسُول | الله | قد | علمنَا | الثرثارونَ | والمتشدقون |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ عرض وکړو چې يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثرثارون او متشدقون معنې خو مونږ ته معلوم دي،

فَمَا المتفيقهون ؟ قَالَ « المتكبرون ») [۲]

د متفيقهون نه څه مراد دي. يعنې متفيقه چا ته وايي؟ نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل : تکبر کونکي.

**توضيح**: الثرثارون: نهايه کې ليکلي دي چې الثرثارون هم الذين يكثرون الكلام تكلفا خروجا عن الحق من الثرثرة وهي كثرة الكلام وترديده. ګويا چې ثرثارون د تړتارون په وزن باندې دی. او ثرثره د تړتړه په وزن باندې دی. فضول بکواس کول مراد دي. المتشدقون: په واړه خله باندې بی احتياطۍ سره دروغ ويلو سره ټوقې کول او فحش شعرونه ويل.

التفيقهون: په واړه خله سره خبرې اترې کول او د خپلې لويې او غټوالي بيانولو په غرض سره فصيح او بليغ کلکې کلکې جملې په چا ورتپل، دې لپاره چې خلک د هغه نه په رعب کې راشي. دا ټول کار د تکبر کونکو خلکو دی. لهذا په حديث کې د دې لفظ تفسير خپله نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايلو: قال المتكبرون: يعنې متفيقهون نه متکبرين مراد دي. (مرقات : ۸/۵۴۸)

---

(۱) اخرجه احمد في المسند ۲/۱۹۳ والبيهقي في شعب الايمان ۴/۲۵۰ رقم الحديث ۴۹۶۹.

(۲) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۲۵ رقم الحديث ۲۰۱۸

## د ظالمانو په ستاینه کولو سره پیسه ګټل جائز ندي

﴿۱۶﴾وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى

او حضرت سعد بن ابی وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: قيامت به تر

يَخْرُجَ قَوْمٌ يَأْكُلُونَ بِأَلْسِنَتِهِمْ كَمَا

هغه وخته نه قائميږي تر څو چې يو داسې ډله پيدا نشي چې هغوی به د خپلو ژبو په ذريعه سره داسې خوراک کوي

تَأْكُلُ الْبَقَرَةُ بِأَلسنتها» (رَوَاهُ أَحْمَد)[۱]

لکه څنګه چې غواګانې په خپلو ژبو سره خوراک کوي.

**توضيح:** بألسنتهم : دا د لسان جمع ده . ژبه ترينه مراد ده. مطلب يې دا دی چې دا خلک به ژبه د خوراک څکاک ذريعه جوړه کړي، هغه داسې چې د فاسقانو فاجرانو به بې ځايه ستاينه شروع کړي. د هغوی په ستاينه کې به شعرونه او قصيدې وايي او د ژبې په اړولو اړولو سره به د هغوی تعريف کوي. او په هغې باندې به پيسه ګټي، يا د کوم بې ګناه بدې به بيانوي او ورباندې ګټلې پيسه به خوري. دا خلک به د حلال او حرام په مينځ کې د فرق نه کولو د وجې نه د هغه ځناور او غوا په شان وي چې هغه د خپلې ژبې په ذريعه سره هر ډول لوند او وچ او پاک او خرابه ګياه راغونډه کړي ، او بيا يې بغير د څه بيلولو نه خوري. د دينه غلط قسم شاعران او خطيبان مراد دي. چې هغوی د حق او باطل او حلال او حرام فرق نکوي. د ورسره حديث تشريح هم دغه ډول ده.(مرقات ۸/۵۵۱)

﴿۱۷﴾وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِنَّ اللهَ

او د حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: د الله تعالى په نزد باندې

يُبْغِضُ الْبَلِيغَ مِنَ الرِّجَالِ

هغه سړی ناخوښه دی چې هغه په کلام او بيان کې د حد نه ډير د فصاحت او بلاغت اظهار کوي . په

الَّذِي يَتَخَلَّلُ بِلِسَانِهِ كَمَا يَتَخَلَّلُ الْبَاقِرَةُ

هم دې توګه هغه خپله ژبه داسې په راغونډولو راغونډولو سره خبرې کوي لکه څنګه چې غوا خپله ګياه په ژر ژر په خپله

بِلِسَانِهَا» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ)[۲]

ژبه سره راغونډولو باندې خوري. دا روايت ترمذي او ابو داؤد نقل کړی دی. دغه شان ترمذي ويلي حديث غريب دی.

---

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۱/۱۸۴

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۲۷۴ رقم الحديث ۵۰۰۵ والترمذي في ۵/۱۲۹ رقم الحديث ۲۸۵۳ وأحمد في المسند ۲/۱۸۷.

**توضیح**: البلیغ: بلاغت او فصاحت کې په تکلف سره بې ځایه مبالغه کولو والا مراد دی چې هغه د خلې په ډیرې وازولو او د ژبې په اړولو راړولو سره حق او باطل کې د تمیز کولو نه بغیر خبرې کوي او د حد شرعط نه تجاوز کوي. په عشرې حدودو کې خبرې کولو کې هیڅ قباحت نشته دی. **یتخلل: ای یلف الکلام بلسانه کما تلف البقرة بلسانها العلف**: یعنې ژبه په تاوهلو راتاوهلو سره خبرې کونکی لکه څنګه چې غوا خپله ګیاه راتاوهي. الباقرم: د دې مفرد بقرة دی. د غواګانو ډله ترینه مراد ده. (مرقات: ۸/۵۵۱)

## د بې عمله نصیحت کونکو حشر

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَرَرْتُ لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِي |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایې: رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: د معراج په شپه باندې زما تیر دل په څه داسې |
| بِقَوْمٍ تُقْرَضُ شِفَاهُهُم بِمَقَارِيضَ النَّارِ فَقُلْتُ: |
| خلکو باندې وشول چې د هغوې ژبې د اور په بیتګانو باندې غوڅیدلې ما (دې کتلو باندې) پوښتنه وکړه |
| يَا جِبْرِيلُ مَنْ هَؤُلَاءِ؟ قَالَ: هَؤُلَاءِ خُطَبَاءُ أُمَّتِكَ الَّذِينَ يَقُولُونَ |
| چې جبرائیل دا کوم خلک دي. جبرائیل وویل چې دا ستا د امت واعظ او خطیب دي، چې دوې به هغه خبرې کولې |
| مَا لَا يَفْعَلُونَ " (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ)[1] |
| چې په هغې باندې به یې خپله عمل نکولو. ترمذي دا روایت نقل کړیدی او ویلي یې دي چې دا حدیث غریب دی. |

**توضیح**: تقرض: دا د قرض نه دی چې د غوڅولو په معنی باندې دی، مطلب دا دی چې کوم خطیبان په ژبه باندې یو څه وایي او عمل بل څه کوي او د حدود شرعیه ساتنه نه کوي. د معراج په شپه باندې هغه خلک نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته وښودلی شول، چې د هغوې شونډې د سزا په توګه باندې په بیتیګانو سره غوڅیدلی شوې. ځکه چې د هغوې باطن د ظاهر نه خلاف دی. لکه چا ویلي دي:

*واعظاں کہ جلوہ بر محراب و منبر می کنند　　چوں بخلوت می روند آں کار دیگری کنند*

## د تیرې ژبې په اړه وعید

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایې چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: کوم سړی چې د دې مقصد لپاره |
| تَعَلَّمَ صَرْفَ الْكَلَامِ لِيَسْبِيَ بِهِ قُلُوبَ الرِّجَالِ أَوِ النَّاسِ |
| د خبرو تاوهلو راتاوهلو طریقه زده کړي چې هغه د دې په ذریعه باندې د سړو په زړونو باندې یا د خلکو په زړونو |

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۳/۱۸۰

| لَمْ يَقْبَلِ اللهُ مِنْهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ صَرْفًا وَلَا عدلا»﴾(رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[١] |
|---|
| باندې واک ترلاسه کړي نو الله تعالى به د قيامت په ورځ باندې به نه د هغه نفل لمونځ قبول کړي او نه فرض لمونځ. |

**توضيح**: صرف الكلام: خبرې اړول راړول مراد دي. يعني د خبرو په اړولو راړولو ، کږلو راکږولو او تيره ژبې خوزولو ښه طريقه زده کړي. ليسبي: ضرب يضرب نه دی ، قيد کولو ته وايي. مراد دا دی چې د خلکو زړونه د ژبې په زور او په مبالغه کولو سره ځان ته مائله کوي. د حقيقت په پټولو سره د ضرورت نه ډير فصاحت او بلاغت مظاهره کوي دې لپاره چې خلک هغه ته متوجې شي او دا سړی خپل مطلب وويستلی شي.(مرقات: ۸/۵۵۲)

صرفا: د دېنه نفل عبادت مراد دی. عدلا: د دېنه فرض عبادت مراد دی. ځينې علماؤ د صرف نه توبه کول مراد کړيدي. او د عدل نه فديه ورکول مراد کړي دي. مطلب دا دی چې د داسې سړې عبادت به نه قبليږي. په دې حديث کې د خلې په زور سره خبره کول، مبالغه کول، او تيزه ژبه چلولو سخته بدي بيان کړی شويده.

## مختصر تقرير ښه وي

| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ عمْرِوبن العاصِ أَنَّهُ قَالَ يَوْمًا وَقَامَ رَجُلٌ |
|---|
| او حضرت عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې يوه ورځ ده په هغه وخت کې وفرمايل کله چې يو سړی ودريدلو |
| فَأَكْثَرَ الْقَوْلَ. فَقَالَ عَمْرٌو: |
| او خپل فصاحت او بلاغت ښکاره کولو په خاطر يې اوږد تقرير وکړو. نو حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل |
| لَوْ قَصَدَ فِي قَوْلِهِ لَكَانَ خَيْرًا لَهُ |
| که تا په خپل تقرير کې د اعتدال او ميانه روی نه کار اخستلی وی نو بيشکه هغه به د اوريدونکو په حق کې غوره وه. |
| سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «لَقَدْ رَأَيْتُ أَوْ أُمِرْتُ |
| ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دي چې زه پوهه شوی يم يا يې دا وفرمايل چې ما ته حکم کړی |
| أَنْ أَتَجَوَّزَ فِي الْقَوْلِ فَإِنَّ الْجَوَازَ هُوَ خير» (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[٢] |
| شويدی چې زه په تقرير او خبرو کولو کې اختصار نه کار واخلم، حقيقت دا دی چې لنډ تقرير غوره دی. |

**توضيح**: فقال عمرو : يعني رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دغه واعظ په تقرير باندې تبصره کولو کې وفرمايل که دې سړې خپل تقرير لنډ کړی وی نو ښه به وه ځکه تقرير په اعتدال کيدلو سره د زياتې کمې نه محفوظ وي او په اوريدونکو باندې د هغې بوج نه راځي. بلکې ښه اثر کيږي. په

---

(١) اخرجه ابوداود في السنن ۵/۲۷۴ رقم الحديث ۵۰۰۶.

(٢) اخرجه ابوداود في السنن ۵/۲۷۶ رقم الحديث ۵۰۰۸.

دې روايت کې فقال عمرو د اعاده بعد عهد په توګه باندې مکرر راوړلی شوی دی. ځکه چې کلام اوږد شو، ځکه اعاده او مکرر کیدل ضروري شوي ؤ. (مرقات: ۸/۵۵۳)

**اوامرت**: د راوي شک شویدی چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کوم يو لفظ استعمال کړی ؤ. **أتجوّز**: دا داختصار په معنې کې دی، مطلب دا چې ماته حکم شویدی چې زه په کلام کې د اختصار نه کار واخلم ځکه چې په دې کې خیر دی. ملا علی قاريؒ د جامع صغير په حواله سره يو حديث نقل کړيدی: چې دهغې الفاظ دا دي: ﴿لقد امرت ان اتجوز في القول فان الجواز في القول هو خير﴾ (مرقات ۸/۵۵۳)

## ځینې علوم او فنون د جهالت په معنې دي

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ صَخْرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ بُرَيْدَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ |
| او حضرت صخر بن عبد الله بن بریده د خپل پلار نه او هغه د صخر د نیکه حضرت بریده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل کوي چې |
| قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «إِنَّ مِنَ الْبَيَانِ سِحْرًا وَإِنَّ مِنَ الْعِلْمِ جَهْلًا |
| هغه وفرمايل چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوريدلي دي چې ځينې بيان جادو (په شان) وي. ځينې علم جهالت وي، |
| وَ إِنَّ مِنَ الشِّعْرِ حُكْمًا وَإِنَّ مِنَ الْقَوْلِ عِيَالًا». (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1] |
| ځينې شعرونه فائده مند يعنې حکمت او هوښيارتيا نه ډک وي. او ځينې قول او کلام په ځان باندې وبال وي. |

**توضيح: ان من العلم جهلا**: د دې جملې يو مطلب دا دی چې فرض کړه يو سړی بې فائدې علم ترلاسه کړو. مثلاً هغه علم نجوم او علم رمل او جفر زده کړو يا د منطق او فلسفې اوږده بحثونه يې زده کړل، يا د جديد پوهنې وسوسې او فضوليات کې اخته شو، چې په هغې کې نه د دوی خپله فائده شته او نه د امت څه فائده شته دی. بلکې د دې فضولياتو په زده کولو باندې هغه سړی د قرآن او حديث او شرعي علمونو د زده کولو نه محرومه شو، نو څه چې يې ترلاسه کړل، هغه دغې ته علم وايي حالانکې دغه جهالت دی، ځکه چې هغه خدای او دهغه د رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه ليرې کول کوي، بابا سعدیؒ څه ښه فرمايلي دي:

سعدی بشوئے لوح دل از نقش غیر حق — علمے کہ رہ حق نہ نماید جہالت است

**ترجمه**: ای سعدی د خپل زړه تخته د الله د نوم نه غیره د هر څه ومینځه. ځکه چې کوم علم د حق اړخ ته لارښود نه نکوي، هغه جهالت دی. د دې جملې دويم مطلب دا دی چې د علم ترلاسه کونکی چې کله په خپل علم باندې عمل نکوي، نو هغه علم د ده لپاره جهالت دی، ځکه چې د علم نه اصل مقصود عمل دی، کله چې هغه په خپل علم باندې خپله عمل نکوي، نو ګويا هغه جاهل دی.

---

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۵/۲۷۸ رقم الحديث ۵۰۱۲.

**من القول عيالا:** عيال دعين په زير سره دی. بوج او وبال په معنی دی. مطلب دا دی چې ځينې خبره داسې وي چې اوريدونکی هغه نه خوښوي، او نه د هغې اوريدل غواړي. يا هغه خبره بې موقع وي.نو دغه شان خبره کول د ويونکې لپاره بوج او په ځان باندې وبال ثابت شي، يا هغه خبره د ويونکې او اوريدونکې دواړو د پوهې نه ليري وي، نو د دواړو لپاره ګرانه وي. يا وخت لږ دی او خبره اوږده ده، دا هم دبوج سبب دی. د دې حديث په اوله جمله باندې مخکې کلام شويدی.(مرقات : ۸/۵۵۴)

## الفصل الثالث

## دحضرت حسان فضيلت

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضَعُ لِحَسَّانَ |
| حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې رسول کريم صلی الله عليه وسلم به په مسجد نبوی کې د حضرت حسان رضي الله عنه لپاره |
| مِنْبَرًا فِي الْمَسْجِدِ يَقُومُ عَلَيْهِ قَائِمًا يُفَاخِرُ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| منبر کيخودلو چې هغه به په هغې باندې ودريدلو او د نبی کريم صلی الله عليه وسلم د اړخ نه به يې د فخر اظهار کولو، |
| أُوينافح. وَيَقُولُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| يا دا الفاظ دي چې د نبی کريم صلی الله عليه وسلم د اړخ نه به (د کافرو د دين په خلاف شعرونو او هجو) مقابله به يې کوله. |
| «إِنَّ اللهَ يُؤَيِّدُ حَسَّانَ بِرُوحِ الْقُدُسِ |
| او نبی صلی الله عليه وسلم به فرمايل چې الله تعالی د حضرت جبرائيل عليه السلام په ذريعه سره د حضرت حسان مرسته کوي. ترڅو چې |
| مَا نَافَحَ أَوْ فَاخَرَ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ» (رَوَاهُ الْبُخَارِيّ) [1] |
| هغه د نبی الله صلی الله عليه وسلم د اړخ نه مقابله کوي يا دا الفاظ دي چې ترڅو هغه د نبی صلی الله عليه وسلم د اړخ نه د فخر اظهار کوي. |

**توضيح: يضع لحسان:** يعنې نبی کريم صلی الله عليه وسلم به د حضرت حسان رضي الله عنه لپاره منبر برابرولو. او حضرت حسان رضي الله عنه به په هغې باندې ودريدلو او د نبی صلی الله عليه وسلم په ستاينه کې به يې شعرونه لوستل او د کافرو د بدو جواب به ورکولو. دا د حضرت حسان رضي الله عنه لپاره غټ اعزاز ؤ. هم دا وجه ده چې دا په شاعر رسول صلی الله عليه وسلم په عظيم لقب باندې يادېږي. د قريشو په کافرو باندې ده د هغه وخت د رواج مطابق د حسب او نسب وچتوالی او کموالې په اعتبار سره تکونه ورکړي ؤ، چې هغه د کفار قريش لپاره ډيره ګرانه وه. حضرت حسان رضي الله عنه انصاری دی. د غسانی باچاهانو په ستاينه کې يې ډير وخت مصرف شويدی. د ايمان

---

[1] اخرجه ابوداود في السنن ۵/۲۸۰ رقم الحديث ۵۰۱۵ والترمذي في ۵/۱۲۶ رقم الحديث ۲۸۴۶،واحمد في المسند ۶/۷۲.

راوړلو نه وروسته په سفراو حضر کې د نبی کریم ﷺ سره ؤ. او په نبی ﷺ باندې قربان ؤ. په صحابه کرام رضی الله عنهم کې څلور غټ شاعران ؤ،یو حضرت حسان رضی الله عنه، دویم حضرت لبید دی .دریم حضرت عبدالله بن رواحه او څلورم حضرت کعب بن مالک دی. حضرت کعب به د کافرو مذهبي حیثیت په ښه کولو. او حضرت حسان بن ثابت رضی الله عنه به د هغوی خانداني حیثیت ښه جوړوله.(مرقات : ۸/۵۵۵)

## دنظم ویلو حیقیت او حیثیت

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾وَعَن أَنسٍ قَالَ: كَانَ لِلنَّبِيِّ حَادٍ يُقَالُ لَهُ: أَنْجَشَةُ |
| او حضرت انس رضی الله عنه فرمایي چې نبی کریم ﷺ یو نظم ویونکی ؤ. چې د هغه نوم انجشه ؤ.د |
| وَكَانَ حَسَنَ الصَّوتِ. فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «رُوَيْدَكَ يَا أَنْجَشَةُ لَا تَكْسِرِ الْقَوَارِيرَ» |
| هغه ډیر خائسته آواز ؤ.نبی کریم ﷺ هغه ته وفرمایل چې انجشه! اوښان په قلار قلار شړه او شیشي مه ماتوه. |
| قَالَ قَتَادَةُ: يَعْنِي ضَعَفَةَ النِّسَاءِ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| حضرت قتاده رضی الله عنه فرمایي چې د شیشو نه د نبی کریم ﷺ مراد ښځې وي.(بخاری و مسلم) |

**توضیح**: حاد: دا د اسم فاعل صیغه ده . د باب نصر ینصر نه حدواً وحداءً نظم ویلو (حدی خواني کول) ته وایي. د سفر په دوران کې چې کله اوښان د مزل په کولو ستړي کیدلو له وجې نه سست شي. نو په وچت آواز سره ورته لوبه ویلی کیږي. چې په هغې سره اوښان په تازه کیدلو سره تیز مزل شروع کړي. هم دې ګانې او شعرونو ته حدی وایي. د دې ابتداء په عجیبه طریقې سره شویده. هغه داسې چې د بنو مضر یو سړی ؤ . هغه د قافلې د سفر په دوران کې خپل غلام ووهلو. او د هغه لاس په غاښونو سره وچیچلو. نو غلام په چیغه چیغه ژړل او ویل یې: وایداه وایده وایده او کله به یې ویل: دی دی دی یعني یدی یدی یدی. په ژړا سره به یو خوند پیدا کیدلو. چې د هغې په وجه باندې ستړي ستومانه اوښان په منډه باندې شول. په دې باندې آقا خپل غلام ته وویل چې هم دغه شان یې وایه او د په دغه توګه د حدی بنیاد کیخودل شو. او بیا په دې کې پرمختګ وشو. وس د دې شرعي حیثیت دا دی که په دې کې باجې، شپیلۍ او طبل او ډهول نوي، نو فقط شعرونه ویل جائز دي. چې د هغې فائده هم ده ګنې جائز ندي.
علامه اقبال د قومی او مذهبي تحریکونو د راپیدا رولو لپاره د حدی نوم اخستلو سره داسې اشاره کړیده:

*حدی کو تیز تر کردے چوں محمل گراں می بینی*

یعني کله چې بوج ډیر شي نو حدي نوره هم تیزه کړه چې بوج سپک محسوس شي.
**قیصه**: حدی ویلو سره اوښان بیخي مست شي. ملاعلی قاري په مرقات کې یوه قیصه لیکلې چې د یو باڼ چې یو سړی میلمه شو. هغه وکتل چې یو تور پوستی غلام په زنځیرونو کې تړلی شویدی. هغه غلام میلمه ته وویل

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۵۹۴ رقم الحديث ۶۲۱۱ ومسلم في صحيحه ۴/۱۸۱۲ والدارمي في ۲/۳۸۲ رقم الحديث ۲۷۰۱.

چې د خدای لپاره زما آقا ته زما د خلاصون سفارش وکړه. ځکه چې هغه د میلمه خبره نه رد کوي. میلمه سفارش وکړو. نو د غلام آقا (مالک) وویل چې دې غلام یو غټ جرم کړیدی. هغه داسې چې زما لس اوښان ؤ. دې ظالم په یو سفر کې داسې حدی وویله چې د څو شپو سفریې په یوه شپه کې پوره کړو. کله چې اوښان منزل مقصود ته ورسیدل. نو د تیزې منډې له وجې نه ټول مړه شول. فقط یو اوښ پاتې شو. خو ستا په سفارش باندې زه دا غلام پریږدم. میلمه چې کله دا قصه واوریدله نو وې ویل چې دې غلام ته ووایه چې دا دې مونږ ته هم خپله حدي واوروي. هغه غلام ته حکم وکړو. کله چې غلام خپل ځانګړې انداز باندې حدی شروع کړه. نو هلته موجود ټول اوښان صحراء (دښتي) ته په وتختیدل. او میلمه هم لیونی شو او دښتي په لورې روان شو.

**انجشة:** همزه باندې فتحه ده. نون ساکن دی. او جیم او شین باندې فتحه ده . د دې سړي کنیت ابو ماریه ؤ، د نبی کریم ﷺ غلام ؤ. چې هغه حبشي تور پوستی غلام ؤ ﴿زه د ده نه قربان شم دا د نبی کریم ﷺ غلام ؤ﴾

**رویدك انجشة:** یعنې ای انجشه لږه نرمي کوه. څه مهلت ورکړه، ډیره تندي مکوه. لاتکسر القواریر:

**قواریر** د **قارورة** جمع ده دشیشي بوتل ته وایي. دا دقرار نه دی. ځکه چې په دې کې اوبه وغیره ایساریدلو سره قرار نیسي. د دینه مراد ښځي دي. ځکه چې ښځې هم صنف نازک دی. د هغوي کمزوری او نازک بدن او نرمه جوسه هم د شیشې په شان کمزوری دی. نو ځکه په شیشي سره د هغې تشبیه ورکړی شویده. شیشي مه ماتوه. ددې دوه مطلبه دي. اول مطلب یې دا دی چې په حدی ویلو سره اوښان په خوند او مستۍ کې په راتلو سره تیزه منډه وهي. چې د هغې په وجه باندې دوې ساه کیږي. ښځې کمزوری مخلوق دی، راپرې به وځي او مړې به شي. نو ځکه په قلار قلار حدی وایه. دویم مطلب یې دا دی چې په قافله کې ښځې هم دي. ستا په آواز او شعرونو سره به د هغوې جذبات راوپاریږي. په هغوې کې به یو غوبل جوړ شي. جذبات به یې د بی قابو کیدلو سره په فتنه کې پریوځي. نو ځکه په قلار قلار حدی وایه. (مرقات: ۸/۵۵۶)

ملا علی قاری رَحِمَهُ اللهُ اول مطلب لره ترجیح ورکړیده. او دویم ته یې غیر مناسب ویلي دي.

## دشعرونو ښه والی یا بدوالی د هغې د مضمون سره اړه لري

﴿۲۴﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: ذُكِرَ عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایي چې د رسول کریم ﷺ مخې ته د شعر ذکر وکړی شو. (دا ویو ښتل شو

الشِّعْرُ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «هُوَ كَلَامٌ فَحَسَنُهُ

چې شعر او شاعرې کول څه ښه کار دی او که بد؟) نو رسول کریم ﷺ وفرمایل چې شعر هم یو کلام دی. نو ښه

حَسَنٌ وَقَبِيحُهُ قَبِيحٌ» (رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيّ[1] وروى الشَّافِعِي عَنْ عُرْوَةَ مُرْسلا)[2]

شعر بنه کلام دی او بد شعر بد کلام دی. (دارقطني) امام شافعي دا روایت د حضرت عروة نه مرسلا نقل کړیدی.

## په شعرونو کې مستغرق اوسیدل بد عمل دی

﴿۲۵﴾ وَعَنْ نَافِعٍ قَالَ: كُنْتُ مَعَ ابْنِ عُمَرَ فِي طَرِيقٍ

او حضرت نافع رحمه الله فرمایي چې زه د حضرت ابن عمر رضي الله عنه سره په لاره کې وم. یو ځای کې

فَسَمِعَ مِزْمَارًا فَوَضَعَ أُصْبُعَيْهِ فِي أُذُنَيْهِ

حضرت ابن عمر رضي الله عنه د شپیلۍ آواز واورېدلو، نو سمدستي خپلې ګوتې په خپلو غوږونو کې ورکړې.

وَنَاءَ عَنِ الطَّرِيقِ إِلَى الْجَانِبِ الْآخَرِ ثُمَّ قَالَ لِي بَعْدَ أَنْ بَعُدَ:

دغه شان د لارې نه په اړخ کېدلو باندې په بل اړخ روان شو. بیا د دغه لارې نه لیرې کېدلو

يَا نَافِعُ هَلْ تسمعُ شَيْئًا؟

وروسته یې زما نه پوښتنه وکړه چې نافع! آیا ته هم څه اوري. یعنې دشپیلۍ آواز راځي. هغه وس

قلتُ: لَا فرفعَ أُصبعيهِ عَنْ أُذُنَيْهِ

هم شته او که بند شویدی؟ ما وویل: نا، هغه خپلې دواړه ګوتې د غوږونو نه لرې کړې، او بیا یې

قَالَ: كُنْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَمِعَ صَوْتَ يَرَاعٍ

بیان کړل چې رسول الله صلی الله علیه وسلم سره وم چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د ګینګړو آواز واورېدلو، او بیا

فَصَنَعَ مِثْلَ مَا صَنَعْتُ. قَالَ نَافِعٌ:

نبي کریم صلی الله علیه وسلم هم دغه وکړل کوم چې دا وخت ما وکړل. حضرت نافع رضي الله عنه فرمایي چې دغه

فَكُنْتُ إِذْ ذَاكَ صَغِيرًا». (رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُد)[3]

وخت زه یو کم عمری هلک وم. (احمد، ابوداود)

**توضیح:** مزمارًا: شپیلۍ ته مزمار وایي. چې هغه د بانس او لرګي نه جوړولی شي. صحیح او راجحه هم دا

---

([1]) اخرجه الدارقطني في السنن ۴/۱۵۵ رقم الحديث۲ من باب الخبر الواحد يوجب العمل.

([2]) اخرجه مرقات ۹/۵۰ رقم الحديث ۴۸۰۸.

([3]) اخرجه أبوداود في السنن ۵/۲۲۲ رقم الحديث ۴۹۲۴.

ده چې د شپیلۍ اوریدل حرام دي. په روایتونو کې دېته قضیب او یراع هم ویلی شویده. چې دا د بانس په معنې ده.

ولآم: یعنې د نزدې لارې نه اوریدلو باندې په لیرې لاره روان شو. او په غوږونو کې یې ګوتې ورکړې دې لپاره چې د شپلۍ آواز وانوري. (مرقات: ۸/۵۵۸)

الصغیر: دا جمله د سوال مقدر جواب دی. سوال دا دی چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه چې د شپیلۍ د آواز نه دومره ځان ساتنه کوي. چې په غوږونو کې یې ګوتې ورکړې. او د لارې نه اوریدلو باندې لیرې روان شو. نو نافع رضي الله عنه شپیلۍ اواز ولې اوریدلو. آیا دغه د لپاره جائز ؤ؟ د دې جواب نافع رضي الله عنه په دې جمله کې خپله ورکړو چې زه هغه وخت نابالغ ماشوم ؤم. نو ځکه مکلف نه ؤم. وس سوال دا پیدا کیږي چې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم مخې ته حضرت ابن عمر رضي الله عنه د شپیلۍ آواز ولې واوریدلو؟ نو د دې جواب هم دغه دی چې شاید حضرت ابن عمر رضي الله عنه به هم دغه وخت نابالغ ؤ. او په غوږونو کې ګوتې ورکول احتیاط او تقوی په بنیاد باندې ده. ګنې بغیر د قصد نه غوږونو ته آواز راتلل د نیو کې ورندي. ځکه چې دا د انسان د اختیار نه بیرون ده. او شپیلۍ غږونکی دا سړی کیدی شي یهودي ؤ.

بهرحال له دې حدیث نه په واضحه توګه باندې ثابتیږي چې د لهو لعب آلات او طبل او ډهول او باجو سره موسیقي اوریدل حرام دي. علامه قاضی خان په خپله فتاوی قاضی خان کې لیکلي دي:

﴿اما استماع صوت الملاهی کالضرب بالقضیب ونحو ذالك حرام ومعصیة لقوله علیه السلام استماع الملاهی معصیة والجلوس علیها فسق والتلذذ بها من الکفر﴾ (المرقات: ۸/۵۵۸)

د تنګ تکور په حرمت باندې د دې باب په ابتداء کې پوره بحث لیکل شویدی.



٣ربيع الثاني١٤١٨هـ

## باب حفظ اللسان والغيبة والشتم
## د ژبې ساتنه او د غيبت بيان

د غيبت پيژندګلويه په راتلونکي اولسم(١٧)حديث کې خپله راځي چې "ذکرك اخاك بما يکره"يعني په غائبانه توګه باندې د يو مسلمان ورور داسې تذکره کول چې که د هغه مخې ته دا تذکره وکړی شي نو هغه به داناخوښه کړي.دغيبت لپاره شرط دا دی چې عيب په هغه سړي کې وي. که عيب ورېکې ن وي او څوک يې وايي نو دا بهتان دی. د غيبت لپاره د مغتاب غائب کيدل هم شرط دی.مخامخ عيب بيانول په کنځلو او بدزبانۍ کې راځي.(مرقات : ٨/٥٥٩)

غيبت په حقوق العباد کې دي. لهذا ترڅو پورې چې مغتاب يې معاف نکړي، په توبه کولو سره نه معاف کيږي. حضرت تهانوی رحمه الله ليکلي دي چې غيبت هغه وخت په حقوق العباد کې راځي کله چې مغتاب سړي ته د هغې خبر وشي. که خبر ونشي نو دا په حقوق الله کې داخل دی. والله اعلم.

حضرت تهانوی رحمه الله دا هم ليکلي دي که يو سړی غيبت کول هم غواړي نوهغه لپاره پکار دي چې د خپل مور پلار غيبت وکړي، دې لپاره چې د غيبت کونکې نيکۍ د هغه مور پلار ته ورکړی شي ، بل چا ته ورنکړی شي. د حضرت حسن بصری رحمه الله يو سړې غيبت وکړو. نو ده يو پليټ کې هغه ته ډالۍ وليږله چې تا په ما باندې احسان وکړو چې خپلې نيکۍ دې ماته راکړې. يو سړې حضرت حسن بصری رحمه الله ته وويل چې ما ستا غيبت کړی دی. ته هغه زما لپاره حلال کړه. ده وفرمايل چې کوم څيز الله تعالى حرام کړی دی. زه هغه څنګه حلال کولی شم. دغيبت نه د ځان ساتلو طريقه دا ده چې په يو مجلس کې د چا تذکره ونکړی شي.

**والشتم:** کنځل کولو ته شتم وايې. يو سبّ او سباب دی ، هغه بدګوئې په معنٰی دی. که هغه په کنځلو سره وي او که په بله طريقه باندې. د غيبت نسبت په شتم کې عموم دی. دا مړې ، ژوندې ، حاضر ، غائب، ښځې او ليرې ټولو ته شامل کيدلی شي. چا سره فحش ګفتګو کول، هغه ته بد ويل، دهغه سره بد ژبتيا کول . او غير اخلاقي او بيکاره الفاظ سره هغه يادول، دا ټول شم او کنځلو کې داخل دي. لەدې وجې نه دا د غيبت نه وروسته ذکر کړی شويدي.په دې باب کې به داسې احاديث بيانيږي،چې په هغې کې به د ژبې د ساتنې يادونه وي. غير اخلاقي او بيکاره الفاظو نه د ژبې ساتلو ترغيب به وي. شرعي ، عرفي او اخلاقي توګه باندې بدکلامي د الفاظو نه د ژبې ساتلو روزنه به وي. خصوصًا خبرې وړل راوړل، کنځلې او دغيبت نه د ځان ساتنې روزنه ورکړی شويده. ځکه چې غيبت او خبرې وړل راوړل داسې شيان دي چې هغه په معاشره کې کينه، حسد ، بغض او دښمني او منافقت پيدا کوي.نو ځکه شريعت د امن او محبت په غرض په دې غير اخلاقي شيانو بنديز لګولی دی. د قرآن په سورتونو کې سورة حجرات په خاص

طور د معاشرې د دې بدو ماتونه کوي. د غیبت په اړه د الله تعالی حکم دی: ﴿وَلَا یَغۡتَب بَّعۡضُكُم بَعۡضًا أَیُحِبُّ أَحَدُكُمۡ أَن یَأۡكُلَ لَحۡمَ أَخِیهِ مَیۡتࣰا فَكَرِهۡتُمُوهُ﴾ دا اعلان هم دی: ﴿لَا یَسۡخَرۡ قَوۡمࣱ مِّن قَوۡمٍ وَلَا نِسَاۤءࣱ مِّن نِّسَاۤءٍ﴾ بهرحال په هر مسلمان سړي او ښځه باندې لازم دي چې هغه د الله تعالی د حکم مخې ته خپله غاړه کیږدي. او د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سنت خپل کړي او د غیبت نه خپل ځان وساتي.

# الفصل الاول

## د ژبې او شرمګاه په ساتنه باندې د جنت زیری

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ يَضْمَنْ لِي |
| حضرت سهل بن سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: کوم سړی چې ما ته د دې ضمانت |
| مَا بَيْنَ لَحْيَيْهِ وَمَا بَيْنَ |
| راکړي چې هغه به د خپل هغه شي ساتنه کوي چې هغه د ده دوه جامو ترمینځ دی، یعنې ژبه او غابنونه او کوم |
| رِجْلَيْهِ أَضْمَنْ لَهُ الجَنَّةَ» (رَوَاهُ البُخَارِيّ)[1] |
| چې د هغه د خپو په مینځ کې دی یعنې شرمګاه نو زه د هغه د جنت ضمانت اخلم. (روایت کړې دې بخاری و مسلم) |

**توضیح: مابین لحییه:** تثنیه ده، د دې مفرد لحی دی. دواړو جامو ته وایې. چې په هغې کې غابنونه لاندې باندې لګیدلي وي. د دې دواړو جامو ترمینځ ژبه وی. په دې حدیث کې ژبې ته اشاره ده. د حدیث مطلب دا دی چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایې چې کوم سړی ما ته د خپلې ژبې د ساتنې دا ضمانت راکړي چې هغه سړی به خپله ژبه سره کنځل نکوي، چغلي به نکوی، غیبت به نکوی، دروغ به نه وایي او بیا په تړوله خله باندې به حرام نه خوري، نو زه هغه سړې ته د جنت ضمانت ورکوم.

**و مابین رجلیه:** دوه خپو ترمینځ شي نه مراد شرمګاه ده. د شرمګاه ضمانت دا دی چې دا به په څه بدکارۍ او بدکردارۍ نه استعمالوي. د حدیث خلاصه دا راووتله چې کوم سړی د خیټې قوت او د شهوت قوت چې هغه د خلې او شرمګاه په ذریعه سره ترلاسه کیږي، د دې دواړو قوتونو د ساتنې ضمانت ورکړي، نو هغه ته به جنت ورکړی شي. (مرقات: ۸/۵۶۰)

---

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۳۰۸ رقم الحديث ۶۴۷۴.

## ژبه په قابو کې ساتل ډير ضروري دي

﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ الْعَبْدَ لَيَتَكَلَّمُ

او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل : حقيقت دا دی چې کله بنده د

بِالْكَلِمَةِ مِنْ رِضْوَانِ اللهِ لَا يُلْقِي لَهَا

خپلې ژبې نه يوه داسې خبره راوباسي چې په هغې د الله تعالى خوشحاليدل وي، نو اګر که هغه بنده د دغه خبرې

بَالًا يَرْفَعُ اللهُ بِهَا دَرَجَاتٍ وَإِنَّ الْعَبْدَ

په اهميت باندې نه پوهيږي ليکن الله تعالى د هغې په وجه د هغه درجې وچتوي. د غه شان کله چې بنده د خلې

لَيَتَكَلَّمُ بِالْكَلِمَةِ مِنْ سَخَطِ اللهِ

نه يوه داسې خبره راوباسي چې هغه د الله تعالى د ناخوښۍ ذريعه جوړه شي نو اګر که هغه بنده د دې اهميت نه

لَا يُلْقِي لَهَا بَالًا

پيژني (يعنې هغه دا خبره معمولي وګڼي او د هغې د ژبې نه په راويستلو کې هيڅ باک نه ګڼي) ليکن (حقيقت کې

يَهْوِي بِهَا فِي جَهَنَّمَ»

هغه خبره د نتيجې په اعتبار سره دومره د هيبت نه ډکه وي چې) هغه بنده د دې په وجه باندې دوزخ ته ګوزار

(رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. وَفِي رِوَايَةٍ لَهُمَا: «يَهْوِي

ګوزار کړی شي. (بخاري) او د بخاري او مسلم په يو روايت کې دا الفاظ دي چې هغه د دې په وجه باندې دوزخ

بِهَا فِي النَّارِ أَبْعَدَ مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ»)[1]

کې دومره ليرې ګوزار کړی شي چې هغه د مشرق او مغرب مينځنې فاصلې نه هم ډيره وي.

**توضيح**: لايلقى لها بالا: يعنې دغه سړې چې په ژبه سره کومه خبره کړيده، هغه سره د دې پرواه نه وي او نه هغه دا څه اهمه ګڼي او نه په زړه او مازغو کې د هغې څه پرواه ساتي، ليکن د هغې تر لرې پورې اثرات پريوځي. او د دې خبرې د وجې نه انسان د کوم ځای نه کوم ځای ته ورسيږي.

د حديث مطلب دا دی چې کومه ښه يا بده خبره سپکه ګڼل پکار ندي، که هغه خبره د معمول د خبرو په شان ولې نه وي. بهرحال د ژبې ساتنه کول د مسلمان ذمه واري ده. هسې نه چې د يو اړخ نه نيکې کوي او د بل اړخ نه هغه ضائع کوي. او د دې متل مصداق جوړ شي: نيکې وکړه او کوهي (څاه) ته يې ګوزار کړه، د

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۳۰۸ رقم الحديث ۶۴۷۷ ومسلم في ۴/۲۲۹۰ رقم الحديث (۲۹۸۸-۵۰)

دي حديث نه مونږ ته دا تعليم راکړی شويدی چې ژبه په قابو کې ساتل ډير ضروري دي.(مرقات : ۸/۵۶۹)

## يو مسلمان ته کنځل کول حرام دي

| ﴿۳﴾وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «سِبَابُ الْمُسْلِمِ |
| --- |
| او حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: يو مسلمان ته بدې ويل |
| فُسُوقٌ وَقِتَالُهُ كُفْرٌ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| فسق دی او د يو مسلمان وژل کفر دی. |

**توضيح: وقتاله کفر:** يعنې د مسلمان سره جنګ کول يا د هغه وژل کفر دی. وس سوال دا دی چې د اهل السنت والجماعت په نزد د ګناه کبيره په کولو باندې سړی نه کافر کيږي، دلته هغه کافر څنګه وويلی شو؟ په دې سره خو د خوارجو او معتزله مسلک ثابتيږي. د دې جواب دا دی چې د دې حديث مطلب او تاويل دا دی چې کوم سړی د مسلمان وژل او جنګ کول حلال او جائز ګڼي، دا کفر دی. ځکه چې هغه حرامو ته حلال وويل. چې دا کفر دی. د حديث دويم مطلب دا دی چې دغه سړې دومره غټه ګناه وکړه ګويا هغه د کفر حد ته راغلی. د دې سړې د ايمان کمال ختم شو نو د کمال ايمان نفي ده، خالص کافر شوی نه دی. دغه شان د سختۍ، غصې، رټنې او زورنې باندې دا کلام حمل کيدلی شي. (مرقات : ۸/۵۶۲)

## يو مسلمان ته د کفر يا فسق نسبت مکوه

| ﴿۴﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَيُّمَا رَجُلٍ قَالَ لِأَخِيهِ كَافِرُ |
| --- |
| او حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: کوم سړي چې خپل مسلمان ورور ته کافر وويله، |
| فَقَدْ بَاءَ بِهَا أَحدهمَا» (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| نو په دې دواړو کې يو ته کفر راستون شو، يعنې يا خو ويونکی خپله کافر شو يا هغه سړی چا ته چې ده کافر ويلي دي. |

**توضيح: فقد باء بها احدهما:** يعنې يو مسلمان بل مسلمان ورور ته وويله چې ته کافر يې. دا کلمه به په کوم يو باندې صادقيږي، او په دې دواړو کې به يو سړی خامخا د دې کفري کلمې سره راستنيږي. وس هم دوه صورتونه دي: يو صورت دا دی چې چا ته کافر ويلي شوي دي که هغه واقعي کافر وي نو دا کلمه به په هغه باندې ولګيږي، دويم صورت دا دی که هغه کافر نه وي نو دا کلمه به په ويونکې باندې راستنيږي، وس به هغه خپله کافر کيږي. د

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱/۱۱۰ رقم الحديث ۴۸ ومسلم في ۱/۸۱ رقم الحديث (۶۴-۱۱۶).
(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۵۱۴ رقم الحديث ۶۱۰۴ ومسلم في ۱/۷۹ رقم الحديث (۶۰-۱۱۱)

دې حديث ظاهر ته په کتلو سره علماء د دې حديث پوهه په ډير مشکل حديثونو کې شمار کيږي، د دې وجه دا ده چې ۰ گناه کبيره په کولو سره يو سړی د اهل السنت والجماعت په نزد باندې نه کافر کيږي، حالانکې هغه ته دلته کافر ويلې شويدی. دويم صورت دا دی چې که هغه کافر شوی ندی نو دا کلمه به په ويونکې باندې راستنيږي، اوس به هغه خپله کافر شي. د دې حديث ظاهر ته په کتلوسره علماء دا حديث په مشکل احاديثو کې شماري. د دې وجه دا ده چې د گناه کبيره په کولو سره د اهل سنت په نزد باندې يو سړی نه کافر کيږي. حالانکې ده ته کافر و يلی شوي دي؟ علماؤ د دې ځو توجيهات بيان کړيدي.

**اوله توجيه**: دا ده چې کافر ويونکی سړی دا عقيده لري چې مسلمان ته کافر ويل جائز او حلال دي. نو ظاهره ده چې کوم سړی اسلام لره کفر بلې هغه خپله کافر کيږي. **دويمه توجيه**: دا ده چې کوم سړې ته کافر ويلی شويدي، دا اګرچې غټه ګناه وه ليکن هغه خپله اقرار وکړو چې هو! تا ما ته چې کافر ويلي دي، دا صحيح دي. زه کافريم نو د دې اقرار د وجې نه هغه کافر کيږي. دغه شان د کفر دا کلمه هغه باندې راستنه شوه او دا کافر شو. **دريمه توجيه**: دا ده چې د دې حديث مطلب او مقصد دا دی چې هيڅ مسلمان دې بل مسلمان ته کافر نه وايې. دا منع دي. که څوک دغه شان وايي نو بيا به کتلی شي که مخامخ سړی کافر ؤ نو صحيح ده ، خبره ختمه شوه. ليکن که مخامخ سړی کافر نه وي نو د دې ويونکې سړې ګناه دومره غټه ده چې ګوا کې دا کافر شو، دا په تشديد اوتهدی او غصه او رټنه باندې محمول دی. (مرقات : ۸/۵۶۳)

| |
|---|
| ﴿۵﴾وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا يَرْمِي رَجُلٌ رَجُلًا بِالْفُسُوقِ وَلَا |
| او حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: يو سړی دې چا ته فاسق نه وايي او نه دې په هغه |
| يَرْمِيهِ بِالْكُفْرِ إِلَّا ارْتَدَّتْ عَلَيْهِ إِنْ لَمْ يَكُنْ صَاحِبُهُ كَذَلِكَ» (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ) [۱] |
| باندې د کفر تهمت لګوي ځکه که هغه سړی د فسق او کفر حامل نه وي نو د هغه ويلی شوې هغه ته بير ته راستنيږي. |

## يو مسلمان سړي ته د خدا دښمن مه وايه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۶﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ دَعَا رَجُلًا بِالْكُفْرِ | | | | | | |
| او حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: څوک چې څوک په کافر ويلو سره راوبلي | | | | | | |
| أَوْ | قَالَ | عَدُوَّ | اللهِ | وَلَيْسَ | كَذَلِكَ | إِلَّا |
| يا چا ته د خداې دښمن ووايي او هغه واقعةً دغه شان نوي نو د هغه ويلی شوې خپله هغه باندې راګرځي. يعني | | | | | | |

[۱] اخرجه مرقاة المفاتيح ۹/۵۶ رقم الحديث ۴۸۱۶.

| حارَ عليهِ" (مُتّفق عَلَيْهِ)[1] |
|---|
| ويونكى خپله كافريا د خداى دښمن جوړ شي. |

## د كنځلو ټوله ګناه په ابتداء كونكې باندې وي

| ﴿۷﴾وَعَن أنس وَأَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «الْمُسْتَبَّانِ |
|---|
| او حضرت انس او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: كه دوه كسان خپل |
| مَا قَالَا فَعَلَى الْبَادِئِ |
| مينځ كې كنځلې وكړي نو د دې ټولو كنځلو ګناه به په هغه سړي باندې وي چا چې مخكې والى كړى وي. |
| مالم يعتد المظلوم» (رَوَاهُ مُسلم)[2] |
| ترڅو چې مظلوم د حد نه وانوړي. (مسلم) |

**توضيح: مالم يعت به المظلوم:** اعتداء: تجاوز او د حد نه اوختلو ته وايي. د حديث مطلب دا دى چې په كنځلو كولو كې چا مخكې والى وكړو، ټوله ګناه د هغه په ذمه ده. مخكې والى كونكى ظالم دى. لهذا مظلوم كه فقط جواب وركوي، نو د جواب وركولو تر حده پورې په هغه باندې هيڅ ګناه نشته دى. هو! كه مظلوم بيرته راګرځيدلو باندې دوه قدمه د مخكې تللو كوښښ كوي او په كنځلو كولو كې د حد نه واوړيدلو. نو وس دا مظلوم خپله ظالم شولو، او مخكې والى كونكى مظلوم شو، خو بيا هم د كنځلو په كولو كې مخكې والې باندې هغه هم په دې جرم كې شريک دى. (مرقات: ۸/۵۶۴)

## ښه خلک چا باندې لعنت نه ليږي

| ﴿۸﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «لَا يَنْبَغِي |
|---|
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: د صديق لپاره دا جائز (مناسب) ندي |
| لِصِدِّيقٍ أَنْ يكونَ لعّاناً» (رَوَاهُ مُسلم)[3] |
| چې هغه په چا باندې ډير لعنت كونكى وي. |

**توضيح:** الصديق: د كوم سړي په قول او فعل كې چې تضاد نوي او د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قول لره بغير د دليل او حجت نه و مني. هغه صديق بللى كيږي. د نبي نه وروسته د صديق درجه وي. په دې حديث كې ويلى شويدي چې د صديق د شان سره دا نه ښايي چې هغه په خلكو باندې لعنت وليږي.

---

([1]) اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۷۹ رقم الحديث (۶۱-۱۱۲) واحمد في المسند ۵/۱۶۶.

([2]) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۰۰ رقم الحديث ۴/۲۰۰۰ رقم الحديث (۲۵۸۷-۶۸) وابوداود في السنن ۴/۲۰۳ رقم الحديث ۴۸۹۴.

([3]) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۰۵ رقم الحديث (۲۵۹۷-۷۴) والترمذي في السنن ۴/۳۲۵ رقم الحديث ۲۰۱۹.

ځکه چې د لعنت یو مطلب دی چې داسړی دعاء کوي چې یا الله دا سړی د خپل رحمت نه لیرې کړه.
دغه شان دعا کول ډیر نامناسب او غټ بخل دی چې د الله د فراخه رحمت نه د یو سړي د ویستلو کوښښ کوي. حالانکې ده لپاره پکارۇ چې د الله تعالی رحمت ته د راوستلو دعا یې کړې وی.
د لعنت دویم مطلب دا دی چې لعنت لیږونکی خبر ورکوي چې فلانکی سړی د الله تعالی د رحمت نه خارج شوی دی.دا هم غټ جرم دی ځکه چې دا ټولې د غیبو خبرې کوي. ده ته څه معلومه ده چې فلانکی سړی د الله تعالی د رحمت نه وتلی دی. هو! که کوم سړی په کفر باندې مړی شویدی نو هغه باندې لعنت لیږل جائز دی، خو فرض او ضروري هغه هم نه ده.

**د لعنت دوه قسمونه:** لعانًا: د لعنت دوه قسمونه دي. یو قسم د کافرو سره خاص دی، هغه دا چې سړی د الله تعالی د رحمت نه بیخې ووځي او د رحمت نه لیرې شي او د رحمت نه بیخې نا امیده شي. د دې مفهوم د لعنت تعلق فقط د کافرو سره دی. دغه شان لعنت په یو مسلمان باندې لیږل حرام دی.
د لعنت دویم مفهوم دا دی چې یو سړی مثلاً د الله تعالی د رحمت نه لیرې شي، د هغه د قُرب نه لیرې شي، او د هغه بد دعاء د هغه مسلمان لپاره کیدلی شي، څوک چې کوم نامناسب کار کوي.
د صحابه کرامو یا د اولیاؤ یا د علماؤ په کلام کې که د لعنت ذکر راغلی دی نو د هغې نه د لعنت هم دغه قِسم مراد دی، علماؤ لیکلي دي چې د مرګ نه وروسته چا باندې لعنت لیږل د هغه په کفر باندې متفرع ده. که هغه په یقیني توګه باندې په کفر مړ وي نو لعنت لیږل ممکن او جائز دي، اګرچې فرض او ضروري ندي. خو که د هغه مرګ په یقیني توګه باندې په کفر نوي شوی، نو په هغه باندې د مرګ نه وروسته لعنت نشي لیږل کیدلی. په یزید باندې د لعنت لیږلو مسئله هم دغه شان ده . چې د هغه مرګ په کفر باندې یقیني ندی، د جمهورو مسلک هم دا دی. تفصیل به د مشکوة په آخر کې راشي.
لعانًا: د مبالغې صیغه یې استعمال کړی شوي ده. په دې کې دې اړخ ته اشاره ده چې ډیر لعنت ویونکی مه کیږه او مه لږ، د ډیر لعنت نه ځان ساتل ډیره ګرانه ده . (مرقات : ۸/۵۶۵)

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «إِنَّ |
| او حضرت ابو درداء رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم نه مې دا اوریدلي دي چې کوم خلک ډیر |
| اللَّعَّانِينَ لَا يَكُونُونَ شُهَدَاءَ وَلَا شُفَعَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ» (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1] |
| لعنت کوي هغه به نه د قیامت په ورځ باندې ګواهان جوړ کړی شي او نه به شفاعت کولی شي.(مسلم) |

## چاته د اخروي هلاکت نسبت مکوه

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا قَالَ الرَّجُلُ: هَلَكَ |
| او حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمایي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: که کوم سړی دا ووایي چې خلک |

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۰۶ رقم الحديث (۲۵۹۸-۸۵) واحمد في المسند ۶/۴۴۸.

| النَّاسُ فَهُوَ أَهْلَكُهُمْ ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ[۱] |
|---|
| هلاک شول يعنې جهنم د اور مستحق شول نو دغه شان وېونکی د ټولو نه ډېر هلاکېدونکی دی. (مسلم) |

**توضیح: هلك الناس:** يعنې کوم سړی چې ووېل چې ټول خلک هلاک شول. نو په حقيقت کې هغه د ټولو نه ډېر هلاکېدونکی دی. ځکه چې دا سړی د نورو خلکو په عيب لټولو کې مشغوله دی. او خپلو ښيګړو ته ګوري. دغه شان دا په ځان خوښۍ کې اخته دی، او نورو ته د سپکې په نظر سره کتلو باندې داسې وايې. لهذا دا ټولو نه ډېر هلاک شويدی. ځکه چې ده ته د نورو خواخوګې مقصود نده، هو! که دهغوی د هدايت فکر ورسره وي، او دهغوی خيرخواهې مقصود وي. او دهغوی په بد حالت باندې افسوس کول مقصود وي، او د يو درد اظهار دی، نو په دې صورت کې دغه شان وېل به منع نوي.

## دوه مخې پاليسې خپلونکی سړی بدترين انسان دی

| ﴿۱۱﴾ وَعَنْهُ: قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «تَجِدُونَ شَرَّ النَّاسِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ |
|---|
| او حضرت ابوهريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د قيامت په ورځ باندې به د ټولو نه بدتر سړی |
| ذَا الْوَجْهَيْنِ الَّذِي يَأْتِي هَؤُلَاءِ |
| هغه وي ښوک (چې د فتنه خپرولو په خاطر) دوه خلې لري. يعنې د منافقت خاصيت او صفت لري. چې هغه يو ډلې |
| بِوَجْهٍ وَهَؤُلَاءِ بِوَجْهٍ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[۲] |
| ته راشي نو يو څه وايي او بلې ډلې ته راشي نو بل څه وايي. |

**توضیح: ذو الوجهين:** دوه خلې لرونکې سړی هغه وي چې هغه د حق او باطل اصولو لره د نظر نه تېروي. او د خلکو په خيالونو او خوښو باندې روان وي. د هر چا د مزاج مطابق خبرې جوړوي. ځکه چې هغه د راختونکې لمر عبادت کونکې دي. او د دې شعر مصداق دی:

معشوق من بشیوه ہر کس موافق اند — باما شراب خوردو بزاہد نماز کرد

ګويا د دې منافق دوه خلې لرونکې څه عقيده او نظريه نوي. بلکې که د هغه نه ښوک وپوښتي چې: **ما مذهبک؟** يعنې ستا دين او مذهب کوم يو دی. نو هغه جواب ورکوي: **في اى بلد؟** يعنې د کوم ښار د مذهب پوښتنه کوي. زه خو ديهوديانو سره يهودي او د عيسايانو سره عيسايي او د قاديانيانو سره قادياني او د بريليانو سره بريلی او د ديوبنديانو سره ديوبندي، د سنيانو سره سني او د شيعګو سره شيعه جوړېږم. ته د کوم ځای په اړه باندې پوښتنه

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۲۴ رقم الحديث (۲۶۲۳-۱۳۹) وأبوداود في السنن ۵/۲۶۰.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۷۴ رقم الحديث ۶۰۵۸ ومسلم في ۴/۲۰۱۱ رقم الحديث (۲۵۲۶-۲۰۰)

کوي؟ نن سبا د دغه شان خلکو ډیر زور دی. او په دغه بې عزتۍ باندې هغوی فخر کوي. نبي کریم ﷺ دغه شان خلک بدترین مخلوق ګرځولی دی او هغوی شریان او فسادیان بللی شویدي. (مرقات: ۸/۵۶۶)

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ قَتَّاتٌ» |
| او حضرت حذیفه رضي الله عنه فرمایي چې ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي دي چې چغلي کونکی به جنت ته نه داخلیږي یعنی هغه |
| مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَفِي رِوَايَةِ مُسْلِمٍ: «نَمَّامٌ»[1] |
| به نجات موندونکې خلکو سره په اول کې جنت ته نه داخلیږي. (او د مسلم په یو بل روایت کې د قتات په ځای د نمام لفظ دی) |

**توضیح: قتات:** د فساد پیدا کولو په غرض سره د یو سړي خبره بل ته وړونکی او د هغه ځای خبره دلته راوړونکې سړي ته قتات او نمام یعنې چغل خور ویلی کیږي. که دا سړی چغلي کول حلال ګڼي نو دا کافر شو نو جنت ته به کله هم نه ځي او که چغلي د ګناه په ګڼلو سره کوي نو بیا د سزا تیرولو نه وروسته به جنت ته ځي، د حدیث مطلب به دا وي چې بغیر د سزا نه به جنت ته نه ځي. یو شاعر ښه ویلي دي:

وهم نقلوا عن الذي لم اقل به وما آفة الاخبار الا رواتها

## رښتیا ویلو او دروغو نه د ځان ساتلو تاکید

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «عَلَيْكُمْ |
| او حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل: رښتیا ویل په خپل ځان باندې لازم کړی |
| بِالصِّدْقِ فَإِنَّ الصِّدْقَ يَهْدِي إِلَى الْبِرِّ |
| ځکه (همیشه او پابندۍ سره) رښتیا ویل نیکۍ کولو اړخ ته بوځي (یعني د رښتیا ویلو خاصیت دا دی چې |
| وَ إِنَّ الْبِرَّ يَهْدِي إِلَى الْجَنَّةِ وَمَا |
| د نیکۍ کولو توفیق وي (او نیک کار کول (نیکي کونکې د) جنت اعلی درجو ته رسوي. او (یاد ساتۍ) کوم |
| يَزَالُ الرَّجُلُ يَصْدُقُ وَيَتَحَرَّى الصِّدْقَ حَتَّى يُكْتَبَ عِنْدَ اللهِ |
| سړی چې همیشه رښتیا وایي او همیشه د رښتیا ویلو کوښښ کوي، نو هغه د الله تعالی په نزد باندې |
| صِدِّيقًا وَ إِيَّاكُمْ وَ الْكَذِبَ فَإِنَّ الْكَذِبَ يَهْدِي |
| صدیق لیکلی کیږي. دغه شان تاسو خپل ځان د دروغو ویلو نه وساتۍ، ځکه چې دروغ ویل فسق او |

---

(1) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۷۲ رقم الحديث ۶۰۵۶ ومسلم في ۱/۱۰۱ رقم الحديث (۱۰۵-۱۶۹)

| | | | |
|---|---|---|---|
| إِلَى | الْفُجُورِ | وَإِنَّ | الْفُجُورَ |

فجور اړخ ته بوتلل کوي. (يعنې د دروغو خاصيت دا دی چې بدو او بد عملو د کولو رغبت وي) او فسق

يَهْدِي إِلَى النَّارِ وَمَا يَزَالُ الرَّجُلُ يَكْذِبُ وَ يَتَحَرَّى الْكَذِبَ

او فجور (فاسق او فاجر لره) د دوزخ اور ته ټيله کوي. او (ياد ساتئ) کوم سړی چې ډير دروغ وايي

حَتَّى يُكْتَبَ عِنْدَ اللهِ كَذَّابًا».

او (د ډيرنا ډير) دروغ ويلو کوښښ کوي نو هغه د الله تعالى په نزد باندې دروغژن ليکلی کيږي.

مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَفِي رِوَايَةِ مُسلم قَالَ: «إِنَّ الصِّدْقَ بِرٌّ وَإِنَّ الْبِرَّ

(بخاري او مسلم) او د مسلم په يو روايت کې دا الفاظ دي چې حقيقت دا دی چې رېښتيا ويل نيکي

يَهْدِي إِلَى الْجَنَّةِ. وَإِنَّ الْكَذِبَ فُجُورٌ وَإِنَّ. الْفُجُورَ يهدي إِلَى النَّارِ»

ده او نيکې جنت اړخ ته بوتلل کوي او دروغ ويل فسق او فجور دی او فسق او فجور دوزخ اړخ ته ټيله کول کوي.

(متفق عليه وفى رواية مسلم قال اِنَّ الصِّدْقَ بِرٌّ

(بخاري ومسلم) او د مسلم په يو روايت کې دا الفاظ دي چې حقيقت دا دی چې رېښتيا ويل نيکي ده

وَاِنَّ الْبِرَّ يَهْدِىْ اِلَى الْحَقِّ وَاِنَّ الْكِذْبَ فُجُوْرٌ وَاِنَّ الْفُجُوْرَ يَهْدِىْ اِلَى النَّارِ [1]

او نيکي حق اړخ ته بوتلل کوی او دروغ ويل فجور دي او فجور دوزخ اړخ ته ټيله کول کوی

**توضيح**: **يتحرئ**: يعنې د رېښتيا ويلو خيال لري. په خبرو کې احتياط کوي، دروغو نه ځان ساتي، نو د الله تعالى په نزد باندې رېښتونې ګڼلی کيږي، عليين او د فرښتو په دفترونو کې د هغه نوم صديق ليکلی کيږي. او که په هره خبره کې د رېښتيا ويلو په ځای باندې دروغ وايي او په ناسته ولاړه او په ګرځيدلو کې د دروغ ويلو خيال پخوي نو د داسې سړي نوم د الله تعالى په نزد او د فرشتو په دفترونو کې کذاب ليکلی کيږي. د انسان د جسم اعتبار او د هغه اعتماد زړه او د ژبې د وجې نه قائم وي. ژبه که بې اعتباره شي نو د انسان ټول جسم او د هغه ټوله ژوند خلکو په نظرونو کې سپک شي، دنيا هم لاړو او آخرت هم لاړو. چا ويلي دي: الانسان باصغريه: يعنې انسان خو د دوه کوچنې اندامونو زړه او ژبې د وجې نه انسان دی.

يو شاعر وايي:

لسان الفتى نصف ونصف فؤاده فلم يبق الا صورة اللحم والدم

---

([1]) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۵۰۷ رقم الحديث ۶۰۹۴، ومسلم في ۴/۲۰۱۳ رقم الحديث (۲۶۰۷-۱۰۵)

## د اصلاح لپاره دروغ ويل، د دروغو په زمره کې نه راځي

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ أُمِّ كُلْثُومٍ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: «لَيْسَ الْكَذَّابُ الَّذِي |
| او حضرت ام کلثوم رضي الله عنها فرمايي چې رسول الله وفرمايل: هغه سړی دروغژن ندی چې هغه د خلکو |
| يُصْلِحُ بَيْنَ النَّاسِ وَيَقُولُ خيرا |
| په مينځ کې روغه جوړه کوي، د ښيګړي خبره کوي او (د يو بل نه) ښې خبرې رسوي، (اګر که هغه د يې روغې جوړې په |
| وينمي خيرا» (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| کولو کې او د دې خبرې په کولو او رسولو کې د دروغو نه کار واخلي) |

**توضيح:** ليس الكذاب: مثلاً د دوه مسلمانانو خپل مينځ کې اختلاف دی، يا بُعد دی. او يو دريمګړی سړی د دې فتنه او فساد او بغض او بُعد ليرې لپاره په حقيقت کې دروغ وايې، مثلًا يو ته وايي چې وروره هغه سړی خو ستا ډير خيرخواه دی، هغه ستا ستاينه کوي، ستا سره مينه لري. او ستا په اړه باندې د هغه ډيرې ښې ارادې دي. دغه شان خبرې په تګ سره هغه بل ته هم کوي، په دې کې دا که اګر که دروغ وايې، خو دا خو اصلاح بين الناس او اخلاص باندې بنا ده. لهٰذا د دروغو د وعيد نه خارج دی. دغه شان ښځه خاوند په مينځ کې کينه (نفرت) ختمولو لپاره دغه شان خبرې کول د دروغو د وعيد نه خارج دي. دغه شان د چا ځان ساتلو لپاره دروغ ويل جائز بلکې ځينې وخت کې فرض شي. مثلًا يو سړی د چا مرګ لپاره اسلحه په لاس هغه پسې منډې وهي، نو چا ورته وويل چې وروره هغه په دې لاره باندې ندی تللی بلکې په فلانکۍ لاره باندې تللی دی، دغه شان غلط بيان کول جائز بلکې ضروري دي. (مرقات: ۸/۵۶۸)

## په ستاينه کولو کې د ډير دروغ ويونکې بدي

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنِ الْمِقْدَادِ بْنِ الْأَسْوَدِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا رَأَيْتُمُ |
| او حضرت مقداد بن اسود رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: کله چې تاسو |
| الْمَدَّاحِينَ فَاحْثُوا فِي وُجُوهِهِمُ التُّرَابَ» (رواه مسلمٌ)[2] |
| ستاينه کونکي ووينئ نو د هغه په خوله کې خاوره واچوئ. |

**توضيح:** المداحين: دا د مداح جمع ده. او ستاينه کونکې ته ويلې کيږي. دلته بې ځايه او رياکارې، مکر کول، دهوکه کول، او دنيا دارۍ په غرض سره په دروغه ستاينه کونکې خلک مراد دي. په دې حديث کې

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۵/۲۹۹ رقم الحديث ۲۶۹۲ ومسلم في ۴/۲۰۱۱ رقم الحديث (۲۶۰۵-۱۰۱)

(۲) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۹۷ رقم الحديث (۳۰۰۲-۶۹) وابوداود في السنن ۵/۱۵۴ رقم الحديث ۴۸۰۳.

دي چې د دغه شان خلکو په خله کې خاروه واچوئ. وس د خاورې اچولو نه څه مراد دي. نو ځینې شارحین وايي چې دا کلام په حقیقت باندې بنا دی. چې په حقیقت کې خټه را واخله او د دغه ستاينه کونکې په خله کې يې واچوه. ځینو ويلي دي چې په دې کلام کې مجاز دی. مطلب دا دی چې دې ستاينه کونکې ته څه نا څه ورکړئ، ځکه چې نه ورکولو په صورت کې به هغه ستاسو بد وايي. يا مطلب دا دی چې ده ته څه مه ورکوئ، خاورې ورکړئ، دې لپاره چې بيا ستاسو بې ځايه ستاينه نه کوي. (مرقات: ۸/۵۶۹)

## په خله باندې د چا ستاينه کول ډير مذموم دي

| |
|---|
| ﴿١٦﴾ وَعَن أَبِي بكرَة قَالَ: أَثْنَى رَجُلٌ عَلَى رَجُلٍ |
| او حضرت ابوبکره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې (يوه ورځ) د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې ته يو کس د يو سړي (په ډيره مبالغې سره) |
| عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: |
| ستاينه شروع کړه (او هغه سړی هم موجود ؤ، د چا چې ستاينه کيد له) نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل |
| «وَيْلَكَ قَطَعْتَ عُنُقَ أَخِيكَ» ثَلَاثًا" |
| چې افسوس دی په تا باندې، تا د خپل ورور څټ غوڅ کړو. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا الفاظ درې ځل ووېل. (او بيا يې وفرمايل |
| مَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَادِحًا لَا محَالة |
| چې) که په تاسو کې څوک د چا ستاينه کول ډير ضرورې وګڼي نو هغه لپاره پکار دي چې (مثلاً) |
| فَلْيقل: أَحسب فلَانا |
| داسې ووايي چې زه د فلانکي سړي په اړه دا ګمان لرم (چې هغه نيک سړی دی) او حال دا دی چې د هغه سړي د حقيقي حال |
| وَالله حسيبه إِنْ كَانَ |
| نه الله تعالی ښه خبر دی. او هغه د دوی د اعمالو حساب اخستونکی دی. د غه شان که ستاينه کونکی |
| يُرَى أَنَّهُ كَذَلِكَ |
| دا ګمان لري چې هغه د کوم سړي ستاينه وکړه هغه په حقيقت کې دغه شان دی نو په دې صورت کې |
| وَلَا يُزَكِّي على الله أحدا "(مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| هم هغه د خدای د اړخ نه په چا باندې په کلکه او يقين سره دې حکم نه لګوي. (بخاري او مسلم) |

**توضیح: قطعت عنق اخيك:** يعنې په خله باندې په ستاينه کولو سره تا د هغه سړي څټ غوڅ کړو. ځکه

---

([1]) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۵۵۲ رقم الحديث ۶۱۶۲،ومسلم في ۴/۲۲۹۶ رقم الحديث (۶۵-۳۰۰)

چې ستا په دې ستاينې سره به دا سړی په عُجب او تکبر کې اخته شي. چې هغه د ده د آخرت د پاره تباه کونکی دی.

**د ستاينې قسمونه:** ديو سړي دستاينې درې صورتونه کيدی شي: اول صورت دا چې په خله باندې د چا ستاينه وشي دا ناجائز دی او ددې حديث اول مصداق دا صورت دی د ستاينې دويم صورت دا چې ستاينه په خله باندې نه وي بلکې پس پشت وي خو په دې انداز باندې وي چې د ستاينه کونکې دا يقين وي چې دا ستاينه به هغه سړي ته ورسيږي، داصورت هم د اول صورت په شان ناجائز دی. د ستاينې دريم صورت دا دی چې پس پشت يو سړي د بل سړي ستاينه وکړه او دا مقصد يې بيخې ندی چې دا ستاينه به هغه سړي ته ورسيږي، د چا چې يې ستاينه کړيده، او هغه به په دې ستاينې سره خوشحاله شي. د دې يې مطلق اراده نوي، د ستاينې دا صورت جائز دی. ليکن د دې لپاره شرط دا دی چې د چا ستاينه کيږي، هغه سړی د دې ستاينې مستحق وي. بې ځايه ستاينه نه وي.

٤ ربيع الثاني ١٤١٨ هـ

## دغيبت تعريف او تفصيل

| |
|---|
| ﴿١٧﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې (يوه ورځ) رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابه ته وفرمايل: آيا تاسو |
| «أَتَدْرُونَ مَا الْغِيبَةُ؟» قَالُوا: اللهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. |
| پوهيږئ چې غيبت څه ته وايي؟ صحابوٴ عرض وکړو چې الله او دهغه رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ښه پوهيږي. |
| قَالَ: ذِكْرُكَ أَخَاكَ |
| نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: غيبت دا دی چې ته د يو مسلمان ورور ذکر په داسې توګه وکړې که هغه |
| بِمَا يَكْرَهُ " قِيلَ |
| (دا واوري نو) ناخوښه به کړي. ځينې صحابوٴ (دې اوريدو سره) عرض وکړو چې يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا وفرمايي |
| أَفَرَأَيْتَ إِنْ كَانَ فِي |
| کهٔ زما په دغه ورور کې هغه عيب موجود وي، کوم چې ما يان کړيدی نو آيا بيا به هم غيبت وي. يعنې ما پشت پناه ديو چا په اړه داذکر وکړو |
| أَخِي مَا أَقُولُ؟ |
| چې په هغه کې فلانکی بدي ده. او حال دا دی چې په هغه کې واقعهٔ دغه بدي وي. او ما چې څه ويلي دي، هغه بيخي رښتيا دي. |
| قَالَ: «إِنْ كَانَ |
| چې هغه په حقيقت کې په هغه کې وي، غيبت به بللی کيږي؟ نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: تا چې دهغه د کومې |

فِیهِ مَا تَقُولُ فَقَدِ اغْتَبْتَهُ

بدی ذکر کړېدی، که هغه واقعي په هغه کې موجود وي. نو تا د هغه غیبت وکړو. او که په هغه کې دغه بدی موجود نه وی.

وَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِيهِ مَا تَقُولُ

کومه چې تا ذکر کړېده. نو تا په هغه باندې بهتان ولګولو. یعني هم دا خو غیبت دی چې ته دیو چا عیب د هغه په غیر حاضری کې ربښتیا بیان کړي.

فَقَدْ بَهَتَّهُ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ

او که ته د هغه عیب یا نو لو کې ربښتیا نه یې چې تا هغه ته د کوم عیب نسبت کړېدی، دغه په هغه کې موجود نوي. نو دا افتراء او بهتان دی.

وَفِي رِوَايَةٍ: «إِذَا قُلْتَ

چې دا خپله یوه لویه ګناه ده. (مسلم) او د مسلم په یو بل روایت کې دا الفاظ دي چې (نبی علیه السلام وفرمایل) که تا

لِأَخِيكَ مَا فِيهِ فَقَدِ اغْتَبْتَهُ

د خپل یو (مسلمان) ورور هغه بدي بیان کړه کومه چې واقعي په هغه کې موجود ده، نو تا د هغه غیبت وکړو.

وَإِذَا قُلْتَ مَا لَيْسَ فِيهِ فقد بَهته»[1]

او که تا هغه ته د داسې بدې نسبت وکړو کومه چې په هغه کې نشته نو تا په هغه باندې بهتان ولګولو.

**توضیح:** ذکرك اخاك: دا د غیبت پیژندنه ده. کومه چې خپله په حدیث کې ذکر شویده. دا ناجائز او حرام ده. البته د درې قسمه خلکو غیبت کول جائز دی. په دې کې اول فاسق مجاهر دی. د هغه غیبت په دې نیت سره کول جائز دي چې خلک د هغه د شرارت او خباثت نه محفوظ شي. دویم د ظالم حاکم غیبت جائز دی. په قرآن کې دي: (لَايُحِبُّ اللّٰهُ الْجَهْرَ بِالسُّوْءِ مِنَ الْقَوْلِ اِلَّامَنْ ظُلِمَ) دریم هغه بدعتي دی چې د هغه بدعت متعدی کیږي او د غیبت کونکې په غیبت سره فائده هم کیږي او هغه د اصلاح په نیت سره غیبت کوي یا د ځان ساتنې په اراده سره یې کوي. که دا فائدې او شرطونه نوي نو د بدعتي غیبت د غیبت کولو لپاره جائز نه دي.

## په خلکو کې سپکې وینا کونکی بدترین سړی دی

﴿۱۸﴾وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّ رَجُلًا اسْتَأْذَنَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

او حضرت عائشه رضی الله عنها نه روایت دی چې (یوه ورځ) یو سړی د نبی علیه السلام په خدمت کې د حاضریدلو اجازت وغوښتلو

[1] أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۰۱ رقم الحديث (۲۵۸۹-۷۰) وأبوداود في السنن ۵/۱۹۱ رقم الحديث ۴۸۷۴.

| |
|---|
| فَقَالَ: «ائْذَنُوا لَهُ فَبِئْسَ أَخُو الْعَشِيرَةِ» فَلَمَّا جَلَسَ |
| نو نبی عَلَیْہِ السَّلَامُ وفرمایل چې دا راپرېږدی، هغه د خپل قوم بد سړی دی. کله چې هغه سړی راغلی، کیناستلو. |
| تَطَلَّقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي وَجْهِهِ وَانْبَسَطَ إِلَيْهِ. |
| نو نبی عَلَیْہِ السَّلَامُ د هغه سره په خپاره تندې باندې ملاقات وکړو، او په خندا خندا یې د هغه سره خبرې وکړې. کله |
| فَلَمَّا انْطَلَقَ الرَّجُلُ قَالَتْ عَائِشَةُ: يَا رَسُولَ اللهِ قُلْتَ لَهُ: كَذَا وَكَذَا |
| چې هغه لاړو نو عائشه رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهَا عرض وکړو چې یارسول الله صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ تا خو د هغه سړي په باره داسې ویلي وُ (یعني دا فرمایلي وُ |
| ثُمَّ تَطَلَّقْتَ فِي وَجْهِهِ وَانْبَسَطْتَ إِلَيْهِ. |
| چې دغه سړی د خپل قوم بد سړی دی) خو تا د هغه سره په خپاره تندې سره ملاقات وکړو. او په خندا خندا دې |
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَتى عهدتني فحاشا؟ |
| ور سره خبرې وکړې. نبی عَلَیْہِ السَّلَامُ وفرمایل: تا زه بدې خبرې کونکی کله موندلی یم؟ (یاد ساته) د قیامت په ورځ |
| إِنَّ شَرَّ النَّاسِ مَنْزِلَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَنْ تَرَكَهُ النَّاسُ اتِّقَاءَ |
| باندې د خدای په نزد د درجې په اعتبار سره به بدتر سړی هغه وي چا لره چې خلک د هغه د بدۍ د وجې نه |
| شَرِّهِ» وَفِي رِوَايَةٍ: « اتِّقَاءَ فُحْشِهِ » (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| پرېږدي. او په یو روایت کې دا الفاظ دي چې د هغه د بدو خبرو د یرې د وجې نه (خلک د هغه نه ځان ساتي) |

**توضیح:** بئس: د دې حدیث نه معلومه شوه چې د فاسق مجاهر شرارت او خباثت نه د ځان ساتنې په غرض سره د شرارت یادونه جائز ده. دغه شان د دې حدیث نه دا هم معلومه شوه چې د دغه شان سړي د شرارت نه د ځان ساتنې لپاره د هغه په خله باندې د بدې خبرې په ځای ښه خبره وکړی شي. هو! روحاني اعتبار سره هغه سړی ځو مره غور زیدلی وي چې خلک د هغه مخې ته د هغه د اصلاح خبره هم نشي کولی. دا سړی عیینه بن حصن فزاري وُ. وروسته هغه مرتد شوی وُ. بیا د مرتدانو په جنګ کې د صدیق اکبر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ عسکرو هغه ونیولو، بیا دا سړی مسلمان شو، او بیا مړ شو. (مرقات: ۸/۵۷۳)

## د ګناه په کولو سره د هغې خپرونه ډیر غټ قباحت دی

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " كُلُّ أُمَّتِي مُعَافًى |
| حضرت ابو هریره رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ وفرمایل: زما ټول امت په عافیت کې دی سوا |

---

([1]) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۵۲ رقم الحديث ۶۰۳۲ ومسلم في ۴/۲۰۰۲ رقم الحديث (۵۹۱-۷۳)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِلَّا | الْمُجَاهِرُونَ | وَإِنَّ | مِنَ | الْمَجَانَةِ |

دهغه خلکو نه چې هغوي خپله ګناه او عیبونه ښکاره کوي بیشکه دا ډیره د بې پروایي خبره ده چې یو سړی د شپې

أَنْ يَعْمَلَ الرَّجُلُ عَمَلًا بِاللَّيْلِ ثُمَّ يُصْبِحَ وَقَدْ سَتَرَهُ اللهُ.

یو بد کار وکړي. او د سحر په کیدلو باندې چې کله الله تعالی (چې دهغه دا بد کاري) پټ کړې ؤ نو هغه خلکو

فَيَقُولَ: يَا فُلَانُ عَمِلْتُ الْبَارِحَةَ كَذَا وَكَذَا وَقَدْ بَاتَ

ته دا وایي ای فلانکیه ما نن شپه داسې داسې (یعني فلانکی بد کار) وکړو. حالانکې دهغه پروردګار خو د شپې

يَسْتُرُهُ رَبُّهُ وَيُصْبِحُ يَكْشِفُ سِتْرَ اللهِ عَنْهُ " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ

دهغه په ګناه باندې پرده اچولې وه. او هغه د سحر کیدلو سره د الله تعالی پرده وشلوله. (روایت کړې دې بخاري ومسلم)

وَذُكِرَ فِي حَدِيثِ أَبِي هُرَيْرَةَ: «من كَانَ يُؤمن بِاللهِ» فِي «بَابِ الضِّيَافَة»[1]

او د حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت: من کان یؤمن بالله، باب الضیافة کې نقل شوی دی.

**توضیح: معافی:** د باب مفاعله نه د اسم مفعول صیغه ده. د عافیت او سلامتیا په معنې دی. ملا علی قاري فرمايي: **کل امتي لايؤاخذون ولايعاقبون عقاباشديدا الا المجاهرون.**

**ترجمه:** یعنې زما د امت ټولو خلکو ته به په ګناه باندې دومره سخت عذاب او عقاب نوي څومره چې مجاهرین او په ښکاره باندې ګناه کونکو ته به وي. علامه طیبي رحمه الله د دې حدیث مطلب په داسې توګه بیان کړیدی چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمايي چې زما د امت ټول خلک د غیبت نه محفوظ او په امن کې دي، دهغوې غیبت جائز ندی خو کوم خلک چې په ښکاره باندې ګناه کوي، دهغوې غیبت جائز دی، ځکه چې د فاسق مجاهر غیبت، غیبت نه دی. ملا علی قاري په دې مطلب باندې رد کړیدی او لیکلي یې دي چې دا حدیث د غیبت سره خاص کول د سیاق سباق منافي دي. لهذا دې لره د عام ګناهونو لپاره عام کول پکار دي چې د عام ګناهونو دومره سخته ګناه نه ده، څومره چې په ښکاره باندې د ګناه په کولو باندې مواخذه ده. والله اعلم.

**وان من المجانة:** یعنې دا لیونتوب او بې شرمي او بې حیائي ده چې سړی پټه ګناه د شپې په وخت کې کوي، او د ورځې نغاره ډنګوي چې ما فلانکۍ ګناه کړیده. حالانکې الله تعالی په هغه باندې ستر او پرده راوستلي وه. ددې نه مخکې لیکلی شویدي چې د درې قسمه خلکو غیبت کول جائز دي. یو ظالم باچا، دویم متعدی مفسد بدعتی، دریم؛ فاسق مجاهر، په دې حدیث کې د دغه فاسق مجاهر بیان کړی شویدی. (مرقات: ۸/۵۷۵)

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۳۸۶ رقم الحديث ۶۰۶۹ ومسلم في ۴/۲۲۹۱ رقم الحديث (۲۹۹۰-۵۲)

## الفصل الثاني

## درې قسمه قرباني کونکو په جنت کې درجې

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عَلَيْهِ وَسلم: «من تَرَكَ الْكَذِبَ وَهُوَ |
| حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: کوم سړی چې دروغ ويل پرېږدي او هغه (دروغ) |
| بَاطِلٌ بُنِيَ لَهُ فِي ربض الْجَنَّة وَمن ترك المراء |
| ناحق او ناروا وي نو هغه لپاره د جنت په غاړه باندې ماڼۍ جوړ کړی شي. او کوم سړی چې بحث او جګړې پرېږدي |
| وَهُوَ مُحِقٌّ بُنِيَ لَهُ فِي وَسَطِ الْجَنَّةِ وَمَنْ حَسَّنَ خُلُقَهُ |
| سره د دې نه چې هغه په حقه وي، د هغه لپاره د جنت په مينځ کې ماڼۍ جوړه کړی شي او د کوم سړي چې اخلاق ښه وي |
| بُنِيَ لَهُ فِي أَعْلَاهَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: |
| نو د هغه لپاره د جنت په وچت ځاي باندې ماڼۍ جوړه شي. دا روايت ترمذي نقل کړيدی او ويلې يې دي |
| هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ (وَكَذَا فِي شَرْحِ السُّنَّةِ وَفِي الْمَصَابِيحِ قَالَ غَرِيبٌ)[1] |
| چې دا حديث حسن دی. دغه شان روايت شرح السنة او مصابيح کې نقل شويدی او ويلې يې دي چې دا حديث غريب دی. |

**توضيح**: الكذب: په دې حديث کې درې قسمه خلکو ته د جنت مختلفې درجې او ځايونه ورکولو زيرى اوروليٰ شويدی. اول قسم د هغه خلکو دی چې هغوې دروغ ويل پرېږدي، وهو باطل: يعني هغه دروغ په حقيقت کې جرم وي. داسې دروغ نوي چې هغه في الجمله جائز وي. لکه اصلاح بين الناس، يا ميدان جهاد وغيره کې د دې اجازت وي. هم د دې احتراز لپاره دا قيد لګولی شويدی. دويم قسم هغه خلک دي چې هغوې د تواضع او شرافت نفس د توکې په بنياد باندې شرفساد او جګړې او اختلاف نه وروسته کيږي. سره د دې نه چې هغه په حقه باندې وي. خو هغه خپل حق پريخودلو باندې د شر دفع کولو په غرض باندې د جګړې نه لاس نيولی شي. او دريم قسم د هغه خلکو دی چې هغه خپل اخلاق نهايت خائسته او ښه ساتي. د اول قسم خلکو انعام ربض الجنة دی. يعني د جنت په دننه برخه کې ادنی غاړه باندې به د هغوې لپاره ماڼۍ جوړولی شي. دويم قسم خلکو لپاره انعام وسط الجنة دی. چې هغه د دې نه اعلی او افضل دی. ځکه چې د جنت په غاړه کې ندی بلکې دجنت په مينځ مرکزي مقام کې به د هغوې ماڼۍ جوړولی شي. دريم قسم خلکو انعام اعلی الجنة دی. يعني د جنت په بالاخانو کې به په وچته باندې د هغوې ماڼۍ جوړولی شي. دا خلک به د ټولو نه اعلی وي ځکه چې د دوې کارنامه لويه ده. ځکه

[1] اخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۱۵ رقم الحديث ۱۹۹۳ وابن ماجه في ۱/۱۹ رقم الحديث ۵۱.

چې دروغ پرېخودل او د جګړې نه لاس نيول ټول د ښه اخلاقو نتيجې دي. (مرقات : ۸/۵۷۷)

## جنت او دوزخ ته وړونکې شيان

﴿۲۱﴾وعن أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَتَدْرُونَ مَا أَكْثَرُ

او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: آيا تاسو پوهېږئ چې په عامه توګه

مَا يُدْخِلُ النَّاسَ الْجَنَّةَ؟ تَقْوَى الله وَحُسْنُ الْخُلُقِ. أَتَدْرُونَ

باندې کوم شی جنت ته داخلول کوي؟ هغه تقوی يعنې د الله تعالی نه يره او د خائسته اخلاق دي. او پوهېږئ

مَا أَكْثَرُ مَا يُدْخِلُ النَّاسَ النَّارَ؟ الْأَجْوَفَانِ: الْفَمُ وَالْفَرْجُ " (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ)[1]

چې خلکو لره په عامه توګه باندې کوم شی جهنم ته داخلوي؟ هغه دوه خالي شيان دي. يعنې خله او شرمګاه.

**توضيح**: اَلْاَجْوَفَان: دا د جوف تثنيه ده. د جوف نه مراد خالي شی دی. د انسان په بدن کې خله او شرمګاه دوه خالي شيان دي. او دا شيان د ټولو خرابو جرړه ده. د يو تعلق د شهوة البطن سره دی او د دويم تعلق د شهوة الفرج سره دی. د دوزخ په ټولو اسبابو باندې که نظر وزغلولی شي نو په لاره کې به هم دا دوه شيان مخې ته راځي. (مرقات: ۸/۵۷۸)

## ژبه يا د جنت کنجي ده يا د جهنم کنجي ده

﴿۲۲﴾وَعَن بلالِ بن الحارثِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ الرَّجُلَ لَيَتَكَلَّمُ

او حضرت بلال ابن حارث رضي الله عنه فرمايي چې رسول کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل: انسان څه خبره د خير د خپلې

بِالْكَلِمَةِ مِنَ الْخَيْرِ مَا يَعْلَمُ مَبْلَغَهَا

ژبې نه راوباسي، په داسې حال کې چې هغه دې د قدر او مرتبې نه خبر نوي. ليکن الله تعالی د دې خير د کلمې په وجه

يَكْتُبُ الله لَهُ بِهَا رِضْوَانَهُ إِلَى يَوْمِ يَلْقَاهُ.

باندې دهغه په حق کې د هغه ورځې لپاره خپله رضا ثابته کړي، چې هغه د الله تعالی سره ملاقات وکړي.

وَإِنَّ الرَّجُلَ لَيَتَكَلَّمُ بِالْكَلِمَةِ مِنَ الشَّرِّ مَا يَعْلَمُ مَبْلَغَهَا

دغه شان يو انسان د شر کلمه د خپلې خلې نه راوباسي. هغه د دې په قدر او مرتبه باندې نه پوهېږي،

يَكْتُبُ الله بِهَا عَلَيْهِ سَخَطَهُ إِلَى يَوْمِ يَلْقَاهُ »

خو الله تعالی د دې شر د کلمې په وجې باندې خپله خفګان ثابت کړي. چې هغه د الله تعالی سره

---

[1] أخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۱۹ رقم الحديث ۲۰۰۴، وابن ماجه في ۲/۱۴۱۸ رقم الحديث ۴۲۴۶.

(رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ وَرَوَى مَالِكٌ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه نَحوه)[1]

ملاقات وکړي. (شرح السنة) او امام مالک، ترمذی او ابن ماجه هم دغه شان روايت نقل کړيدی.

**توضيح**: بالكلمة من الخير: يعنې انسان د ژبې نه د الله تعالی د رضا او خوشحالی څه خبره وباسي، هغه ته خپله د دغه خبرې څه اهميت معلوم نه وي. ليکن د الله تعالی د اړخ نه د غه سړي ته د دې کلمې په وجه باندې په دنيا کې داسې رضا ترلاسه شي چې دا خوشحالي په عالم برزخ او قبر کې ورسره وي. بيا د قبر نه پاڅيدلو باندې ميدان محشر کې ورسره وي. بيا د پل صراط نه په تيريدلو سره په جنت کې ورسره وي. دغه شان د شر کلمه ده. دا هم د الله تعالی غضب ته بلنه وروي. او بيا هغه غضب دغه شان قبر او برزخ او محشر او دوزخ کې ورسره وي. علماؤ دا هم ليکلي دي چې د کلمة الخير نه مراد د ظالم باچا مخې ته د حق کلمه وچتول مراد دي. او د کلمة الشر نه مراد د ظالم باچا مخې ته د هغه ستاينه او تائيد او توثيق مراد دی. خو بيان هم د حديث مفهوم عام دی. دې لره هم دغه شان عام ساتل په کار دي، خاص کول پکار نه دي. (مرقات: ۸/۵۷۹)

## د دروغو په قصو او لطيفو باندې خلکو لره د خندونکې لپاره يره

﴿۲۳﴾ وَعَنْ بَهْزِبْنِ حَكِيمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جده قَالَ:

بهز بن حکيم د خپل پلار (حکيم بن معاويه) نه او هغه د بهز د نيکه حضرت معاويه ابن عبده رضي الله عنه نه روايت کوي

قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «وَيْلٌ لِمَنْ يُحَدِّثُ فَيَكْذِبُ

چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: افسوس په هغه سړي باندې چې هغه خبره وکړي نو دروغ وايي،

لِيُضْحِكَ بِهِ الْقَوْمَ وَيْلٌ لَهُ وَيْلٌ لَهُ» (رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد والدارمي)[2]

دې لپاره چې خلک وخندوي، افسوس په دغه سړي، افسوس په دغه سړي. (احمد، ترمذی، ابوداود، دارمی)

**توضيح**: ويل: يعنې د داسې سړي لپاره هلاکت دی يا په دوزخ کې د ټولو نه خکته طبقه ده. د دې حديث مصداق هغه خلک دي چې هغوی د دروغو قصې، او قبيحه لطيفې بيانولو سره خلک خندوي. يا داسې لطيفې او قيصې اوروي، چې په هغې سره العياذ بالله د شريعت د کوم حکم سپکاوی کيږي. اکثر کتلی شويدي چې څينې ټوقې کونکې خلک د خلکو د خندولو لپاره د خپلې ژبې نه د کفر کلمه هم راوباسي. که په قصو او لطيفو کې اخلاق وي او په هغې کې د خوش طبعې اسباب وي او د کوم مکروه

---

([1]) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۲۸۴ رقم الحديث ۲۳۱۹ وابن ماجه في ۲/۱۳۱۲ رقم الحديث ۳۹۶۹.

([2]) اخرجه ابوداود في السنن ۵/۲۶۵ رقم الحديث ۴۹۹۰، والترمذي في ۴/۴۸۳ رقم الحديث ۲۳۱۵.

يا حرام په هغې کې څه دخل نوي، نو د داسې لطيفو اوريدل او اورول جائز دي.

## توقې کولو او د ژبې د خطا نه ځان وساتئ

| |
|---|
| ﴿۲۴﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ الْعَبْدَ لَيَقُولُ |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: حقيقت دا دی چې بنده کله يوه |
| الْكَلِمَةَ لَا يَقُولُهَا إِلَّا لِيُضْحِكَ بِهِ النَّاسَ |
| خبره وکړي او فقط د دې لپاره يې وايي چې د هغې په ذريعه سره خلک وخندوي نو هغه د دې خبرې د وجې نه |
| يَهْوِي بِهَا أَبْعَدَ مَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ |
| (دوزخ کې) غورزيږي. او دومره په ليرې والي سره غورزيږي چې هغه د زمکې او آسمان د مينځنۍ فاصلې |
| وَإِنَّهُ لَيَزِلُّ عَنْ لِسَانِهِ أَشَدَّ مِمَّا يَزِلُّ عَنْ قَدَمِهِ»(رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ) [1] |
| نه هم ډيره وي. او دا هم حقيقت دی چې بنده په خپلو قدمونو باندې د خويدلو نه ډير په خپله ژبه خويږي. |

## يو چپ ډير مصبتونه ليري کوي

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾ وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: «مَن |
| او حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما فرمايي: رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: کوم سړی چې |
| صَمَتَ نَجَا»(رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شعب الْإِيمَان) [2] |
| چپ شو هغه خلاصي بيا موندلو. (احمد، ترمذی، دارمی، بيهقي فی شعب الايمان) |

**توضيح: من صمت نجا:** د ژبې د استعمال سره مصبتونه تړلي دي. نو انسان چې په کوم دنياوي يا اخروي مصيبتونو کې اخته کيږي، دهغه ټولو مصيبتونو تعلق بالواسطه يا بغير د واسطې نه د انسان د ژبې سره وي. نو څکه کوم سړی چې د ژبې د خويدلو نه بچ شو، هغه کامياب شو، او چپ پاتې کيدل د دې جرړه ده. امام غزالی رحمه الله فرمايي چې انسان په ژبه باندې کوم کلام کوي، دهغې څلور قسمه دي. (۱) هغه کلام خالص نقصان نقصان وي. (۲) هغه کلام خالص نيکې وي. (۳) هغه کلام کې نفع او نقصان دواړه وي. (۴) هغه کلام کې نه نفع وي او نه نقصان وي. فرمايي چې اول قسم کلام بې فائدې دی. د دېنه سکوت غوره دی. دويم قسم کلام ښه او غوره دی. لهذا د سکوت نه کلام ښه دی. دريم قسم کلام نه ځان ساتل غوره دي. څکه چې فائدې سره نقصان لګيدلی دی.

---

(۱) اخرجه البيهقي في شعب الايمان ۴/۲۱۳ رقم الحديث ۴۸۳۲.

(۲) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۶۹ رقم الحديث ۲۵۰۱ والدارمي في ۲/۳۸۷ رقم الحديث ۲۷۱۳ والبيهقي ۴/۲۵۴ رقم الحديث ۴۹۸۳

ځلورم قِسم هم د فضولياتو نه دی، که ګناه هم نه وي بيا هم ژبه محفوظ ساتل پکار دي.(مرقات: ۸/۵۸۲)

## د اخروي نجات لپاره درې عملونه

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾وَعَن عُقْبَةَ بن عامرٍ قَالَ: لَقِيتُ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ: |
| او حضرت عقبه ابن عامر رضي الله عنه فرمايي چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره ملاقات وکړو او عرض مې وکړو |
| مَا النَّجَاةُ؟ فَقَالَ: «أَمْلِكْ عَلَيْكَ لِسَانَكَ |
| چې (ما ته ووايه چې په دنيا او آخرت کې) د نجات ذريعه څه ده؟ نبي صلى الله عليه وسلم وفرمايل: خپله ژبه په قابو کې ساتل، |
| وَلْيَسَعْكَ بَيْتُكَ وَابْكِ عَلَى خَطِيئَتِكَ» (رَوَاهُ أَحْمد وَالتِّرْمِذِيّ)[1] |
| ستا کور ستا لپاره کفايت وکړي. او په خپلو ګناهونو باندې ژاړه.(روايت کړې دې مسند احمد او ترمذی) |

**توضيح**: مالنجاة: يعنې د اخروي نجات ذريعې او اسباب څه دي؟ نبي کريم صلى الله عليه وسلم درې خبرې د اُخروي نجات لپاره کافي وګرځولي.(۱) ژبه په قابو کې وساته. په څه قِسمه غيبت، پوچ بد او دهوکه او دروغو کې ژبه مه استعمالوه. (۲) ستا کور ستا لپاره فراخه وي يعنې ټوله ورځ او ټوله شپه په خپل کور کې د الله تعالى ذکر او فکر او عبادت کې وسيږه.د بيرون د جلسو او جلوسونو او عامو خلکو د ناستې پاستې نه خپل ځان جدا وساته، ځکه چې په دغه موقعو کې انسان په قِسما قِسم فتنو کې اخته کيږي.(۳) په خپلو ګناهونو باندې بښيمانه کيدلو باندې ښه ډير ژاړه او پورا توبه وکړه، که ژړا نه درزي نو د ژړغوني حالت جوړ کړه. (مرقات : ۸/۵۸۳)

۲ ربيع الثاني ۱۴۱۸ھ

## د بدن ټول اندامونه هره ورځ ژبې ته عاجزانه عريضه کوي

| |
|---|
| ﴿۲۷﴾وَعَن أَبِي سعيدٍ رَفَعَهُ قَالَ: " إِذَا أَصْبَحَ ابْنُ آدَمَ |
| او حضرت ابو سعيد خدری رضي الله عنه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه مرفوعًا نقل کوي چې نبي عليه السلام وفرمايل: کله چې ابن آدم |
| فَإِنَّ الْأَعْضَاءَ كُلَّهَا تُكَفِّرُ اللِّسَانَ فَتَقُولُ: اتَّقِ اللهَ فِينَا |
| سحر کړي نو د بدن ټول اندامونه ژبې ته عاجزي کوي او ورته وايي چې زمونږ په حق کې د الله تعالى نه وويريږه. |
| فَإِنَّا نَحْنُ بِكَ فَإِنِ اسْتَقَمْتَ اسْتَقَمْنَا وَإِنِ اعْوَجَجْتَ اعْوَجَجْنَا "(رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ)[2] |
| ځکه چې زمونږ تعلق ستا سره دی، که ته نيغه وې نو مونږ به هم نيغ يو او که ته کږه شوې نو مونږ به هم کاږه يو. |

**توضيح**: ان استقمت: يعنې ټول اندامونه د ژبې مخې ته عاجزي او تواضع کوي چې که ته صحيح وې نو

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۲۳ رقم الحديث ۲۴۰۶، واحمد في المسند ۵/۲۵۹.

(۲) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۲۳ رقم الحديث ۲۴۰۷، واحمد في المسند ۳/۹۶.

مونږ به هم صحیح یو او که ته کوږ وې نو مونږ به هم کاږه یو، زمونږ دارومدار په تا باندې دی.

**سوال:** دلته یو سوال پیدا کیږي، هغه داچې په صحیح حدیث کې دزړه په اړه راځي : أَلَا إِنَّ فِي الْجَسَدِ مُضْغَةً إِذَا صَلَحَتْ صَلَحَ الْجَسَدُ كُلُّه. یعنې د زړه د وجې نه د انسان ټول بدن سمیږي او ورانیږي. حالانکې په موجوده حدیث کې د ژبه په اړه دي چې د دې په ذریعه سره بدن سمیږي او ورانیږي. دا تعارض دی.

**جواب:** د دې سوال جواب دا دی چې ژبه د زړه ترجمان(ژباړه کونکې) ده . نو زړه ته نسبت حقیقت دی. او ژبې ته نسبت مجازًا دی. په شرح عقائد کې دا شعر ذکر شویدی:

ان الکلام لفی الفؤاد وانما      جعل اللسان علی الفؤاد دلیلا

(مرقات: ۸/۵۸۴ الکاشف : ۹/۱۳۲)

علماؤ لیکلي دي: الانسان باصغریه، یعنې انسان د دوه وړو شیانو د وجې نه انسان دی.یو زړه . دویم ژبه. یو هوښیار شاعر وایي :

آدمیت لم و شحم و پوست نیست      آدمیت جز رضائے دوست نیست

## د بیکاره خبرو پریښودل د اسلام په ښائسته اخلاقو کې دي

﴿۲۸﴾ وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ الْحُسَيْنِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

او حضرت علی بن الحسین رضی الله عنه یعنی امام زین العابدین فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

«مِنْ حُسْنِ إِسْلَامِ الْمَرْءِ تَرْكُهُ مَا لَا يَعْنِيهِ»[1] رَوَاهُ مَالك وأحمد وَرَوَاهُ ابْن مَاجَه

دانسان د اسلام ښوالی دا دی چې دا هغه څه پریږدي چې بې فائدې وي(مالک واحمد) دغه شان دا روایت ابن ماجه

عَن أبي هُرَيْرَة [2] وَ التِّرْمِذِيّ وَ الْبَيْهَقِيّ فِي « شعب الْإِيمَان » عَنْهُمَا ) [3]

دابوهریره رضی الله عنه او ترمذی او شعب الایمان کې بیهقي ددواړو یعنې ابوهریره رضی الله عنه او علی بن الحسین رضی الله عنه نقل کړی دی.

**توضیح: ترکه مالا یعنیه:** لایعني بې فائده کلام ته وایې. مطلب دا دی چې د کامل ایمان ښښه او علامت دا دی چې سړی بې فائدې خبرو نه احتراز او اجتناب وکړي. چې په هغې کې نه دنیاوې فائده وي او نه اُخروي فائده وي.امام غزالي رحمه الله فرمایې چې بې فائدې او لایعنې خبري هغه دي چې د هغې په نه کولو سره په سړې باندې ګناه نه لازمیږي. او په کولو کې یې د لغزش خطره وي مثلاً یو سړی د پخوانی

---

[1] أخرجه مالک في الموطا ۲/۹۰۳ رقم الحدیث ۳ من کتاب حسن الخلق، وأحمد في المسند ۱/۲۱۱.

[2] أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۳۱۵ رقم الحدیث ۳۹۷۶.

[3] أخرجه الترمذي في السنن ۴/۲۸۳ رقم الحدیث ۲۳۱۷، و ۲۳۱۸ .والبیهقي في شعب الایمان ۴/۲۵۵ رقم الحدیث ۴۹۸۷،۴۹۸۶

زمانې د خپلو مختلفو سفرونو قصې بیانوي. که هغه دا قصې وانه وروي نو څه ضروري نده لیکن که وارزي نو په دې کې د خویدلو او خطا خطره ده. دا فضول او لایعنې خبره ده. که لغزش هم نوي بیا هم د هغه په نیستې وخت ضائع کیږي. امام ابو حنیفه رحمه الله فرمایي چې دا حدیث د اسلام په څلور برخو کې څلورمه برخه او ربع د اسلام ده. (مرقات: ۸/۵۸۶)

## په یقین او جزم سره د چا د آخرت فیصله کول مناسب ندي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۹﴾ | وَعَنْ | أَنَسٍ | قَالَ: | تُوُفِّيَ | رَجُلٌ | مِنَ الصَّحَابَةِ. |
| او حضرت انس رضي الله عنه فرمایي چې په صحابو کې یو سړی وفات شو. نو یو بل سړي (د مړسړي مړی مخاطب کولو باندې) | | | | | | |
| فَقَالَ رَجُلٌ: | أَبْشِرْ بِالْجَنَّةِ. | فَقَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: |
| وویل چې (د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د صحبت د وجې نه) تا ته دې د جنت زیری وي. رسول کریم صلی الله علیه وسلم | | | | | | |
| «أَوَ | | لَا | تَدْرِي | | فَلَعَلَّهُ | تَكَلَّمَ |
| (دې خبرې او ریدلو سره سغه سړي ته) وفرمایل چې ته څنګه دا خبره کوې؟ او د حقیقت حال تا ته معلوم ندی. | | | | | | |
| فِيمَا | | لَا | يَعْنِيهِ | أَوْ | | بخل |
| کیدلی شي چې دې سړي به یو داسې معاملې د خپلې خلې نه الفاظ راویستلي وي چې هغه د ده لپاره ضرر | | | | | | |
| بِمَا | | لَا | ينقصهُ» | (رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ)[1] | | |
| رسونکې وي. یا په کوم داسې شي کې یې بخل کړی وي چې په هغې کې کموالی رانشي. | | | | | | |

**توضیح**: یعنې د چا په اړه باندې په کلک یقین سره دا فیصله کول پکار ندي چې دا سړی جنتي دی، ځکه چې دا د غیبو علم دی، چې دا الله تعالی ته حواله دی. تا ته د دې سړي د ظاهري او باطنې ټولو کارونو علم نشته، اګر چې دا سړی په ښکاره باندې د پاک ژوند مالک دی، بلکې صحابي دی، لیکن تا ته د ده د ټولو معاملاتو علم نشته. ډیره ممکنه ده چې ده څه بی فائدې خبره کړې وي. یا په داسې شي کې یې بخل کړی وي چې په هغې کې بخل کول پکار نوي، مثلاً صدقه کولو کې یې سستي کړې وي یا لایعنې خبره یې کړې وي. د دې حدیث خلاصه مطلب دا دی چې په یقین سره داسې فیصله کول د یو بنده لپاره مناسب ندي. چې د هغې د مستقبل هغه ته علم نوي. د بخل کولو مطلب دا دی چې سلام کول، صدقه ورکول، او د علم په خپرولو کې بخل کوي، چې په هغې سره د کوم شي د کمیدلو خطره نشته دی. (مرقات: ۸/۵۸۸)

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۸۳ رقم الحدیث ۲۳۱۶.

## ژبې د فتنې نه ځان وساته

﴿٣٠﴾ وَعَن سُفيَان بن عبد الله الثَّقَفِيِّ قَالَ: قُلتُ: يَا رَسُولَ الله
او حضرت سفيان بن عبدالله بن ثقفي رضي الله عنه فرمايي چې (يوه ورځ) ما عرض وكړو چې يارسول الله صلى الله عليه وسلم ته چې
مَا أَخوَفُ مَا تَخَافُ عَلَيَّ؟ قَالَ:
زما په اړه باندې د كومو شيانو يره كوې، په هغې كې د ټولو نه ډير خوفناك شى كوم يو دى؟ حضرت سفيان فرمايي چې
فَأَخَذَ بِلِسَانِ نَفْسِهِ
نبى كريم صلى الله عليه وسلم دې (او ريدلو باندې) خپله ژبه مباركه ونيوله او وې فرمايل چې: دا شى (يعني
وَقَالَ: «هٰذَا» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَصَححهُ)[1]
ستا په اړه د ټولو نه ډيريره د دې ژبې ده چې د ګناه اكثر خبرې د دې نه راوځي. لهذا ته د ژبې د فتنې نه ځان وساته)

## دروغ ويونكي د خلې نه بدبويي خيژي

﴿٣١﴾ وَعَنِ ابنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا كَذَبَ العَبدُ تَبَاعَدَ عَنهُ
او حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمايي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: كله چې يو بنده دروغ وايي نو
المَلَكُ مِيلًا مِن نَتنِ مَا جَاءَ بِهِ» (رَوَاهُ التِّرمِذِيُّ)[2]
د هغه پيدا كړى شوى شى يعني دروغو د بدبويي د وجې نه (ساتونكي) فرشتې يو ميل ليرې لاړې شي.

**توضيح:** ميلاً: يعني محافظ فرشتې د ميل په ليرې والي سره د دې سړي د خوا نه وتختي. كوم سړى چې دروغ وايي ځكه چې د دې دروغو د وجې نه د هغه د خلې نه بدترينه بدبويي خيژي، چې د هغې نه فرشتې تيختنه كوي.

## د اعتماد په جامه كې دهوكه بدترين خيانت دى

﴿٣٢﴾ وَعَن سُفيَان بن أَسدٍ الحضرمِيِّ قَالَ: سَمِعتُ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ:
او حضرت سفيان بن اسد حضرمى رضي الله عنه فرمايي چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دا اوريدلي دي
«كَبُرَت خِيَانَةً أَن تُحَدِّثَ أَخَاكَ حَدِيثًا هُوَ لَكَ بِهِ مُصَدِّقٌ
چې ډير غټ خيانت دى چې ته خپل (مسلمان) ورور ته څه خبره وكړې او هغه تا په د غه خبره كې رينتونې وګڼي

---

[1] اخرجه الترمذي في السنن ٤/٥٢٤ رقم الحديث ٢٤١٠ وابن ماجه في ٢/١٣١٤ رقم الحديث ٣٩٧٢.

[2] اخرجه الترمذي في السنن ٤/٣٠٧ رقم الحديث ١٩٧٢.

| وَأَنْتَ بِهِ كَاذِبٌ» (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1] |
|---|
| او حال دا دی چې تا په حقیقت کې هغه ته دروغ ویلي دي. |

**توضیح**: مصدق: یعنې هغه ملګری د دې دهوکه ورکونکې شکل او صورت ته ګوري، د دې معصوم انداز ته ګوري، د ده شرافت او ظاهري پاکوالي ته په کتلو باندې پورا اعتماد کوي چې دا خو انسان نه بلکې فرشته ده. د تصوف (پیری) او چغه او پټکې په دې جامه کې دا سړی د هغه لپاره شرمخ ثابت شي او په بده توګه باندې هغه ته دهوکه ورکړي. او دروغ ویلو سره خپل مطلب سر کړي. دا د ټولو نه غټ خیانت دی چې د ګډ په شکل کې شرمخ ثابت شو.

**حکایت**: ځینې کتابونو کې لیکلي دي چې ځینو مرغانو حضرت سلیمان عَلَيْهِ السَّلَامُ ته د یو ښکاري شکایت وکړو چې دا مونږ ښکار کوي. حضرت سلیمان عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه عدالت ته راوغوښتلو، او د هغه نه یې پوښتنه وکړه چې مرغان ستا نه د ښکار کولو شکایت کوي. هغه سړي وویل چې ای د الله نبی! الله تعالی دا مرغان د انسانانو د ښکار لپاره پیدا کړیدي، نو زه یې هم ښکار کوم. په دې کې د شکایت څه خبره ده. حضرت سلیمان عَلَيْهِ السَّلَامُ مرغانو ته وفرمایل چې د دې سړي خبره بیخي صحیح ده. تاسو ولې شکایت کوئ؟ مرغانو جواب ورکړو چې ای د الله نبی! مونږ دا شکایت نه کوؤ بلکې دا د پیر په شکل کې په چغه او قبه کې عابد او زاهد په شکل کې راشي، او وسله د چغې د لاندې پټوي، مونږ دا خیال کوؤ چې دا عبادت لپاره ځي، په دې کې دا وسله په نخه کولو سره مونږ وولي، ته ده ته حکم وکړه چې دا د ښکاري په شکل کې دې راځي، دې لپاره چې مونږ د ځان ساتنې انتظام وکړی شو.

| ﴿۲۳﴾ وَعَن عمار قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ كَانَ ذَا وَجْهَيْنِ فِي الدُّنْيَا |
|---|
| او حضرت عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: کوم سړی چې په دنیا کې دوه مخی وي. |
| كَانَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لِسَانَانِ مِنْ نَارٍ» (رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ)[2] |
| د قیامت په ورځ به د هغه (په خله کې) د اور دوه ژبې وي. |

## د ایمان سره منافي عملونه

| ﴿۲۴﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَيْسَ الْمُؤْمِنُ بِالطَّعَّانِ |
|---|
| او حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: (کامل) مؤمن خو نه طعن کونکی وي او نه |

---

([1]) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۲۵۴ رقم الحديث ۴۹۷۱.

([2]) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۱۹۱ رقم الحديث ۴۸۷۳، والدارمي في ۲/۴۰۵ رقم الحديث ۲۷۶۴.

وَلَا بِاللَّعَّانِ وَلَا الْفَاحِشِ وَلَا الْبَذِيءِ»(رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ» .

فحش خبري كونكى وي. نه زبان درازي كونكى. او د بيهقي په روايت كې نه فحش ويونكى زبان دراز الفاظ دي (يعني په دې

وَفِي أُخْرَى لَهُ «وَلَا الْفَاحِشِ الْبَذِيءِ»

روايت كې بذى د فاحش صفت گرځولى شويدى. چې د دې مطلب دا دى چې هغه سړى كامل مؤمن نشي كيدلى

وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيث غَرِيب)[1]

چې هغه د حد نه ډير فحش ويونكى وي ، دغه شان ترمذي ويلي دي چې دا حديث غريب دى)

**توضيح**: **المؤمن**: د دينه كامل مؤمن مراد دى. يا د اسلوب حكيم په توگه باندې دا كلام دى چې ددې بدو صفتونو والا خو مؤمن نشي كيدلى. يا دا كلام د سختيا، رټنې او زورنې دى. يا د دې حلال گڼونكى مراد دى.

طعانًا: يعنې په خلكو باندې سخت طعن كونكى نوي.دا د مبالغې صيغه ده. كثير الطعن كيدل مراد دى. لعانًا: دا هم دمبالغې صيغه ده. كثير اللعن سړى مراد دى. ولا الفاحش: يعنې فحش وينا كونكى يا د فحاشۍ كار كونكى مؤمن نشي كيدلى. ولا البذى: با باندې فتحه ده. ذال باندې كسره ده. او يا باندې شد دى. فحش وينا كونكې بداخلاق سړې ته ويل كيږي. د فاحش نه وروسته دا بيا راوړلى شو لهذا د تكرار نه د ساتلو لپاره شارحينو بذى په فعلي فحاشۍ كونكې باندې حمل كړى دى.
ملاعلى قاري البذى د الفاحش لپاره عطف تفسير گرځولى دى. د روايت آخرې برخه د دې تائيد كوي. ځكه چې په دې كې عطف تفسير شته دى. بهرحال دا كارونه د ايمان سره منافي دي. لهٰذا هر مسلمان باندې لازم دي چې د دې نه ځان وساتي.(مرقات: ۸/۵۹۱)

﴿۳۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا يَكُونُ الْمُؤْمِنُ

او حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: هغه سړى (كامل) مؤمن نشې كيدلى

لعانًا». وَفِي رِوَايَة: «لاينبغي

چې هغه ډير لعنت كونكى او د لعنت كولو عادتې وي. په يو بل روايت كې دا الفاظ دي چې: مناسب ندي د يو

لِلْمُؤْمِنِ أَن يكون لعانًا»(رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ)[2]

مؤمن لپاره چې هغه ډير لعنت كونكى وي.

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۰۸ رقم الحديث ۱۹۷۷،واحمدفي المسند ۱/۴۰۵ والبيهقي في شعب الايمان ۴/۲۹۳ رقم الحديث ۵۱۴۹

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۲۵رقم الحديث ۲۰۱۹، واحمدفي المسند۲/۳۶۶.

## د لعن طعن او بد دعاء نه ځان ساتل پكار دي

| |
|---|
| ﴿۳۶﴾وَعَن سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تَلَاعَنُوا |
| او حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: خپل مينځ كې نه يو بل لپاره د خداى د |
| بِلَعْنَةِ الله وَلَا بِغَضَبِ الله وَلَا بِجَهَنَّمَ» . وَفِي رِوَايَةٍ «وَلَا بِالنَّارِ» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَأَبُو دَاوُد)(۱) |
| لعنت بد دعاء مكوئ او مه جهنم ته د تللو بد دعاء كوئ. په يو روايت كې دا دي چې اور ته د تللو بد دعاء مكوئ. |

## بې ځايه لعنت په لعنت كوونكي باندې راستنيږي

| |
|---|
| ﴿۳۷﴾وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «إِنَّ الْعَبْدَ |
| او حضرت ابو درداء رضي الله عنه فرمايي چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چې كله يو بنده |
| إِذَا لَعَنَ شَيْئًا صَعِدَتِ اللَّعْنَةُ إِلَى السَّمَاءِ فَتُغْلَقُ أَبْوَابُ السَّمَاءِ |
| په يو شي يعنې يو انسان يا غير انسان باندې لعنت كوي نو هغه لعنت آسمان اړخ ته ځي او د آسمان دروازې |
| دُونَهَا ثُمَّ تَهْبِطُ إِلَى الْأَرْضِ فَتُغْلَقُ أَبْوَابُهَا دُونَهَا |
| په دې لعنت بندې كړى شي بيا هغه لعنت زمكې اړخ ته راكوزشي نو د زمكې دروازې په هغه باندې بندې كړى |
| ثُمَّ تَأْخُذُ يَمِينًا وَشِمَالًا فَإِذَا |
| شي. بيا هغه لعنت ښي او كيڼ (كس) اړخ ته تلل غواړي (خو د دې خوا نه هم ورته رټنه وركړى شي) نو كله |
| لَمْ تَجِدْ مَسَاغًا رَجَعَتْ إِلَى الَّذِي |
| چې هغه يو اړخ ته هم لاره بيانه مومي نو هغه شي ته متوجې شي، په چا باندې چې لعنت كړى شوى دى، تر |
| لُعِنَ فَإِنْ كَانَت لِذَلِكَ أَهْلًا وَ إِلَّا رَجَعَتْ إِلَى قَائِلِهَا » (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)(۲) |
| دې كه هغه شى د دې لعنت مستحق وي نو هغه باندې واقع شي، كنې خپل ويونكي باندې راستنيږي. |

**توضيح**: صعدت اللعنة: يعنى د الله تعالى د نظام د لاندې دا لعنت غواړي چې اخوا ديخوا تللو باندې ضائع شي يا چيرته ليرې چا باندې پريوځي، هم د دې مقصد د لاندې دا پاس خيژي، كله چې هلته لاره بيانه مومي نو زمكې ته په راتګ باندې ښي او كيڼ اړخ ته د وتلو كوښښ كوي، چيرته د ننوتلو كوښښ كوي، كله چې هلته لاره ونه مومي، نو ښي او كيڼ اړخ ته د وتلو كوښښ كوي، كله چې هلته هم څه سورى په لاس

(۱) اخرجه ابوداود في السنن ۵/۲۱۱ رقم الحديث ۴۹۰۶ والترمذي في ۴/۳۰۸رقم الحديث ۱۹۷۶، واحمد في المسند ۵/۱۵.

(۲) اخرجه ابوداود في السنن ۵/۲۱۱ رقم الحديث ۴۹۰۵.

ورنشي نو ستنيدلو باندې په هغه سړي ونخلي چا باندې چې لعنت ليږلی شوی ؤ که هغه د دې مستحق وي نو لعنت هم هلته ونخلي ګنې د هغه ځاې نه بيرته راتګ باندې په هغه سړي غورزيږي چا چې بې ځايه او بې موقع لعنت ليږلی ؤ .(مرقات : ۸/۵۹۲)

## د انسانانو نه علاوه په نورو شيانو باندې هم لعنت کول منع دی

| |
|---|
| ﴿۳۸﴾وَعَن ابنِ عبَّاسٍ أَنَّ رَجُلًا نَازَعَتْهُ الرِّيحُ |
| او د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت دی چې (د يوې ورځې واقعه ده چې) د يو سړي څادر په هوا (باد) کې |
| رِدَاءَهُ فَلَعَنَهَا. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تَلْعَنْهَا |
| والوتلو، نو هغه په باد باندې لعنت وويله، نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: باد باندې لعنت مه وايه، ځکه |
| فَإِنَّهَا مَأْمُورَةٌ وَأَنَّهُ مَنْ لَعَنَ شَيْئًا لَيْسَ لَهُ بِأَهْلٍ |
| چې هغه خو د حکم تابع ده. او حقيقت دا دی چې څوک په يو داسې شي باندې لعنت وکړي چې هغه د دغه لعنت |
| رَجَعَتِ اللَّعْنَةُ عَلَيْهِ» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد)[1] |
| قابل نوي، نو هغه لعنت په ده باندې راګرځي. |

**توضيح: فانها مامورة:** يعنې باد خو په خپل حکم سره نه چليږي. بلکې د الله تعالی په حکم سره چليږي. انسان لپاره پکار دي چې هغه دا ټول نظام د نظر لاندې وساتي ، نه دا چې د زړه تنګيدلو باندې هغه په ظاهري سبب باندې غصه شي، باد خو يو ظاهري سبب دی. اصل حکم خو د الله تعالی د اړخ نه دی. هسې نه چې د الله تعالی په شان کې بې ادبي او ګستاخي وشي. د دې حديث نه دا معلومه شوه چې د انسانانو نه علاوه په نورو شيانو باندې لعنت ليږل هم منع دي. هو! په اجمال سره لعنت ليږلی شي. لکه چې وويلی شي، چې غلو دې د الله تعالی لعنت وي، په شراپيانو دې د الله تعالی لعنت وي. قاتلان حسين رَضِيَ اللهُ عَنهُ باندې دې د الله تعالی لعنت وي. (مرقات: ۸/۵۹۳)

## د مشرانو مخې ته خپل مينځې عيبونه ښکاره کول مناسب ندي

| |
|---|
| ﴿۳۹﴾وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا يُبَلِّغُنِي |
| او حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: زما په صحابؤ کې يو |
| أَحَدٌ مِنْ أَصْحَابِي عَنْ أَحَدٍ |
| تن هم ما ته د چا په اړه باندې (داسې) خبره دې نه رارسوي چې په هغې سره د هغه بدي ښکاره کيږي. يعنې زما خواته به |

---

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۵/۲۱۲ رقم الحديث ۴۹۰۸ والترمذي في ۴/۳۰۹ رقم الحديث ۱۹۷۸.

| | | |
|---|---|---|
| شَيْئًا | فَإِنِّي | أُحِبُّ |

راتګ سره دې د چا په اړه باندې دا نه وايي چې فلانکي سړي دا بد کار کړيدی يا دا بده خبره يې کړيده. او يا هغه په دې بد

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَنْ | أَخْرُجَ | إِلَيْكُمْ | وَأَنَا | سَلِيمُ | الصَّدْرِ» | (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1] |

عادت کې اخته دی. ځکه چې دا خوښوم چې کله زه (د کور نه) راووځم او ستاسو خواته راشم نو زما سينه پاکه وي

**توضيح**: سليم الصدر مطلب دا دی چې دچا په اړه باندې که چا ته څه عيب معلوم هم وي، بيا هم دهغه تذکره کول پکار ندي. او هسې د اندازې نه عيب لګول خو ډيره بده خبره ده. دانسان په طبيعت کې دا ده:

**من يسمع يخل**: يعني انسان چې څه واوري نو هغه ته خامخا څه نا څه خيال راځي. دحديث مطلب دا شو چې نبی کريم ﷺ خپل صحابه ددې نه منع کړل چې دهغه مخې ته څوک د کوم صحابي په اړه باندې هيڅ هم ونه وايي. ځکه چې په دې سره په زړه کې څه نا څه خيری راځي. او نبی کريم ﷺ وفرمايل چې زه غواړم چې د دې دنيا نه داسې واغستلی شم چې زما زړه د خپل هريو صحابي لپاره پاک او راضي وي. د دې حديث نه د صحابوٴ رضي الله عنهم اجمعين د لويې شان اندازه کيږي. او په دې سره امت ته دا ښودنه هم ورکړی شوه چې حاکم او مقتدار او د غټو خلکو په مجلس کې د کوم مسلمان چغلي يا غيبت يا بده وينا کول پکار ندي. چې په هغې سره د مشر په زړه کې خيری پيدا کيدلی شي. (مرقات: ۸/۵۹۴)

## دچا په بدنې جوړخت کې عيب راويستل هم غيبت دی

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۰﴾وَعَنْ | عَائِشَةَ قَالَتْ: | قُلْتُ | لِلنَّبِيِّ | صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: | حَسبك | صَفِيَّةَ | كَذَا |

او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې ما نبی کريم ﷺ ته وويله چې صفيه کړنه ستا لپاره دومره کافي ده

| | | |
|---|---|---|
| وَكَذَا | تَعْنِي | قَصِيرَةً |

چې هغه داسې داسې ده. د دې خبرې نه د حضرت عائشه رضي الله عنها مراد د حضرت صفيه رضي الله عنها د قد لنډوالي ذکر کول و.

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَقَالَ: | «لَقَدْ | قُلْتِ | كَلِمَةً |

نبی ﷺ زما خبره او ريدلو باندې په ناخوښۍ سره وفرمايل چې تا د خپلې خلې نه يوه داسې

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَوْ | مُزِجَ | بِهَا | الْبَحْرُ | لَمَزَجَتْهُ » | ( رَوَاهُ | أَحْمد | وَ التِّرْمِذِيّ | وَ | أَبُو دَاوُد )[2] |

خبره راويستلې ده که دا په درياب کې ګډه کړی شي نو بيشکه دا خبره به په هغې باندې غالبه راشي.

---

(۱) اخرجه ابوداود في السنن ۵/۱۸۳ رقم الحديث ۴۸۶۰ والترمذي ۵/۶۶۷ رقم الحديث ۳۸۹۷، واحمد في المسند ۱/۳۹۶

(۲) اخرجه ابوداود في السنن ۵/۱۹۲ رقم الحديث ۴۸۷۵، والترمذي في ۴/۵۷۰ رقم الحديث ۲۵۰۲.

**توضیح: من صفیة کذا وکذا:** یعني د صفیه د معیوب کیدلو لپاره دا کافي ده چې دهغې قد ورکوټی دی. حضرت صفیه رضي الله عنها د خیبر په مال غنیمت کې راغلي وه. نبی کریم صلی الله علیه وسلم حضرت صفیه رضي الله عنها آزاده کړه او بیا یې د هغې سره نکاح وکړه. چې هغه ام المؤمنین جوړه شوه. د خیبر د غټ سردار حیی بن اخطب لور وه. او د هارون علیه السلام په اولاد کې وه. حضرت صفیه رضي الله عنها د خوراک په پخولو کې ډیره ماهره وه. چې دهغې په وجه باندې نورو ازواج مطهرات سره دا یره وه چې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم توجو ټوله هغې اړخ ته وانوړي. په بنو کې دا یو طبعي امر دی. که بشریت دی نو دا شیان دنظر نه نشي ایستلی کیدلی. حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها د یو واقعي امر تذکره د حضرت صفیه رضي الله عنها په اړه باندې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم مخې ته وکړه چې د صفیه رضي الله عنها قد ورکوټی دی. دا خبره د غیبت په زمره کې راتلله. ځکه که هم دا خبره د صفیه رضي الله عنها مخې ته شوی وی، نو هغې به دا ناخوښه کړې وه. او غیبت هم د دې شي نوم دی. نو ځکه نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې تا یوه داسې ترخه کلمه وویله که دا په سمندر کې واچولی شي نو هغه به په دې سره تریخ شي.

**مزج بها البحر:** یعني که دا کلمه په سمندر کې ورګډه کړی شي، او سمند د خوړو اوبو وي، **لمزجته:** یعني دا خبره به سمندر هم بدل کړي. او هغه به د دې د بد اثراتو د وجې نه تریخ او بدبودار شي. ځینو شارحینو لیکلي دي چې حضرت عائشه رضي الله عنها د کذا وکذا الفاظو سره خپل ولیشت اړخ ته اشاره وکړه چې هغه دومره لنډه ده لکه دا ولیشت چې دی. (مرقات: ۸/۵۹۴)

## فحاشي د بدرنګې او حیا د خائست سبب دی

| |
|---|
| ﴿۴۱﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا كَانَ الْفُحْشُ فِي شَيْءٍ |
| او حضرت انس رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: چې په کوم شي کې بدګویي او سخت کلامي |
| إِلَّا شَانَهُ وَمَا كَانَ الْحَيَاءُ فِي شَيْءٍ إِلا زَانَهُ» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ)[1] |
| وي هغه دې لره بدبودار جوړوي، او په کوم شي کې چې حیاء او نرمي وي هغه دې ته ډول او خائست ورکوي. |

**توضیح: الفحش:** فحش نه فحاشي او بدې خبرې کول او د بې شرمس معنې اخستلی کیدلی شي. او دا شیان په انسان کې عیب پیدا کوي، د دې په مقابله کې نرمي او د حیاء خصلتونه دي، چې هغه د انسان د پاره د خائست سبب دی. ځینو شارحینو فحش نه د مزاج سختې مراد کړیده. او د حیاء نه یې نرمي مراد کړیده. (مرقات: ۸/۵۹۴)

---

[1] اخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۰۷ رقم الحدیث ۱۹۷۴، وابن ماجه في ۲/۱۴۰۰ رقم الحدیث ۴۱۸۵.

## توبه کونکي لره ملامته کول سخته ګناه ده

| |
|---|
| ﴿۴۲﴾وَعَن خالدِبن معدان عَنْ مُعَاذٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او حضرت خالد بن معدان د حضرت معاذ رضي الله عنه نه نقل کوي چې هغه وفرمايل: رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي |
| «مَنْ عَيَّرَ أَخَاهُ بِذَنْبٍ |
| چې کوم سړی خپل (مسلمان) وروړ ته د کومې ګناه پېغور کوي. (يعني که د کوم مسلمان نه کومه ګناه وشي، |
| لَمْ يَمُتْ حَتَّى يَعْمَلَهُ» |
| او څوک هغه ته شرم او غيرت ورکوي، او رټنه او ملامته ورباندې کوي، نو هغه پېغور کونکی به د مرګ |
| يَعْنِي مِنْ ذَنْبٍ قَدْ تَابَ مِنْهُ (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ |
| مخکې خپله هم په دغه ګناه کې (په څه نا څه توګه باندې خامخا) اخته شي. د نبی کريم صلی الله علیه وسلم مراد د دې ګناه نه |
| وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِمُتَّصِلٍ لِأَنَّ خَالِدًا لَمْ يُدْرِكْ مَعَاذ بن جبل)[1] |
| هغه ګناه وه چې د کومې نه هغه توبه کړې وه. غريب دی او د دې سند متصل ندی ځکه چې خالد د حضرت معاذ زمانه نده موندلې. |

**توضيح**: حتی يعمله: يعنې يو انسان په انساني تقاضا باندې يوه ګناه وکړه. او بيا په پوره اخلاص سره د هغه ګناه نه توبه وکړه، خو يو سړی د توبه کولو نه وروسته هم هغه پسې لګيدلی دی او د هغه پخوانۍ ګناه پېغور هغه ته ورکوي، چې په هغې کې د ذليله کولو نه سوا هيڅ فائده نشته. نو داسې سړی به تر هغه وخته پورې نه مړ کيږي ترڅو چې خپله په دغه ګناه کې نه وي اخته شوی. مطلب دا چې د توبې نه وروسته په مخکنۍ ګناه باندې د چا ملامته کول جائز نه دي، که داسې څوک وکړي نو سزا به يې مومي. هو! که دغه ګناهګار توبه ونه کړه او اوس هم په خپله مخکنۍ ګناه کې اخته دی، نو هغه ته پېغور کول او رټنه کول جائز دي. ځکه چې بيا بيا جرم کولو د هغه ناموس تار تار کړيدی. (مرقات: ۸/۵۹۶)

## د چا په مصيبت باندې د خوشحالۍ اظهار کول پکار نه دي

| |
|---|
| ﴿۴۳﴾وَعَن وَاثِلَةَقَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسلم: «لَا تظهر الشماتة |
| او حضرت واثله رضي الله عنه فرمايي چې نبی علیه السلام وفرمايل: د خپل مسلمان وروړ په تکليف باندې |
| لأخيك فَيَرْحَمَهُ الله |
| دومره خوشحالي مه ښکاره کوه الله تعالی په هغه باندې رحمت نازل کړي، او تا لره په دغه تکليف او |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۷۱ رقم الحديث ۲۵۰۵.

| |
|---|
| وَيَبْتَلِيكَ » ( رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ : هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ)[1] |
| مصيبت کې اخته کړي. ترمذي دا روايت نقل کړيدی او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دی. |

## د چا نقل کول حرام دي

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۴۴﴾وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا أُحِبُّ | | | |
| او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: زه دا خبره هيڅکله هم نه خوښوم چې زه | | | |
| أَنِّي | حَكَيْتُ | أَحَدًا | وَأَنَّ لِي |
| د چا نقل وکړم، اګر که زما لپاره په هغې کې فلانکی فلانکی شی ولې نه وي. يعنې که څوک ما ته | | | |
| كَذَا وَ كَذَا » (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَصَحَّحَهُ)[2] | | | |
| بې حسابه مال او دولت او څومره ډيرې روپۍ هم راکړي نو بيا به هم د چا نقل کول خوښ نکړم. | | | |

**توضيح:** حکيت : دا د حکايت نه دی. حکايت نقل کولو ته وايي. مثلاً: د کوم ګوډ نقل کولو باندې ګوډ مزل کول، د کوم کوڼ نقل دې وکړو. لنډه دا چې د چا دناستې پاستې تګ راتګ او خبرو کولو او کتلو نقل کول يې منع ګرځولي دي. لهذا نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل که ماته د نقل کولو په بدله کې ټوله دنيا راکړې شي نو بيا به هم د چا نقل ونکړم. (مرقات: ۸/۵۹۷)

## د الله فراخه رحمت محدود کول پکار ندي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۴۵﴾وَعَنْ | جُنْدُبٍ | قَالَ: | جَاءَ | أَعْرَابِيٌّ | فَأَنَاخَ رَاحِلَتَهُ |
| او حضرت جندب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې (يو ورځ) يو باندچي سړی (پخپله اوښ باندې سپور مدينې ته) راغلو. او | | | | | |
| ثُمَّ | عَقَلَهَا | ثُمَّ | دَخَلَ | الْمَسْجِدَ | |
| (مسجد نبوی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته نږدې رارسيدلو باندې) هغه خپل اوښ کينولو او د هغې خپې ترلو باندې جومات ته ننوتلو. | | | | | |
| فَصَلَّى خَلْفَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا سَلَّمَ أَتَى رَاحِلَتَهُ | | | | | |
| بيا هغه نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پسې لمونځ وکړو او د سلام ګرځولو نه وروسته د خپل اوښ خوا ته راغلو. (او هغه لړه يې | | | | | |
| فَأَطْلَقَهَا | ثُمَّ | رَكِبَ | ثُمَّ | نَادَى: | اللَّهُمَّ ارْحَمْنِي |
| پرانستلو سره) په هغې باندې سپور شو، او بيا هغه په وچت آواز سره داسې وويل چې ای الله ما باندې او په | | | | | |

---

[1] اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۷۱ رقم الحديث ۲۵۰۶

[2] اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۷ رقم الحديث ۲۵۰۳، واحمد في المسند ۶/۱۲۸ .

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمُحَمَّدًا | وَلَا | تُشْرِكْ | فِي | رَحْمَتِنَا أَحَدًا. |

محمّد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې خپل رحمت نازل کړه. او زمونږ په رحمت کې بل څوک مه شریکوه.

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (هغه لره په دغه شان دعا غوختلو باندې ولیدلو نو صحابوُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ته یې) وفرمایل

«أَتَقُولُونَ هُوَ أَضَلُّ أَمْ بَعِيرُهُ؟ أَلَمْ تَسْمَعُوا

چې آیا تاسو پوهیږئ چې دا بانډې ډیر جاهل دی او که د ده اوښ؟ آیا تاسو وانه وریدل هغه څه چې

إِلَى مَا قَالَ؟» قَالُوا: بَلَى (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَذَكَرَ حَدِيثَ أَبِي هُرَيْرَةَ:

ده وویل؟ صحابوُ عرض وکړو: هو! مونږ واوریدل(ابوداؤد) او د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت

«كَفَى بِالْمَرْءِ كَذِبًا» فِي «بَابِ الِاعْتِصَامِ» فِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ)[1]

کفی بالمرء کذبًا باب الاعتصام کې نقل شویدی.

**توضیح**: **اتقولون**: دا لفظ د اتظنون په معنې باندې دی. یعنې ستاسو څه خیال دی او تاسو څه ویلی شئ چې دا سړی ډیر جاهل دی او که د ده اوښ ډیر جاهل دی؟ آیا تاسو وانه وریدل هغه چې وس وس کوم دعا وکړه. واورئ هغه د الله تعالی څومره فراخه رحمت محدود کړو بلکې دنورو مسلمانانو په حق کې یې بددعاء (خیري) وکړي چې په بل چا باندې رحم مکوه. فقط مونږ دواړو باندې رحم وکړه. ځینې شارحینو لیکلي چې دا هم هغه بانډې دی چا چې د جومات په انګړ(صحن) کې واړه بول (تشي متیازې) کړي وي. **فلما سلم**: د دې مطلب دا دی چې کله هغه بیرته تګ کې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې سلام وکړو او لاړو. او دا مطلب هم کیدلی شي چې د لمونځ سلام یې کله وګرځول، او سپرلی ته راغلو نو دا دعا یې وغوختله.(مرقات:۸/۵۹۸)

## الفصل الثالث

## د فاسق په ستاینه کولو سره په عرش کې زلزله راځي

﴿۴۶﴾ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا مُدِحَ الْفَاسِقُ

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې کله د فاسق مدح او ستاینه کیږي

| | | |
|---|---|---|
| غَضِبَ | الرَّبُّ | تَعَالَى |

(یعنې یو سړی د هغه په حق کې د تعظیم او عزت الفاظ استعمالوي) نو الله تعالی (مدح او ستاینه کونکي باندې) غصه

(۱) اخرجه ابوداود في السنن ۵/۱۹۸ رقم الحديث ۴۸۵۸، واحمد في المسند ۲/۳۱۲.

| وَاهْتَزَّ لَهُ الْعَرْشُ» (رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي «شعب الإِيمَان»)[۱] |
|---|
| کيږي او د ده د مدح او ستاينې له وجې نه عرش و خوزيږي. |

**توضیح: اذا مدح الفاسق:** يعنې کله چې د فاسق فاجر ستاينه شروع شي، نو د الله د غصې له وجې نه عرش وخوزيږي، د عرش دغه شان رپيدل يا خو په حيقيقت باندې بنا ده. چې واقعة په عرش کې زلزله راځي. دا کلام د دې خبرې نه کنايه ده چې د فاسق ستاينه کول دومره لويه ګناه ده چې دهغې تصور هم نشي کيدلی. د دېنه خو يو داسې نازک صورتحال پيدا کيږي، چې ګويا په عرش باندې زلزله راځي، د فاسق ستاينه دومره لويې جرم ځکه دی چې په دې کې د هغه فسمجو او فجور او په هغه باندې ظلم تيرې تائيد او مرسته ده .او يو حرام ګويا حلالولی شي، چې په هغې کې د کفر خطره ده.(مرقات: ۸/۵۹۹)

## خيانت او دروغ په هيڅ مسلمان کې نشي کيدلی

| ﴿۴۷﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يُطْبَعُ الْمُؤْمِنُ عَلَى الْخِلَالِ |
|---|
| او حضرت ابو امامه رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: مسلمان د دروغو او |
| كُلِّهَا إِلا الخيانةَ وَالْكذب»[۲] (رَوَاهُ أَحْمدوَالْبَيْهَقِيّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَاص)[۳] |
| خيانت نه سوا هر قِسم خصلت پيدا کولی شي. (روايت کړې دې مسند احمد او بيهقی په شعب الايمان کې) |

**توضيح: والكذب:** يعنې مسلمان کمزوری، بخيل، شرابې کبابې، او هر قِسم ګناهونو کې اخته کيدلی شي ليکن دوه بد خصلتونه داسې دي چې هغه د هيڅ يو مسلمان د ايمان سره نشي جمع کيدلی. يو د خيانت خصلت دی او دوريم دروغ دي. مطلب دا دی چې د ايمان د روښنانه ډيوې سره د دروغو او خيانت توره تياره يو ځاې نشي وسيدلی. د کامل مؤمن په رګونو کې ايمان ډک پروت وي. هغه طبعې او پيدائشي توګه باندې د دې خصلتونو نه لیرې وي. د نبی کريم صلى الله عليه وسلم د دې فرمان مطلب دا دی چې د دې دوه بدو خصلتونو نه مسلمان لره په خاصه توګه باندې ځان ساتل پکار دي. د دې حديث نه وروسته راتلونکې د حضرت صفوان رضي الله عنه په روايت کې دا مضمون په ډيره واضحه توګه باندې بيان کړی شويدی. په دې کې فقط د دروغو ذکر دی.(مرقات : ۸/۶۰۰)

---

(۱) اخرجه البيهقي في شعب الايمان ۴/۲۳۰ رقم الحديث ۴۸۸۶.

(۲) اخرجه احمدفي المسند۵/۲۵۲.

(۳) اخرجه البيهقي في شعب الايمان ۴/۲۰۷ رقم الحديث ۴۸۰۹.

## مسلمان دروغژن نشي کیدلی

| |
|---|
| ﴿۴۸﴾وَعَنْ صَفْوَانَ بْنِ سَلِيمٍ أَنَّهُ قِيلَ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او حضرت صفوان بن سلیم رحمه الله فرمايي چې د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکړی شوه چې |
| أَيَكُونُ الْمُؤْمِنُ جَبَانًا؟ قَالَ: «نعم». فَقِيلَ: |
| آیا مؤمن بزدله(بی زړه) کیدلی شي. نبی ﷺ وفرمایل: کیدلی شي. بیا د نبی ﷺ نه پوښتنه وشوه |
| أَيَكُونُ الْمُؤْمِنُ بَخِيلًا؟ قَالَ: «نَعَمْ». |
| چې آیا مومن بخیل کیدلی شي؟ نبی ﷺ وفرمایل: کیدلی شي. بیا کله چې د نبی کریم ﷺ نه |
| فَقِيلَ: أَيَكُونُ الْمُؤْمِنُ كَذَّابًا؟ قَالَ: «لَا» |
| پوښتنه وکړی شوه چې آیا مؤمن دروغژن کیدلی شي؟ نو نبی کریم ﷺ وفرمایل: نا. دا |
| (رَوَاهُ مَالِكٌ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي «شعب الْإِيمَان» مُرْسلا)[1] |
| روایت امام مالک او بیهقی په شعب الایمان کې په طریقې د ارسال سره نقل کړیدی. |

**توضیح**: حضرت صفوان بن سلیم زهری رحمه الله د وچت شان والا تابعي دی. څلویښت کاله یې په ناسته ژوند تیر کړو. په زمکه یې اړخ نهٔ لګولی، تر دې چې مرګ ورته هم په ناسته ناسته راغلی. د ډیرو سجدو د وجې نه یې په تندې کې کنده جوړه شوې وه. کله یې هم د باچاهانو ډالۍ قبوله نکړه. د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه نه ډیر روایتونه کوي. تابعي دی. لهٰذا دا ذکر شوی حدیث مرسل دی.(مرقات: ۸/۴۰۱)

## شیطان په مسلمانانو کې د دروغو حدیثونه خپروي

| |
|---|
| ﴿۴۹﴾ وَعَن ابْن مسعودٍ قَالَ: "إِنَّ الشَّيْطَانَ لَيَتَمَثَّلُ فِي صُورَةِ الرَّجُلِ |
| او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې کله کله داسې هم کیږي چې شیطان د انسان شکل خپلولو باندې د |
| فَيَأْتِي الْقَوْمَ فَيُحَدِّثُهُمْ بِالْحَدِيثِ مِنَ الْكَذِبِ فَيَتَفَرَّقُونَ |
| انسانانو یوې ډلې ته راشي او هغوی ته د دروغو خبر ورسوي، بیا کله چې د دې ډلې خلک اخوا دیخوا |
| فَيَقُولُ الرَّجُلُ مِنْهُمْ: سَمِعْتُ رَجُلًا أَعْرِفُ وَجْهَهُ |
| خپاره شي نو په دوی کې یو کس وايي چې ما د یو سړي نه اوریدلي دي. چې د هغه شکل خو زه پیژنم |

(۱) اخرجه مالک في الموطا ۲/۹۹۰ رقم الحدیث ۱۹ من کتاب الکلام، واحمد في المسند ۲/۲۸۸.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَا | أَدْرِي | مَا | اسْمُهُ | يُحَدِّثُ "(رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1] |

(که هغه وينم نو پيژندلی يې شم چې دا هم هغه سړی دی) خو د هغه نوم نه پيژنم. هغه به دا خبره بيانوله.

**توضيح: بالحديث من الكذب:** د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د دې کلام نه مقصود دا ؤ چې د حديث په اوريدلو او اورولو کې د ډير احتياط ضرورت دی. ترڅو پورې چې د مکمل تحقيق او اطمينان نوي چې دا واقعي حديث دی .تر هغه وخته پورې د حديث په حواله سره د غه کلام مخکې نقل کول پکار نه دي. ځکه چې کله کله خپله ابليس يا د ابليس په نوم سړی راځي او په غونډه کې د دروغو حديث پريږدي او لاړ شي. د دې حديث نه دا هم معلومه شوه چې د وعظ او نصيحت کونکې پيژند نه ضروري ده. دې لپاره چې خلکو ته معلومه شي چې څوک راغلی دی، عالِم راغلی دی يا جاهل دی. انسان دی يا شيطان دی، يا د دې شعر مصداق دی: کسی نمی داند کہ بھیّا کون ہے پاؤ ہے سیر ہے یاپون ہے

ځينې بناغلي خپلو بيانونو لپاره يو څوک راوغواړي ، په هغوې باندې ګهنټه ګهنټه بيان وکړي، او دهغه نوم نه اخلي چې عالِم دی او که غيرعالِم دی . هغه يوه ګهنټه سمې کړي خير وکړي او لاړ شي. دا بناغلي خوشحاله شي چې مونږ نوم اخستلو باندې ځان ښودنه نکوؤ. دهغوې دا طريقه غلطه ده.او په دې کې د فتنې راتلو خطره ده. د ذکر شوې حديث نه دوې لره عبرت اخستل پکار دي.

## د بد ملګرې نه ځانلوالی غوره دی

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۵۰﴾وَعَنْ | عِمْرَانَ | بْنِ | حِطَّانَ | قَالَ: | أَتَيْتُ | أَبَا | ذَرٍّ |
| او حضرت عمران بن حطان فرمايي چې (يوه ورځ) زه د حضرت ابوذر غفاری رضي الله عنه په خدمت کې حاضر شوم.نو | | | | | | | |
| فَوَجَدْتُهُ | فِي | الْمَسْجِدِ | مُحْتَبِيًا | بِكِسَاءٍ | أَسْوَدَ | وَحْدَهُ. | فَقُلْتُ: يَا أَبَا ذَرٍّ |
| هغه مې په جومات کې وموندلو .هغه وخت ده يوه تور کمبل د ځان تاؤ کړي ناست ؤ،ما عرض وکړو چې ابوذر! | | | | | | | |
| مَاهٰذِهِ | الْوَحْدَةُ؟ | فَقَالَ: | سَمِعْتُ | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
| دا يوازې والی دې ولې خپل کړی دی؟ حضرت ابوذر رضي الله عنه جواب راکړو چې ما د رسول الله صلی الله عليه وسلم نه دا اوريدلي | | | | | | | |
| «الْوَحْدَةُ | خَيْرٌ | مِنْ | جَلِيسِ | السُّوءِ | وَالْجَلِيسُ | الصَّالِحُ | خَيْرٌ مِنَ الْوَحْدَةِ |
| دي: د بدو ملګرو سره د ناستې نه ځان لره ناسته غوره ده او د ځان له ناستې نه نيکان ملګرو سره ناسته غوره | | | | | | | |

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۶۸ رقم الحديث (۴۶-۷۳) واحمد في المسند ۳/۸۹۸ .

وَ إِمْلَاءُ الْخَيْرِ خيرٌ من السكوتِ و السكوتُ خيرٌ من إِملاءِ الشَّرِّ»[1]

... دغه شان د چپ کيناستلو نه د نيکۍ ښودل غوره دي. او د بدۍ ښودلو نه چپ کيناستل غوره دي.

## چپتيا خپلول د شپيته کاله د عبادت نه غوره ده

﴿۵۱﴾ وَعَن عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَقَامُ الرَّجُلِ

او حضرت عمران بن حصين نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: په چپ کيناستلو باندې

بِالصَّمْتِ أَفْضَلُ مِنْ عِبَادَةِ سِتِّينَ سنة»[2]

چې انسان ته کومه درجه ترلاسه کيږي هغه د شپيته کاله د عبادت نه افضل ده.

**توضيح:** ستين سنة: يعنې په چپتيا سره ځانله ناسته او د الله تعالى د ذکر مراقبه د هغه شپيته کاله د عبادت نه غوره ده چې په هغې کې ډول ډول ډيرې خبرې کيږي. او د ژبې بې احتياطي کيږي. ځينې صوفياء کرامو دا مراقبه او مکاشفه او الله دنيا کې سوچ او فکر او تدبر لپاره چپ ناسته مراد اخستې ده. چې په دې مراقبه کې زړه او مازغو کې انقلاب راشي. لهذا دا د شپيته کاله د عبادت نه افضل دی. بهرحال د حديث دا مطلب هم کيدلی شي، او که مراقبه هم نوي ، بيا هم د چپ ناستې نه د ذکر او فکر چپتيا مراد ده. فقط ګنګ چپ پاتې کيدل مراد ندي.(مرقات : ۸/۴۰۲)

## حضرت ابوذر غفاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو څو نصيحتونه

﴿۵۲﴾ وَعَن أَبِي ذَرٍّ قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت ابوذر غفاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې (يوه ورځ) زه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شوم،

فَذَكَرَ الْحَدِيثَ بِطُولِهِ

دهغې نه وروسته (خپله ابوذر غفاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يا د ابوذر نه نقل کونکي راوي) اوږد حديث بيان کړو (چې هغه دلته نقل

إِلَى أَنْ قَالَ : قُلْتُ :

کړی شوی ندی بلکې د هغې دا آخرې جملې نقل کړی شويدي) بيا ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيان وکړو چې ما عرض وکړو

يَا رَسُولَ اللهِ أَوْصِنِي قَالَ:

يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! ما ته څه نصيحت وکړه. نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: زه تا ته تقوی الله يعنې د

(۱) اخرجه البيهقي في شعب الايمان ۴/۲۵۶ رقم الحديث ۴۹۹۳

(۲) اخرجه البيهقي في شعب الايمان ۴/۲۵۴ رقم الحديث ۴۹۵۳.

«أُوصِيكَ بِتَقْوَى اللهِ فَإِنَّهُ
الله ته د وير يدلو نصيحت كوم. ځکه چې تقوی ستا ټول (ديني او دنياوي) کارونو او عملونو ته ډير

أَزْيَنُ لِأَمْرِكَ كُلِّهِ» قُلْتُ: زِدْنِي قَالَ:
زيات خائست بخونكى دى. ما عرض وكړو چې ما لپاره څه نور (نصيحت) وکړه. نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل:

«عَلَيْكَ بِتِلَاوَةِ الْقُرْآنِ وَذِكْرِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ
د قرآن تلاوت او د الله ذكر خپل ځان لپاره ضروري وګڼه. ځکه چې د قرآن تلاوت او د الله ذکر به ستا

فَإِنَّهُ ذِكْرٌ لَكَ فِي السَّمَاءِ وَنُورٌ لَكَ فِي الْأَرْضِ» قُلْتُ:
لپاره په آسمانونو کې د ذکر کولو سبب وګرځي. او په زمکه باندې به د رڼا سبب شي. ما عرض وکړو

زِدْنِي. قَالَ: «عَلَيْكَ بِطُولِ
چې زما لپاره څه نور (نصيحت) وکړه. نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: اوږده چپتيا په ځان باندې لازم کړه.

الصَّمْتِ فَإِنَّهُ مَطْرَدَةٌ لِلشَّيْطَانِ وَعَوْنٌ لَكَ عَلَى أَمْرِ دِينِكَ» قُلْتُ:
ځکه چې چپتيا شيطان لرې زغلوي. او په ديني کارونو کې ستا مرسته کونکې وي ما عرض وکړو: ما ته

زِدْنِي. قَالَ: «إِيَّاكَ والضحك فَإِنَّهُ يُمِيتُ الْقَلْبَ
څه نور (نصيحت) وکړه. نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د ډيرې خندا نه ځان وساته. ځکه چې ډيره خندا زړه وژني

وَيَذْهَبُ بِنُورِ الْوَجْهِ» قُلْتُ: زِدْنِي. قَالَ:
او د مخ خائست ختموي. ما عرض وکړو چې ما لپاره څه نور (نصيحت) وکړه. نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل:

قُلِ الْحَقَّ وَإِنْ كَانَ مُرًّا ". قُلْتُ: زِدْنِي. قَالَ: «لَا تَخَفْ فِي اللهِ لومة لائم»
د خدای دين او د خدای پيغام ښکاره کولو او د هغې په ملاتړ او تقويت کې د ملامتګر د ملامتيا نه مه يريږه.

قلت: زِدْنِي. لِيَحْجُزْكَ
ما عرض وکړو چې زما لپاره څه نور (نصيحت) وکړه. نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: پکار ده چې هغه شيان

عَنِ النَّاسِ مَا تَعْلَمُ مِنْ نَفْسِكَ "[1]
چې تا د خلکو د عيبونو (ښکاره کولو) نه ايسار کړي کوم چې ته د خپل نفس په اړه باندې پيژني.

---

[1] أخرجه البيهقي في شعب الإيمان ۴/۲۴۲ رقم الحديث ۴۹۴۲.

## د چپتيا او د خائسته اخلاقو فضيلت

﴿۵۳﴾ وَعَنْ أَنَسٍ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «يَا أَبَا ذَرٍّ أَلَا أَدُلُّكَ عَلَى

او حضرت انس رَضِیَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: ابو ذر! آيا ونه ښايم زه تاته هغه

خَصْلَتَيْنِ هُمَا أَخَفُّ عَلَى الظَّهْرِ

دوه خصلتونه کوم چې (د مکلف انسان) په شا باندې يعنې د هغه د ژبې د پاسه ډيرې سپکې دي. ليکن د

وَأَثْقَلُ فِي الْمِيزَانِ؟» قَالَ: قُلْتُ:

عملونو په تله کې ډيرې درندې دي. حضرت ابو ذر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ بيان وکړو چې ما (دې اوريدلو سره) عرض وکړو

بَلَى. قَالَ: «طُولُ الصَّمْتِ

چې هو! خامخا وايې. نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: په معرفت الهى او د قدرت په نظام کې فکر او سوچ کولو لپاره اوږده چپتيا

وَحُسْنُ الْخُلُقِ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ مَا

او خائسته اخلاق. قسم دې په هغه پاک ذات باندې چې د هغه د قدرت په قبضه کې زما ځان دی، د

عَمِلَ الْخَلَائِقُ بِمِثْلِهِمَا»[1]

مخلوق لپاره د دې دوه خصلتونو نه غوره کار بل نشته دی.

﴿۵۴﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَبِي بَكْرٍ

او حضرت عائشه رَضِیَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې (يوه ورځ) نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت ابوبکر صديق رَضِیَ اللهُ عَنْهُ په خوا باندې

وَهُوَ يَلْعَنُ بَعْضَ رَقِيقِهِ فَالْتَفَتَ إِلَيْهِ

تيريدلو نو (وېکتل چې) هغه په خپل کوم غلام باندې لعنت کولو. نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ته متوجې شو

فَقَالَ: «لَعَّانِينَ وَصِدِّيقِينَ؟ كَلَّا وَرَبِّ الْكَعْبَةِ»

او وې فرمايل چې آيا تاسو لعنت کونکی او صديقين هم ليدلی دی؟ نا! په رب کعبه قسم! دا دواړه خبرې په يو سړي کې

فَأَعْتَقَ أَبُو بَكْرٍ يَوْمَئِذٍ بَعْضَ رَقِيقِهِ

هيچرې هم نشي جمع کېدلی. نو حضرت ابوبکر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ په دغه ورځ خپل ځينې غلامان آزاد کړل. او

(۱) اخرجه البیهقي في شعب الایمان ۴/۲۴۲ رقم الحدیث ۴۹۴۱.

ثُمَّ جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ:

بیا (د معذرت کولو لپاره) د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شو او عرض یې وکړو چې زه به

لَا أَعُودُ. رَوَى الْبَيْهَقِيُّ الْأَحَادِيثَ الْخَمْسَةَ فِي «شعب الإِيمَان»[1]

آینده داسې کار نکوم. حضرت عمران بن حطاب د روایت نه تر دې

## د ژبې هلاکول او د حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ویره

﴿۵۵﴾ وَعَنْ أَسْلَمَ قَالَ: إِنَّ عُمَرَ دَخَلَ يَوْمًا عَلَى أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا

او حضرت اسلم فرمایي چې یوه ورځ حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په

وَهُوَ يَجْبِذُ لِسَانَهُ.

خدمت کې حاضر شو نو (وې کتل چې) حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپله ژبه راکاږي.

فَقَالَ عُمَرُ: مَهْ غَفَرَ اللهُ لَكَ.

حضرت عمر (دې کتلو باندې) وویل چې ودرېږه! داسې مکوه. الله تعالی دې تاته بښنه وکړي.

فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: إِنَّ هَذَا أَوْرَدَنِي الْمَوَارِدَ (رَوَاهُ مَالِكٌ)[2]

حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې (دا ژبه د دې سزا مستحقه ده چې) دې څه هلاکت ځایونو کې غورزولی یم.

## شپږ خصلتونه د جنت ضامن دي

﴿۵۶﴾ وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:"

او حضرت عباده بن صامت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت کوي چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: تاسو خلک د خپل ځان په اړه

اضْمَنُوا لِي سِتًّا مِنْ أَنْفُسِكُمْ

باندې ما ته د شپږ شیانو ضمانت راکړی یعنې په شپږ شیانو باندې د عمل کولو وعده وکړئ نو زه (نجات

أَضْمَنْ لَكُمُ الْجَنَّةَ: اصْدُقُوا إِذَا حَدَّثْتُمْ

موندلی شوي او صالحینو سره) ستاسو جنت ته د تللو ضمانت وکړم: ۱: کله خبره کوی، رښتیا وایی.

---

(۱) اخرجه البیهقي في شعب الایمان ۴/۲۹۴ رقم الحدیث ۵۱۵۴

(۲) اخرجه مالک في الموطأ ۲/۹۸۸ رقم الحدیث ۱۲.

| وَأَوْفُوا | إِذَا | وَعَدْتُمْ | وأدوا | إِذَا | ائْتُمِنْتُمْ |
|---|---|---|---|---|---|

۲: وعده کوئ نو پوره کوئ. ۳: تاسو سره امانت کیخوږدلی شي نو امانت ادا کوئ. ۴: د خپلو شرمګاهونو

| واحفظوا | فروجكم | وغضوا |
|---|---|---|

ساتنه وکړئ، یعني د حرام کارئ نه ځان وساتئ. ۵: خپل نظرونه محفوظ وساتئ یعني هغه شي ته نظر پورته کولو نه ځان وساتئ

| أبصاركم | وَ | كفوا | أَيْدِيكُمْ[1] |
|---|---|---|---|

چې هغې ته کتل جائز نه دي. ۶: په خپلو لاسونو باندې قابو ساتئ یعني خپل لاسونه د ناحق وهلو او د مکروه او حرام نیولو او د ظلم نه

## د ښه خلکو نښانې

﴿۵۷﴾ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ غَنْمٍ وَأَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت عبد الرحمن بن غنم رضي الله عنه او اسماء بنت یزید راویان دي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

| «خِيَارُ | عِبَادِ | اللهِ | الَّذِينَ | إِذَا | رُؤُوا | ذُكِرَ | اللهُ. | وَشِرَارُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

د الله تعالی غوره بندګان هغه خلک دي چې هغوی ته په کتلو سره الله را یادیږي، او د الله بد ترینه

| عِبَادِ | اللهِ | الْمَشَّاؤُونَ | بِالنَّمِيمَةِ | وَالْمُفَرِّقُونَ |
|---|---|---|---|---|

بندګان هغه دي چې هغوی په خلکو کې ګرځي چغلي کوي چې هغه د دوستانو په مینځ کې جدایي پیدا کړي،

| بَيْنَ | الْأَحِبَّةِ | الْبَاغُونَ | الْبُرَآءَ |
|---|---|---|---|

او د پاکدامنو خلکو په لمن باندې فساد او د خرابۍ او زناکارۍ ځاځکي وشیندي. یعني د خدای کوم نیک بندګان فتنه او فساد، ګناه

| الْعَنَتَ | »[2] | (رَوَاهُمَا أَحْمَدُ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ»)[3] |
|---|---|---|

او معصیت او د هر عیب نه پاک وي، په هغوی باندې فتنه فساد او د ګناه لکه د زناکارۍ او داسې نور بهتان ورباندې لګوي.

**توضیح**: رُؤُوا: یعني د الله والا هغه خلک وي چې د هغوی په کتلو سره الله ریادیږي. د چا چې خائسته پر قیدو نکې، نورانې او معصوم مخونه وي. چې په هغې باندې د عبادت نښې هر چا ته په نظر راځي. چا څه ښه ویلي دي:

مرد حقانی کی پیشانی کا نور کب چھپا رہتا ہے پیش ذی شعور

---

(1) أخرجه أحمد في المسند ۱/۲۵۷ والبيهقي في شعب الايمان ۴/۳۲۰ رقم الحديث ۵۲۵۶.

(2) أخرجه أحمد في المسند ۴/۲۲۷ والبيهقي في شعب الايمان ۷/۴۹۴ رقم الحديث ۱۱۱۰۸

(3) أخرجه أحمد في المسند ۴/۲۲۷ والبيهقي في شعب الايمان ۷/۴۹۴ رقم الحديث ۱۱۱۰۸

الباغون: د باغی جمع ده. طلب کونکې ته وايې. د دې اول مفعول البراء دی. او العنت د دې دويم مفعول دی. البراء: د با فتحه سره د برئ د معنې مصدر دی. او که په با باندې ضمه وي نو دا د بريئ جمع ده. يعنې بی ګناه، بری الذمه، او پاک دامن او پاک سړې ته ويلی کيږي. العنت: فساد او فتنه او مصيبت او مشقت په معنې دی. يعنې بی ګناه خلکو باندې بهتان تړل، هغوې لره په فساد، ازمېښتونو او مشقتونو کې اخته کول، او هغوې لره تنګول د بدترين خلکو نښاني ده. (مرقات: ۸/۴۰۸)

## غيبت کولو سره د روژې ثواب ختميږي

| |
|---|
| ﴿۵۸﴾ وَعَن ابنِ عبَّاسٍ أَنَّ رَجُلَيْنِ صَلَّيَا |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې (يو ورځ) دوه کسانو چې هغه روژه دار وُ (نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ |
| صَلَاةَ الظُّهرِ أَوِ العَصرِ وَكَانَا صَائِمَيْنِ فَلَمَّا قَضَى النَّبِيُّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصَّلَاةَ قَالَ: |
| پسې د غرمې يا د مازيګر) لمونځ وکړو. نو (دې دواړو ته يې) وفرمايل چې تاسو دواړه بيا |
| «أَعِيدَا وُضُوءَكُمَا وَصَلَاتَكُمَا وَامْضِيَا فِي صومكما |
| اودس وکړئ، خپل دا لمونځ بيا راوګرځوئ، او خپله دا روژه پوره کړئ او د دې په بدله کې احتياطًا په |
| واقضيا يَوْمًا آخَرَ» قَالَا: لِمَ يَا رَسُولَ الله؟ |
| دويمه ورځ روژه ونيسئ. دې دواړو (دې اوريدلو سره) عرض وکړو چې يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ! داسې ولې؟ يعنې دا اودس |
| قَالَ: «اغتبتم فلانًا»[1] |
| اولمونځ او د روژې بيرته راګرځولو حکم په څه سبب سره دی؟ نبی عَلَيهِ السَّلَام وفرمايل: ځکه چې تاسو د فلانکي سړې غيبت وکړو. |

**توضيح**: اعيدو وضوئکما: د تثنيه لپاره د جمع صيغه په عربې کې استعماليږي. دلته هم داسې شوېدي. دوه کسانو لپاره د جمع صيغې راوړلی شوه. او په يو روايت کې اعيدا تثنيه هم ده. دا کلام په زجر او توبيخ او په سخت ممانعت باندې محمول دی. ځکه چې په علماؤ کې چا هم دا فتوی نده ورکړي، چې په غيبت سره اودس ماتيږي. هو! په غيبت سره د روژې ثواب کميږي. او دغه شان د اودس ثواب باندې اثر کيږي. نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ دغه نقصان پوراکولو لپاره حکم ورکړو چې د سر نه اودسونه وکړئ. دغه شان په دې حکم سره نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ د غيبت سختوالی او قباحت بيانول وغوختل. اګرچې سفيان ثوری رحمه الله فرمايي چې په غيبت سره روژه ماتيږي. خو ملا علی قاری رحمه الله مرقات کې ليکي چې دا

[1] اخرجه البيهقي في شعب الايمان ۵/۳۰۳ رقم الحديث ۶۷۲۹.

حکم د خواصو لپاره دی او دا تقوی او فتوی د خواصو لپاره ده. دا د عوامو په احکامو کې نده. ملاعلی قاري رحمه الله دا هم لیکلي که روژه نفلي وه نو په دې سره مقصود فقط ثواب دی، کله چې ثواب ختم شو نو روژه هم لاړه او د سرې په غاړه کې ګناه پاتې شوه. (مرقات : ۸/۴۰۹)

## غیبت د زنا نه بدتره ګناه ده

| |
|---|
| ﴿۵۹﴾ وَعَن أَبِي سعيدٍ وجابرٍ قَالَا: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او حضرت ابوسعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دواړه بیان کوي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: |
| «الْغِيبَةُ أَشَدُّ مِنَ الزِّنَا». قَالُوا: يَا رَسُولَ الله وَكَيْفَ الْغِيبَةُ |
| غیبت کول، د زنا کولو نه سخته بدي ده. صحابوٴ (دې اوریدلو باندې) عرض وکړو چې یارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! غیبت د |
| أَشَدُّ مِنَ الزِّنَا؟ قَالَ: «إِنَّ الرَّجُلَ لَيَزْنِي فَيَتُوبُ |
| زنا نه سخته بدي څنګه ده؟ نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل (په دې توګه چې) کله سړی زنا کوي نو توبه کوي، |
| فَيَتُوبُ الله عَلَيْهِ» وَفِي رِوَايَةٍ: «فَيَتُوبُ فَيَغْفِرُ الله لَهُ |
| او الله تعالی د هغه توبه قبلوي، او په یو روایت کې دا الفاظ دي چې کله هغه توبه کوي، نو الله تعالی هغه ته بښنه کوي، |
| وَإِنَّ صَاحِبَ الْغِيبَةِ لَا يُغْفَرُ لَهُ حَتَّى يغفرها لَهُ صَاحبه» [1] |
| لیکن غیبت کونکو ته الله تعالی بښنه نکوي، ترڅو پورې چې هغه ګس دا معاف نکړي، د چا چې ده |
| وَفِي رِوَايَةِ أَنَسٍ رَضِيَ الله عَنْهُ قَالَ: «صَاحِبُ الزِّنَا يَتُوبُ |
| غیبت کړیدی. او د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روایت کې دا الفاظ دي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: زنا |
| وَصَاحِبُ الْغِيبَةِ لَيْسَ لَهُ تَوْبَةٌ» (رَوَى الْبَيْهَقِيُّ الْأَحَادِيثَ الثَّلَاثَةَ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ») [2] |
| کونکي توبه کوي، او د غیبت کونکي لپاره توبه نشته دی. (بیهقی فی شعب الایمان) |

**توضيح: لايغفرله:** ظالم باچا، متعدي بدعتي او د فاسق مجاهر غیبت ځکه جائز دی، دې لپاره چې خلک د هغه د ظلم او فتنې او فساد نه خبر وساتلی شي خو د دې لپاره شرط دا دی چې د غیبت کونکي نیت خالص وي، د غه شان هغه د و مره بااثره وي چې د هغه په غیبت کولو سره عامو مسلمانانو ته فائده رسیږي، که داسې نه وي نو فضول غیبت فضول دی. زجاجة المصابيح يعني مشکوة حنفي کې یې

---

[1] أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۵/۳۰۶ رقم الحديث ۶۷۴۱

[2] أخرجه البيهقي في شعب اليمان ۵/۳۰۶ رقم الحديث ۶۷۴۲

لیکلي دي چې غیبت هغه وخت په حقوق العباد کې داخل شي چې مُغتاب سړې ته د دې خبر وشي. که اطلاع ونشوه نو غیبت په حقوق الله کې دی. ددې فائده او ثمره به دا راوځي چې ترڅو پورې غیبت حقوق الله کې وي، نو فقط استغفار او توبې سره معاف کیږي، خو کله چې په حقوق العباد کې شامل شي نو او س د مغتاب سړې معاف کول ضروري شول، خپله په توبې سره نه معاف کیږي. هم دا معنی د لایغفر له ده. ددې باب په ابتداء کې د غیبت سره متعلق په تولو بحثونو باندې کلام وکړی شو. یو نظر دې هغه و کتلی شي. **لیس له توبة:** د دې جملې دوه مطلبه دي: اول مطلب دا چې سړی غیبت معمولي شی ګڼي نو د غیبت توبه نشته. دویم مطلب دا چې د توبې قبولیت او دهغې د صحت مدار د مغتاب سړې په معاف کولو باندې موقوف دی لهذا دا ویل صحیح دي چې د غیبت لپاره توبه نشته. یعنې مستقل توبه نده چې هغه د غیبت کونکي په اختیار کې وي او کله چې توبه نشته نو مغفرت هم نشته. (مرقات: ۸/۴۱۰)

## د غیبت کفاره

| |
|---|
| ﴿۶۰﴾وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ مِنْ كَفَّارَةِ الْغِيبَةِ |
| او حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمایل: د غیبت کفاره دا ده چې تاسو |
| أَنْ تَسْتَغْفِرَ لِمَنِ اغْتَبْتَهُ تَقُولُ: |
| د هغه سړې د مغفرت او بخښنې دعا وغواړه، د چا چې تا غیبت کړی دی. او داسې دعا وغواړه چې |
| اللَّهُمَّ اغْفِرْ لَنَا وَلَهُ «رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي» |
| ای الله مونږ ته او دغه سړی (چې د چا ما غیبت کړی دی) ببښنه وکړې. دا روایت بیهقی (پخپل کتاب) |
| الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ" وَقَالَ: فِي هَذَا الْإِسْنَاد ضعف»[1] |
| دعوات کبیر کې نقل کړیدی او ویلې یې دي چې د دې په سند کې ضعف دی. |

**توضیح: كفارة الغيبة:** په دې حدیث کې د غیبت کونکي سړې د غیبت کفاره ویلی شوې ده. چې هغه د مغتاب لپاره مستقل استغفار دې جاري وساتي. په دې کې د غیبت کونکي څومره سپکاوی دی چې د چا نه هغه نفرت کوي، او د هغه په غیبت کې اخته ؤ، بلکې د هغه بد ویل او غیبت کولو کې ده ته خوند محسوسیدلو، اوس دا مجبورولی شي چې د مُغتاب لپاره ببښنه وغواړه او د هغوې لپاره دعاګانې وغواړه. په دې حدیث باندې د هر عقل مند سترګې کهلاویدل پکار دي. چې هغه نن داسې فعل ولې کوي. او داسې کلام ولې خپلوي، چې دهغې معذرت او معافي غوختلو لپاره پوزه راخکل وي او ذلت زغمل کیږي. (مرقات: ۸/۴۱۰)

---

(۱) اخرجه البیهقي في الدعوات الکبیر.

۷ ربيع الثاني ۱٤۱۸هـ

# باب الوعد

## د وعده کولو بيان

قال الله تعالىٰ ﴿وَاَوْفُوْا بِالْعَهْدِ اِنَّ الْعَهْدَ كَانَ مَسْئُوْلًا﴾ (بني اسرائيل : ۳۴)

وعد يعد عدة ضرب يضرب نه دى. د عده کولو په معنې دى. يعنې چا ته دا ويل چې زه به ستا خواته فلانکې وخت له راځم، ستا فلانکې کار به کوم يا تا ته به فلانکې شى درکوم، دا وعده ده. د وعدې لفظ چې کله مطلق شي نو دا د خير وعدو لپاره استعمالېږي. او د وعيد لفظ د شر لپاره استعمالېږي. او که لفظ دو عده د خير يا شر سره مقيّد کړى شي نو په دې کې د خير او شر دواړو معنې راتلى شي. لکه : وعدته خيرا وعدته شرًّا. په قرآن عظيم کې الله تعالى بيابيا د وعدو د پوره والې حکم کړى دى. لکه: ﴿يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اَوْفُوْا بِالْعُقُوْدِ﴾ (مائده) دويم په دې توګه دى: ﴿وَاِبْرٰهِيْمَ الَّذِيْ وَفّٰى﴾ دريم آيت دى: ﴿وَكَانَ صَادِقَ الْوَعْدِ وَكَانَ رَسُوْلًا نَّبِيًّا﴾(انبياء)

د وعدې پوره کول د انساني معيار او انسانې اخلاقو او آدابو لپاره بنيادي کاني دى. وعده خلافې کونکى سړى چې څنګه د شريعت د نظرونو او رحمتونو نه پرېوځي، دغه شان هغه د معاشرې د خلکو د نظرونو نه هم پرېوځي. او د هغه نه څه معيار پاتې کيږي او نه څه اعتبار پاتې کيږي. د شرعې عذر نه بغير د وعدې خلاف کول مکروه تحريمې دي. امام ابو حنيفه، امام شافعى، او امام احمد بن حنبل او جمهور فقهاء په نزد اګرچې د وعدې پوره کول د مستحب په مرتبه کې دي، ليکن د ځينو نورو فقهاؤ په نزد باندې د وعدې پوره واجب دي. د قران او حديث تاکيدونو او وعيدونو ته په کتلو سره هم دا راجحه معلومېږي چې وعده پوره کول واجب دي. ځکه چې وعده خلافې کول د منافقانو خاص نښه ده. دغه شان د عمر بن عبد العزيز په نزد باندې هم د وعدې پوره کول واجب دي. وس د وعدې لپاره قانون دا جوړ شو که يو سړى وعده وکړي او پوره کو ښښ کوي چې دا پوره کړي خو د مجبورى له وجې نه يې هغه پوره نکړى شوه، نو هغه سړى به د قرآن او حديث په وعيد کې نه راځي. د احاديثو دا وعيدونه هغه سړې ته متوجې دي، چې هغه د عدو په کولو سره د وعده خلافې نيت لري. او هغه نه پوره کوي. او دوستانو ته دا وايې چې زه دا تير باسم، نو دا د مسلمان کار ندى.

### الفصل الاول

### جانشين لره د خپل مخکنې مشر وعده پوره کول پکار دي

| ﴿۱﴾ عَنْ جَابِرٍ قَالَ: لَمَّا مَاتَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَاءَ |
|---|
| حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کله د د. دنيا نه تشريف يوړو او (خليفه اول) |

| |
|---|
| أَبُو بَكْرٍ مَالٌ مِنْ قِبَلِ الْعَلَاءِ بْنِ الْحَضْرَمِيِّ. فَقَالَ أَبُو بكر: |
| حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه ته د علاء بن الحضرمی د خوا نه څه مال راغلی. نو حضرت ابوبکر رضي الله عنه وفرمایل |
| من كَانَ لَهُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَيْنٌ أَوْ كَانَتْ لَهُ قِبَلَهُ عِدَةٌ |
| چې د چا په نبی کریم صلی الله علیه وسلم باندې قرض وي یا چا سره نبی کریم صلی الله علیه وسلم د څه (ورکولو) وعده کړې وي |
| فَلْيَأْتِنَا. قَالَ جَابِرٌ: فَقُلْتُ: |
| نو هغه ته پکار دي چې زما خواته راشي. حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي: چې (دې اوریدلو سره) ما وویل چې |
| وَعَدَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُعْطِيَنِي هَكَذَا وَهَكَذَا وَهَكَذَا. فَبَسَطَ |
| نبی صلی الله علیه وسلم دومره او دومره او دومره د راکولو وعده کړې وه. (دې ویلو سره) حضرت جابر رضي الله عنه |
| يَدَيْهِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ. قَالَ جَابِرٌ: فَحَثَا لِي |
| خپل دواړه لاسونه درې ځل بر سیر ته کړل. حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي چې ابوبکر صدیق رضي الله عنه یو ځل خپل دواړه (لاسونه) |
| حَثْيَةً فَعَدَدْتُهَا فَإِذَا هِيَ خَمْسُمِائَةٍ |
| ډک ماته (نغدمال) راکړل. ما هغه وشمیرلې، نو هغه په تعداد کې پنځه سوه درهمه وې. بیا هغه |
| وَقَالَ: خُذْ مِثْلَيْهَا (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| وفرمایل چې هم دغه شان دوه ځل نور واخله. |

**توضیح: قبله عدة**: قاف باندې زیر دی او لام باندې فتحه ده. عنده په معنی دی. یعني نبی کریم صلی الله علیه وسلم د هغه سره څه وعده کړې وي، یا د کوم سړي په نبی کریم صلی الله علیه وسلم باندې قرض وي، هغه دې زما خواته راشي، زه به یې ادا کړم، له دې حدیث نه معلومه شوه چې کوم سړی د چا خلیفه یا جانشین جوړ شي، نو هغه لره پکار دي چې هغه د خپل مشر وعدې او قرضونه پوره کړي، دا مستحب دي. که هغه جانشین وارث وي یا وارث نه وي، صدیق اکبر رضي الله عنه وارث نه ؤ. خو د نبی کریم صلی الله علیه وسلم جانشین ؤ. خو ده د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د وعدو پوره کولو ذمه وارې واخستله.

**هكذا**: د لپو ډکولو ته اشاره ده. **فحثى: حثية**: هم دې لپو ډکولو ته وايي. یعني ابوبکر رضي الله عنه دواړه لاسونه ډکولو سره درهم راکړل. کله چې ما وشمارل نو په هغې کې پنځه سوه درهمې وې. حضرت ابوبکر رضي الله عنه وفرمایل چې د دې دوه مثله نور هم واخله. دې لپاره چې درې لپې پوره شي. او د نبی کریم صلی الله علیه وسلم وعده پوره شي. ګویا

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۲۶۸ رقم الحديث ۳۱۶۴، ومسلم في ۴/۱۸۸ رقم الحديث (۲۳۱۴-۶۰)

حضرت جابر رضي الله عنه ته پنځلس سوه (۱۵۰۰) درهم ورکړی شوي. او هم د دې وعده وه. (مرقات: ۸/۶۱۳)

## الفصل الثاني

| |
|---|
| ﴿۲﴾عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت ابو جحیفه رضي الله عنه فرمايي چې ما رسول کريم صلی الله علیه وسلم په دې حال کې وکتلو چې د نبی صلی الله علیه وسلم |
| أَبْيَضَ قَدْ شَابَ وَكَانَ الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ |
| رنګ (سوروالي ته مائل) سپين ؤ. او په نبی صلی الله علیه وسلم باندې بوډا والی ښکاره شوی ؤ. او حضرت حسن بن علی رضي الله عنه |
| يُشْبِهُهُ وَأَمَرَ لَنَا بِثَلَاثَةَ عَشَرَ قَلُوصًا |
| د نبی علیه السلام سره ډېر مشابه ؤ. نبی علیه السلام زمونږ دلې ته د ديارلس ځواني اوښې راکولو وعده کړې وه. |
| فَذَهَبْنَا نَقْبِضُهَا فَأَتَانَا مَوْتُهُ |
| مونږ دغه اوښې اغستلو لپاره لاړو. نو په دغه وخت کې مونږ ته د نبی علیه السلام د وفات خبر راورسيدلو. |
| فَلَمْ يُعْطُونَا شَيْئًا. فَلَمَّا قَامَ أَبُو بَكْرٍ |
| او مونږ ته هيڅ هم رانکړی شول. بيا کله چې ابوبکر صديق رضي الله عنه (خليفه اول وټاکلی شو او خطبه کولو لپاره) ودريدلو |
| قَالَ: مَنْ كَانَتْ لَهُ عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِدَةٌ |
| نو وې فرمايل چې کوم سړې سره نبی کريم صلی الله علیه وسلم د څه ورکولو وعده کړې وي، هغه لره پکار دي چې |
| فَلْيَجِئْ فَقُمْتُ إِلَيْهِ فَأَخْبَرْتُهُ |
| هغه زمونږ خواته راشي. زه د هغه مخې ته ودريدلم او هغه ته مې د دې په اړه ووېل، نو حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه |
| فَأَمَرَ لَنَا بِهَا (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[1] |
| مونږ ته د ديارلس اوښو راکولو حکم وکړو. (ترمذي) |

**توضيح: ابيض شاب:** يعنې د نبی کريم صلی الله علیه وسلم رنګ د سوروالي سره سپين ؤ. د شاب مطلب دا دی چې نبی صلی الله علیه وسلم ډېر عمر والا ؤ، دا مطلب ندی چې د نبی صلی الله علیه وسلم په ايښتانو باندې سپين والی غالب ؤ. ځکه چې د نبی کريم صلی الله علیه وسلم په سر او ږيره مبارکه کې د شل ايښتانو نه ډېر سپين نه ؤ. د نبی صلی الله علیه وسلم د روښانه مخ په اړه باندې د نبی صلی الله علیه وسلم تره ابو طالب په يوه اوږده قصيده کې دا شعر هم ويلی دی:

وابيض يستسقى الغمام بوجهه ثمال اليتمى عصمة للارامل

بهر حال د دې حديث او د مخکنې حديث نه دا خبره ثابته شوه چې د مړي وارث يا د هغې خليفه او

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۵۶۴ رقم الحديث ۳۵۴۴ ومسلم في ۴/۱۸۲۲ رقم الحديث (۲۳۴۳-۱۰۷)

وصې لپاره مستحب دي، چې مړې وعده پوره کړي، او دهغه په ذمه چې کوم قرض دی،هغه ادا کړي، ځکه چې وعده هم قرض او دین کې شامل ده.(مرقات: ۸/۶۱۳)

## دوعدې پوره کولو اوچت مثال

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۳﴾ وَعَن عبدِ الله بن أَبِي الحَسْماءِ قَالَ: بَايَعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبْلَ أَنْ يُبْعَثَ | | | |
| او حضرت عبد الله بن ابو حسماء رضی الله عنه فرمایي چې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د نبی کیدلو نه مخکې (یو ځل) | | | |
| وَبَقِيَتْ | لَهُ | بَقِيَّةٌ | فَوَعَدْتُهُ |
| ما د نبی صلی الله علیه وسلم نه (څه شی) واخستلو او د هغې د څه برخې پیسې ورکول په ما باندې پاتې شوه، او ما وعده وکړه | | | |
| أَنْ | آتِيَهُ | بِهَا | فِي مَكَانِهِ |
| چې زه به پاتې قیمت په دې ځ ي (کوم ځاي کې چې نبی صلی الله علیه وسلم ناست ؤ، یا کوم ځاي کې چې ما هغه شی اخستلی ؤ) | | | |
| فَنَسِيتُ | فَذَكَرْتُ | بَعْدَ | ثَلَاثٍ |
| ستا په خدمت کې به حاضر شم. لیکن زما نه هغه وعده هیره شوه. او بیا په دریمه ورځ هغه خبره رایاده شوه. (چې | | | |
| فَإِذَا | هُوَ | فِي | مَكَانِهِ |
| ما د نبی صلی الله علیه وسلم ـ ه ٔ ه وعده کړې وه. نو هله ما هغه پاتې قیمت واخستلو او د نبی صلی الله علیه وسلم په خدمت کې | | | |
| فَقَالَ: | «لَقَدْ | | شَقَقْتَ |
| حاضر شوم نو ومې کتل چې) نبی صلی الله علیه وسلم هم هغه ځاي کې ناست دی او (ماته په کتلو سره یې) وفرمایل | | | |
| عَلَيَّ أَنَا هَهُنَا مُنْذُ ثَلَاثٍ أَنْتَظِرُكَ» (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1] | | | |
| چې تا زه په ډیر زحمت کې اخته کړم. زه د درې ورځو نه په دې ځاي کې (ناست) ستا انتظار کوم. (ابوداود) | | | |

**توضیح**: **بایعت**: دهغه سره مې اخستل خرڅولو بیع مراد ده. اصطلاحي بیعت مراد ندی. د صحابي د کلام مطلب دادی چې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم سره دهغه څه معامله وشوه او هغه سرې باندې نبي علیه الصلاة والسلام څه روپۍ ورکول پاتې ؤ. هغه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته وویل چې ته هم دلته کینه، زه پیسې راوړم. د هغه سړې وینا ده چې زه لاړم او درې ورځو پورې زما نه خبره هیره وه. په دریمه ورځ رایاده شوه. نو زه هغه ځاي ته راغلم، چې ومې کتل نبی کریم صلی الله علیه وسلم هغه ځاي کې ناست دی. نبی کریم صلی الله علیه وسلم د وعده پوره کولو لپاره ناست ؤ. د دې لپاره نه چې خپلو پیسو ته ناست ؤ. یاده دې وي چې دا واقعه د نبوت ورکړل کیدو نه مخکښې ده. قبل ان یبعث: مطلب هم دا دی.

---

(۱) اخرجه ابوداود في السنن ۵/۲۶۸ رقم الحدیث ۴۹۹۶.

## په وعدې پوره کولو کې شرعي عذر راتلل

| |
|---|
| ﴿۴﴾وَعَنْ زيد بن أرقم عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت زید بن ارقم رضی الله عنه نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې |
| «إِذَا وَعَدَ الرَّجُلُ أَخَاهُ وَمِنْ نِيَّتِهِ أَنْ يَفِيَ لَهُ |
| کله یو سړی د خپل ورور سره څه وعده وکړي او د هغې وعده د پوره کولو کلکه اراده لري خو (د څه عذر په وجه باندې) دغه |
| فَلَمْ يَفِ وَلَمْ يَجِئْ لِلْمِيعَادِ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ» (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ)[1] |
| وعده پوره نکړی شي، او د وعدې په وخت باندې پوره راتګ ونکړي نو ګناه به نوي. (روه ابوداؤ والترمذيٌ) |

**توضیح**: فلا اثم علیه: د دې حدیث نه علماؤ دا مسئله راویستلي ده که شرعي یا عرفي عذر پیښ شي نو د دېنه وروسته وعده پوره کول واجب نه دي. دغه شان د دې حدیث نه دا هم معلومه شوه چې وعده پوره کول د مکارم اخلاقو نه دي. څه واجب شرعي نه ده او وعده خلافي کول مکروه تحریمي ده .لیکن د اکثر علماؤ په نزد باندې وعده پوره کول واجب شرعي ده. بغیر د عذر نه وعده خلافي کول حرام دي. د احادیثو په رڼا کې هم دغه راجح معلومیږي هو !که د وعدې سره سړی انشاءالله ووایي نو بیا آزاد دی ، د وعدې پابند ندی. (مرقات: ۸/۶۱۵)

## الفصل الثالث

## د ماشوم سره کړې وعده هم پوره کول ضروري دي

| |
|---|
| ﴿۵﴾وَعَنْ عبدِ الله بن عامرٍ قَالَ: |
| او حضرت عبد الله بن عامر فرمايي چې یوه ورځ زما مور زه خپلې خواته راوغوختلم او وې ویل چې : دلته |
| دَعَتْنِي أُمِّي يَوْمًا وَرَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَاعِدٌ فِي بَيْتِنَا |
| راشه زه به تا ته (یو داسې څه) درکړم . دغه وخت رسول کریم صلی الله علیه وسلم زمونږ په کور کې ناست ؤ ، (کله |
| فَقَالَتْ: هَا تَعَالَ أُعْطِيكَ. فَقَالَ لَهَا رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا أَرَدْتِ أَنْ تُعْطِيهِ؟» |
| چې زما مور ما ته وویل نو ) نبی کریم صلی الله علیه وسلم د هغه نه پوښتنه وکړه چې ته دې ته د څه شي ورکولو اراده لرې؟ |
| قَالَتْ: أَرَدْتُ أَنْ أُعْطِيَهُ تَمْرًا. فَقَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| هغه وویل چې ما دېته یو کهجوري دانه ورکول غوختل. رسول کریم صلی الله علیه وسلم (دې او ریدلو سره) وفرمایل |

---

(۱)اخرجه ابوداود في السنن ۵/۲۶۸ رقم الحديث ۴۹۹۵ والترمذي في السنن ۵/۲۱ رقم الحديث ۲۶۳۳.

| «أَمَا إِنَّكِ لَوْ لَمْ تُعْطِيهِ شَيْئًا كُتِبَتْ عَلَيْكِ كَذِبَةٌ» (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ»)[1] |
|---|
| چې یاد ساتې. که تا دې ته څه نه وی ورکړي نو ستا په عمل نامه کې به یو دروغ لیکلی شوی وی. (ابوداؤد ،بیهقی) |

**توضیح**:کذبة: یعنې دې ماشوم ته د څه ورکولو په وعده باندې راغوختلو نه وروسته که دې څه نه وی ورکړي نو د یو دروغ گناه به لیکلی شوی وی. دا واقعه د عبدالله بن عامر د ماشومواليې ده. د مور پلار وغیره اکثر دا عادت وي چې د ماشوم سره مینه کولو یا د هغه د نیولو په غرض سره هغه راوغواړي او ورته وایې راشه بچیه څه درکړم، ماشوم چې کله راشي نو راغوختونکی هیڅ نه ورکوي، او دا عمل لږ گڼلو باندې یې د نظر نه گوزار کړي. حالانکې په دې موجوده حدیث کې دغه وعده گرځولی شویده. او هغه ته د وعدې مطابق څه ورکول پکار دي. گنې دا به دروغ جوړ شي. او د دروغو گناه به د دغه سړي په عمل نامه کې ولیکلی شي. (مرقات : ۸/۶۱۶)

## سړی تر کومې پورې د وعدې پابندوي؟

| ﴿۶﴾عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَنْ |
|---|
| حضرت زید بن ارقم رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل که یو سړی د چا سره د (چیرته |
| وَعَدَ رَجُلًا فَلَمْ يَأْتِ أَحَدُهُمَا إِلَى وَقْتِ الصَّلَاةِ |
| د ملاقات) وعده وکړي او په دې دواړو کې یو گس دلمونځ تروختهٔ پورې هلته راونه رسیږي او هغه سړی |
| وَذَهَبَ الَّذِي جَاءَ لِيُصَلِّيَ فَلَا إِثْمَ عليهِ» (رَوَاهُ رِزِينٌ)[2] |
| د لمونځ کولو لپاره لاړ شي ، څوک چې هلته راغلی ؤ، نو هغه گناهگار ندی.(روایت کړې دې رزین) |

**توضیح**:اذا وعد: مثلاً دوه کسانو کوم ځای ته د رسیدلو او د ملاقات وعده د یو بل سره وکړه. یو سړی ورسیدلو. دویم ندی رسیدلی، نو دا سړې حقیقي عذر پیښیدو پورې دې انتظار وکړي مثلا دلمونځ وخت شو ، یا د قضاء حاجت تقاضا ده یا د خوراک څکاک یا د علاج ضرورت پیښ شو، نو وس دا سړی د نور انتظار کولو پابند ندی. شرعې عذر یا عرفي عذر پیښیدلو نه وروسته د عدې پوره کول واجب نه پاتې کیږي. د جمهور فقهاؤ په نزد باندې وعده پوره کول مستحب دي او وعده خلافې کول سخت مکروه دي. خو د ځینو نورو علماؤ قول دی چې د وعدې پوره کول واجب دي. حضرت عمر بن عبد العزیز رحمه الله هم دا فتوی ده. قرآن او حدیث نه هم دا راجحه معلومیږي. (مرقات ۸/۶۱۷).

---

(۱)اخرجه ابوداود في السنن ۵/۲۶۵ رقم الحديث ۴۹۹۱ واحمد في المسند ۳/۴۴۷.

(۲)اخرجه رواه رزين.

# باب المزاح

## دخوش طبعۍ بیان

مزاح خوش طبعی ته ویلی کیږي، د ټوقو او خندا په معنی دی. د مزاح په میم باندې کسره او ضمه دواړه جائز دي. مزاح او ټوقه تر هغه وخته پورې خوش طبعې ده ترڅو پورې چې د چا زړه ماتول او تکلیف رسول نه وي . کله چې د تکلیف رسولو نوبت راشي نو بیا مزاح خوش طبعې نه ده بلکې بد طبعې ده، چې دا ناجائز ده. هغه مزاح چې هغه د حد نه وانه وړي؛ بلکې په حدودو کې دننه وي، او کله کله وي، په دې کې د اخلاقو خبري وي. نو دا یواځې مباح نه ده بلکې د ښه مزاج، خوشحالۍ او طبیعت د سلامتۍ نښه ده. د نبی اکرم ﷺ د مزاح مقصد به هم د مخاطب زړه ساتنه، وخت خوشحاله تیرول او مینه محبت او الفت او خوشحالۍ جذبې راپیدا ارول او مضبوطول ؤ. ځکه چې انسان د انس نه جوړ دی. شاعر ویلی دي:

وماسمي الإنسان إلا لأنسه ولا القلب إلا أنه يتقلب

که په ټوقه کولو کې د خلکو سپکاوی مقصود وي. او د شریعت سپکاوی او د مکرروه کارونو کول وي او په دې کې فتنه او فساد او جګړو بنیاد وي او په دې د زړه کلکوالی او باطنې بدبختۍ اسباب وي نو داسې ټوقه ناجائز ده. هم دا وجه ده چې په یو حدیث کې د مزاح نه منع کړی شویده . ارشاد دی: **لاتمار اخاك ولاتمازحه**: یعنې د خپل ورور سره جګړه مکوه او مه ورپورې ټوقې کوه. (مرقات: ۸/۶۱۷)

### الفصل الاول

### دنبی کریم ﷺ خوش طبعي

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَن أَنس قَالَ: إِنْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيُخَالِطُنَا حَتَّى |
| حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ به زمونږ سره ګډون او خوش طبعي کوله. تر دې |
| يَقُولَ لِأَخٍ لِي صَغِيرٍ: «يَا أَبَا عُمَيْرٍ مَا فَعَلَ النُّغَيْرُ؟» |
| چې زما ورکوټي ورور ته (د ټوقې په انداز) وفرمایل: ابو عمیر! نغیر چیرته لاړو؟ (حضرت انس رضي الله عنه فرمايي) |
| كَانَ لَهُ نُغَيْرٌ يَلْعَبُ بِهِ فَمَاتَ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| زما د دې د ورکوټي ورور سره یو نغیرؤ، چې دهغې سره به یې لوبې کولې او هغه مړ شوی ؤ. (بخاری ومسلم) |

([1]) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۵۸۲ رقم الحديث ۶۲۰۳ ومسلم في ۳/۱۶۹۲ رقم الحديث (۲۱۵۰-۳۰)

**توضیح: یااباعمیر:** داورکوټی ماشوم نبی ﷺ د ابوعمر کنیت سره یاد کړو. د دې ماشوم نوم کبشه ؤ، د حضرت انس رضی الله عنه میرنی ورور ؤ، ده یوه وړه مرغۍ ساتلي وه. چې دهغې نوم نغیر ؤ. دا د چڼچڼې په شان وړه مرغه وه. دیته په هندۍ کې لال وایي. د دې سرا و مکوخه سره وي. ځینو علماؤ دېته بلبله ویلي ده. کله چې دا مارغه مړ شونو نبی ﷺ د هغه ماشوم د زړه ساتنې لپاره دټوقې په توګه وفرمایل: ابوعمیر نغیر مارغه څه وکړل؟ په دې جملې سره د دې ماشوم تسلّي او خوش طبعې مقصود وه. علماؤ د دې حدیث نه د ډیرو مسائلو استنباط کړی دی. یو خو دا خبره معلومه شوه چې ورکوټی ماشوم د کنیت سره یادولی شي. دویم دا ثابته شوه چې ټوقه کول جائز دي. دریم دا معلومه شوه چې معمولې تکلیف رسیدلو باندې هم تعزیت کول جائز دي. څلورم دا چې په مدینه منوره کې ښکار کول او ساتل جائز دي. پنځمه دا مسئله معلومه شوه چې په عامه توګه باندې په پنجرو کې د مارغانو ساتل او پالنا او دهغې سره لوبې کول جائز دي. په دې شرط سره چې دهغې ښه ساتنه وشي. (مرقات: ۸/۶۱۸)

## الفصل الثالث

### د نبی اکرم ﷺ مذاق به په ریښتیاؤ باندې بناؤ

| |
|---|
| ﴿۲﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّكَ تُدَاعِبُنَا. |
| حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمایي چې (یوه ورځ) صحابؤ عرض وکړو یا رسول الله ﷺ ته زمونږ سره |
| قَالَ: «إِنِّي لَا أَقُولُ إِلَّا حَقًّا» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ)[1] |
| خوش طبعې کوي. نبی کریم ﷺ وفرمایل (هو لیکن په دې خوش طبع کې هم) زه ریښتیا خبره کوم |

**توضیح: تداعبنا:** دا د مداعبه نه جوړ دی. مطلب دا دی چې صحابؤ پوښتنه وکړه چې یارسول الله ﷺ ته هم زمونږ سره د خوش طبعې په توګه باندې مذاق کوې؟ نبی ﷺ جواب وفرمایلو چې هو! زه هم مزاح کوم لیکن زما مزاح همیشه ریښتیا وي. زه داسې احتیاط او حدبندې سره مزاح کوم چې هغه بل څوک نشې کولی. صحابه کرامو رضی الله عنهم دا سوال د تعجب په توګه باندې ځکه وکړو چې نبی کریم ﷺ د ډیرې خندا او مذاق نه صحابه کرام منع کړي ؤ. دغه شان په راتلونکې حدیث کې دتمازحه الفاظ هم دي. چې دخپل ورور سره مذاق مکوه. دې شیانو ته په کتلو باندې صحابه کرامو پوښتنه وکړه چې یارسول الله ﷺ! ته زمونږ سره مذاق کوې؟ نبی کریم ﷺ د مزاح اباحت اړخ ته اشاره وکړه. (مرقات: ۸/۶۲۰)

### د نبی کریم ﷺ د اخلاقو او خوش طبعې یو څو واقعات

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَجُلًا اسْتَحْمَلَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دی چې (یوه ورځ) یو سړي د رسول الله ﷺ نه د سپرلۍ یو څاروی وغوختلو. |

[1] اخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۱۴ رقم الحديث ۱۹۹۰، واحمد في المسند ۲/۳۴۰.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ: | «إِنِّي | حَامِلُكَ | عَلَى | وَلَدِ | نَاقَةٍ؟» | فَقَالَ: |

نو نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې زه به تا ته د سپرلۍ لپاره د اوښې بچی درکړم، هغه سړي (په حیرانتیا سره) وویل:

مَا أَصْنَعُ بِوَلَدِ النَّاقَةِ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «وَهَلْ تَلِدُ الْإِبِلُ إِلَّا

یارسول الله! زه به د اوښې په بچې باندې څه کوم. رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: اوښ خو د

النُّوقُ» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد)[1]

اوښې نه پیدا کیږي. (روایت کړې دي ترمذی، ابوداؤد)

**توضیح**: النوق: د ناقة جمع ده. اوښې ته ویل کیږي. هغه سړی دا وپوهیدلو چې ولد ناقة کوچنی بچی به وي. چې د سپرلۍ قابل به نوي. نو زه به د دې سره څه کوم. نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مزاح په توګه باندې ولدالناقة وویله، او دا حقیقت هم دی ځکه چې اوښ څومره هم غټ شي، آخر خو ولدالناقة دی. د دې نه خو خارج کیدلی نشي. کله چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وکتل چې دا سړی پریشانه کیږي، نو هله یې ورته مطلب واضحه کړو چې: **وهل تلد الخ**، **استحمل**: سین او ت طلب لپاره دي، یعنې هغه سپرلۍ وغوختله.

د دې حدیث نه دا خبره هم معلومه شو چې سړی کله یوه خبره واوري نو د اوریدلو نه وروسته په هغې باندې غور او فکر کول ضروري دي. دې لپاره چې سړی د هغې په مطلب او ویخ ته ورسیږي، په جلد بازۍ کې سمدستې سوال او جواب کول پکار ندي. که دې سړې څه صبر کړی وی او سوچ یې کړی وی نو اصل حقیقت به یې موندلی وی او نه به پریشانه کیدلو. (مرقات: ۸/۶۲۰)

﴿۴﴾ وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ: «يَا ذَا الْأُذُنَيْنِ» (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالتِّرْمِذِيُّ)[2]

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه ته وفرمایل: ای د دوه غوږونو والا. (ابوداؤد، ترمذی)

**توضیح**: ذاالاذنین: په دې جمله کې مزاح دی. چیرته چې مینه محبت او الفت او بی تکلفي وي نو هلته داسې وي، تول خلک د دود غوږونو والا وي. نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې سړي ته د مذاق په توګه باندې دوه غوږونو والا وفرمایل. لکه مونږ په خپله ژبه کې د مزاح په توګه باندې چا ته وو وایو: ای غوږو. د دې مزاح په ضمن کې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه سړي ستاینه وکړه چې دا سړی د ډیرې پوهې والا او په خبره پوهیدونکی دی. (مرقات: ۸/۶۲۰)

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۵﴾ | وَعَنْهُ | عَنِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قَالَ | لِامْرَأَةٍ عَجُوزٍ: |

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې (یوه ورځ) کله یوې بوډۍ ښځې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۲۷۰ رقم الحديث ۴۹۹۸، والترمذي في ۴/۳۲۴ رقم الحديث ۱۹۹۱.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۲۷۲ رقم الحديث ۵۰۰۲ والترمذي في ۴/۳۱۵ رقم الحديث ۱۹۹۲.

«إِنَّهُ لَا تَدْخُلُ الْجَنَّةَ
ته دا درخواست وکړو چې جنت ته د تللو زما لپاره دعا وکړه. نو نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې جنت ته به هیڅ یوه

عَجُوزٌ» فَقَالَتْ: وَمَا لَهُنَّ؟ وَكَانَتْ تَقْرَأُ الْقُرْآنَ.
بوډۍ ښځه نه ځي. په دې باندې هغې وویل چې د بوډیګانو څه قصور دی، هغې ښځه په قرآن پوهیدله،

فَقَالَ لَهَا: «أَمَا تَقْرَئِينَ الْقُرْآنَ؟ {إِنَّا أَنْشَأْنَاهُنَّ إِنْشَاءً
نو نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: تا په قرآن کې دا ندي ویلي یعنې مونږ به د جنت ښځې پیدا کړو لکه

فَجَعَلْنَاهُنَّ أَبْكَارًا} رَوَاهُ رَزِينٌ. وَفِي
چې پیدا کولی شي، نو مونږ به هغه پیغلې جوړې کړو (په دې اعتبار سره دا خوش طبعي په ریښتیاؤ باندې بنا وه او د

شَرْحِ السُّنَّةِ» بِلَفْظِ «الْمَصَابِيحِ»)[1]
نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ دا فرمایل صحیح شول چې دا بوډۍ ښځه به جنت ته نه ځي، ځکه چې په حقیقت کې به څوک د خپل بوډا والي

**توضیح: عجوز**: بوډۍ ښځې ته عجوز وایې، دې ښځې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د دعاء درخواست کړې وُ چې الله تعالی ما جنت ته داخل کړي. په جواب کې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې بوډۍ ښځه به جنت ته نه داخلیږي، دې اوریدلو سره هغه په ژړا شوه او بیرته لاړه او وې ویل چې د بوډیګانو څه قصور دی. نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورپسې سړی ولیږلو او وې فرمایل چې هغې ته ووایه چې جنت ته پیغلې کیدو نه وروسته ښځې ځي، بوډیګانې به نه ځي، بیا نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دلیل په توګه د قرآن کریم آیت ولوستلو. (مرقات: ۸/۶۲۱)

﴿۲﴾ وَعَنْهُ أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ الْبَادِيَةِ كَانَ اسمه زَاهِر بن حرام
او د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې د ښار نه بیرون وسیدونکی یو سړی چې د هغه نوم زاهر بن حرام وُ.

وَكَانَ يهدي النَّبِي صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لپاره یې د ډالۍ په توګه باندې بیرون د ښار نه څه راوړي وُ (یعنې داسې شیان چې هغه

مِنَ الْبَادِيَةِ فَيُجَهِّزُهُ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
د ښار نه بیرون په ځنګل کې پیدا کیدل لکه ساګ، سبزې، لرګي او ګلان وُ میوه او داسې نور) او کله چې هغه د

إِذَا أَرَادَ أَنْ يَخْرُجَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ زَاهِرًا
مدینې نه بیرون وتلو نو نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به هغه رخصتولو او د هغه په اړه به یې فرمایل چې زاهر زمونږ د بیرون

---

[1] اخرجه البغوي في شرح السنة ۳/۱۸۳ رقم الحديث ۳۶۰۶.

بَادِيَتُنَا وَ نَحْنُ حَاضِرُوهُ»

ګماشتي ‎(جي هغه زمونږ لپاره د بیرون شیان راوړي) او مونږ د هغه د ښار ګماشتي یو (چې مونږ هغه ته

وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّهُ

ښار شیان ورکوؤ) دغه شان نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د زاهر سره د ډیرې مینې تعلق ساتلو. هسې خو هغه یو

وَكَانَ دَمِيمًا فَأَتَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا وَهُوَ يَبِيعُ مَتَاعَهُ

بدصورت سړی ؤ. یوه ورځ نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بازار ته لاړو نو (وېکتل چې) هغه خپله سودا خرخوي. نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ د شاه

فَاحْتَضَنَهُ مِنْ خلفِه وَهُوَ لَا يُبصره

نه د هغه سترګې داسې بندې کړې چې هغه نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ نه لیدلو (یعني نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ د هغه په ناخبرۍ کې د هغه شا ته کیناستلو او

فَقَالَ: أَرْسِلْنِي مَنْ هَذَا؟

خپل لاسونه یې د هغه په ترخونو کې داسې ورد ننه کړل چې د هغه دواړه سترګې یې پټې کړې دي لپاره چې هغه نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ

فَالْتَفَتَ فَعَرَفَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم

ونه پیژني) زاهر وویل چې ما پریږده، دا سړی څوک دی. بیا هغه کونښ کولو سره د سترګو په کوټونو کې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ ولیدلو.

فَجعل لَا يَأْلُوا مَا أَلْزَقَ ظَهْرَهُ بِصَدْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او بی عَلَيْهِ السَّلَامُ یې وپیژندلو. بیا خو هغه د نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ د پیژندلو نه وروسته هم خپله شاه د نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ د سینې سره د مړنو

حِينَ عَرَفَهُ وَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

پوره کونښ کولو (دې لپاره چې د ډیر نا ډیر برکت ترلاسه کړي. دلته نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ دا آواز شروع کړو چې څوک دی چې

يَقُولُ: «مَنْ يَشْتَرِي الْعَبْدَ؟» فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ إِذًا وَاللهِ تَجِدُنِي كَاسِدًا

هغه دې غلام اخستونکی وي؟ هغه عرض وکړو: یارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! په خدای قسم ته به ما بیکاره وومومي. (یعني

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَكِنْ عِنْدَ اللهِ لَسْتَ بِكَاسِدٍ» (رَوَاهُ فِي «شرح السّنة»)[1]

بیخي ارزان او بیکاره مال) نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل: لیکن ته د خدای په نزد باندې بیکاره نه یې. (شرح السنة)

**توضیح:** من اهل البادية: یعني یو د صحرا وسیدونکې، د باندې وسیدونکی سړی ؤ. چې د هغه نوم زهرا ؤ. نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه په اړه فرمایلي ؤ چې دا سړی زمونږ د دښتو سړی دی او مونږ د ده د

---

(۱) اخرجه البغوي في شرح السنة ۱۳/۱۸۱ رقم الحديث ۳۶۰۴، واحمد في المسند ۳/۱۶۱.

ښار خلک یو. یعنې دا د دښتې نه د هغه ځاې مناسب ډالۍ راوړي او مونږ ته یې راکوي او مونږ د ښار مناسب ډالۍ هغه ته ورکوو. بیا نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مزاح په توګه باندې هغه ته غلام ووینړ ځکه چې ټول خلک په حقیقت کې د الله تعالی غلامان دي.

**من یشتری العبد:** یعنې دا غلام څوک اخلي؟ د کوم شي تذکره د استفهام په توګه باندې کول چې دا تجارت اخلي. دا واقعې د اخستلو او خرڅولو لپاره نه وي. دلته د مذاقې په توګه باندې داسې وشه د بیې د علقه لیکلي دي چې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ که کوم آزاد سړی خرڅول وغواړي نو خرڅولی یې شي. (مرقات: ۸/۶۲۳)

**لکاسد:** یعنې که په بازار کې زما نرخ شروع شو نو زه به بې قیمته او بیکاره ثابت شم. ویل کیږي چې دا صحابې خائسته نو ؤ، نو ځکه هغه داسې وفرمایل. د دې په جواب کې نبی اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې د بازار خبره پریږده. د الله په نزد باندې ستا غټ قیمت دی. بهرحال کوم شی چې په بازار کې خرڅ نشي، هغې ته کاسد ویلی کیږي.

ځینو علماؤ د **من یشتری العبد** ترجمه او مفهوم د ویلی دی چې د دې غلام مقابل غلام که د چا سره وي نو هغه دې راولي. دا معنې ډیره بعیده ده. ځینې تفصیلې روایتونو کې ده چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د شا اړخ نه په راتګ سره د هغه په دواړو سترګو باندې لاسونه کیخودل، ده ویل: څوک یې ما پریږده، کله چې یې د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاسونو سره لاس ولګیدل او معلومه شوه چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دی نو نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پسې ورجخت شو، نو هله نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: د ده اخستونکی څوک ذی؟ راقم عاجز فضل محمد وایي چې دا ډیر خوش قسمت سړی ؤ. (مرقات: ۸/۶۲۴)

## د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د صحابه کرامو سره بې تکلفي

﴿۷﴾ وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ قَالَ: أَتَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ

او حضرت عوف بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې د غزوه تبوک په دوران کې (یوه ورځ) رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت

وَهُوَ فِي قُبَّةٍ مِنْ أَدَمٍ فَسَلَّمْتُ فَرَدَّ

کې حاضر شوم، دغه وخت نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د څرمنې په خیمه کې ناست ؤ. ما ورته سلام وکړو. نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سلام

عَلَيَّ وَقَالَ: «ادْخُلْ» فَقُلْتُ: أَكُلِّي يَا رَسُولَ اللهِ؟

جواب راکړو. او وې فرمایل چې دننه راشه. ما د (مزاح په توګه باندې) عرض وکړو یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! زه

قَالَ: «كُلُّكَ» فَدَخَلْتُ

ټول په ټوله دننه راشم؟ یعنې ټول جسم سره دننه راولم؟ نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: هو ټول بدن دننه راوله، نو زه خیمې ته

| قَالَ | عُثْمَانَ | بن | أَبِي | عَاتِكَةَ: | إِنَّمَا |
|---|---|---|---|---|---|

تنو تلم. حضرت عثمان بن ابو عاتکه (چې هغه د دې حدیث راوي دی) فرمایي چې حضرت عوف بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

| قَالَ | أَدْخُلُ | كُلِّي | مِنْ | صِغَرِ | الْقُبَّةِ | (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1] |
|---|---|---|---|---|---|---|

دا خبره چې زه ټول په ټوله دننه راشم، په دې مناسبت سره ویلې وه چې خیمه وړه وه. (ابوداود)

**توضیح: اول:** غزوه تبوک په موقع باندې د مزاح دا واقعه پیښه شوه. نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په یوه خیمه کې ناست ؤ. خیمه وړه وه. دننه ځاې کم ؤ. او نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ته دننه د راتلو وفرمایل. نو صحابی جواب ورکړو چې یارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! ټول دننه راشم یا د بدن څه برخه بیرون پریږدم. ځکه چې ځاې کم دی. په دې لفظ کې د مزاح عنصر دی. په دې باندې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې ټول دننه راشه، کومه برخه بیرون پریخودلو باندې دننه مه راځه. (مرقات: ۸/۶۲۵)
د دې حدیث نه معلومېږي شوه چې څنګه به نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د صحابؤ مخې ته کله کله د خوش طبعې خبره کوه، دغه شان صحابؤ به هم نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې ته کله کله مذاق کولو. سبحان الله د جنتیانو مجلس ؤ. بهرحال مذاق سره متعلق دا یو څو حدیثونه ؤ. مکمل تفصیل په انوار الرشید کې دی. چې په هغې کې یوه مستقل رساله د باب المزاح په نوم سره لیکلې شویده. دغه شان لطائف علمیه په مقدمه کې حضرت مولانا قاری طیب صاحب رحمه الله په مذاق باندې خائسته او جامع کلام کړی دی.

## نبی اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ترمینځ د مذاق یوه واقعه

﴿۸﴾ وَعَنِ النعمانِ بن بشيرٍ قَالَ: اسْتَأْذَنَ أَبُو بَكْرٍ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت نعمان بن بشیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې (یوه ورځ) حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ (په خدمت کې حاضریدلو لپاره

| فَسَمِعَ | صَوْتَ | عَائِشَةَ | عَالِيًا | فَلَمَّا |
|---|---|---|---|---|

په دروازه کې ولاړ د نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ نه یې کورته د راتلو اجازت وغوختلو. د غو وخت کې هغه حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا آواز واوریدلو

| دَخَلَ | تَنَاوَلَهَا | لِيَلْطِمَهَا |
|---|---|---|

چې هغې په زور زور سره خبرې کولې. کله چې هغه کورته داخل شو. نو هغه د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا لاس ونیولو، او د څپېړې وهلو اراده یې

| وَقَالَ: لَا | أَرَاكِ | تَرْفَعِينَ | صَوْتَكِ | عَلَى | رَسُولِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

وکړه. او وې ویل چې (خبردار چې بیا) زه تا د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره په وچت آواز سره خبرې کولو باندې ونه وینم.

---

[1] اخرجه ابوداود في السنن ۵/۲۷۲ رقم الحديث ۵۰۰۰ وابن ماجه في السنن ۲/۱۳۴۱ رقم الحديث ۴۰۴۲.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَجَعَلَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسلم | يحجزه |

دلته نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لره (حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وهلو نه) منع کول شروع کړل. او بیا

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَأَبُو | بَكْرٍ | مُغْضَبًا. | فَقَالَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |

حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د غصې په حالت کې د کور نه ووتلو. نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| حِينَ | خَرَجَ | أَبُو | بَكْرٍ: | «كَيْفَ | رَأَيْتِنِي أَنْقَذْتُكِ |

د تللو نه وروسته (حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته) وفرمایل چې تا ولیدل ما ته د دې سړي یعنې ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د

| | | |
|---|---|---|
| مِنَ | الرَّجُلِ؟» | قَالَتْ: |

لاس نه څنګه بچ کړې؟ حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایي چې (د دینه وروسته) حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (زمانه د خفګان په

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَمَكَثَ | أَبُو | بَكْرٍ | أَيَّامًا |

وجه یا د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د شرمیدلو په وجه باندې) څو ورځې د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر نشو.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ثُمَّ. | اسْتَأْذَنَ | فَوَجَدَهُمَا | قَدِ |

بیا (یوه ورځ) هغه دروازې باندې حاضر یدلو سره (د ننه د راتللو) اجازت وغوختلو. چې دواړه (نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا) د

| | | | |
|---|---|---|---|
| اصْطَلَحَا | فَقَالَ | لَهُمَا: | أَدْخِلَانِي |

صلح په حالت کې دي. هغه دواړه مخاطب کولو سره وفرمایل چې تاسو دواړه ما په خپله صلح کې شریک کړی لکه څنګه

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فِي | سِلْمِكُمَا | كَمَا | أَدْخَلْتُمَانِي | فِي | حَرْبِكُمَا | فَقَالَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |

چې تاسو دواړو زه په خپل جنګ کې شریک کړی وم. نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (دې او ریدلو سره) وفرمایل: بیشکه مونږ

« قَدْ فَعَلْنَا قَدْ فَعَلْنَا » (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ)(1)

داسې وکړل، بیشکه مونږ داسې وکړل، یعنې تاسو مونږ په خپله صلح کې شریک کړي. (ګویا نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ د تاکید لپاره دا جمله دوه ځل وویله)

**توضیح**: **انقذتک من الرجل**: طبعي توګه باندې د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په آواز کې وچتوالی ؤ. د دغه طبعي انداز باندې د دې آواز د نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ مخکې وچت شو. لیکن ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ برداشت نه کړه او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا باندې یې وار کول غوختل. نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یې په منیځ کې راغلو. او حضرت عائشه یې د صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه بچ کړه. نو نبی اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مزاح په توګه باندې وفرمایل: کیف رأیتنی الخ. پښتو کې یې مطلب دا دی چې دې سړي نه مې څنګه خلاصه کړې. په دې کې د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اړخ نه مذاق ؤ. د دینه وروسته یوه موقع باندې صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

---

(1) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۲۷۱ رقم الحديث ۴۹۹۹.

وفرمايل چې څنګه تاسو دواړو زه په خپل جنګ کې داخل کړی وم، اوس ما هم په خپله صلح کې داخل کړی. په دې جمله کې د صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا ړخ نه مزاح ؤ.

**ليلطمها**: ضرب ونصر دواړو بابونو نه دا د مضارع صيغه ده. مخ باندې څپېړې وهلو ته ويل کيږي.

**ترفعين**: اواز وچتلو په معنی باندې دی.

**مغضبًا**: د اسم مفعول صيغه ده. د غضبان په معنی دی.

**من الرجل**: ظاهر او واضحه دا وه چې «من ابيك» نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلی وی. خود مزاح په توګه نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د رجل لفظ وفرمايلو. (مرقات: ۸/۶۲۶، الكاشف: ۹/۱۵۶)

## داسې مذاق مه کوه چې په هغې سره چاته درد ورسيږي

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ نه روايت کوي چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: ته د خپل (مسلمان) ورور سره جګړه |
| «لَا تُمَارِ أَخَاكَ وَلَا تُمَازِحْهُ |
| مه کوه او د هغه سره (داسې) ټوقه مه کوه (چې په هغې سره ورته تکليف ورسيږي) او مه داسې وعده کوه چې هغه پوره |
| وَلَا تَعِدْهُ مَوْعِدًا فَتُخْلِفَهُ» |
| نکړې شي. (شيخ عبدالحق دلاتعده موعدا فتخلفه: دا ترجمه کړيده چې ته وعده مکوه لکه څنګه چې وعده کيدلی شي دې لپاره چې ته وعده |
| (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حديثٌ غَرِيبٌ)[1] |
| خلافی ونکړې يعني کوم وعده وکړې نو هغه پوره کوه، يا د سره نو وعده مکوه، دې لپاره چې د وعده خلافی په وبال کې درا تلو د رسره خطره نه وي |

**توضيح**: ولا تمازحه: يعنې داسې مذاق کول په کار نه دي چې په هغې سره کوم انسان ته درد او تکليف ورسيږي. د ټوقو مطلب فراختيا او خوش طبعې ده، زړه تنګستيا او بداخلاقي نه ده. په کومو ټوقو سره چې چا ته تکليف وي او هغه د شرم سره مخ کيږي او د هغه شرمول وي، نو د داسې مزاح اجازت شريعت نه ورکوي، په شرعې حدودو کې دننه او سيدلو سره د ټوقو اجازت شريعت جائز ګرځولی دی.

**نوټ**: په دې باب کې فصل ثالث نشته دی.



[1] أخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۶۶ رقم الحديث ۱۹۹۵.

۸ ربيع الثاني ۱٤۱۸هـ

# باب المفاخرة والعصبية

## مفاخرت او د عصبية بيان

قال الله تعالى: ﴿يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اِنَّا خَلَقْنٰكُمْ مِّنْ ذَكَرٍ وَّاُنْثٰى وَجَعَلْنٰكُمْ شُعُوْبًا وَّقَبَآئِلَ لِتَعَارَفُوْا اِنَّ اَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللّٰهِ اَتْقٰكُمْ﴾ ﴿سورة الحجرات: ۱۳﴾

**«مفاخره»** د باب مفاعلة نه ده. د دوه کسانو خپل مينځ کې په يو باندې فخر کول او ناز او نخرو کې د برابروالي دعوؤ اظهار ته مفاخره وايي. لږ په واضح الفاظو کې داسې ځان پوهه کړې، چې خپل حسب او نسب او خپل خاندان او قبيله يا خپل قوم او جماعت يا خپل علم او اخلاق يا خپله مالدارۍ او قوت باندې فخر کونکی کيدل، په هغې باندې ځان لويې ګڼل او د ځان ته په وچته کتل، دا مفاخره ده. په ناحقه معامله کې او دغه شان په تکبر او په ځان ښودنه کې دا تفاخر او مفاخره حرام ده. ليکن د حق ساتنه او دهغې ملاتړ او په خپل دينې غيرت او ملي شتمنو باندې فخر کول او هغې باندې کلک ودريدل عين ايمان او اسلام دی.

**العصبية:** د عصبيت معامله هم د مفاخرې پشان ده. نو خپل مسلک او نظريې بې ځايه ملاتړ لپاره د خپل قوم او جماعت د شان او سرلوړی لپاره د هغوې دباطل موقف ملاتړ او ساتنې لپاره په ړندو ودريدلو ته تعصب او عصبيت ويلی کيږي. دا شرعًا بد کار دی. ليکن که دا عصبيت او تعصب او د حق د ملاتړ لپاره وي او په دې کې ظلم او زياتی نوي، بلکې اعتدال وي نو دا تعصب مستحسن دی.

ابن خلدون چې کله هم د کوم باچا د ديندارۍ ذکر په خپل کتاب کې کړيدی نو هغه ليکلي دي چې هغه به څنګه ديندار نوي. چې هغه د خپل دين په اړه باندې په تعصب سره ولاړ، ګويا دا حق د مضبوط ملاتړ نوم دی. چې دا جائز او مطلوب دی. البته دا خبره ياد ساتل پکار دي چې فخر او افتخار او عصبيت او تعصب الفاظ په عامه توګه باندې د مذموم مقاصدو لپاره استعماليږي. خو په دې کې د خير اړخونه هم وي. لکه څنګه چې پاس په تفصيل کې دا خبره راغله. د دې اصول د لاندې مخکنو نيکانو خلکو کې ځينو د خپل مفاخر يادوني کړيدي. (مرقات: ۸/۶۲۸)

## الفصل الاول

### کور نی شرافت بنايسته په عمل دين سره دی

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَيُّ النَّاسِ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايې چې (يوه ورځ) د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه پوښتنه وکړی شوه چې کوم |
| أَكْرَمُ؟ فَقَالَ: «أَكْرَمُهُمْ عِنْدَ اللهِ |
| سړی ډير عزتمند دی. نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې د الله په نزد په خلکو د ډير عزت والا هغه سړی دی څوک چې د |
| أَتْقَاهُمْ». قَالُوا: لَيْسَ عَنْ هَذَا نَسْأَلُكَ. |
| تولو نه ډير پرهيزګاره او متقي وي. صحابۇ عرض وکړو چې ستا نه زمونږ د سوال مطلب دا ندی. |

قَالَ: «فَأَكْرَمُ النَّاسِ يُوسُفُ نَبِيُّ اللهِ

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: په انسانو کې د ټولو نه ډیر عزت والا او بزرګ حضرت یوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ دی. چې هغه د خدای نبي،

ابْنُ نَبِيِّ اللهِ ابْنِ خَلِيلِ اللهِ».

د خدای د نبي ځوی، د خدای د نبي لمسی، او د خدای دوست (حضرت ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ) د لمسي ځوی دی.

قَالُوا: لَيْسَ عَنْ هٰذَا نَسْأَلُكَ.

صحابؤ عرض وکړو چې ستا نه زمونږ د سوال مطلب دا ندی. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: نو

قَالَ: «فَعَنْ مَعَادِنِ الْعَرَبِ تَسْأَلُونِي؟»

آیا تاسو د عربو د کورنۍ شرافت او ذات او نسب د وچتو خصوصیاتو په اعتبار سره پوښتنه کوئ؟

قَالُوا: نَعَمْ. قَالَ: فَخِيَارُكُمْ

صحابؤ عرض وکړو: هو! زمونږ د سوال مطلب هم دا دی. نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: په تاسو کې چې کوم خلک

فِي الْجَاهِلِيَّةِ خِيَارُكُمْ فِي الْإِسْلَامِ إِذَا فَقُهُوا " (مُتَّفَق عَلَيْهِ)[1]

د جاهلیت په زمانه کې د ټولو نه غوره ؤ، هم هغوی په اسلام کې د ټولو نه غوره دي، چې هغوی پوهه دي.

**توضیح**: خيارهم: یعنې د جاهلیت په زمانه کې چې په کومو خلکو کې وچت صفات او ځانګړې خصوصیات موجود وي مثلًا خواخوږي، انصاف خوښي، حق وینا کول، زړورتیا او د سخاوت صفتونه وي، نو اسلام دغه صفتونه نه ماتوي. دغه شان خانداني شرافت او مالداري وي نو اسلام دغه صفتونه نه ماتوي، بلکې اسلام خو هغه نور هم زیاتوي. ځکه چې د دې په اصولو کې یو اصل دا دی چې «اَلْإِسْلَامُ يَزِيْدُ الشَّرِيْفَ شَرَفًا» نو کوم خلک چې د ښه صفتونو والا ؤ، خو کفر او شرک په هغوی باندې بد رنګه پرده اچولې وه، نو وس اسلام هغه پلیته پرده لیرې کړه او د دې سړې سړیتوب صفا کیدلو باندې راښکاره شو. نو دا سړی به په هغه مخکنې شرافت باندې هم هغه شان برقرار پاتې وي. البته ده لپاره شرط دا دی چې دغه سړی د دین او علم دین پوهه ترلاسه کړي، که هغه علم دین ترلاسه نکړو، فقط اسلام یې قبول کړو، او بل د کمزورو صفتونو والا علم ترلاسه کړو، نو هغه به د علم او فقاهت او د دین د پوهې له وجې نه د ټولو نه مخکې لاړ شي. نو د علم دین دا خصوصیت دی چې د سړې خانداني کمزوري صفت پټ کړي، مثلًا نائې په نائې سره نه یادول کیږي، بلکې هغه عالم دین بللی کیږي، او په عزت او عظمت کې مخکې لاړ شي. (مرقات: ۸/۶۲۹،۶۳۰)

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۸/۳۶۲ رقم الحديث ۴۶۸۹، ومسلم في ۴/۱۸۴۶ رقم الحديث (۲۳۷۸-۱۶۸)

## د ټولو نه ډېر عزتمند څوک دی؟

| |
|---|
| ﴿۲﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الْكَرِيمُ ابْنُ الْكَرِيمِ ابْنِ الْكَرِيمِ |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: كريم ابن كريم ابن كريم |
| ابْنِ الْكَرِيمِ يُوسُفُ بْنُ يَعْقُوبَ بْنِ إِسْحَاقَ بْنِ إِبْرَاهِيمَ» (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ) [1] |
| ابن كريم (كه كيدلى شي) نو هغه حضرت يوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ بن يعقوب عَلَيْهِ السَّلَامُ بن اسحاق عَلَيْهِ السَّلَامُ بن ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ دی) |

**توضيح:** الكريم: د حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ دوه څامن ډير روښانه ؤ. يو حضرت اسماعيل عَلَيْهِ السَّلَامُ ؤ، دهغه په اولاد کې يو نبی دریتيم خاتم النبيين حضرت محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ راغلی دی.
دويم څوی حضرت اسحاق عَلَيْهِ السَّلَامُ دحضرت يعقوب عَلَيْهِ السَّلَامُ څوی ؤ او د حضرت يعقوب عَلَيْهِ السَّلَامُ څوی حضرت يوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ ؤ. د حضرت يوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ نه د بنی اسرائيلو د ټولو انبياؤ د نسب سلسله شروع شويده. حضرت يوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ د بنی اسرائيلو د ټولو انبياؤ لپاره مرکز ؤ. بيا الله تعالی ورته ښايست ورکړی ؤ او ډير لويې کمال يې ورکړی ؤ. د خبرو کولو طريقه او د خوبونو تعبير، علم او انصاف او هوښيارتيا يې ورکړي وه. دغه شان الله تعالی ده لره ډير اعلی پاک بازي، او د نفس عفت او معصوميت ورکړی ؤ. څکه نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د بره نه تر لاندې پورې عزتمند او د لويې شان والا حضرت يوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ ؤ.

## کورنی شرافت دنظر نه نشي غورزول کيدلی

| |
|---|
| ﴿۳﴾وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ: فِي يَوْمِ حُنَيْنٍ كَانَ أَبُو سُفْيَانَ بْنُ الْحَارِثِ آخِذًا بِعِنَانِ بَغْلَتِهِ |
| او حضرت براء بن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې دغزوه حنين په ورځ باندې د نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قچر يعنې |
| يَعْنِي بَغْلَةَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا غَشِيَهُ الْمُشْرِكُونَ |
| د نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ د قچر واگی ابوسفيان بن حارث نيولی ؤ. نو کله چې مشرکانو نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ د څلور اړخ نه راگير کړو، |
| نَزَلَ فَجَعَلَ يَقُولُ : « أَنَا النَّبِيُّ لَا كَذِبَ |
| نو نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ د قچر نه لاندې راکوز شو، او دا رجز ويل يې شروع کړل: زه نبی يم، په دې کې هيڅ دروغ نشته، او |
| أَنَا ابْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبْ» قَالَ: فَمَا رُئِيَ مِنَ النَّاسِ |
| زه د عبد المطلب لمسی يم. د راوي بيان دی چې په دغه ورځ باندې د نبی نو نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ نو نبی نه ډير |

---

(1) أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۴۱۷ رقم الحديث ۳۳۸۲، والترمذي في السنن ۵/۲۷۳ رقم الحديث ۳۱۱۶.

يَوْمَئِذٍ أَشَدُّ مِنْهُ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1]

مړنی او زړوه ور بل څوک ندی لیدل شوی.

**توضیح** : انا ابن عبدالمطلب: مکې دفتحې نه څو وروسته د غزوه حنين واقعه پیښه شوه. دجنګ په ابتداء کې مسلمانانو ته عارضې شکست وشو. لیکن نبی کریم ﷺ په استقامت سره د کافرو په مقابله کې میدان کې ولاړ ؤ. نبی کریم ﷺ یو قدم شاته ندی تللی. بلکې د جنګ په دوران کې د کافرو په نبی کریم ﷺ باندې د څلور اړخه بریدونو په کیدلو کې به هم مخکې تللو. حضرت عباس او حضرت ابوسفیان بن حارث رضي الله عنهما د نبی ﷺ سره ؤ. نبی ﷺ د خپل سپین قچر نه راکوز شو او په ډیر استقلال سره یې د عظمت دا جملې وویله: انا النبی لاکذب انا ابن عبدالمطلب. یعنې زه د عبدالمطلب په شان د وچتو صفتونو والا سردار ځوی یم. د دې خاندانې شرافت او عظمت تقاضا دا ده چې زه د جنګ په میدان کې یو قدم شاته نشم. او زه د الله تعالی رېښتونې نبی یم، او د نبوت د عظمت تقاضا دا ده چې زه د جهاد په میدان کې شاته د تللو په ځای باندې مخکې لاړ شم. نبی کریم ﷺ په دې رجزیه کلماتو کې د کافرو په مقابله کې خپل خاندانې شرافت، وچت همت او مړانه او زړورتیا او رېښتونې نبوت ته اشاره وکړه چې دا په حقیقت باندې بناء ؤ. په دې کې د دینې غیرت او جوش اظهار ؤ. په کافرو باندې رعب خپرول مقصود ؤ. او د دین اسلام د شان اظهار ؤ چې هغه دغه وخت ضروري ؤ. د دې په مقابله کې د نبوت یو دروغژن دعوی کونکی مسیلمه کذاب ته ګورو کوری چې د یمامې په جنګ کې هغه کله حدیقة الموت کې په خپله قلعه کې د مسلمانانو په ګیر راغلی نو خپلو ملګرو ته یې وویل چې ورونو! دلته نبوت وغیره هیڅ نشته، خپل عزت خپله د ساتلو کوښښ وکړی. لعنة الله علی المفتری الکذاب. (مرقات: ۸/۶۳۱)

## د خير البرية مصداق

﴿۴﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او د حضرت انس رضي الله عنه نه روایت دی چې (یو دورځ) د نبی کریم ﷺ په خدمت کې یو سړې د حاضریدلو سره

فَقَالَ: يَا خَيْرَ الْبَرِيَّةِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

نبی ﷺ داسې مخاطب کړو: اے هغه سړیه! چې هغه د ټول مخلوق نه غوره دی. نبی ﷺ وفرمایل:

«ذَاكَ إِبْرَاهِيمُ» (رَوَاهُ مُسلم)[2]

هغه سړی چې په ټول مخلوق کې غوره دی، حضرت ابراهیم علیه السلام دی.

**توضیح** : خير البرية: یعنې په کائنات کې د ټولو نه افضل هم ته یې. دلته دا اشکال دی چې نبی

---

(1) أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۱۶۴ رقم الحديث ۳۰۴۲، ومسلم في ۳/۱۴۰۰ رقم الحديث (۱۷۷۶-۷۸).

(2) أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۸۹۳ رقم الحديث ۲۳۶۹-۱۵۰) وأحمد في المسند ۳/۱۷۸.

کریم ﷺ على الاطلاق خير البرية او سيد الاولين والآخرين دی، بيا دلته دخپل ذات نه نفې او د حضرت ابراهيم علیه السلام لپاره د دې د ثابتولو څه مطلب دی؟د دې سوال جواب دا دی چې حضرت ابراهيم علیه السلام د نبی کریم ﷺ په عزتمندو نيکونو کې دی، نو نبی کریم ﷺ تواضعًا وفرمايل چې په اصل کې خير البرية خو زما عزتمند نيکهٔ ، زه چيرته يم. د په عامو خبرو کې هم داسې کيږي.دويم جواب دا دی چې ممکنه ده چې دا د نبوت د ابتداء واقعه وي، او د نبی ﷺ مشرې او عام قيادت د وحې په ذريعه سره هغه وخت واضح شوی نوي، او وروسته د وحې په ذريعه باندې دا مرتبه ورکړې شوې وي، نو اول نبی کریم ﷺ انکار وکړو، بيا وروسته يې اقرار وکړو. (مرقات: ۸/۶۳۳)

## دنبی ﷺ په شان کې دشرعي حدودو خيال ساتل ضروري دي

| |
|---|
| ﴿۵﴾وَعَنْ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَا تُطْرُونِي |
| او حضرت عمر رضی الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل: تاسو خلک زما په ستاينه او |
| كَمَا أُطْرَتِ النَّصَارَى ابْنَ مَرْيَمَ فَإِنَّمَا أَنَا عَبْدُهُ |
| تعريف کې تجاوز مکوی لکه څنګه چې نصاراؤ د ابن مريم(يعني حضرت عيسی علیه السلام) په ستاينه کې |
| فَقُولُوا: عبدُ الله ورسولُه" (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| تجاوز کړيدی. زه خو دخدای بنده يم، لهذا تاسو (ماته ) د خدای بنده او د هغه رسول وايی. |

**توضيح**:لاتطرونی: د باب افعال نه اطراء بې ځايه مدح او ستاينې کې مبالغه او غلو او تجاوز کولو ته وايې.س په اصل کې لاتطريون دی. د حديث مطلب دا.دی چې نبی کريم ﷺ فرمايي چې زما په مدح او ستاينه او شان بيانولو کې د داسې تجاوز او غلطې طريقې نه کار مه اخلئ. څنګه چې نصاراؤ د حضرت عيسیٰ په اړه اختيار کړی ؤ. چې الله تعالی دې غوره بنده لره بندګې او د عبوديت په مقام باندې يې ودرولی دی او هغه ته يې د عبدالله په ځای باندې ابن الله وويله، يا ثالث ثلاثه يې وويله. تاسو داسې مکوی. هو! دومره وينا د مدح او ستاينې لپاره کافي ده چې ماته د الله تعالی بنده او رسول ووايی. د الله تعالی په بندګی کې غټ اعزاز دی. کما قيل: (مرقات: ۸/۶۳۴)

لا تدعنی الا بیا عبدها فانه افضل اسمائیا

دغه شان دا ويل چې زه د الله تعالی بنده يم. دا د ستاينې آخرې حد دی. ځکه چې رسول په هغه مقام باندې ولاړ وي چې د هغې نه وروسته د الله تعالی شان شروع کيږي. نو ځکه د عبديت او نبوت په اعزاز سره زما

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۴۷۸ رقم الحديث ۳۴۴۵،والدارمي في ۲/۴۱۲ ... ۲۷۸۴.

ستاينه کافي ده. د الوهيت په مقام سره زما ستاينه مکوی. څنګه چې نصاراؤ کړی ؤ، علامه بوصيری څه ښه فرمايلي دي:

فان فضل رسول الله ليس له حد — فيعرب عنه ناطق بفم

بهر حال د شرعي حدودو نه په وتلو سره د نبی کريم ﷺ ستاينه او ثناء د نبي کريم ﷺ ستاينه نده بلکه نبي کريم ﷺ ناراضه کول دي. دستايني او ستايلو په ميدان کې بريليان حضرات خطرناک حد پورې تجاوز کوي. او نبی کريم ﷺ د الوهيت او معبوديت مقام ته رسوي. دهغوې دا وينا چې نبی کريم ﷺ نور الله دی. د دې په ټيټو الفاظو کې کې هم دا مطلب راوځي چې نبی ﷺ ابن الله دی. نصاراؤ هم دغه شان تاؤ راتاؤ الفاظو کې حضرت عيسی عليه السلام ته ابن الله ويلي ؤ. بريليانو نبی کريم ﷺ ته المدد يارسول الله ويلو سره راوبللو. دا د الوهيت او معبوديت مقام دی. بحث کې جارې حديث د بريليانو د ترديد لپار دی. که په دې سره هم د خلکو سترګې برسيرته نشي نو بيان د مړ کيدلو نه وروسته د سترګو په پټيدلو باندې به سترګې برسيرته شي. شيعه روافضو لره هم خيال کول پکار دي، هغوې خپل دولس امامانو ته هم دغه شان د الوهيت اومعبوديت مرتبه ورکوي. د دې حديث اعلان دی چې« بريليان او روافض دې هوښيار شي» (مرقات: ۸/۶۳۶)

| |
|---|
| ﴿۶﴾وَعَن عياضِ بن حمارِ المجاشعيِ أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِنَّ اللهَ |
| او حضرت عياض بن حمار مجاشعی نه روايت دی چې رسول کريم ﷺ وفرمايل: الله تعالی |
| أَوْحَى إِلَيَّ: أَنْ تَوَاضَعُوا حَتَّى لَا يَفْخَرَ أَحَدٌ |
| د وحې په ذريعه سره ماته حکم راکړی دی چې عاجزې او انکسارې اختيار کړی ترديې چې يو ګس په بل |
| عَلَى أَحَدٍ وَلَا يبغيَ أَحدٌ على أَحد" (رَوَاهُ مُسلم)[1] |
| باندې فخر ونکړي. او نه څوک په چا باندې ظلم او زياتی وکړي. |

## الفصل الثاني

## پلار نيکه او کورنۍ باندې فخر کول هيڅ شی ندی

| |
|---|
| ﴿۷﴾عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| حضرت ابو هريره رضي الله عنه د نبی کريم ﷺ نه روايت کوي چې نبی ﷺ وفرمايل: خلک د |

---

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۲/۲۱۹۸ رقم الحديث (۲۸۶۵-۱۴) وابن ماجه في السنن ۲/۱۳۹۸.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| «لَيَنْتَهِيَنَّ | أَقْوَامٌ | يَفْتَخِرُونَ | بِآبَائِهِمُ | الَّذِينَ | مَاتُوا |

خپل (هغه) پلارنيکه باندې فخر کوي چې هغه مړ شوي دي. او د چا حقيقت چې د دې نه علاوه نور هيڅ هم ندي چې هغه د

إِنَّمَا هُمْ فَحْمٌ مِنْ جَهَنَّمَ أَوْ لَيَكُونُنَّ أَهْوَنَ عَلَى اللهِ مِنَ الْجُعَلِ الَّذِي

دوزخ سکاره جوړ شوي دي. ګنې هغوی د خدای په نزد باندې چينجي (د ګندګی چينجي) نه هم ډير ذليله او

يُدَهْدِهُ الْخِرَاءَ بِأَنْفِهِ إِنَّ اللهَ قَدْ أَذْهَبَ عَنْكُمْ عُبِيَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ

خوار به وي. کوم چينجی چې د ګندګی بويې د خپلې پوزې نه ليرې کوي بيشکه الله تعالی تاسو د جاهليت

وَفَخْرَهَا بِالْآبَاءِ إِنَّمَا هُوَ مُؤْمِنٌ تَقِيٌّ

د بوئي او پلارنيکه باندې د فخر کولو د عادت نه ليرې کړې يې. (ياد ساتې) انسان (وس) يا مؤمن متقي دی

أَوْ فَاجِرٌ شَقِيٌّ النَّاسُ كُلُّهُمْ بَنُو آدَمَ وَآدَمُ مِنْ تُرَابٍ» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُودَاوُد)[1]

يا فاجر بدکاره، ټول انسانان د آدم عَلَيْهِ السَّلَام اولاد دی، او آدم عَلَيْهِ السَّلَام د خټې نه پيدا کړی شويدی. (ترمذی او ابوداؤد)

**توضيح: الجعل:** جعل حشرات الارض کې يو چينجې ته ويل کيږي. چې هغې ته ګبريلا ويلی کيږي. پښتو کې ورته ګونګټ ويل کيږي. ګونګټ د خولې په ذريعه سره د انسان او د حيوان د ګندګی نه بهترينې ګولی جوړوي. او بيا د خولې په ذريعه سره هغه ټيله کولو باندې مخکې بوزي. که د سورې په برابر ګولی وي نو هغه دننه وړي، ګنې د افسوس سره يې بيرون پريږدي. د غه شان انسان د مال مينه او د منصب ګندګې وچتوي ليکن قبر ته په داخليدلو سره دا ټوله لويې او تکبر ټول په ټوله پاتې کيږي او انسان د خپل عمل سره قبر ته لاړ شي. (مرقات: ۸/۶۳۶)

**الفحم:** فحم: سکرو ته ويل کيږي. دجهنم خشاک مراد دي. يدهده: ټيله (دهيکه) ورکولو ته وايې، **الخراء:** ګندګی او چينجي ته وايې. (مرقات: ۸/۶۳۶)

**عبية الجاهلية:** عين باندې ضمه ده او يا باندې فتحه او کسره دواړه دي. يا باندې شد دی، فخر او تکبر ته وايې.

## په نبی اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې د سردار اطلاق څنګه دی؟

﴿۸﴾ وَعَن مطرف بن عبد الله الشِّخِّيرِ قَالَ: قَالَ أَبِي:

او حضرت مطرف بن عبد الله ابن شخير فرمايې چې (زما پلار حضرت عبد الله صحابی بيان وکړو چې) د

---

[1] اخرجه ابوداود في السنن ۵/۳۹۹ رقم الحديث ۵۱۱۶، والترمذي في ۵/۱۹۰ رقم الحديث ۳۹۵۵.

انْطَلَقْتُ فِي وَفْدِ بَنِي عَامِرٍ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

بنو عامر کوم وفد چې د نبی کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شوی ؤ، په هغې کې زه هم شریک وم. نو (کله چې

فَقُلْنَا: أَنْتَ سَيِّدُنَا. فَقَالَ:

مونږ د نبی عَلَیْهِ السَّلَام په خدمت کې حاضر شو نو) مونږ عرض وکړو چې ته زمونږ سردار یې. نبی عَلَیْهِ السَّلَام وفرمایل:

«السَّيِّدُ اللهُ» فَقُلْنَا وَأَفْضَلُنَا فَضْلًا

سردار خو الله دی. مونږ عرض وکړو: ته د نیکۍ او بښیګړې په اعتبار سره په مونږ ټولو کې ښه یې. او د بخښلو په اعتبار

وَأَعْظَمُنَا طَوْلًا. فَقَالَ: «قُولُوا

سره په مونږ ټولو کې غوره یې. نبی عَلَیْهِ السَّلَام وفرمایل: هو! دغه شان څه وایې بلکې د دې نه هم د کمې درجې الفاظ

قَوْلَكُمْ أَوْ بَعْضَ

استعمال کړی. (یعنې زما په ستاینه او مدح کې د مبالغه کولو نه کار مه اخلی او هغه صفتونه زما اړخ ته مه منسوب کوی چې

قَوْلِكُمْ وَلَا يَسْتَجْرِيَنَّكُمُ

هغه فقط د الله تعالی د ذات سره مخصوص دي. تاسو چې په آخر کې کومه خبره کړیده، دیرنا یر تر دغه حده پورې زما ستاینه

الشَّيْطَانُ» (رَوَاهُ أَحْمد وَأَبُو دَاوُد)[1]

کولی شی، بلکې زما کړ نه د دېنه هم د کمې درجې وستایې نو ښه به وي) او (ګوری) شیطان دې تاسو خپل وکیلان جوړ نکړي.

**توضیح:** انت سیدنا: سید د لفظ اطلاق په بیلا بیلو احادیثو کې په مخلوق باندې شویدی. چې هغه د جائز کیدلو دلیل دی. نبی کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ خپل ځان په سید سره یاد کړیدی. البته دلته د انکار وجه دا وه چې دې خلکو د خطاب سره کوم انداز خپل کړی ؤ هغه داسې ؤ ګویا نبی کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یې د دنیا په سردارانو کې یو سردار ګرځولی ؤ. حالانکې د نبی کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ خصوصیت نبوت او رسالت ؤ، د دنیا د سردارانو په شان سرداري نوه. ځکه نبی کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې سردار یعنې مشکل کشا، حاجت روا فقط یو د الله تعالی ذات دی. (مرقات: ۸/۶۳۹)

ولایستجرینکم: دا دجری نه دی، او جرې دلته د وکیل په معنی دی. چې هغه د خپل مؤکل قائمقام او جاري مجرای وي. مطلب دا دی چې د حد نه تجاوز مکوی، هسې نه په دې بې ځایه تجاوزاتو کې شیطان تاسو خپل وکیلان جوړ نکړي. یا دا لفظ د جرأت نه جوړ شویدی. یعنې شیطان تاسو

---

[1] أخرجه ابوداود في السنن ۵/۱۵۴ رقم الحديث ۴۸۰۶، واحمد في المسند ۴/۲۵ .

زما په بی ځایه ستاینه باندې جرئ او زړور نکړي چې تاسو بی ځایه ستاینه شروع کړی. دا معنې ډیر واضحه او مناسب ده. (مرقات: ۸/۶۴۰)

## اصل غوره والی تقوی ده

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنِ الْحسن عَن سَمُرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الْحَسَبُ |
| او حضرت حسن د حضرت سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت کوي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: حسب |
| الْمَالُ وَالْكَرَمُ التَّقْوٰى» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وابنُ مَاجَه)[1] |
| د مالداری او کرم د پرهیزګاری نوم دی. (روایت کړې دې ترمذی او ابن ماجه) |

**توضیح** الحسب المال: یعنې د عامو خلکو سره خو د حسب نسب مالک او د وچت شان والا او عزتمند او لویې او غوره سړی هغه دی چا سره چې مال وي، خلک د هغه عزت کوي. او خلک هغه لره خوش قسمته او کامیاب ګرځوي او د خدای محبوب یې ګڼي. چا څه ښه ویلي دي:

**رأیت الناس قد مالوا الی من عنده مال ومن لا عنده مال فعنه الناس قد مالوا**

دا د خلکو معامله ده لیکن د الله په نزد باندې عزتمند او لویې هغه سړی دی چې هغه متقې او پرهیزګاره وي، د الله په نزد د غټ او د ورکوټې کیدلو مدار په تقوی باندې دی. ﴿إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ﴾ (مرقات: ۶۴۱،۸/۶۴۰)

## پلار نیکه باندې د فخر کونکې لپاره سزا

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ أُبَيِّ بن كعب قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «مَنْ تَعَزَّى |
| او حضرت ابی بن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایې چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوریدلي دي چې کوم |
| بِعَزَاءِ الْجَاهِلِيَّةِ فَأَعِضُّوهُ بِهَنِ أَبِيهِ |
| سړی د جاهلیت د زمانې د نسبت سره د خپل پلار نیکه نسبت کوي نو د هغه د پلار شرمګاه غوڅه کړی. |
| وَلَا تُكَنُّوا» (رَوَاهُ فِي «شَرْحِ السنة»)[2] |
| او په دې کې د اشارې کنایې نه کار مه اخلی. |

**توضیح** بعزاء: عزا نسبت ته ویل کیږي. مطلب دا دی چې کوم سړی د جاهلیت رسمونه، عادتونه او

---

(1) اخرجه الترمذي في السنن ۵/۳۶۳ رقم الحديث ۳۲۷۱. وابن ماجه ... رقم الحديث ۴۲۱۹.

(2) اخرجه البغوي في شرح السنة ۱۳/۱۲۰ رقم الحديث ۳۵۲۱. واحمد في المسند ۵/۱۳۶.

بدعتونه خپلوي او هغه ژوندي کوي نو هغه ته په ښکاره توگه باندې د مورپلار کنځل واوروی چې دا د
لام طريقه نده بلکې د جاهليت طريقه ده. او په جاهليت کې به ستا پلار دا پليت کارونه کول. هغه د
اعلى درجه فاسق او فاجر ؤ، د هغه يادونه په کومه خله باندې کوي؟ د دې جملې دويم مطلب دا دی
چې مثلاً يو سړی د جاهليت د زمانې په شان فحش ويناوې کوي. او قبيح کنځلې کوي، نو تاسو هغه ته
سپيري کنځلې وکړه چې شرم وکړه چې ته د جاهليت په شان کنځل کوي. ستا پلار خو فاسق او فاجر
بدکار او بدکردار او زناکار سړی ؤ. دغه شان به هغه بدگو سړی تاسو ته د کنځلو کولو نه منع
شي.فاعضوه: په غاښونو باندې نيولو سره غوښولو ته وايي. هن: شرمگاه ته وايي. مطلب دا دی چې
دغه سړې ته ووايي چې په غاښونو باندې خپل پلار ذکر غوڅ کړه. (مرقات: ۸/۶۴۱،۶۴۲)

## خپله پيژنده خپله کړه

﴿۱۱﴾وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي عُقْبَةَ عَنْ أَبِي عُقبةَ وَكَانَ مَوْلًى مِنْ

او حضرت عبدالرحمن ابن ابو عقبه د حضرت ابو عقبه رضي الله عنه نه نقل کوي چې هغه د (يو انصاري)

أَهْلِ فَارِسَ قَالَ: شَهِدْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د فارس وسيدونکې غلام ؤ. هغه بيان وکړو چې د نبی کريم صلی الله علیه وسلم سره په ملگرتيا کې زه هم

أُحُدًا فَضَرَبْتُ رَجُلًا مِنَ الْمُشْرِكِينَ

په غزوه احد کې شريک وم. نو (د جنگ په دوران کې) ما د مشرکانو نه يو سړې باندې (توري يا د نيزې

فَقُلْتُ خُذْهَا مِنِّي وَأَنَا الْغُلَامُ الْفَارِسِيُّ

وار کولو سره) ووژلو او ومې ويل چې يو وار زما د اړخ نه هم وخوره. زه يو فارسي غلام يعني د فارس وسيدونکی يم

فَالْتَفَتَ إِلَيَّ فَقَالَ:

(چې هغه زړه ور او ډير وژونکی دی) نبي عليه السلام (زما دا جمله واوريدله نو) زما اړخ ته متوجې شو او وې فرمايل

"هَلَّا قُلْتَ: خُذْهَا مِنِّي وَ أَنَا الْغُلَامُ الْأَنْصَارِيُّ؟" (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1]

چې تا داسې ولې ونه ويل چې واخله زما د اړخ نه يو وار وخوره، زه يو انصاري غلام يم. (ابوداؤد)

**توضيح: الغلام الفارسي:** دا سړی خپله تابعي دی. د هغه پلار ابو عقبه صحابي ؤ. دا سړی په مولی
الموالات کې، مولی العتاقة نه ؤ. د يو انصاري دسيوري لاندې ؤ. ځکه انصاري نسبت ورسره
ولکيدلو. کنې دا په انصارو کې نه ؤ. هلکې د اسلامي رواياتو په مطابق باندې د انصار اړخ ته

---

[1] اخرجه ابوداود في السنن ۵/۳۴۲ رقم الحديث ۵۱۲۳، وابن ماجه في ۲/۹۲۱ رقم الحديث ۲۷۸۴.

نسبت بنه ؤ. نو ځکه نبی کریم ﷺ خبرداري وکړو چې د فارس اړخ ته فارسي نسبت پریږده، د انصارو اړخ ته انصاري نسبت خپل کړه. (مرقات: ۸/۶۴۲)

## دقومي تعصب کونکي مثال

|  |
|---|
| ﴿۱۲﴾وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د نبی کريم ﷺ نه روايت کوي چې نبی کريم ﷺ وفرمايل: |
| «مَنْ نَصَرَ قَوْمَهُ عَلَى غَيْرِ الحَقِّ فَهُوَ كَالْبَعِيرِ الَّذِي |
| کوم سړی چې د خپل قوم په ناحقه باندې ملاتړ او مرسته کوي. هغه د هغه اوښ په شان دی چې هغه |
| رَدَى فَهُوَ يُنزَعُ بِذَنَبِهِ» (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1] |
| کوهي (څاه) ته غورزيږي او بيا د هغه لکۍ ونيسي او هغه راکاږي. (روايت کړې دې ابوداود) |

**توضيح**: كالبعير: دايوه تشبيه ده. د دې وضاحت داسې دی چې مثلاً يو قوم په تعصب باندې راغلی چې هغه تباه شوی. وس د هغې مثال د مړ شوي يو اوښ پشان دی، چې هغه په کوم پليت کوهي کې غورزيدلی وي. د کوهې نه د هغې راويستل ډير ګران وي. خو يو سړی هغه د لکۍ نه په نيولو باندې د راايستلو کوښښ کوي. وس دا يوه ناممکنه او بې فائدې کوښښ دی بلکې بيوقوفتيا ده ځکه چې د لکۍ په شان کمزورې برخې نه دومره دروند اوښ څنګه بيرون راايستل کيدلی شي. بيخي هم دغه شان هغه سړی دی چې هغه د تعصب په بنياد باندې د يو متعصب قوم ملاتړ کوي. او د هغې هر ناجائز کار ته جائز وايي. په دې تعصب سره هغه دا تباه شوی قوم نشي بچ کولی. او کوم کوښښ چې کوي هغه بيخي بې فائدې دی او کوښښ يې بې ځايه دی.

ردى: داد غورزيدلو په معنی دی.

ينزع: راخکلو او خلاصولو ته وايي.

بذنبه: لکۍ ته وايي. د دې جمع اذناب ده. (مرقات: ۸/۶۴۳)

## عصبيت څه ته وايي؟

|  |
|---|
| ﴿۱۳﴾وَعَن وَاثِلَةَ بن الأَسْقَعِ قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ مَا الْعَصَبِيَّةُ؟ |
| حضرت واثله بن اسقع فرمايي چې ما عرض وکړو يارسول الله ﷺ! عصبيت (يعني جاهليت) |

---

[1] اخرجه ابوداود في السنن ۵/۳۴۱ رقم الحديث ۵۱۱۸.

قَالَ : « أَنْ تُعِينَ قَوْمَكَ عَلَى الظُّلْمِ » (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1]

د شي دي؟ نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې ته په ظلم باندې د خپل قوم او جماعت ملاتړ وکړې.

## د خپل قوم نه ظلم ليرې کول جائز دي

﴿۱۴﴾وَعَن سُرَاقَة بن مالكِ بن جُعْشُم قَالَ: خَطَبَنَا رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت سراقه بن مالک ابن جعشم فرمايي چې (يوه ورځ) رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زمونږ مخې ته خطبه لوستلو

فَقَالَ: «خير كم الْمُدَافِعُ عَنْ عَشِيرَتِهِ

کې وفرمايل: په تاسو کې بهترين سړی هغه دی چې هغه د خپل قوم جماعت نه د ظلم ليرې والی وکړي

مَا لَمْ يَأْثَمْ » (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[2]

ترڅو چې د دغه ليرې والي په وجه باندې خپله د ظلم د ګناه کونکی نشي. (روايت کړې دی ابو داود)

**توضيح: مالم يأثم**: د حديث مطلب دا دی چې يو سړی مثلاً د خپل قوم او خپلوانو نه څه ظلم ليرې کوي نو دا ډير ښه عمل دی. ځکه چې په دیکې د مظلوم مرسته هم ده او د خپلوانو صله رحمي پالل هم دي. خود دې ملاتړ او مرستې لپاره شرط دا دی چې دا سړی خپله ظالم جوړ نه شي. مثلا: په ژبه باندې که ظلم ليرې کيدلی شي نو هلته لاس وچتول او وهل به ظلم وي. چې دا ګناه ده. او که په وهلو سره ظلم ليرې کيدلی شي نو د مظلوم په ملاتړ کې به د ظالم وژل خپله ظلم وي. خلاصه دا چې په شرعي حدود و کې پاتې کيدلو سره ظلم دې ليرې کړي، که د شرعي حد نه تجاوز وکړي نو خپله ظالم جوړيدلو باندې به ګناهګار شي. (مرقات: ۸/۶۴۴)

## د عصبيت بدي

﴿۱۵﴾وَعَن جُبَيْرُ بْنُ مُطْعِمٍ أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «لَيْسَ مِنَّا

او د حضرت جبير ابن مطعم نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: هغه سړی زمونږ نه ندی

مَنْ دَعَا إِلَى عَصَبِيَّةٍ

چې هغه خلکو ته د عصبيت دعوت ورکوي يعنې خلکو لره په څه ناحقه معامله باندې د ملاتړ کولو

وَلَيْسَ مِنَّا مَنْ قَاتَلَ عَصَبِيَّةً

لپاره تيار کړي. نه هغه سړی زمونږ نه دی چې هغه د عصبيت د وجې نه جنګ وکړي. د غه شان هغه سړی هم

---

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۵/۳۴۱ رقم الحديث ۵۱۱۹ وابن ماجه في ۲/۱۳۰۲ رقم الحديث ۳۹۴۹.

[2] أخرجه أبوداود في السنن ۵/۳۴۱ رقم الحديث ۵۱۲۰.

| وَلَيْسَ مِنَّا من مَاتَ على عصبية» (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1] |
|---|
| زمونږ نه ندی چې هغه د عصبيت د حالت په مړ شي. (ابوداؤد) |

**توضيح**: ليس منا: د دې جملې مطلب دا دی چې په دې معامله کې دا سړی زمونږ د مسلمانانو په طريقه باندې ندی، اګرکه په باقي دين باندې دی. دويم مطلب دا دی چې که دې لره حلال ګڼي نو دا سړی مسلمان نشي پاتې کيدلی. دريم مطلب دا دی چې دا د اسلوب حکيم په توګه باندې دی ځکه چې مسلمان د غه شان وعيد اوريدلو باندې سمدستې بدی لره پريږدي. څلورم مطلب دا دی چې دا تشديدًا تغليظًا تهديدًا او توبيخًا ويلې شوي دي.

## د يو څه مينه انسان ړوند کوڼ جوړ کړي

| ﴿۱٦﴾وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
|---|
| او حضرت ابودرداء رضي الله عنه د نبی کريم صلى الله عليه وسلم نه روايت کوي چې نبی صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د |
| «حُبُّكَ الشَّيْءَ) يُعْمِي وَيُصِمُّ» (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[2] |
| يو څه سره ستا مينه کول تا لره ړوند او کوڼ جوړوي. |

**توضيح**: يعمى: مطلب دادی چې د يو څه په مينه کې چې انسان راګير شي نو د مينې دا جذبه انسان ړوند جوړ کړي. هغه ته د خپل نصب العين د ملاتړ نه علاوه هيڅ په نظر نه راځي. د هغه سره نه د حق او باطل معيار پاتې کيدلی شي او نه دحق تله (ترازو) پاتې کيدلی شي. بس هغه خپل خواهش ته د رسيدلو نه سوا د هيڅ څه اوريدلو ته تيار ندی. او نه د اوريدلو لپاره تيار دی. شاعر ريښتيا ويلي دي:

فعين الرضا عن كل عيب كليلة ولكن عين السخط تبدى المساويا

(مرقات: ۸/٦۴۴)

## الفصل الثالث

## د عصبيت معنى

| ﴿۱۷﴾عَن عُبَادَةَ بْنِ كَثِيرٍ الشَّامِيِّ مِنْ أَهْلِ فِلَسْطِينَ عَن امْرَأَةٍ مِنْهُمْ |
|---|
| او حضرت عباده ابن کثير چې د هغه اړيکې د شام سره وي، په خپلو خلکو کې د يوې ښځې چې د هغې نوم |

(۱) اخرجه أبوداود في السنن ۵/۳۴۳ رقم الحديث ۵۱۲۱.

(۲) اخرجه أبوداود في السنن ۵/۳۴۱ رقم الحديث ۵۱۳۰، واحمد في المسند ۵/۱۹۴.

يُقَالُ لَهَا فُسِيلَةُ أَنَّهَا قَالَتْ: سَمِعْتُ أَبِي يَقُولُ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

فسيلهٔ، نقل کوي چې هغه ښځې به بيان کولو چې ما د خپل پلار نه اوريدلي دي چې ما رسول الله صلی الله علیه وسلم ته

فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ أَمِنَ الْعَصَبِيَّةِ أَنْ

عرض کولو کې پوښتنه وکړه: يا رسول الله صلی الله علیه وسلم! آيا عصبيت د بته وايي چې کوم سړی خپل

يُحِبَّ الرَّجُلُ قَوْمَهُ؟ قَالَ: «لَا وَلَكِنْ مِنَ الْعَصَبِيَّةِ

قوم او جماعت سره مينه ولري؟ نبي صلی الله علیه وسلم و فرمايل: نا! بلکې عصبيت ديته وايي چې څوک د

أَنْ يَنْصُرَ الرَّجُلُ قَوْمَهُ عَلَى الظُّلْمِ» (رَوَاهُ أَحْمَدُ وَابْنُ مَاجَهُ) [1]

ظلم په معامله کې د خپل قوم او جماعت ملاتړ او مرسته وکړي. (روايت کړې دي احمد، ابن ماجه)

**توضيح**: ينصر: مثلًا د خپل خاندان يو سړی د دې وجې نه ملاتړ او مرسته کوي چې دا د هغه خاندان دی. که هغه په ظلم باندې ولې نوي. فاسق او فاجر او جابر ولې نوي. د دې سره يې څه کار نوي. هغې ته ګوري هم نه چې دلته حق کوم اړخ ته دی او باطل کوم اړخ ته دی. د ټولو نه په ړندېدلو سره د خاندان خبره کوي. دا عصبيت دی، د جاهليت خلکو به هم دغه شان ويله.

**انصر اخاك ظالما او مظلوما** (مرقات: ۸/۶۴۸)

دا فقط تعصب دی چې حرام دی. د جاهليت خلکو به هم داسې ويل: **ان لم تنصر اخاك ظالما فلا تنصره مظلوما**.

## په خپل حسب نسب باندې تکبر مکوه

﴿۱۸﴾ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَنْسَابُكُمْ هَذِهِ لَيْسَتْ

او حضرت عقبه ابن عامر فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمايل: نسب څه داسې شی ندی چې د

بِمَسَبَّةٍ عَلَى أَحَدٍ كُلُّكُمْ بَنُو آدَمَ طَفُّ الصَّاعِ

هغې په وجه تاسو چا ته بد ووايی او پېغور ورکړی. تاسو ټول د آدم علیه السلام اولاد يی. څنګه چې يو صاع (اوړی)

بِالصَّاعِ لَمْ تملؤوه لَيْسَ لِأَحَدٍ عَلَى أَحَدٍ فَضْلٌ

د بل صاع برابر وي کوم چې تاسو ډک کړی نوي. چا ته په چا باندې څه فضيلت او ترجيح نشته دی.

---

[1] أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۳۰۲ رقم الحديث ۳۹۴۹، واحمد في المسند ۴/۱۰۷ رقم الحديث ۴۹۱۰.

| بَذِيًّا | يَكُونَ | أَنْ | بِالرَّجُلِ | كَفَى | وَتَقْوَى | بِدِينٍ | إِلَّا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| علاوه د دين او تقوى نه، سړي د بدۍ لپاره دومره کافي ده چې هغه ژبه ور، فحش وينا کونکی او بيکاره | | | | | | | |

| فَاحِشًا | بَخِيلًا» | (رَوَاهُ | أَحْمَدُ | وَالْبَيْهَقِيُّ | فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ»)[1] |
|---|---|---|---|---|---|
| خبري کونکی، بخيل وي. دا روايت احمد او بيهقي په شعب الايمان کې نقل کړيدی. | | | | | |

**توضیح: طف الصاع**: صاع پيماني ته وايي چې په هغې سره غله تلل کيږي. **ب**: ملابست لپاره ده. طف لفظ لغت کې د کمې او نقص لپاره استعماليږي. د دې نه **تطفيف** دی. او د دې نه **ويل للمطففين** دی.

دلته طف نه مراد هغه پيمانه مراد ده چې هغه د کيدلو ته نزدې وي، خو ډکه نکړی شي. بلکې ناقصه پاتې شي. فخر او ځان لويې ګڼلو کې د انسانانو موازنه وکړی شوه او وويلی شو چې يو انسان ته په بل انسان باندې داسې فضيلت نشته دی چې د ده پيمانه ډکه شوي وي او د هغه بل ناقصه پاتې شوي وي. بلکې په نقص او نقصان کې دواړه برابر دي. نه دا پوره ده او نه هغه پوره ده. ټول د يو پلار حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَام اولاد دی. او ټول د ختې نه پيدا دي. هو! تقوی او پرهيزګارې او نيک عمل يو داسې شی دی چې په هغې سره يو سړی فضيلت کې د بل نه مخکې کيدلی شي. د ختې ګوډاګی خو د ختې دی.

**ما للعلوم وللتراب وانما يسعى ليعلم انه لا يعلم**

**كفى بالرجل**: ای كفى الرجل مسبةً وعاراً ولقصاناً دا تميز محذوف دی. مطلب دا شو چې بس د يو سړي د بدې او شرم لپاره دا کافي ده چې هغه بذی وي، **فاحشًا** د بذی ترجمه ده. هغه بخيل د مچ نه کوچ ايستونکی سړی مراد دی. چې هغه په واجب حقونو کې د بخل په وجه نقصان کوي. (مرقات: ۸/۶۴۶)



(1) أخرجه احمدفي المسند۴/۱۴۵ والبيهقي في شعب الايمان ۴/۲۹۲ رقم الحديث ۵۱۴۶.

۱۱ ربيع الثاني ۱٤۱۸هـ

# باب البر والصلة
## د نيکۍ او صله رحمۍ بيان

قال الله تعالى ﴿وَيَقْطَعُوْنَ مَآ اَمَرَ اللهُ بِهٖ اَنْ يُّوْصَلَ﴾ (بقرة:۲۷)

البر: نيکي او الصلة: صله رحمي ته ويل کيږي. د لفظ بر عام اطلاق اگر که په عام نيکۍ باندې کيږي. ليکن په حقيقت کې دا لفظ د مور پلار سره د نيکۍ ښويې کول، نيکۍ او احسان او اطاعت لپاره استعماليږي د مور پلار سره نيک ښويې کول شرعي حکم دی. حديث کې راغلي دي: اَنْتَ وَمَالُكَ لِاَبِيْكَ. لهذا په هر صورت کې د مور پلار حقوقو ته د اولاد په حقوقو باندې وړتيا ترلاسه ده. اگر که په ظاهره باندې هغه په ظلم باندې ولاړ وي. نو که کوم پلار خپل ځوې لره ووژني نو په دنيا کې شريعت د هغې مواخذه نکوي، په آخرت کې به کتلی شي. هم دا وجه ده چې د ځوې په وژلو کې د پلار نه په دنيا کې قصاص نشي اخستل کيدلی. ځکه چې پلار د دې ځوې د حيات او ژوند ذريعه ده. لهذا ځوې د خپل پلار د مرگ ذريعه نشي جوړيدلی خو امام مالک رحمه الله فرمايي که کوم پلار ځوې په ذبح کولو سره ووژلو نو په دنيا کې به مواخذه کيږي چې په داسې بې دردۍ باندې يې ولې ووژلو؟ بهرحال دا دنيا معامله ده، د قيامت معامله به بله وي (مرقات ۸/٦٤٧) فقهاؤ ليکلي دي که يو هلک د ملگرو سره ناست وي او د هغه پلار راشي. خلکو د ځوې نه پوښتنه وکړه چې دا څوک دی. نو هلک جواب ورکړو چې دا زمونږ خپلوان دی. نو په داسې ويلو سره هغه ځوې به عاق شي. ځکه چې هغه د پلار په نوم باندې شرم او پيغور محسوس کړو او دا يې ونه ويله چې دا زما پلار دی.
لفظ بر: په مقابله کې د عقوق لفظ راځي. چې هغه د حسن سلوک سره منافي بدسلوکۍ، درد ورکول او نافرمانۍ باندې ويلی کيږي.

الصلة: د صله لغوي معنی يو ځای کول او پيوند لگول دي. خو د دې اصطلاحي مفهوم دا دی چې خپل خپلوان سره نيکي کول، د هغوې سره ښه ښويې کول، د هغوې د حقوقو خيال ساتل، هغوې ته ډالۍ ورکول. د هغوې هر ډول مرسته کول، د هغوې په تکليف باندې صبر کول، او هغوې ته هر ډول راحت او فائده رسول صله رحمي ده. د غه شان د عامو مسلمانانو سره جوړ پيدا کول او خبرې نه قطع کول هم د صله په لفظ کې شامل دي. (مرقات: ۸/٦٤٧)

### الفصل الاول
### اولاد باندې د مور حقوق

| ﴿۱﴾ | عَنْ | أَبِي | هُرَيْرَةَ | قَالَ: | قَالَ | رَجُلٌ: | يَا | رَسُولَ | اللهِ | مَنْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې يو سړي عرض وکړو: يا رسول الله صلى الله عليه وسلم! زما د ښه رفاقت (يعني زما د ارخ

| |
|---|
| أَحَقُّ بِحُسْنِ صَحَابَتِي؟ قَالَ: «أُمُّكَ» |
| نه د ښه ښوېږي او نيکۍ او خدمت کولو لپاره) د ټولو نه ډېر مستحق څوک دی؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل: ستا مور. هغه |
| قَالَ: ثُمَّ مَنْ؟ قَالَ: «أُمُّكَ» قَالَ: ثُمَّ مَنْ؟ |
| عرض وکړو چې بيا څوک؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل: ستا مور. هغه عرض وکړو چې بيا څوک؟ |
| قَالَ «أُمُّكَ». قَالَ: ثُمَّ مَنْ؟ قَالَ: «أَبُوكَ». |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل: ستا مور. هغه عرض وکړو چې بيا څوک؟ نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: ستا پلار. |
| وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: «أُمَّكَ ثُمَّ أُمَّكَ |
| يو روايت کې داسې دي چې نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (د هغه سړي په جواب کې) وفرمايل: ستا مور، بيا ستا مور، |
| ثُمَّ أُمَّكَ ثُمَّ أَبَاكَ ثُمَّ أدناك أدناك» (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| بيا ستا مور، بيا ستا پلار، بيا ستا هغه خپلوان چې هغه نژدې خپلولي لري. (بخاري او مسلم) |

**توضيح**: **امك**: پوښتنه کونکي د پوښتنې مقصد دا ؤ چې په مور پلار کې د چا حق ډېر دی. يا په ټولو انسانانو کې د ټولو نه ډېر حق د چا دی؟ د سائل د دې سوال په جواب کې نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مور حق د ټولو نه ډېر وويله. د هغه سړي اراده وه چې د پلار د حقوقو تعين وشي. ځکه يې بيا بيا پوښتنه وکړه. نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په څلورمه مرتبه کې د پلار حق ذکر کړو. د حديث مطلب دا دی چې د ټولو نه ډېر حق د مور دی. بيا د پلار دی. او بيا د پاتې خپل خپلوانو درجه په درجه حق دی. ګويا د مور حق د پلار په مقابله کې درې چنده ډېر دی. ځکه چې د ماشوم په پيدائښ کې او د هغه په پالنه کې د پلار نه ډېر د مور کردار دی. نهه مياشتو پورې په خېټه کې ساتلې ګرځول او ساتل، بيا د هغه زيږول، د هغې نه وروسته هغه ته شيدې (پی) ورکول او پورا ساتنه ترينه کول، دا درې غټې مرحلې دي. چې هغه مور تيروي. نو ځکه د هغې حق د پلار د حق نه درې چنده ډېر دی. د الله تعالی فرمان دی: ﴿وَقَضَى رَبُّكَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا﴾ (بني اسرائيل: ۲۳)

د مور پلار په خدمت سره سړي ته په دنيا کې دوه فائدې ترلاسه کيږي. يو په عمر کې برکت راځي، دويم عزت او عظمت او په مال کې ډېروالی کيږي. د علماء کرامو په دې باندې اتفاق دی که د مور پلار حقوقو ادا کولو کې که د مور پلار خلاف راشي چې پلار د خپل حقوقو غوښتنه کوي او وايي چې د مور حق مه ادا کوه، ځما ادا کوه، نو په اولاد باندې لازم دي چې په عزت او تعظيم کې پلار مقدم وساتي او په خدمت او اطاعت کې د مور حق مقدم وساتي. يعنې د مور حق د خدمت په حواله سره مقدم دی. او د پلار حق ادب او د احترام او تعظيم او تکريم په حواله سره مقدم دی.

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۰۱ رقم الحديث ۱۹۷۱، ومسلم في ۴/۱۹۷۴ رقم الحديث (۲۵۴۸-۱)

## د مور پلار خدمت نه کونکي په حق کې بد دعاء

| |
|---|
| ﴿۲﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «رَغِمَ أَنْفُهُ |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: په خاورو دې د هغه سړي پوزه ککړه |
| رَغِمَ أَنْفُهُ رَغِمَ أَنْفُهُ» |
| شي، په خاورو دې د هغه سړي پوزه ککړه شي په خاورو دې د هغه سړي پوزه ککړه شي (یعنې درې ځلې ګویا |
| قِيلَ: مَنْ يَا رَسُولَ اللهِ؟ |
| دا بد دعاء و فرمایله چې هغه سړي دې ذلیل او خوار شي) پوښتنه وشوه چې یا رسول الله! هغه سړی څوک دی؟ |
| قَالَ: «مَنْ أَدْرَكَ وَالِدَيْهِ عِنْدَ الْكِبَرِ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمایل: هغه سړی چې هغه خپل مور پلار یا په دواړو کې یو تن د بوډا والي په حالت کې بیا مومي او بیا |
| أَحَدَهُمَا أَوْ كِلَاهُمَا ثُمَّ |
| جنت ته داخل نشي یعنې د کوم سړي مور پلار یا دواړو کې یو د بوډاوالي په حالت کې وي او هغه سړی |
| لَمْ يَدْخُلِ الْجَنَّةَ » (رَوَاهُ مُسلِم)[1] |
| د هغوی په خدمت کولو سره هغوی راضي نکړي نو هغه انتهایي بد قسمته دی (روایت کړې دی مسلم) |

**توضیح**: رغم: راء باندې فتحه ده.او غین باندې کسره ده. دا د رغام نه دی چې خاورو ته ویل کیږي. مطلب دا دی چې د داسې سړې پوزه دې په خاورو کې ککړه شي یعنې دا دې ذلیل او خوار شي. یا دا جمله اخباریه ده یعنې داسې سړی ذلیل او خوار شو.

لم یدخل الجنة : یعنې د مور پلار په خدمت کولو سره دهغوی په دعاګانو باندې جنت ته داخل نشو،نو دا سړی دې ذلیل او خوار شي. (مرقات: ۸/۶۴۹)

## د مشرک مور پلار سره هم ښه ښويي کول پکار دي

| |
|---|
| ﴿۳﴾وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَتْ: قَدِمَتْ عَلَيَّ أُمِّي وَهِيَ |
| او حضرت اسماء بنت ابو بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایي چې زما مور د شرک په حالت کې (د مکې نه مدینې ته) راغله. کله چې د |
| مُشْرِكَةٌ فِي عَهْدِ قُرَيْشٍ |
| قریشو سره د صلح زمانه وه. (یعنې مدینې ته د راتګ زما د مور دا واقعه د هغه زمانې ده چې د صلح حدیبیه په صورت کې د |

---

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۹۷۸ رقم الحديث (۲۵۵۱-۹) وابوداود وابوداود في السنن ۲/۳۰۷ رقم الحديث ۱۶۶۸.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَقُلْتُ: | يَا | رَسُولَ | اللهِ | إِنَّ |
| نبي عَلَیۡهِ السَّلَام او قريش مكه ترمينځ د جنګ بندئ لو ظنامه شوي وه او زما مور هغه وخته مسلمانه نه وه) نو ما عرض وکړو | | | | |
| أُمِّي | قَدِمَتْ | عَلَيَّ | وَهِيَ | رَاغِبَةٌ |
| يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! زما مور زما خواته راغلي ده او هغه د اسلام نه بيزاره ده. آيا زه د هغې سره | | | | |
| أَفَأَصِلُهَا؟ | قَالَ: | «نعم | صِلِيهَا» | (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| حسن سلوک وکړم؟ نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: هو! د هغې سره ښه ښويې کوه. | | | | |

**توضیح**: وهی راغبة: د دې جملې مطلب بيانولو کې د علماؤ مختلف اقوال دي. ځينو ويلي دي چې مطلب دا دی چې هغه د اسلام قبلولو کې رغبت لري او د مکې نه مدينې ته زما خوا له راغلي ده. تروسه مشرکه ده. آيا زه د هغې خدمت کولی شم او هغې حقوق ادا کولی شم؟ د دې قول په مقابله کې په تفصيلي روايتونو کې دويم قول دا دی چې: **راغبة عن الاسلام** يعني د اسلام نوم اوريدل نه غواړي. د هغې په قبلولو کې څه مينه نه لري، خپل کفر باندې قائمه ده، زه د دغه شان کافرې ښځې خدمت کولی شم؟ نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خدمت اجازت ورکړو ځکه چې د دې تعلق د انسانيت سره دی. ايمان او کفر سره ندی. تفصيلي روايتونو نه معلوميږي چې حضرت اسماء رَضِيَ اللهُ عَنْهَا مور د اسلام نه کرکه کوله، مينه يې ورسره نه درلودله، دا قوم راجح دی ځکه چې د خدمت کولو اجازت په ښتنه کول د دې خبرې دليل دی چې هغه د اسلام نه کرکه کوي. د حضرت اسماء رَضِيَ اللهُ عَنْهَا مور جدا ده او د حضرت عائشه صديقه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا مور جدا ده. د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا مور ام رومان رَضِيَ اللهُ عَنْهَا مسلمانه وه. (مرقات: ۸/۶۴۹،۶۵۰)

## د صله رحمۍ اهميت

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿۴﴾وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " | | | | |
| او حضرت عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايې چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوريدلي دي چې | | | | |
| إِنَّ آلَ فُلَانٍ لَيْسُوا لِي بِأَوْلِيَاءَ إِنَّمَا وَلِيِّيَ اللهُ وَصَالِحُ الْمُؤْمِنِينَ وَلَكِنْ لَهُمْ | | | | |
| ابو فلان اولاد زما دوستان ندي، زما دوست يا خو خدای دی يا نيک بخت مؤمنان البته د دغه خلکو | | | | |
| رَحِمٌ | أَبُلُّهَا | بِبَلَالِهَا | (مُتَّفق عَلَيْهِ)[2] | |
| سره زما خپلولي ده چې هغه زه د لمدو شيانو سره لامده کوم. (بخاری او مسلم) | | | | |

---

([1]) أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۲۸۱ رقم الحديث ۳۱۸۳، ومسلم في ۲/۶۹۶ رقم الحديث (۶۹۶-۲) واحمدفي المسند۶/۳۴۴

([2]) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۱۹ رقم الحديث ۵۹۹۰ ومسلم في ۱/۱۹۷ رقم الحديث (۲۱۵-۳۶۶).

**توضیح**: ابوفلان: په دې کنیت کې تصریح نشته دی چې دا سړی څوک دی. ګویا په کنیت کې کنایه ده. د دې په اړه علماؤ لیکلي دي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم د دې نوم تصریح نده کړې ځکه چې د نوم په اخستلو کې د فتنې پیدا کیدلو خطره وه. ځینو علماؤ لیکلي دي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم نوم اخستلی ؤ خو راوي ته نوم یاد نه ؤ. بیا علماؤ ددې تعین په اړه باندې لیکلي دي چې شاید د ابولهب اولاد مراد وي یا د ابوسفیان اولاد مراد وي یا حکم بن العاص اولاد مراد وي. (مرقات: ۸/۶۵۰)

لیسوا بأولیاء: یعني زما دوستان نه دي. ماته د نورو نه ډیر خوښ ندي، زما بیخې خوښ نه دي. دوي سره مالې مرسته کول څه دیني یا روحاني تعلق په بنیاد باندې نده بلکې سأبلها: بل یبل بلا وبللا: لمدولو په معنی دی، یعني زه دا خپلولي په لمدو شیانو سره لمدوم. د حدیث مطلب دا دی چې زه د دې خلکو سره کوم مالي مرسته کوم، دا دهغوې د محبوب کیدلو په بنیاد باندې نده بلکې دهغوې سره د خپلولۍ او قرابت په بنیاد بادې مرسته کوم. ګنې زما دوستان خو صالحه مؤمنان ابوبکر او عمر او عثمان او علی رضي الله عنهم په شان او د هغوي په شان خلک دی. (مرقات: ۸/۶۵۱)

## د مور پلار نافرماني کول حرام دی

| |
|---|
| ﴿۵﴾وَعَنِ الْمُغِيرَةِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ اللهَ |
| او حضرت مغیره رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل: الله تعالی په تاسو باندې دا |
| حَرَّمَ عَلَيْكُمْ عُقُوقَ الْأُمَّهَاتِ وَوَأْدَ الْبَنَاتِ وَمَنَعَ |
| کار حرام کړیدی چې د مور پلار نافرماني کولو سره هغوې زړه ودردولی شي. جینکۍ ژوندې په |
| وَهَاتِ وَكَرِهَ لَكُمْ قِيلَ وَقَالَ |
| قبر کې خخې کړی شي او بخل او سوالګرې اختیار کړی شي، دغه شان قیل او قال، د پوښتنو |
| وَكَثْرَةَ السُّؤَالِ وَإِضَاعَةَ الْمَالِ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1] |
| ډیروالی او د مال ضائع کول یې ستاسو لپاره مکروه ګرځولي دي (بخاری او مسلم) |

**توضیح**: عقوق الامهات: عقوق نافرمانی ته ویل کیږي. او دامهات نه مراد مور پلار دی. لیکن د امهات ذکر ځکه وکړی شو چې د دوې حقوق ډیر دي. د حقوقو ډیروالي ته اشاره مقصود ده. منع وهات: د دې نه مراد بخل او کنجوسې ده. مطلب دا چې د نورو د حقوقو نه خو بیخې انکار وکړي او دنورو نه د داسې

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۰۵ رقم الحديث ۵۹۷۵، ومسلم في ۳/۱۳۴ رقم الحديث (۵۹۳-۱۲)

حقوقو غوښتنه وکړي چې دهغې ادا کول په هغوی باندې واجب ندي. خلاصه دا چې دا جائز حق نه ورکوي او ناجائزه حقه غوختلو پسې ګرځي.

**وقيل وقال:** يعنې داسې بحث او مباحثهاو داسې خبرو کې اخته دی چې په هغې کې نه د دين فائده شته دی او نه د دنيا هيڅ فائده شته دی. بې فائدې او فضول تېرکوي. د کار نه ډير ليرې پوښتنې او جوابونه يې شروع کړيدي. بې فائدې په دليلونو او حجت او تکرار کې خپل قيمتې وخت ضائع کوي. مثلًا د منطق په اوږدو بحثونو کې بې مقصده اينختې دی. او ددې شعر مصداق جوړيږي. (مرقات: ۸/۶۵۲)

ولم نستفد من بحثنا طول عمرنا سوا ان جمعنا قيل وقالوا

يعنې ټول ژوندې مونږ په دې خپل اوږدو بحثونو کې د قيل او قال نه سوا هيڅ هم ترلاسه نکړل.
وكثرة سؤال: يعنې په کثرت سره سوال کول منع دي. د دې جملې يو مطلب دا دی چې دخلکو په احوالو کې او د هغوی مالونه او معاملاتو کې بې ځايه مداخله کوي. په هغوی کې جاسوسي او تجسس کوي. او ډير زياتې پوښتنې کوي. دا منع دي. چې په هغې سره د کرکې او دښمنۍ او د غيبت دروازه برسيرته کيږي. دويم مطلب يې دا دی چې د خپل علم او کمال لويې ثابتولو لپاره په نورو باندې دقيق او ژور اعتراضونه کوي. او د امتحان په توګه باندې دهغوی نه سخت امتحاني پوښتنې کوي. او بې فائدې مباحثه او مناظره اوعلمي پوښتنې کولو سره په خلکو باندې خپل عِلم رعب کينوي. دريم مطلب دا دی چې د دينه د صحابوُ جماعت مراد دی چې هغوی د نبی کريم ﷺ نه د ډيرو پوښتنو په اړه منع کړی شوي وُ. (مرقات: ۸/۶۵۲)

**اضاعة المال:** يعنې په مال کې فضول خرچې وکړي يا بدانتظامې وکړي. چيرته چې شريعت حکم کړيدی هلته يې خرچ نکړي او چيرته چې يې منع کړيده هلته يې خرچ کوي، خپلوان د ولګې نه مړه کيږي او دا خپله عاليشان کورونه جوړوي او عيش کوي او په هر قِسم ډول سنګار کې پيسه ضائع کوي، دا ټول منع دي او د مال د ضائع کولو صورتونه دي. (مرقات: ۸/۶۵۳)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۶﴾وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مِنَ الْكَبَائِرِ | | | | | |
| او حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل: خپل مور پلار ته | | | | | |
| شَتْمُ | الرَّجُلِ | وَالِدَيْهِ». | قَالُوا: | يَا | رَسُولَ اللهِ |
| کنځل کول په غټو ګناهونو کې ده. صحابوُ (دې اوريدلو باندې) عرض وکړو چې يارسول الله ﷺ! | | | | | |
| وَهَلْ | يَشْتُمُ | الرَّجُلُ | وَالِدَيْهِ؟ | قَالَ: | «نَعَمْ |
| آيا څوک خپل مور پلار ته هم کنځل کوي؟ نبی عليه السلام وفرمايل: هو! (ولې نه) کله کله څوک يو جاهل انسان خپله مور پلار ته | | | | | |

| فَيَسُبُّ | الرَّجُلِ | أَبَا | يَسُبُّ |
|---|---|---|---|
| کنځل وکړي او داخو اکثر کيږي چې خلک خپل مور پلار ته خو په حقيقت کې کنځل نکوي. خو هغوي ته د کنځلو کولو سبب جوړيږي، | | | |
| أمه | | ويسبُّ | أَبَاهُ |
| (او هغه داسې چې) يو سړی د چا پلار ته کنځل وکړي نو هغه د ده پلار ته کنځل کوي، او که څوک | | | |
| (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] | أمه » | فيسب | |
| د چا مور ته کنځل وکړي نو هغه د ده مور ته کنځل کوي. (بخاری) | | | |

## پلار د دوستانو سره ښه خوي کوه

﴿۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ مِنْ أَبَرِّ
او حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل د ټولو نه په وچتو نيکو کې

الْبِرِّ صِلَةَ الرَّجُلِ أَهْلَ وُدِّ أَبِيهِ بَعْدَ أَن يولي » (رَوَاهُ مُسلم)[2]
يوه نيکي داده چې څوک د خپل پلار د مرګ نه وروسته يا د هغه په نشتون کې د هغه د دوستانو سره ښه سلوک کوي. (مسلم)

**توضيح**: بعد ان يولى : يعنې پلار وفات شو يا د کور نه غائب وُ . په دې صورت کې د پلار د دوستانو سره ښه خوي کول د پلار د صلې حق دی. او د دې تقاضا ده. په حديث کې د پلار ذکر دی، علماؤ ليکلي دي چې د مور د ملګرو سره ښه ښويې کول او احسان کول هم دغه حکم لري. د مور د صله هم دغه تقاضا ده چې دهغې د وفات نه وروسته دهغې د ملګرو خيال وساتلی شي. (مرقات: ۸/۶۵۴)

## صله رحمي پاللو باندې مال ډيريږي

﴿۸﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ أَحَبَّ
او حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل چې کوم سړی غواړي چې دهغه په

أَنْ يُبْسَطَ لَهُ فِي رِزْقِهِ وَيُنْسَأَ لَه
رزق کې دې فراختيا او وسعت او دهغه په مرګ کې دې وروسته والی راشي يعنې دهغه عمر دې فراخه شي

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱/۴۰۳ رقم الحديث ۵۹۷۳، ومسلم في ۱/۹۲ رقم الحديث (۹۰-۱۴۶)

(۲) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۹۷۹ رقم الحديث (۲۵۵-۱۳) وابوداود في السنن ۵/۳۵۳ رقم الحديث ۵۱۴۳.

| فِي أَثَرِه فَلْيَصِلْ رَحِمَه » (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
|---|
| نو هغه لره پکار دي چې هغه د خپلو خپلوانو سره حسن سلوک او احسان کوي. (بخاري او مسلم) |

**توضيح: في اثره**: يعني د هغه په مرګ کې دې تاخير وکړى شي ، اثر د قدم نشانونو ته ويل کيږي. سړى چې ترڅو پورې ژوندى وي د هغه د خپو قدمونه په زمکه باندې پريوځي. کله چې دا مړ شي ، دا نشانونه ختم شي. **اثره اى حياته**. (مرقات : ۸/۶۵۵)

**پوښتنه** : اوس پوښتنه دا ده چې د رزق او دغه شان د انسان د عمر تعلق د تقدير الهى سره دى، نو صله رحمې تقدير څنګه بدلولى شي؟ **جواب**: دا چې يو تقدير مبرم دى. دويم تقدير معلق دى. په دې دويم قسم کې خو تعلق وي که دې سړې صله رحمې قائمه وساتله او دا يې جوړه کړه نو د ده عمر به نوې کاله وي،ګنې اويا کاله به وي. دغه شان صله پاللو باندې الله تعالى د انسان په مال کې ډير والى کوي مثلا زړه نه غواړي خو د صله او خپلولۍ دوجې نه ورونو ،ترونو او تره ځامنو سره احسان کوي.ددې وجې نه د دې سړې مال ډيريږي. تجربه ګواه ده چې دغه شان کيږي،څوک دې په آزمينبت کولو سره وګوري ما ډير آزمينبت کړيدى، او هم دغه شان مې موندلي ده. (مرقات : ۸/۶۵۵)

## دصله رحمۍ روغې ساتلو اهميت

| ﴿۹﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " خَلَقَ الله الْخَلْقَ |
|---|
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايې چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: الله تعالى مخلوقات پيدا کړل. |
| فَلَمَّا فَرَغَ مِنْهُ قَامَتِ الرَّحِمُ فَأَخَذَتْ بِحَقْوَيِ الرَّحْمَنِ فَقَالَ: مَهْ؟ |
| کله چې د دېنه فارغه شو نو رحم يعنې خپلولې ودريدله او د پروردګار ملا (شاه) يې ونيوله. پروردګار |
| قَالَتْ: هَذَا مقَام العائذ بك من القطيعة. |
| وفرمايل: وايه څه غواړې؟ رحم عرض وکړو چې دا د غوڅيدلو ديرې نه ستا د پناه طلبګار د ودريدلو ځاى دى. |
| قَالَ: أَلا تَرْضَيْنَ أَنْ أَصِلَ مَنْ وَصَلَكِ |
| پروردګار وفرمايل: آيا ته په دې باندې راضي نه يې چې کوم سړى تا قائم او برقرار وساتي هغه به زه هم قائم او برقرار وساتم، |
| وَأَقْطَعَ مَنْ قَطَعَكِ؟ قَالَتْ: |
| او کوم سړى چې تا غوڅ کړي ، زه به هم (د خپل احسان او انعام د تعلق نه) هغه غوڅ کړم؟ رحم عرض وکړو چې |

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۱۵ رقم الحديث ۵۹۸۶،ومسلم في ۴/۱۹۸۲ رقم الحديث (۲۵۵۷-۲۱)

| بَلَى يَا رَبِّ قَالَ : فَذَاك " . (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
|---|
| پروردګاره! بیشکه زه په دې باندې راضي یم، پروردګار وفرمایل: نو ښه دا وعده ستا لپاره ثابته او برقراره ده. |

**توضیح**: حقوی رحمان: حقوی مَلا (شاه) ته وایې. په خاصه توګه نری ملا ته ویل کیږي. انسانانو د پوهولو لپاره دا لفظ ویلی شویدی، ګنې الله تعالی د جسم او تجسم نه مبراه او منزّه دی، او د انسانې تصور نه ماوراء الوراء دی.

اے برتر از قیاس وگمان ووہم — زہر چہ گفتہ اند وشنیدم وخواندیم
دفتر تمام گشت وبپایان رسید عمر — ماہم چنیں در اول وصف تو ماندیم
(مرقات: ۸/۶۵۵)

دا کلام د متشابهاتو نه دی. سلف صالحین دد دې ترجمه په کما یلیق بشانه سره کوي او هم دا راجح ده. د کوم تاویل ضرورت نشته دی. د حدیث مطلب دا دی چې خپلولې چې کله الله تعالی خوښه کړه نو دا ودریدله او الله تعالی یې د مَلا نه ونیولو، مَهْ: یعنې داسې مکوه، وایه، څه وایې، غواړه څه غواړې؟

من القطیعة: یعنې د صلې د ماتولو نه د بچ کیدلو لپاره دا مقام د پناګاه په توګه دی. د دې د یرې نه چې څوک هم پناه غواړي نو دې مقام ته په راتلو سره به پناه ترلاسه کوي.

| ﴿۱۰﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " الرَّحِمُ شِجْنَةٌ مِنَ الرَّحْمَنِ | | |
|---|---|---|
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایې چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل رحم (لفظ) د رحمن (د لفظ) نه وتلی دی. | | |
| فَقَالَ | الله: مَنْ | وَصَلَكِ |
| نو الله تعالی رحم (یعنې خپلولۍ ته) وفرمایل چې کوم سړی تا روغه ساتي یعنې ستا د حق ساتي زه به هم هغه (د خپل رحم سره) | | |
| وَصَلْتُهُ | وَمَنْ | قَطَعَكِ |
| یو ځای ساتم او کوم سړی چې تا ماتوي یعنې ستا د حق لحاظ نکوي زه به هم هغه ماتوم، یعنې داسې سړی به د خپل | | |
| قَطَعْتُهُ " (رَوَاهُ الْبُخَارِيّ)[2] | | |
| رحمت نه محروم ساتم. (بخاری) | | |

---

([1]) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۱۷ رقم الحديث ۵۹۸۷ ومسلم في ۴/۱۹۸۰ رقم الحديث (۲۵۵۴-۱۶)

([2]) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۱۷ رقم الحديث ۵۹۸۸، والترمذي في ۴/۲۸۵ رقم الحديث ۱۹۲۴.

**توضيح: شجنة:** د غرفة په شان په فا کلمه باندې درې واړه حرکتونه جائز دي. جيم ساکن دی، نون باندې فتحه ده. شجنة: دا د ښاخ او تار په معنې راځي، مطلب دا دی چې رحم د رحمان ښاخ دی، د دينه هم مشتق دی. او د دې تار هم دی. د دې حديث نه معلومېږي چې د نوم د ګډون اثر هم کيږي، او د دې اعتبار هم دی. دلته رحمان او رحم ماده مشترکه ده. (مرقات: ۸/۶۵۸)

﴿۱۱﴾وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " الرَّحِمُ مُعَلَّقَةٌ بِالْعَرْشِ

او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل رحم يعنې خپلولي د عرش سره زوړنده ده او

تَقُولُ: مَنْ وَصَلَنِي وَصَلَهُ اللهُ وَمَنْ قَطَعَنِي

وايي چې کوم سړی ما يو ځای کوي، الله تعالی په هغه سړی يو ځای کوي او څوک چې ما ماتوي

قَطَعَهُ اللهُ " (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1]

الله تعالی به هغه ماتوي. (بخاري او مسلم)

**توضيح: معلقة بالعرش:** يعنې د عرش د ستنې سره خپلولې زوړنده ده، دې خپلولۍ د عرش ستنه نيولې ده او دا اعلان کوي چې چا زه يو ځای کړم رحمان به هغه يو ځای کړي او چا چې زه ماته کړم رحمان به هغه مات کړي. (مرقات: ۸/۶۵۸)

﴿۱۲﴾وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا يَدْخُلُ

او حضرت جبير ابن مطعم رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: رحم ماتونکی به

الْجَنَّةَ قَاطِعٌ» (مُتَّفِقٌ عَلَيْهِ)[2]

جنت ته نه داخلېږي. (بخاري و مسلم)

**توضيح: قاطع:** کوم سړی چې صله رحمې ماتول جائز ګڼي. دې سړې حرامو ته حلال وويله، ځکه کافر شو. لهذا جنت ته به نه ځي. بلکې هميشه به په دوزخ کې وي. يا د دخول نه مراد خول اَوّل دی. چې په ابتداء کې به جنت ته ځي، سزا خوړلو نه وروسته به ځي. (مرقات: ۸/۶۵۹)

﴿۱۳﴾وَعَنِ ابْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: «لَيْسَ الوَاصِلُ

او حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل (کامل) صله رحمې کونکی

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۱۷ رقم الحديث ۵۹۸۹، ومسلم في ۴/۱۹۸۱ رقم الحديث (۲۵۵۵-۱۷)

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۱۵ رقم الحديث ۵۹۸۴، ومسلم في ۴/۱۹۸۱ رقم الحديث (۲۵۵۶-۱۸)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بالمكافىء | وَلَكِنَّ | الْوَاصِلَ | الَّذِي | إِذَا | قُطِعَتْ |

هغه سړی نه دی چې هغه بدله ورکړي، بلکې کامل صله رحمي والا هغه دی چې کله د هغه خپلولي

رَحِمُهُ وَصَلَهَا» (رَوَاهُ الْبُخَارِيّ)[1]

ماته کړی شي نو هغه د هغه خپلولي جوړه وساتي. (بخاری)

﴿۱۴﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَجُلًا قَالَ: يَا رَسُولَ الله إِنَّ لِي قَرَابَةً

او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو سړی عرض وکړو: يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! زما څه خپلوان داسې دي

أصلهم ويقطعوني وأحسن إليهم

چې زه خو د هغوی سره نیک ښويې کوم، لیکن هغوی زما سره نیک ښويې نکوي، زه د هغوی سره احسان کوم،

ويسيؤون إليّ وأحلم عليهم

او هغوی زما سره بدي کوي. زه د هغوی سره د صبر او برداشت او د معافی ښويې خپلوم، او هغوی زما سره په

وَيَجْهَلُونَ عَلَيَّ. فَقَالَ:

جهالت سره مخ کيږي. يعنې ماته رد بدُ وايي. او ما باندې د غصې اظهار کوي. (دې خبرو اوريدلو باندې) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل

«لَئِنْ كُنْتَ كَمَا قُلْتَ فَكَأَنَّمَا تُسِفُّهُمُ الْمَلَّ

که ته د غه شان يې څنګه چې تا بيان کړه نو ګويا ته په هغوی باندې توده (ګرمه) ايره شيندې او ستا سره هميشه

وَلَا يَزَالُ مَعَكَ مِنَ الله ظَهِيرٌ عَلَيْهِمْ

هميشه د الله تعالى د اړخ نه مدد او نصرت دی. چې هغه د وی د تکليف درکولو او د هغوی د شر نه ستا ساتونکې ده.

مَا دُمْتَ عَلَى ذَلِكَ» (رَوَاهُ مُسْلِم)[2]

ترڅو چې ته په دې خپل صفت باندې ولاړ يې. (مسلم)

**توضيح**: تسفهم الملّ: الملّ: تودې ايرې ته وايي. او تسف د باب افعال نه دی، خله کې ايره اچول او شيندل مراد دي. يعنې که واقعي د غه شان وي نو بيا ستا دا احسان د هغوی په خله کې توده ايره ده، کومه چې ته وراچوي، ځکه چې هغه خلک نه ستا د احسان بدله درکوي، نه تذکره کوي او نه دا شکر ادا کوي، بلکې بيرته تنګول کوي، ګويا تا د غه خلک داسې ذليله کړيدي چې د هغوی په خله کې دې ايره واچوله. (مرقات: ۸/۶۶۰)

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۲۳ رقم الحديث ۵۹۹۱، وابوداود في السنن ۲/۳۲۳ رقم الحديث ۱۶۹۷.

(۲) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۹۸۲ رقم الحديث (۲۵۵۸-۲۲) واحمد في المسند ۲/۳۰۰

## الفصل الثاني

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾عَنْ ثَوْبَانَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا يَرُدُّ الْقَدَرَ إِلَّا الدُّعَاءُ |
| حضرت ثوبان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د دعاء نه بغير تقدير الهي هيڅ شی نشي بدلولی |
| وَلَا يَزِيدُ فِي الْعُمُرِ إِلَّا الْبِرُّ |
| او عمر لره فراخه کونکی هيڅ شی نشي بدلولی او د عمر فراخه کونکی هيڅ نشته دی د مور پلار او خپلوانو سره د |
| وَإِنَّ الرَّجُلَ لَيُحْرَمُ الرِّزْقَ |
| ښه ښويې کولو نه علاوه او (ياد ساتئ) انسان چې په کوم سبب سره د رزق نه محرومولی شي هغه |
| بِالذَّنْبِ يُصِيبُهُ» (رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ)[1] |
| فقط ګناه ده کومه چې هغه کوي. (ابن ماجه) |

**توضيح**: القدر : د دېنه هم هغه تقدير معلق مراد دی. چې د هغې اټل فيصله نده بلکې مشروطه ده. د دينه قضا مبرم مراد نده ځکه چې د هغې مخکې وروسته کيدل ناممکنه دي. ليحرم الرزق بالذنب

**پوښتنه** : ډير کافر مالداره په عيش عشرت کې وي. هغوې ګناه خو څه په کفر او شرک کې پراته وی. نو د دې حديث د خارج د واقع حقائقو سره تعارض دی. نو د دې جواب څه دی؟

**جواب**: د دې جواب دا دی چې د رزق نه د محرومه کيدلو د کومې سزا ذکر چې په دې حديث کې شويدی ، دا د مسلمان په حق کې ده. چې هغه ذ دوې لپاره امتحان دی. د کافرو په اړه دا حديث ندی.

**دويم جامع جواب**: دا دی چې يو رزق دی او بل د رزق ثمره او نتيجه ده. اصل مقصود رزق ندی بلکې د هغې ثمره او نتيجه مقصود وي. د رزق ثمره اطمينان او راحت او خوشحالي وي. کافر اګر چې په ظاهره باندې ښه مالداره وي ليکن هغوې ته د مال نتيجه کوم چې اطمينان او سکون او راحت او خوشحالي ده، هغه نه ترلاسه کيږي، بلکې خپله هم دغه مال د هغوې لپاره وبال جان وي. او هغه په ژوند کې د دغې مال د وجې نه په سخت عذاب کې اخته وي. نو په حقيقت کې هغه د معصيت د وجې نه د رزق د اصل فائدې نه محرومه شول، دا جواب کافرو، شريانو او فاسقانو فاجرانو ټولو ته شامل دی. (مرقات : ۸/۶۶۱)

## د مور پلار د خدمت کولو فضيلت

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " دَخَلْتُ الْجَنَّةَ |
| او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: زه جنت ته لاړم نو ما هلته د |

[1] اخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۳۳۴ رقم الحديث ۴۰۲۲، واحمد في المسند ۵/۲۷۷.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| سَمِعْتُ | فِيهَا | قِرَاءَةً | فَقُلْتُ: | مَنْ | هَذَا؟ قَالُوا: |

قرآن د اورېدلو آواز واورېدلو ما (د فرښتو نه) پوښتنه وکړه چې دا څوک دی. نو فرښتو وويل چې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| حَارِثَةُ | بْنُ | النُّعْمَانِ | كَذَلِكُمُ | الْبِرُّ |

دا حارثه بن نعمان دی. هم دا هغه فضيلت او ثواب دی چې هغه د مور پلار سره په نيکۍ کولو باندې ترلاسه کيږي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| كَذَلِكُمُ | الْبِرُّ | «وَكَانَ | أَبَرَّ |

هم دا هغه فضيليت او ثواب دی چې د مور پلار سره په نيکۍ کولو باندې ترلاسه کيږي، هم دا هغه فضيلت او ثواب دی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| النَّاسِ | بِأُمِّهِ» | (رَوَاهُ | فِي | شَرْحِ | السُّنَّةِ |

چې د مور پلار سره په نيکۍ کولو باندې ترلاسه کيږي. او حارثه بن نعمان د خپل مور سره ډير ښه ښويې کونکي ؤ.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| «وَالْبَيْهَقِيُّ | فِي» شعب | الْإِيمَانِ | وَفِي | رِوَايَةٍ: |

دا روايت بغوي په شرح السنة کې او بيهقي په شعب الايمان کې نقل کړيدی. او د بيهقي په يو روايت کې داسې دي چې

قَالَ : « نِمْتُ فرأيتني فِي الْجَنَّةِ » بدل « دخلت الْجَنَّةَ » )[1]

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ (زه جنت ته لاړم په ځاې باندې) وفرمايل: چې زه اوده شوی وم، نو په دې حالت کې ګورم چې زه جنت کې يم.

## د الله تعالى د مور پلار د رضا سره تړلي ده

﴿۱۷﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «رِضَى الرَّبِّ

او حضرت عبد الله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د الله رضامندي او خوشحالي

فِي رضى الْوَالِدِ وَسُخْطُ الرَّبِّ فِي سُخْطِ الْوَالِدِ» ( رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ )[2]

د مور پلار په رضامندۍ او خوشحالۍ کې ده. او د پروردګار خفګان د مور پلار په خفګان کې دی. (ترمذي)

**توضيح**: سخط الرب : په کشرانو باندې د مشرانو غصې لپاره د سخط لفظ استعماليږي. په دې حديث کې عجيبه فصاحت او د مور پلار د مقام عجيبه وچتوالې او عظمت ته اشاره ده. هغه داسې چې د مور پلار د خفګان سره د الله تعالى خفګان تړلی شوی دی. دا يې ونه ويله چې د مور پلار په خفګان سره الله تعالى خفه کيږي. بلکې دا يې وفرمايل چې مور پلار خفه شي نو الله تعالى خفه دی: يعنې که د کوم ځوې نه د هغه مور او پلار ناراضه او خفه وي نو الله تعالى به هم ناراضه او خفه وي.

---

(1) اخرجه البغوي في شرح السنة ۱۳/۷ رقم الحديث ۳۴۱۸، واحمد في المسند ۶/۱۵۱ رقم الحديث ۶/۱۵۱.

(2) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۲۷۴ رقم الحديث ۱۸۹۹.

دلته د پلار ذکر دی خو مور هم مراد ده، د دواړو حکم يو شان دی. او که د پلار نه مَنْ لَّهُ الْوَلَدُ مراد واخستلی شي نو بيا په دې لفظ کې پلار او مور دواړه به مقصود شي.

## د مور پلار حکم د ښځې په مينه باندې مقدم دی

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾وَعَن أَبِي الدَّرْدَاءِ أَنَّ رَجُلًا أَتَاهُ فَقَالَ: |
| او حضرت ابو درداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې يو سړی د هغه په خدمت کې حاضر شو او عرض يې وکړو |
| إِنَّ لِي امْرَأَةً وَإِن لِي أُمِّي تَأْمُرُنِي بِطَلَاقِهَا؟ |
| چې زه د يوې ښځې خاوند يم او زما مور غواړي چې زه خپلې ښځې ته طلاق ورکړم. |
| فَقَالَ لَهُ أَبُو الدَّرْدَاءِ:سَمِعْتُ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الْوَالِدُ أَوْسَطُ أَبْوَابِ |
| حضرت ابو درداء هغه ته وويل چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دي چې پلار د جنت د غوره |
| الْجَنَّةِ فَإِنْ شِئْتَ فَحَافِظْ عَلَى الْبَابِ أَوْ ضَيِّعْ» ( رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه) [1] |
| دروازو نه دی، نو تا ته اختيار دی چې د دغه دروازې ساتنه وکړې او که غواړې ضائع يې کړه. (رواه الترمذی وابن ماجة) |

**توضيح: بطلاقها:** که په ښځه کې شرعي قباحت هم وي او د مور پلار حکم هم وي چې طلاق ورکړه نو په ځوې باندې واجب دي چې طلاق ورکړي. خو که په ښځه کې شرعي قباحت نوي او د مور پلار حکم وي چې طلاق ورکړه نو بيا به طلاق ورکول مستحب وي ، واجب به نوي، راتلونکی حديث نمبر ۳۰ هم دا مسئله راروانه ده. (مرقات: ۸/۶۶۷،۶۶۹)

**الوالد:** حضرت ابو درداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې هغه سړی ته کوم جواب ورکړو په هغې کې د والد نه مراد مَنْ لَّهُ الْوَلَدُ مراد اخستلی دی. چې په هغې کې مور او پلار دواړه شريک دي. حضرت ابو درداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم دا فيصله وکړه چې جنت د مور پلار په قدمونو کې دی. او دا د جنت مرکزې دروازې دي. که د هغوې حکم ومنلی شي نو دروازه به برسيره ته شي، گنې دروازه به بنده وي. (مرقات: ۸/۶۶۹)

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ: |
| او حضرت بهز ام ابن حکيم د خپل پلار نه او هغه د بهز د نيکه (حضرت معاويه ابن صده) نه نقل کوي |
| قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ مَنْ أَبَرُّ؟ |
| هغه وائی. چې ما عرض وکړو يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! زه د چا سره نيکې او (ښه ښويې) وکړم. |

[1] اخرجه اخرجه الترمذي في السنن ۴/۲۷۵ رقم الحديث ۱۹۰۰،وابن ماجه في ۲/۱۲۹۸ .

قَالَ: «أُمَّكَ» قُلْتُ: ثُمَّ مَنْ؟ قَالَ:

نبی اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: د خپلې مور سره. ما عرض وکړو چې بیا د چا سره؟ نبی اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل:

«أُمَّكَ» قُلْتُ: ثُمَّ مَنْ؟ قَالَ: «أُمَّكَ»

د خپلې مور سره. ما عرض وکړو چې بیا د چا سره؟ نبی اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: د خپلې مور سره. ما عرض وکړو

قُلْتُ: ثُمَّ مَنْ؟ قَالَ: «أَبَاكَ ثُمَّ

چې بیا د چا سره. نبی اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: د خپل پلار سره او بیا د هغه سره چې هغه (د مور پلار نه وروسته)

الْأَقْرَبَ فَالْأَقْرَبَ » (رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَ أَبُو دَاوُد)[1]

تاته نژدې خپلوان وي او بیا د هغه چا سره چې د هغوي نه وروسته دیر نژدې خپلوان وي. (ترمذی، ابوداؤد)

## صله ساتونکې او ماتونکې حکم

﴿۲۰﴾وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسلم يَقُول: "

او حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوریدلي دي

قَالَ الله تبارك: أَنَا الله وَأَنَا الرَّحْمَنُ خَلَقْتُ الرَّحِمَ

الله جل شانه ارشاد فرمایي چې زه الله یم، زه رحمن یم، ما رحم یعنې خپلولی پیدا کړیدي. او ما د دې د

وَشَقَقْتُ لَهَا مِنِ اسْمِي فَمَنْ وَصَلَهَا

نوم لفظ د خپل نوم یعنې د رحمن لفظ ایستلی دی. لهذا کوم سړی چې رحم یو ځای کوي نو زه به هم هغه (د خپل رحمت سره)

وَصَلْتُهُ وَ مَنْ قطعهَا بتته "(رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[2]

یو ځای کړم، او کوم سړی چې رحم ماتوي یعنې د خپلولی حقوق نه ادا کوي، زه به هم هغه (د خپل خاص رحمت نه) جدا کړم.

﴿۲۱﴾ وَعَنْ عَبْدُالله بْنِ أَبِي أَوْفَى قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ:

او حضرت عبدالله بن ابی اوفی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوریدلي دي

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۳۵۱ رقم الحديث ۵۱۳۹.والترمذي في السنن ۴/۲۷۳ رقم الحديث ۱۸۹۷.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۳۲۲ رقم الحديث ۱۶۹۴،والترمذي في ۴/۲۷۸ رقم الحديث ۱۹۰۷.

«لَا تَنْزِلُ الرَّحْمَةُ عَلَى قَوْمٍ فِيهِمْ قَاطِعُ الرَّحِمِ» (رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ»)[1]

چې په هغه قوم باندې رحمت نه نازليږي چې په هغې کې خپلولۍ ماتونکی وي. (بيهقی)

**توضيح**: لاتنزل الرحمة: يعنې خپلولۍ ماتولو او صله ماتولو باندې د الله تعالی د اړخ نه آسمانې رحمت بند شي. ممکنه ده چې د دې رحمت نه مراد عام رحمت مراد وي يا خاص رحمت مراد وي. او ظاهره ده چې کله چې د رحمت راتلل بند شي، نو د عذاب راتلل به شروع شي. لهذا په داسې قوم باندې اجتماعي عذاب راتللی شي په کوم کې چې خپلولۍ ماتونکی شتون لري. او ټول قوم د صله ماتولو په جرم باندې چپ وي. او هغه نه منع کوي. بلکې د هغه حمايت هم کوي. شارحينو ليکلي دي چې د قوم نه مراد فقط هغه خلک دي چې هغوی د صله ماتونکې سره ملاتړ کوي او هغه نه منع کوي، ټول قوم مراد ندی، نن سبا چې په کومو سرحدې علاقو کې په دې کلونو کې تباه کونکې زلزلې راغلي دي، د خپلولی ماتولو گناه دلته ډيره عامه وه. (مرقات: ۸/۶۶۶)

## باغی او صله ماتونکي لپاره به دنيا او آخرت کې عذاب وي

﴿۲۲﴾ وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا مِنْ ذَنْبٍ أَحْرَى

او حضرت ابوبکره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: هيڅ گناه د دې خبرې نه ډيره لائقه نده

أَنْ يُعَجِّلَ اللهُ لِصَاحِبِهِ الْعُقُوبَةَ فِي الدُّنْيَا مَعَ مَا يَدَّخِرُ لَهُ

چې الله تعالی د دې کونکې ته په دنيا کې هم سزا ورکړي او په آخرت کې د ورکولو لپاره (هغه ته

فِي الْآخِرَةِ مِنَ الْبَغْيِ

سزا) جمع کړی شوي کيږدي. هو! دوه گناهونه د دې نه ډير لائق دي. يو خو د امام وخت په خلاف بغاوت کول

وَقَطِيعَةِ الرَّحِمِ» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد)[2]

او دويم خپلولۍ ماتول. (ترمذی او ابوداؤد)

**توضيح**: يدخر له: يعنې د آخرت عذاب به هم وي. د هغې ذخيره به هم جمع وي او د نيا عذاب به هم د وړانديز په توگه باندې وي. دا دوچنده عذاب به د دوه قِسمه بدبختانو لپاره وي. يو قِسم هغه خلک دي چې هغه د امام برحق او د اسلامي خلافت مشر په خلاف بغاوت وکړي. او دويم قِسم هغه خلک دي چې هغوی د صله ماتولو جرم وکړي. دا دواړه دومره پليت گناهونه دي چې په دې سره ټوله معاشره تباه کيدلو

---

(۱) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۲۲۳ رقم الحديث ۷۹۶۲.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۲۰۸ رقم الحديث ۴۹۰۲،والترمذي في ۴/۵۷۳ رقم الحديث ۲۵۱۱.

سره د اسلام جرړي خوزیږي. نو ځکه په خاصه توګه باندې د دې ذکر وکړی شو. (مرقات: ۸/۶۶۶)

## درې قسمه خلک به جنت ته نه داخلیږي

﴿۲۳﴾ وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مَنَّانٌ وَلَا عَاقٌّ وَلَا مُدْمِنُ خمر» (رَوَاهُ النَّسَائِيُّ والدارمي)[1]

او حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: جنت ته خو به نه هغه سړی داخلیږي چې څوک د چا سره ښیګړه کولو باندې په هغه احسان ضباطي. نه هغه سړی چې هغه د مور پلار نافرماني وکړي او نه هغه سړی چې هغه شراب څکي. (او بغیر د توبې نه مړ شي)(نسائی او دارمی)

**توضیح: منّان**: منان هغه سړي ته ویل کیږي چې څوک د چا سره احسان کولو باندې بیا وربانذې ضباطنه کوي. او هغه مسلسل تنکوي. **ولا عاق**: عاق هغه سړي ته ویل کیږي څوک چې د خپل مور پلار نافرمانه وي، او بغیر د څه وجې نه یې تنکوي یا د خپلو خپلوانو سره د غه شان معامله کوي.

مدمن خمر: دا هغه سړي ته ویل کیږي چې هغه مسلسل شراب څکنه کوي، که دغه خلکو دا حرام شیان حلال ګڼلي وي نو کافر شول، نو جنت ته به نه ځي. یا د دخول جنت نه دخول اولی مراد دی. نو د سزا خوړولو نه وروسته به جنت ته ننوځي. یا دا حکم تشدیدًا تغلیظًا دی. (مرقات: ۸/۶۶۷)

## صله جوړولو باندې مال او عمر کې برکت راځي

﴿۲۴﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «تَعَلَّمُوا مِنْ أَنْسَابِكُمْ مَا تَصِلُونَ بِهِ أَرْحَامَكُمْ فَإِنَّ صِلَةَ الرَّحِمِ مَحَبَّةٌ فِي الْأَهْلِ مَثْرَاةٌ فِي الْمَالِ مَنْسَأَةٌ فِي الْأَثَرِ» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيب)[2]

او حضرت ابوهریره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: تاسو د خپلو نسبونو نه دومره زده کړی چې په هغې سره تاسو د خپلو خپلوانو سره نیک ښویې کول زده کړی، ځکه چې د خپلوانو سره نیک ښویې کول، په خپلوانو کې خپل مینځې مینې او محبت سبب، په مال کې ډیروالې او برکت ذریعه او د عمر د فراخوالي سبب جوړیږي. ترمذی دا روایت نقل کړیدی او ویلي یې دي چې دا حدیث غریب دی.

---

[1] اخرجه النسائي في السنن ۸/۳۱۸ رقم الحديث ۵۶۷۲، والدارمي في ۲/۱۵۳ رقم الحديث ۲۰۹۴.

[2] اخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۰۹ رقم الحديث ۱۹۷۹، واحمد في المسند ۲/۳۷۴

**توضیح**: محبة: د صله په جوړولو کې خپل مینځې مینه ډیریږي. دا خو مجربه او کتلی شوی عمل دی. مثراة: دا دثروة نه دی. د مال ډیروالې ته یې وایې. مطلب دا دی چې کوم سړی په خپله صله کې احسان کوي او صله جوړوي، هغوي خوشحاله ساتي، په دې سره مال کې ډیروالی کیږي. **منسأة في الاثر**: منسأة نسا او نسیان نه دی. چې دا د تاخیر (وروستوالې) په معنی دی. او د الاثر نه مراد نیټه او د مرګ وخت دی. مطلب دا دی چې په صله جوړولو سره عمر اوږدیږي. مخکې تفصیل ذکر شوی دی. (مرقات: ۸/۶۶۸)

## صله جوړولو باندې ګناه معاف کیږي

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عمر أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: |
| او حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه روایت دی چې یو سړی د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضر شو او وې ویل چې |
| يَا رَسُولَ الله إِنِّي أَصَبْتُ ذَنْبًا عَظِيمًا |
| یارسول الله صلی الله علیه وسلم! زما نه یو لویه ګناه وشوه. زما د توبې لپاره څه شی دی؟ یعنې کوم داسې عمل راته وښایه |
| فَهَلْ لِي مِنْ تَوْبَةٍ؟ |
| چې د هغې په خپلولو سره زه د خدای رحمت خپل ځان ته متوجې کړی شم. او خپله هغه ګناه معاف کړی شم! |
| قَالَ: «هَلْ لَكَ مِنْ أُمٍّ؟» قَالَ: لَا. قَالَ: |
| نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: آیا ستا مور شته دی. هغه وویل چې نا. نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: نو |
| «وَهَلْ لَكَ مِنْ خَالَةٍ؟» قَالَ: نَعَمْ. قَالَ: «فبرها» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ) [1] |
| آیا ستا خاله (د مور خور) شته دی؟ هغه وویل چې هو! نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ته د هغې سره نیک ښویې کوه |

**توضیح**: **ذنبًا عظیماً**: نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د هغه سړي نه پوښتنه وکړه چې آیا ستا مور شته دی؟ هغه وویل: نا. پوښتنه یې وکړه: ترور دې شته دی؟ هغه وویل: هو! ترور شته دی. نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې ته د هغې سره نیک ښویې کوه. ستا ګناه به معاف شي. د دې حدیث نه معلومه شوه چې صله جوړولو او د صلې خدمت کولو سره کبیره ګناه هم معاف کیږي. ځکه چې د صله والا هم د ده لپاره د مغفرت دعاء غواړي. او دا سړی خپله هم د مغفرت په غرض سره د هغې خدمت کوي. نو کبیره ګناه معاف کیږي. یا ممکنه ده چې د یرې د وجې نه دغه سړي دا ګناه کبیره ګڼلي وي او په حقیقت کې هغه کبیره نه وه. نو په صله سره صغیره ګناه معاف شوه یا کیدلی شي دا حدیث د هغه سړي د معاملې سره خاص وي او د ټولو مسلمانانو لپاره عام نه وي. لهٰذا د هغه سړي لویه ګناه د صله د خدمت د وجې نه معاف شوه. دا د هغه خصوصیت ؤ، د هر سړي کبیره ګناه به نه معاف کیږي. فبرها: دا د امر صیغه ده. یعنې د هغې سره نیک ښویې کوه. احسان او انعام کوه. (مرقات: ۸/۶۶۸)

---

[1] أخرجه الترمذي في السنن ۴/۲۷۶ رقم الحديث ۱۹۰۴، واحمد في المسند ۲/۱۴

## مور پلار د وفات نه وروسته د هغوی سره د احسان صورتونه

﴿۲۶﴾وَعَنْ أَبِي أُسيد السَّاعِدِيِّ قَالَ: بَيْنَا نَحْنُ عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت ابو اسید ساعدی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې (يوه ورځ) مونږ خلک د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ناست وُ

إِذْ جَاءَ رَجُلٌ مِنْ بَنِي سَلَمَةَ

چې ناڅاپه يو سړی د نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ په خدمت کې حاضر شو چې هغه (د انصارو په قبیلو کې یوه قبیله) بنو سلمه سره تعلق لرلو

فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ هَلْ بَقِيَ مِن بِرِّ أَبَوَيَّ شَيْءٌ

هغه سړې عرض وکړو چې یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! آیا زما د مور پلار سره د نیکۍ څه برخه وس هم پاتې ده.

أَبَرُّهُمَا بِهِ بَعْدَ مَوْتِهِمَا؟

چې هغه زه د هغوي د وفات نه وروسته پوره کړم؟ یعنې ما بعد مور پلار سره د هغوی په ژوند کې نیکي کوله وس هغوي مړه شوي دي.

قَالَ: «نَعَمْ الصَّلَاةُ عَلَيْهِمَا

نو آيا د هغوې د وفات نه وروسته هم د هغوي په حق کې د نیک ښويي کولو څه صورت شته دی؟ نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل: هو!

وَالِاسْتِغْفَارُ لَهُمَا وَإِنْفَاذُ عَهْدِهِمَا مِنْ بَعْدِهِمَا

د هغوي لپاره دعا کوه، د هغوي لپاره استغفار کوه، د هغوي د مرګ نه وروسته د هغوي وصيت پورا کوه، د هغوې د

وَصِلَةُ الرَّحِمِ الَّتِي لَا تُوصَلُ إِلَّا بِهِمَا

خپلوانو سره نیک ښويي کوه، د چا سره چې نیک ښويي کول فقط د هغوي (مور پلار) په سبب دی.

وَإِكْرَامُ صَدِيقِهِمَا» (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ)[1]

او د مور پلار د دوستانو عزت کوه. (ابوداؤد وابن ماجة)

**توضیح**: **بینا**: یعنې په د غه وخت کې کله چې مونږ د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره په مجلس کې ناست وُ چې ناڅاپه يو سړی راغلی او هغه پوښتنه وکړه چې مور پلار د مرګ نه وروسته د هغوي سره د نیکۍ څه صورت کیدلی شي چې هغه زه اختیار کړم؟ نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: **الصلوٰة عليهما**: یعنې د هغوې لپاره دعاء کول چې په هغې کې په هغوې باندې د جنازې لمونځ کول داخل دي. دا يو صورت دی.

**وانفاذ عهدهما**: یعنې که هغوې د چا سره کومه وعده کړې وي او د پورا کولو نه مخکې مړه شوي وي، هغه وعده

---

(۱) اخرجه أبوداود في السنن ۵/۳۵۲ رقم الحديث ۵۱۴۲، وابن ماجه في ۲/۱۲۰۸ رقم الحديث ۳۱۱۴.

پوره کول. دهغوی سره د احسان دویم صورت دا دی. وصلة الرحم: یعنې د هغه خپلولۍ خیال ساتل چې هغه فقط د مور پلار په وجه باندې قائمیدلی شي، دې لپاره چې هغوی خوشحاله شي. مور پلار د خپلولۍ نه غیره دهغوی سره نور څه تعلق نه وي. دا د احسان کولو دریم صورت دی. وا کرام صدیقهما: یعنې د مور پلار د دوستانو او دهغوی د تعلق والاؤ اکرام او احترام کول، دا د احسان څلورم صورت دی. د دې څلورو واړو صورتونو په ذریعه سره سړی د خپل مړه شوي مور پلار سره د نیک ښوېې معامله کولی شي. (مرقات: ۸/۶۶۹)

## د نبی اکرم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ د خپلې رضاعې مور سره نیک ښوېې

| |
|---|
| ﴿۲۷﴾ وَعَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ قَالَ: رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْسِمُ لَحْمًا بِالْجِعْرَانَةِ |
| او حضرت ابو طفیل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایې چې په جعرانه کې ما ولیدل چې رسول الله صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ غوښه تقسیموي |
| إِذْ أَقْبَلَتِ امْرَأَةٌ حَتَّى دَنَتْ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| چې ناڅاپه یوه ښځه راغله. کله چې هغه د نبی کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ خواته راورسیدله نو |
| فَبَسَطَ لَهَا رِدَاءَهُ فَجَلَسَتْ عَلَيْهِ. فَقُلْتُ: |
| نبی اکرم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ د هغې لپاره خپل څادر خپور کړو. او هغه په هغې باندې کیناستله ما پوښتنه |
| مَنْ هِيَ؟ فَقَالُوا: هِيَ أُمُّهُ |
| وکړه چې دا ښځه څوک ده؟ هغوی وویل چې دا د نبی کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ هغه مور ده چا چې |
| الَّتِي أَرْضَعَتْهُ (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1] |
| نبی کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ ته شیدې (پۍ) څکولې وې. (ابوداؤد) |

**توضیح** فجلست علیه: دجنګ حنین او اوطاس نه وروسته نبی کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ د غنیمتونو د تقسیم لپاره جعرانه کې قیام کولو. په دغه موقعه باندې د نبی کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ رضاعې مور حضرت حلیمه سعدیه راغله. نبی کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ خپل څادر هغې ته خپور کړو. چې په هغې باندې کیناستله. خلکو پوښتنه وکړه چې دا ښځه څوک ده؟ دچا چې نبی کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ احترام کوي. جواب ورکړې شو چې دا د نبی کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ رضاعې مور ده. چې د هغې نوم حلیمه وُ او سعد قبیلې سره یې د هغې تعلق وُ. (مرقات: ۸/۶۷۰)

---

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۵/۳۵۳ رقم الحدیث ۵۱۴۴.

# الفصل الثالث

## د حدیث الغار قصه

﴿۲۸﴾عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " بَيْنَمَا ثَلَاثَةُ نفر
حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بیان وکړو چې (یوځل) درې کسان

يماشون أَخَذَهُمُ الْمَطَرُ فَمَالُوا إِلَى غَارٍ
چیرته شریک روان ؤ. چې (په لاره کې) سخت باران شو. هغوي یې راګیر کړل. (د دې باران د بچ کیدلو لپاره) د

فِي الْجَبَلِ فَانْحَطَّتْ عَلَى فَمِ غَارِهِمْ صَخْرَةٌ مِنَ الْجَبَلِ
غر په یو غاره کې ننوتل. پدېکې د غر یو غټ کاڼی راوغورزیدلو باندې د دغه غار خله یې بنده کړه.

فَأَطْبَقَتْ عَلَيْهِمْ فَقَالَ - بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ:
او په هغه درې واړو باندې بیرون ته د راوتلو لاره بنده شوه. هغه درواړو خپل مینځ کې وویل چې وس

انْظُرُوا أَعْمَالًا عَمِلْتُمُوهَا لِلَّهِ صَالِحَةً
تاسو په خپل هغه اعمالو ته نظر وکړی چې هغه تاسو (د کومې دنیاوي ارزو او د ځان ښودنې د جذبې نه بغیر)

فَادْعُوا اللهَ بِهَا لَعَلَّهُ
فقط د الله تعالی د رضا او خوشحالۍ لپاره کړي وي. او د دغه اعمالو په وسیله سره د خدای نه دعاء وغواړی.

يُفَرِّجُهَا. فَقَالَ أَحَدُهُمْ: اللَّهُمَّ إِنَّهُ كَانَ
شاید الله تعالی ستاسو د خلاصون لاره برسیرته کړي! نو په هغوي کې یو ګس وویل: ای الله (ته ښه پوهیږې)

لِي وَالِدَانِ شَيْخَانِ كَبِيرَانِ وَلِي صِبْيَةٌ صِغَارٌ
زما مور پلار ډیر بوډاګان ؤ او زما یو څو واړه بچیان هم ؤ، او ما به بیزې څرولې. دې لپاره چې (د هغې د شیدو

كُنْتُ أَرْعَى عَلَيْهِمْ فَإِذَا رُحْتُ عَلَيْهِمْ فَحَلَبْتُ
په ذریعه) د هغوي ټولو انتظام وکړی شم. نو کله چې به ما ښام د کور خلکو ته بیرته راتلم او د بیزو نه به مې پې لوشلې نو د

بَدَأْتُ بِوَالِدَيَّ أَسْقِيهِمَا قَبْلَ وَلَدِي
خپل مور پلار نه به مې شروع کوله. او هغوي ته به مې د خپل اولاد نه مخکې پې ورکولې. یو ورځ داسې اتفاق وشو چې

وَإِنَّهُ قَدْ نَأَى بِي الشَّجَرُ فَمَا أَتَيْتُ حَتَّى أَمْسَيْتُ

(څر ځاي) بوتو زه تر لیرې پورې بوتلم. یعني د بیزو څرڅر کې ډیر لیرې ووتلم. تر دې چې مابنام شو. او زه

فَوَجَدْتُهُمَا قَدْ نَامَا

کور ته بیرته رانغلی شوم. (کله چې د شپې ناوخته کور ته راورسیدلم نو) مور پلار مې اوده ؤ، بیا ما د خپل

فَحَلَبْتُ كَمَا كُنْتُ أَحْلُبُ فَجِئْتُ بِالْحِلَابِ فَقُمْتُ عِنْدَ رُؤُوسِهِمَا

عادت مطابق پې ولوشلې. او د شیدو نه ډک لوخي سره د مور پلار خواته ورسیدلم، او د هغوې سر ته ودریدلم.

أَكْرَهُ أَنْ أُوقِظَهُمَا وَأَكْرَهُ أَنْ أَبْدَأَ بِالصِّبْيَةِ

ځکه چې ما دا نه خوښوله چې هغوې را ویښ کړم. او نه ماته دا خوښه وه چې د هغوې نه مخکې خپلو بچیانو

قَبْلَهُمَا وَالصِّبْيَةُ يَتَضَاغَوْنَ

باندې شیدې وڅکوم. او حال دا ؤ چې هغه بچیان زما په خپو کې د ولږې د لاسه په ژړا پراته ؤ. او هغوې

عِنْدَ قَدَمَيَّ فَلَمْ يَزَلْ ذَلِكَ دَأْبِي

تول په خپل حال قائم ؤ تر دې چې سحر شو، (یعني په دې حالت کې توله شپه ما د شیدو لوخی نیولی د هغوې سر ته ولاړ ؤم.

وَدَأْبُهُمْ حَتَّى طَلَعَ الْفَجْرُ فَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ

هغه دواړه اوده ؤ. او زما بچیان د ولږې د سختۍ نه بیقراره په ژړا ؤ او چیغې یې وهلې) نو اې خدایا که ته پوهیږې

أَنِّي فَعَلْتُ ذَلِكَ ابْتِغَاءَ وَجْهِكَ

چې ما دا کار فقط ستا د رضا او خوشحالۍ لپاره کړی دی نو (زه د دې خپل وسیله کولو باندې تا ته عاجزي کوم چې)

فَافْرُجْ لَنَا فُرْجَةً نَرَى مِنْهَا

ته زمونږ لپاره دا کاڼی دومره لیرې کړه چې د دې فراختیا په ذریعه سره مونږ آسمان ووینو. نو الله تعالی دا کاڼی دومره

السَّمَاءَ فَفَرَجَ اللهُ لَهُمْ حَتَّى يَرَوْنَا السماءَ قَالَ الثَّانِي: اللّٰهُمَّ إِنَّه كَانَ لِي بِنْتُ عَمٍّ

وخوزولو چې هغوې ته آسمان په نظر راغلو. دویم سړي دغه شان وویل چې اې الله! زما د تره یوه لور وه، هغه

أُحِبُّهَا كَأَشَدِّ مَا يُحِبُّ الرِّجَالُ النِّسَاءَ فَطَلَبْتُ إِلَيْهَا

مې دومره خوښه وه لکه څومره چې د یو سړي یوه ښځه خوښه وي. ما چې کله هغې نه د خپل ځان ماته د سپارلو خواهش

نَفْسَهَا فَأَبَتْ حَقِّي آتيها

ښکاره کړو نو هغې په دې ویلو سره زما د خواهش نه انکار وکړو چې تر څو پورې زه سل دیناره هغې

بِمِائَةِ دِينَار فلقيتها بِهَا

ته وړانديز ورنکړم، زما جنسي خواهش به نه پورا کيږي بيا هغه ديناره مې د ځان سره اخستي د هغې خواته ورسيدلم،

فَلَمَّا قَعَدْتُ بَيْنَ رِجْلَيْهَا. قَالَتْ: يَا عَبْدَ الله

کله چې زه (جنسي فعل لپاره) د هغې د دواړو ځپو ترمينځ کيناستلم نو هغې وويل چې د خدای بنده د

اتَّقِ اللهَ وَلَا تَفْتَحِ الْخَاتَمَ

الله نه ویره وکړه او زما د مهر امانت د ماتولو نه منع شه (یعنې هغې ماته د خدای یره را یادولو باندې عاجزي وکړه چې زما عزت مه اخله

فَقُمْتُ عَنْهَا. اللَّهُمَّ فَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ

زه د هغې د خوا نه پاڅيدلم، نو ای خدايا! که ته پوهيږې چې زما دا عمل (يعنې د قابو ترلاسه کيدلو باوجود د هغې

ابْتِغَاءَ وَجْهِكَ أَنِّي فَعَلْتُ

پرېښودلو سره ترې لیرې کیدل او خپل نفس قابو کول) فقط ستا د رضا او خوشحالۍ لپاره وي، نو زه د

ذَلِكَ فَافْرُجْ لَنَا مِنْهَا

دې خپل عمل په ذریعه سره تا ته فریاد کوم چې دې کاڼې په لیرې کولو سره زمونږ لپاره لاره برسیرته کړه.

فَفَرَجَ لَهُمْ فُرْجَةً وَقَالَ الْآخَرُ: اللَّهُمَّ إِنِّي

نو الله تعالی دا کاڼې لږ شان نو وخوځولو. بيا دريم سړي داسې ويل شروع کړل، ای الله ! ما خپل

كُنْتُ اسْتَأْجَرْتُ أَجِيرًا بِفَرَقِ أَرُزٍّ فَلَمَّا قَضَى عَمَلَهُ

يو مزدور په يو فرق وريجو باندې په مزدورۍ ونيولو، کله چې هغه خپل پورا کړو نو مطالبه يې وکړه چې

قَالَ: أَعْطِنِي حَقِّي. فَعَرَضْتُ عَلَيْهِ حَقَّهُ فَتَرَكَهُ

راوړه زما مزدوري راکړه. ما د هغه مزدوري هغه ته وړاندې کړه. خو هغه په بې احتياجۍ سره هغه پريښودله او

وَرَغِبَ عَنْهُ فَلَمْ أَزَلْ أَزْرَعُهُ حَتَّى جَمَعْتُ مِنْهُ

لاړو. بيا ما هغه وريجې په خپل زراعت کې ولګولې. او کرلې مې. تر دې چې د دې وريجو په ذريعه سره ما

| | | | |
|---|---|---|---|
| بَقَرًا | وَرَاعِيَهَا | فَجَاءَنِي | فَقَالَ: |

غویان او د هغه غویانو لپاره شپونکیان راجمع کړل. بیا د یو ډیر وخت نه وروسته هغه مزدور زما خواته

| | | | |
|---|---|---|---|
| اتَّقِ | اللهَ | وَلَا | تَظْلِمْنِي |

راغلو او وې ویل چې د خدای نه ووېرېږه، ما باندې ظلم مکوه او زما حق (کوم چې ستا سره پریخودلی و)

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَأَعْطِنِي | حَقِّي. | فَقُلْتُ: | اذْهَبْ | إِلَى | ذَلِكَ | الْبَقَرِ |

ماته بیرته راکړه. ما وویل چې (بیشکه هغه ټول ستا حق په ما باندې واجب دی) دغه غویانو او

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَرَاعِيهَا | فَقَالَ: | اتَّقِ | اللهَ |

شپونکیانو خواته لاړ شه (او هغه په خپله قبضه کې واخله، هغه ټول ستا حق دی) هغه وویل د خدای نه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا | تَهْزَأْ | بِي. | فَقُلْتُ: | إِنِّي | لَا | أَهْزَأُ |

ووېرېږه او زما سره ټوقې مکوه. ما وویل چې (زما خبره دروغ مه ګڼه) زه له تا سره ټوقې نکوم. لاړ شه، دغه

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بِكَ | فَخُذْ | ذَلِكَ | الْبَقَرَ | وَرَاعِيهَا | فَأَخَذَ | فَانْطَلَقَ | بِهَا. |

غویان او دهغې شپونکیان واخله. د هغې نه وروسته هغه دا ټول په خپله قبضه کې واخستل، او لاړو. نو ای

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَإِنْ | كُنْتَ | تَعْلَمُ | أَنِّي | فَعَلْتُ | ذَلِكَ | ابْتِغَاءَ |

خدایا! که ته پوهېږې چې ما دا کار ستا د رضا او خوشحالۍ د طلب لپاره وُنو زه (د دې خپل عمل په واسطه

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَجْهِكَ | فَافْرُجْ | مَا | بَقِيَ |

کولو سره تا ته فریاد کوم چې) ته دا کاڼی څومره چې پاتې شویدی دا هم ورغړوه. نو الله د (دهغه

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَفَرَجَ | اللهُ | عَنْهُمْ" | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |

سړې دعاء هم قبوله کړه او) غار د خلې پاتې برخه هم بر سیرته کړه. (بخاري، مسلم)

**توضیح:** دا یو اوږد حدیث دی چې په هغې کې د درې کسانو اوږده قصه ذکر شویده. چې هغوی په یو غار کې ناست وُ. چې کاڼی را ورغړیدلو او د غار خله بنده شوه. درواړو کې هر یو تن خپل قبول شوی عمل د الله تعالی مخې ته د وسیلې په توګه باندې وړاندې او مقصود ترلاسه شو. د دېنه معلومه شوه چې نیک اعمال د ضرر لیرې کولو لپاره بهترینه وسیله ده. عام مفسرین او صلف صالحینو د اعمالو وسیله بغیر د څه خلاف نه

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۹۹ رقم الحديث (۲۷۴۳-۱۰۰) وأحمد في المسند ۲/۱۱۶.

قبوله کړیده. ارعی علیهم: یعنې د هغوی د خدمت او نفقه او خرچې په غرض سره مې بیزې څرولې. یتضاغون: باب تفاعل دی، په زوره زوره ژړیدلو ته وایي. دې ماشومانو د ولږې د وجې نه ژړل. پلار هغوی ته پی، ځکه ورنکړل چې هغه اول مور پلار باندې څکل غوختل. تر سحره پورې هغه تابعدار څوی ولاړ ؤ. دا څه لږه مینه نده. نه معمولي محنت دی. دویم سړې په عین څوانی کې د بنایسته جینی په جماع باندې قابو موندلو نه وروسته د خدای د یرې د وجې نه پریخودله، سل دیناره یې هم پریخودل، دا څه وړه قرباني نده. زمکنې حقیقتونه ډیر لویې دي. اگرچې دا قصه اسانه ده. البقر وراعیها: دا یو مزدو سړی ؤ، خفه کیدلو باندې یې مزدورې پریخودله، خو مزدورې ورکونکی سړی ډیر دیندار ؤ، هغه د ده د مزدورې مال ضائع نکړو، بلکې ورلره یې ډیر کړو، او څو غواګانې او نور مالونه یې هغه ته وسپارل، د دینه معلومه شوه چې د فضولي تصرف جائز دی او هم دا د امام ابو حنیفه رحمه الله مسلک دی، بهرحال د دې درې کسانو دا نومورې نیک عملونه وسیله جوړه شوه او درې واړه کسان د مصیبت نه خلاص شول. (مرقات: ۸/۶۷۴)

## جنت د مور په قدمونو کې دی

| |
|---|
| ﴿۲۹﴾ وَعَن معاويةَ بن جاهِمةُ أَنَّ جَاهِمَةَ جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او د حضرت معاویه ابن جاهمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې (یوه ورځ) حضرت جاهمه د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې |
| فَقَالَ: يَا رَسُولَ الله أَرَدْتُ أَنْ أَغْزُوَ وَقَدْ جِئْتُ |
| حاضر شو او عرض یې وکړو چې یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! زه جهاد کول غواړم، او په دې وخت کې په دې اړه باندې |
| أَسْتَشِيرُكَ. فَقَالَ: «هَلْ لَكَ مِنْ أُمٍّ؟» قَالَ: نَعَمْ. |
| ستا سره مشوره کولو لپاره راغلی یم. نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: آیا ستا مور (ژوندی) ده؟ هغه ووېل: هو! |
| قَالَ: «فَالْزَمْهَا فَإِنَّ الْجَنَّةَ عِنْدَ رِجْلِهَا» (رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالنَّسَائِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي «شعب الإِيمَان»)[1] |
| نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل: بیا ته د هغې خدمت ضروري وکڼه ځکه چې د مور په قدمونو کې جنت دی. (احمد، نسائی، بیهقی) |

**توضیح**: عند رجلها: یعنې جنت د مور د قدمونو خوا کې دی. مطلب دا دی چې د هغې خدمت کوه، هغه خدمت ته محتاجه ده. بل څوک د خدمت کولو والا نشته دی. د هغې خدمت اوس په تا فرض عین شویدی. دغه صحابی ته د دې مخصوص حالاتو او د دې مجبوریانو او ضرورتونو ته په کتلو سره نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مور د خدمت لپاره وتاکلو. او جهاد ته تللو ثواب یې هغه ته په دې خدمت سره ترلاسه کیدلو ته اشاره وکړه.

---

(۱) اخرجه النسائي في السنن ۵/۱۱ رقم الحديث ۳۱۰۴ واحمد في المسند ۳/۴۲۹.

د دې حدیث مطلب دا ندی چې د چا مور ژوندې وي نو هغه جهاد لپاره نشي وتلی، لکه ځینې بناغلي دا پیش کوي، دا ستدلال غلط دی چې صحابه کرام رضی الله عنهم د زرګونو په شمیره کې جهاد لپاره وتلي دي. نو آیا د هغه ټولو میاندي مړي شوي وي. نو ځکه تلل جائز شول؟ دخدای نه یره وکړه او د جهاد انکار مکوه. (مرقات: ۸/۶۷۶)

## که مور پلار د ښځې د طلاق غوختنه وکړي نو ځوې څه وکړي؟

| |
|---|
| ﴿۳۰﴾وَعَن ابنِ عمَرَ قَالَ: كَانَتْ تَحْتِي امْرَأَةٌ أُحِبُّهَا |
| او حضرت ابن عمر رضی الله عنه فرمایې چې زما په نکاح کې یوه ښځه وه، د چا سره چې ما ډیره مینه کوله، |
| وَكَانَ عُمَرُ يَكْرَهُهَا. فَقَالَ لِي: |
| لیکن (زما عزتمند پلار) حضرت عمر رضی الله عنه هغه نه خوښېدله، نو هغه (یو ورځ) ما ته وویل چې ته دې |
| طَلِّقْهَا فَأَبَيْتُ. فَأَتَى عُمَرُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| ښځې ته طلاق ورکړه. ما انکار وکړو. بیا کله چې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضر شو |
| فَذَكَرَ ذَلِكَ لَهُ فَقَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته یې د دې خبرې ذکر وکړو نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم ما ته وفرمایل چې |
| «طَلِّقْهَا» (رَوَاهُ التِّرمِذِيُّ وَأَبُودَاوُد)[1] |
| دغه ښځې ته طلاق ورکړه. (ترمذی، ابوداؤد) |

**توضیح**: طلقها: نبی کریم صلی الله علیه وسلم چې کله حکم ورکړو نو د دې حکم په وجه باندې وس طلاق ورکول واجب ؤ. هسې عامه مسئله داسې ده که مورپلار په ناحقه باندې ځوې ته د طلاقو حکم ورکړي، په اینګور کې کوم شرعې عرفې عیب نه وي نو ځوې باندې لازم ندي چې هغه ښځې ته طلاق ورکړي، که د مور پلار د حکم منل یې وکړل نو دا مباح ده. او که شرعی قباحت په اینګور کې شتون لرلو او د مور پلار حکم هم وشي نو طلاق ورکول واجب کیږي. (مرقات: ۸/۶۷۷)

## د اولاد لپاره مور پلار جنت دی یا دوزخ

| |
|---|
| ﴿۳۱﴾ وَعَن أَبِي أُمَامَةَ أَنَّ رَجُلًا قَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ مَا حَقُّ الْوَالِدَيْنِ عَلَى وَلَدِهِمَا؟ |
| او حضرت ابو امامه رضی الله عنه فرمایې چې یو سړې عرض وکړو چې یارسول الله صلی الله علیه وسلم! اولاد باندې د مور پلار |

[1] اخرجه ابوداود في السنن ۵/۳۵ رقم الحديث ۵۱۳۸، والترمذی في ۳/۲۹۴ رقم الحديث ۱۱۸۹.

| قَالَ: «هُمَا جَنَّتُكَ وَنَارُكَ» (رَوَاهُ ابنُ مَاجَه)[1] |
|---|
| څه حق دی؟ نبی علیه السلام و فرمایل: ستا مور پلار ستا لپاره جنت هم دی او دوزخ هم. (ابن ماجه) |

**توضیح**: که اولاد د مور پلار اطاعت وکړو، تابعدري او د خوشحالۍ ېې ورلره پورا خیال وساتلو او هر قسم خدمت یې وکړو نو دا مور پلار د اولاد لپاره جنت دی. دهغوی په خوشحالۍ کې به هغه ته جنت په لاس ورشي. ګنې په بل صورت کې هم دا مور پلار د اولاد لپاره دوزخ او د جهنم اور به ثابت شي. او اولاد به یې جهنم ته ورسیږي.

عمل سے زندگی بنتی ہے جنت بھی جہنم بھی — یہ خاکی اپنی فطرت میں نہ نوری ہے نہ ناری

## نافرمانه ځوی د مور پلار تابعدار څنګه جوړیدلی شي؟

| ﴿۳۲﴾وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ الْعَبْدَ لَيَمُوتُ وَالِدَاهُ |
|---|
| او حضرت انس رضی الله عنه فرمایې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کله چې د یو بنده مور پلار مړه شي |
| أَوْ أَحَدُهُمَا وَإِنَّهُ لَهُمَا لَعَاقٌّ فَلَا يَزَالُ |
| یا په دې دواړو کې یو کس مړ شي او هغه ځوی د دوی نافرمانې کوله، او بیا (دهغوی د مرګ نه وروسته) |
| يَدْعُو لَهُمَا وَيَسْتَغْفِرُ لَهُمَا حَتَّى يَكْتُبَهُ اللهُ بَارًا»[2] |
| هغه د دوی لپاره دعاء او استغفار کوله نو الله تعالی هغه په نیکانو کې لیکي. |

**توضیح**: بَارًا: یعنې دا نافرمان ځوی به تابعدار ولیکلی شي. په دې حدیث کې د نافرمانه ځوی د فرمانبردار کیدلو ترتیب ویلی شوی دی. هغه داسې چې مثلاً کوم سړي مور پلار دهغه نه خفه تللي وي. وس د مرګ نه وروسته هغه لپاره پکار دي چې هغه د خپل مور لپاره په کثرت سره ببننه وغواړي، دهغوی لپاره دعا وغواړي. دغه شان دغه سړی به د نافرمانو د زمرې نه ووځي، دا خبره ځای ده چې «رحم حق بهانه می جوید» ګنې د مور پلار د وفات نه وروسته د ژوندي نافرمانه ځوی د معافۍ تصور څوک کولی شي. سبحان الله الله تعالی څومره مهربانه دی. ځینو علماؤ ویلي دي چې که کوم نافرمانه ځوی د خپل پلار په قبر باندې اووه جمعې مسلسل د جمعې په ورځ حاضر وکړي او دهغه لپاره استغفار او دعاء وغواړي نو الله تعالیٰ به دا ځوی د مور پلار په طبعدار اولاد کې شامل کړي.

---

(۱) اخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۲۰۸ رقم الحديث ۳۶۶۲.

(۲) اخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۲۰۲ رقم الحديث ۷۹۰۲.

# اولاد لپاره د مور پلار حیثیت

| |
|---|
| ﴿۳۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ أَصْبَحَ |
| او حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کوم سړی چې په دې حالت کې سبا کړو چې |
| مُطِيعًا لله في وَالِدَيْهِ |
| هغه د مور پلار په حق کې تابعداري کونکی ؤ (یعنې هغه د مور پلار حقوق ادا کول سره د الله تعالی د |
| أَصْبَحَ لَهُ بَابَانِ مَفْتُوحَانِ مِنَ الْجَنَّةِ |
| حکم اطاعت کړی دی) نو هغه په داسې حالت کې سبا کړیدی چې د هغه لپاره د جنت دروازې برسیرته وي |
| وَإِنْ كَانَ وَاحِدًا فَوَاحِدًا. وَمَنْ |
| او که د هغه په مور پلار کې یو ګس (ژوندی) وي نو یوه دروازه برسیرته کیږي او کوم سړی چې په دې |
| أَمْسَى عَاصِيًا لله في وَالِدَيْهِ |
| حالت کې سبا کړو چې هغه د مور پلار په حق کې د الله تعالی نافرماني کونکی دی نو هغه په داسې حال |
| أَصْبَحَ لَهُ بَابَانِ مَفْتُوحَانِ مِنَ النَّارِ وَإِنْ كَانَ وَاحِدًا |
| کې سبا کوي چې د هغه لپاره د دوزخ دروازې برسیرته شي او که په مور پلار کې یو ګس (ژوندی) وي |
| فَوَاحِدًا» قَالَ رَجُلٌ: وَإِنْ |
| نو یوه دروازه برسیرته کیږي. (دې ارشاد اوریدلو باندې) یو سړي عرض وکړو: اګر که مور پلار په |
| ظَلَمَاهُ؟ قَالَ: «وَإِنْ ظَلَمَاهُ |
| هغه باندې ظلم وکړي؟ نبی صلی الله علیه وسلم وفرمایل: اګر که مور پلار په هغه باندې ظلم ولې ونکړي، |
| وَإِن ظَلَمَاهُ وَإِنْ ظَلَمَاهُ» |
| اګر که مور پلار په هغه باندې ظلم ولې ونکړي، اګر که مور پلار په هغه باندې ظلم ولې ونکړي. |

# مور پلار ته د رحمت په نظر سره کتلو باندې د قبول شوي حج ثواب تر لاسه کیږي

| |
|---|
| ﴿۳۳﴾ وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مامن وَلَدٍ |
| او حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: مور پلار سره نیکي کونکی کوم هلک چې |

(۱) أخرجه البیهقي في الایمان ۶/۲۰۶ رقم الحدیث ۷۹۱۶.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بَارٍّ | يَنْظُرُ | إِلَى | وَالِدَيْهِ | نَظْرَةَ | رَحْمَةٍ | إِلَّا | كَتَبَ اللهُ |
| هم مور پلار ته د مينې او عزت په نظر سره ګوري نو الله تعالى د هر نظر په بدله کې يو قبول شوي (نفلي) | | | | | | | |
| لَهُ بِكُلِّ نَظْرَةٍ حَجَّةً مَبْرُورَةً» . قَالُوا: وَإِنْ نَظَرَ كُلَّ يَوْمٍ مِائَةَ مَرَّةٍ؟ | | | | | | | |
| حج (ثواب) ليکي. صحابو عرض وکړو: اګر که هغه په ټوله ورځ کې سل ځل وګوري. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: هو! الله ډير لوي | | | | | | | |
| قَالَ: «نعم الله أكبر وأطيب»[1] | | | | | | | |
| او ډير پاک دی. يعنې ستا په ګمان کې چې دا کوم خبره ده که هغه وغواړي نو د دېنه هم غټ اجر ورکولی شي. | | | | | | | |

**توضيح**: مأة مرة: دا حديث نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خلکو تعجب ليرې کولو لپاره وويله، خلکو ته تعجب وشو چې د شفقت په يو نظر سره که د يو حج ثواب ترلاسه کيږي نو که يو سړی سل ځل د شفقت په نظر سره مور پلار ته وګوري نو سل قبول شوي حجونو ثواب ورته ورکولی کيږي. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د الله تعالى رحمت ډير فراخه دی. هلته هيڅ تنګې نشته دی. علماؤ ليکلي دي چې د شفقت په دې نظر سره د قبول شوي حج اصل ثواب ورته ورکولی کيږي. اضافې ثواب خو به هغه سړی ته ورکولی کيږي چې هغه محنت کولو باندې حج ته لاړ شي. خرچه هم وکړي او وخت هم ورکړي او محنت هم تير کړي. (مرقات: ۸/۶۷۸)

## د مور پلار د نافرمانۍ سزا نغده وي

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۵﴾وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «كُلُّ | | | | | | | |
| او حضرت ابوبکره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل (د شرک نه علاوه) ټول | | | | | | | |
| الذنوبِ | يغفرُ | الله | مِنْهَا | مَا | شاءَ | إِلَّا | عُقُوقَ الْوَالِدَيْنِ |
| ګناهونه داسې دي چې الله تعالى په دې کې څومره اندازه وغواړي، ببښنه کوي، خو د مور پلار د نافرمانۍ ګناه نه ببښي. بلکې | | | | | | | |
| فَإِنَّهُ | يُعَجِّلُ | لِصَاحِبِهِ | فِي | الحياةِ | قبلَ | المماتِ»[2] | |
| الله تعالى د مور پلار د نافرمانۍ کونکې ته د مرګ نه مخکې د هغه په ژوندې کې ژر سزا ورکوي. | | | | | | | |

**توضيح**: يعجل: د حديث مطلب دا دی چې کوم سړی د مور پلار د نافرمانۍ ګناه کوي نو الله تعالى په دې دنيا کې هغه سړي ته سزا ورکوي. د دې حديث مطلب دا هم کيدلی شي چې د مور پلار په ژوند باندې الله تعالى هغه سړی په عذاب کې اخته کوي. او مور پلار ورته ګوري. دواړه احتمالونه شته دی. هو! د آخرت سزا به په خپل ځای وي. ګويا په دې حديث کې اعلان دی چې مور پلار ته کوم سړي تکليف ورکړو، د هغه

---

[1] أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۱۸۶ رقم الحديث ۷۸۵۶.

[2] أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۱۹۷ رقم الحديث ۷۸۹۰.

سرې سزا نغده وي. هغه به دنیا کې سزا څکي. یوه قصه لیکلی شوي مې لیدلي ده چې یو هلک خپل بوډا پلار د سمندر غاړې ته کله د غورزولو لپاره بوتللو او هغه یې غورزول غوختل نو پلار یې وخندل، ځوې ترینه د خندلو وجه وپوښتله. نو پلار وویل چې ماته په دې باندې خندا راغله چې ما هم خپل پلار هم د دې ځاې نه سمندر ته غورزولی ؤ، خو تا زه یو څو قدمه مخکې راوستلی یم، خندا په دې راغله چې ستا سره به څه کیږي، ما چې څه وکړل او زما سره چې څه وشو نو هغه خو ما وکتل. (مرقات: ۸/۶۷۹)

﴿۳۶﴾ وَعَن سعيدِ بْنِ الْعَاصِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: «حقُّ كبيرِ الإِخوَةِ

او حضرت سعید ابن العاص رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایي چې نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: په کشر ورور باندې د مشر ورور هغه حق

على صَغِيرِهِمْ حَقُّ الْوَالِدِ عَلَى وَلَدِهِ» (رَوَى الْبَيْهَقِيُّ الأَحاديثَ الخمسةَ فِي «شعب الْإِيمَان»)[1]

دی کوم چې د پلار په خپل ځوې باندې وي. (دا پنځه واړه احادیث بیهقي په شعب الایمان کې نقل کړیدي)

**توضیح**: د عامو خلکو خیال وي ورور بهر حال ورور وي. که مشر وي او که کشر. په دې حدیث کې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي دي چې د مشر ورور احترام او اکرام هم هغه شان دی څنګه چې د پلار وي. که پلار مړ شي نو مشر ورور دې کشرانو لپاره شفقت او رحمت او خواخوږی کې د پلار په شان شي او په کشرانو باندې لازم دی چې هغوې خپل مشر ورور د پلار په شان تصور کړي. (مرقات: ۸/۶۸۰)

دا اصول تر هغه وخته پورې قائم وي کله چې خلک دینداره هم وي او کلیا ماحول کې وي. که خلک د ښار ماحول ته راشي او عصري تعلیم ترلاسه کړي نو دا اصول زره زره شي. انګریزي تعلیم څه ورکړل یې یې ورنکړل البته نوې نسل یې د مشرانو نافرمان او خود سره جوړ کړو.

اٹھا کر پھینک دو باہر گلی میں — نئی تھذیب کے انڈے ہیں گندے

تمامی دیکھ لو سارے جہاں میں — نظر آنے لگے ہیں داڑھی منڈے



(۱) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۲۱۰ رقم الحديث ۷۹۲۹.

١٢ ربيع الثاني ١٤١٨هـ

# باب الشفقة و الرحمة على الخلق

## په مخلوق خدا باندې د رحمت او شفقت بیان

قال الله تعالى ﴿إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ فَأَصْلِحُوا بَيْنَ أَخَوَيْكُمْ﴾ (الحجرات : ١٠)

په دې باب کې یتیمانانو ، کونډو، مظلومانو، په مصیبت کې راګیر غمزپلې خلکو، بوډاګانو او کشرانو باندې شفقت او دمینې محبت احادیث راغلي دي. او هغه حدیثونه به بیان شي چې په هغې کې د خلکو د حقونو ادا کول او دهغوې ادب او احترام کولو باندې زور ورکړی شویدی. د ماشومانو جینکو د روزنې فضیلت هم بیان کړی شویدی. دغه شان په دې حدیثونو کې د ټولې دنیا د مظلومانو او بې ځوکه مسلمانانو د مرستې حکم ورکړی شویدی.

د ټولې دنیا مسلمانانو ته خپل مینځ کې ورونه ویلی شویدي او یوه لیکلي معاهده کړی شویده چې مسلمانان خپل مینځ کې د یو بدن په شان دي. د دې هر فرد د بل لپاره ملاتړې او مرسته کونکی کیدل پکار دي. ګنې هغه به د مسلمان بللو مستحق نوي. د الله تعالی ټول رحمتونه دي. په دې کې یو رحمت په کائناتو کې خپل کار ښایې چې د هغې په وجه باندې انسان او حیوان خپل مینځ کې د رحمت معامله کوي.

### الفصل الاول

### کوم سړی چې په خلکو باندې رحم نه کوي هغه د الله تعالی د رحمت مستحق نه دی

﴿١﴾ عَن جَرِيرِ بْنِ عَبْدُ الله قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا يَرْحَمُ الله مَنْ لَا يَرْحَمُ النَّاسَ». (مُتَّفق عَلَيْهِ).[1]

حضرت جریر ابن عبد الله رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: الله تعالی په هغه سړي رحم نکوي (یعنې هغه د خپل خاص او کامل رحمت مستحق نه ګرځوي) څوک چې په خلکو باندې رحم نکوي. (بخاري او مسلم)

### ماشومانو سره د مینې کولو فضیلت

﴿٢﴾ وَ عَن عائشةَ قَالَتْ: جَاءَ أَعْرَابِيٌّ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ: أَتُقَبِّلُونَ الصِّبْيَانَ؟

او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې (یوه ورځ) د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کې یو بانډچي حاضر شو (او کله صحابو ولیدل چې هغوې ماشومانو مچي کوي او مینه ورسره کوي) نو وې ویل چې آیا تاسو خلک ماشومان مچې

(١) أخرجه البخاري في صحيحه ١٣/٣٥٨ رقم الحديث ٧٣٧٦، ومسلم في ٤/١٨٠٩ رقم الحديث (٢٣١٩-٦٦)

| |
|---|
| فَمَا نُقَبِّلُهُمْ. فَقَالَ النَّبِي صلى الله عَلَيْهِ وَسلم: «أَوَ أَملكُ |
| كوي؟ مونږ خو ماشومان نه مچي کوو. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ (دې خبرې اوريدلو باندې) وفرمايل آيا زه په دې خبره باندې |
| لَكَ أَنْ نَزَعَ الله مِنْ قَلْبِكَ الرَّحْمَةَ » (مُتَّفق عَلَيْهِ) [1] |
| قادر کيدلی شم چې الله تعالى ستا د زړه نه رحم او شفقت ايستلی دی. هغه ايسار کړه. (بخاري او مسلم) |

## د جينکو د روزني خاص فضيلت

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْهَا قَالَتْ: جَاءَتْنِي امْرَأَةٌ وَمَعَهَا ابْنَتَانِ لَهَا |
| حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمايي چې (يوه ورځ) زما خواته يوه ښځه راغله. د هغې سره د هغې دوه ماشومانې هم وې. |
| تَسْأَلُنِي فَلَمْ تَجِدْ عِنْدِي غَيْرَ تَمْرَةٍ وَاحِدَةٍ |
| هغې زما نه سوال وکړو (يعنې څه يې وغوختل) ليکن هغوې ته زما د خوا نه د يوې کهجورې نه علاوه هيڅ |
| فَأَعْطَيْتُهَا إِيَّاهَا فَقَسَمَتْهَا بَيْنَ ابْنَتَيْهَا |
| هم ترلاسه نشول، نو ما هغوې ته هم هغه يوه کهجوره ورکړه. هغې کهجوره نيمه نيمه په خپلو لوڼو کې |
| وَلَمْ تَأْكُلْ مِنْهَا ثُمَّ قَامَتْ فَخَرَجَتْ. |
| وويشله. او خپله يې د هغې نه هيڅ هم ونه خوړل. او بيا هغه پاڅيدله او بيرون لاړه. په دې کې |
| فَدَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَدَّثْتُهُ |
| نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کور ته راغلی. ما نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته (د دغه ښځې) دا واقعه بيان کړه. |
| فَقَالَ: «مَنِ ابْتُلِيَ مِنْ هَذِهِ الْبَنَاتِ بِشَيْءٍ |
| نو نبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې کوم سړی چې د جينکو نه څه يعنې يوه يا دوه يا ډيرو باندې په ازميښت کې واچولی شي |
| فَأَحْسَنَ إِلَيْهِنَّ كُنَّ لَهُ |
| او هغه د دې جينکو سره احسان او ښه ښويې وکړي نو هغه ماشومانې او هغوې سره کړې شوې نيکي |
| سِتْرًا مِنَ النَّارِ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) [2] |
| به د دوزخ د اور نه پرده جوړه شي. (بخاري او مسلم) |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۲۶ رقم الحديث ۵۹۹۸، ومسلم في ۴/۱۸۰۸ رقم الحديث ۲۳۱۷/۶۴۰

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۲۶ رقم الحديث ۵۹۹۵،ومسلم في ۴/۲۰۲۷ رقم الحديث ۲۶۲۹-۲۴۷

**توضیح**: من ابتلی : جینکو سره متعلق د دې فضیلت وجه دا ده چې جینکۍ په غټېدلو سره دبل د کور خدمت کوي، د مور پلار په کار نه راځي. ګویا مور پلار پنځلس شل کاله چې د وپاللي نو د نورو د فائدې لپاره يې وپاللي. دا فقط خواخوږي او شفقت دی. څه دنیاوې غرضونه او مقصدونه نه وي. نو ځکه د جینکو په پالنه باندې دا ثواب ترلاسه کیږي. پاتې شو هلکان نو دهغوې په لویې کولو باندې خو دنیاوي غرضونه په نظر کې وي. چې هغوې په غټېدلو سره به د پلار کارونه ساتي. د هغوې په پاللو باندې دا ثواب نه ترلاسه کیږي. په کومو علاقو کې چې د جینکو په خرڅولو باندې پیسې اخستل کیږي شاید هلته دا ثواب ورنکړی شي بلکې د پاسه عذاب وي، د شریعت اصول ښودنه هم په دې توګه ده.

په دې حدیث کې د جینکو پیدائش امتحان او آزمیښت ګرځولی شویدی. لهٰذا دا ثواب د جینکو سره خاص دی. او فقط د هغوې په پالنه باندې دا ثواب ورکولی کیږي. دلته دې واقعې ته دې وکتلی شي او د مور شفقت او رحمت ته دې وکتلی شي چې خپله یې هیڅ ونه خوړل خو ماشومانو باندې یې وخوړل. دا د الله تعالی د رحمت وزر ده. د الله تعالی په سل رحمتونو کې فقط یو رحمت په دنیا کې خپل اثر ښایې. پاتې رحمتونه ښکاروالی به په قیامت کې کیږي. (مرقات: ۸/۶۸۲)

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ عَالَ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: کوم سړی چې دوه جینکو ساتنه |
| جَارِيَتَيْنِ حَتَّى تَبْلُغَا جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَنَا |
| او روزنه وکړي تردې چې هغه بلوغ ته ورسیږي نو دغه سړی به د قیامت په ورځ داسې راشي چې زه او هغه |
| وَ هُوَ هٰكَذَا » وضمّ أصابعه ( رَوَاهُ مُسلم )[1] |
| په داسې توګه یو بل ته نژدې یو، دې ویلو سره نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپلې دواړه ګوتې یو ځای کړې (مسلم) |

## د کونډې او مسکین د خدمت فضیلت

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «السَّاعِي |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: کونډه ښځه او د مسکین خبر اخستونکی دهغه |
| عَلَى الْأَرْمَلَةِ وَ الْمِسْكِينِ |
| سړي په شان دی څوک چې د خدا پدلاره کې کوښښ وکړي یعنې کوم سړی چې د کونډې ښځې او مسکین ساتنه او خبر اخستل کوي |

[1] أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۲۷ رقم الحديث (۲۶۳۱-۱۴۹) والترمذي في السنن ۴/۲۸۱ رقم الحديث ۱۹۱۴.

كَالسَّاعِي فِي سَبِيلِ اللهِ »

او دهغوي ضرورتونه پوره کولو سره د هغوي سره ښه ښويي کوي نو ددې ثواب د هغه ثواب برابر دى کوم چې د خدا په لاره کې جهاد او

وَ أَحْسَبُهُ قَالَ : «كَالْقَائِمِ

حج کونکي ته ور کولى کيږي. او زما ګمان دى چې هغه دا هم بيان کړل چې د کونډې ښځې او مسکين خبر اخستونکي د هغه سړي په

لَا يَفْتُرُ وَ كَالصَّائِمِ

شان دى چې هغه په لمونځ او عبادت کې شپه په ويخه تيروي او د خپلې شپې په ويخه تيرولو کې نه څه سستيا کوي او نه څه کمى او

لَا يفطر » . ( مُتَّفق عَلَيْهِ ) . [1]

نقصان برداشت کولى شي. او د هغه سړي په شان دى چې هغه (د ورځې کلهم) روژه نه ماتوي (چې هغه ته صائم الدهر ويلى کيږي.

## يتيم دروزني فضيلت

﴿۶﴾ وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَنَا وَكَافِلُ الْيَتِيمِ

او حضرت سهل بن سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: زه او د يتيم روزنه کونکى

لَهُ وَلِغَيْرِهِ فِي الْجَنَّةِ هٰكَذَا» وَأَشَارَ بِالسَّبَّابَةِ وَالْوُسْطٰى

چې هغه يتيم که د هغه وي او د بل چا وي، جنت کې به داسې يو، دې وينا سره نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ د شهادت

و فَرَّجَ بَينهمَا شَيْئًا . ( رَوَاهُ الْبُخَارِيّ ) [2]

ګوته او مينځنۍ ګوتې په ذريعه سره اشاره وکړه. او د دواړو په مينځ کې يې لږ شان فراخوالي وساتلو. (بخاري)

## د دنيا ټول مسلمانان د يو جسم په شان دي

﴿۷﴾ وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «تَرَى الْمُؤْمِنِينَ

او حضرت نعمان ابن بشير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل (اى مخاطبه) ته به مؤمنانو لره خپل

فِي تراحُمِهم و توادِّهم و تعاطفِهم

مينځ کې ديو بل سره د رحم معامله کولو، ديو بل سره د مينې او تعلق ساتلو او ديو بل سره د مهربانۍ او مرستې ښويې کې داسې

---

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۳۷ رقم الحديث ۶۰۰۷، ومسلم في ۴/۲۲۱۶ رقم الحديث (۲۹۸۲-۴)

[2] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۳۶ رقم الحديث ۶۰۰۵ ومسلم في ۴/۲۲۷۸ رقم الحديث (۲۹۸۳-۴۲)

| كمثلِ | الجسدِ | إذا | اشْتَكَى | عضوا | تَدَاعَى | لَهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ومومي لكه څنكه چې د بدن حال دى چې كله د بدن كوم اندام خوګيګي نو د بدن نور اندامونه د دې يو اندام له | | | | | | |
| سَائِرُ | الْجَسَدِ | بِالسَّهَرِ | وَ الْحُمَّى | » . ( مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ ) .[1] | | |
| وجې نه هغه نور اندامونه رابلي. او د بيدارى، او تبې په ستړيا او درد كې ټول جسم شريک وي. (بخارى او مسلم) | | | | | | |

**توضيح:** كمثل الجسد: مسلمانانو لپاره د اسلام د اړخ نه عالمي سطح باندې يو دستاويزې شرعي لوظنامه ده چې رنګ او نسل او هيواد او وطن او ژبه او خاندان رابطو نه بالاتر كيدلو سره مسلمان د بل مسلمان لپاره خواخوږي او رحمت جوړ شي. كوم مسلمان چې د بل مسلمان لپاره داسې جذبه نه لري هغه مسلمان خو څه بلكې د انسان بللو مستحق ندى. بابا سعدى فرمايلي دي: (مرقات: ۸/۶۸۵)

بنی آدم اعضائے یک دیگر اند — کہ در آفرینش زیک جوہر اند

چوں عضوبدرد آورد روزگار — دیگر عضوہا رانماند قرار

يو حديث كې راغلي دي چې: **من لم يهتم بأمور المسلمين فليس منا.** يو حديث كې دي: المسلمون يد على من سواهم. د مسلمانانو خپل مينځې دې خواخوږى لپاره فقط اسلام او مسلمان كيدل شرط دى. د ذات قبيلو نه اخوا د مسلمان لپاره ضروري دي چې هغه د قلعې د ديوال په شان او د زنځير د مسلسل ګړو په شان متفق او متحد وي. كه هغه نژدې وي او كه ليرې وي، په مشرق كې وي او كه په مغرب كي. اقبال ويلي دي:

درویش خدامست نہ شرقی ہے نہ غربی — گھر اسکا نہ دلی نہ صفاہاں نہ سمرقند

د مسلمانانو دا اتفاق او اتحاد ماتونكي هر يو شي الحاد او زندقيت دى. دا اتفاق او اتحاد، د فكر يو والې او د عمل په كردار باندې قائم دى.

ہے زندہ فقط وحدت افکار سے ملت — وحدت ہو فنا جس سے وہ الہام بھی الحاد

وحدت کی حفاظت نہیں بے قوت وبازو — آتی نہیں کچھ کام یہاں عقل خداداد

قرآن او حديث . سلام ټول مسلمانان خپل مينځ كې ورونه ګرځوي. او د هغوې خپل مينځې هر يو كلام او سلام او والى ته د قدر په نظر سره ګوري. قرآن مسلمانان د عقيدې په يوه اتفاقي نقطه باندې راغونډوي. او بيا يې د يو بل لپاره ورونه او غمخوار جوړوي. ليكن نن سبا د ټولې دنيا مسلمانان د نظريې او افكارو د انتشار ښكار دي. هغوې علاقو، قوميتونو، بيل بيل حكومتونو، او بلاكونو كې تقسيم شوي دي. د دې

---

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۳۸ رقم الحديث ۶۰۱۱ ومسلم في ۴/۱۹۹۹ رقم الحديث (۲۵۸۶-۶۶)

بنیادي وجه هم دا ده چې د اتحاد د نقطې تعارفي نښان «المسلمون» کمزوری کړی شویدی. دا وخت زه بیت الله ته مخامخ رمضان ۱۴۲۶ هـ په ۳۰ تاریخ دا کرخي لیکم. آخر روژه ده. لاکهونو انسان راغونډ شویدي. خو په سوچ او فکر کې ټول خپاره دي. دچا نظرونه په امریکه باندې لګیدلي دي. نو دچا سترګې چین اړخ ته وچتي شویدي. څوک هندوان خوشحالوي. نو څوک کموسنتانو اړخ ته ټيټ شویدی. ناست په مکه یا مدینه کې دی، خو نه یې مکه ولیدله او نه یې مدینه وکتله. حالانکې مسلمان د یو جسم په شان د یو بل خواخوږي وي. او دهغوی نظرونه په خپل مرکز باندې وي.

درویش خدا مست نه شرقی ہے نہ غربی　　گھر اسکا نہ دتی نہ صفاہاں نہ سمرقند

﴿۸﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

او حضرت نعمان بن بشیر رضي الله عنه فرمایي چې نبی صلی الله علیه وسلم وفرمایل: (یو خدای، یو نبی علیه السلام او د یو دین منلو

«الْمُؤْمِنُونَ كَرَجُلٍ وَاحِدٍ إِنِ اشْتَكَى

په وجه باندې) ټول مسلمانان د یو سړي (د اندامونو او جسم) په شان دي. که د هغه سترګه خوږیګي نو د

عَيْنُهُ اشْتَكَى كُلُّهُ وَإِنِ اشْتَكَى رَأْسُهُ

هغه ټول جسم ناآرامه او بیقراره شي او که د هغه سر خوږیګي نو ټول بدن یې درد محسوسوي (دغه شان یو

اشْتَكَى كُلُّه» (رَوَاهُ مُسلم)[1]

مسلمان ټولو مسلمانانو لره محسوس کول پکار دي)

## دنیا د مسلمانانو مثال د قلعې د دیوال په شان دی

﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت ابو موسی رضي الله عنه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

«الْمُؤْمِنُ لِلْمُؤْمِنِ كَالْبُنْيَانِ

مسلمان، د مسلمان لپاره د یو کور په شان دی (یعنې ټول مسلمانان د مضبوطتیا او طاقت تر لاسه کولو په اعتبار سره

يَشُدُّ بَعْضُهُ بَعْضًا» ثُمَّ شَبكَ

دهغه کور په شان دي) چې د هغې یوه برخه دویمه برخه مضبوطه ساتي. دې ویلو سره نبی کریم صلی الله علیه وسلم

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۰ رقم الحديث (۶۷/۲۵۸۶) واحمد في المسند ۴/۲۷۶.

| بَين | أَصَابِعه | (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
|---|---|---|
| د یو لاس ګوتي د بل لاس په ګوتو کې داخل کړي. (بخاري او مسلم) | | |

## جائز سفارش کول د ثواب کار دی

| ﴿۱۰﴾ وَ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ إِذَا أَتَاهُ |
|---|
| او حضرت ابو موسی رضي الله عنه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي چې کله به نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته |
| السَّائِلُ أَوْ صَاحِبُ الْحَاجَةِ قَالَ: «اشْفَعُوا |
| کوم سائل یا حاجتمند راتلونو (صحابه رضي الله عنهم) به فرمایل چې (زما لپاره) دې سړي ته سفارش وکړه دې |
| فَلْتُؤْجَرُوا وَيَقْضِي اللهُ عَلَى لِسَان رَسُوله |
| لپاره چې تاته د سفارش ثواب درکړی شي. او الله تعالی د خپل نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خله باندې |
| مَا شَاءَ» (مُتَّفق عَلَيْهِ)[2] |
| کوم حکم چې وغواړي، جاري کوي. |

**توضیح**: اشفعوا: کله چې د یو حاجت مند د چا ته څه حاجت وي او دهغه رسیدل هغه ته نه کیږي. هغه مقام د دغه حاجت رسوَل ضروري هم دي او د ثواب کار هم دی. د بحث لاندې حدیث مطلب دا هم دا دی، دغه شان د دې حدیث مصداق هغه صورت هم دی چې مثلاً یو سړی د یو کار اهل هم دی او لائق او مستحق هم دی. هغه ته مناسب مقام ته رسیدلو کې تکلیف دی. چاد هغه سفارش وکړو او هغه یې هغه مقام ته ورسولو. دا هم ممدح او د ثواب کار دی. د دې په برعکس یو نالائق په یو اهم مقام کینولو لپاره سفارش کول د قیامت په نښو کې ده. **اذا وسّد الامر الی غیر اهله فانتظر الساعة.** دغه شان د الله تعالی کوم ایسارولو لپاره سفارش کول منع او حرام دي. دغه شان د شریانو او فساد ګرو لپاره سفارش کول جائز ندي. بهرحال جائز سفارش د ثواب کار دی. که هغه سفارش قبول شي او که قبول نشي، سفارش کونکې ته به ثواب ورکولی کیږي. نن سبا خو اکثر سفارشونه ناجائز شروع شویدي. نو ځکه لفظ سفارش د لفظ رشوت په شان د بدۍ سره مشهور شویدی. (مرقات: ۸/۶۸۶،۶۸۷)

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۴۹ رقم الحديث ۶۰۲۶، ومسلم في صحيحه ۴/۱۹۹۹ رقم الحديث (۲۵۸۵-۶۵)

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳/۴۴۸ رقم الحديث ۱۳/۷۴۷۶ رقم الحديث ۷۴۷۶.

## د ظالم لاس د ظلم نه ایسار کړه دا د هغه سره مرسته ده

|  |
|---|
| ﴿١١﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «انْصُرْ أَخَاكَ |
| او حضرت انس رضی الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د خپل مسلمان ورور مرسته وکړه |
| ظَالِمًا أَوْ مَظْلُومًا». فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللهِ |
| که هغه ظالم وي او که مظلوم. یو صحابي رضی الله عنه (دا ارشاد اوریدلو سره) عرض وکړو چې یارسول الله صلی الله علیه وسلم! |
| أَنْصُرُهُ مَظْلُومًا فَكَيْفَ أَنْصُرُهُ ظَالِمًا؟ |
| کوم مسلمان چې مظلوم دی نو ما له مرسته کول پکار دي. خو زه د هغه مسلمان څنګه مرسته کولی شم کوم چې ظلم کوي؟ |
| قَالَ: « تَمنعهُ من الظُّلم فَذَاك نصرك إِيَّاه » . ( مُتَّفق عَلَيْهِ) . [1] |
| نبی علیه السلام وفرمایل: ته هغه د ظلم نه ایسار کړه، او هغه د ظلم نه ایسارول د هغه په حق کې ستا مرسته ده. (بخاری او مسلم) |

**توضیح: انصر اخاك ظالمًا او مظلومًا:** دا جمله به جاهلیت کې خلکو استعمالوله. او زیاتې به یې دا ویل که تا د ظالم مرسته ونکړه نو د مظلوم مرسته به څنګه وکړې شي؟ دا د هغه معاشری جاهلیت او ظلمؤ. کله چې د دې تعلیم عام شو او نبی کریم صلی الله علیه وسلم دا جمله ارشاد وفرمایله نو د صحابه کرامو فرشته صفت طبیعتونو دا د اسلامي اخلاقو منافي وګڼلو، نو ځکه یې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه پوښتنه وکړه چې د مظلوم مرسته کول خو باندې خو پوهه شو، دا د ظالم مرسته څنګه کیدلی شي؟ نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې تول په شریکه سره د ظالم لاس د ظلم نه ایسار کړی، هغه به د ظلم نه منع شي. دا د هغه سره د همیش لپاره مرسته ده چې د آخرت د عذاب نه به بچ شي. (مرقات: ٨/٦٨٨)

## ټول مسلمانان خپل مینځ کې ورونه ورنه دي

|  |
|---|
| ﴿١٢﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : « الْمُسْلِمُ |
| او د حضرت ابن عمر رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: هر مسلمان د بل |
| أَخُو الْمُسْلِمِ لَا يَظْلِمُهُ |
| مسلمان دیني ورور دی هیڅ مسلمان په بل مسلمان باندې ظلم ونکړي او هغه په هلاکت کې اخته نکړي |
| وَلَا يُسْلِمُهُ وَمَنْ كَانَ فِي |
| او نه هیڅ مسلمان بل مسلمان د هغه د دښمن په لاسونو کې پریږدي. بلکې د هغه د دښمن په مقابله کې د هغه مرسته او معاونت وکړي. |

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ١٢/٣٢٣ رقم الحديث ٦٩٢٥، ومسلم في ٤/١٩٩٨ رقم الحديث (٢٥٨٤-٦٢)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| حَاجَةِ | أَخِيهِ | كَانَ | اللهُ | فِي | حَاجَتِهِ |

او څوک چې د کوم مسلمان ورور د حاجت پورا کولو سعې او کوښښ کوي نو الله تعالی د هغه حاجت پورا کوي.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَنْ | فَرَّجَ | عَنْ | مُسْلِمٍ | كُرْبَةً | فَرَّجَ | اللهُ | عَنْهُ |

څوک چې د کوم مسلمان ورور کوم غم لیرې کړي نو الله تعالی هغه د قیامت په ورځ باندې په غمونو کې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| كُرْبَةً | مِنْ | كُرُبَاتِ | يَوْمِ | الْقِيَامَةِ | وَمَنْ | سَتَرَ | مُسْلِمًا |

د یو غټ غم نه به خلاصی ورکړي. او څوک چې د کوم مسلمان ورور بدن یا د هغه عیب پټوي نو د

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| سَتَرَهُ | اللهُ | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ» | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |

قیامت په ورځ به الله تعالی د هغه عیبونه پټ کړي. (بخاری او مسلم)

**توضیح**: المسلم اخوالمسلم: په دېکې هیڅ شک نشته چې مسلمان د مسلمان ورور دی. او دا د هغوې په مینځ کې یو عالمې لیکلی شوي شرعې لوظنامه ده. خو د دې لپاره شرط دا دی چې اول خپله مسلمان خو مسلمان جوړ شي. دلته مصیبت او مشکل دا دی چې خپله خو مسلمانان نه جوړیږو او معاشره د مسلمانانو غواړو. په حدیث کې نبی کریم ﷺ مسلمان د مسلمان ورور بللی دی او جوړ کړی یې دی. کوم کافر بدې عقیدې والا ته یې د مسلمان ورور نه دی ویلی. نن سبا بې دینه خلک هم دا وایې چې څوک هر څنګه ولې نه وي. خپل مینځ کې ورونه کیدل پکار دي. په دې باندې چې کله عمل ونشي نو شور کوي چې مسلمان د مسلمان دښمن دی. زما وروره یو سړی قادیانې دی، آغاخانی دی، رافضې دی، ملحد او بې دینه دی، هغه د یو مؤمن ورور څنګه جوړیدلی شي؟ (مرقات: ۸/۶۸۸) اول دا مؤمن او مسلمان جوړ کړه، بیا به هغوې خپله ورونه ورونه شي. په دنیا کې د اهل حق مدرسې واخلې. پدېکې ټول طالبان خپله ورونه ورونه دي. ځکه چې دین راغلی دی. نو یو شول. د بې دینه د دیندار سره تړل هم داسې دي لکه یو سړی د کاڼې سره د لرګې د یو ځاې کولو کوښښ کوي. لایظلمه ولا یسلمه: یعنې مسلمان په خپل مسلمان ورور باندې نه خپله ظلم کوي او نه د ظلم لپاره هغه کافرانو ته سپاري. دا حدیث یو لیکلې لوظنامه ده خو نن سبا وګوره چې د مسلمانانو حکمرانان ریښتونې مسلمانان ونیسي او امریکه او کافرانو ته یې سپاري. او ډالر اخلې. او بیا وایې چې زمونږ سره مینه لرئ، زمونږ اطاعت وکړئ. نو داسې به څنګه وشي. (مرقات: ۸/۶۸۸،۶۸۹)

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۵/۹۸ رقم الحديث ۲۴۴۲، ومسلم في ۴/۱۹۹۶ رقم الحديث (۲۵۸۰-۸۵)

ستر مسلماً: د مثال په توګه باندې يو حيادرا عزتمند او نيک سړی دی. په هغې کې هيڅ عيب نشته دی يا د بدقسمتۍ نه دهغه نه څه ګناه وشي نو دهغې د پټولو ترغيب دی. ځکه چې د هغې په مشهورولو سره به هغه سړی تباه شي. او په پټولو سره به دهغه اصلاح وشي او هغه ته به نوی ژوند ترلاسه شي. د حديث حکم د داسې خلکو لپاره دی. ليکن شريان او فسادګر او عادي مجرمانو متعقدي جرمونو پټولو جائز ندي. بلکې د هغې مخ نيوی پکار دی او د ختمولو فکر کول پکار دي. اول دې هغه ته خبرداری ورکړی شي. که په هغې سره منع نشو، نو دو خت حکمران ته دې خبر ورکړي، خو نن سبا مسلمان حکمرانان چيرته دي؟ (مرقات: ۸/۶۹۰)

## هيڅ مسلمان سپک مه ګڼه

﴿۱۳﴾ وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « الْمُسْلِمُ

او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل: هر يو مسلمان د بل مسلمان

أَخُو الْمُسْلِمِ لَا يَظْلِمُهُ وَلَا يَخْذُلُهُ

ديني ورور دی. (لهذا) مسلمان دې په مسلمان باندې ظلم نکوي. دهغه مرسته او ملاتړ دې نه پريږدي. او هغه دې ذليله او

وَلَا يَحْقِرُهُ التَّقْوٰى هٰهُنَا». وَيُشِيرُ إِلَى صَدْرِه ثَلَاثَ مِرَارٍ

سپک نه ګڼي. بيا نبی کريم صلى الله عليه وسلم خپلې سينې ته درې ځل اشاره کولو سره و فرمايل چې پرهيزګاري دې ځای کې

"بِحَسْبِ امْرِئٍ مِنَ الشَّرِّ أَنْ يَحْقِرَ أَخَاهُ الْمُسْلِمَ

ده. دغه شان يې و فرمايل چې د مسلمان لپاره دومره بدي کافي ده چې هغه خپل مسلمان ورور ذليله او سپک

كُلُّ الْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ حَرَامٌ : دَمُهُ وَ مَالُهُ وَ عِرْضُه " ( رَوَاهُ مُسْلِمٌ )[1]

وګڼي. او مسلمان باندې د مسلمان ټول شيان حرام دي. لکه دهغه مال او د هغه عزت او ناموس. (مسلم)

**توضيح:** التقوٰی: يعنې تقوی يو پټ امر دی. چې دهغې تعلق د زړه سره دی. نو ځکه د کوم کمزورې حالت او کمزور او محتاج او فقير مسلمان سپک ګڼل پکار ندي. ځکه چې کيدلی شي چې دهغه باطن ستا نه په لاکهونو درجې ښه او روښانه وي. او تا د هغې عِلم نوي. دا جمله په حقيقت کې د دې نه مخکې جملې لپاره تاکيد دی. چې په هغې کې ويلی شويدي چې هيڅ مسلمان سپک مه ګڼه. (مرقات: ۸/۶۹۰)

---

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۹۸۶ رقم الحديث (۲۵۶۴-۳۲) وابوداود في السنن ۵/۱۹۶ رقم الحديث ۴۸۸۲.

## جنتي او دوزخي خلکو قسمونه

﴿۱۴﴾ وَعَنْ عِيَاضِ بْنِ حِمَارٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَهْلُ الْجَنَّةِ ثَلَاثَةٌ:

او حضرت عیاض بن حمار رضی الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د جنتي خلکو درې قسمونه دي:

ذُو سُلْطَانٍ مُقْسِطٌ

یو خو هغه حاکم چې هغه عدل او انصاف کوي. او د خلکو سره احسان کونکی وي. او چاته چې د نیکیو او

مُتَصَدِّقٌ مُوَفَّقٌ وَ رَجُلٌ رَحِيمٌ

ښیګړو توفیق ورکړی شوي. دویم هغه سړی کوم چې (په کشرانو او مشرانو باندې) مهربان او خپلوانو او

رَقِيقُ الْقَلْبِ لِكُلِّ ذِي قُرْبَى وَ مُسْلِمٍ

مسلمانانو لپاره رقیق القلب یعنې د نرم زړه والا وي. او دریم هغه سړی چې هغه (حرام شیانو نه) نه ځان

وَعَفِيفٌ مُتَعَفِّفٌ ذُو عِيَالٍ.

ساتونکې (د غیر الله مخې ته د سوال لاسونه خپرولو نه) ځان ساتي. او د اهل او عیال په اړه په خدای توکل

وَ أَهْلُ النَّارِ خَمْسَةٌ : الضَّعِيفُ الَّذِي لَا زَبْرَ

کونکی وي. او د دوزخي خلکو پنځه قسمونه دي: یو خو د کمزورې عقل والا چې د هغه د عقل کمزورې

لَهُ الَّذِينَ هُمْ فِيكُمْ تَبَعٌ

هغه د بدرنګو کارونو نه منع نکړي. دا هغه خلک دي چې هغه ستاسو تابع او خادمان دي. هغوی سره نه د

لَا يَبْغُونَ أَهْلًا وَلَا مَالًا

ښځې خواهش وي او نه د مال پرواه (یعني نه خوبې هغوی سره د ښځې پرواه وي چې د هغې په ذریعه سره هغه خپل جنسي خواهش

وَ الْخَائِنُ الَّذِي لَا يَخْفَى

په جائز توګه سره پوره کړی شي او نه هغوی ته د هغه مال و زر طلب وي دویم هغه سړی چې هغه خائن او بد دیانت وي چې د هغه

لَهُ طَمَعٌ وَ إِنْ دَقَّ إِلَّا خَانَهُ

طمع څښتېشي هم د هغه د لاس نه تللو نه پټ نه وي، دې لپاره چې هغه په دې کې بد دیانتي وکړی شي. که هغه هر څو مره ور کوټی

وَ رَجُلٌ لَا يُصْبِحُ وَلَا يُمْسِي إِلَّا وَ هُوَ يُخَادِعُكَ عَنْ أَهْلِكَ وَ مَالِكَ

او کم شی ولې نوي. او دریم هغه سړی چې هغه سحر او ماښام تاسو لره ستا په اهل کې د هو که درکولو په سوچ کې

وَ ذَكَرَ الْبُخْلَ أَوِ الْكَذِبَ وَ الشِّنْظِيرُ الْفَحَّاشُ " . ( رَوَاهُ مُسْلِم ) .[1]

اخته وي. دغه شان نبي کريم ﷺ د بخيل او دروغژن او بد اخلاقه فحش ګو ذکر وکړو. (مسلم)

**توضيح** :ذو سلطان: يعني د حکومت او سلطنت هغه مشر چې هغه عدل او انصاف کوي او د ولس سره ښه او د احسان معامله کوي. او د الله تعالى د اړخ نه هغه ته د صحيح فيصله کولو توفيق ورکړې شوې وي. د هغه په هره فيصله کې د الله تعالى توفيق او مرسته او نصرت او اعانت شامل وي. او د انجام په اعتبار سره د هغې فيصله مثلاً د چا تاکنه نائده منده ثابته شي، دغه شان سلطان مقسط، متصدق او موفق به په اهل جنت کې وي. (مرقات: ۸/۶۹۳)

**لکل ذی قربی**: يعني د خپلوانو لپاره نرم زړه والا وي. (مرقات: ۸/۶۹۳)

**ومسلم**: دا لفظ مجرور دی يعني د هر مسلمان لپاره هم رحم دل او نرم زړه والا وي. **وعفيف متعفف**: يعني دريم قسم هغه سړی دی چې هغه عفيف وي يعني حرام او حلال فرق ساتلو سره د خپل ځان د حرامو نه ساتي.

**متعفف**: يعني سوال کولو او خيرات غوختلو نه ځان ساتي. عيالدار وي خو په مکمله توګه باندې خپل رب باندې بهروسه کوي، او داري قسمه خلک جنتيان دي. (مرقات: ۸/۶۹۳)

پاس بيان شوؤ درې قسمه خلکو په مقابله کې پنځه قسمه خلک داسي دي چې هغه دوزخيان دي. دهغوې تفصيل دا دی: الضعيف: يعني د کمزورې عقل والا سړی دی دهغه کمزوری عقل هغه د بيکاره کارونو نه نشي منع کولی. خپله معتوه دی، دنورو تابع وي، او په هغې کې بې قاعدګې کوي، بې لارېتوب کوي، خپله هيڅ رايه نه لري. بس د اقتدار خاوند پسې مخکې وروسته ګرځي. چمچه توب کولو کې وخت تيروي. د نفساني خواهشاتو تابع وي. خود غرضی د وجې نه هر څه ترلاسه کولو لپاره تيار شي. **لازبرله**: زبر عقل او کمال او صبر ته وايي.

**لايبغون اهلا**: يعني هغه معتوه او بې عقله د خپلې حلال ښځې سره د تعلق ساتلو بيخې سوچ نکوي بلکې هغه ناجائز او حرام ذريعو سره د خپل جنسي خواهشات پوره کولو په سوچ کې اخته وي. ولا مالا: يعني هغه سره دا فکر هم نوي چې د حلال مال ګټلو څه اهميت دی. او د هغې څه قدر او قيمت دی. بس دا عاجز فقط خوراک څکاک پيژني، نور د حلالو څه فکر ورسره نوي، ډير خوشحاله وي. نو داسې معتوه او کم عقل، خواهش پرست او چاپلوسې کونکی سړی دوزخې دی. اسلام غواړي چې دهغه منونکې خوددار وي، د نفس د عزت مالک وي. او په خپلو خپو باندې په خپل اعتماد سره ولاړ وي. او هوښيار بيدار او ويخو مازغو والا وي.

---

([1]) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۱۹۷ رقم الحديث (۲۸۶۵-۶۳) واحمد في المسند ۴/۲۶۱.

**والخائن:** طمع یې مصدر دی. خو د مطموع په معنې کې مفعول دی. مطلب دا دی چې داسې خائن چې د ... په نظر کې د وړوکې نه وړوکی شی هم وي چې دا هغه ترلاسه کړي، کله چې ده ته هغه مطلوب ترلاسه شي نو ... ستې په هغې کې خیانت کوي. ګویا د خیانت په شعبه کې دتباه حال والا سړی دی. حسن بصری رحمه الله و فرمایل: **الطمع فساد الدین والورع صلاحه. دَقَّ:** ډیر لږ قلیل شی ته ویل کیږي.

**عن اهلك ای بسبب اهلك:** یا د سبب لپاره ده. (مرقات: ۸/۶۹۶)

**وذکر:** صحابی ته د نبی کریم ﷺ د مبارکې ژبې الفاظ یاد نه ؤ، نو ځکه یې وذکر وفرمایل چې نبی کریم ﷺ بخل او دروغ هم ذکر کړل. **والشنظیر: علی وزن الخنزیر:** بدښویه، بداخلاقه او بدې فاحشې وېناوې کونکې ته ویل کیږي. ګویا فحاش د دې تفسیر دی. (مرقات: ۸/۶۹۶)

**البخل او الکذب:** اکثر نسخو کې او د شک لپاره دی. دغه شان پنځه شیان به پوره شي. **الضعیف، الخائن، الخادع، البخیل، الشنظیر.**

## څه چې د ځان لپاره خوښ کړي هغه د خپل ورور لپاره هم خوښ کړه

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۵﴾ | وَعَنْ | أَنَسٍ | قَالَ: | قَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: | «وَالَّذِي |
| او حضرت انس رضی الله عنه فرمایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل: قسم په هغه خدای باندې چې د هغه په فراخه قدرت | | | | | | | | |
| نَفْسِي | بِيَدِهِ | لَا | يُؤْمِنُ | أَحَدٌ | حَتَّى | يُحِبَّ | | |
| کې زما ځان دی هیڅ بنده تر هغه وخته پورې کامل مؤمن نشي جوړېدلی تر څو چې هغه د خپل مسلمان | | | | | | | | |
| لِأَخِيهِ | مَا | يُحِبُّ | لِنَفْسِهِ» | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] | | | | |
| ورور لپاره هغه څه ونه غواړي کوم چې د ځان لپاره خوښوي. (بخاری او مسلم) | | | | | | | | |

**توضیح:** مایحب لنفسه: **ای مثل ما یحب لنفسه** : دا مطلب ندی چې خپل خوښ شی بل چا ته ورکړي، بلکې مطلب دا دی چې د خپل خوښ شي په شان د خپل ورور لپاره هم خوښ کړي، په دې کې خواخوږي ده. یعنې خپله عالِم دی نو دغه شان عِلم د نورو لپاره خوښ کړي. خپله د ښه ګاړې یا ګهرې والا دی نو دغه شان ګاړې او ګهرې د خپل مسلمان ورور لپاره هم خوښه کړي. او د زړه نه ارزو وکړي چې د هغوې سره هم داسې دې راشي. (مرقات: ۸/۶۹۷)

## خپل ګاونډي تنګول لوی جرم دی

﴿۱۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «وَاللهِ لَا يُؤْمِنُ

او حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: قسم په خدای دی دهغه سړی ایمان (کامل)

وَاللهِ لَا يُؤْمِنُ وَاللهِ لَا يُؤْمِنُ»

ندی! قسم په خدای دی دهغه سړي ایمان (کامل) ندی! (کله چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم بیا بیا دا الفاظ ارشاد وفرمایل او د

قِيلَ: مَنْ يَا رَسُولَ اللهِ؟ قَالَ:

هغه سړي وضاحت يې ونکړونو) صحابو پوښتنه وکړه چې یا رسول الله صلی الله علیه وسلم! هغه سړی څوک دی؟

« الَّذِي لَا يَأْمَنُ جَارُهُ بَوَائِقَهُ » . ( مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ ) . [1]

نبی علیه السلام وفرمایل: هغه سړی دی چې دهغه ګاونډي د هغه د بدو او هغه د شر نه محفوظ او په امن کې نه وي.

﴿۱۷﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ :

او حضرت انس رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: هغه سړی (خلاصی موندونکو او سابقینو سره)

« لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مَنْ لَا يَأْمَنُ جَارُهُ بَوَائِقَهُ » . ( رَوَاهُ مُسلم ) . [2]

جنت ته نشي داخلیدلی د چا ګاونډیان چې دهغه د بدو او شر نه محفوظ او په امن کې نه وي. (مسلم)

﴿۱۸﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ وَ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت عائشه رضي الله عنها او حضرت ابن عمر رضي الله عنه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي چې

قَالَ : « مَا زَالَ جِبْرِيلُ يُوصِينِي بِالْجَارِ

نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: حضرت جبرائیل علیه السلام به همیشه لپاره ماته د ګاونډي د حق د لحاظ ساتلو حکم راکولو،

حَتَّى ظَنَنْتُ أَنَّهُ

تردې چې زما دا خیال شو چې حضرت جبرائیل علیه السلام (د حکم الهی په مطابق په ذریعه د وحي سره)

---

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۴۳ رقم الحديث ۶۰۱۶.

[2] اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۶۸ رقم الحديث (۴۶-۷۳) واحمد في المسند ۲/۱۳۷۳.

| سَيُوَرِّثُهُ » | (مُتَّفق | عَلَيْهِ)[1] |
|---|---|---|
| ډیر ژر به ګاونډیان د یو بل وارثان وګرځوي. (بخاري او مسلم) | | |

## د دریم سړي په شتون کې دې دوه کسان خپل منځ کې په غوږ کې خبرې نکوي

| ﴿۱۹﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا كُنْتُمْ ثَلَاثَةً |
|---|
| حضرت عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: كه تاسو درې كسان |
| فَلَا يَتَنَاجَى اثْنَانِ دُونَ الْآخَرِ |
| يو ځاې یاستنو دوه كسان دې داسې غوږې (يو بل ته پټې خبرې) نكوي چې هغه دريم سړی یې وانوري، |
| حَتَّى تَخْتَلِطُوا بِالنَّاسِ مِنْ |
| تردې چې هغه ډيرو كسانو سره يو ځاې شي. او دا (منع والی) د دې وجې نه دی چې د دې دواړو دا كار (يعني خپل مينځې |
| أَجْلِ أَن يحزنهُ» . (مُتَّفق عَلَيْهِ).[2] |
| غوږې) دغه (دريم سړی) غمژن كوي |

**توضيح**: مثلاً د سفر په دوران کې یا په کوم ځانله ځاې کې درې کسان په سفر کې بوخت دي یا مقیم دي نو دا جائز ندي چې دوه کسان بیل بیل او ږدي مشورې شروع کړي. ځکه چې په دې سره به هغه سړی ویریږي چې دا دواړه زما په خلاف باندې څه منصوبه جوړوي. هو! کله چې په آبادۍ کې د خلکو سره یو ځاې شي بیا دې یو اخې مشوره کوي ځکه چې په دې کې هغوی ته به څه پریشانې نه وی. (مرقات: ۸/۶۹۹)

## دين د ښيګړي نوم دی

| ﴿۲۰﴾ وَعَن تَمِيم الدَّارِيِّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «الدِّينُ النَّصِيحَةُ» |
|---|
| او حضرت تميم داري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: دين نصيحت دی. |
| ثَلَاثًا. قُلْنَا: لِمَنْ؟ |
| نبی عَلَيْهِ السَّلَام دا خبره درې ځله وفرمایله (يعني صحابه كرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُم) پوښتنه وكړه چې دا نصيحت او ښيګړه د چا لپاره ده. |
| قَالَ: «لله وَلِكِتَابِهِ وَلِرَسُولِهِ |
| او د چا په حق كې كول دي؟ نبی كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: د خداى لپاره، خداى د كتاب لپاره، |

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۴۱ رقم الحديث ۶۰۱۵، ۶۰۱۴ ومسلم في ۴/۲۰۲۵ رقم الحديث (۲۶۲۴-۱۴۰)

(۲) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۸۲ رقم الحديث ۶۲۹۰ ومسلم في ۴/۱۷۱۸ رقم الحديث (۲۱۸۴-۳۷)

| وَ لِأَئِمَّةِ الْمُسْلِمِينَ وَ عَامَّتِهِمْ » . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ) [1] |
|---|
| مسلمانانو د امامانو (يعني د اسلامي حکومت د مشرانو او علماؤ) لپاره او د ټولو مسلمانانو لپاره. (مسلم) |

**توضیح**: **لِلّٰهِ**: الله تعالی لپاره خیر خواهي دا ده چې د هغه دین قبول کړی شي. د هغه په ذات او صفاتو کې څوک شریک نکړی شي. د هغه د یووالي اقرار په هغه توګه باندې وشي څنګه چې د قرآن اعلان دی. د هغې په اوامرو او نواهیو باندې پورا عمل وکړی شي. او په دې دنیا ما بعد الدنیا باندې هغه علی الاطلاق باچا ومنلی شي. او د هغه د نعمتونو شکریه ادا کړی شي. **ولکتابه**: د کتاب نه مراد قرآن کریم دی. د هغې په حق کې خیر خواهي دا ده چې هغه د الله تعالی د اړخه رالیږلی شوی آخرې کتاب ومنلی شي. هر قِسم بدلون او تحریف نه محفوظ ومنلی شي. د هغې په حکمونو او تعلیمونو باندې مکمل عمل وکړی شي. او هغه د ټولو انسانانو لپاره لارښود کتاب ومنلی شي. او د هرې زمانې لپاره د هغې تعلیمات مؤثر او کافي شافي ومنلی شي. (مرقات: ۸/۷۰۱)

**ولرسوله**: د رسول نه مراد محمّد رسول الله ﷺ دی. د رسول الله ﷺ په حق کې خیر خواهي دا ده چې نبی ﷺ د الله تعالی ریښتونی او آخري پیغمبر ومنلی شي. د نبی ﷺ سره مینه وساتلی شي. او د نبی ﷺ اطاعت وکړی شي. د نبی ﷺ راوړلی شوې شریعت باندې عمل وکړی شي. د نبی ﷺ پیغام د دنیا د ټولو پیغامونو نه وچت او اعلیٰ پیغام تصور کړی شي. نبی ﷺ له د خپل ځان او د خپلوانو نه ډیر محبوب ومنلی شي او د نبی ﷺ اهل بیت او صحابه رضي الله عنهم سره عقیدت او مینه وساتلی شي. د نبی ﷺ په اړه دا عقیده وساتلی شي چې کوم امانت او رسالت الله تعالی نبی ﷺ ته سپارلی ؤ، نبی کریم ﷺ په احسن طریقې سره هغه امانت انسانانو ته ورسولو، نبی ﷺ د الله تعالی غوره پیغمبر ؤ. او د نورو پیغمبرانو په شان د دې فاني دنیا نه دارِبقاء ته تللی دی. (مرقات: ۸/۷۰۱،۷۰۲)

**ولائمة المسلمین**: مسلمانانو د امامانو او حکمرانانو په حق کې دا خیرخواهي ده چې په ټولو جائز کارونو کې د هغوې اطاعت وکړی شي. هر قِسم بغاوت او سرکشي نه ځان وساتلی شي. د هغوې دینې حالت ښه کولو لپاره هر ممکن کوښښ وکړی شي. او هغوې په ښه دعاګانو سره یاد کړی شي. (مرقات: ۸/۷۰۲)

**وعامتهم**: یعني د عام مسلمانانو لپاره دین ښیګړه او نصیحت دی. عام مسلمانانو په حق کې خیر خواهي دا ده چې سړی د هغوې دینې او دنیوي ښیګړي غوختونکی وي. هغوې ته د دین تعلیمات ورسوي. او د

---

([1]) أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۷۴ رقم الحديث (۵۵-۵۹) والترمذي في السنن ۵/۲۸۶ رقم الحديث ۱۹۲۶.

ښیګړې دعوت عام کړي. او هغوی ته د تکلیف ورکولو نه ځان وساتي. او هغوی لره د هر نقصان نه ساتلو کوښښ وکړي. د هغوی سره ښه ښوېې وکړي. او د فائده ورکولو په کوښښ کې وي. (مرقات: ۸/۷۰۲)

## د هر مسلمان د ښیګړې سره متعلق د جریر بن عبدالله قصه

| ﴿۲۱﴾ عَن جرير بن عبد الله قَالَ : بَايَعْتُ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَلَى |
|---|
| او حضرت جریر ابن عبدالله رضی الله عنه فرمايي چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره په دې خبره باندې بیعت وکړو چې |
| إِقَامِ الصَّلَاةِ وَ إِيتَاءِ الزَّكَاةِ وَ النُّصْحِ لكل مُسلم. ( مُتَّفق عَلَيْهِ) [۱] |
| پابندۍ سره به لمونځ کوم. زکوة به ادا کوم. او د هر مسلمان په حق کې به خیرخواهي کوم. (متفق علیه) |

**توضیح**: عن جریر بن عبدالله : حضرت جریر بن عبدالله رضی الله عنه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د وفات نه څو میاشتې مخکې اسلام راوړی ؤ. نبی کریم صلی الله علیه وسلم هغه ته د هر مسلمان سره د ښیګړې تاکید کړی ؤ. هغه په دې خبره باندې بیعت وکړو او په دې باندې یې دومره عمل وکړو چې دنیا حیرانه پاتې شوه. د هغه یوه قصه ده چې هغه د یو سړي نه درې سوه درهمو په بدله کې یو اس واخستلو. او بیا یې هغه سړي ته وویل چې ستا اس د درې سوه درهمو نه ډیر قیمت دی. آیا ته به دا په څلور سوه درهمه باندې خرڅ کړې. هغه سړي ورته وویل چې ستا خوښه. بیا حضرت جریر رضی الله عنه وفرمایل چې ستا اس د څلور سوه درهمو نه ډیر قیمت ده. آیا ته به دا په ما باندې په پنځه سوه درهمه باندې خرڅ کړې؟ هغه وویل: ستا خوښه ده. دغه شان جریر رضی الله عنه د اس قیمت ډیرولو ډیرولو تردې چې نهه سوه درهمه په بدله کې واخستلو. چا ورته وویل: دا تا څه وکړل؟ خپله دې پیسې ډیرې کړې؟ هغه وفرمایل چې ما د نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره بیعت کړی دی چې د هر مسلمان ښیګړه به کوم. دا سړي د اس په قیمت باندې نه پوهیدلو. ما د هغه سره ښیګړه وکړه. حضرت جریر بن عبدالله بَجَلی ډیر زیات ښائسته ؤ. د دې امت د یوسف په لقب سره به یادولی شو. (مرقات: ۸/۷۰۳)

## الفصل الثاني

## د بدبخته سړي زړه د نرمۍ نه خالي وي

| ﴿۲۲﴾ عَن أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا الْقَاسِمِ الصَّادِقَ الْمَصْدُوقَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
|---|
| او حضرت ابو هریره رضی الله عنه فرمايي: ابو القاسم صلی الله علیه وسلم چې صادق او مصدوق دی، ما ترینه دا اوریدلي دي |
| «لَا تُنْزَعُ الرَّحْمَةُ إِلَّا |
| چې رحمت یعنې د خدای په مخلوق باندې د رحم او شفقت جذبه د هیچا د زړه نه نه ایستلی کیږي. |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵/۳۱۲ رقم الحديث ۲۷۱۵، ومسلم في ۲/۵۷ رقم الحديث (۵۶-۹۷)

| |
|---|
| مَن شقي» (رَوَاهُ أَحْمد وَالتِّرمِذِيّ)[1] |
| خو د بدبخته زړه د دې جذبې نه خالي کړې شي. (احمد وترمذی) |

## ته د زمکې والا باندې رحم وکړه آسمان والا به په تا باندې رحم وکړي

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الرَّاحِمُونَ |
| او حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل: د خداى په مخلوق باندې رحم |
| يَرْحَمُهُمُ الرَّحْمَنُ ارْحَمُوا مَنْ فِي الْأَرْضِ |
| او شفقت کونکو باندې د رحمن رحمت نازلیږي. لهٰذا تاسو د زمکې والا باندې رحم او شفقت کوی. |
| يَرْحَمْكُمْ مَنْ فِي السَّمَاءِ " . ( رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَ التِّرمِذِيُّ )[2] |
| دې لپاره چې تاسو باندې هغه رحم وکړي څوک چې په آسمان کې دی. (ابوداؤد او ترمذی) |

## په کشرانو باندې شفقت نه کونکی د دې امت فرد نه دی

| |
|---|
| ﴿۲۴﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : لَيْسَ مِنَّا |
| او حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل: هغه سړی زمونږ په تابعدارۍ |
| مَنْ لَمْ يَرْحَمْ صَغِيرَنَا وَلَمْ يُوَقِّرْ |
| کونکو کې ندی چې هغه زمونږ په کشرانو باندې شفقت نکوي، زمونږ د مشرانو (که هغه ځوان وي |
| كَبِيرَنَا وَيَأْمُرْ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَ عَنِ الْمُنْكَرِ |
| او که بوډا) د عزت خیال نه ساتي. د نیکۍ او ښیګړې حکم ونکړي او د بدۍ نه منع ونه کړي. دا |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[3] |
| روایت ترمذی نقل کړیدی او ویلي یې دي چې دا حدیث غریب دی. |

---

(1) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۲۲۳ رقم الحديث ۴۹۴۲، والترمذي في السنن ۴/۲۸۵ رقم الحديث ۱۹۲۳.

(2) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۲۳۱ رقم الحديث ۴۹۴۱، والترمذي في السنن ۴/۲۸۵ رقم ۱۹۲۴.

(3) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۲۸۴ رقم الحديث ۱۹۲۱.

## كه خپل عزت كول غواړي نو د خپلو مشرانو عزت كوه

﴿۲۵﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا أَكْرَمَ شَابٌّ شَيْخًا

او حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: كوم زلمى چې هم د كوم بوډا عزت

مِنْ أَجْلِ سِنِّهِ إِلَّا قَيَّضَ اللهُ لَهُ عِنْدَ سنه

او تعظيم د هغه د بوډاوالي په وجه باندې كوي نو الله تعالى به د هغه د بوډاوالي په وخت كې يو

من يُكرمهُ» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ)[1]

داسې څوک ټاكي چې هغه د ده تعظيم او خدمت وكړي. (ترمذى)

## عالم دين، حافظ قرآن او د عادل باچا عزت د الله تعالى عزت دى

﴿۲۶﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ مِنْ إِجْلَالِ اللهِ إِكْرَامَ

او حضرت ابوموسى رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د مسلمان عزت او تعظيم كول،

ذِي الشَّيْبَةِ المسلمِ وَحَامِلُ الْقُرْآنِ غَيْرَ الْغَالِي فِيهِ

حامل قرآن يعني حافظ او مفسر او قرآن لوستونكې عزت كول، په داسې حال كې چې هغه په قرآن كې زياتې كونكى

وَلَا الْجَافِي عَنْهُ وَإِكْرَامُ السُّلْطَانِ الْمُقْسِطِ» (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ»)[2]

او د قرآن نه اوختونكى نه وي، او عادل باچا تعظيم كول، دا ټول د خداى په تعظيم كې دي. (ابوداؤد او بيهقى)

**توضيح:** ذى الشيبة: د دې نه مراد بوډا سړى دى. چې دهغه ږيره سپينه وي او پرهيزګاره وي.

حامل القرآن: د دېنه مراد عالم باعمل دى. او د دېنه حافظ قرآن هم مراد دى. دواړه حامل قرآن دي. غير الغالى: يعنې د قرآن په الفاظو او معانې كې د شرعې حد نه تجاوز نكوي. دغه شان نه په هغې كې شک كوي. نه خيانت كوي، نه د كومې وسوسې خكار كيږي. او نه د بدعتيانو په شان باطل تاويلونه كوي، ولاالجافى عنه: اى غير المتباعد عنه: يعنې د قرآن حكمونه، او دهغې د تعليماتو نه مخ اړولو او ليرې تختيدونكى نه وي، او نه قرآن هيرونكى وي. (مرقات: ۸/۷۰۶)
شرح السنة كې د حضرت طاؤس رحمه الله نه روايت نقل شويدى: په هغې كې د تعظيم كولو والا پنځم سړى هم شامل كړى شويدى چې پلار دى.

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۲۷ رقم الحديث ۲۰۲۲.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۱۷۴ رقم الحديث ۳۸۴۳، والبيهقي في شعب الايمان ۷/۴۶۰.

## د یتیم په معامله کې غوره او بدتر کور

| ﴿۲۷﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «خَيْرُ بَيْتٍ فِي الْمُسْلِمِينَ |
|---|
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: د مسلمانانو په کورونو |
| بَيْتٌ فِيهِ يَتِيمٌ يُحْسَنُ إِلَيْهِ وَشَرُّ بَيت |
| کې غوره کور هغه دی چې په هغې کې کوم يتيم وي. او د هغې سره ښه ښويې کيدلی شي. او د مسلمانانو په |
| فِي المسلمينَ بيتٌ فِيهِ يَتِيم يساء إِلَيْهِ » ( رَوَاهُ ابْن مَاجَه )[1] |
| کورونو کې بدترين کور هغه دی چې په هغې کې يتيم وي او د هغې سره بد ښويې کيدلی شي. (ابن ماجه) |

**توضيح:** يعنې غوره کور هغه دی چې په هغې کې د يتيم سره ښه ښويې کيدلی شي. او بدترين کور هغه دی چې په هغې کې د يتيم سره بد ښويې کيدلی شي.

## د يتيم په سر باندې د شفقت لاس راخکونکې فضيلت

| ﴿۲۸﴾وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ |
|---|
| او حضرت ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: کوم سړی (د بل څه جذبې او غرض په خاطر نه |
| مَسَحَ رَأْسَ يَتِيمٍ |
| بلکې) فقط د خدای د رضا او خوشحالۍ ترلاسه کولو لپاره د کوم يتيم ماشوم (جينۍ يا هلک) په سر باندې |
| لَمْ يمسحه إلاالله كَانَ لَهُ |
| (مينې او محبت او شفقت سره) لاس راکاږي نو د هغه لپاره د يتيم په سر باندې ويختان د هغې په بدله کې چې د ده لاس |
| بِكُلِّ شَعْرَةٍ تَمُرُّ عَلَيْهَا يَدُهُ حَسَنَاتٌ وَمَنْ أَحْسَنَ إِلَى |
| ورباندې لګيدلی وي، نيکۍ ليکلی کيږي. د غه شان کوم سړی چې د دې يتيم هلک يا يتيمې جينۍ سره |
| يَتِيمَةٍ أَوْ يَتِيمٍ عِنْدَهُ |
| چې هغه د ده په پالنه کې وي، ښه ښويې وکړي، (او هغه يتيم که د ده خپلوان وي يا پردی) نو هغه سړی او زه به په |
| كُنْتُ أَنَا وَهُوَ فِي الْجَنَّةِ كَهَاتَيْنِ» وَقرن |
| کې داسې يو. او دې وينا سره نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپلې دواړه ګوتې يو ځای کړې يعنې د جنت شهادت ګوته او |

---

[1] اخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۲۱۳ رقم الحديث ۳۶۷۹.

| |
|---|
| أُصْبُعَيْهِ . (رَوَاهُ أَحْمَدُ |
| منځه ګوته يې يوځاى كولو باندې وښودله چې څنګه زما دا دواړه ګوتې ديو بل سره نژدې دي، دغه شان زه او هغه سړى به په جنت |
| وَ التِّرْمِذِيُّ وَ قَالَ : هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ).[1] |
| كې داسې نژدې يو. دا روايت احمد او ترمذي نقل كړيدى. او ترمذي ويلي دي چې دا حديث غريب دى. |

## دلور، خور دپالنې فضيلت

| |
|---|
| ﴿۲۹﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ آوَى |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: كوم سړى چې په خپل خوراک |
| يَتِيمًا إِلَى طَعَامِهِ وَشَرَابِهِ أَوْجَبَ اللهُ لَهُ الْجَنَّةَ |
| څكاک كې يو يتيم شريک كړي نو الله تعالى (د خپل وعدې مطابق) هغه سړى بې شک او شبه د جنت مستحق ګرځوي |
| أَلْبَتَّةَ إِلَّا أَنْ يَعْمَلَ ذَنْبًا لَا يُغْفَرُ. وَمَنْ عَالَ ثَلَاثَ |
| خو مګر دا چې هغه سړى يو داسې ګناه وكړي چې هغه د ښښلو قابل نه وي. او كوم سړى چې درې |
| بَنَاتٍ أَوْ مِثْلَهُنَّ مِنَ الْأَخَوَاتِ |
| لونه يا د هغوې په شان درې خويندو پالنه وكړي او بيا د هغوې تربيت وكړي او د هغوې سره د مينې |
| فَأَدَّبَهُنَّ وَرَحِمَهُنَّ حَتَّى يُغْنِيَهُنَّ اللهُ |
| او شفقت ښويې وكړي تر دې چې الله تعالى هغوې لره بې پرواه جوړې كړي (يعنې هغه غنې شي او واده شي) |
| أَوْجَبَ اللهُ لَهُ الْجَنَّةَ». فَقَالَ رَجُلٌ: |
| نو الله تعالى هغه د جنت مستحق ګرځوي. دې او ريدلو سره يو صحابي عرض وكړو چې آيا د دوه لونو يا |
| يَا رَسُولَ اللهِ وَاثْنَتَيْنِ؟ قَالَ: «وَاثْنَتَيْنِ» |
| دوه خويندو په پالنه به هم دا اجرور كولى كيږي. نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: هو! په دوه باندې هم دا اجرور كولى كيږي. |
| حَتَّى قَالُوا: أَوْ وَاحِدَةً؟ |
| (راوي فرمايي چې) كه صحابؤ ديوې لور يا يوې خور په پاره باندې هم پوښتنه كړې وى نو نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به هم دا جواب |

---

(۱) أخرجه الترمذ في السنن ۴/۲۸۲ رقم الحديث ۱۹۱۷، واحمد في المسند ۵/۲۶۵.

| |
|---|
| لَقَالَ: وَاحِدَةٌ «وَمَنْ أَذْهَبَ اللهُ بِكَرِيمَتَيْهِ |
| وركولو چې هو په يو باندې هم اجر وركولى كيږي. بيا نبي كريم ﷺ و فرمايل چې الله تعالى د چا دوه خوښ |
| وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ» قِيلَ: يَا رَسُولَ اللهِ وَمَا كَرِيمَتَاهُ؟ |
| شيان واخلي هغه هم د جنت مستحق ګرځوي، پوښتنه وکړې سوه چې يا رسول الله ﷺ دوه خوښ شيانو |
| قَالَ: «عَيْنَاهُ» (رَوَاهُ فِي «شرح السنة»).[1] |
| نه څه مراد دي؟ نو نبي كريم ﷺ و فرمايل چې د هغه دواړه ستر ګي دي. (روايت كړې دې شرح السنة) |

## د ماشومانو ښه روزنه د صدقه کولو نه غوره ده

| |
|---|
| ﴿۳۰﴾ وَعَنْ جَابِرِبْنِ سَمُرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَأَنْ |
| او حضرت جابر بن سمره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ و فرمايل: په خداى قسم د انسان |
| يُؤَدِّبَ الرَّجُلُ وَلَدَهُ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَتَصَدَّقَ بِصَاعٍ» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ |
| خپل ځوې ته د يو ادب يوه خبره ښودل د يو اوړي (صاع) غلې د خيرات كولو نه غوره ده. ترمذى دا |
| وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَنَاصِحٌ الرَّاوِي لَيْسَ عِنْدَ |
| روايت نقل كړيدى او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دى او د دې راوي ناصح د محدثينو په نزد باندې |
| أَصحابِ الحَدِيث بِالْقَوِيّ)[2] |
| (حفظ او ضبط په اعتبار سره) قوي يعني د اعتماد وړ ندى. |

## ماشومانو ته ادب ښودل د هغوې لپاره غوره ډالۍ ده

| |
|---|
| ﴿۳۱﴾ وَعَنْ أَيُّوبَ بْنِ مُوسَى عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ |
| او حضرت ايوب بن موسى رضي الله عنه (د خپل پلار حضرت موسى) نه او هغه د ايوب د نيكه (حضرت سعيد رضي الله عنه) نه |
| أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَا نَحَلَ وَالِدٌ وَلَدَهُ مِنْ نُحْلٍ أَفْضَلَ مِنْ أَدَبٍ حَسَنٍ» |
| نقل كوي چې رسول الله ﷺ و فرمايل: هيڅ پلار خپل ځوې ته د نيک ادب او صحيح روزنې نه غوره |

---

(1) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۲۰ رقم الحديث ۱۹۱۷، والبغوي في شرح السنة ۱۳/۴۴ رقم الحديث ۳۴۵۷.

(2) أخرجه الترمذي في ۵/۲۹۷ رقم الحديث ۱۹۵۱، وأحمدفي المسند ۵/۹۶.

( رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ» وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا عِنْدِي حَدِيث مُرْسل)[1]

شي نه دی ورکړی. ترمذی ویلي دي چې زما په نزد باندې دا حديث مرسل دی. (ترمذی، بیهقی)

**توضیح**: نحل: عطيه، ډالۍ او تحفې ته نحل ويل شويدي. هر سړی غواړي چې هغه دخوشحالی په موقع باندې خپلو بچو ته ډالۍ ورکړي. نو خلک قسما قسم ډالۍ راوړي خو په دې حديث کې دا وويلی شول چې کشرانو ماشومانو لپاره غوره ډالۍ هغه ته ادب ښودل دي. وجه دا ده چې ادب يو داسې ښايست دی چې هغه په هره زمانه او هر عمر کې خپل ښايست او سنګار او خپل حسن ښايې. (مرقات: ۸/۷۱۲)

## د ماشومانو په پالنه کې مشغوله د کونډې ښځې فضيلت

﴿۲۲﴾وَعَن عَوف بن مَالك الْأَشْجَعِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَنَا

او حضرت عوف بن مالک اشجعی رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمايل: زه او هغه

وَامْرَأَةٌ سَفْعَاءُ الْخَدَّيْنِ

ښځه چې دهغې اننګي (د خپل اولاد په پالنه کې په محنت او مشقت او د زينت او ښايست پرېخودلو په وجه باندې) تور شوي وي.

كَهَاتَيْنِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ». وَأَوْمَأَ يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ

د قيامت په ورځ به داسې يو. د دې حديث راوي يزيد بن زريع دا الفاظ بيانولو نه وروسته منځينی ګوتې او

إِلَى الْوُسْطَى وَالسَّبَّابَةِ «امْرَأَةٌ آمَتْ مِنْ زَوْجِهَا

شهادت ګوتې اړخ ته اشاره کولو سره وفرمايل هغه ښځه ده چې هغه د خپل خاوند د مړکيدلو يا د طلاق ورکولو په وجه باندې کونډه

ذَاتُ مَنْصِبٍ وجمالٍ حبَستْ نفسها

يا مطلقه شوي وي او هغه حسين او جميل او د مال او عزت خاونده کيدلو سره هم فقط د خپل يتيمانانو بچو د

على يتاماها حَتَّى

پالنې او ښيګړې په خاطر (دويمې نکاح کولو نه) خپل ځان وساتي تر دې چې هغه ماشومان جدا شي (غټ او

بانوا أو ماتوا » ( رَوَاهُ أَبُو دَاوُد )[2]

بالغ کيدلو په وجه باندې خپلې مور ته محتاج نه وي) يا مرګ د هغوی په مينځ کې بيلتون راولي (ابوداؤد)

---

(1) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۲۹۸ رقم الحديث ۱۹۵۲ واحمد في المسند ۴/۷۸ والبيهقي في شعب الايمان ۶/۳۹۹ رقم ۸۶۵۳.

(2) اخرجه ابوداود في السنن ۵/۳۵۶ رقم الحديث ۵۱۴۹ واحمدفي المسند۶/۲۹.

## د ښځه په ورکولو کې ځوي لره په لوړ باندې ترجيح ورکول جائز ندي

﴿۳۳﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ كَانَتْ لَهُ أُنْثَى فَلَمْ

او حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايي چې نبي صلی الله علیه وسلم و فرمايل: د کوم سړي کوم ه لور يا خور وي او هغه خو نه دا

يَئِدْهَا وَلَمْ يُهِنْهَا وَلَمْ يُؤْثِرْ وَلَدَهُ

ژوندې په قبر کې خخه کړي، نه هغه د ذلت او سپکاوي سره وساتي او نه د ښځه په ورکولو کې خپل ولد يعني ځوي

عَلَيْهَا - يَعْنِي الذُّكُورَ أَدْخَلَهُ اللهُ الْجَنَّةَ » ( رَوَاهُ أَبُودَاوُد )[1]

ته په هغې باندې ترجيح ورکړي نو الله تعالى به هغه (سابقين او نيکانو سره) جنت ته داخل کړي. (ابوداؤد)

## خپلې مخې ته پر دى غيبت مه اوره بلکې منع يې کړه

﴿۳۴﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ : « مَنِ

او حضرت انس رضي الله عنه د نبي کريم صلی الله علیه وسلم نه روايت کوي چې رسو الله صلی الله علیه وسلم و فرمايل: د کوم سړي مخې

اغْتِيبَ عِنْدَهُ أَخُوهُ الْمُسْلِمُ وَهُوَ يَقْدِرُ على نصرِه

ته د هغه د مسلمان ورور غيبت وکړې شي او دا د هغې په مرسته کولو باندې قادر وي چې غيبت کونکی منع کړي

فنصرَه نصرَه الله فِي الدِّينَا وَالْآخِرَةِ. فَإِنْ لَمْ يَنْصُرْهُ وَهُوَ يَقْدِرُ

نو هغه يې مرسته وکړه نو الله تعالى به د دنيا او آخرت کې د هغه مرسته کوي. او که هغه مرسته کونکي قادر

عَلَى نَصْرِهِ أَدْرَكَهُ اللهُ بِهِ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ» ( رَوَاهُ فِي «شرح السّنة»)[2]

کيدلو باوجود هم مرسته ونکړي نو الله تعالى به په دنيا او آخرت کې د هغه مواخده کوي. (شرح السنة)

## د مسلمان د عزت ساتنه کولو باندې د دوزخ اور حراميږي

﴿۳۵﴾وَعَنْ أَسماءَ بنت يزِيد قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ ذَبَّ عَنْ

او حضرت اسماء بنت يزيد فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمايل: څوک چې د خپل مسلمان ورور

---

([1]) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۳۵۴ رقم الحديث ۵۱۴۶،وأحمد في المسند۱/۲۲۳ .

([2]) أخرجه البغوي في الشرح السنة ۱۳/۱۰۷ رقم الحديث ۳۵۳۰.

لَحمِ أَخِيهِ بِالْمَغِيبَةِ كَانَ حَقًّا عَلَى اللهِ أَنْ يُعْتِقَهُ مِنَ النَّارِ» (رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي «شعب الْإِيمَانِ»)[1]

غوښه د هغه په نشتوالي کښې د خوړلو نه منع کړي نو په الله تعالی باندې دا حق دی چې هغه به دا د دوزخ د اور نه ازاد وي. (بیهقی)

## د مسلمان عزت بچ کول غټ ثواب دی

﴿۳۶﴾ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «مَا مِنْ

او حضرت ابو درداء رضی الله عنه فرمایي چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا اوریدلي دي چې کوم مسلمان

مُسْلِمٍ يَرُدُّ عَنْ عِرْضِ أَخِيهِ

څوک د خپل مسلمان ورور د بی عزته کولو یعني د هغه د غیبت کولو نه منع کړي او د هغې ساتنه وکړي

إِلَّا كَانَ حَقًّا عَلَى اللهِ أَنْ يَرُدَّ عَنْهُ نَارَ جَهَنَّمَ

نو الله تعالی باندې حق دی چې هغه ده لره د قیامت په ورځ باندې د اور نه وساتي یا د ده نه د دوزخ اور

يَوْمَ الْقِيَامَةِ». ثُمَّ تَلَا هَذِهِ الْآيَةَ: ﴿وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نصرُ الْمُؤْمِنِينَ﴾ (رَوَاهُ فِي «شرح السنة»)[2]

لیرې وساتي. بیا نبی کریم صلی الله علیه وسلم دا آیت ولوستلو ﴿وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نصرُ الْمُؤْمِنِينَ﴾ (شرح السنة)

## د مسلمان مرسته کولو یا د نه کولو ثمره

﴿۳۷﴾ وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَا مِنِ امْرِئٍ مُسْلِمٍ

او حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: څوک چې د خپل مسلمان ورور

يَخْذُلُ امْرَأً مُسْلِمًا فِي مَوْضِعٍ يُنْتَهَكُ فِيهِ حُرْمَتُهُ

په هغه ځای کې مرسته ونکړي او غیبت کونکی د هغه د غیبت نه منع نکړي چیرته چې د هغه بی عزتي کیږي

وَيُنْتَقَصُ فِيهِ مِنْ عِرْضِهِ إِلَّا خَذَلَهُ اللهُ تَعَالَى

او د هغه عزت او ناموس ته نقصان رسیږي نو الله تعالی به هم د ده په هغه ځای کې مرسته نکوي چیرته

فِي مَوْطِنٍ يُحِبُّ فِيهِ نُصْرَتَهُ وَمَا مِنِ امْرِئٍ مُسْلِمٍ يَنْصُرُ مُسْلِمًا فِي مَوْضِعٍ

چې دا د خدای مرسته خوښوي او کوم مسلمان سړی چې د خپل مسلمان ورور په هغه موقع باندې

---

(1) اخرجه احمد في المسند ۶/۴۶۱ والبيهقي في الشعب الايمان.

(2) اخرجه البغوي في شرح السنة ۱۳/۱۰۶ رقم الحديث ۳۲۲۸، والترمذي في ۴/۳۲۷ رقم الحديث ۱۹۳۱.

| يُنْتَقَصُ فِيهِ عرضه وينتهك فِيهِ حُرْمَتِهِ |
|---|
| مرسته وکړي چيرته چې د هغه بې عزتی کيږي او د هغه عزت او ناموس ته نقصان رسولی کيږي |
| إِلَّا نَصَرَهُ الله فِي مَوْطِنٍ يُحِبُّ فِيهِ نصرته » . (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1] |
| نو الله تعالى به هم د ده په هغه ځای کې مرسته کوي چيرته چې دا د خدای مرسته خوښوي. (ابوداؤد) |

## په چا کې کوم عيب ويني نو پټ يې کړه

| ﴿۳۸﴾ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ رَأَى |
|---|
| او حضرت عقبه بن عامر رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل: څوک چې په کوم مسلمان کې |
| عَوْرَةً فَسَتَرَهَا كَانَ كَمَنْ |
| کوم عيب ويني يا د هغه بدي وپيژني او بيا هغه پټه کړي نو د ده درجه به د هغه سړي د درجې برابر وي |
| أَحْيَا مؤودة » . (رَوَاهُ أَحْمد وَ التِّرْمِذِيّ وَ صَححهُ ) .[2] |
| څوک چې ژوندۍ خخه کړی شوي جينۍ بچ کړي. احمد او ترمذي دا روايت نقل کړيدی. او دا يې صحيح کرځولی دی. |

**توضيح**: **مؤودة**: يعنې ژوندۍ په قبر کې خخه کړی شوي جينۍ يې ژوندۍ کړه. د دې تشبيه وجه په دې توګه ده مثلا يو عزتمند سړی دی. بدقسمتۍ نه د هغه نه څه ګناه وشوه، وس د شرم له وجې نه هغه دا ارمان کوي چې کاش زما دا عيب ښکاره نشي او کاش زه مړ شم دې لپاره چې د دې شرميدلو نه بچ شم. په دې صورت کې که څوک د هغه عيب پټوي ګويا ده هغه سړی ژوندی کړو. ځکه چې د هغه عيب ښکاره کيدل د هغه لپاره د مرګ برابر وُ. نو په دې پرده راوستلو کې ثواب دی. خو ياده دې وي چې يو سړی د کومې ګناه عادتي دی، بيا بيا ګناه کوي او د هغه دا جرم متعدی کيږي هم نو د هغې ښکاره کول ضروري دي، پټول يې جائز نه دي. (مرقات: ۸/۷۲۰)

## يو مؤمن د بل مؤمن لپاره د شيشې په منزله دی

| ﴿۳۹﴾ هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ أَحَدَكُمْ مِرْآةُ |
|---|
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل: په تاسو کې يو سړی د خپل مسلمان |

---

[1] اخرجه ابوداود في السنن ۵/۱۹۷ رقم الحديث ۴۸۸۴ واحمد في المسند ۴/۳۰ .

[2] اخرجه ابوداود في السنن ۵/۲۰۰ رقم الحديث ۴۸۹۱، والترمذي في ۴/۲۸۷ رقم الحديث ۱۹۳۰.

أَخِيهِ فَإِنْ رَأَى بِهِ أَذًى فَلْيُمِطْ عَنْهُ» (رواه الترمذي ضَعَّفَهُ)

ورور لپاره شيشه ده. لهذا که ته په هغه کې څه بدي ووينې نو د هغه نه هغه بدي ليرې کړه. ترمذي دا ضعيف ګرځولى دى.

و في رواية له و لابي داؤد اَلْمُؤْمِنُ

او د ترمذي يو بل د غه شان ابو داؤد په روايت کې داسې دي چې (نبى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل) يو مسلمان

مِرْاٰةُ الْمُؤْمِنِ وَ الْمُؤْمِنُ اَخُوا الْمُؤْمِنِ يَكُفُّ عَنْهُ

د بل مسلمان آئينه ده او يو مسلمان د بل مسلمان ورور دى. چې دا د هغه نه هغه شى ليرې کوي چې په هغې کې

ضَيْعَتَهُ وَ يَحُوطُهُ مِنْ وَرَآئِه .[1]

د هغه لپاره نقصان او هلاکت وي. او د هغه په نشتوالې کې هم (د هغه حقوق او مفاداتو) ساتنه کوي.

**توضيح: مرآة:** مؤمن خو د بل مؤمن ورور دى. نو دواړه په نفع او نقصان کې شريک دي. که په يو کې څه عيب او نقصان وي او دويم هغه ووينې نو سمدستې دې هغه خبر کړي، دې لپاره چې هغه د دې عيب نه خپل ځان پاک کړي. ځکه چې يو مؤمن د بل مؤمن لپاره شيشې په شان دى. په شيشه کې چې سړى کله ګوري نو هر غټ ورکوټى عيب ورته په نظر راځي ، نو مسلمان ورور لره هم د بل مسلمان لپاره حساس کيدل پکار دي، او د نقصان او تاوان او هلاکت نه هغه ساتل پکار دي. قاعده دا ده چې سړى کله په شيشه کې خپل ځان ګوري نو که هغه ته په مخ باندې څه داغ په نظر راځي نو سمدستې د هغې د ختمولو کوښښ کوي، نو د غه شان کله چې يو مؤمن ورور بل مؤمن ورور ته د هغه عيب ووېله نو هغه لره سمدستې د دغه عيب د ختمولو کوښښ پکار دى. (مرقات: ۸/۷۲۰)

ضيعته: دضاع نه دى، ضائع کيدلو او نقصان او تاوان ته ويلى کيږي، يعنې د دهغې تباهې او هلاکت ايساروي، ځکه چې دواړه خپل مينځ کې ورونه دي. لهٰذا ديو نقصان د بل نقصان دى. (مرقات: ۸/۷۲۰)

ويحوطه: يعنې شا تر شا د هغه خيرخواهي کوي. د هغه د فائدو خيال ساتي. او د هغې د نقصانونو د ليرې کولو کوښښ کوي.

## مؤمن د منافق د شر نه ساتل غټ ثواب دى

﴿۴۰﴾ وَعَن مَعَاذ بن أَنَس قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : «مَنْ حَمَى مُؤْمِنًا

او حضرت معاذ بن انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: کوم سړى چې د يو مسلمان

[1] اخرجه ۴۹۸۵ أبوداود في السنن ۵/۲۱۷ رقم الحديث ۴۹۱۸، والترمذي في ۴/۲۸۷ رقم الحديث ۱۹۲۹.

| مِنْ | مُنَافِقٍ | بَعَثَ | اللهُ | مَلَكًا | يَحْمِي | لَحْمَهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| (عزت اوناموس) د منافق د شر نه وساتي، الله تعالى به د هغه لپاره يوه فرشته راوليږي چې هغه به دا د | | | | | | |

| يَوْمَ | الْقِيَامَةِ | مِنْ | نَارِ | جَهَنَّمَ | وَمَنْ | رَمَى | مُسْلِمًا | بِشَيْءٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قيامت په ورځ باندې د دوزخ د اور نه ساتي. او څوک چې په يو مسلمان باندې د يو داسې څه تهمت ولګوي | | | | | | | | |

| يُرِيدُ | بِهِ | شَيْنَهُ | حَبَسَهُ | اللهُ | عَلَى | جِسْرِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې د هغې په ذريعه سره د هغه مقصد د هغه مسلمان ذات عيبجن کول وي نو الله تعالى به هغه د دوزخ | | | | | | |

| جَهَنَّمَ | حَتَّى | يَخْرُجَ | مِمَّا | قَالَ» | (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1] |
|---|---|---|---|---|---|
| په پُل باندې قيدې کړي، تردې چې هغه د دې تهمت لګونکې د وبال نه ووځي. (ابوداؤد) | | | | | |

**توضيح: منافق:** دلته د منافق نه غيبت کونکى مسلمان مراد دى ځکه چې منافق په خله ډير خوږ وي. خو شاه تر شاه دښمن وي دغه شان منافق په ژبه سره د دوستۍ مظاهره کوي خو په زړه کې دښمنې ساتي. د غيبت کونکې مسلمان معامله به هم د دغه منافق په شان وي په دې حديث کې دا د منافق په لفظ سره ياد کړى شوى.

**رمى مسلماً:** په چا باندې يې څه عيب ولګولو او دروغژن بهتان يېورباندې ولګولو، ګويا هغه د عيب غشى وويشتلو. (مرقات: ۸/۷۲۱)

**شَيْنَهُ:** عيب او سپکاوى او تحقير مراد دى چې په دې تهمت لګولو باندې هغه د مسلمان تحقير او توهين کوى. **جسر جهنم:** يعنې پل صراط باندې به الله تعالى هغه ايسار کړى.

**حتى يخرج:** يعنې تر څو چې د دې ګناه نه پاک شوى نه وي، پل صراط باندې به ولاړ وي. د پاکيدلو صورت يې دا دى چې د حق خاوند راضي کړي يا سزا خوړولو سره پاک شي يا د کوم اړخ نه د هغه شفاعت وشي، نو هله به د دې ګناه نه بيرون راوځي، او جنت به ځي. (مرقات: ۸/۷۲۱،۷۲۲)

## ښه ګاونډې او ښه دوست څوک دى

| ﴿۴۱﴾وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| او حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د خداى په نزد (د ثواب او | | | | | |
| «خَيْرُ | الْأَصْحَابِ | عِنْدَ | اللهِ | خَيْرُهُمْ | لِصَاحِبِهِ |
| فضيلت په اعتبار سره) په دوستانو کې بهترين دوست هغه دى چې هغه د خپلو دوستانو لپاره بهترين خيرخواه وي، | | | | | |

---

[1] اخرجه ابوداود في السنن ۵/۱۹۶ رقم الحديث ۴۸۸۳، واحمد في المسند ۳/۴۴۱ .

وَخَيْرُ الْجِيرَانِ عِنْدَ اللهِ خَيْرُهُمْ لِجَارِهِ»

او د خدای په نزد په ګاونډیانو کې غوره ګاونډي هغه دی چې هغه د خپلو ګاونډیانو غوره خیرخواه

(رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ)[1]

وي. (ترمذی، دارمی) ترمذی ویلي دي چې دا حدیث حسن غریب دی.

## د مخلوق ژبه د خدای نغاره وګڼه

﴿۴۲﴾وَعَن ابْن مَسْعُود قَالَ: قَالَ رجل للنَّبِي الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا رَسُولَ الله

او حضرت ابن مسعود رضی الله عنه فرمايي چې يو سړي نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته عرض وکړو چې يارسول الله صلی الله علیه وسلم!

كَيْفَ لِي أَنْ أَعْلَمَ إِذَا

زه خپله نیکو کاري یا بدکاري څنګه معلومولی شم؟ يعنې که زه يو داسې کار وکړم چې د هغې شرعًا نه والی او بدوالی نه

أَحْسَنْتُ أَوْ إِذَا أَسَأْتُ؟

معلومیږي نو داسې کومه ذریعه ده چې په هغې سره دا معلومه کړم چې هغه کار کولو باندې زه نیکو کار جوړ

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا سَمِعْتَ جِيرَانَكَ

شوی یم یا بد کار؟ نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کله چې ته (د خپل کوم کار په اړه) د خپلو ګاونډیانو نه دا واوري

يَقُولُونَ: قَدْ أَحْسَنْتَ فَقَدْ أَحْسَنْتَ. وَإِذَا سَمِعْتَهُمْ

چې تا ښه کار وکړو نو ستا کار ښه دی. او کله چې ته د ګاونډیانو نه دا واوري چې تا بد کار وکړو نو ستا هغه کار بد

يَقُولُونَ: قَدْ أَسَأْتَ فقد أَسَأْتَ " . (رَوَاهُ ابْن مَاجَه)[2]

دی. يعنې ستا نیکو کار یا بد کار کیدل ستا د ګاونډیانو د ګواهۍ په ذریعه سره معلومیږي. (ابن ماجه)

**توضیح**: جیرانك: يعنې کله چې ته واوري چې ستا ګاونډیان تا ته ښه سړی وایي نو پوهه شه چې ته ښه سړی یې او که ګاونډیان وایي چې بد سړی دی. نو پوهه شه چې ته بد سړی یې. دلته جیران نه دوه څلور کسان مراد ندي بلکې عام ګاونډیان مراد دي. شیخ عبدالحق لیکلي دي چې د ګاونډیانو نه مراد هغه ګاونډیان دي، دچا تعلق چې د اهل حق سره وی. او هغوی د انصاف والا او د پوهې خلک وي. نه دهغه سړي نږدې دوستان وي او نه بیخې د هغه دښمنان وي. دحضرت وینا هم د دې حدیث

---

([1]) اخرجه الترمذي في السنن ۵/۲۹۳ رقم الحديث ۱۹۴۴، والدارمي في ۲/۲۸۴ رقم الحديث ۲۴۳۷.

([2]) اخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۴۱۱ رقم الحديث ۴۲۲۲، واحمد في المسند ۱/۴۰۲.

ترجماني کوي. وې فرمایل: اَلْسِنَةُ الْخَلْقِ اَقْلَامُ الْحَقِّ. د اردو (هندی) متل دی: زبان خلق نقاره خدا (یعني د مخلوق ژبه د خدای نغاره ده) یو شاعر وایي: [اشعة اللمعات]

بُرا کہے جسے عالَم اسے بُرا سمجھو زبانِ خلق کو نقارہ خدا سمجھو

| |
|---|
| ﴿۴۳﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «أَنْزِلُوا النَّاسَ |
| او د حضرت عائشه رضی الله عنها نه روایت دی چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: هر یو سړی د هغه په |
| مَنَازِلَهُمْ» (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1] |
| مرتبه باندې وساته. (ابو داؤد) |

**توضیح: منازلهم:** په دې حدیث سره د مرتبو د فرق تعلیم ورکولی کیږي چې د خادم درجه یوه او د مخدوم مقام بل وي. په فاضل او غیر فاضل کې فرق وي. یو سړی په آس باندې سپور د خپل خادم سره راځي نو د اس یو مقام دی او د خادم بل مقام دی. او په اس سپور مالک بل مقام دی. په یو روایت کې دي: **اکرموا کریم قوم.** اوس مثلا یو سړي په ژوند کې پُرتکلّف خوراک ندی کړی. مثلا هغه چپاتی نده لیدلي، هغه ته چپاتی وړاندې کړي، نو هغه به څه کوي. د هغه مخې ته خو د وربشو ډوډی کیږده، دې لپاره چې هغه خیټه مړه کړي. او یو سړې ټول ژوند نرم خوراکونه کړي دي، هغه ته که د وربشو ډوډی کیږدي نو هغه به دا وایې چې دا خو د سیمټو ډوډی ده. بهر حال په تعظیم او تکریم کې یو شان والی او برابر والی قائمول او د مرتبو فرق ختمول عرفي او شرعي قاعدو په خلاف ده. په جمهوریت دې د الله تعالی لعنت وي، دې د وکړه او مکره مقام ختم کړو. *اگر تو فرق مراتب نہ کنی زندیقے.*

## الفصل الثالث

## دمیني دعوی محنت غواړي

| |
|---|
| ﴿۴۴﴾ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي قُرَادٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ يَوْمًا |
| حضرت عبد الرحمن بن ابی قراد رضی الله عنه نه روایت دی چې (یوه ورځ) رسول الله صلی الله علیه وسلم اودس وکړو نو |
| فَجَعَلَ أَصْحَابُهُ يَتَمَسَّحُونَ بِوَضُوئِهِ فَقَالَ لَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| صحابو د نبی علیه السلام د اودس اوبه په خپل بدن باندې مږل شروع کړي، نبی علیه السلام (دې کتلو باندې) وفرمایل: تاسو |
| «مَا يَحْمِلُكُمْ عَلَى هَذَا؟» قَالُوا: حُبُّ اللهِ وَرَسُولِهِ، |
| چې دا څه کوی، د دې سبب څه دی؟ هغوی عرض وکړو: الله او د هغه د رسول صلی الله علیه وسلم محبت یې سبب دی. |

[1] اخرجه ابوداود في السنن ۵/۱۷۳ رقم الحديث ۴۸۴۲.

| |
|---|
| فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ سَرَّهُ أَنْ يحب الله وَرَسُوله |
| نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل: کوم سړي چې دا خوښوي چې الله او هغه د رسول صلی الله علیه وسلم سره مینه ولري |
| أو يحبه الله وَرَسُولُهُ فَلْيُصَدِّقْ حَدِيثَهُ |
| يا کوم سړي چې دا خوښوي چې الله او د هغه رسول صلی الله علیه وسلم د هغه سره مینه ولري نو هغه له پکار دي چې کله وینا کوي |
| إِذَا حَدَّثَ وَلْيُؤَدِّ أَمَانَتَهُ إِذَا أُؤْتُمِنَ |
| نو ريښتيا وايي کله چې د هغه سره امانت کيخودلی شي نو هغه امانت دې ادا کړي او د ګاونډيانو سره دې |
| وَلْيُحْسِنْ جِوَارَ مَنْ جَاوَرَهُ»[1] |
| د ښه ګاونډ ګيرۍ ثبوت ورکړي. |

**توضیح: حُبُّ اللهِ ورسوله:** صحابه کرامو د نبي کريم صلی الله علیه وسلم د اودس پاتې شوي اوبه خپلو لاسونو او مخونو باندې مږلي. نبي کريم صلی الله علیه وسلم د وجې پوښتنه وکړه نو هغوې وفرمايل چې الله او د هغه د رسول صلی الله علیه وسلم سره يې مينه ده. نو ځکه داسې کوي. نبي کريم صلی الله علیه وسلم په جواب کې وفرمايل، د هغې خلاصه دا ده چې کوم کارونه په نفس باندې ډير ګران نه تيريږي او په هغې کې څه خاص مشقت نه وي. د عشق او محبت په ميدان کې د هغې څه حيثيت نه وي بلکې د دې دعوې د ثبوت لپاره ضروري دي چې الله تعالی او د هغه رسول صلی الله علیه وسلم چې د کومو اوامرو او نواهيو حکم کړيدی. په هغې باندې په مکمله توګه باندې پابند وي. او د حقوق الله او حقوق العباد پورا خيال وساتي. او په دې لاره کې د هر مشقت لپاره تيار شي. پيو ځکونکی مجنون دې نه جوړيږي بلکې وينه ورکونکی مجنون دې جوړ شي او د دې شعر مصداق دې جوړ شي:

هر که عاشق شد اگرچه نازنين عالم است — نازکی کے کار آید باری باید کشید

(مرقات: ۸/۷۲۴)

خدای دې وکړي چې د بريليانو ستر ګي برسيرته شي.

## د ګاونډي خيال ساتل د ايمان برخه ده

| |
|---|
| ﴿۴۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
| او حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايي چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا اوريدلي دي چې هغه سړی |
| «لَيْسَ الْمُؤْمِنُ بِالَّذِي يَشْبَعُ |
| کامل مؤمن نه شي جوړيدلی چې هغه په مړه خيټه باندې خوراک وکړي ، په داسې حال کې چې د هغه |

[1] اخرجه البيهقي في شعب الايمان ۲/۲۰۱ رقم الحديث ۱۵۳۳.

وَ جَارُهُ جَائِعٌ إِلَى جنبه » ( رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي « شعب الْإِيمَان » )[۱]

گاونډي د هغه په څنګ کې وږی وي. دواړه روايتونه بيهقي په شعب الايمان کې نقل کړيدي.

## د ګاونډيانو تنګونکې ښځې عبادت نه قبليږي

﴿۳۶﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ الله

او حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايې چې (يو په مجلس نبوی کې) چا عرض وکړو چې يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ!

إِنَّ فُلَانَةَ تُذْكَرُ مِنْ كَثْرَةِ صَلَاتِهَا وَصِيَامِهَا وَصَدَقَتِهَا

د فلانکۍ ښځې د ډير لمونځونو او روژو و ډيرې صدقې او خيراتونه کولو باندې ډير شهرت دی.

غَيْرَ أَنَّهَا تُؤْذِي جِيرَانَهَا بِلِسَانِهَا. قَالَ:

خو د خپلې ژبې په وجه باندې خپلو ګاونډيانو ته تکليف ورکوي، نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (دې اوريدلو باندې) وفرمايل

« هِيَ فِي النَّارِ » . قَالَ: يَا رَسُولَ الله فَإِنَّ فُلَانَةَ تُذْكَرُ

چې هغه به دوزخ ته ځي. هغه سړي عرض وکړو: يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! د فلانکۍ ښځې په اړه باندې ويلی کيږي

قِلَّةَ صِيَامِهَا وَصَدَقَتِهَا وَصَلَاتِهَا وَإِنَّهَا

چې هغه ډيرې لږې روژې نيسي ډيره لږه صدقه او خيرات کوي او ډير کم لمونځ کوي. او حقيقت دا دی چې د هغې

تَصَدَّقُ بِالْأَثْوَارِ مِنَ الْأَقِطِ وَلَا تؤذي جِيرَانَهَا.

صدقه او خيرات د اقط د څو ټکړو نه ډيرېږي خو هغه په خپله ژبه سره خپلو ګاونډيانو ته تکليف نه ورکوي.

قَالَ: «هِيَ فِي الْجَنَّةِ» (رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي «شعب الْإِيمَان»)[۲]

نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې دغه ښځه به جنت ته ځي. (احمد، بيهقي)

**توضيح:** بلسانها: يعني په ژبه سره ګاونډيانو ته تکليف رسوي. ګنې په عبادت کې ډيره مخکې ده. نفلې لمونځونه کوي او روژې نيسي. نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: دغه شان ښځه به جهنم ته ځي. د دغه شان ښځې عبادت نه قبليږي. ملا علی قاری ليکلي دي چې په نفلې عبادت کې په مشغولتيا سره د حرامو کول د سړي لپاره تباه کونکې ده. ځکه چې په مستحب کې اخته کيدل او په حرامو کې د اخته کيدلو نه ځان نه ساتل تلبيس ابليس دی. (مرقات: ۸/۷۲۵)

---

(۱) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۵/۳۱ رقم الحديث ۵۶۶، وأحمد في المسند ۱/۵۵.

(۲) أخرجه أحمد في المسند ۲/۴۴۰ والبيهقي في شعب الايمان ۷/۷۹ رقم الحديث ۵۹۴۶.

هي في النار: یعنې دې ښځې یو مستحب خپل کړیدی چې د هغې پریخودل مباح او ګاونډیانو ته په تکلیف ورکولو کې اخته شوه چې هغه حرام عمل ؤ نو ځکه دوزخ ته لاړه. ملاعلی قاری رحمه الله لیکلي دي چې هم دغه شان هغه اعمال هم دي چې په هغې کې خلک واقع کیږي. مثلا بیت الله ته ننوتلو په وخت کې خلک رش جوړولو باندې تکلیف رسوي. رکن یماني او حجر اسود باندې رش جوړولو سره تکلیف رسونه کوي، دغه شان ظالمانو او د حرام خورو هغه مال دی چې په هغې سره دوې جوماتونه او مدرسې جوړوي او خلکو باندې خیرات خوري. (مرقات: ۸/۷۲۵)

بالاثوار: دا دثور جمع ده. د پنیر ټوټو ته وایې. د دېنه وروسته د اقط ذکر د تاکید په توګه باندې شویدی. ځکه چې دواړه یو شی دی، یا د تجرید په توګه باندې ذکر شویدی. (مرقات: ۸/۷۲۵)

## د غوره او بدتر سړي معیار

﴿۴۷﴾وَعَنْهُ قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَفَ عَلَى نَاسٍ جُلُوسٍ فَقَالَ:

او حضرت ابوهریره رضي الله عنه فرمایې چې (یوه ورځ) رسول الله صلی الله علیه وسلم د ناستو صحابؤ مخې ته وفرمایل:

«أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِخَيْرِكُمْ مِنْ شَرِّكُمْ؟».

آیا زه دا و وایم چې په تاسو کې د ټولو نه نیک سړی څوک دی او بیا د ټولو نه غوره سړی د بدترین سړي نه جدا کولو سره و ښایم؟

قَالَ: فَسَكَتُوا فَقَالَ ذٰلِكَ

حضرت ابوهریره رضي الله عنه فرمایې چې صحابه (دې اوریدلو سره) چپ پاتې شول. کله چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم

ثَلَاثَ مَرَّاتٍ. فَقَالَ رَجُلٌ: بَلَى يَا رَسُولَ اللهِ أَخْبِرْنَا

مذکوره خبره درې ځل وفرمایله نو یو صحابي عرض وکړو چې هو یا رسول الله صلی الله علیه وسلم! مونږ ته و وایه

بِخَيْرِنَا مِنْ شَرِّنَا. فَقَالَ: «خَيْرُكُمْ

او زمونږ نیکان سړي د بدانو سړو نه بیل او ممتاز کړه. نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: په تاسو کې د ټولو نه غوره

مَنْ يُرْجَى خَيْرُهُ وَيُؤْمَنُ شَرُّهُ وَشَرُّكُمْ

سړی هغه دی چې خلک د هغه نه د نیکۍ توقع وکړي او د هغه د شر نه محفوظ او په امن کې وي. او په تاسو کې

مَنْ لَا يُرْجَى خَيْرُهُ وَلَا يُؤْمَنُ شَرُّهُ» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ»

بدترین سړی هغه دی چې خلک د هغه نه د نیکۍ توقع ونکړي او د هغه د شر نه محفوظ او په امن کې

وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيث حسن صَحِيح»[1]

نه وي. (ترمذی، بیهقی) او ترمذی ویلي دي چې دا حدیث حسن صحیح دی.

## دنیا ښه بد ټولو ته ور کول کیږي خو دین فقط ښه ته ور کول کیږي

﴿۲۸﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ اللهَ تَعَالَى

او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل: الله تعالى ستاسو په

قَسَمَ بَيْنَكُمْ أَخْلَاقَكُمْ كَمَا قَسَمَ بَيْنَكُمْ أَرْزَاقَكُمْ

مینځ کې ستاسو اخلاق هم په دې توګه باندې تقسیم کړیدي څنګه چې یې رزق په تاسو کې تقسیم کړیدی.

إِنَّ اللهَ يُعْطِي الدُّنْيَا مَنْ يُحِبُّ

او حقیقت دا دی چې الله تعالی دنیا خو هغه سړي ته هم ورکوي څوک چې هغه دوست ساتي او هغه سړي ته یې هم ورکوي

وَمَنْ لَا يُحِبُّ وَلَا يُعْطِي الدِّينَ إِلَّا مَنْ أَحَبَّ

څوک چې هغه دوست نه ساتي. لیکن دین یعنې ښه اخلاق فقط هغه سړي ته ورکوي څوک چې هغه دوست ساتي.

فَمَنْ أَعْطَاهُ اللهُ الدِّينَ فَقَدْ أَحَبَّهُ وَالَّذِي نَفْسِي

لهذا د الله تعالی چا لره دین ورکول د دې خبرې نښه ده چې دا هغه دوست ساتلی دی. په هغه ذات مې قسم دی

بِيَدِهِ لَا يُسْلِمُ عَبْدٌ حَتَّى

دا چا د قدرت په لاس کې چې زما ځان دی هیڅ بنده تر هغه وخته پورې کامل مسلمان نشي کیدلی ترڅو

يُسْلِمَ قَلْبُهُ وَ لِسَانُهُ وَلَا يُؤْمِنُ حَتَّى يَأْمَنَ جَارُهُ بَوَائِقَهُ »[2]

پورې چې د هغه زړه او ژبه مسلمانه نشي او د هغه ګاونډي د هغه د شر نه محفوظ او په امن کې نه وي.

## خپل مینځې مینه د ایمان نښه ده

﴿۲۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «الْمُؤْمِنُ مَأْلَفٌ

او حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمايي چې نبی کریم صلى الله عليه وسلم و فرمايل: مسلمان د میني او الفت مقام او مخزن دی. او په هغه

(1) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۵۷ رقم الحديث ۲۲۶۳ ,وأحمد في المسند ۲/۳۶۸.

(2) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۴/۳۹۵ رقم الحديث ۵۵۲۴ وأحمد في المسند ۱/۳۸۷.

| وَلَا | خَيْرَ | فِيمَنْ | لَا | يَأْلَفُ | وَلَا | يُؤْلَفُ» |
|---|---|---|---|---|---|---|
| سړي کې ښېګړه نشته څوک چې مینه نکوي، او نه د هغه سره مینه کیږي، یعني کوم چې داسې نه وي چې نه خو هغه د مسلمانانو سره | | | | | | |

| ( رَوَاهُمَا | أَحمد | وَ | الْبَيْهَقِيّ | فِي | « شعب الْإِيمَان » ) [1] |
|---|---|---|---|---|---|
| مینه او الفت وکړي او نه مسلمانان هغه سره مینه وکړي نو هغه د هیڅ کار ندی. دا روایتونه احمد او شعب الایمان کې بیهقی نقل کړیدي. | | | | | |

## د خوشحالولو په غرض د چا د خدمت کولو ناشنا فضیلت

| ﴿۵۰﴾وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ قَضَى لِأَحَدٍ مِنْ |
|---|
| او حضرت انس رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمایل: کوم سړی چې پوره کړي زما په |
| أُمَّتِي حَاجَةً يُرِيدُ أَنْ يَسُرَّهُ بِهَا |
| امت کې د چا (دینی او دنیاوي) حاجت او ضرورت، او په دې سره د هغه مقصد د هغه خوشحالول وي |
| فَقَدْ سَرَّنِي وَمَنْ سَرَّنِي فَقَدْ سَرَّ اللهَ وَمَنْ سَرَّ الله |
| نو هغه زه خوشحاله کړم، او چا چې زه خوشحاله کړم، هغه الله خوشحاله کړو، او چا چې الله خوشحاله کړو. |
| أَدخلهُ الله الْجنَّة» [2] |
| هغه به الله جنت ته داخل کړي. |

## د مجبور سره د مرستې کولو ناشنا فضیلت

| ﴿۵۱﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ أَغَاثَ مَلْهُوفًا |
|---|
| او حضرت انس رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمایل: کوم سړی چې د مظلوم فریاد پورا کوي |
| كَتَبَ الله لَهُ ثَلَاثًا وَسَبْعِينَ مَغْفِرَةً وَاحِدَةٌ |
| نو الله تعالی هغه ته دری اویا بخششونه لیکي. او په دې کې یو بخشش خو هغه دی چې هغه د ه ټول |
| فِيهَا صَلَاحُ أَمْرِهِ كُلِّهِ وَثِنْتَانِ وَسَبْعُونَ لَهُ |
| (دنیاوي او اخروي) کارونو د اصلاح ضامن جوړیږي. او پاتې دوه اویا بخششونه به د قیامت په ورځ |

([1]) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۲۷۰ رقم الحديث ۸۱۱۹، وأحمد في المسند ۲/۴۰۰.

([2]) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۱۱۱ رقم الحديث ۷۶۳۵.

| |
|---|
| دَرَجَاتٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ»[۱] |
| باندې دهغه د درجو د وچتوالي سبب جوړېږي. |

## ټول مخلوق د الله تعالی کورنۍ دی

| |
|---|
| ﴿۵۲﴾وَعنهُ وَعَن عبد الله قَالَا: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الْخَلْقُ |
| او حضرت انس او حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دواړه فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: مخلوق د |
| عِيَالُ الله فَأَحَبُّ الْخَلْقِ إِلَى الله مَنْ أَحْسَنَ |
| الله تعالی کورنۍ ده، لهذا د خدای په نزد په مخلوق کې غوره سړی هغه دی چې هغه د خدای د کورنۍ سره |
| إِلَى عِيَالِهِ»[۲] (رَوَى الْبَيْهَقِيُّ الْأَحَادِيثَ الثَّلَاثَةَ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ»)[۳] |
| احسان او ښه ښويې کوي. دا درې واړه روايتونه بيهقي په شعب الايمان کې ذکر کړيدي. |

**توضيح**: عيال الله: د عيال معنیٰ د يو سړي هغه متعلقين دي چې د هغوي خوراک څکاک، جامې او کور ذمه په هغه باندې وي. په دې اعتبار سره نسبت غير الله ته مجازي دی.

اصلي رازق خو الله تعالی دی. چې د هغه په ذمه باندې د مخلوق رزق دی. په دې اعتبار سره ټول مخلوق د الله تعالی عيال او کورنۍ ده. وس کوم سړی چې د خدای د مخلوق سره ښه کوي نو ګويا هغه د الله تعالی عيال او کورنۍ سره احسان او ښيګړه کوي. په دې سره الله تعالی ډېره خوشحالېږي. لکه څنګه چې يو انسان د هغه سړي نه ډېر خوشحالېږي چې هغه د ده اهل او عيال سره احسان کوي. (مرقات: ۸/۷۳۰)

## په قيامت کې به د ټولو نه مخکې مقدمه د دوه ګاونډيانو وړاندې کيږي

| |
|---|
| ﴿۵۳﴾وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَوَّلُ خَصْمَيْنِ |
| او حضرت عقبه بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د قيامت په ورځ باندې |
| يَوْمَ الْقِيَامَةِ جَارَانِ» (رَوَاهُ أَحْمد)[۱] |
| د ټولو نه اول دوه جګړه کونکي به دوه ګاونډيان وي. (احمد) |

**توضيح**: جاران: يعني په قيامت کې چې به د کومو خلکو مقدمه د ټولو نه اول وړاندې کولی شي

(۱) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۱۲۰ رقم الحديث ۷۶۷۰

(۲) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۱۲۰ رقم الحديث ۷۶۷۰

(۳) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۴۲ رقم الحديث ۷۴۴۸،۷۴۴۷

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۴/۱۵۱.

هغه به د دوه ګاونډيانو وي.

**سوال:** په يو حديث کې راځي چې د قيامت په ورځ چې به د ټولو نه مخکې کومه قضيه شروع کيږي هغه به د لمونځ قضيه وي. په بل حديث کې دي چې د قيامت په ورځ به د ټولو نه مخکې قاتل او مقتول قضيه وړاندې کيږي خو په ذکر شوې حديث کې د دوه ګاونډيانو د قضيئې خبره ده. په ظاهره باندې دا تعارض دی، د دې جواب څه دی؟

**جواب:** د دې سوال جواب دا دی چې په حقوق الله کې د ټولو نه اول به د لمونځ مسئله راوچته کړی شي. او په حقوق العباد کې به د ټولو نه اول د وينې او د قتل مسئله راوچته کړی شي. چې په هغې کې يو خالص ظالم او بل خالص مظلوم دی. ليکن که څه خلک داسې وي چې په حقوق العباد کې څه نا څه ظلم يې په يو بل باندې کړی وي. هر يو څه ظالم او څه مظلوم دی، په داسې خلکو کې به د ټولو نه اول د دوه ګاونډيانو معامله اوچته کړی شي. نو د ګاونډيانو معامله خو د حقوق العباد نه ده ليکن د حقوق العباد داسې صورت دی چې هغه د قاتل او مقتول نه مختلف دی، هلته يو ظالم ؤ، دويم مکمل مظلوم ؤ.

دبحث په حديث کې دواړه د يو بل لپاره څه ناڅه ظالمان دي. د داسې خلکو قضيه به د ټولو نه مخکې راوچته کړی شي.

**دويم جواب** دا هم کيدلی شي چې اول او دويم دا اضافي امور دي نو په اضافې نسبت سره هر يو ته اول ويلی کيدلی شي. هيڅ تضاد نشته دی. (مرقات: ۸/۷۳۱)

## د قساوت قلبي علاج

| |
|---|
| ﴿۵۴﴾وَعَن أَبِي هُرَيْرَة أَنَّ رَجُلًا شَكَا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَسْوَةَ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دی چې (يوه ورځ) نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته يو سړي د خپلې سنګدلۍ |
| قَلْبِهِ فَقَالَ: «امْسَحْ رَأْسَ الْيَتِيم |
| (د زړه د کلکوالي) شکايت وکړو (او دهغې د علاج پوښتنه يې وکړه) نو نبی صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې د يتيم په سر باندې |
| وَأَطْعِم الْمِسْكِين» (رَوَاهُ أَحمد)[1] |
| لاس راکاږه او مسکين ته خوراک ورکوه. (احمد) |

## د کونډې لور د پالنې ثواب

| |
|---|
| ﴿۵۵﴾وَعَن سراقة بْنِ مَالِكٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «أَلَا أَدُلُّكُمْ |
| او حضرت سراقه بن مالک رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: آيا زه تاته د |

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۲/۲۶۳

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَلَی | أَفْضَلِ | الصَّدَقَةِ؟ | ابْنَتُكَ | مَرْدُودَةً |

بهترینې صدقې په اړه باندې وو وایم؟ او هغه صدقه خپلې هغه لور سره ښه ښویې کول دي چې هغه تا ته سیر ته رالیږلی شوې ده او دچا

| | | | |
|---|---|---|---|
| إِلَيْكَ | لَيْسَ | لَهَا | كَاسِبٌ |

سره چې ستا نه علاوه بل ګټونکی نشته دی. یعني که ستا لور ته د هغې خاوند طلاق ورکړی وي، او

غَيْرُكَ » . ( رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ) [1]

نه خو د هغې سره داسې څه ذریعه شته دی ستا د هغې سره ښه ښویې کول یوه بهترینه صدقه ده.

**توضیح**: د دې حدیث په ترجمه کې د دې ټوله تشریح شته دی. هغه دې وکتلی شي. د دې مطلب دا دی چې د چا لور واده شوه خو د خاوند سره یې ژوند سم رانغلی نو ځکه هغې ته طلاق ورکړی شو. او هغه د خپل مورپلار کور ته راغله، پلار هغه بې آسرا لور وساتله او د هغې پالنه یې وکړه، په هغې باندې یې خرچه وکړه. او په هغې یې خوراک څکاک وکړو. د الله تعالی په نزد باندې په بهترینه صدقه کې به شمار شي. او په دې باندې به پلار ته بهترین اجر ورکولی کیږي.

**مردودة**: دا حال دی: ای مطلقة راجعة الیك. (مرقات: ۸/۷۳۲)



(1) اخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۲۰۹ رقم الحديث ۳۶۶۷، واحمدفي المسند۴/۱۷۵

١٣ ربيع الثاني ١٤١٨هـ

# باب الحب في الله و من الله

## د الله لپاره د محبت بيان

قَالَ اللهُ تعالى: ﴿وَيُطْعِمُونَ الطَّعَامَ عَلَىٰ حُبِّهِ مِسْكِينًا وَيَتِيمًا وَأَسِيرًا﴾ (الدهر: ۸)

د الله تعالى لپاره د مينې کولو بيان مطلب دا دی چې د کوم سړي د مينې او محبت چې کوم تړون هم جوړ کړی شي هغه فقط د الله تعالى د رضا لپاره وي. په دې کې څه دنيوي غرض نه وي، نه څه لالچ وي بلکې دا مينه فقط په دې بنياد باندې وي چې دا سړی الله تعالى نيک بنده دی. د ده سره د مينې په وجه باندې الله تعالى راضي او خوشحاليږي. او انسان ته د هغه رضا ترلاسه کيږي. دلته په عنوان کې لفظ: من سببيه او «ر» اجليه ده. ای لاجل رضاء الله ولوجهه الكريم.

انسان چې د الله تعالى کوم عبادت کوي، نو د دې عبادت فائده او د دېنه اصل مقصود تر هغه وخته پورې نشي ترلاسه کيدلی ترڅو چې د الله تعالى او د هغه د رسولانو سره يې مينه نه وي. د عبادت د قبوليت لپاره ضروري ده چې الله تعالى او د هغه د رسول مينه هم د عبادت برخه جوړه شي. که مينه نه وي نو فقط د بيګار عبادت نه به څه ترلاسه شي. ربوبيت عامه او د خالق کيدلو په اعتبار سره د الله تعالى د ټولو انسانانو سره يو تعلق دی او يا د ربوبيت خاصه په اعتبار سره د الله تعالى د مسلمانانو سره يو خاص تعلق دی چې هغې ته په الرحمن او الرّحيم کې اشاره کړی شويده. د دې حقيقت له مخې هر مسلمان لپاره پکار دي چې د هغه ټول احساسات او جذبې او حرکات او سکناتو مثبت او منفي هر اړخ د الله تعالى د رضا نبودونکی وي. او په هغې کې چې کوم تغير راشي هغه د الله تعالى د رضا په خاطر وي، خپل يې څه غوختنه نه وي. هغه د الله تعالى لپاره وي. د غه شان د انسان چې کله مثبت او منفي احساسات د الله تعالى لپاره شي نو دا به کامل الايمان جوړ شي چې که څه ورکړي نو د الله تعالى لپاره، نه ورکوي نو د الله تعالى لپاره، که د چا سره مينه ولري نو د الله تعالى لپاره، دښمني ولري نو د الله تعالى لپاره. کله چې د کامل ايمان والا شي نو بيا دې دا سې مستانه نعره ووهي:

فليتك تحلو والحياة مريرة | وليتك ترضى والانام غضاب

(مرقات: ۸/۷۳۲)

### الفصل الاول

### په دنيا کې د اتحاد او اختلاف بنياد د اولې ورځې نه ايخودل شويدی

﴿۱﴾ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الْأَرْوَاحُ جُنُودٌ

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: روحونه بدنونو ته ستو تلو نه مخکې ديو لښکر په شان يو

| مُجَنَّدَةٌ | فَمَا | تَعَارَفَ |
|---|---|---|

ځاې ټول راغونډ ؤ، او بيا هغوى بيل بيل كولو سره په بيو يو بدن كې داخل كړى شول. نو بدنونو ته تنو ټولو نه مخكې كوم روحونه چې د

| مِنْهَا | ائْتَلَفَ | وَمَا | تَنَاكَرَ |
|---|---|---|---|

يو بل سره په صفاتو كې مناسبت او كډون ساتلو دوچې نه خپل مينځ كې مينه كونكې او پيژندويه ؤ. هغوى بدنونو ته تنو ټولو نه پس په دنيا

| مِنْهَا اخْتَلَفَ » . ( رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ ) . [1] |
|---|

كې هم يو بل سره مينه او الفت لري. او كوم روحونه چې ديو بل سره ناشنا او مينه نلري. هغوى په دې دنيا كې هم خپل مينځ كې اختلاف لري.

**توضيح:** تر قيامته چې څومره انسانان پيدا كيږي د هغوې روحونه مخكې پيدا شويدي، دا ټول روحونه الله تعالى د اولې ورځې نه په عالم ارواح كې يو ځاې كړي ؤ. او د ټولو نه يې د خپل ربوبيت اقرار واخستلو، ټولو اقرار وكړو .په دې غونډه كې چې د كومو روحونو خپل مينځ كې تعلق جوړ شو، مينه يې پيدا شوه ، الفت راغلى. نو دنيا ته په راتلو او خپلو خپلو بدنونو كې داخليدلو نه وروسته د الله تعالى په الهام دا روحونه خپل مينځ كې مينه ساتي، او دهغوې په مينځ كې مينه وي. نو د روح سره بدنونه هم متفق او يو ځاې كيږي. او خپل مينځ كې تعلق جوړ شي. ليكن كه د عالم ارواح په ورځ باندې د كومو روحونو خپل مينځ كې د الفت په ځاې عدم الفت ؤ . دميني په ځاې دښمنې وه، نو دنيا ته په راتګ سره هم دغه شان معامله وي.په نورو الفاظو كې په دې حديث داسې هم پوهيدلى شي چې په دنيا كې كوم نيكان خلک نور نيكان خلک خوښوي .او بې دينه نه خوښوي ، دغه شان فاسقان نور فاسقان او فاجران خوښوي او ديندار ه نه خوښوي. دا خوښه او ناخوښه عالم ارواح او د اولې ورځې د ازل خوښې او ناخوښې ښودونكې ده. څه چې هلته وشول هغه دلته وشول. (مرقات : ۸/۷۳۲)

كند هم جنس باهم جنس پرواز كبوتر با كبوتر باز با باز

## كوم سړى چې الله يې خوښ كړي هغه هر چاته مقبول شي

| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ اللهَ |
|---|
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايې چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: كله چې الله تعالى ديو بنده سره او محبت |

| إِذَا | أَحَبَّ | عَبْدًا | دَعَا | جِبْرِيلَ |
|---|---|---|---|---|

ساتي يعنې هغه چې كله په خپلو بندګانو ديو بنده اعمال د خپلې خوشحالى او مينې د ظاهرولو اراده وكړي نو جبرائيل عليه السلام

---

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۳۶۹ رقم الحديث ۳۳۳۶،ومسلم في ۴/۲۰۳۱ رقم الحديث (۲۶۳۸-۱۵۹).

فَقَالَ: إِنِّي أُحِبُّ فُلَانًا فَأَحِبَّهُ قَالَ:

ته پېرا غوختلو سره وايي چې زه د فلانکي بنده سره مينه لرم، ته هم د هغه سره مينه وکړه. نبي عليه السلام و فرمايل: جبرائيل عليه السلام

فَيُحِبُّهُ جِبْرِيلُ ثُمَّ يُنَادِي فِي السَّمَاءِ فَيَقُولُ:

دې اوريدلو باندې د هغه بنده سره مينه ساتي. او بيا هغه د الله تعالى په حکم باندې په آسمان کې دا اعلان کوي

إِنَّ اللهَ يُحِبُّ فُلَانًا فَأَحِبُّوهُ فَيُحِبُّهُ أَهْلُ السَّمَاءِ

چې الله تعالى د فلانکي بنده سره مينه ساتي، لهذا تاسو ټول هم د هغه سره مينه وساتئ. نو د آسمان والا هم د هغه سره مينه شروع کړي.

ثُمَّ يُوضَعُ لَهُ الْقَبُولُ فِي الْأَرْضِ.

او بيا دې بنده لپاره په ځمکه کې هم قبوليت کېښودلی کېږي، يعنې د ځمکې والاؤ په زړه کې د هغه مينه واچولی شي. او ټول انسانان او

وَإِذَا أَبْغَضَ عَبْدًا دَعَا جِبْرِيلَ فَيَقُولُ:

پېريان د هغه سره مينه کوي. او کله چې الله تعالى د يو بنده نه کرکه کوي. نو جبرائيل ته په راغوختلو سره فرمايي

إِنِّي أُبْغِضُ فُلَانًا فَأَبْغِضْهُ.

چې زه د فلانکي سړي نه کرکه کوم. ته هم د هغه نه کرکه وکړه. نبي عليه السلام و فرمايل: جبرائيل عليه السلام دې اوريدلو

فَيُبْغِضُهُ جِبْرِيلُ ثُمَّ يُنَادِي فِي أَهْلِ السَّمَاءِ: إِنَّ اللهَ

باندې د هغه بنده نه کرکه کوي. او بيا هغه د الله تعالى په حکم باندې په آسمان کې دا اعلان کوي چې الله تعالى

يُبْغِضُ فُلَانًا فَأَبْغِضُوهُ. قَالَ:

د فلانکي بنده نه کرکه کوي، لهذا تاسو ټول هم د هغه نه کرکه وکړئ. نو د آسمان والا هم د هغه نه کرکه

فَيُبْغِضُونَهُ. ثُمَّ يُوضَعُ لَهُ

شروع کړي. تردې چې د دې بنده لپاره په ځمکه کې هم کرکه او دښمني کېښودلی شي چې د هغې په وجه

الْبَغْضَاءُ فِي الْأَرْضِ" (رَوَاهُ مُسلم)[1]

باندې ټول انسانان او پيريان د هغه نه کرکه کوي. (مسلم)

**توضيح**: اذا احب عبدًا: الله تعالى چې کوم بنده خوښ کړي نو فرښتي هم هغه خوښوي، په اسمان کې د هغه سړي د خوښۍ اعلان وشي. بيا دا مقبوليت ځمکې ته راشي، او د ځمکې والا هغه خوښوي

(1) اخرجه البخاري في صحيحه ٦/٣٠٣ رقم الحديث ٣٢٠٩، ومسلم في ٤/٢٠٣٠ رقم الحديث (٢٦٣٧-١٥٧)،

دغه شان هغه سړی هر چا ته مقبول شي. د دې په برعکس باندې که الله تعالی پاس اسمانونو کې کوم سړی مبغوض وګرځوي نو په فرښتو کې اعلان وشي ، نو فرښتې هغه مبغوض کړي، بیا دا مبغوضیت زمکې ته راشي، او خلک هغه مبغوض کړي، دلته په دې خبره پوهیدل پکار دي چې په زمکه کې د دې مقبولیت او مبغوضیت معیار هغه خلک دي چې هغه دیندار او متقي او پرهیزګاره دي. ګنې د فاسقانو او فاجرانو په نزد باندې خو هر هغه سړی ښه او دوست او محبوب وي چې هغه د انتهایې درجې فاسق او فاجر او ذلیل او کمینه وي. لهذا د قبولیت په دې تاکنه کې دارومدار ښه او دینداره خلکو باندې دی. د هغوی رایه او د هغوی میلان معیار او معتبر دی. (مرقات : ۸/۷۳۵)

## د الله د رضا لپاره په خپل مینځ کې د مینه کوونکو مقام

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ اللهَ يَقُولُ | | | |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایې چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: الله تعالی په د قیامت په ورځ باندې د ټولو | | | |
| يَوْمَ | الْقِيَامَةِ: | أَيْنَ | الْمُتَحَابُّونَ |
| خلکو مخې ته د خپل ځینو بنده ګانو عظمت او لویې ښکاره کولو لپاره وفرمایې: چیرته دي هغه خلک چې هغوی زما د لویې د | | | |
| بِجَلَالِي؟ | | الْيَوْمَ | أُظِلُّهُمْ |
| ښکاروالي او زما د تعظیم په خاطر باندې خپل مینځ کې مینه او تعلق ساتلو، چیرته دي هغه خلک چې هغوی زما د رضا او خوشحالی | | | |
| فِي | ظِلِّي | يَوْمَ | لَا ظِلَّ |
| په خاطر او د ثواب تر لاسه کولو په غرض سره خپل مینځ کې مینه او تعلق ساتلو. نن به زه هغه خلکو ته په خپلو سیوري کې پناه ور کوم، | | | |
| إِلَّا | ظِلِّي" | (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)[1] | |
| او نن ورځې زما د سیوري نه علاوه بل سیورې نشته دی. (مسلم) | | | |

**توضیح: في ظلي:** یعنې نن به زه هغوی په خپل خاص سیوري کې ساتم. د دې سیورې نه مراد میدان محشر کې د عرش سیوری دی. لکه څنګه چې په ځینو روایتونو کې تصریح هم ده. یا د سیورې نه مراد د الله تعالی رحمت او حفاظت دی. لکه : السلطان ظل الله في الارض. لهذا په سیورې سره د قیامت رحمتونو ، نعمتونو او راحتونو اړخ ته اشاره ده. په عربی کې د ظل لفظ د نعمتونو لپاره استعمالیږي. (مرقات : ۸/۷۳۷)

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۹۸۸ رقم الحديث (۲۵۶۶-۳۷) والترمذي في السنن ۴/۵۱۶ رقم الحديث ۲۳۹۰.

## د الله د رضا لپاره د ميني کولو فضيلت

﴿۴﴾وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَّ رَجُلًا زَارَ أَخًا

او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ نه نقل کوي چې يو سړی د خپل مسلمان ورور د ملاقات لپاره روان شو.

لَهُ فِي قَرْيَةٍ أُخْرٰى فَأَرْصَدَ اللهُ لَهُ عَلَى مَدْرَجَتِهٖ

چې هغه په بله کومه آبادۍ کې وسيدلو. الله تعالی د هغه په لاره کې د هغه په انتظار باندې يو فرښته کينوله، کله

مَلَكًا قَالَ: أَيْنَ تُرِيدُ؟

چې هغه سړی دغه ځاې ته ورسيدلو نو فرښتې هغه ايسار کړو او پوښتنه يې ترينه وکړه: چيرته دې د تګ اراده ده؟

قَالَ: أُرِيدُ أَخًا لِي فِي هٰذِهِ الْقَرْيَةِ. قَالَ:

هغه سړي ووېل چې زه د يو مسلمان ورور ملاقات لپاره ځم. چې هغه په دې آبادۍ کې وسيږي. فرښتې پوښتنه وکړه

هَلْ لَكَ عَلَيْهِ مِنْ نِعْمَةٍ تَرُبُّهَا؟ قَالَ:

چې آيا ستا په هغه باندې د نعمت څه حق شته دی؟ چې د هغې ترلاسه کولو لپاره ته د هغه خواته ځې. هغه سړي ووېل

لَا غَيْرَ أَنِّي أَحْبَبْتُهُ فِي اللهِ. قَالَ: فَإِنِّي

چې نا. زه فقط د الله تعالی د رضا ترلاسه کولو لپاره د هغه سره مينه او تعلق ساتم. فرښتې ووېل نو بيا واوره! زه الله

رَسُولُ اللهِ إِلَيْكَ بِأَنَّ اللهَ قَدْ أَحَبَّكَ

تاته د رالېږلی يم دې لپاره چې زه تاته زيری درکړم چې الله تعالی ستا سره مينه کوي. لکه څنګه چې ته فقط د

كَمَا أَحْبَبْتَهُ فِيهِ" (رَوَاهُ مُسلم)[1]

الله تعالی د رضا په خاطر د هغه سړي سره مينه او تعلق ساتې. (مسلم)

**توضيح**: دا په مخکنو امتونو کې د يو چا واقعه نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بيان کړه. د هغه خلکو سره به د انسانانو په شکل کې فرښتو ملاقات کولو. وس دا سلسله بنده شويده. د حديث خلاصه دا ده چې يو سړی د کوم الله والا د ملاقات لپاره روان شو. نو په لاره کې ورسره فرښته مخ شوه. فرښتې پوښتنه وکړه چې چيرته روان يې.؟ هغه ووېل په دې ښار کې زما يو ديني ورور دی، د هغه زيارت لپاره ځم. څه دنياوي غرضونه او مقصدونه مې نشته. فقط د الله تعالی رضا ترلاسه کولو لپاره روان يم. فرښتې ووېل چې زه الله تعالی تاته رالېږلی يم چې زه تاته دا زيری واوروم چې الله تعالی ستا سره مينه کوي لکه څنګه چې ته د الله د بنده سره مينه ساتې. (مرقات: ۸/۷۳۸)

---

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۹۸۸ رقم الحديث (۲۵۶۷-۳۷)

**تربها:** يعنې د څه احسان غرض دی. چې دهغې پورا والې لپاره روان يې. يعنې آيا هغه ستا غلام دی ، يا ځوې دی، يا داسې خپلوان دی چې هغه ته خوراک څکاک ورکول ستا ذمه وارې ده. او ته د هغې د پورا والې لپاره روان يې؟ ځينو نسخو کې دي: **هل له عليك من نعمة تربها** يعنې دهغه په تا باندې څه احسان دی، چې دهغې شکريه ادا کولو لپاره ته ځې. علامه طيبی فرمايلي دي چې مطلب دا دی چې آيا په دغه سړي باندې ستا څه احسان دی چې دهغې بدله اخستلو لپاره ته روان يې. دې لپاره چې ستا په احسان باندې دهغه سړې بدله ډيره ترلاسه شي. دا مطلب ډير بنايسته دی. (مرقات: ۸/۷۳۹، الکاشف: ۹/۲۳۲)

ارصدالله: تاکلو او په کمين کې ناستې ته رصد وايې. **مدرجته:** فراخې لارې ته مدرجة وايې. **تربها:** رب يرب پالنې او ډيرولو ته وايې. دلته ډيرول مراد دي. (مرقات: ۸/۷۳۸)

## کوم سړي چې د چا سره مينه ساتي قيامت کې به دهغوې سره وي

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايې چې يو ورځ نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې يو سړی حاضر شو |
| فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ كَيْفَ تَقُولُ فِي رَجُلٍ |
| او عرض يې وکړو چې يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! دهغه سړي په اړه باندې ته څه فرمايې چې هغه د يو ډلې يعنې علماء، نيکان |
| أَحَبَّ قَوْمًا وَلَمْ يَلْحَقْ بِهِمْ؟ |
| او د دين د مشرانو سره مينه او محبت ساتي. خو دهغوې سره ناسته د هغه ونشوه يا دا دهغوې علم او عمل ته |
| فَقَالَ: « المرءُ معَ من أحب » . ( مُتَّفق عَلَيْهِ )[1] |
| رسيدلی نه وي؟ نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: دا سړی دهغه سره څوک چې دا محبوب ساتي. (بخاری او مسلم) |

**توضيح: المرأ مع من احب:** يعنې کوم سړي چې علماؤ، نيکانو او مشرانو سره مينه او محبت لري او په خپلو اعمالو سره د شريعت په رڼا کې د هغوې تابعدارې او موافقت کوي، نو دا سړی په هغوې سره په قيامت کې پاڅيږي . او دهغوې سره به وي. ورسره کيدلو مطلب دا دی چې په جنت کې به د هغوې سره ملاقات وي يو ځای به وي، خو ددې معيت باوجود به هم دخپلو خپلو درجو موافق په جنت کې دنعمتونو خوندونه محسوسوي. نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او حضرت عائشه صديقه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا به ديوې پيالې او يوې نوړې والا وي. خو عائشه صديقه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا به د خپلې درجې په موافق د نعمتونو ادراک کوي. ملاعلی قاری رحمه الله په مرقات کې ليکلي دي چې دا حديث

---

([1]) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۵۵۷ رقم الحديث ۶۱۶۹ ومسلم في ۴/۲۰۳۴ رقم الحديث (۲۶۴۰-۱۶۵)

عام دی لهذا کوم سړی چې دیندارو لره خوښوي هغه به دهغوی سره وي او څوک چې بدکاران خوښوي قیامت په ورځ به دا دهغوی سره پاڅیږي. (مرقات: ۸/۷۴۰)

کند هم جنس باهم جنس پرواز کبوتر با کبوتر باز با باز

راتلونکې ۱۵ نمبر حدیث نه د ملاعلی قاری د دې تشریح تائید کیږي. او ورسره روایت نمبر ۶ تشریح او توضیح هم د مخکښې حدیث توضیح په شان ده. بهرحال د چا سره د مینې ساتلو اول شرط دا دی چې د هغه اطاعت وي، مخالفت نه وي، گنې د دې شعر مصداق به جوړ شي:

تعصی الرسول وانت تظهر حبه هٰذا لعمری فی الفعال بدیع

لوکان حبك صادقا لاطعته ان المحب لمن یحب مطیع

﴿وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ فَاُولٰٓئِكَ مَعَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنَ النَّبِيّٖنَ وَالصِّدِّيْقِيْنَ وَالشُّهَدَآءِ وَالصّٰلِحِيْنَ﴾ (النساء: ۶۹)

﴿۶﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَجُلًا قَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ مَتَى

او حضرت انس رضی الله عنه روایت دی چې یوه ورځ یو سړي پوښتنه وکړه چې اې د الله رسوله! قیامت به کله راځي نو نبی علیه السلام

السَّاعَةُ؟ قَالَ: «وَيْلَكَ

وفرمایل: په تا باندې افسوس دی! آیا تا د قیامت لپاره څه تیاری کړېدی؟ په ظاهره خو دا معلومیږي گویا چې نبی علیه السلام

وَمَا أَعْدَدْتَ لَهَا؟»

باندې د هغه دا پوښتنه ښه نه لگیدله. او د نبی علیه السلام گمان شو چې دې سړي ښه اعتقاد لرلو باندې د ویرې له وجې نه دا پوښتنه

قَالَ: مَا أَعْدَدْتُ

ده کړې بلکې د قیامت راتگ یې ډیر لیرې خبره گڼلو باندې بې پرواهي په توگه باندې دا پوښتنه کوي. نو نبی علیه السلام هغه ته جواب

لَهَا إِلَّا أَنِّي

هم په دغه انداز باندې ورکړو چې دا ته څه پوښتنه کوي؟ قیامت به کله راځي. ته خپل عقیده او عمل صحیح ساته او ښه کار کوه. کله

أُحِبُّ اللهَ وَرَسُولَهُ.

چې د قیامت ورځ راتگ وي. رابه شي. خو کله چې هغه سړي عرض وکړو چې ما خو تیاری ندی کړی، البته زما سره یو دولت ضرور شته

قَالَ: «أَنْتَ مَعَ مَنْ أَحْبَبْتَ»

دی او هغه دا چې زه خدا او د هغه رسول صلی الله علیه وسلم سره مینه لرم. نو نبی علیه السلام پوهشو چې د دې سړي دا مذکوره پوښتنه یو

| قَالَ | أَنَسٌ: | فَمَا | رَأَيْتُ | الْمُسْلِمِينَ | فَرِحُوا |
|---|---|---|---|---|---|
| مخلص او کامل مؤمن د عقيدې ښودونکې او د ويرې لموجې دی. دځمې پرواهی په وجه ندی. نو نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل: تهٔ په دنيا | | | | | |
| بِشَيْءٍ | بَعْدَ | الْإِسْلَامِ | | | |
| او آخرت کې د هم هغه سره يې. چا سره چې مينه لرې. حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما مسلمانان د اسلام نه وروسته په بل څه باندې | | | | | |
| فَرَحَهُمْ | بِهَا. | (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] | | | |
| داسې خوشحاله نهٔ ليدلي لکه څومره چې هغوي د نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ په دې وينا باندې خوشحاله شو. (مسلم) | | | | | |

صحابه ځکه خوشحاله شو چې د هغوې مينه د نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره وه. په دې سره هغوې ته د نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ملګرتيا زيری ترلاسه شو.

## د ښه او بد هم مجلسي مثال

| ﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَثَلُ الْجَلِيسِ الصَّالِحِ وَالسَّوْءِ | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او حضرت ابو موسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: نيک او بد هم مجلسې | | | | | | |
| كَحَامِلِ | الْمِسْكِ | وَنَافِخِ | الْكِيرِ | فَحَامِلُ | الْمِسْكِ | إِمَّا |
| مثال د مُشک ساتونکي او بنې بلوونکي په شان دی. مُشک ساتونکی خو به يا تا ته مشک مفت درکړي يا به يې ته د هغه نه واخلې. | | | | | | |
| أَنْ | يُحْذِيَكَ | وَإِمَّا | أَنْ | تبتاعَ | مِنْهُ | |
| او يا که په هيڅ صورت باندې د هغه مشک ستا لاس ته رانغلل نو کم از کم د هغې خوشبو خو به تا ته خامخا | | | | | | |
| وإِمَّا | أَن | تجدَ | مِنْهُ | رِيحًا | طَيِّبَةً | |
| ترلاسه شي. دغه شان د نيک او صالح هم مجلسې نه څه فيض يا څه خاص نعمت که ترلاسه هم نشي نو هم دا | | | | | | |
| وَنَافِخُ | الْكِيرِ | إِمَّا | أَنْ | يَحْرِقَ | | |
| ولې کم دې چې څه ساعت نه د هغه په مجلس کې سکون او اطمينان سره ناسته نصيب شي او بنې بلوونکی يا | | | | | | |
| ثِيَابَكَ | وإِمَّا | أَنْ | تجدَ | مِنْهُ | رِيحًا | خبيثةً» (مُتَّفق عَلَيْهِ)[2] |
| خو به ستا جامې وسيزي يا به تا ته د هغه نه ما زغه خرابونکې بدبويي يعنې لوګی ترلاسه شي. (بخاری او مسلم) | | | | | | |

**توضيح:** الكير: د دوه مشکو نه آهنګر يوه مشکيزه جوړوي، چې هغه په کوئله کې د اور تيزولو لپاره استعماليږي. په دې کې په دواړو لاسونو سره باد (هوا) ډکول کيږي، او بيا په اور کې پريخودل

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۵۵۳ رقم الحديث ۶۱۶۷، ومسلم في ۴/۲۰۳۲ رقم الحديث (۲۶۳۹-۱۶۱).

(۲) اخرجه البخاري في صحيحه ۹/۶۶۰ رقم الحديث ۵۵۳۴ ومسلم في ۴/۲۰۲۶ رقم الحديث (۲۱۲۸-۱۴۶).

کیږي. په دې سره د وسپنې د پتی نه سپرغۍ پورته کیږي. او بدبو هم راځي، د نن زمانه کې په دې ز٠ کې پر مختګ راغلی دی، بهر حال هر مسلمان لره پکار دي چې هغه کم از کم وګوري چې د هغوې د هرې ورځې اړیکي چا او د څه قِسمه خلکو سره دي. (مرقات: ۸/۷۴۲)

*یار بد بدتر بود از مار بد*

## الفصل الثاني

## د الله تعالی د رضا لپاره د تعلق ساتلو فضیلت

﴿۸﴾ وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " قَالَ

حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اورېدلي دي چې الله تعالی

اللهُ تَعَالَى: وَجَبَتْ مَحَبَّتِي

فرمایي چې د هغه خلکو سره مینه کول زما یو فیصله شوی امر دی چې هغوې فقط زما د رضا او خوشحالۍ په خاطر په باندې

لِلْمُتَحَابِّينَ فِيَّ وَالْمُتَجَالِسِينَ

خپل مینځ کې مینه ساتي. فقط زما د رضا په خاطر او زما د حمد او ثناء کولو لپاره د یو بل سره کیني. فقط

فِيَّ وَالْمُتَزَاوِرِينَ فِيَّ وَالْمُتَبَاذِلِينَ

زما د رضا او خوشحالۍ په خاطر باندې د یو بل سره ملاقات کوي. او فقط زما د رضا او خوشحالۍ په خاطر

فِيَّ" (رواه مالك وفي رواية الترمذي قال يقولُ

باندې خپل مال خرچه کوي. (مالک) د ترمذی په روایت کې داسې دي چې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل:

اللهُ تعالى :اَلْمُتَحَابُّونَ فِيْ جَلَالِيْ لَهُمْ مَنَابِرُ مِنْ نُورٍ

الله تعالی فرمایي چې کوم خلک زما د عظمت او جلال په وجه باندې مینه ساتي .د هغوې لپاره

يَغْبِطُهُمُ النَّبِيُّوْنَ وَ الشُّهَدَآءُ[1]

(آخرت کې) د نور منبرونه به وي. چې د هغې به انبیاء او شهداء به (هم) ارمان کوي.

**توضیح:** المتزاورین: خپل مینځ کې ملاقات کولو په معنی دی.

**والمتباذلین:** دا د بذل نه دی. خرچ کولو په معنی دی.

---

(١) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۱۵ رقم الحديث ۲۳۹، ومالک في الموطا ۲/۹۵۳ رقم الحديث ۱۶.

**يغبطهم:** غبطه: د ترلاسه کولو ارمان ته وايي.

**سوال:** دلته يو غټ سوال دی او هغه دا چې د انبياء کرامو درجه به د قيامت په ورځ ډيره وچته وي، د شهيدانو درجې به هم ډير غټې وي. د دې ښاغلو د يو عام سړي د درجې ترلاسه کولو ارمان په پوهه کې نه راځي. دويمه خبره دا هم ده چې په دې سره د دې سړي په انبياؤ او شهداؤ باندې افضل کيدلو وهم هم پيدا کيدلی شي چې هغه شرعًا جائز نه دی؟

**جواب:** د دې سوال يو جواب دا دی چې دا کلام په فرض باندې مبنی دی يعنې فرض کړه که انبياء او شهداؤ په يو څه باندې غبطه کولی نو د دې دوه کسانو په درجه باندې به يې کولی ليکن هغوی به غبطه نه کوي. دويم واضح جواب دا دی چې د يو مفضول سره يو ښه څيز وي او فاضل د هغې تمنا وکړه نو په دې سره د مفضول درجه د فاضل نه نه وچتيږي. ډير وختونه د مفضول ښه شيان د فاضل خوښيږي او هغه غواړي چې دا شی زما سره وی نو ښومره به ښه وه. د دې دا مطلب ندی چې د هغوی سره د غه شان نعمت موجود نه دی بلکې مطلب دا دی چې دا ښه شی هم د هغوی په کمالاتو کې شامل وی نو ښومره به ښه وه، په دې سره د افضل غير افضل مسئله نه پيدا کيږي. (مرقات: ۸/۷۴۴)

## دين اسلام او د قرآن له وجې نه خپل مينځ کې د ميني فضيلت

| |
|---|
| ﴿۹﴾وَعَنْ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ مِنْ عِبَادِ اللهِ |
| او حضرت عمر رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل: د خدای په بنديګانو کې ښومره خلک (يعنې اولياءالله) |
| لَأُنَاسًا مَا هُمْ بِأَنْبِيَاءٍ وَلَا شُهَدَاءَ يَغْبِطُهُمُ الأنبياءُ والشهداءُ يومَ |
| داسې دي چې هغوی اګرچې انبياء او شهداء نه دي ليکن د قيامت په ورځ د الله په نزد د هغوی مرتبې او |
| القيامةِ بِمَكَانِهِمْ مِنَ اللهِ». قَالُوا: |
| درجې کتلو باندې به انبياء او شهداء په هغوی غبطه کوي. صحابه کرام رضي الله عنهم عرض وکړو چې |
| يَا رَسُولَ اللهِ تُخْبِرُنَا مَنْ هُمْ؟ قَالَ: «هُمْ |
| يارسول الله صلى الله عليه وسلم! مونږ ته ووايه هغه کوم خلک دي؟ نبی صلى الله عليه وسلم و فرمايل: هغه خلک دي |
| قَوْمٌ تَحَابُّوا بِرُوحِ اللهِ عَلَى غَيْرِ أَرْحَامٍ |
| چې هغوی د خدای روح يعنې د قرآن په وجه باندې خپل مينځ کې مينه ساتي. حال دا دی چې د هغوی په مينځ کې نه څه |
| بَيْنَهُمْ وَلَا أَمْوَالٍ يَتَعَاطَوْنَهَا فَوَاللهِ |
| خپلولي وي (چې د هغې تقاضا هغوی خپل مينځ کې په مينه محبت باندې مجبور کړي) او نه د مال دولت د لين دين معامله وي. |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّ | وُجُوهَهُمْ | لَنُورٌ | وَإِنَّهُمْ | لَعَلَى | نُورٍ |

پس قسم دی په الله (د قیامت په ورځ به) د هغوي مخونه نوراني وي یا هغوي به مجسم نور وي. نور باندې ځاې نیونکي او غالبه

| | | | |
|---|---|---|---|
| لَا | يَخَافُونَ | إِذَا | خَافَ | النَّاسُ |

به وي. دغه خلک به هغه وخت هم ویرېدونکي نه وي چې نور خلک به په ویره کې اخته کې وي.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا | يَحْزَنُونَ | إِذَا | حَزِنَ | النَّاسُ» | وَقَرَأَ | الْآيَةَ: |

او شغوي به هغه وخت هم غمژن نه وي چې نور خلک به غمژن وي. بیا نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا آیت تلاوت کړو: (چې ترجمه

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| (أَلَا | إِنَّ | أَوْلِيَاءَ | الله | لَا | خَوْفٌ | عَلَيْهِمْ | وَلَا | هُمْ | يحزنونَ) |

يې ده) خبردار وسئ چې د خدا تعالى په دوستانو به نه ویره خپرېږي او نه به هغوي غمژن وي. دا روایت

(رَوَاهُ أَبُو دَاوُد ورواه في شرح السنة [1] عن ابي مالك بلفظ المصابيح

ابو داؤد نقل کړیدی او بغوي په شرح السنة کې دا روایت بالفاظ مصابیح ابو مالک نه روایت کړیدی.

مع زوائد وكذا في شعب الايمان) [2]

لیکن پدې کې د څه الفاظو اضافه ده او دغه شان د الفاظو په ډېروالي سره دا روایت بیهقی په شعب الایمان کې نقل کړیدی.

**توضيح**: روح الله: د دنیا خلک د مال دولت او دنیاوي مفاداتو د لاندې د یو بل سره مینه کوي. او حال دا دی چې دا یو ناپائیداره شی دی! په دنیا کې پاتې کیږي، محبت لپاره اصل شی خو قرآن او اسلام دی. چې هغه همیشه دی. او د هغې مینه همیشه ده. ځکه په دې حدیث کې فرمایلی شویدي: په قیامت کې به د غبطې قابل خلک هغه وي چې هغوي دینې ترون په بنیاد باندې خپل مینځ کې مینه ساتي. د روح الله نه شارحینو نه قرآن کریم مراد اخستلی دی. ځکه چې قرآن هم مړه بدنونو لپاره حیات او روح دی. او د دې په وجه باندې خپل مینځ کې مینه، مضبوطه دینې خپلولي ده. چې هغه به په قیامت کې خامخا پکار راځي. (مرقات: ۸/۷۴۵)

## د انسانانو خپل مینځې کلکه خپلولي اسلام دی

﴿۱۰﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَبِي ذَرٍّ: «يَا أَبَا ذَرٍّ أَيُّ

او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمایل چې ابوذر!

---

([1]) أخرجه أبوداود في السنن ۳/۷۹۹ رقم الحديث ۳۵۲۷ وأحمد في المسند ۵/۳۴۳.

([2]) أخرجه البغوي في الشرح السنة ۱۳/۵۳ رقم الحديث ۳۴۶۸، والبيهقي في شعب الايمان ۶/۴۸۶ رقم الحديث ۸۹۹۸.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عُرَى | الْإِيمَانِ | أَوْثَقُ؟» | قَالَ: | الله |
| (پوهيږي) د ايمان کومه رسۍ او بناخ کلک دی؟ حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جواب ورکړو چې الله او دهغه | | | | |
| وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. قَالَ: «الْمُوَالَاةُ فِي اللهِ وَالْحُبُّ | | | | |
| رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ديرپوهيدونکي دي. نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د خدای د رضا لپاره خپل مينځ کې مينه | | | | |
| فِي اللهِ وَالْبُغْضُ فِي اللهِ» (رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي «شعب الْإِيمَان») [1] | | | | |
| ساتل او د خدای د رضا لپاره د چا سره دوستي کول او د خدای د رضا لپاره د چا نه بغض او کرکه کول (بيهقی) | | | | |

## د مسلمان ورور د عيادت فضيلت

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِذَا عَادَ الْمُسْلِمُ |
| او حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: کله چې يو مسلمان د خپل کوم مسلمان ورور ناروغی. |
| أَخَاهُ أَوْ زَارَهُ قَالَ اللهُ تَعَالَى: |
| پوښتنې لپاره يا د هغه سره د ملاقات په خاطر د هغه ځای ته ځي نو الله تعالی (بلاواسطه يا د فرښتو په ژبه) فرمايي چې |
| طِبْتَ وَطَابَ مَمْشَاكَ |
| (دنيا او آخرت کې) ستا ژوند خوشحاله شو ستا ګرځيدل مبارک شو (چې ته په تګ سره تردې ځايه |
| وَتَبَوَّأْتَ مِنَ الْجَنَّةِ |
| راغلي) په هر قدم باندې تا ته ثواب درکړی شو او تا ته په جنت کې يو غټ او وچت شان والا مرتبې |
| مَنْزِلًا (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيث غَرِيب) [2] |
| ځای ترلاسه شو. دا روايت ترمذی نقل کړيدی او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دی. |

## د کوم سړي سره دې مينه وي نو هغه خبر کړه

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنِ الْمِقْدَام بن معديكرب عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت مقدام ابن معديکرب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت کوي چې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: |

---

([1]) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۷/۷۰ رقم الحديث ۹۵۱۴.

([2]) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۲۰ رقم الحديث ۲۰۰۸، وابن ماجه في ۱/۴۶۴ واحمد في المسند ۲/۳۴۴.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| « | إِذا | أُحب | الرجل | أَخَاهُ |

یو سړی چې کله د خپل مسلمان ورور سره دوستي یا مینه ولري نو هغه له پکار دي چې هغه د غه مسلمان

فليخبره أنه أحبه» (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالتِّرْمِذِيّ)[1]

ته ووایې چې هغه دا دوست او محبوب ساتي. (ابوداؤد او ترمذی)

﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: مَرَّ رَجُلٌ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت انس رَضِیَ اللهُ عَنهُ فرمایي چې (یو ورځ) د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مخه باندې یو سړی تیر شو، او د

وَعِنْدَهُ نَاسٌ. فَقَالَ رَجُلٌ مِمَّنْ عِنْدَهُ:

نبی عَلَيْهِ السَّلَام سره ډیر خلک ناست ؤ. په دې کسانو کې یو سړي وویل چې دا سړی چې دا وس په مخه تیر شو.

إِنِّي لأحب هَذَا فِي اللهِ. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

زه د ده سره فقط د الله د رضا لپاره مینه کوم. نبی عَلَيْهِ السَّلَام (دې اوریدلو سره) وفرمایل: آیا تا هغه ته ویلي دي

« أَعْلَمْتَهُ ؟ » قَالَ : لَا . قَالَ : « قُمْ إِلَيْهِ فَأَعْلِمْهُ » .

چې ته د هغه سره مینه کوې؟ هغه سړي وویل نا. نبی عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: نو پاڅه او هغه خواته ورشه او ورته ووایه.

فَقَامَ إِلَيْهِ فَأَعْلَمَهُ

نو هغه سړی (مجلس نبوی نه) پاڅیدلو او هغه خواته ورغلو، ورته یې وویل چې زه ستا سره مینه لرم. هغه سړي (جواب کې د

فَقَالَ : أَحَبَّكَ الَّذِي أَحْبَبْتَنِي لَهُ.

دعاء په توګه) وویل چې هغه ذات (یعني الله تعالی) دې ستا سره مینه وکړي د چا د رضا په خاطر چې ته زما سره مینه کوې.

قَالَ : ثُمَّ رَجَعَ فَسَأَلَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

حضرت انس رَضِیَ اللهُ عَنهُ فرمایي چې هغه سړی بیا راستون شو نو نبی عَلَيْهِ السَّلَام پوښتنه وکړه چې هغه سړي په جواب

فَأَخْبَرَهُ بِمَا قَالَ. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

کې څه وویل؟ هغه نبی عَلَيْهِ السَّلَام ته د هغه جواب وویله، کوم چې هغه ورکړی ؤ. نبی عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل: چې

«أَنْتَ مَعَ مَنْ أَحْبَبْتَ وَلَكَ

ته (آخرت کې) به د هغه سړي سره یې د چا سره چې ته مینه کوې. او ته (مینه ساتلو بلکې هر عمل کې) په هغه

---

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۵/۳۴۳ رقم الحديث ۵۱۲۴، والترمذي في ۴/۵۱۷ رقم الحديث ۲۳۹۲.

مَا احْتَسَبْتَ» (رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ» . وَفِي رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ:

څه به اجر او ثواب ترلاسه کوي کوم چې د الله تعالی لپاره نیت کوي. (بیهقي) او د ترمذي په روایت کې

«الْمَرْءُ مَعَ مَنْ أَحَبَّ

دا الفاظ دي چې سړی به د هغه چا سره وي د چا سره چې مینه کوي. او هغه ته به په هغه څه باندې

وَلَهُ مَا اكْتَسَبَ»[1]

اجر ورکولی کیږي کوم چې هغه د ثواب په نیت باندې اختیاروي.

## فقط د دیندار سره تعلق وساته

﴿۱۴﴾ وَعَنْ أَبِي سعيد أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ:

او د حضرت ابو سعید رضي الله عنه نه روایت دی چې هغه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه دا اوریدلي دي: د مسلمان نه

«لَا تُصَاحِبْ إِلَّا مُؤْمِنًا

علاوه بل څوک (کافر او مشرک) خپل ملګری او دوست مه جوړوه. (یا دا مراد دی چې نیکوکار مسلمان نه علاوه کوم

وَلَا يَأْكُلْ طَعَامَكَ إِلَّا

فاسق او بدکار سره دوستي مه کوه. د دې ارشاد قرینه هغه جمله ده کومه چې یې مخکې و فرمایله چې)

تَقِيٌّ» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ والدارمي)[2]

ستا خوراک دې د پرهیزګار نیکوکار نه علاوه څوک و نه خوري.

**توضیح: لاتصاحب:** یعنې د بدو خلکو د لاریتوب، دوستۍ او ملګرتیا نه ځان وساته. ځکه چې دا ستا لپاره دلستوني ماران دي. ستا د بدن په ځای به ستا روح او ایمان له ټک ورکړي. تا به په شرک او بدعاتو کې اخته کړي. او تا ته به بداخلاقي او بدکرداري وښايې. نو ځکه د مؤمنانو سره دوستي او تعلق وساته.

**الاتقي:** یعنې ستا حلاله مړۍ ده. نو ځکه مناسب دي چې دا نیک او متقی سړی وخوري. مطلب دا دی چې د فاسق فاجر دې په تا باندې داسې احسان نه وي، چې سبا ته مجبورا په هغه باندې وخوري، بلکې ستا معامله دې د نیکانو خلکو سره وي. هو! د مجبورۍ صورت جدا دی.

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۳۳۴ رقم الحديث ۵۱۲۵، والترمذي في ۴/۵۱۴ رقم الحديث ۲۳۸۶.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۱۶۷ رقم الحديث ۴۸۳۲ والترمذي في ۴/۵۱۹ رقم الحديث ۲۳۹۵.

﴿۱۵﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الْمَرْءُ عَلَى دِينِ

او حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: انسان د خپل دوست په دین باندې

خَلِيلِهِ فَلْيَنْظُرْ أَحَدُكُمْ

وي (یعنې کوم سړی چې د چا سره د زړه دوستي کوي نو په عامه توګه باندې د هغوی عقیدې او نظریې او د هغې عادتونه او بنوې ونه

مَنْ يُخَالِلُ» (رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ»

قبلوي) لهذا دا ضروري ده چې کله په تاسو کې يو سړی څوک دوست جوړوي نو ودې ګوري چې څوک دوست

وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

جوړوي. (احمد، ترمذي، ابوداؤد او بیهقی) او ترمذی ویلي دي چې دا حدیث غریب دی. او نووي

وَقَالَ النَّوَوِيُّ: إِسْنَادُهُ صَحِيحٌ)[۱]

ویلي دي چې د دې روایت اسناد صحیح دی.

**توضیح: من يخالل:** د دې دوستۍ نه مراد د زړه مینه ده. چې د زړه دوستې او د زړه مینه فاسق، فاجر او بد کردار سړی سره پکار ندي. هو! ظاهري تعلق او مدارات جائز دي.

با دوستاں تلطف با دشمناں مدارا

دا حدیث ځینو علماؤ یعنې سراج الدین قزوینی موضوع ګرځولی دی. نو ځکه صاحب مشکوة د ترمذی او نووی د حوالو ذکر وکړو. چې هغوی دا حدیث حسن او صحیح ګرځولی دی. لهذا دیته موضوع ویل صحیح نه دي. (مرقات: ۸/۷۵۱)

## د چا سره تعلق جوړوي نو د هغه نوم او نسب معلوم کړه

﴿۱۶﴾ وَعَن يزيد بن نعامة قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا آخَى الرَّجُلُ الرَّجُلَ

او حضرت یزید بن نعامه رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کله چې یو سړی د بل سړي سره ورورولي

فَلْيَسْأَلْهُ عَنِ اسْمِهِ وَاسْمِ أَبِيهِ

جوړوي نو هغه لره پکار دي چې هغه د ده نه د هغه او د هغه د پلار نوم معلوم کړي او پوښتنه وکړي چې هغه

وَ مِمَّنْ هُوَ ، فَإِنَّهُ أَوْصَلُ للمودّة » . (رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ)[۲]

د کومې قبیلې سره تعلق ساتي. ځکه چې دا معلومول دوستۍ او تعلق ډیر مضبوطولو ذریعه به وي. (ترمذی)

---

([۱]) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۱۶۸ رقم الحديث ۴۸۳۳ والترمذي في السنن ۴/۵۰۹ وأحمد في المسند ۲/۳۰۳.

([۲]) أخرجه الترمذي في لاسنن ۴/۵۱۷ رقم الحديث ۲۳۹۲

# الفصل الثالث

## د الله تعالی د رضا لپاره د مینې او دښمنۍ فضیلت

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾عَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت ابوذر رضي الله عنه فرمایي چې (یوه ورځ) رسول الله صلی الله علیه وسلم (د خپل حجرې مبارکې نه) راووتلو (مسجد نبوی کې) |
| قَالَ: «أَتَدْرُونَ أَيُّ الْأَعْمَالِ أَحَبُّ إِلَى الله تَعَالَى؟» |
| زمونږ خواته راغلو او وې فرمایل چې آیا تاسو پوهیږئ چې د الله تعالی په نزد باندې ډیر خوښ عمل کوم یو دی؟ |
| قَالَ قَائِلٌ: الصَّلَاةُ وَالزَّكَاةُ. وَقَالَ قَائِلٌ: الْجِهَادُ. قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| کوم یو نکې وویل چې لمونځ یا زکوة او یو بل ویونکې وویل چې جهاد! نبی صلی الله علیه وسلم (دې او ریدلو باندې) وفرمایل |
| «إِنَّ أَحَبَّ الْأَعْمَالِ إِلَى الله تَعَالَى الْحُبُّ فِي الله |
| چې د الله تعالی په نزد باندې ډیر خوښ عمل د خدای د رضا په خاطر باندې د چا سره مینه کول او د خدای د |
| وَالْبُغْضُ فِي الله» رَوَاهُ أَحْمَدُ ، وَرَوَى |
| رضا په خاطر د چا سره بغض او کرکه ساتل دي. (احمد) او ابو داؤد په خپل روایت کې د حدیث فقط |
| أَبُو دَاوُد الْفَصْل الْأَخِير[1] |
| آخرې برخه یعني إِنَّ أَحَبَّ الْأَعْمَالِ الخ نقل کړیدی. |

**توضیح:** الجهاد: دلته پوښتنه دا ده چې حب فی الله او بغض فی الله یې د لمونځ، زکوة روژې او جهاد نه ولې افضل وګرځولو، او دا اعمال خو فرض دي؟

د دې یو جواب دا دی چې د زړه په اعمالو کې حب فی الله افضل عمل او بدني اعمالو کې لمونځ، روژه او زکوة او جهاد افضل دي. بیل بیل حیثیتونه یې دي. دویم جواب دا دی چې د نورو تولو فرائضو د پورا کیدلو نه وروسته الحب فی الله او البغض فی الله افضل عمل دی. مطلقًا ندی یعنې لمونځ، روژه او زکوة او جهاد د تکمیل نه وروسته حب فی الله افضل عمل دی. ځینو روایتونو کې د دې تاویل تصریح هم موجود ده. لکه طبراني د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه نقل کړیدي. احب الاعمال الی الله بعد الفرائض ادخال السرور في قلب المؤمن. (مرقات: ۸/۷۵۳)

---

[1] أخرجه احمد في المسند ۵/۱۴۶ وأخرج أبوداود في الفصل الأخير في السنن ۵/۶ رقم الحديث ۴۵۹۹.

| ﴿۱۸﴾وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا أَحَبَّ عَبْدٌ عَبْدًا لله |
|---|
| او حضرت ابو امامه رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: کوم بنده چې د بل بنده سره فقط د الله تعالى د رضا |
| إِلَّا أَكْرَمَ رَبَّهُ عَزَّ وَجَلَّ» (رَوَاهُ أَحْمد)[1] |
| په خاطر باندې مينه او دوستي وساتله نو هغه په حقيقت کې د خپل پروردګار تعظيم او تکريم وکړو. (احمد) |

## دچا په کتلو سره چې خدای را یاد شي هغه بهتر خلک دي

| ﴿۱۹﴾وَعَن أَسمَاء بنت يزيد أَنَّهَا سَمِعَتْ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «أَلَا |
|---|
| او حضرت اسماء بنت يزيد رضي الله عنها نه روايت دى چې هې د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چې آيا |
| أُنَبِّئُكُمْ بِخِيَارِكُمْ؟» قَالُوا: بَلَى يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ: |
| زه تاسو ته دا ووايم چې په تاسو کې بهترين خلک څوک دي. صحابؤ عرض وکړو چې هو! ضرور ووايې. |
| «خِيَارُكُمُ الَّذِينَ إِذَا رُؤُوا ذُكِرَ اللهُ» (رَوَاهُ ابْن مَاجَه)[2] |
| نبي صلى الله عليه وسلم وفرمايل: په تاسو کې غوره خلک هغه دي چې د هغوي په کتلو سره خداى را ياد شي. (ابن ماجه) |

## د خدای لپاره خپل مينځ کې د مينې فضيلت

| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَوْ أَنَّ عَبْدَيْنِ تَحَابَّا |
|---|
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: که دوه بنديګان فقط د |
| فِي اللهِ عَزَّ وَجَلَّ وَاحِدٌ فِي الْمَشْرِقِ وَآخَرُ فِي الْمَغْرِبِ |
| خدا د رضا لپاره خپل مينځ کې مينه وساتي که په هغوې کې يو په مشرق کې وي او بل په مغرب کې |
| لَجَمَعَ اللهُ" بَيْنَهُمَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ. |
| نو يقينًا الله تعالى به هغوې د قيامت په ورځ باندې يو ځاى کړي (دې لپاره چې هغوې د يو بل شفاعت وکړي يا |
| يَقُولُ: هَذَا الَّذِي |
| جنت کې د يو بل سره ووسيږي) دغه شان الله تعالى به په دې دواړو کې هر يو ته وفرمايي چې دا هغه بنده دی |

---

(۱) اخرجه احمد في المسند ۵/۲۵۹

(۲) اخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۳۷۹ رقم الحديث ۴۱۱۹.

كُنْتَ تُحِبُّهُ فِيَّ[1]

چې زما په خاطر تا ده سره مینه کوله

## د ذکر د مجلسونو پابندي کوه

﴿۲۱﴾ وَعَنْ أَبِي رَزِينٍ أَنَّهُ قَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَلَا أَدُلُّكَ عَلَى مِلَاكِ

او د حضرت ابو رزین رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل چې زه تا ته د دې امر یعنې

هَذَا الْأَمْرِ الَّذِي تُصِيبُ بِهِ خَيْرَ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ؟

د دې جړه و نه ښایم. چې د هغې په ذریعه سره ته دنیا او آخرت ښیګړه ترلاسه کړې شي؟ (نو واوره) دا شیان ته خپل

عَلَيْكَ بِمَجَالِسِ أَهْلِ الذِّكْرِ

ځان باندې لازم کړه. د اهل ذکر په مجلسونو کې کینه (دې لپاره چې تا ته هم د الله د ذکر توفیق او سعادت ترلاسه کیږي)

وَإِذَا خَلَوْتَ فَحَرِّكْ لِسَانَكَ مَا اسْتَطَعْتَ

کله چې یواځې پاتې شې نو څومره چې ممکنه وي، د الله ذکر سره خپلې ژبې ته حرکت ورکوه. یعنې د خلکو سره په ناسته کې هم د

بِذِكْرِ اللهِ وَأَحِبَّ فِي اللهِ

الله ذکر کوه. او په ځانله والي کې هم د الله په یاد کې مشغول وسیږه. (که څوک د دوست و نیسې نو) فقط د الله تعالی د رضا او خوشحالۍ

وَأَبْغِضْ فِي اللهِ

لپاره یې دوست جوړ کړه او (څوک چې د ښمن جوړ کړې نو) فقط د الله د رضا او خوشحالۍ لپاره د هغه سره بغض وساته.

يَا أَبَا رَزِينٍ هَلْ شَعَرْتَ

یعنې د چا سره ستا دوستي او د ښمني معیار د الله رضا معیار وي. او ای ابو رزین آیا تا ته معلومه ده؟

أَنَّ الرَّجُلَ إِذَا خَرَجَ مِنْ بَيْتِهِ زَائِرًا أَخَاهُ

چې کله یو سړی د خپل مسلمان ورور زیارت او ملاقات په اراده باندې د کور نه ووځي او د هغه مسلمان

شَيَّعَهُ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ كُلُّهُمْ

ځای ته لاړ شي) نو اویا زره فرښتې هغې پسې شا ته شا ته ځي او هغه (ټولې فرښتې) د هغه لپاره د

يُصَلُّونَ عَلَيْهِ وَيَقُولُونَ: رَبَّنَا إِنَّهُ

استغفار دعاء غواړي. او وایي چې ای زمونږ پروردګار! دې سړي فقط ستا د رضا په خاطر (د یو مسلمان

---

(1) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۴۹۲ رقم الحديث ۹۰۲۲.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَصَلَ | فِيكَ | فَصِلْهُ؟ | فَإِنِ |

وروړ سره) ملاقات وکړو نو دا د خپل رحمت او مغفرت سره یو ځای کړه نو (ای ابورزین) که تا لره په دې ذکر

اسْتَطَعْتَ أَنْ تُعْمِلَ جَسَدَكَ فِي ذَلِكَ فَافْعَلْ"[1]

شوؤ شیانو کې خپل ځان لګول (یعني په دې باندې عمل کول) ممکن وي نو دا شیان خامخا خپل کړه.

## د خدای لپاره د محبت غښ فضیلت

﴿۲۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: كُنْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې (یوه ورځ) زه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ؤم. چې

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ فِي الْجَنَّةِ لَعُمُدًا مِنْ يَاقُوتٍ عَلَيْهَا غُرَفٌ مِنْ زَبَرْجَدٍ

نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: په جنت کې د یاقوتو ستنې دي. چې په هغې باندې د زمردو بالاخانې جوړې شویدي. د

لَهَا أَبْوَابٌ مُفَتَّحَةٌ تُضِيءُ كَمَا

هغې دروازې برسیرته دي. او هغه بالاخانې او د هغې دروازې هم دغه شان روښانه او پړقیږي لکه

يُضِيءُ الْكَوْكَبُ الدُّرِّيُّ» فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ

څنګه چې روښانه ستوري پړقیږي. صحابؤ (دې اوریدلو سره) عرض وکړو چې یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ!

مَنْ يَسْكُنُهَا؟ قَالَ: «الْمُتَحَابُّونَ فِي اللهِ

په دې کې به کوم خلک وسیږي؟ نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: څوک چې د خدای د رضا په خاطر خپل مینځ کې مینه ساتي.

وَالْمُتَجَالِسُونَ فِي اللهِ وَالْمُتَلَاقُونَ

د خدای د رضا په خاطر باندې د یو بل سره مجلس او ملګرتیا کوي. او د خدای د رضا په خاطر باندې

فِي اللهِ» (رَوَى الْبَيْهَقِيُّ الْأَحَادِيثَ الثَّلَاثَةَ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ»)[2]

خپل مینځ کې ملاقات کوي. (دا درې واړه روایتونه بیهقی په شعب الایمان کې نقل کړیدي)



---

([1]) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۴۹۵ رقم الحديث ۹۰۲۴.

([2]) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۴۸۷ رقم الحديث ۹۰۰۲.

## باب ما ينهى عنه من التهاجر والتقاطع و اتباع عورات الناس

۱٤ ربيع الثاني ۱٤۱۸هـ

## د يو څو منع کړې شوؤ شيانو بيان

يعنې دا يو څو منع کړې شوي شيان دي چې په هغې کې د ملاقات پريخودل، خپل مينځ کې بيلتون، خبرې نکول، د تعلق ختمول او عيب لټول شامل دي. تهاجر، هجرت او هجران د پريخودلو په معنى دي. هاجره او هجيره پريخودلو په معنى راځي. او تقاطع قطع تعلق او غوڅولو او خبرې نکول په معنى باندې راځي. د تقاطع لفظ ګويا د تهاجر ترجمه يا د هغې بيان او وضاحت دی. د دوه مسلمانانو د يو بل نه د درې ورځو نه ډير سلام کلام بندول او د تعلق ختمولو نوم تهاجر دی، په نورو الفاظو کې داسې پوهه شی چې اسلامې وروروليې غوڅولو نوم تهاجر او تقاطع ده. عنوان کې مِنْ رواړلو سره تبعيض اړخ ته اشاره کړې شويده. ځکه چې په ځينو حالاتو کې تر يو حده پورې تهاجر او د تقاطع اجازت وي لکه وس به په لاندې حديث کې د دې ذکر راروان دی. العورات: دا دعورة جمع ده. لغت کې عورت هغه شي ته ويلی کيږي چې د هغې په ښکاره کولو باندې سړی عار او شرم محسوسوي، او د زړه نه غواړي چې هغه شی دې پټ وي، دلته د عورات نه مراد پټ عيبونه دي. يعنې د خلکو پټو عيبونو پسې لټيدل ښه خبره نده. بلکې منع ده.(مرقات : ۸/۷۵۸)

### الفصل الاول

### درې ورځو نه ډير خبرې بندول حرام دي

{۱} عَنْ أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا يَحِلُّ لِلرَّجُلِ

حضرت ابو ايوب انصاری رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: دا د يو سړي لپاره حلال ندي چې

| أَنْ | يَهْجُرَ | أَخَاهُ | فَوْقَ | ثَلَاثِ | لَيَالٍ |
|---|---|---|---|---|---|

هغه: درې ورځو نه ډير د خپل مسلمان ورور سره ملاقات کول پرېږدي. او صورت دا وي چې(چيرته هغوي يو بل

| يَلْتَقِيَانِ | فَيعرض | هَذَا | ويعرض | هذا | وخيره |
|---|---|---|---|---|---|

مخې تمراشي نو) دا خپل مخ هغه اړخ ته کړي او هغه خپل مخ بل اړخ ته کړي، او په دواړو کې غوره سړی هغه دی څوک چې

يَلْتَقِيَانِ فَيعرض هَذَا ويعرض هذا وخيرهما الَّذِي يَبْدَأُ بِالسَّلَامِ» (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1]

(خفګان ليرې کولو لپاره او د اړيکو په ځای کېدو په خاطر) په سلام کې مخکې والی وکړي.(بخاری او مسلم)

**توضيح**: فوق ثلاث: يعنې د درې ورځو نه ډير د تعلق پريخودل د هيچا لپاره جائز ندي. په دې حديث کې د

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۹۲ رقم الحديث ۶۰۷۷ ومسلم في ۴/۱۹۸۴ رقم الحديث (۲۵۶۰-۲۵).

درې ورځو د نيد نه معلومه شوه چې انساني طبع او غصه او قهر مخې ته په رډلو سره تر درې ورځو پورې د يو سړي لپاره تعلق پريخودل او خبرې بندولو اجازت شته دی. غيرت او جذبې په وجه باندې انسان تر درې ورځو پورې د خپلې غصې د جذباتو دوجې نه معذوره دی. د دې لپاره د مزاج تُندي او د بې صبرۍ ماده تر ورځو پورې په جوش کې وي. لهٰذا تر درې ورځو پورې معذوره وګڼلې شو. د درې ورځو نه ډير د تعلق پريخودل د مزاج مغلوبيت ندی بلکې شرارت دی. نو ځکه حرام دی. درې ورځو پورې معذور ګڼلو وجه په پوهه کې راځي. ځکه چې انسان مدنی الطبع دی. د عام ناستې ولاړې د وجې نه کله کنځلي اوري، کله غيبت او چغلي اوري. د هرې ورځې د دې خپل مينځې معاملاتو د وجې نه نزاع او جګړو صورتونه پيدا کيدلی شي. نو ځکه تر درې ورځو پورې د تعلق پريخودلو اجازت شته دی. ډير نشته دی. علامه سيوطی رحمه الله په دې خبره باندې د علماؤ اتفاق نقل کړيدی چې که يوسړې سره دا ويره وي که د فلانکې سړې سره ملاقات کوم يا د عامو خلکو سره تعلق ساتم نو په دې سره ماته دينی او دنياوي تقصان د رسيدلو خطره ده. او زما قيمتې وخت هم ضائع کيدلی شي. نو دداسې سړې لپاره جائز دي چې هغه د خلکو نه ځان غاړې کړي. او د ګدون نه دې ځان وساتي، ليکن هغه دې په دې ځان غاړې کولو کې د خلکو غيبت دې نکوي، د هغوې بدې دې نه کوي، او دهغوې سره دې کينه او حسد نه ساتي. دغه شان دينی غيرت دوجې او په دغه بنياد باندې د دين د فائدې لپاره د درې ورځو نه ډير د تعلق پريخودلو ګنجائش نشته دی. ځکه چې دا ترک موالات د دين لپاره هم فائده مند دي. د چا سره چې تعلق پريخودل شويدی. د حضرت کعب بن مالک رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، هلال بن اميه او حضرت مراره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سره د مدينې خلکو او د خدای پيغمبر پنځوس ورځو پورې مکمل تعلق پريخودلی ؤ. نبی کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت زينب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا نه تقريبًا دوه نيمې مياشتې ترک تعلق کړی ؤ. حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د خپل ځوې حضرت بلال رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سره ټول ژوند تعلق ختم کړی ؤ. حضرت عائشه صديقه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا د حضرت عبد الله بن زبير سره تر يو وخته پورې تعلق ختم کړی ؤ. نو دا جائز دي. دغه شان د بدعتيانو او اهل هواء سره دهغوې د بدعاتو په وجه باندې تعلق ختمول ضروري دي، د نورو بدعقيده خلکو هم دا حکم دی. د تهاجر او خبرو بندولو صورت کې چې چا په سلام کې مخکې والی وکړو هغه د بل نه افضل او اعلی جوړيږي. که د تعلق پريخودلو په وخت کې يو په بل سلام وکړو او بل جواب ورنکړو نو وس د تقاطع د ګناه نه سلام کونکی خارج شو. دويم به په دېکې اخته وي. د دې ټول بحث خلاصه دا ده چې د قبيح د کولو نه وروسته ادب او زجر او توبيخ او تنبيه او د اصلاح په غرض سره درې ورځو نه ډير ؤ نو جائز ده. او فقط د بغض، عناد او کنيې او حسد په بنياد باندې حرام دی. په دې بيان سره به په ټولو احاديثو کې تطبيق راشي. (مرقات: ۸/۷۵۸،۷۵۹)

# بغض او کر که او ليري والى او دښمني پيدا کونکي کارونه منع دي

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِيَّاكُمْ وَالظَّنَّ |
| ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل: بدگماني كولو نه ځان وساتئ ځکه چې د |
| فَإِنَّ الظَّنَّ أَكْذَبُ الْحَدِيثِ) |
| بدگماني خبرو د ټولو نه بدتر دروغ دي. (د ځان نه غيره متعلقه کارونو او بى ضرورته د نورو داحوالو په) |
| وَلَا تَحَسَّسُوا وَلَا تَجَسَّسُوا وَلَا تَنَاجَشُوا وَلَا تَحَاسَدُوا |
| لټون کې مه وسيږئ. د چا جاسوسي مکوه. د چا سودا مه خرابوه. خپل مينځ کې حسد مکوئ، د يو بل |
| وَلَا تَبَاغَضُوا وَلَا تَدَابَرُوا وَكُونُوا عِبَادَ اللهِ إِخْوَانًا». |
| سره بغض مه ساتئ. د يو بل غيبت مکوئ، او ټول مسلمانان د خدا بنديګان او د يو بل ورونه ووسيږئ. |
| وَ فِي رِوَايَةٍ : « وَلَا تنافسوا » . ( مُتَّفق عَلَيْهِ )[1] |
| او په يو روايت کې دا الفاظ هم دي چې خپل مينځ کې حرص مکوئ. (روايت کړې دې بخاري او مسلم) |

**توضيح: اياكم والظن:** يعنې د بدګمانئ نه ځان وساتئ. د غه شان د بدګمان او فرض کړی شوۍ په بنياد باندې د خبرو کولو نه ځان وساتئ. ځکه چې دغه شان فرضې خبرې يا اوريدلې شوي خبرې بدترين دروغ دي. او «**كفى بالمرء كذبا ان يحدث بكل ما سمع**» والا حديث دا منع کريږي.

**ولاتجسسوا:** د چا د حالاتو په معلومولو کې مه لګيږه. او د نورو خبرونه مه لټوه. **ولاتجسسوا:** او د چا جاسوسي مکوه. تحسس او تجسس په فرق کې دوه قولونه دي: اول قول دا دى چې دا دواړه مترادف دي. معنې يې يو ده. دويم قول دا دى چې تجسس هغه معلوماتو او پټې کتنې ته وايي چې هغه د نورو په مرسته او تعاون سره وي او تحسس هغه دى چې هغه د چا په مرسته او واسطه سره نه وي. بلکې په خپل مرسته باندې د خپل حواسو په بنياد باندې وي خو په پټه طريقې سره. لکه د غوږ په کيخودلو سره خبرې اوريدلو کوښښ وکړي يا په پټه توګه باندې په سترګو سره معلومه کړي. (مرقات : ۸/۷۶۰)

**ولاتناجشوا: تناجش:** دا لفظ په اصل کې د خکار راپارول او تختولو لپاره استعماليږي. بيا د دې اطلاق په هغه مصنوعې اخستونکې باندې وشو چې هغه په ګاهک باندې د سودا قيمت ډيرولو لپاره مصنوعې قيمت نکوي. د دې جملې لفظي ترجمه دا ده چې د چا سودا مه ورانوه. (مرقات :۷۶۱،۸/۷۶۰)

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۸۴،رقم الحديث ۶۰۶۶،ومسلم في ۴/۱۹۸۵ رقم الحديث (۲۵۶۳-۲۸)،وأبوداود في السـ
۵/۲۱۳.

**ولاتحاسدوا:** یعني حسد مکوه. د حسد تعریف دا دی چې د نورو د نعمت د ختمیدلو ارزو وکړي. که هغه ته به لاس ورشي او که ورنشي خو د نورو نه چې ختم شي. (مرقات :۸/۷۶۱)

**ولاتباغضوا:** د یو بل سره بغض مه ساتی. یعني دیني او دنیاوي اعتبار سره داسې اسباب مه پیدا کوی چې د هغې نه بغض او حسد پیدا کیږي. (مرقات :۸/۷۶۱)

**ولاتدابروا:** یعني د یو بل شاه تر شه بدې او غیبت مکوی. دا یو مطلب دی. دویم مطلب ملا علی قاری دا بیان کړیدی چې کله دوه مسلمان یو ځاې کیږيّ نو د قطع تعلق د وجې نه یو بل ته شاه مه ښایی لکه څنګه چې عام عادت دی چې دوه خفه ملګرې دیو بل نه مخ اړولو باندې اعراض کوي، دا مطلب ډیر واضح دی. (مرقات :۸/۷۶۱)

**وکونوا عباد الله:** یعني ټول په ټوله مسلمانان ورونه جوړ شی. دا جمله د خلاصې او نتیجې په توګه باندې ده. ځکه چې پاس ذکر شوې مکروه کارونه چې کله نه وي نو خپله به مسلمانان ورونه ورنه جوړ شي. ځکه چې د ټولو رب یو دی. نبی یو دی. کتاب یو دی. قبله یو ده. مکمل اتحاد دی. (مرقات :۸/۷۶۱)

**ولاتنافسوا:** یعني حرص او لالچ کولو سره دنیوي ښائسته شیانو کې دلچسپې اخستلو باندې د یو بل نه مه مخکې کیږی. یو روایت کې دا جمله شته دی. وس واضحه دا ده چې دا جمله ولاتحاسدوا نه ورسته وي. (مرقات :۸/۷۶۱)

## خپل مینځې دښمنۍ قباحت

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "تُفْتَحُ أَبْوَابُ الْجَنَّةِ يَوْمَ الِاثْنَيْنِ وَيَوْمَ الْخَمِيْسِ | | | | | | | |
| او حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمایې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایل: دوشنبې او پنجشنبې په ورځ باندې | | | | | | | |
| فَيُغْفَرُ | لِكُلِّ | عَبْدٍ | لَا | يُشْرِكُ | بِاللهِ | شَيْئًا | |
| د جنت دروازې برسیرته کیږي. او بیا د هر هغه بنده ببننه کیږي چې هغه د خدای سره څوک نه شریکوي، البته | | | | | | | |
| إِلَّا | رجلا | كَانَتْ | بَيْنَهُ | وَبَيْنَ | أَخِيهِ | شَحْنَاءُ | فَيُقَالُ: |
| هغه سړی د ببنني نه محرومه وي چې هغه خپل مینځ یاد کوم مسلمان ورور سره دښمني لري. نو فرښتو ته وویلی شي دې | | | | | | | |
| انْظُرُوا | هٰذَيْنِ | حَتّٰى | يصطلحا | " . | ( رَوَاهُ مُسلم ) | | |
| دواړو ته چې خپل مینځ کې دښمني لري، مهلت ورکړی، تر دې چې خپل مینځ کې جوړ جاړی وکړي. (مسلم) | | | | | | | |

**توضیح**: **الشحناء**: خپل مینځ کې بدترین قسمه دښمنۍ ته شحناء ویل کیږي. دا د انسان لپاره دومره لویه تباهي ده چې د شرک نه علاوه غټ غټ ګناهونه معاف کیدلی شي خو دا ګناه نشي معاف کیدلی. دوشنبې او پنجشنبې په ورځ باندې د جنت دروازې برسیرته کیږي. او د الله تعالیٰ رحمت عام شي لیکن دا دوه کسان چې خپل مینځ کې دښمنۍ لري، د دوې دا ګناه نشي معاف کیدلی. او د الله تعالیٰ د ارخ نه فرښتو ته حکم وشي چې ترڅو دې دواړو خپل مینځ کې صلح او معافي نه وي شوي، هغوې ته به د دوشنبې او پنجشنبې د ورځې ګناه هم معاف نه کړم. (مرقات: ۸/۷۶۲،۷۶۳)

انظروا: باب افعال نه د امر صیغه ده. د انتظار او مهلت په معنی باندې دی. (مرقات: ۸/۷۶۳) ورسره حدیث کې د **اترکوا** الفاظ راغلي دي. **یصطلحا** دصلح کولو په معنې دی. ورسره روایت کې **یفیئا** دی چې هغه د رجوع په معنی دی. یعنې د دې مؤخر کولو سره پریږده. ترڅو چې صلح ونکړي. زه به یې معاف نکړم.

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "تُعْرَضُ أَعْمَالُ النَّاسِ فِي كُلِّ جُمُعَةٍ |
| او حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: هره اونۍ (هفته) کې دوه ځل |
| مَرَّتَيْنِ يَوْمَ الِاثْنَيْنِ وَيَوْمَ الْخَمِيسِ فَيُغْفَرُ لِكُلِّ مُؤْمِنٍ إِلَّا |
| دوشنبې او پنجشنبې د پروردګار په دربار کې عملونه پیش کولی شي. نو د هر مؤمن بنده مغفرت کیږي. |
| عبدا بَيْنه بَين أَخِيهِ شَحْنَاءُ فَيُقَالُ: اتْرُكُوا |
| علاوه د هغه بنده چې هغه خپل یا بل مسلمان سره دښمني لري. د هغوې په اړه وویلی شي چې دې دواړو ته |
| هَذَيْنِ يَفِيئَا حَتَّى (رَوَاهُ مُسلم)[1] |
| مهلت ورکړی، چې هغوې راوګرځي او د دښمنۍ نه منع شي. (مسلم) |

## په درې ځایونو کې د اصلاح راوستلو لپاره دروغ جائز دي

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ أُمِّ كُلْثُومٍ بِنْتِ عُقْبَةَ بْنِ أَبِي مُعَيْطٍ قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ام کلثوم بنت عقبه بن ابی معیط وایي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوریدلی دي: |
| يَقُولُ: « لَيْسَ الْكَذَّابُ الَّذِي يُصْلِحُ |
| هغه سړی دروغژن نه دی چې هغه (د خپلو خبرو په ذریعه) د خلکو مینځ کې اصلاح کوي یعنې خپل مینځې |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۹۸۷ رقم الحديث (۲۵۶۵-۳۶) وأبوداود في السنن ۲/۸۱۴ رقم الحديث ۲۴۳۶.

بَيْنَ النَّاسِ وَيَقُولُ خَيْرًا وَيَنْمِي خَيْرًا» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

دښمنو لرونکو په مينځ کې جوړجاړی وکړي (خپل مينځ کې دښمنۍ لرونکي هر يو ته) د ښېګړې خبره وکړي (چې

وَزَادَ مُسْلِمٌ قَالَتْ: وَلَمْ أَسْمَعْهُ تَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

هغه يو روايت کې دا الفاظ زياتي نقل شويدي چې حضرت ام کلثوم وفرمايل: ما هغه عزتمند ذات يعني نبی کريم ﷺ

يُرَخِّصُ فِي شَيْءٍ مِمَّا

نه داسې يو خبره نده اوريدلې چې د هغې نه دا ثابتيږي چې نبی ﷺ د هغې خبرې اجازت ورکړی

يَقُولُ النَّاسُ كَذِبٌ

وي چې خلک هغې ته دروغ وايي (يعني نبی ﷺ هيڅکله هم په هيڅ معامله کې د دروغو ويلو اجازت

إِلَّا فِي ثَلَاثٍ: الْحَرْبُ

ندی ورکړی) د درې خبرو نه علاوه (چې په هغې کې د دروغ ويلو اجازت ورکړيدی) يو خو په جهاد کې د

وَالْإِصْلَاحُ بَيْنَ النَّاسِ وَحَدِيثُ الرَّجُلِ امْرَأَتَهُ

جنګ په حالت کې. دويم د خلکو په مينځ کې د صلح کولو کې او دريم هغه وخت کله چې خاوند خپلې

(وَ ذكر حَدِيث جَابر : « إِن الشَّيْطَان وَ حَدِيثُ الْمَرْأَةِ زَوْجَهَا »[1]

ښځې سره خبرې کوي او ښځه د خپل خاوند سره خبرې کوي. او د حضرت جابر رضي الله عنه دا روايت:

قد أيس» فِي «بَاب الوسوسة»)[2]

ان الشيطان قد ايس الخ باب الوسوسه کې نقل شويدی.

**توضيح**: الحرب: د دېنه عام جنګ مراد ندی. بلکې مقدس جنګ جهاد مراد دی. د جهاد احکام نازک او ځانګړې دي. يو شی په نورو ميدانونو کې حرام وي ليکن د جهاد په ميدان کې جائز او حلال شي. شاعر وايي:

تفرد بالاحکام في اهله الهوٰی  فانت جميل الخلف مستحسن الکذب

دحديث مطلب دا دی چې د ضرورت کيدلو په وخت کې د جهاد په ميدان کې د خلاف واقع خبرو استعمالولو اجازت دی. د کومو خبرو تعلق چې د مسلمانانو طاقت او د لښکر د وچتوالي ښودني سره وي مثلاً دا ويل چې زمونږ د طاقت به څه وايې مونږ دښمن تباه کړو، هغه مونږ د زمکې د مخ نه ورک کړو. وس د هغوی طاقت ختم شويدی. زمونږ نور تازه فوځ رارسيدلی دی. دښمن د تيختې لپاره تيار ولاړ دی. يا

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۵/۲۹۹ رقم الحديث ۲۶۹۲، ومسلم في صحيحه ۴/۲۰۱۱ رقم الحديث (۲۶۰۵-۱۰۱)

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۱۶۶ رقم الحديث (۲۸۱۲-۶۵)

مخامخ دښمن ته د حیلې او دهوکې په توګه باندې وايي چې ګورې ستاسو شاته څومره لويې لښکر رار وان دی. کله چې هغه شاته ګوري نو مجاهد خپل کار کوي. دا ټول چلونه په میدان جهاد کې استعمالول جائز دي. الحرب خدعة: هم د دې نوم دی. (مرقات: ۸/۷۶۶)

وحديث الرجل: مثلاً: خاوند خپلې ښځې ته وايي چې ستا به څه وايې ستا په شان حسن په ټوله دنیا کې نشته دی. ستا د ښه ښويونو به څه وايې، ستا مثال په دنیا کې نشته دی. ته بې مثاله یې. او ستا هنر او کمال او حسن او جمال بې جوابه دی. او زما کمالات خو د شمارلو نه بیرون دي، زما د کارونو به څه وایې. زما په شان طاقت خو د دنیا په هیڅ یو فرد بشر کې نشته دی. او زما د ښه ښويونو مقابل په دنیا کې هیڅوک نشته دی. (مرقات: ۸/۷۶۶)

**حکایت**: حیوة الحیوان کې یې یوه قیصه لیکلي ده چې یو مارغه د خپل ژوند ملګرې مرغۍ قابو کولو کوښښ کولو. هغه یو خوا بل خوا تختیدله. نو مارغه ورته وویل: ته زما نه تختې. حالانکې په ما کې دومره طاقت دی چې زه د حضرت سلیمان عَلَيْهِ السَّلَام ماڼۍ وچتولو باندې سمندر ته ګوزارولی شم. د دې بې ادبۍ شکایت مارغانو د حضرت سلیمان عَلَيْهِ السَّلَام په دربار کې وکړو. مارغه په شاهي حکم سره حاضر کړی شو. حضرت سلیمان عَلَيْهِ السَّلَام په غصه کې وفرمایل: ای مارغه! ته یوه چټاکۍ یې! د چټاکۍ هومره ستا وزن دی. ته زما ماڼۍ په وچتولو سره سمندر ته څنګه ګوزارولی شي؟ مارغه وویل: چې جناب! تاته ښه معلومه ده چې محبوب او معشوق لاس ته راوړلو لپاره داسې دروغ ویل کیږي. دا هم دغه شان یوه حیله وه دې لپاره چې معشوقه لاس ته راشي.

والاصلاح: د خلکو په مینځ کې د اصلاح په غرض سره خلاف واقعه خبره کول جائز دي. مثلاً وايي وروره: هغه سړی ستا ډيره ستاینه کوي، ستا ډیر صفت کونکی او خوښمند دی. (مرقات: ۸/۷۶۶)

## الفصل الثاني

﴿۶﴾ عَنْ أَسْمَاء بنت يزيد قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَا يَحِلُّ الْكَذِبُ

حضرت اسماء بنت یزید فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: دروغ ویل جائز ندي، د درې

إِلَّا فِي ثَلَاثٍ: كَذِبُ الرَّجُلِ امْرَأَتَهُ لِيُرْضِيَهَا وَالْكَذِبُ فِي الْحَرْبِ

ځایونو نه علاوه: یو خو د خاوند خپلې ښځې ته دروغ ویل چې په هغې سره هغه خوشحاله شي. دویم کافرو ته د

وَ الْكَذِبُ لِيُصْلِحَ بَيْنَ النَّاسِ " . ( رَوَاهُ أَحْمَدُ وَ التِّرْمِذِيُّ )[1]

جنګ په حالت کې او دریم د دې مقصد لپاره دروغ ویل دي چې د خلکو په مینځ کې جوړه راشي. (احمد او ترمذی)

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۲۹۲ رقم الحديث ۱۹۳۹، وأحمد في المسند ۶/۴۶۱.

## دتعلق پرېښودلو دګناه نه دوتلو طريقه

﴿۷﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «لَا يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ أَنْ يَهْجُرَ أَخَاهُ فَوْقَ ثَلَاثٍ فَمَنْ هَجَرَ فَوْقَ ثَلَاثٍ مَرَّاتٍ كُلُّ ذَٰلِكَ لَا يَرُدُّ عَلَيْهِ فَقَدْ بَاءَ بِإِثْمِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

او حضرت عائشه صديقه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دى چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د هيڅ مسلمان لپاره مناسب نه دي چې هغه د کوم مسلمان سره د دريو ورځو نه ډير ملاقات کول پرېږدي. کله چې هغه د دې مسلمان سره چير ته مخ شي کوم چې د ده نه خفه دى او هغه ته درې ځل سلام وکړي او هغه يو ځل هم جواب ورنکړي نو هغه (جواب نه ورکونکى) د دې ګناه وبال اخستلو باندې به د هغه ځاى نه ستنيږي. (ابو داؤد)

## دتعلق پرېښودلو په حالت کې مړ کيدونکى به دوزخ ته ځي

﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «لَا يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ أَنْ يَهْجُرَ أَخَاهُ فَوْقَ ثَلَاثٍ فَمَنْ هَجَرَ فَوْقَ ثَلَاثٍ فَمَاتَ دَخَلَ النَّارَ». (رَوَاهُ أَحْمَدُ وَ أَبُو دَاوُد)[2]

او د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د يو مسلمان لپاره حلال نه دي چې هغه د خپل مسلمان ورور سره د دريو ورځو نه ډير د ملاقات کول پرېږدي. لهٰذا کوم سړي چې د دريو ورځو نه (که هغه ساعت هم) ډير ملاقات کول پرېږدي او بيا هغه (په دغه حال کې توبه کولو نه بغير) مړ شي نو اور ته به ځي.

## ټول کال دتعلق پرېښودل د قتل دګناه برابره ده

﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي خِرَاشٍ السُّلَمِيِّ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «مَنْ هَجَرَ أَخَاهُ سَنَةً فَهُوَ

او حضرت ابو خراش اسلمى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې هغه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دي چې کوم سړي (په خفګان سره) د خپل مسلمان ورور سره يو کال پورې ملاقات کول پرېښودل، هغه ګويا د هغه وژنه وکړه.

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۲۱۵ رقم الحديث ۴۹۱۳.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۲۱۵ رقم الحديث ۴۹۱۵، وأحمد في ۴/۲۰۰.

| كسفك | دَمه » | ( رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1] |
|---|---|---|
| يعني تر اوږد وخته پورې ملاقت پريخودل لو ګناه او ناحق وژنه کولو ګناه نژدې نژدې دي. (ابو داؤد) | | |

السلمي: دا د کاتبينو غلطي ده. علامه ميرک ويلي دي چې دا لفظ اسلمي دی.

## درې ورځو نه وروسته د تعلق پريخودنه پرېږده

| ﴿۱۰﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا يَحِلُّ لِمُؤْمِنٍ |
|---|
| او حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د هيڅ مؤمن لپاره حلال ندي چې هغه دې |
| أَنْ يَهْجُرَ مُؤْمِنًا فَوْقَ ثَلَاثٍ فَإِنْ مَرَّتْ بِهِ ثَلَاثٌ |
| مؤمن سره د درې ورځو نه ډېر ملاقات کول پرېږدي. لهذا کله چې (خفګان باندې) درې ورځې تيرې شي نو |
| فَلْيَلْقَهُ فليسلم عَلَيْهِ فَإِنْ ردَّ عَلَيْهِ السَّلَامَ |
| پکار ده چې د هغه سره ملاقات وکړي. او هغه ته سلام وکړي. که هغه د سلام جواب ورکړي نو بيا هغه |
| فَقَدِ اشْتَرَكَا فِي الْأَجْرِ وَإِنْ لَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ |
| دواړه به په ثواب کې شريک وي او که هغه د سلام جواب ورنکړو نو په دې صورت کې به هغه (د سلام |
| فَقَدْ بَاءَ بِالْإِثْمِ وَ خَرَجَ الْمُسْلِمُ من الْهِجْرَة » . ( رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[2] |
| جواب نه ورکونکی) د ګناه سره ستنيږي او د سلام کونکی به د ترک ملاقات د ګناه نه بری شي. (ابو داؤد) |

## د صلح راوستلو فضيلت

| ﴿۱۱﴾وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَلَا أُخْبِرُكُمْ |
|---|
| او حضرت ابودرداء رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې (يوه ورځ) رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: آيا زه تاسو ته يو داسې عمل ونه وايم |
| بِأَفْضَلَ من درجةِ الصِّيَامِ والصدقةِ |
| چې د هغې د ثواب درجه د روژې نه، صدقې او د لمونځ د ثواب نه ډېره ده؟ ابودرداء رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې |
| وَالصَّلَاةِ؟» قُلْنَا: بَلَى. قَالَ: «إِصْلَاحُ |
| مونږ (دې اوريدلو سره) عرض وکړو (ضرور ووايه) نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: (خپل مينځ کې د ښمنۍ لرونکې) |
| ذَاتِ الْبَيْنِ وَفَسَادُ |
| دوه کسانو مينځ کې صلح کول دي. او د دوه کسانو په مينځ کې فساد او نفاق پيدا کول يو داسې خصلت دی چې هغه بيخ |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۲۱۵ رقم الحديث ۴۹۱۵، وأحمد في المسند ۴/۲۲۰.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۲۱۴ رقم الحديث ۴۹۱۲، ومالک في الموطا ۲/۹۰۶ رقم الحديث ۱۳ من كتاب حسن الخلق.

| الْحَالِقَةُ» | هِيَ | الْبَيْنِ | ذَاتِ |
|---|---|---|---|
| ویستونکی دی (یعني د دې خصلت د وجې نه مسلمانانو په معاملاتو او دین کې نقصان او خلل پیدا کیږي) | | | |

| (رَوَاهُ | أَبُو دَاوُدَ | وَالتِّرْمِذِيُّ | وَقَالَ: | هٰذَا | حَدِيثٌ | صَحِيحٌ)[1] |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دا روایت ابو داؤد او ترمذی نقل کړیدی او (ترمذی) ویلي دي چې دا حدیث غریب دی. | | | | | | |

**توضیح**: بأفضل: یعني لمونځ، روژه ، صدقه او مجموعه عبادتونو نه اصلاح ذات البین افضل عمل دی. ځینو علماؤ د لمونځ، روژې او صدقې نه نفلي عبادت مراد اخستلی دی چې د دې نفلي عبادتونو نه اصلاح ذات البین افضل دی. لیکن ملا علی قاری رحمه الله فرمایي چې راجحه دا ده چې د دې اعمالو نه فرض اعمال مراد دي. او دا خبره ظاهره ده چې مثلًا دوه کسان خپل مینځ کې سخت مخالفت دي ،یو بل ووژلو. چې د هغې نه غټې غټې فتنې پیدا شوې او د نورو فتنو د پیدا کیدلو امکان دی. نو په داسې صورت کې د دې مخالفینو په مینځ کې صلح کول د فرائضو نه ډیره اهمه ده. ځکه که فرض ساقط شی نو د هغې تدارک او قضا ممکنه ده لیکن وینه چې کله تویه شوه او سرې مړ شو نو د هغې هیڅ علاج نشته دی. (مرقات :۸/۷۷۰)

**وفساد ذات البین**: دا مبتداء ده او هی الحالقة د دې خبر دی. حالقه د ویستلو په معنی باندې راځي. خو د ویښتانو خرول مراد ندي. ایمان خرول مراد دي څنګه چې په ورسره حدیث کې تصریح شته دی. (مرقات :۸/۷۷۰)

## بغض او حسد ایمان خروي

| ﴿۱۲﴾وَعَنِ الزُّبَيْرِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «دَبَّ إِلَيْكُمْ دَاءُ | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| او حضرت زبیر رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ستاسو نه مخکې امتونو ناروغی په تاسو | | | | | |
| الْأُمَمِ | قَبْلَكُمْ | الْحَسَدُ | وَالْبَغْضَاءُ | هِيَ | الْحَالِقَةُ |
| کې ننوتلې دي. او هغه ناروغي کینه او بغض دی. چې دا خرونکې ده. د دې نه زما مراد د ویښتانو خرول ندي، بلکې دین | | | | | |
| لَا | أَقُولُ | تَحْلِقُ | الشَّعْرَ | وَلٰكِنْ | |
| خرول دي (یعني کینه او بغض دوه مره بد خصلت دی چې د دې په وجه باندې د انسان دین او اخلاق تباه او | | | | | |
| تحلق | الدِّينَ» | (رَوَاهُ | أَحْمَدُ | وَالتِّرْمِذِيُّ)[2] | |
| برباد شي بلکې دا خصلت دین او دنیا دواړو لپاره غټ نقصان ورکونکی دی) (احمد او ترمذی) | | | | | |

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۲۱۸ رقم الحديث ۴۹۱۹،والترمذي في ۴/۵۷۲ رقم الحديث ۲۵۹۰.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۷۳ رقم الحديث ۲۵۱۰،واحمد في المسند ۱/۱۶۷ .

## کینه نیکۍ خوري

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِيَّاكُمْ وَالْحَسَدَ |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کوي چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: د کینې |
| فَإِنَّ الْحَسَدَ يَأْكُلُ الْحَسَنَاتِ كَمَا تَأْكُلُ النَّارُ الْحَطَبَ» (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد) [۱] |
| نه خپل ځان محفوظ وساتئ ځکه چې کینه نیکۍ خوري لکه څنګه چې لرګو لره اور خوري. (ابوداؤد) |

**توضیح: يأكل الحسنات:** یعنې کینه نیکۍ داسې خوري څنګه چې اور لرګي خوري. د دې حدیث نه معتزلۀ بې ځایه استدلال کړیدی چې په بدو اعمالو سره نیک اعمال ضائع کیږي. او د معصیت په کولو سره ټول اعمال بلکې ایمان بیخې ختمیږي.

د دې یو جواب دا دی چې کینه د نیکو حسن او د هغې کمال ختموي، اصل اعمال نه ختموي. دویم جواب دا دی چې کینه او شرارت په وجه باندې قیامت په ورځ د حسد کونکې ټول اعمال به خپل محسود (د چا سره چې حسد شویدی) ته ورکړی شي. ګویا حسد د هغه اعمال وخوړل. دا مطلب ندی چې په دنیا کې به د اعمال نامې نه د هغه عملونه ختم کړی شي. که داسې وشول نو بیا په قیامت کې د حساب کتاب څه مطلب شو، فصله خو په دنیا کې وشوه.

دریم جواب دا دی چې حاسد (حسد کونکی) کله حسد کوي نو هغه ته خپله د نیک عملونه توفیق نه وي، بلکې د نیک اعمالو د کولو نه محرومه وي. ګویا حسد د هغه استعداد خراب کړو. د غه شان ګویا حسد د هغه ټول ښه اعمال وڅښل. (مرقات: ۸/۷۷۲،۷۷۳)

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِيَّاكُمْ وَسُوءَ ذَاتِ الْبَيْنِ |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کوي چې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: ته خپل ځان د دوه کسانو |
| فَإِنَّهَا الْحَالِقَةُ» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ) [۲] |
| په مینځ کې د بدې راوستلو نه وساته، ځکه چې دا خصلت خرونکی یعنې دین لره تباه کونکی دی. (ترمذی) |

## کوم مسلمان ته د ضرر رسولو نقصان

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾وَعَنْ أَبِي صرمة أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَنْ |
| او حضرت ابو صرمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایې چې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: کوم سړی چا (مسلمان ته بغیر د څه شرعې وجې نه) |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۲۰۸ رقم الحديث ۴۹۰۳.
(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۷۲ رقم الحديث ۲۵۰۸.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ضَارَّ | ضَارَّ | الله | بِهِ |

څوک چې ضرر او نقصان ورسوي نو الله تعالى به هغه ته نقصان ورسوي، يعنې هغه ته به د بدو اعمالو سزا ورکړي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَمَنْ | شَاقَّ | شَاقَّ | الله |

او کوم سړی (کوم مسلمان لره) په مشقت او تکليف کې واچوي نو الله تعالى به هغه په مشقت او تکليف

عَلَيْهِ» (رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيب)[1]

کې اخته کړي (ابن ماجه، ترمذی) او ترمذی ويلي دي چې دا حديث غريب دی.

﴿۱۶﴾وَعَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ رَضِيَ الله عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَلْعُونٌ مَنْ

او حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: هغه سړی لعنتي دی چې

ضَارَّ مُؤْمِنًا أَوْ مَكَرَ بِهِ». (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ(رواه الترمذی

هغه کوم مسلمان ته ضرر ورسوي، يا د هغه سره مکر او دهوکه وکړي. دا روايت ترمذي نقل کړيدی

وقال هٰذا حديث غريب)[2]

او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دی.

## يو مسلمان ته د پيغور کولو او عيب لټولو منع والی

﴿۱۷﴾وَعَنْ ابنِ عمرَ قَالَ: صَعِدَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمِنْبَرَ فَنَادَى

او حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمايي چې (يو ورځ) رسول کريم صلى الله عليه وسلم منبر باندې ودريدلو او خلکو ته يې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بِصَوْتٍ | رَفِيعٍ | فَقَالَ: | «يَا | مَعْشَرَ | مَنْ | أَسْلَمَ | بِلِسَانِهِ |

په اوچت آواز سره يې داسې توګه باندې مخاطب کړل: ای هغه خلکو! چې هغوی په ژبه سره اسلام خوړ راوړی دی او د هغوی زړونو ته

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَمْ | يُفْضِ | الْإِيمَانُ | إِلٰى | قَلْبِهِ | لَا | تُؤْذُوا | الْمُسْلِمِينَ |

ايمان نه دی رسيدلی (تاسو خبر ولی شي چې) تاسو (هغه) مسلمانانو ته تکليف مه ورکوی (چې هغه کامل مسلمانان دي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا | تُعَيِّرُوهُمْ | وَلَا | تَتَّبِعُوا | عَوْرَاتِهِمْ | فَإِنَّهُ | مَنْ |

په دې توګه چې هغوی په ژبه هم اسلام قبول کړيدی او د هغوی زړونه هم د ايمان په رڼا سره روښانه دي) هغوی ته پيغور مه ور کوی،

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۲/۲۹ رقم الحديث ۳۶۳۵، والترمذي في السنن ۴/۲۹۳ رقم الحديث ۱۹۴۰.

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۲۹۳ رقم الحديث ۱۹۴۱.

| يَتَّبِعْ | عَوْرَةَ | أَخِيهِ | الْمُسْلِمِ | يَتَّبِعِ | الله | عَوْرَتَهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او مه د هغوي عيبونه لټوئ. ياد ساتئ! څوک چې د خپل مسلمان ورور عيب لټوي، الله تعالی به د هغه عيب ولټوي، | | | | | | |

| وَمَنْ | يَتَّبِعِ | الله | عَوْرَتَهُ | يَفْضَحْهُ |
|---|---|---|---|---|
| او د چا عيب چې الله ولټوي، د هغه رسوا کيدل يقيني دي، اګر که هغه (د خلکو د نظرونو نه پناه په | | | | |
| وَلَوْ فِي جَوْفِ رَحْلِهِ» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ)[1] | | | | |
| خپل کور کې) ولې نه وي پټ شوی. (ترمذی) | | | | |

**توضيح: يامعشر المسلمين:** د نبي صلی الله علیه وسلم د خطاب لاندې منافقان هم راغلل او هغه مسلمانان هم راغلل چې هغوی د ايمان سره فسق او فجور کې اخته وي. علامه طيبي دا خطاب فقط د منافقانو سره خاص کړيدی. خو د حديث ظاهري مفهوم او سياق سباق نه تخصيص نه بلکې عموم معلوميږي.

**ولاتعيروهم:** يعني هغوئ ته پيغور مه کوئ. مطلب دا دی چې يو سړي ګناه وکړه، بيا يې توبه وکړه، او نيک جوړ شو، وس يو پيغور کونکی هغه ته پيغور کوي او پخوانی عيب وريادولو باندې هغه ذليله کوي، دا ناجائز ده. هو! که هغه سړی عادي مجرم دی، او في الحال هم په هغه پخوانې ګناه کې پليت پروت دی او ګناه هم متعدی ده. نو بيا د اصلاح په غرض سره خبرداری او زجر او توبيخ او پيغور ورکول جائز دي.

**يتبع الله:** يعني کوم سړی چې د خپل مسلمان ورور په عيب لټولو کې اخته وي، نو الله تعالی هم د هغه عيبونه ښکاره کولو باندې شروع شي. او د هغه نه درګزر نه کوي. بلکې د عامو خلکو مخې ته د هغه يو يو عيب برسيرته کولو باندې به هغه رسوا کړي، اګر که هغه سړی د پټيدلو په غرض سره د خپلې کجاوې په مينځ کې هم پټ شي. (مرقات: ۷۷۶،۸/۷۷۵)

## د مسلمان عزت او ناموس ته نقصان رسول غټ جرم دی

| ﴿۱۸﴾وَعَنْ | سعيد | بْنِ زَيْدٍ | عَنِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قَالَ: |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او حضرت سعيد بن زيد رضي الله عنه د نبي کريم صلی الله علیه وسلم نه روايت کوي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل: | | | | | | | | | |
| «إِنَّ مِنْ أَرْبَى الرِّبَا الِاسْتِطَالَةَ فِي عِرْضِ الْمُسْلِمِ بِغَيْرِ حَقٍّ» (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ | | | | | | | | | |
| د ټولو نه وچت سود دا دی چې د کوم مسلمان عزت او ناموس خرابولو لپاره ژبه اوږده کړی شي. | | | | | | | | | |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۱۹۳ رقم الحديث ۴۸۸۰ والترمذي في السنن ۴/۳۳۱ رقم الحديث ۲۰۳۲.

وَالْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ»[1]

(روایت کړې دي ابوداؤد، بیهقی)

**توضیح:** اربي الربوا: ربوا : په لغت کې ډیروالي او تجاوز په معنیٰ استعمالیږي، د ملاعلی قاری د قول مطابق دلته ربوا ناجائز زیاتی او ناجائز ډیروالي په معنیٰ کې استعمال شویدی. مطلب دا شو چې هر ناجائز تجاوز گناه ده. لیکن د کوم عزت او ناموس کې ژبه اوږدول او تجاوز کول د ټولو نه بده او لویه گناه ده. ځکه چې د هوښیارانو په نزد باندې د مال د حفاظت نه د عزت حفاظت ډیر اهم وي. دحضرت حسان رضي الله عنه قول په دیوان حماسه کې داسې دی:

أَصُونُ عِرْضِيْ بِمَالٍ لَا أُدَنِّسُهُ          لَا بَارَكَ اللهُ بَعْدَ الْعِرْضِ فِي الْمَالِ

علامه طیبی رحمه الله فرمایي چې په دې حدیث کې دمبالغې په توګه باندې عزت او ناموس د مال سره داخل کړی شویدی. بیا د ربا دوه قسمونه بیان کړی شویدي. اول قسم خو هغه مشهوره شرعي ربا ده. هغه دا چې دمدیون سره د مال په معامله کې دعوض نه بغیر ډیر مال واخستلی شي. دویم غیر مشهور ربا ده، هغه دا ده چې د کوم مسلمان په عزت او ناموس کې ژبه اوږده او تجاوز وکړی شي. په دې حدیث کې د ربا دې دواړو قسمونو کې بدترینه قسم ربا هغه ته ویلی شویده چې هغه د ژبورتیا د وجې وي. (مرقات: ۸/۷۷۷ والکاشف: ۹/۲۵۴)

اوس د دې حدیث مطلب دا شو چې د کوم شرعي مصلحت نه بغیر په ناروا طریقې سره د مسلمان په اړه باندې د خپلې ژبې نه بد الفاظ راایستل، دهغه غیبت کول، دهغه سره د تکبر معامله کول، او خپله لویه ورباندې کولو لپاره دهغه سپکاوی کول، دهغه عزت او ناموس د خپو لاندې کول، دا داسې گناه ده چې د مال د سُود نه په بدوالي او قباحت کې ډیره ده. بغیر حق: په حدیث کې د ناحقه ژبورتیا قید لګول شویدی. د دینه په حقه سره د ژبورتیا د اجازت ګنجائش راوځي. مثلاً: مالدار مقروض د قرض په ادا کولو کې ټال متهول کوي. په هغه باندې ژبورتیا جائز ده. یاګواهانو باندې جرح ده. یا رایان حدیث باندې اصحاب الجرح والتعدیل د سخت تنقید معامله ده، یا په یو داسې بدعتي سړي باندې د تنقید معامله ده چې دهغه د بدعت شرارت متعدي وي، یا ثوک کوم فسادي او فتنه خپرونکي په فتنه او فساد باندې خبرداری کوي نو دغه شان ژبورتیا ممنوع نه ده. (مرقات: ۸/۷۷۷)

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۱۹۳ رقم الحديث ۴۸۷۶ وأحمد في المسند ۱/۱۹۰ .

## د چا په عزت اخستلو او غيبت باندې سخت وعيد

﴿۱۹﴾وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: " لما عرجَ بِي رَبِّي

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: كله چې الله تعالى زه (د معراج په شپه) پاس بوتلم (نو

مَرَرْتُ بِقَوْمٍ لَهُمْ أَظْفَارٌ مِنْ نُحَاسٍ

په عالم بالا كې) زما تيريدل په څه داسې خلكو وشول چې د هغوې نوكان د پيتلو ؤ او هغوې په دې نوكانو سره

يَخْمِشُونَ وجوههم وصدورهم فَقُلْتُ: مَنْ هَؤُلَاءِ يَا جِبْرِيلُ؟

خپل مخونه راشلول، (د هغوې دا حالت كتلو باندې) ما پوښتنه وكړه چې جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَام دا خلك څوك دي؟

قَالَ: هَؤُلَاءِ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ لُحُومَ النَّاسِ وَيَقَعُونَ

هغه جواب راكړو چې دا هغه خلك دي چې هغوې د خلكو غوښه خوړلو او د هغوې عزت او ناموس

فِي أَعْرَاضِهِمْ " (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)[1]

پسې به لګيدلي ؤ. (ابوداؤد)

## مړي خوړلو په غرض سره د چا سپكوالى يا بې ځايه ستاينه غټ جرم دی

﴿۲۰﴾ وَعَن الْمُسْتَوْرد عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَنْ

او حضرت مستورد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت كوي چې نبى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: كوم

أَكَلَ بِرَجُلٍ مُسْلِمٍ أُكْلَةً

سړى چې د كوم مسلمان غيبت (بدې كولو يا په هغه باندې د زنا وغيره تهمت لګولو په ذريعه د هغه عزت اخستنه كولو سره)

فَإِنَّ اللهَ يُطْعِمُه مثلَها مِنْ جهنَّمَ ومَن

يو مړى وخوري نو الله تعالى به هغه باندې د دې مړي په شان د دوزخ اور وخوري. او كوم سړى چې د يو

كَسا ثَوْبًا بِرَجُلٍ مُسْلِمٍ فَإِنَّ اللهَ يَكْسُوهُ مِثْلَهُ

مسلمان په سپكاوي او بې عزتى كې چا ته جامه واغوندي نو الله تعالى به هغه ته د دغه جامې په شان د دوزخ

مِنْ جَهَنَّمَ وَمَنْ قَامَ بِرَجُلٍ مَقَامَ سُمْعَةٍ وَرِيَاءٍ فَإِنَّ اللهَ يَقُومُ لَهُ مَقَامَ

د اور جامه واغوندي. او كوم سړى چې د چا ته د اوروني يا ښودني لپاره ودريږي نو الله تعالى به هغه ته

(۱) اخرجه ابوداود في السنن ۵/۱۹۴ رقم الحديث ۴۸۷۸ واحمد في المسند ۳/۲۲۴.

| سُمْعَةٍ | ورياءٍ | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ» | (رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد)[1] |
|---|---|---|---|---|---|
| د قیامت په ورځ باندې د اورني او ښودني لپاره خپله اودريږي. (ابوداؤد) | | | | | |

**توضیح: اکل برجل مسلم:** په دې حدیث کې یو څو جملې دي. چې د هغې پوهول او ورباندې پوهیدل ضروري دي. اوله جمله **مَنْ اَكَلَ بِرَجُلٍ مُسْلِمٍ** ده. د دې مطلب دا دی چې مثلاً یو سړې د بل سړې سره نه جوړیږي. په مینځ کې یو دریم سړی په تګ سره هغوې کې یو ته د بل بدې بیان کړي. د هغه غیبت کوي. او د دې عیب لټولو او غیبت کولو په وجه باندې د هغه نه خوراک ترلاسه کولو سره خوري. او هغه یې هم ښه و خوري. ځکه چې د هغه د مخالف ښه بدې بیانیږي. نو د دې خوړلو په بدله کې الله تعالی دې بدې بیانونکي باندې د جهنم خوراک کوي. **بِرَجُلٍ** کې حرف با د سببیت لپاره دی. (مرقات: ۸/۷۷۸)

**وَمَنْ كُسِيَ ثَوْبًا بِرَجُلٍ:** د کُسِیَ صیغه که معلومه وویلې شي نو د دې ترجمه او مطلب به دا وي چې د یو مسلمان سپکاوی او اهانت په بدله کې سپکاوې کونکې ته جامه واغوندي. نو الله تعالی دې سپکاوې کونکې ته به د جهنم جامې واغوندي. او که دا صیغه د مجهول ده نو ترجمه به داسې وي، کوم سړې ته چې د یو مسلمان ورور د سپکاوې او تحقیر په بدله کې جامه واغوستلې شي نو هغه ته به الله تعالی په دوزخ کې جامه واغوندي. دا ترجمه او مطلب ډیر واضح دی. برجل کې حرف با سببیت لپاره ده. (مرقات: ۸/۷۷۸)

**ومن قام برجل:** په دې کې حرف با د سببیت لپاره هم کیدلی شي. او د تعدیت لپاره زائد هم کیدلی شي. که د سببیت لپاره ده نو مطلب به دا وي چې یو سړی خپله د ځان ښودنې په ځای باندې ودریدلو، خپلې ستاینې یې شروع کړي. تقوی او صلاح یې ښودله. او خپله خله یې د طوطې په شان چروله. د دې لپاره چې کوم مالداره سړی هغه ته وګوري. او د هغه معتقد جوړ شي. او ده ته د هغه مالداره نه مال دولت ترلاسه شي. الله تعالی به داسې سړی د قیامت په ورځ باندې د رسوایې په ځای ودروي. عربې عبارتونه به داسې وي: **من قام مقام السمعة والرياء لاجل رجل صاحب مال.** او که بازائده وي، فقط د تعدیت لپاره وي نو مطلب به دا وي: چې دا سړی دومره غټ بزرګ دی. فلانکی دی، فلانکی دی. د ده سره د اصلاح تعلق جوړ کړي. د ده مریدان جوړ شي. د غه شان د هغه ستاینه کولو باندې د هغه ترشاه خپله دنیا جوړوي. لکه څنګه چې نن سبا کیږي چې: (مرقات: ۸/۷۷۹)

پیراں نمی پرند      مریداں می پرانند

د دې حدیث دا مطلب شیخ مظهر رحمه الله بیان کړیدی. چې هغه ملا علی قاری رحمه الله نقل کړیدی. عربي عبارت به داسې وي: **ومن اقام رجلا مقام السمعة.** بهرحال د دې جملې څو مطلبه بیانیدلی شي. خلاصه دا ده: چې یو سړی یا خپله ستاینه خپله کوي دې لپاره چې د دنیادارو نه مال ترلاسه کړي، د ده حالت هم تباه دی. یا د

---

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۵/۱۹۵ رقم الحديث ۴۸۸۱، وأحمد في المسند ۴/۲۲۹.

کوم بزرګ د وجې نه خپل د کان پرڅوي، د ده حال هم تباه دی. یا بل څوک خپله ستاینه کې اخته کړي، د ده حال هم تباه دی. یا د کوم عالم، محدّث یا پیر فقیر جامه اغوستلو باندې غټ بزرګ جوړ شي، او مال راغونډوي. دا ټول د دنیا غوختونکې، ځان ښودونکې دي. مطلب یې فقط دنیا ده، رنګونه یې بیل بیل دي. چا څه ښه ویلي دي:

وما الرزق الا طائر اعجب الوریٰ　　فمدت لـه مـن کل فـن حبائل

د دنیا مال او متاع یو ښایسته مارغه دی، چې هغې ټول حیران کړیدي .نو دهغې د نیولو لپاره هر قسمه جالونه خپاره کړی شوي دي.

## ښه ګمان ساتل عبادت دی

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «حُسْنُ الظَّنِّ مِنْ حُسْنِ |
| او حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل: ښه ګمان ساتل من جمله په بهترینو |
| العِبَادَةِ» (رَوَاهُ أَحْمد وَأَبُو دَاوُد)[1] |
| عبادتونو کې دی.(احمد او ابوداؤد) |

**توضیح: حسن الظن:** د دې حدیث یو مطلب خو دا دی چې د الله تعالی په اړه باندې ښه ګمان ساتل په ښه عبادتونو کې غوره عبادت دی. ښه ګمان دا دی چې په عبادت کولو کې د مغفرت ګمان وي. د الله تعالی د رحمت ښه یقین وي. دا مطلب ندی چې عبادت پریخودلو باندې د الله تعالی په اړه باندې په دې ګمان چیغې وهي چې الله تعالی غفور الرحیم دی، معاف به مې کړي. دا د شیطان دهوکه ده. بهرحال د حدیث دا مطلب یو احتمال دی. په ظاهر د حدیث کې داسې تفصیل نشته دی.

دویم مطلب دا دی چې د الله تعالی د بندیګانو په اړه باندې ښه ګمان کول، او د بدګمانۍ نه ځان ساتل دا بهترین عبادت دی. شیخ عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله او علامه طیبی رحمه الله بیان کړیدي.

علامه طیبی فرمایې: **یعنی اعتقا الخیر والصلاح فی حق المسلمین عبادة.**

دحدیث دا مطلب ډیر واضح بلکې متعین معلومیږي. (مرقات :۸/۷۷۹ الکاشف: ۹/۲۵۷ اشعة اللمعات)

## دحضرت صفیه رضي الله عنها په اړه د حضرت زینب رضي الله عنها یوه جمله

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۲﴾وَعَنْ | عَائِشَةَ | قَالَتْ: | اعْتَلَّ | بَعِيرٌ | لِصَفِيَّةَ |
| او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایي چې (یو ځل) د صفیه رضي الله عنها اوښ ناروغه شو. هغه وخت د | | | | | |
| وَعِنْدَ | | زَيْنَبَ | | فَضْلُ | ظَهْرٍ |
| حضرت زینب رضي الله عنها سره د ضرورت نه ډیره سپرلی وه. (یعنې د هغې سره یو اوښ د ضرورت نه ډیرؤ) | | | | | |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۲۶۶ رقم الحديث ۴۹۹۳ واحمد في المسند ۲/۴۰۷.

| |
|---|
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِزَيْنَبَ: «أَعْطِيهَا بَعِيرًا». |
| لهذا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت زینب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته وفرمایل: چې ته هغه خپل اوښ (چې هغه ستا د ضرورت نه زیاتی دی) |
| فَقَالَتْ: أَنَا أُعْطِي تِلْكَ الْيَهُودِيَّةَ؟ |
| صفیه ته ورکړه. زینب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا جواب ورکړو چې ښه زه به خپل دې یهودی، ته ورکوم (یعني هغې صفیه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته |
| فَغَضِبَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| داوښ ورکولو نه انکار ونکړو بلکې دهغې په اړه باندې یې نازیبا الفاظ هم د ژبې نه راوویستل) نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې نه |
| فَهَجَرَهَا ذَا الْحُجَّةِ وَالْمُحَرَّمَ |
| سخت خفه شو تر دې چې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذی الحجه، محرم (پورا میاشتې) او څه ورځې د صفر میاشتې پورې دهغې |
| وَبَعْضَ صَفَرٍ (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَذُكِرَ حَدِيثُ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ: |
| سره ملاویدل او د هغې خواته تلل یې پریخودل. (ابوداؤد) او د معاذ بن انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روایت کې |
| «مَنْ حَمَى مُؤْمِنًا» فِي «بَابِ الشَّفَقَةِ وَالرَّحْمَةِ»)[1] |
| مَنْ حَمَى مُؤْمِنًا الخ باب الشفقة والرحمة کې نقل شویدی. |

**توضیح**: حضرت صفیه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په جنګ خیبر کې د مسلمانانو لاس ته راغله. نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغوې آزاد کړل، او دهغې سره یې نکاح وکړه. دخوراک پخلي کې ماهره وه. د دې وجې نه نور ازواج مطهرات دارخ نه به کله کله څه اوریدل کیدل. حضرت صفیه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دحیی بن اخطب یهودې لور او د ابوالحقیق یهودې بی بی وه. او حضرت هارون عَلَيْهِ السَّلَامُ په اولاد کې وه. نو ځکه هغې ته د یهودی پیغور ورکړی شو. او نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خفه شو. یو ځل نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت صفیه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته وفرمایل: ته د دې پیغور جواب دا ورکړه چې زه د یو نبی لور یم، او د بل نبی بی بی یم. په تاسو کې څوک زما مقابله کولی شي. فضل ظهر: یعنې زیاتې سپرلۍ وه، چې هغه فارغه وه. (مرقات: ۸/۷۸۰)

## الفصل الثالث

### د الله تعالی په نوم قسم غټ شی دی

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: " رأى عِيسَى بن مَرْيَمَ |
| حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایې چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل (یو ځل) حضرت عیسی بن مریم عَلَيْهِ السَّلَامُ |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۸ رقم الحديث ۴۹۰۲ وأحمد في المسند ۶/۲۶۱.

| رَجُلًا يَسْرِقُ فَقَالَ لَهُ عِيسَى: سَرَقْتَ؟ قَالَ: |
|---|
| یو ګسر په غلا کولو باندې ولیدلو. حضرت عیسی بن مریم عَلَیۡهِالسَّلَامُ هغه ته وویل چې تا غلا کړیده؟ هغه سړي وویل چې |
| كَلَّا وَالَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ. |
| هیڅکله نه. په هغه پاک ذات قسم چې د هغه نه سوا څوک د عبادت لائق نشته دی (ما غلا نده کړي) حضرت عیسی عَلَیۡهِالسَّلَامُ |
| فَقَالَ عِيسَى: آمَنْتُ بِاللهِ وَكَذَّبْتُ نَفْسِي "(رَوَاهُ مُسلم)[1] |
| (هغه نه داسې قسم واوریدلو نو) وې ویل: ما په خدای باندې ایمان راوړی او خپل نفس مې دروغژن وګرځولو. (مسلم) |

**توضیح**: **کذبت نفسی:** حضرت عیسی عَلَیۡهِالسَّلَامُ چې کله د غل د خلې نه د الله تعالیٰ ستاینه او بیا د هغه عظیم او کریم باچا د نوم قسم واوریدلو نو د خپلې لیدنې نه په شاه شو او د الله تعالی د نوم عزت یې وکړو. د دېنه معلومه شوه چې که یو سړی د دروغو قسم هم وخوري نو اوریدونکې ته پکار دي چې د الله تعالی د نوم عزت کولو باندې د هغه په قسم اعتبار وکړي. (مرقات: ۸/۷۸۱)

## غریبي او ولږه غټ آزمیښت دی

| ﴿۲۴﴾وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «كَادَ الْفَقْرُ أَنْ يَكُونَ كفرا |
|---|
| او حضرت انس رَضِيَاللهُعَنۡهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّیاللهُعَلَیۡهِوَسَلَّمَ وفرمایل: فقر او غریبي نژدې ده چې د کفر حد ته |
| وكَادَ الحسدُ أَن يغلب الْقدر»[2] |
| ورسیږي او حسد نزدې دی چې تقدیر باندې غالب راشي. |

**توضیح**: **ان یکون کفرًا:** یعنې نژدې دی چې غریبې او ولږه سړی د کفر حد ته ورسوي. دا غټ آزمیښت دی، ځکه چې د فقر او ولږي د وجې نه دا حتمال شته چې بی صبرې او د خدای ناشکرې وشي. غلا وشي. حرام خوري وشي. الله تعالی باندې بهروسه کمه شي. او الله تعالی باندې اعتراض وشي. نو په دې توګه دا فقر او ولږه سړی کفر ته رسوي.

او که صبر او شکر وي، د الله تعالی په قضاء باندې رضا وي. یقین او توکل فقط د الله تعالی په ذات باندې وي، قناعت وي، نو په دې اعتبار سره د فقر او ولږي غټ فضیلت راغلی دی. **الدنیا سجن المؤمن وجنة الکافر**. (مرقات: ۸/۷۸۱)

---

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۱۸۳۸ رقم الحديث (۲۳۶۸-۱۴۹) واحمد في المسند ۲/۳۱۴.

(۲) اخرجه البيهقي في شعب الايمان ۵/۲۶۷ رقم الحديث ۶۶۱۲.

## د مسلمان عذر کول قبلول پکار دي

ح۵۰۲: وَعَنْ جَابِرٍ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَنِ

او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: کوم سړی چې د خپل

اعْتَذَرَ إِلَى أَخِيهِ فَلَمْ يَعْذِرْهُ

مسلمان ورور نه (خپل څه قصور باندې) عذر وکړي او هغه مسلمان سړی دا معذوره ونه ګرځوي (يعني د ده عذر د منلو

أَوْ لَمْ يَقْبَلْ عُذْرَهُ كَانَ عَلَيْهِ

ور ونه ګرځوي او ووايي چې تا ته هيڅ عذر نشته دی بلکې د عذر کولو په نوم باندې دروغ وايې) يا د هغه عذر قبول نکړي (يعني

مِثْلُ خَطِيئَةِ صَاحِبِ المكس»

داسې ووايي چې ته عذر خو لرې خو زه ستا عذر نه قبلوم) نو هغه به هم د هغه درجې ګناهګار وي لکه څنګه چې صاحب مکس

( رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِي « شُعَبِ الْإِيمَانِ » وَ قَالَ : الْمَكَّاسُ : الْعَشَّارُ ) [1]

ګناهګار وي (دا دواړه حديثونه بيهقي په شعب الايمان کې نقل کړيدي او ويلي يې دي چې مکاس عشر اخستونکي ته وايي)

**توضيح: صاحب مکس:** محصول او چنګې ته مکس وايي. د دې وصولونکې ته **مکّاس**، **صاحب مکس** او پټواري او عشار وايي. دا سړی هم هيڅ عذر نه قبلوي. نو ځکه د عذر نه قبلونکې سړې د ګناه تشبيه د صاحب مکس سره ورکړی شويده.

په يو حديث شريف کې دي چې د مسلمان عذر نه قبلونکی سړی حوض کوثر ته هم نه شي تللی. لهذا د دې حديث تعليم دا دی چې د مسلمان ورور عذر قبلول په کار دي. (مرقات: ۸/۷۸۳)

**والعذر عند کرام الناس مقبول ‍ ‍ ‍ ومن دق باب کريم فتح**



---

([1]) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۳۲۱ رقم الحديث ۸۳۳۸.

# باب الحذر والتأني في الامور
## په معاملاتو کې بیدار مغزي او د سنجیدګۍ بیان

**الحذر:** حذر: حاء او ذال باندې زبر دی او راء ساکنه ده. ویښ او بیدا مغز وسیدلو په معنی دی. چې د غفلت او ناراستۍ او حماقت ضد دی. تأني: تأخر او توقف او په ښه توګه باندې سوچ کولو په معنی دی. چې هغې ته وقار او سنجیدګې هم وایي. چې دا د جلدبازۍ ضد دی. (مرقات ۸/۷۸۴)

د دې ټول عنوان دا مطلب دی چې انسان لره پکار دي چې هغه د زمانې د شر او فساد او د خلکو د چیټونو نه خپل ځان وساتي. او هر وخت په خپلو معاملاتو کې ویښ، او بیدار مغزو سي. د دې لپاره چې نه هغه ته څوک دهوکه ورکړی شي او نه هغه چا ته دهوکه ورکړي. لکه یو صحابي رضي الله عنه د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په اره باندې یو کافر با چا ته د هغه د سوال په جواب کې ویلي ؤ چې «اَمِيْرُنَا لَايَخْدَعُ وَلَايُخْدَعُ» زمونږ امیر نه چا ته دهوکه ورکوي او نه څوک ورکولی شي.

دغه شان د یو مسلمان لپاره هم پکار دي چې هغه عُجب، ځان خوښي او جلدبازي نه ځان وساتي سنجیدګي او وقار خپل کړي. او په خپل هر یو کار کې ښه په غور او سوچ کولو سره قدم پورته کړي. لهٰذا دا چې په هر معامله کې د اعتدال لاره خپله کړي. که هغه دنیوي معامله وي او که اخروي معامله وي. چا څه ښه ویلي دي:

*آسائش دو گیتی تفسیر ایں دو حرف است　　　با دوستاں تلطف با دشمناں مدارا*

یعنې د دنیا او آخرت راحت په دې کې دی چې د دوستانو سره نرمي وکړه او د دښمنانو سره اخته وسیږه. چا څه ویلي دي: *انسان کو چاہئے کہ نہ بولے کسی سے سخت　　　اس واسطے زبان میں کوئی استخواں نہیں*

## الفصل الاول
### مؤمن دوېښو مغزو والاوي

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا يُلْدَغُ الْمُؤْمِنُ مِنْ جُحْرٍ |
| حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمایې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: مؤمن د یو سوري نه دوه ځل |
| مَرَّتَيْنِ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| نه چیچل کیږي. (بخاری او مسلم) |

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۵۲۹، ومسلم في ۴/۲۲۹۵ رقم الحديث (۲۹۹۸-۶۳)، وابوداؤد في السنن ۵/۱۸۵ رقم ۴۸۶۲.

**توضیح**: لایلدغ: یعنې مؤمن د یو سوري نه دوه ځل نه چیچل کیږي. دد ې ارشاد پس منظر په دې ته که دی چې د جنگ بدر په قیدیانو کې یو شاعر هم نیولی مدینې ته راوستلی شوی ؤ. چې دهغه نوم ابوعزه جمحی ؤ. هغه دنبی ﷺ نه معافي غوختلو او مفته د آزادیدلو درخواست وکړو. نبی ﷺ هغه په دې شرط باندې معاف کړو چې بیا لپاره به نه مسلمانانو سره د جنگ لپاره راځي او نه به په اشعارو سره بدې بیانوي. هغه کلکه وعده. خو د ابوسفیان په راوپارولو باندې دا بیا راوپاریدیلو. او د خپلو اشعارو په ذریعه باندې عرب یې د مسلمانانو په خلاف باندې جنگ ته آماده ول کول شروع کړل. او خپله د کافرو سره جنگ احد ته راغلو. هلته بیا ونیولی شو. کله چې د نبی ﷺ مخې ته راوستلی شو، نو هغه بیا د معافی درخواست وکړو. په دې باندې نبی ﷺ وفرمایل چې وس داسې نشي کیدلی. ته به بیا د مکې خلکو خواته په تګ سره بریتان تاوهي. او وایې به چې ما محمد ﷺ ته دوه ځله دوهوکه ورکړه. مسلمان دیو ځای نه او یو سوري نه دوه ځل نه چیچلی کیږي. دې وینا سره نبی ﷺ د هغه د وژني حکم ورکړو. نو هغه بدبخته جهنم ته ورسیدلو. د دې حدیث نه مسلمانانو ته خارجه او داخلې پالیسې لپاره هم داسې جنګ او صلح لپآره بیشمار د حکمت نه ډل اصول ترلاسه کیږي. کاش دوې سوچ کولی او دا یې خپل کړی وی. (مرقات ۸/۷۸۴)

## د صبر او زغم فضلیت

| |
|---|
| ﴿۲﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِأَشَجِّ عَبْدِ الْقَيْسِ:" |
| او د حضرت ابن عباس رضي الله عنه روایت دی چې نبی کریم ﷺ قبیله عبدالقیس سردار اشج ته وفرمایل |
| إِنَّ فِيكَ لَخَصْلَتَيْنِ يُحِبُّهُمَا الله: |
| چې په تا کې کوم ښه والي دي هغه الله تعالی ډیر خوښوي. (که هغه په هر سړي کې وي) خو صبر او |
| الحلم والأناة". رَوَاهُ مُسلم[1] |
| زغم او دویم توقف او قلاروالی. (مسلم) |

**توضیح**: لِاشج: عبدالقیس د هغوې د مشر نیکه نوم ؤ. چې دهغه په نوم سره قبیله مشهوره شوه یا د دې وفد د مشر قومندان عبدالقیس ؤ. دا وفد د راجح قول مطابق یو ځل په ۵ هـ کې مدینې منورې ته راغلي وه. او دویم ځل په ۹ هـ کې راغلي وه. ۴۰ کسانو باندې مشتمله وه. اشج عبدالقیس نوم منذر بن حیان ؤ. توضیحات جلد اول صفحه ۱۸۰(اردو) باندې ټول تفصیلات موجود دي. البته هلته د منذر منقذ لیکلی شویدی. چې هغه د کاتب غلطي ده یا د مؤلف غلطي ده. یا په تاریخ کې

---

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۴۹ رقم الحديث (۱۷-۲۵) والترمذي في السنن ۴/۳۲۲ رقم الحديث ۲۰۱۱.

تضاد دی. بهرحال مدینې ته په رارسیدلو سره د وفد خلکو په منډه منډه نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته سلام وکړو. خو اشج اول سامان په ځاې کړو، بیا یې جامې بدل کړې، بیا یې سلام کولو لپاره راغلو. نو نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه ستاینه وکړه چې په تا کې دوه خصلتونه دي چې هغه الله تعالی ته ډیر خوښ دي. هغه پوښتنه وکړه چې یارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا دوه خصلتونه پیداشي دي او که مصنوع دي. نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: تخلیقي دي. په دې باندې اشج وویل چې د الله تعالیٰ شکر دی چې هغه زما په تخلیق کې دوه داسې خصلتونه ایخودلي دي چې هغه ته خوښ دي. او شکر دی چې تخلیقي دي، د ځان نه جوړ شوي نه دي. د زائله کیدلو یره به نه وي. د منذر په مخ باندې د زخم نښان ؤ. نو ځکه نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ته د اشج لقب ورکړو. (مرقات ۸/۷۸۵)

الاناة: د نواة په وزن باندې دی. تاخیر په معنی دی. ځینو د دې ترجمه وقار او سنجیدګۍ سر کړیده. ځینو ویلي دي چې د مستقبل په اړه باندې ښه نظر ساتونکې ته الاناة وایي. ځینو ویلي دي چې طاعاتو باندې ثابت قدم وسیدلو ته اناة ویل کیږي. د دې نه مخکې د حلم لفظ دی. د هغې معنې دا ده چې د ظالم نه بدله اخستلو کې سړی د صبر نه کار واخلي. چې هغې ته بردبارې وایي. نو بردبارې او سنجیدګې دوه بیل بیل صفات دي. (مرقات ۸/۷۸۵)

## الفصل الثاني

| |
|---|
| ﴿۳﴾عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «الْأَنَاةُ |
| حضرت سهل بن ساعدی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: په یو کار کې قلاروالی او صبر |
| مِنَ اللهِ وَالْعَجَلَةُ مِنَ الشَّيْطَانِ» |
| د الله تعالی د اړخه دی. (یعني دا ښه والی په خدایې ورکړه باندې یو چا ته ترلاسه کیږي) او جلد بازي د شیطان خصلت دی. |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. وَقَدْ تَكَلَّمَ بَعْضُ أَهْلِ الْحَدِيثِ فِي |
| دا روایت ترمذی نقل کړیدی او ویلي یې دي چې دا حدیث غریب دی. د غه شان ځینو محدثینو د |
| عَبْدِ الْمُهَيْمِنِ بْنِ عَبَّاسٍ الرَّاوِي من قبل حفظه[1] |
| عبد المهیمن بن عباس په یادداشت باندې کلام کړیدی. |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۲۲ رقم الحديث ۲۰۱۲.

## د ټکرو په خوړولو سره په مزاج کې قلاروالی راځي

| |
|---|
| ﴿۴﴾عَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا حَلِيمَ |
| او حضرت ابو سعید خدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: هیڅ څوک کامل صبر والانه وي |
| إِلَّا ذُو تَجْرِبَةٍ» رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ |
| ترڅو چې هغه ته لغزش ونشي او هیڅ سړی کامل حکیم ندی ترڅو چې د هغه تجربه نه وي. دا روایت احمد او ترمذی نقل |
| وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ[1] |
| کړیدی، او ویلي يې دي چې دا حدیث غریب دی. |

**توضیح:** ذوعثرة: عثر: لغزش او ټکره خوړلو په معنی دی.؟ یعني حلم او صبر او لحاظ او مروت ملغلره په هغه سړي کې پیدا کيږي چا چې دهوکه خوړلي وي. لغزشونه ترینه شوي وي. په خپلو معاملاتو کې ځاې په ځاې نقصانونه کړي وي. او د هغه مشرانو هغه معاف کړي وي. د داسې سړي په مزاج کې د خپلو کشرانو لپاره بلکې د ټولې معاشرې لپاره حلم او صبر جذبه پیدا کيږي. او هغه د هرې لوړې ژورې عواقب پيژني. نو ځکه په هغه کې د برداشت ماده پیدا شي. دا په حدیث کې د حلیم په نوم سره یاد کړی شوی دی. (مرقات ۸/۷۸۵)

آسائش دو گیتی تفسیر ایں دو حرف است  با دوستاں تلطف با دشمناں مدارا

حیکم: هوښیار ته هم وايي. چې هغه د معاملاتو په عواقب باندې نظر ساتي. او د ډېنه طبیب هم مراد اخستلی شي. لنډا دا چې هغه د تجرباتو سره مخ شوی وي. هم هغه اصل حکیم دی. لکه چې ویلی شوي دي: سل المجرب ولا تسأل الحکیم.

## په سوچ سره کار کوه

| |
|---|
| ﴿۵﴾وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَجُلًا قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې یو سړي نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته عرض وکړو چې حضرت ماته (څه داسې) |
| أَوْصِنِي. فَقَالَ: «خُذِ الْأَمْرَ |
| وصیت وکړه (چې په هغې عمل وکړم) نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: ته چې کله هم څه کار لره (د کولو اراده) وکړې |
| بِالتَّدْبِيرِ فَإِنْ رَأَيْتَ فِي عَاقِبَتِهِ خَيْرًا فَأَمْضِهِ |
| نو تدبر اختیار کړه او کدیا تا ته د هغه کار په انجام کې (دیني او دنیاوي) خیر او ښیګړه په نظر راشي نو هغه وکړه او که تا ته |

[1] أخرجه الترمذي في السنن ۲/۳۴۲ رقم الحديث ۲۰۳۳، واحمد في المسند ۳/۶۹.

| وَ إِنْ خِفْتَ غَيًّا فَأَمْسِكْ ». رَوَاهُ فِي « شَرْحِ السنة » [1] |
|---|
| د هغې په انجام کې (څه ديني يا دنياوي) ګمراهي او اخروي ويره محسوس شي نو هغه پرېږده. (شرح السنة) |

## د آخرت په اعمالو کې وروستوالی مه کوه

| ﴿٦﴾ وَعَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ |
|---|
| او حضرت مصعب بن سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل پلار نه نقل کوي چې د هغه په اړه باندې (د حديث راوي) |
| قَالَ الْأَعْمَشُ: لَا أَعْلَمُهُ إِلَّا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت اعمش فرمايي چې ښه پوهېږم چې دا حديث حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کړيدی |
| قَالَ: «التُّؤَدَةُ فِي كُلِّ شَيْءٍ إِلَّا فِي |
| (او هغه داسې دی چې) نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: توقف او تاخير په هر عمل کې ښه دی، خو د |
| عَمَلِ الْآخِرَةِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ [2] |
| آخرت په عمل کې نه. (ابو داؤد) |

**توضیح: اَلتُّؤَدَةُ**: ملاعلی قاري ليکي چې په دې لفظ کې په تا باندې ضمه ده. او همزه باندې فتحه ده. تاخير او توقف ته وايي. لکه څنګه چې اناة دی. دغه شان تؤدة دی. مطلب دا دی چې په هر کار کې توقف او تاخير غوره دی ليکن د آخرت په کارونو کې تاخير ښه ندی. ځکه چې دهر راتلونکې وخت لپاره د هغې مناسب کارونه وي. لهذا د دې نيک کار نه به ايسار شي نو ژر کوه. قرآن کې دي چې ﴿فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ﴾ نيکی کې جلدې وکړه. (مرقات ۸/۷۸۸)

## ميانه روې ښه شی دی

| ﴿٧﴾ وَعَن عبد الله بن جرجس أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «السَّمْتُ الْحَسَنُ |
|---|
| او د حضرت عبدالله بن جرجس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: نيکه لار نيول، کار کې |
| وَالتُّؤَدَةُ وَالِاقْتِصَادُ جُزْءٌ مِنْ |
| قلاروالی. او سوچ او فکر لپاره تاخير کول او ميانه روې هغه ښه ښويونه دي چې هغه د نبوت په |

[1] أخرجه البغوي في شرح السنة ۱۳/۱۷۵ رقم الحديث ۳۶۰۰.

[2] أخرجه أبوداود في السنن ۵/۱۷۵ رقم الحديث ۲۸۱۰.

أَرْبَعٍ وَعِشْرِينَ جُزْءًا مِنَ النُّبُوَّةِ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[1]

څلورويشتو اجزاؤ کې يو جزء دی. (ترمذی)

**توضيح**: الاقتصاد: په خرچ کولو کې ميانه روۍ ته اقتصاد وايي. خو دلته په هر شي کې اقتصاد او ميانه روۍ مراد ده. يعني اعمال او افعال او اقوال، عبادتونه، اخلاق، خرچ او اخراجات لنډا دا چې په ټولو حالتونو کې ميانه روۍ ښه خصلت دی، دې لپاره چې سړی د ظلم او اسراف او تجاوز او بغاوت نه محفوظ وی. زياتی او کمی په هيڅ څه کې هم ښه نه دی. (مرقات ۸/۷۸۸)

جزء من اربع: دا هم ممکنه ده چې ذکر شوي درې واړه شيان په شريکه سره د نبوت په څلورويشتو اجزاؤ کې د يو جزء درجه لري. او دا هم ممکنه ده چې هر هر شی څلورويشتو اجزاؤ کې يو جزء وي.

د دې جملې مطلب دا دی چې دا شيان د انبياء کرامو عليهم السلام مبارک عادتونه ؤ، او دا دهغوی په فضيلتونو کې داخل ؤ. تاسو ته هم په کار دي چې تاسو د دې انبياء کرامو دا شيانو او فضيلتونو کې تابعداري او اقتداء وکړی. د دې حديث دا مطلب نه دی چې په کوم سړي کې دا خصلتونه راغلل، هغه به نبی جوړ شي، ځکه چې نبوت متجزی نه وي. (مرقات ۸/۷۸۹)

او پاتې د څلورويشتو شميره چې بيان کړی شوې ده، دا د تکثير لپاره ده، د تحديدی لپاره نه ده. په بل روايت کې د پنځويشت شميره ذکر ده. يا داسې پوهه شی چې د شميرې (عدد) بيان کول د شارع په علم او حکمت باندې موقوف ده. مونږ نه په دې کې دخله کولی شو او څه رايه قائمولی شو. سمت حسن: نه مراد ښه اخلاق، ښې طريقې او ښه عادتونه دي. (مرقات ۸/۷۸۸)

| |
|---|
| ﴿۸﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ نَبِيَّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِنَّ الْهَدْيَ الصَّالِحَ |
| او حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دی چې نبی کريم ﷺ وفرمايل: ، نيک سيرت، او نيکه لار نيول |
| وَالِاقْتِصَادَ جُزْءٌ مِنْ خَمْسٍ وَعِشْرِينَ جُزْءًا مِنَ النُّبُوَّةِ» . رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2] |
| او ميانه روۍ هغه ښو يونه دي چې هغه د نبوت په پنځويشت جزونو کې يو جزء دی. |

## د راز خبره د امانت درجه لري

| |
|---|
| ﴿۹﴾وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه روايت کوي چې نبی صلى الله عليه وسلم وفرمايل: |

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۲/۳۲۲ رقم الحديث ۲۰۱۰، ومالک في الموطا ۲/۹۵۴ رقم الحديث ۱۷ من كتاب الشعر.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۱۳۶ رقم الحديث ۴۷۷۶، وأحمد في المسند ۱/۲۹۶.

«إِذَا حَدَّثَ الرَّجُلُ الْحَدِيثَ ثُمَّ الْتَفَتَ
کله چې یو سړی داسې خبره وکړي (چې دهغې هغه پټوالی غواړي) او بیا هغه اخوا دیخوا وګوري نو د
فَهِيَ أَمَانَةٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَأَبُو دَاوُد[1]
هغه هغه خبره امانت دی.[1] (ترمذی او ابوداؤد)

## د چانه چې مشوره واخستلی شي نو هغه امین دی

﴿۱۰﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لأَبِي الهيثمِ بن التَّيِّهان:
او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روایت دی چې (یو ورځ) نبی کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (یو صحابی) حضرت ابو الهیثم بن تیهان نه
«هَلْ لَكَ خَادِمٌ؟» فَقَالَ: لَا. قَالَ: فَإِذَا
پوښتنه وکړه چې ستا سره څه خادم شته دی؟ هغه عرض وکړو چې نا. نبی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: کله چې مونږ ته د
أَتَانَا سَبْيٌ فَأْتِنَا " فَأُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرَأْسَيْنِ
کومې خوا نه غلام راشي نو زمونږ خواته راشه. نو (څه زمانه وروسته) کله چې نبی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته دوه غلامان راغلل
فَأَتَاهُ أَبُو الْهَيْثَمِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «اخْتَرْ
نو ابو الهیثم د نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ خدمت کې حاضر شو. نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه ته وفرمایل چې دا دوه غلامان دي. په دوي کې یو
مِنْهُمَا». فَقَالَ: يَا نَبِيَّ الله اخْتَرْ لِي فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:
تن د ځان لپاره خوښ کړه. ابو الهیثم عرض وکړو چې یا نبی الله! ته زما لپاره کوم غلام خوښ کړه. نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل:
«إِنَّ الْمُسْتَشَارَ مُؤْتَمَنٌ.
د چا نه چې مشوره واخستلی شي نو هغه امین پکار دی. (یعنې مشوره ورکونکې لپاره پکار دي چې د مشوره غوختونکې د
خُذْ هَذَا فَإِنِّي رَأَيْتُهُ يُصَلِّي
ښېګړې او ښه والې په هر صورت کې لحاظ وکړي) دا غلام بوځه. ځکه چې ما دا په لمونځ کولو باندې لیدلی دی.
وَ اسْتَوْصِ بِهِ مَعْرُوفًا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[2]
او د ده سره ښه ښوېې کوه او په ښېګړه خپلولو کې همیشه زما په وصیت باندې عمل کوه. (ترمذی)

## په هر حال کې د درې خبرو ظاهرول ضروري دي

| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: " المجالِسُ بِالأَمانَةِ |
|---|
| او حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: مجلسونه د امانت سره تړلي دي. البته درې مجلسونه |
| إِلَّا ثَلاثَةَ مَجَالِسَ: سَفْكُ |
| يعنې درې شيان داسي دي چې د هغې په اړه باندې چيرته څه خبره وشي نو نورو ته د هغې رسول ضروري دي. او هغه درې وارهٔ دادي: |
| دَمٍ حَرَامٍ أَوْ فَرْجٌ حَرَامٌ |
| (۱) کومه وينه چې ناحقه تويول حرام دي، هغه په بهانه يعنې د چا د ناحقه وژلو مشوره او ارادې خبره |
| واقتطاع مَالٍ بِغَيْرِ حَقٍّ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ |
| (۲) حرامکاري يعنې زناکولو مشوره او د ارادې خبره (۳) د چا مال په ناحقه سره د قبضه کولو مشوره او د ارادې خبره (ابوداؤد) |
| وَذَكَرَ حَدِيثَ أَبِي سَعِيدٍ: «إِنَّ أَعْظَمَ الأَمَانَةِ» فِي «بَابِ المباشرةِ» فِي «الْفَصْلِ الأول»[1] |
| او د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه دا روايت: ان اعظم الامانة: باب المباشرة په اول فصل کې ذکر شوی دی. |

**توضيح: المجالس بالامانة:** يعنې د مجلسونو دارومدار په امانت او ديانت باندې دی. دا هغه وخت ده چې د مجلس خبره د مجلس تر حده محدود وي. او که محدوده نه وي نو د مجلس خبره بيرون راويستلی کيدی شي. او که په مجلس کې د راز خبره وي ليکن هغه د درې قسمه خبرو سره متعلق وي، نو په راز کې ساتل جائز ندي. بلکې ظاهر کول ضروري دي. اوله خبره دا ده چې په مجلس کې د چا په اړه د ناجائز وژنې خبره شوي وي. نو هغه راز ښکاره کول ضروري دي. دويمه خبره دا ده چې په کوم مجلس کې د کومې زناکارۍ منصوبه جوړيږي نو هغه راز ښکاره کول ضروري دي. دريمه خبره دا ده چې په کوم مجلس کې د چا مال په ناجائز باندې د هضمولو خبره کيږي . د هغې ښکاره کول جائز بلکې ضروري دي. (مرقات ۸/۷۹۲)

## الفصل الثالث

## دعقل په اړه باندې يو موضوع حديث

| ﴿۱۲﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " لَمَّا خَلَقَ اللهُ الْعَقْلَ |
|---|
| حضرت ابو هريره رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه روايت کوي چې نبی صلى الله عليه وسلم وفرمايل: کله چې الله تعالی عقل |

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۱۸۹ رقم الحديث ۴۸۶۹، والترمذي في ۴/۳۰۱ رقم الحديث ۱۹۵۹.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | لَهُ: | قُمْ | فَقَامَ | ثُمَّ | قَالَ | لَهُ: | أدبر ثُمَّ |

پیدا کړونو هغې ته یې وفرمایل چې ودرېږه. هغه ودرېدلو. بیا هغه وفرمایل چې شاه راواړوه. هغې شاه راواړوله. بیا یې

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | لَهُ: | أَقْبِلْ | فَأَقْبَلَ | ثُمَّ | قَالَ | لَهُ: | اقْعُدْ | فَقَعَدَ ثُمَّ |

وفرمایل چې زما اړخ ته مخ کړه. هغې د خدای اړخ ته مخ واړولو. بیا یې وفرمایل: کینه! هغه کیناستو. او بیا

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ: | مَا | خَلَقْتُ | خَلْقًا | هُوَ | خَيْرٌ | مِنْكَ | وَلَا | أَفْضَلُ مِنْكَ |

یې هغه ته وفرمایل چې ما هیڅ داسې مخلوق ندی پیدا کړی چې هغه ستا نه غوره وي. په فضل او کمال

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا | أَحْسَنُ | مِنْكَ | بِكَ | آخُذُ | وَبِكَ |

کې ستا نه ډیر وي. او په ښه والي کې ستا نه ښه وي. زه به ستا په سبب د بندیګانو سره مواخذه کوم. زه ستا

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أُعْطِي | وَبِكَ | أُعْرَفُ | وَبِكَ | أُعَاتِبُ |

په سبب (بندیګانو ته ثواب او درجي) ورکوم. زه ستا په وجه باندې پیژندلی کیږم. زه ستا په وجه باندې

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَبِكَ | الثَّوَابُ | وَعَلَيْكَ | العقابُ". |

غضبناک کیږم. زه ستا په وجه ندې ثواب ورکوم. او ستا په وجه باندې عذاب ورکوم. ځینو علماؤ د دې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَقد | تكلم | فِيهِ | بعض | الْعلمَاء[1] |

حدیث په صحیح کیدلو کې کلام کړیدی او ویلي یې دي چې دا حدیث موضوعي دي.

**توضیح**: **وقد تکلم**: د صاحب مشکوة د طرز کلام نه معلومیږي چې د بحث لاندې حدیث ضعیف دی. موضوعي ندی. علامه محمّد یعقوب فیروز آبادي په خپل کتاب المختصر کې دې حدیث ته ضعیف ویلي دي لیکن علامه سخاوی په مقاصد حسنه کې لیکلي دي چې دا حدیث بالاتفاق موضوعي او دروغ دي. شیخ الاسلام بن تیمیه د دې حدیث په اړه لیکلي دي چې **هو کذب موضوع عند اهل المعرفة بالحدیث**.
ابو جعفر عقیلي، ابو حاتم، دارقطني او ابن جوزی دا حدیث موضوع او کذب ګرځولی دی. صاحب مشکوة په ټول کتاب کې دا یو حدیث موضوعي دی. **لکل جواد کبوة ولکل سیف نبوة**. هر کره اس کله ټکره خوري او هره کره تورا کله اوړي. دلته کره اس ټکره وخوره. او کره توره په خپل وار کې واوړیدله. (مرقات ۸/۷۹۴)

---

([1]) اخرجه البيهقي في الشعب ۴/۱۵۴ رقم الحديث ۴۶۳۳.

## د قیامت په ورځ به د عقل په مطابق جزاء ور کولی کیږي

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ الرَّجُلَ لَيَكُونُ |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: یو سړی چې هغه په لمونځ |
| مِنْ أَهْلِ الصَّلَاةِ وَ الصَّوْمِ وَ الزَّكَاةِ وَ الْحَجِّ وَ الْعُمْرَةِ » . حَتَّى |
| کونکو کې وي، روژه نیونکو کې وي، زکوة ورکونکو کې وي، حج او عمره کونکو کې وي، تر دې چې د غه شان |
| ذَكَرَ سِهَامَ الْخَيْرِ كُلَّهَا: «وَمَا يُجْزَى |
| نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د نیکۍ او ښیګړو په اړه باندې ټول غټ غټ شیان ذکر کړل. او وې فرمایل: لیکن |
| يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَّا بِقَدرِ عقله »[1] |
| هغه به د قیامت په ورځ باندې د خپل عقل په مطابق جزاء مومي. |

**توضیح: بقدر عقله:** د عقل نه مراد هغه اعلی جوهر دی چې د هغې په ذریعه سره انسان د اسبابو او شیانو د حقیقت ادراک کوي . او د کوم په وجه باندې چې انسان د انسانیت په کړۍ (دائره) کې وي. ګویا دا دانسان لپاره د ګاړې د بریک په شان دی. کۀ دا فیل شي نو انساني بدن بې قابو کیږي. وس په هر سړي کې چې د عقل جوهر څومره کامل او مکمل وي، هغومره به د هغه کار اعلی او ارفع وي، هم د دې وجې نه په دې حدیث کې فرمایلی شویدي چې په کوم سړي کې څومره عقل وي، هغه ته به د هغې مطابق جزاء ورکولی کیږي. ځکه چې د الله تعالی د اړخ نه به د قیامت په ورځ د انعام او اکرام معیار د عبادت په مقدار باندې نوي بلکې د عبادت په عبادت د حسن او کمال د وجې نه به وي. او دا خبره واضحه ده چې په عبادتونو او طاعتونو کې حسن او کمال مدار په دې عقل باندې دی. ځکه یې و فرمایل چې د قیامت په ورځ باندې جزا او سزا به د عقل په بنیاد باندې وي. شیخ عبدالحق په اشعة اللمعات کې لیکلي دي چې د صاحب عقل عالِم یو رکعت لمونځ د نورو خلکو د زر رکعتونو نه افضل به وګرځي. (مرقات ۸/۷۹۴)

## د تدبیر فضیلت

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَا أَبَا ذَرٍّ لَا عَقْلَ |
| او حضرت ابو ذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: ابو ذر (پوهه شه) عقل د تدبیر |
| كَالتَّدْبِيرِ وَلَا ورع كالكفِّ ولا |
| سره برابر ندی . ورع یعنې پرهیزګارې د ځان ساتنې او احتیاط برابر نده، او حسب او فضیلت د |

(۱) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۴/۱۵۵ رقم الحديث ۴۶۳۷.

| حسب کحسن الْخلق »[1] |
|---|
| خوش اخلاقۍ برابر نه دی. |

**توضیح: کالتدبیر**: په عواقبو باندې سوچ فکر نوم تدبیر دی. لهٰذا اعلیٰ او اولیٰ عقل خو تدبیر دی. ځکه یې وفرمایل چې د غوره تدبیر په شان هیڅ عقل نشته دی، تدبیر بهترین عقل دی.

**ولاورع کالکف**: یعنې د پرهیز په شان هیڅ تقوی نشته. تقوی خو د محرماتو نه د ځان ساتلو او ظاهرًا او باطنًا خپله معامله د خپل رب سره دپاکې ساتلو نوم دی. نو کوم سړی چې هر ساعت خپل ځان د هر ناجائز نه ساتي. د ښه وچته تقوی کومه کیدلی شي. یو سړی عبادت کوي خو ورسره وسره ترینه ګناه کیږي، دا دتقوی مقام ته چیرته رسیدلی شي. لیکن کوم سړی چې د عبادتونو سره د ګناهونو نه پرهیز کوي، اصل متقي خو هغه دی. د دې مثال داسې دی چې یو سړی دوائې خوري خو د هغې نه وروسته پرهیز نه کوي، نو هغه ته دوائې فائده نشي ورکولی. (مرقات ۸/۷۹۵)

شارحینو د **کالکف** مطلب دا بیان کړیدی چې کوم سړی خلکو ته د تکلیف ورکولو نه ځان ساتي، دهغې په شان هیڅ تقوی نشته دی. دا اعلی تقوی ده.

**ولاحسب**: دحسب نسب مطلب دا دې چې سړی د اعلی خاندان سره اړیکي لري. او داعلی خاندان خلک د اعلی اخلاقو مالکان وي. ځکه چې هغوې عزتمند وی. نتیجه دا راووتله چې د ښه اخلاقو مالک کیدل د دې خبرې دلیل دی چې دا سړی د اعلی خاندان سره متعلق دی. ځکه یې وفرمایل چې د ښه اخلاقو په شان هیڅ حسب نسب نشي کیدلی.

## په خرڅ کې میانه روې دژوندې نیمه سرمایه ده

| ﴿۱۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الِاقْتِصَادُ فِي النَّفَقَةِ |
|---|
| او حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: په خرڅو کې میانه روي خپلول |
| نِصْفُ الْمَعِيشَةِ وَالتَّوَدُّدُ إِلَى النَّاسِ نِصْفُ الْعَقْلِ وَحُسْنُ السُّؤَالِ نِصْفُ الْعِلْمِ» رَوَى الْبَيْهَقِيُّ |
| نیم معیشت دی. د انسانانو سره دوستي نیم عقل دی. او په ښه والي سره پوښتنه کول نیم علم دی. |
| الْأَحَادِيثَ الْأَرْبَعَةَ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ "[2] |
| دا څلور واړه روایتونه بیهقي په شعب الایمان کې نقل کړیدي. |

---

(1) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۴۱۰ رقم الحديث ۴۲۱۸، والبيهقي في شعب الايمان ۵/۲۷ رقم الحديث ۵۶۴۷.

(2) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۵/۲۵۴ رقم الحديث ۶۵۶۸.

**توضیح**: نصف المعیشة: یعني په خرچ کې میانه روي خپلول نیم معیشت او نیم ګزران دی. د انسان دمعاشي ژوند ګزران په دوه شیانو باندې دی. یو دهغه ګټه وټه ده، دویم د هغه خرچ دی. په دې دوارو کې توازن برقرار ساتل د خوشحالۍ نښه او د معیشت مضبوطوالی دی. لکه څنګه چې د آمدن توازن خرابیدل د خوشحالۍ سره منافي او دمعیشت د نه مضبوطوالي سبب دی، دغه شان که د خرچو توازن خراب شي نو خوشحالي به هم ځي او د معیشت ټوله ډهانچه به برباده شي. لهٰذا په مصرفونو کې اعتدال او په خرچ کولو کې میانه روي خپلول د معیشت نیمه برخه ده. لکه څنګه چې د دې حدیث نه معلومه شوه. (مرقات ۸/۷۹۵)

**والتؤددة** یعني د ښه خلکو سره تعلق ساتل، دهغوې سره دوستي کول، دا د عقل نیمه برخه ده. چې هغه د ژوند د ښایسته کولو ضامن دی. عقلمندي دا ده چې انسان په جائز طریقې سره محنت کولو باندې خپله وګټي. او د خلکو سره د مینې جذبې هم برقرار وساتي. (مرقات ۸/۷۹۵)

**وحسن السوال**: یعني ښه پوښتنه نیم علم دی. ځکه چې نیم علم د پوښتنه کونکې په پوښتنه کې راغلی او نیم علم د جواب ورکونکې په جواب کې راغلی. لهذا په طریقې سره پوښتنه کول دعلم د ډیریدلو ذریعه ده. چې هغه نیم علم دی. د ښه پوښتنې به ښه جواب راځي. نو د پوښتنه کونکې نیم علم به په جواب سره پوره شي. او د مسؤل(پوښتنه کړی شوی) نیم علم به د پوښتنه کونکې په پوښتنه سره پوره شي. نو ښه پوښتنه د سائل او مسؤل دواړو لپاره نیم علم دی. (مرقات ۸/۷۹۶)



۱۸ ربیع الثاني ۱٤۱۸هـ

## باب الرفق والحیاء وحسن الخلق
## د نرمۍ او د ښه اخلاقو بیان

رفق: نرمۍ ته وایي. چې د عُنف او د سختۍ ضد دی. عاجزۍ خپلول او خپلو ملګرو ته نې مهربانه او نرم ښو کیدل. **الحیاء:** توضیحات جلد اول کتاب الایمان په ابتدایي حدیثونو کې د **الحیاء شعبة من الایمان** دلاندې د حیاء لغوي او اصطلاحي تعریفونه په تفصیل سره لیکلی شوي دي. دلته هم څه لیکلی کیږي. دې لپاره چې لوستونکو ته تکلیف نه وي.

**د حیاء تعریفونه**: د حیاء اول تعریف په دې توګه دی: **الحیاء هو خلق یمنع الشخص عن ارتکاب القبیح لاجل الایمان.** دحیاء دویم تعریف دا دی: **الحیاء هو تغیر وانکسار یعتری المرء من خوف ما یلام و یعاقب علیه** . د حیاء دریم تعریف علماؤ دا کړی دی چې د الله تعالی د عظیم نعمتونو تصور کولو سره خپلو کمیو باندې نظر کولو باندې زړه او مازغو کې دقصور چې کوم کیفیت پیدا کیږي ، هغه حیاء ده. د حیاء څلورم تعریف دا دی: **هو ان لا یراك مولاك حیث ینهاك**.اول تعریف د حیاء ایماني دی. او دویم تعریف د حیاء انساني دی. دریم تعریف بیا د حیاء ایمانې دی. او څلورم تعریف حیاء انسانې او حیاء ایمانې دواړو ته شامل دی.دحیاء انساني تعلق د انسان سره وي. که مسلمان وي او که کافر او د حیاء ایمانې تعلق د ایمان او اسلام سره دی. لهذا دا د مسلمانانو سره خاص دی. بهرحال دلته په عنوان کې چې د کومې حیاء ذکر دی، ددېنه حیاء شرعي ایمانې مراد ده.

**سوال**: دلته دا اعتراض راځي که حیاء په یو کافر کې وموندلی شي نو آیا هغه به هم مسلمان بللی کیږي، ځکه چې په حدیث کې حیاء د ایمان نښه ګرځولی شویده؟

**جواب**: د دې جواب دا دی چې د حیاء معامله د باب فتح یفتح په توګه ده چې چیرته باب د فتح وي ، د حرف حلقي کیدل به ضروري وي. لیکن دا ضروري نده چې په کوم باب کې حرف حلقي راشي ، هغه به باب د فتح یفتح وي. لکه سمع یسمع کې حرف حلقی دی لیکن فتح یفتح ندی. دغه شان د مسلمان معامله ده چې چیرته مسلمان دی هلته حیاء لازمه ده. لیکن دا ضروري نده چې چیرته حیاء وي هلته دې مسلمان کیدل لازم وي.

**دحیاء درې قسمونه** : دحیاء درې قسمونه دي: (۱) حیاء جنابت : لکه حضرت آدم عليه السلام دغنم دانه خوړلو نه وروسته یو اړخ ته منډې وهلې. الله تعالی وفرمایل: چیرته منډې وهې؟ **قال حیاء منك یاالله.**
(۲) حیاء حشمت او عظمت لکه حضرت علی رضي الله عنه د حضرت مقداد په ذریعه نبی کریم صلى الله عليه وسلم

نه د مذي د مسئلې پوښتنه وکړه او خپله یې پوښتنه ونه کړه (۳) حیاء اجلال: لکه **تسربل اسرافیل بجناحیه حیاء من الله لاجلاله**. بهرحال حیاء د هغه کیفیت د راخپریدلو نوم دی چې د قبیح د کولو دانجام د ویرې نه اندامونه راغونډ شي او سړې د قبیح کولو نه په شاه شي لیکن که د جائز حق غوختلو کې یو سړی حیاء کوي او د شرم له وجې نه ښه خبره یا خپل پریږدي نو دا حیاء نه ده بلکې بې غیرتي ده.

**وحسن الخلق**: حسن خلق دا دی چې په یو وخت کې سړی د خالق او مخلوق حقوق ادا کړي. چې په هغې سره هغه خالق هم راضي کړي او مخلوق هم راضي وساتي. بالفاظ دیگر احکام شرعیه ادا کول د یو مسلمان لپاره د ټولو نه اعلی اخلاق دي. د دې باب حدیث نمبر ۲۸ د لاندې حسن خلق نور تعریفونه لیکلی شوي دي، هغه دې هم وکتلی شي.

## الفصل الاول

## د شفقت او نرمۍ فضیلت

﴿۱﴾ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ الله عَنْهَا أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِنَّ اللهَ تَعَالَى رَفِيقٌ

حضرت عائشه رضي الله عنها نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: بیشکه الله تعالی نرم او مهربانه دی

يُحِبُّ الرِّفْقَ وَيُعْطِي عَلَى الرِّفْقِ مَا لَا يُعْطِي عَلَى الْعُنْفِ

او نرمي او مهربانې خوښوي. ځکه هغه په نرمۍ او مهربانۍ باندې هغه څه ورکوي چې هغه په سختۍ باندې نه ورکوي.

وَمَا لَا يُعْطِي عَلَى مَا سِوَاهُ».

او نرمي او مهربانې باندې چې کوم څه ورکوي هغه د نرمۍ او مهربانۍ نه علاوه په بل څه باندې نه ورکوي.

رَوَاهُ مُسْلِمٌ. وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ: قَالَ لِعَائِشَةَ:

(مسلم) او د مسلم په یو روایت کې دا الفاظ دي چې نبی صلی الله علیه وسلم حضرت عائشه رضي الله عنها ته وفرمایل:

«عَلَيْكِ بِالرِّفْقِ وَإِيَّاكِ وَالْعُنْفَ وَالْفُحْشَ

نرمي او مهربانې په لازمي توګه باندې خپله کړه او سختي او تریخوالي او بې حیائي نه خپل ځان وساته.

إِنَّ الرِّفْقَ لَا يَكُونُ فِي شَيْءٍ إِلَّا زَانَهُ وَلَا يُنْزَعُ مِنْ شَيْءٍ إِلَّا شانه»[1]

ځکه چې په کوم څه کې نرمي وي، هغه ښایسته کوي، او د کوم شي نه چې وویستلی شي نو هغه عیبجن شي.

---

[1] أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۲۰۰۱ رقم الحديث (۲۵۹۳-۷۷) والرواية الثانية في ۴/۲۰۰۴ رقم الحديث (۲۵۹۴-۷۸)

**توضيح:** په دې حديث کې ولې شويدي چې الله تعالى نرمې خوښوي، ګويا په دې کې د خداى مخلوق ته تعليم ورکړى شويدى چې تاسو په خپل مينځ کې نرمې او مهربانۍ سره مخ کيږۍ. په دې سره به ستاسو دنيا او آخرت دواړه جوړيږي. ځکه چې د ټولو برکتونو تعلق د نرمۍ او مهربانۍ سره دى، سختۍ او تريخوالى هيڅ شى هم ندى. بلکې په کوم شي کې چې نرمې او مهربانۍ وي په هغې کې به ښايست کيږي، سختۍ او تريخوالى هر شى بدرنګه او عيبجن پريږدي. نرمې سره ناممکنه ممکن جوړيږي، او سختۍ سره ممکن ناممکن جوړيږي. چا څه ښه ويلي دي:

آسائش دو گیتی تفسیر ایں دو حرف است — بادوستاں تلطف بادوشمناں مدارا

## د نرمۍ نه محرومه سړى د هرې ښيګړې نه محرومه دى

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ جَرِيرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ |
| او حضرت جرير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبى کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت کوي چې نبى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: کوم |
| يُحْرَمِ الرِّفْقَ يُحْرَمِ الْخَيْرَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ [1] |
| سړى چې نرمۍ او مهربانۍ نه محرومه کړى شي هغه ګويا د نيکۍ نه محرومه کړى شي. (مسلم) |

## د حياء فضيلت

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ عَلَى رَجُلٍ |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې (يوه ورځ) رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د يو انصارى صحابى |
| مِنَ الْأَنْصَارِ وَهُوَ يَعِظُ أَخَاهُ فِي الْحَيَاءِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| په خوا باندې تير شو چې هغه خپل ورور ته د حياء په اړه باندې نصيحت کولو نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| « دَعْهُ فَإِنَّ الْحَيَاءَ مِنَ الْإِيمَانِ » . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ [2] |
| هغه ته وفرمايل چې ده ته څه مه وايه ځکه چې حياء د ايمان يو ښاخ دى. (روايت کړې دي بخارى او مسلم) |

**توضيح:** يعظ اخاه: وعظ د هغه بيان او نصيحت نوم دى چې په هغې کې زړه نرمونکې خبرې وي. چې په هغې سره د خداى ويره راويخيږي او د آخرت ياد تازه کيږي. ليکن دلته په حديث کې د وعظ نه يرول، زورول او عتاب او سزا ورکول مراد دي. د ې صحابې خپل ملګرى په حياء سره يرولو چې حياء کوي نو هيڅ به ترلاسه نکړي، د علم نه به هم محرومه يې او د رزق نه به هم محرومه شي، نه

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۰۳ رقم الحديث (۲۵۹۲-۷۴) وابوداود في السنن ۵/۱۷۵ رقم الحديث ۴۸۰۹

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۱/۷۴رقم الحديث ۲۴،ومسلم في ۱/۶۳ رقم الحديث (۳۶-۵۹)

به د دنيا شي او نه به د آخرت شي. نبي كريم صلى الله عليه وسلم دا رتهونكى د دې نه منع كړو او وې فرمايل چې داسې مه كوه ځكه چې حياء خو د ايمان په جزونو كې يو اهم جزء دى. په دې سره سرلوړې ترلاسه كېږي، ناكامې نه ترلاسه كيږي. د دېنه حديث نه معلومه شوه چې اسلام شرم او حياء او عزت او عظمت درس وركوي. نو د دې په منونكو دا شي په ښكاره توګه باندې موجود دى. او سكولونه، كالجونه بى حياېې، بداخلاقې، رذالت او قباحت درس وركوي. نو د دې په ترلاسه كونكو كې دا شيان ښكاره دي. د كالج يو هلك ته په ۱۹۷۴ء كې ما وويل چې څه شرم او حياء خو وكړه، نو هغه وويل چې شرم او حياء ما د كالج د ميز د لاندې خخه كړيده. (مرقات ۸/۷۹۹)

چلتے چلتے ایک صاحب یہ نصیحت کر گئے گوشت گر ملتا نہیں تو دا کھایا کیجئے

کالجوں نے آپ کو خچر بنا ڈالا تو آپ ملک کے اصطبل میں ہنہنایا کیجئے

| |
|---|
| ﴿۴﴾وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الْحَيَاءُ لَا يَأْتِي |
| او حضرت عمران بن حصين فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: حياء د نيكۍ او ښيګړې نه |
| إِلَّا بِخَيْرٍ» وَفِي رِوَايَةٍ: «الْحَيَاءُ خَيْرٌ كُلُّهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1] |
| سوا هيڅ خبره نه پيدا كوي. يو بل روايت كې دا دي چې د حياء ټول صورتونه غوره دي. (بخارى او مسلم) |

**توضيح: الا بخير:** پوښتنه دا ده چې ځينې وخت كې د حياء د وجې نه حق خبره كول پاتې شي. امر معروف د كولو نه سړى ايسار شي. نو څنګه يې وفرمايل چې حياء خير راوړي؟ د دې جواب دا دى چې هغه د سره نه حياء نه ده چې هغه د حق خبرې كولو لپاره مانع شي. بلكې هغه بى غيرتې ده. په حديث كې د حياء فضيلت بيان شويدى. د بى غيرتې نه دى. اصل حياء خو هغه ده چې سړى د هغه كارونو نه بچ شي چې هغه شريعت بد ګرځولي دي. شريعت چې كوم كارونه خوښ كړيدي هغه خو ټول خير دى. نو په دې حديث كې الا بخير نه شرعي كارونه مراد دي. (مرقات ۸/۸۰۰)

## كله چې په تا كې حياء نشته نو څه چې غواړې، وكړه

| |
|---|
| ﴿۵﴾وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ مِمَّا أَدْرَكَ النَّاسُ |
| او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: خلكو چې په انبياؤ باندې |
| مِنْ كَلَامِ النُّبُوَّةِ الْأُولَى: إِذَا لَمْ تَسْتَحِ فَاصْنَعْ مَا شِئْتَ" رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[2] |
| نازل شوؤ كلامونو كې كومه خبره موندلې ده هغه دا ده چې كله ته بې شرمه شې نو څه چې دې زړه وغواړي، وكړه. (بخارى) |

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۱۵۲۱ رقم الحديث ۶۱۱۷ ومسلم في صحيحه ۱/۶۴ رقم الحديث (۳۷-۶۰).

[2] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۵۲۳ رقم الحديث ۶۱۲۰، وابوداود في السنن ۵/۱۴۸ رقم الحديث ۴۷۹۷.

**توضیح**: ان مما ادرك الناس: مطلب دا دی چې په مخکنی انبیاء کرامو علیهم السلام باندې نازلیدونکې کلامونو نه چې کومه خبره خلکو ته د وراثت په توګه پاتې شویده او کومه خبره چې ثابته غیر منسوخ راروانه ده. هغه داده چې کله په تا کې حیاء پاتې نشي او ته بې شرمه شوي نو بیا چې څه غواړې، وکړه. (مرقات ۸/۸۰۱)

بے حیاء باش وہر چہ خواہی کن

توضیح: دا د امر صیغه ده لیکن په دې سره حکم ورکول یا د کوم شي طلب کول مراد نه دي. دا امر انشاء په معنی د خبر دی. یعنې انسان لره قابو کونکی او د بدو حرکتونو نه منع کونکی شی حیاء ده. کله چې چا حیاء او شرم په پاس په طاق کې کیخودله او بې حیایې یې خپل ښویې جوړ کړو نو څه چې غواړي نو کوي به یې.
دا د امر صیغه ده خو د تهدید او توبیخ په توګه باندې دی. یعنې څه چې غواړې، وکړه لیکن یـ د ساته یوه ورځ به حساب راشي، د هغې لپاره تیار وسیږه. (مرقات ۸/۸۰۱)

## د ګناه پیژندویه څه ده

﴿۶﴾ وَعَنِ النَّوَاسِ بنِ سمْعَانَ قَالَ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْبِرِّ وَالْإِثْمِ

او حضرت نواس بن سمعان رضي الله عنه فرمایې چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه د نیکی او ګناه په اړه پوښتنه وکړه

فَقَالَ: «الْبِرُّ حُسْنُ الْخُلُقِ

(چې نیکي څه ده او ګناه څه ده؟) نو نبی صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې نیکې د خوش اخلاقۍ نوم دی (یعنې

وَالْإِثْمُ مَا حَاكَ فِي صَدْرِكَ وَكَرِهْتَ

د نیکۍ ښائسته صورت خوش خلقی ده) او ګناه (هغه) کار دی چې هغه ستا په زړه کې شک پیدا کړي او ته

أَن يطلع عَلَيْهِ النَّاسُ». رَوَاهُ مُسلم[1]

هغه کار خوښ نکړې چې خلک ستا د دې کار نه خبر شي. (مسلم)

**توضیح: ما حاك**: یعنې د ګناه نښه داده چې د دغه کار د کولو په وخت کې د سړي په زړه کې شک او تردد پیدا شي چې شاید دا د ګناه کار دی. په زړه کې غوټه وي او تردد وي چې څه زه کوم دا ښه ندي. نو پوهه شه چې دا کار د ګناه دی. دویمه نښه یې دا ده چې د دغه کار عامو خلکو ته ښکاره کول نشي کیدلی. بلکې د دې د پټولو کوښښ کیږي. لیکن دا خبره د هغه خلکو ده چې د هغوی زړونه د شیشې په شان پاک وي. هغوی ته دا تردد او غوټه پیدا کیږي. ګنې د بې دینه خلکو په

---

[1] أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۹۸۰ رقم الحديث (۲۵۵۳-۱۴) والترمذي في ۴/۵۱۵ رقم الحديث ۲۳۸۹.

زړونو کې د ګناه د وجې نه هيڅ څه غوټه او تردد نه پيدا کيږي بلکې هغوی په ډاګه باندې ګناه دوي. (مرقات ۸/۸۰۴)

## د خوش اخلاقۍ فضيلت

| |
|---|
| ﴿۷﴾وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: «إِن مِنْ |
| او حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: په تاسو کې هغه |
| أَحَبِّكُمْ إِلَيَّ أَحْسَنَكُمْ أَخْلَاقًا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1] |
| سړی ماته ډير خوښ دی چې هغه د ښه اخلاقو خاوند وي. (بخاری) |
| ﴿۸﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ مِنْ خِيَارِكُمْ |
| او حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: په تاسو کې بهترين |
| أحسنَكم أَخْلَاقًا». مُتَّفق عَلَيْهِ[2] |
| سړی هغه دی چې د هغه اخلاق ښه وي. (بخاری او مسلم) |

## الفصل الثاني

## د نرمۍ نه محروم د هر خير نه محرومه دی

| |
|---|
| ﴿۹﴾عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ أُعْطِيَ حَظَّهُ |
| حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: کوم سړي ته چې په نرمۍ کې برخه |
| مِنَ الرِّفْقِ أُعْطِيَ حَظَّهُ مِنْ خَيْرِ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَمَنْ حُرِمَ حَظَّهُ مِنَ الرِّفْقِ |
| ورکړی شوه هغه ته ګويا د دنيا او آخرت په ښيګړو کې برخه ورکړی شوه. او کوم سړی چې په نرمۍ کې د خپلې برخې نه |
| حُرِمَ حَظَّهُ مِنْ خَيْرِ الدُّنْيَا وَ الْآخِرَةِ » . رَوَاهُ فِي «شرح السّنة»[3] |
| محرومه شو هغه ګويا د دنيا او کې د آخرت په ښيګړو خپلې برخې نه محرومه شو. (شرح السنة) |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۷/۱۰۲ رقم الحديث ۳۷۵۹ والترمذي في ۴/۳۲۵ رقم الحديث ۲۰۱۸.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۵۶۶ رقم الحديث ۳۵۵۹ ومسلم في ۴/۱۸۱۰ رقم الحديث (۲۳۲۱-۶۸)

(۳) أخرجه شرح السنة .

## حیاء د ایمان جزء دی

﴿۱۰﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الْحَيَاءُ

او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: حيا (يعني د بد كارونو نه پرده ساتل)

مِنَ الْإِيمَانِ وَالْإِيمَانُ فِي الْجَنَّةِ. وَالْبَذَاءُ

د ايمان جزء دى. او ايمان (يعني مؤمن) به جنت ته ځي او بي حيايي (چې د هغې د وجې نه فحش خبرو

مِنَ الْجَفَاءِ وَالْجَفَاءُ فِي النَّارِ». رَوَاهُ أَحْمد وَالتِّرْمِذِيّ[1]

او بدو خبرو كول ضروري دي) د بدى جزء دى. او بدي به دوزخ او رته ځي. (احمد او ترمذى)

**توضيح**: البذاء: بى حيايي او فحش خبري كولو ته البذاء وايي. الجفاء: بدي، بد او لوچک ښويې او جهالت ته جفاء وايي. مطلب دا دى چې جت كيدل، سخت جاهل كيدل، بدګو، بد اخلاق او فحش وينا كونكى سړى به جهنم كې وي. اوس كه دا سړى اعتقادي منافق دى نو هميشه به جهنم ته ځي او كه عملي منافق دى نو د سزا څكلو نه وروسته به خلاص شي. (مرقات ۸/۸۰۴)

## خوش اخلاقي د خداى غوره ډالۍ ده

﴿۱۱﴾وَعَنْ رَجُلٍ مِنْ مُزَيْنَةَ قَالَ: قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ مَا

او د قبيله مزينه يو سړي بيان دى چې صحابؤ عرض وكړو چې يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! كوم شيان چې

خَيْرُ مَا أُعْطِيَ الْإِنْسَانُ؟ قَالَ: «الْخُلُقُ الْحَسَنُ»

انسان ته وركړى شوي دي په هغې كې غوره كوم شى دى؟ نو نبى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: خوش اخلاقي.

رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ»[2] وَفِي شَرْحِ السُّنَّةِ عَنْ أُسَامَةَ بْنِ شَرِيكٍ[3]

دا روايت بيهقى په شعب الايمان كې نقل كړيدى. او په شرح السنة كې دا روايت د اسامه بن شريک نه منقول دى.

## د بداخلاقۍ بدي

﴿۱۲﴾وَعَنْ حَارِثَةَ بْنِ وَهْبٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ الْجَوَّاظُ

او حارثه بن وهب فرمايي چې رسو ل الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: جنت ته خو به نه سخت كلام ننوځي

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۲۱ رقم الحديث ۲۰۰۹، واحمد في المسند ۲/۵۰۱.

(۲) أخرجه أحمد في المسند ۴/۲۷۸ والبيهقي في شعب الايمان ۶/۲۳۵ رقم الحديث ۷۹۹۲.

(۳) أخرجه أحمد في المسند ۴/۲۷۸

وَلَا الْجَعْظَرِيُّ» قَالَ: وَالْجَوَّاظُ: الْغَلِيظُ الْفَظُّ رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ فِي «سُنَنِهِ».

او نه بداخلاقه. او راوي وايي چې د جواظ معنی ده سخت کلام او بداخلاق. دا روايت ابوداؤد په خپل سنن کې

وَالْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ وَصَاحِبُ» جَامِعِ الْأُصُولِ «فِيهِ

او بيهقي په شعب الايمان کې نقل کړيدی. دغه شان صاحب د جامع الاصول په جامع الاصول کې

عَنْ حَارِثَةَ. وَكَذَا فِي» شَرْحِ السُّنَّةِ" عَنْهُ وَلَفْظُهُ قَالَ:

د حارثه نه دا روايت نقل کړيدی. او دغه شان دا روايت په شرح السنة کې حضرت حارثه نه په دې الفاظو نقل شويدی

«لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ الْجَوَّاظُ الْجَعْظَرِيُّ»

چې په جنت کې به جواظ جعظری نه داخليږي (ګويا په دې الفاظو کې جعظري د جواظ په صفت سره ګرځولی شويدی)

يُقَالُ: الْجَعْظَرِيُّ: الْفَظُّ الْغَلِيظُ

او ويلی شويدي چې د جعظری معنی ده بداخلاق او سخت کلام (يعنې د دې روايت مطابق جواظ او جعظری

وَفِي نُسَخِ «الْمَصَابِيحِ» عَنْ عِكْرِمَةَ بْنِ وَهْبٍ

يوه معنی ده) او مصابيح په (ځينو) نسخو کې دا روايت د حضرت عکرمه ابن وهب نه نقل شويدی.

وَلَفْظُهُ قَالَ:" وَالْجَوَّاظُ: الَّذِي جَمَعَ

په هغې کې داسې بيان شويدی چې راوي ويلي دي چې جواظ هغه سړې ته وايې چې هغه مال دولت

وَمَنَعَ. وَالْجَعْظَرِيُّ: الغليظ الْفظ[1]

جمع کړي خو سائل ته څه ورنکړي او جعظری هغه سړی ته وايې چې هغه سخت کلام او بداخلاقه وي.

**توضيح**: **الجواظ ولاالجعظری**: دا دوه الفاظ دي او د دواړو تشريح د دې حديث په ضمن کې کوم راوي کړيده. د ځينو روايتونو نه معلوميږي چې دا دوه الفاظ هم معنی. مترادف الفاظ دي. يعنې بداخلاق بدزبان او بی ځايه خبرې کونکی دی. ملاعلي قاري فرمايې چې جواظ او جعظری هغه سړی دی چې هغه بداخلاقه او سخت زړی وي. نو د سخت زړه تعلق د باطن حالاتو نه دی. چې د هغې لپاره د الجواظ لفظ راوړی شو، چې د هغې ترجمه الغليظ سره کړی شويده. او د بداخلاقو تعلق د ظاهرې حالاتو سره دی. دا سړی ظاهرې اوباطنې دواړو حالتونو په اعتبار سره تباه دی. ملاعلي قاري ورپسې ليکي چې ډيره مناسبه داده چې الجعظری تفسير او تشريح په غليظ القلب سره وکړی شي.

---

(1) اخرجه أبوداود في السنن ۵/۱۵۱ رقم الحديث ۴۸۰۱ والبغوي في شرح السنة ۱۳/۱۶۹ رقم الحديث ۳۵۹۳.

**قال فاللائق ان يفسر الجعظري بغليظ القلب.** د دې عبارت نه معلومه شوه چې دالجواظ تفسير هم دغه دی کوم چې يو راوي په الغليظ لفظ سره کړيده. يعني بداخلاق، بدزبانه، بهرحال الجواظ نه بداخلاق او الجعظري نه سخت زړی مراد اخستل شويدی. که داسې سړی اعتقادي منافق دی نو هميشه به په دوزخ کې وي او که عملي منافق دی نو بيا سزا نه وروسته به جنت ته ځي. (مرقات ۸/۸۰۶)

## د خوش اخلاقۍ فضيلت

﴿۱۳﴾وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِنَّ أَثْقَلَ شَيْءٍ يُوضَعُ

او حضرت ابو درداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت کوي چې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د

فِي مِيزَانِ الْمُؤْمِن يومَ الْقِيَامَة خُلُقٌ حسنٌ

قيامت په ورځ د مؤمن د اعمالو په تله کې کيخوديدونکی شيانو کې ډير وزني شی ښايسته اخلاق دي.

وَإِنَّ الله يُبْغِضُ الْفَاحِشَ الْبَذِيءَ».

او الله تعالی فحش خبرې کونکو او بی ځايه خبرې کونکو خلکو نه سخته کرکه او دښمني لري. دا روايت

رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: حَدِيث حسن صَحِيح.

ترمذي نقل کړيدی. او ويلي يې دي چې دا حديث حسن صحيح دی. دغه شان ابو داؤد هم ددې روايت

وروى أَبُو دَاوُد الفصلَ الأول[1]

برخه يعني خلق حسن پورې نقل کړيده.

﴿۱۴﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ:

او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوريدلي دي چې مؤمن (يعني

«إِنَّ الْمُؤْمِنَ لَيُدْرِكُ بِحُسْنِ خُلُقِهِ دَرَجَةَ

کامل مؤمن چې هغه عالم باعمل وي) د خوش اخلاقۍ په وجه هغه درجه لري کومه چې (عبادت او

قَائِمِ اللَّيْل وصائم النَّهَار». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2]

ذکر الهی لپاره) شب بيداري کونکي او هميشه د ورځې روژه نيونکي ته ورکړی کيږي. (ابو داؤد)

---

[1] أخرجه أبوداود والفصل الأول في السنن ۵/۱۴۹ رقم الحديث ۴۷۹۹، والترمذي في السنن بأكمله ۴/۳۱۸ رقم الحديث ۲۰۰۲.

[2] أخرجه أبوداود في السنن ۵/۱۴۹ رقم الحديث ۴۷۹۸، ومالک في الموطأ ۲/۹۰۴ رقم الحديث ۶ من كتاب الخلق،

## خلكو سره په ښايسته اخلاقو سره مخ كيږه

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «اتَّقِ اللهَ حَيْثُمَا |
| او حضرت ابوذر رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ما ته وفرمايل: د الله نه يره كوه، ته چې هر چيرته |
| كُنْتَ وَأَتْبِعِ السَّيِّئَةَ الْحَسَنَةَ تَمْحُهَا |
| يې. كه ستا نه څه بدي وشي نو د هغې نه وروسته نيك كار خامخا كوه دې لپاره چې هغه نيكي دغه بدي ختمه كړي. |
| وَخَالِقِ النَّاسَ بِخُلُقٍ حَسَنٍ». رَوَاهُ أَحْمد وَالتِّرمِذِيّ والدارمي[1] |
| او د خلكو سره په ښايسته اخلاقو معامله كوه. (احمد، ترمذي، دارمي) |

**توضيح: اتق الله حيث ما كنت:** په دې جمله كې په حقيقت كې د تقوىٰ تعريف دى. يعنې ظاهرًا او باطنًا خپله معامله د خپل رب سره پاكه وساتلې شي. دا تقوىٰ ده. په دويمه جمله كې دي چې كه ګناه وشي نو دهغې نه سمدستي وروسته نيك عمل كوه، دې لپاره چې هغه نيكې دا بدې ختمه كړي ځكه چې دا قانون دى: ان الحسنات يذهبن السيئات. ياده دې وي په دې سره په حقوق الله كې كمى معاف كيږي. ليكن د حقوق العباد كمى نه معاف كيږي. دغه شان دا اصغائرو خبره ده، د كبائرو لپاره توبه ده. په دريمه جمله كې دي چې د خلكو سره په ښه اخلاقو مخ كيږه. (مرقات ۸/۸۱۰)

## نرم مزاج او د نرم ښويه سړي فضيلت

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِلَا أُخْبِرُكُمْ |
| او حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ايا زه وو ايم چې |
| بِمَنْ يَحْرُمُ عَلَى النَّارِ وَبِمَنْ |
| هغه كوم سړى دى چې هغه به په اور باندې حرام وي او په چا باندې چې اور حرام وي؟ (نو واورى) |
| تَحْرُمُ النَّارُ عَلَيْهِ ؟ عَلَى كُلِّ هَيِّنٍ لَيِّنٍ قَرِيبٍ سَهْلٍ ». |
| د دوزخ اور به په هر هغه سړي باندې حرام وي چې هغه نرم مزاج، نرم طبيعت والا وي. خلكو ته نژدې او نرم ښويه |
| رَوَاهُ أَحْمَدُ وَ التِّرْمِذِيُّ وَ قَالَ : هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ[2] |
| وي. دا روايت احمد او ترمذي نقل كړيدى. او ترمذي ويلي دي چې دا حديث حسن غريب دى. |

---

(1) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۱۲ رقم الحديث ۱۹۷۸. والدارمي في ۲/۴۱۵ رقم الحديث ۲۷۹۱.

(2) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۶۴ رقم الحديث ۲۴۸۸. وأحمد في المسند ۱/۴۱۵.

**توضيح: على كل هين:** د اور په انسان باندې حراميدل او د انسان په اور باندې حراميدل. په دې جمله کې ډير تاکيد او مبالغه ده. د دواړو جملو مال او مفهوم يو دى چې داسې سړى د هر مصيبت نه آزاد دى. نبى صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د پوښتنې د جواب انتظار ونکړو بلکې خپله يې جواب ورکړو. . د هين او لين دواړو يوه معنى ده. يعنې نرم مزاج او نرم ښويه سړى د دوزخ په اور باندې حرام دى. **قريب:** يعنې خوش اخلاقه دى. ځکه خلکو ته نژدې دى. ځان غاړې ته کونکى ندى. (مرقات ۸/۸۱۲) **سهل:** آسان او نرم اخلاقو والا دى. د دې دراړو الفاظو وختونه، حالتونه او د واقع کيدلو ځايونه بيل بيل کيدلى. يعنې په چا باندې بوج نه جوړيږي. بى تکلفه دي، دا د هين مصداق کيدلى شي. او د نرم طبيعت مالک دى. دا دعامو اخلاقو په اعتبار سره کيدلى شي. چې هغه د لين مصداق کيدلى شي. او د سهل تعلق د ممکن الحصول سره کيدلى شي. چې د نرم اخلاقو والا دى. ځکه د خلکو نه نه پټيږي بلکې عام ملاقات کول لري. داواړه واړه فرقونه جوړيدلى شي. اګرکه شارحينو د دې ذکر ندى کړى. (مرقات ۸/۸۱۲)

## مؤمن ساده او منافق مکار وي

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «الْمُؤْمِنُ غِرٌّ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نبى کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت کوي چې نبى صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: نيک عمله مؤمن |
| كَرِيمٌ وَالْفَاجِرُ خَبٌّ لَئِيمٌ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ [1] |
| ډير ساده او عزتمندوي ،او بدکار منافق ډير مکار او بخيل او کمينه وي.(احمد ،ترمذى، ابوداؤد) |

**توضيح:** غر كريم: يعنې مؤمن سيدها ساده وي، د ډير شراف د وجې نه دهوکه خوري. ډير ازمايلى شوى، تجربه کار او عيار، دعار، شطار، مکارنه وي، فرزدق شاعر يې نقشه داسې پيش کړيده:

**واستمطروا من قريش كل منخدع ‏ ‏ ‏ ان الكريم اذا خادعته انخدعا**

حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ چې به کله خپل غلام په لمونځ کولو باندې ليدلو نو آزادولو به يې. چا وويل چې دا ته حه کوي. کيدلى شي ، دا دهوکه درکوي. حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ و فرمايل: **من خادعنا بالله ننخدع** يعنې کوم سړى چې د الله تعالى په نوم باندې مونږ ته دهوکه راکوي ، مونږ د هغه نه دهوکه خورو.

ياده دې وي چې د بحث په حديث کې غر کريم نه کوم بيوقوفه سړى مراد ندى بلکې داسې سړى مراد دى چې هغه دنيا په معاملاتو کې ځان ننويستل نه غواړي. دا دهغه د مزاج شرافت دى. په هرڅه پوهه شي خو لاس وهنه نکوي. پاتې شو د دين معامله نو په هغې کې نهايت بيدار مغزه وي. لکه څنګه چې په حديث شريف کې دي:

---

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۵/۱۴۴ رقم الحديث ۴۷۹۰،والترمذي في ۴/۳۰۳ رقم الحديث ۱۹۶۴.

**اتقوا فراسة المؤمن فأنه ينظر بنورالايمان.** او څنګه چې په حديث کې دي: **المؤمن لايلدغ من جحر واحد مرتين.** او څنګه چې د روم د باچا مخې ته يو صحابي د حضرت عمر رضى الله په اړه فرمايلي ؤ: **اَمِيْرُنَالَايَخْدَعُ وَلَايُخْدَعُ.** يعنې زمونږ امير نه چا ته دهوکه ورکوي او نه د چا نه دهوکه خوري. خب: د فاجر نه مراد منافق او بدکاره سړی دی. خب: خاء باندې فتحه ده او باء باندې شد دی. مکار، عيار او شطار او هوکه مار سړې ته وايې. د حديث خلاصه دا راووتله چې مؤمن ساده وي خو دجهالت د وجې نه نه بلکې د شرافت د وجې نه. او منافق تيز طرار وي، خو د عقل د وجې نه بلکې د خباثت او شرارت د وجې نه (وَلِكُلٍّ وِجْهَةٌ هُوَ مُوَلِّيهَا) (البقرة: ۱۳۸)

## دمؤمن شان

|  |  |  |  |
|---|---|---|---|
| ﴿۱۸﴾وَعَنْ مَكْحُولٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الْمُؤْمِنُونَ هَيِّنُونَ لَيِّنُونَ | | | |
| او حضرت مکحول فرمايي چې رسو الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: ايمان لرونکې خلک صبرناک، نرم بنويه | | | |
| كَالْجَمَلِ | الْآنِفِ | إِنْ | قِيدَ | انْقَادَ |
| او تابعدار وي. دهغه اوښ په شان چې دهغه په پوزه کې پيزوان پروت وي که هغه راخکلی شي نو راخکل کيږي | | | |
| وَإِنْ | أُنِيخَ | عَلَى | صخرةٍ | استَنَاخَ». | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ | مُرْسلا «¹» |
| او که کينولی شي نو په کاڼې باندې کيني. دا حديث ترمذي په طريقې د ارسال نقل کړيدی. | | | |

**توضيح:** يعنې د مؤمن چې کوم شان دی چې هغه تابعدار ،صاحب انکسار، عاجز او نرم بنويه وي، لکه څنګه چې د يو اوښ په پوزه کې پيزوان پروت وي. او هغه دمالک په لاس کې وي، که هغه راخکل غواړي يا هغه په کاڼې باندې کينوي، هر حالت د قبلولو لپاره تيار دی. **ان قيد:** د راخکلو په معنی دی. (مرقات ۸/۸۱۴) انيخ: د کينولو په معنی دی. (مرقات ۸/۸۱۴) **استناخ** د کيناستلو په معنی دی. (مرقات ۸/۸۱۴)

## د خلګو په تکليفونو باندې صبر کول د اجر سبب دی

|  |  |  |  |  |  |  |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۹﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «الْمُسْلِمُ الَّذِي | | | | | | |
| او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت کوي چې نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: کوم مسلمان چې | | | | | | |
| يُخَالِطُ | النَّاسَ | وَيَصْبِرُ | عَلَى | أَذَاهُمْ | أَفْضَلُ | |
| د خلکو سره ربط او ګډون وساتي او د هغوې په تکليفونو باندې صبر وکړي هغه د اجر او ثواب په اعتبار سره | | | | | | |

---

(¹) أخرجه ابونعيم في الحلية ۵/۱۸۰

مِنَ الَّذِي لَا يُخَالِطُهُمْ وَلَا يَصْبِرُ عَلَى أَذَاهُمْ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وابنُ مَاجَه[1]

دهغه چا نه افضل دی چې هغه د خلکو سره ربط او ګډون نه ساتي او د هغوی په تکلیفونو باندې صبر ونکړي.

**توضیح: یخالط**: یعنې کوم سړی چې د خلکو سره تعلق ساتي، د هغوی ساتنه کوي. لاربنود نه کوي او په نیکۍ حکم او د بدۍ نه منع کول کوي. او په هغې کې د خلکو د اړخ نه ورته تکلیف رسیږي. هغه برداشت کوي. د هغه ګوټ کې ناست سړي نه غوره دی چې هغه په یو اځیوالي کې عبادت کوي او د خلکو نه بیل وسیږي د هغوی په هیڅ معامله کې زړه خوښي نه کوي. په دواړو کې فرق دا دی چې اولنی سړی خالق او مخلوق دواړه راضي کوي چې کامل اخلاق دي. نو ځکه دا افضل دی، او دویم سړی فقط د خالق د رضا کوښښ کوي، مخلوق نظر انداز کوي. نو دا نقص دی، نو ځکه مفضول دی. لیکن دا یاد ساتی. چې دا دوه نظریې او دوه بیلې رویې په خپله خپله زمانه کې، بیل بیل ځایونو کې، بیل بیل حالاتو کې او د خاص قومونو سره دهغوی د فائدو په مناسبت سره به چلیږي. د ځینو عوامو د خصوصي حالاتو په پیش نظر باندې به اوله نظریه کامیابه وي، او د ځینو سره به دویمه نظریه کامیابه وي. د دواړو مدار به په دین او دنیا فائدو باندې وي. یو الله والا په خپله زمانه کې وویله چې زما مقام د احمد بن حنبل نه ډیر ؤ لیکن هغه د مرتبې په لحاظ سره زما نه مخکې شو. ځکه چې هغه واده شوی دی، د ماشومانو پلار دی. او زما واده ندی شوی، مجرد یم، او په مجرد او غیر مجرد کې فرق وي.

## د نورو د خاطر نه د حق لاندې کولو فضیلت

﴿۲۰﴾ وَعَن سهلِ بن معاذٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت سهل بن معاذ د خپل پلار (حضرت معاذ رضي الله عنه) نه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

«مَنْ كَظَمَ غَيْظًا وَهُوَ يَقْدِرُ عَلَى أَنْ يُنفِذَه

کوم سړی چې خپله غصه تیره کړي، سره د دینه چې هغه په د غه غصه باندې د عمل کولو قدرت لري. نو

دعاهُ الله على رؤوسِ الْخَلَائِقِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ حَتَّى يُخَيِّرَهُ

الله تعالی به د قیامت په ورځ باندې هغه سړی د خلکو مخې ته راولي او هغه ته به دا اختیار ورکړي چې کومه

فِي أَيِّ الْحُورِ شَاءَ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ أَبُو دَاوُدَ وَ قَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيث غَرِيب[2]

حوره وغواړي خوښه کړه. دا روایت ترمذي او ابو داؤد نقل کړیدیا و ترمذي ویلي دي چې دا حدیث غریب دی.

---

([1]) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۷۲ رقم الحديث ۲۵۰۷، وابن ماجه في ۲/۱۳۳۸ رقم الحديث ۴۰۳۲.

([2]) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۱۳۷ رقم الحديث ۴۷۷۷، والترمذي في السنن ۴/۳۲۶ رقم الحديث ۲۰۲۱.

وَفِي رِوَايَةٍ لِأَبِي دَاوُدَ عَنْ سُوَيْدِ بْنِ وَهْبٍ عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَبْنَاءِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او د ابو داؤد په يو روايت کې چې هغه يې د سويد بن وهب نه او هغه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د يو صحابي د ځوي نه نقل

عَنْ أَبِيهِ قَالَ: «مَلأَ الله قلبَه أَمْناً وإِيماناً»

کړيدی، دا الفاظ دي چې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا سې و فرمايل چې الله تعالى به د هغه سړي زړه د امن او امان نه ډک کړي

وَذُكِرَ حَدِيثُ سُوَيْدٍ: «مَنْ تَرَكَ لِبْسَ ثَوْبِ جمال» فِي «كتاب اللبَاس» [۱]

(ثوک چې خپله غصه وڅکي) او حضرت سويد دا روايت: من ترک لمس ثوب جمال په کتاب اللباس کې نقل شويدی.

## الفصل الثالث

## د اسلام بنياد شرم او حياء باندې دی

﴿۲۱﴾ عَنْ زَيْدِ بْنِ طَلْحَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ لِكُلِّ دِينٍ خُلُقًا

او حضرت زيد بن طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: هر دين او هر مذهب کې يو اخلاق دي.

وَخُلُقُ الْإِسْلَامِ الْحَيَاءُ» . رَوَاهُ مَالِكٌ مُرْسلا [۲] وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ [۳]

او د اسلام هغه اخلاق حياء ده. دا روايت مالک په طريې د ارسال سره نقل کړيدی. دغه شان ابن ماجه

وَالْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ» عَنْ أنس وَابْن عَبَّاس [۴]

او شعب الايمان کې بيهقی دا روايت د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل کړيدی.

**توضيح**: خلقًا: يعني د هر آسماني دين يو غالب مزاج وي. او د هغې يو بنيادي مقصد وي. د هغې يو خاص رجحان وي. او د هغې يو ښکاره صفت وي چې هغه په نورو صفتونو باندې غالب وي. په اسلام کې هغه صفت او طبيعت او هغه ميلان او رجحان حياء ده. اګر که په نورو مذهبونو کې هم د حياء حکم دی ليکن د اسلام غالب مزاج حياء ده. نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپل بعثت مقصد د ښه اخلاقو پوره والی وګرځولو. چې په هغې کې حياء سرفهرست ده. نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: **انما بعثت لاتمم مكارم الاخلاق**. يو حديث کې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارشاد و فرمايلو: **استحيوا من الله حق الحياء**. (مرقات ۸/۸۱۷)

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۶۱ رقم الحديث ۲۴۸۱.

(۲) أخرجه مالک في الموطا ۲/۹۰۵ رقم الحديث ۹ من كتاب حسن الخلق.

(۳) أخرجه ابن ماجه في ۲/۱۳۹۹ رقم الحديث ۲۱۸۱، وعن ابن عباس رقم الحديث ۴۱۸۲۲

(۴) أخرجه ابن ماجه في ۲/۱۳۹۹ رقم الحديث ۴۱۸۱، والبيهقي في الشعب ۶/۱۳۶ رقم الحديث ۷۷۱۶

خلاصه دا چې حیاء د انساني کارې لپاره د بریک او ټائر راډ په منزله دی. که بریک خراب شو نو دا معلومه نده چې کاړی به کوم کوم ځائې سره وجنګیږي، او تبذا و برباد به شي. نن سبا په دنیا کې د ټولو نه فحاش او بې حیاء قوم یهود او نصاری دي. چې هغوئ فحشې د مدهب په توګه باندې استعمالوي او نورو قومونو ته یې ورکوي. (مرقات ۸/۸۱۷)

## ایمان او حیاء لازم او ملزوم دي

﴿۲۲﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِنَّ الْحَيَاءَ وَالْإِيمَانَ قُرَنَاءُ

او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: حیا او ایمان د یو بل سره

جَمِيعًا فَإِذَا رفع أحدهما رفع الآخر»[1]

یو ځای کړی شوي دي لهذا کله چې څوک په دې کې د یو نه محروم کړی شي نو هغه د بل نه هم محرومه ساتلې

وَفِي رِوَايَةِ ابْنِ عَبَّاسٍ: «فَإِذَا سُلِبَ أَحَدُهُمَا

کیږي. او په یو بل روایت کې کوم چې د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه منقول دی، داسې دی چې په

تَبِعَهُ الْآخَرُ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ»[2]

دې دواړو کې کله یو لیرې کړی شي نو دویم هم ځي. (بیهقي په شعب الایمان کې نقل کړیدی)

## د خوش اخلاقۍ اهمیت

﴿۲۳﴾ وَعَن مُعَاذٍ قَالَ: كَانَ آخرُ مَا وَصَّانِي بِهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ما ته د کومو خبرو نصیحت او وصیت وکړو په

حِينَ وَضَعْتُ رِجْلِي

هغې کې د ټولو نه آخري وصیت کوم چې ما ته نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه وخت وفرمایلو چې ما د سپریدلو لپاره خپله خپه د اس په

فِي الْغَرْزِ أَنْ قَالَ: «يَا مُعَاذُ أَحْسِنْ خُلُقَكَ لِلنَّاسِ» . رَوَاهُ مَالِك[3]

رکاب کې ایخودلې وه چې معاذ! د خلکو د پوهنې او روزنې لپاره خوش اخلاقي خپله کړه. (مالک)

**توضیح**: رجلي: حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د یمن والي ټاکلی ؤ. د هغه د رخصتولو په وخت کې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دعادت نه خلاف د هغه سره داسې معامله وکړه چې دهغې مثال نشته. خپله

---

(۱) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۱۴۰ رقم الحديث ۷۷۲۷

(۲) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۱۴۰ رقم الحديث ۷۷۲۷

(۳) أخرجه مالک في الموطأ ۲/۹۰۲ رقم الحديث ۱ من كتاب حسن الخلق.

نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پیدل روان ؤ او هغه یې په اس باندې سپور کړو. او په تلو تلو کې هغه ته هغه نصیحتونه وکړل چې د هغې مثال نشته. لا تر وسه معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوره په اس باندې سپور ندی، خپه یې په رکاب باندې کیخودله. او نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یو ناشنا نصیحت ورته وکړ چې ای معاذ! د خلکو سره د پوهنې اوروزنې لپاره خپل اخلاق ښه ساته. دلته د خلکو نه مراد هغه خلک دی چې هغوې نصیحت قبلونکې وي. یا د هغې امید کیدلی شي. لیکن کوم خلک چې نصیحت ردّ کړي او دعوت حق مسترد کړي، د هغوې سره د تورې په ذریعه به خبره وي. وس به یې تورا پوهوي. او د هغوې روزنه به وس د جهاد په میدان کې کیږي. نو جهاد چې څنګه د مسلمانانو لپاره رحمت دی. دغه شان د کافرو لپاره هم رحمت دی. ځکه چې په دې سره کافرو ته هدایت ترلاسه کیږي. او مسلمانانو ته ثواب او نیکه معاشره ترلاسه کیږي. او دنیا ته امن ترلاسه شي. څنګه چې د اخلاقو په ځای باندې تورا استعمالول مناسب ندي . دغه شان دتورې په ځای اخلاق استعمالول مناسب ندي. کوم شاعر هم دغه خبره کړیده: (مرقات ۸/۸۱۹)

فوضع الندیٰ في موضع السیف بالعلٰی قبیح کوضع السیف في موضع الندیٰ

یعنې د تورې د استعمال په وخت کې احسان هم دغه شان بد دی لکه د احسان په ځای کې تورا استعمالول بد دي.

## د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بعثت مقصد د اخلاقو تکميل دی

| |
|---|
| ﴿۲۴﴾ وَعَنْ مَالِكٍ بَلَغَهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او د حضرت مالک نه منقول دي چې هغه ته دا حديث رارسيدلی دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: |
| «بُعِثْتُ لِأُتَمِّمَ حُسْنَ الْأَخْلَاقِ» |
| زه د ښه اخلاقو د تکميل لپاره دراليږلی شوی يم. يعنې په دې دنيا کې زما د بعثت يو عظيم مقصد دی چې انساني اخلاق او صفتونه |
| رَوَاهُ الْمُوَطَّأُ"[1] (وَرَوَاهُ أَحْمد عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ)[2] |
| بيان کړم او هغه د کمال درجې ته ورسوم (موطأ امام مالک) او احمد دا روايت د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل کړيدی. |

## شيشه کې د کتلو دعاء

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾ وَعَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا |
| او حضرت جعفر بن محمد د خپل پلار حضرت امام باقر نه روايت کوي چې هغه بيان کړل: رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې |
| نَظَرَ فِي الْمِرْآةِ قَالَ: «الْحَمْدُ لِلهِ الَّذِي حَسَّنَ خُلُقِي |
| به کله شيشه کتله نو فرمايې به يې چې ټول صفتونه خاص الله لره دي هغه الله چې هغه ماته بهترين تخليق |

[1] اخرجه مالک في الموطأ ۲/۹۰۴ رقم الحديث ۲ من کتاب حسن الخلق.

[2] اخرجه احمد في المسند ۲/۳۸۱.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَخَلْقِي | وَزَانَ | مِنِّي | مَا |

راکړی دی، زما اخلاق او کردار یې ښه جوړ کړي. او په ما کې یې هغه شیان کیخودل چې هغه زما په غیر کې

شَانَ مِنْ غَيْرِي» . رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ» مُرْسلا [1]

د عیب او نقصان سبب دی. دا روایت بیهقي په شعب الایمان کې په طریقې د ارسال سره نقل کړیدی.

**توضیح**: حسن خلق: انسان الله تعالی پیدا کړو او هغه یې اشرف المخلوقات جوړ کړو. او هغه یې په احسن تقویم کې کیخودلو سره ښایسته جوړ کړو. د دې تقاضا دا ده چې انسان کله په خپل تخلیق باندې نظر وکړي نو د خپل رب او پیدا کونکې شکریه ادا کړي. آئینه کې د کتلو په وخت کې پیغمبر اسلام ﷺ امت ته د دعاء تعلیم ورکړی دی. په دې کې هم دا حقیقت ښکاره کړی شویدی، دې لپاره چې انسان د آئینه کتلو په وخت کې نه خو په تکبر کې اخته شي او نه د تخلیق وروستنی حالت هیر کړي. د دې حدیث سره په راتلونکې حدیث کې هم د یو دعاء ذکر دی. نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ امت ته تعلیم ورکړی دی چې دا سې دعاء غواړی. د دې مطلب دا ندی چې نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ خپل ځان لپاره دعاء غواړي بلکې دامت د تعلیم لپاره یې الفاظ استعمال کړیدي. د راتلونکې حدیث تشریح او توضیح هم دا سې ده کومه چې پاس لیکلی شویده. (مرقات ۸/۸۲۰)

﴿۲۶﴾وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «اَللّٰهُمَّ

او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایي چې رسول الله ﷺ به (دا دعاء) فرمایله چې ای الله! تا زما

حَسَّنْتَ خَلْقِي فَأَحْسِنْ خُلُقِي» . رَوَاهُ أَحْمد [2]

بدنې تخلیق ښه کړیدی لهذا زما اخلاق هم ښه جوړ کړه. (احمد)

## اوږد عمر او ښه اخلاق بهترین شیان دي

﴿۲۷﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَلَا أُنَبِّئُكُمْ

او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل چې آیا زه تاسو ته و وایم چې

| | | | |
|---|---|---|---|
| بِخِيَارِكُمْ؟» | قَالُوا: | بَلَى. | قَالَ: |

په تاسو کې غوره خلک څوک دي؟ صحابو عرض وکړو چې هو! ضرور و وایه. نبي ﷺ وفرمایل:

(۱) اخرجه البيهقي في شعب الايمان ۱۱۱/۱۴ رقم الحديث ۴۴۵۹.

(۲) اخرجه احمد في المسند ۶/۶۸.

«خِيَارُكُمْ أَطْوَلُكُمْ أَعْمَارًا وَأَحْسَنُكُمْ أَخْلَاقًا» رَوَاهُ أَحْمد[1]

غوره خلک هغه دي چې هغوئ د اوږد عمر والا وي. او د ښه اخلاق چې ډير ښايسته دي. (احمد)

**توضيح**: د اوږد عمر فضيلت د هغه خلکو لپاره دی چې د هغوئ اعمال ښه وي. څومره چې عمر اوږد وي، ښه اعمال به ډير وي. دا د فائدي خبره ده. ليکن د کومو خلکو چې اعمال بد وي. د هغوئ عمرونه که اوږده شي نو په دې کې د فائدې په ځاې نقصان دی. بهرحال ښه اخلاق د ښه اعمالو يوه برخه ده.

## کامل مؤمن هغه دی چې د ښه اخلاق ښه وي

﴿۲۸﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَكْمَلُ الْمُؤْمِنِينَ إِيمَانًا

او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: په ايمان کې کامل ترين

أَحْسَنُهُمْ خُلُقًا». رَوَاهُ أَبُودَاوُد والدارمي[2]

خلک هغه دي د ښه چې اخلاق ښه دي. (ابوداؤد، دارمی)

**توضيح**: حسن الخلق: دا خبره په ذهن کې ساتل په کار دي چې په حديثونو کې د ښه اخلاقو څومره فضيلتونه راغلي دي، د هغې برعکس د بد اخلاقو هغومره بدي به وي. اګر که د بدی ذکر نه وي. ځکه: **وبضدها تتبين الاشياء**. (مرقات ۸/۸۲۲)

دلته يو څه الفاظ راغلي دي چې هغه د بيلا بيلو اکابرو د طرف نه د حسن خلق تعريف او تعارف دی:

(۱) قال الحسن البصرى رحمه الله: حسن الخلق بسط الوجه وبذل الندیٰ وكف الاذیٰ

(۲) وقال الواسطى رحمه الله: هو ان لايخاصم ولايخاصم من شدة معرفته بالله

(۳) وقال رحمه الله ايضًا: هو ارضاء الخلق في السراء والضراء

(۴) وقال سهل رحمه الله: ادنى حسن الخلق الاحتمال وترك المكافاة والرحمة للظالم والاستغفار له

## دريو غټې اهمې خبرې

﴿۲۹﴾وَعَنْهُ أَنَّ رَجُلًا شَتَمَ أَبَا بَكْرٍ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ

او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې (يوه ورځ) نبي عَلَيْهِ السَّلَام صحابو سره ناست وُ چې يو سړي حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته مرد بد

---

[1] اخرجه احمد في المسند ۲/۳۶۸.

[2] اخرجه ابوداود في السنن ۵/۶۰ رقم الحديث ۴۶۸۲، والدارمي في ۲/۴۱۵ رقم الحديث ۲۷۹۲، واحمد في المسند ۲/۲۵۰.

| | | |
|---|---|---|
| یَتَعَجَّبُ | وَيَتَبَسَّمُ | فَلَمَّا |

ویل شروع کړل. نبی علیه السلام (د غه سختې خبرې اوریدلو باندې) حیرت کولو او مسکا یې کوله. تردې چې کله هغه

أَكْثَرَ رَدَّ عَلَيْهِ بَعْضَ قَوْلِهِ

سرې پهردو بدو ویلو کې د حد نه واوړیدلو نو ابوبکر رضي الله عنه هم د هغه د ځینو خبرو جواب ورکړو (یعنې هغه هم د غه سړې ته

فَغَضِبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَامَ

په جواب کې ردبد وویله) په دې باندې نبی علیه السلام خفه شو، او د هغه ځای نه پاڅیدلو. نبی علیه السلام پسې شاته

فَلَحِقَهُ أَبُو بَكْرٍ وَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ

ابوبکر رضي الله عنهم راغلی. او نبی علیه السلام خدمت کې حاضریدلو باندې یې عرض وکړو یارسول الله صلى الله عليه وسلم!

كَانَ يَشْتُمُنِي وَأَنْتَ جَالِسٌ فَلَمَّا رَدَدْتُ عَلَيْهِ

کله هغه سړې ماته ردبد ویله نو ته هلته ناست وې. لیکن کله چې ما د هغه د خبرو جواب ورکړو (او د هغه

بَعْضَ قَوْلِهِ غَضِبْتَ وَقُمْتَ.

په الفاظو کې مې په بل انداز باندې هغه ته رد بد وویله، نو ته خفه شوې او د هغه ځای نه پاڅیدلې.

قَالَ: «كَانَ مَعَكَ مَلَكٌ

نبی صلى الله عليه وسلم وفرمایل: اصل خبره دا ده چې ترڅو پورې ته چپ وې نو) ستا سره فرښته وه چې (ستا د اړخ نه یې)

يَرُدُّ عَلَيْهِ فَلَمَّا رَدَدْتَ عَلَيْهِ

هغې ته جواب ورکولو. خو کله چې تا خپله جواب ورکړو (او د غه شان د نفس د خواهش عمل یکې رانوتلو)

وَقَعَ الشَّيْطَانُ». ثُمَّ قَالَ: " يَا أَبَا بَكْرٍ ثَلَاثٌ كُلُّهُنَّ حَقٌّ:

نو شیطان مینځ ته راو دانګل. بیا یې وفرمایل: ابوبکر! درې خبرې دې هغه ټولې حق دي. یو خو دا چې

مَا مِنْ عَبْدٍ ظُلِمَ بِمَظْلِمَةٍ فِي غضي عَنْهَا لِلّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ

کله بنده د چا د ظلم ښکار شي او فقط د الله لپاره د هغه ظالم نه چشم پوشي کوي، نو الله تعالی په دې بناء

إِلَّا أَعَزَّ اللهُ بِهَا نَصْرَهُ وَمَا فَتَحَ رَجُلٌ

باندې په دنیا او آخرت کې هغه سړی قوي او مضبوط جوړوي. دویم دا چې کوم بنده چې هم د خپلې

بَابَ عَطِيَّةٍ يُرِيدُ بِهَا صِلَةً

عطاء او ښښنې دروازه برسیرته کړي دې لپاره چې د هغې په ذریعه سره خپلو خپلوانو او مسکینانو سره

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِلَّا | زَادَ | اللهُ | بِهَا | كَثْرَةً |

حسن او نیک ښوي وکړي نو الله تعالی د دغه د ورکړي او ښښني په وجه باندي د دغه مال دولت کي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَا | فَتَحَ | رَجُلٌ | بَابَ | مَسْأَلَةٍ | يُرِيدُ | بِهَا |

ډيروالی کوي. او دريم دا چي کوم سړی د سوال او فقيری دروازه برسيرته کړي دي لپاره چي دغي په

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| كَثْرَةً | إِلَّا | زَادَ | اللهُ | بِهَا | قِلَّةً | ". | رَوَاهُ أَحْمد [1] |

ذريعه سره دولت راټول کړي، نو الله تعالی د دې سوالګري په ذريعه دغه مال او دولت نور هم کموي.

## په اصولي توګه باندي په نرمۍ کي فائده او په سختۍ کي نقصان دی

﴿۲۰﴾وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يُرِيدُ اللهُ بِأَهْلِ بَيْتٍ

او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: الله تعالی چي د کوم کور خلکو لپاره

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| رِفْقًا | إِلَّا | نَفَعَهُمْ | وَلَا | يَحْرِمُهُمْ |

نرمي او مهرباني خوښوي، دغي په ذريعه هغوي ته فائده رسوي. او کوم کور خلکو لره چي د نرمۍ او

إِيَّاهُ إِلَّا ضَرَّهُمْ ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي » شُعَبِ الْإِيمَانِ "[2]

مهرباني نه محرومه ساتي دغي په ذريعه هغوي ته نقصان رسوي.



(1) اخرجه احمد في المسند ۲/۴۳۶.

(2) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۳۳۷ رقم الحديث ۸۴۱۸.

۱۹ ربيع الثاني ۱۴۱۸ھ

# باب الغضب والكبر
## غصه او دتکبر بيان

قال الله تعالیٰ: ﴿وَالْكٰظِمِيْنَ الْغَيْظَ وَالْعَافِيْنَ عَنِ النَّاسِ وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ﴾(ال عمران: ۱۳۴)

غضب د هغه شيطاني تيختې او راپارولو نوم دی چې دهغې په وجه باندې انسان ظاهري او باطني اعتبار سره خپل طبعي مزاج او د اعتدال د حدودو نه ووځي. چې د هغې په نتيجه کې دا انسان داسې بې مقصده او بد کارونو کړل وکړي چې هغه نه په شريعت کې جائز دي او نه په عرف کې هغه خوښول کيږي. بيا هم دا جنوني کيفيت انسان د مغضوب عليه نه دانتقام اړخ ته متوجې کوي. او دا په هغه باندې بريد کونکی شي. غضب د دې جنوني کيفيت اثر دهغه سرې په مخ باندې هم ښکاره شي نو دهغه مخ سُور شي. او د مرۍ رګونه يې وپړسيږي. ځينو وختونو کې دا جنوني کيفيت دومره ډير شي چې سړی مړ شي . د غضب مقابل حلم (صبر) دی. چې هغه برداشت، سنجيدګۍ او د وقار نوم دی. چې دهغې تفصيل مخکې تير شويدی. په دې خبره ښه پوهيدل پکار دي چې غضب په خپل ذات کې څه بد خصلت ندی. چې ديته اصلًا قبيح ووېلی شي. بلکې غضب خو دانسانې کمال يو برخه ده . خو د غضب د استعمال د وجې نه په دې کې بدي راشي. مثلًا يو سړی حق پريخودلو سره د باطل په ملاتړ کې غضب استعمال کړي. احکام شرعيه د خپو لاندې کړي. په عصبيت او ظلم او زياتي کې غضب استعمالوي. نو دا يو بد خصلت او د شريعت ذ مخې مذموم حرکت دی. ليکن که هم دا غضب يو سړی د حق په ملاتړ کې استعمال کړي نو دا غضب نهايت محمود او خوښ شوی صفت دی. هم دا وجه ده چې شريعت انسانې غضب لره ختمول غواړي. بلکې دې لره د اعتدال په لاره باندې راوستلو سره د دې اصلاح کوي. او دا قوت غضبيه د شريعت تابع جوړول غواړي. الله تعالی نباتات او جمادات د قوت غضبيه نه محروم ساتلي دي. د دېنه علاوه هر انسان او حيوان کې د غضب يوه ماده يې ايخودلې ده. ځومره حيوانات چې دي په هغې کې د غضب قوت شته دی. او هغې د استعمال لپاره دهغوې سره مناسب آلات او وسله هم شته دی. نو د خپل دفاع لپاره مارغانو سره پنجې او مکوخي شته دی. درندګانو سره د برچې په شان نوکان او جامه شته دی. غوا او ميخې سره ښکرونه شته دی. د چا سره چې ښکرونه نشته نو د هغوې سره خپې دي چې هغه د دفاع کار کوي. لکه خر، اس ، قچر، فيل (هاتهی) او اوښ سره جامه ده. چې په هغې سره هغوې د مضبوط نه مضبوط شی ميده کوي. د مار سره په ظاهره باندې که هيڅ هم نشته نو الله تعالی د دفاع لپاره هغې ته داسې زهر ورکړي دي چې په هغې سره هغه شير هم وژني او انسان په زورولو سره وژني. لړم او د شهدو مچې ته الله تعالی د ټک ورکولو لپاره انډوسی ورکړی دی. تردې چې مچ ته يې د احساس داسې آله ورکړيده چې هغه

په سیکنډونو کې د انسان د مضبوطې څرمنې نه وینه روانوي. لهذا دا چې الله تعالی کله انسان ته د ... قوت ورکړیدی نو د دفاع لپاره یې آلات هم ورکړیدي. انسان ته یې عقل ورکړیدی. چې دهغې په ...ریعه سره هغه د خپلې دفاع لپاره ناشنا ناشنا حیلې جوړوي. او هغه په کار راولي. لکه تیري غوڅونکې آلې، ګولی، او راکټې او میزائل دي. خلاصه دا چې شریعت د قوت غضبیه اصلاح کوي. هغه نه ختموي. والکبر: په اصل کې د کبر معنی لویې ده . یعنې خپل ځان داسې غټ ګڼل چې په هغې سره په زړه او په مازغو کې ځان خوښې، چې دهغې په نیتجه کې سړی نورو ته سپک او ذلیل وګڼي او د حق په ردولو ته تیار شي. په انسان کې خو ذاتي او حقیقي لویې نشته دی. نو ځکه هغه ته کبر او شیخې کولو نه منع شویده. د انسان حقیقت خو دا دی چې :

مـا للـتراب وللعلـوم وانـمـا یسعٰی لیعلم انه لا یعلم

الله تعالی خو د ذاتي لویې مالک دی. هغه المستجمع لجمیع الصفات الکمال دی. نو ځکه کبریائې او لویې دهغه سره خاص ده. هغه الجبار المتکبر دی. هغه اعلان کړیدی: **الکبریاء ردائی والعظمة ازاری فمن نازعنی فیهما قذفته النار.**

د دې وجې نه انسان لره د لویې په میدان کې د قدم کیخودلو نه منع کړې شویدی. او هغه ته د تواضع او عاجزۍ تعلیم ورکړې شویدی. که په کوم انسان کې عطائې فضیلتونه وي. په هغې باندې هغه شکر خو کولی شي لیکن د لویې دعوٰی نشي کولی. خلک که هغه لویې ګڼي نو دا د الله تعالی د اړخ نه دهغه قبولیت دی. لکه په یو دعاء کې دي: ﴿**اَللّٰهم اجعلنی فی عینی صغیرًا وفی اعین الناس کبیرا**﴾ بهرحال استکبار او ذلت او صغار دواړه منع دي. په تواضع کې درمیانوالی او اعتدال دی. د نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ښودنو کې دغصې د یخولو علاج هم شته دی چې په غصه کې اخته سړی دې غسل وکړي یا اودس دې وکړي یا دې یخي اوبه استعمال کړي. یا دې اعوذبالله ووایې، که ولاړ وي نو کیدیني، که ناست وي نو پرې دې وځي، یا دې په عکس دې وکړي، ځکه چې د حالت په دبدلولو سره غصه ختمیږي. (مرقات ۸/۸۲۵)

## الفصل الاول

## غصې کولو نه د ځان ساتلو تاکید

| ﴿۱﴾ عَن أَبِي هريرةَ أَنَّ رَجُلًا قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسلم: أَوصِنِي. |
|---|
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې یو سړی رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته عرض وکړو چې ما ته څه نصیحت وکړه. |

| قَالَ: «لَا تغضبْ». فردَّ ذَلِكَ مِرَارًا قَالَ: «لَا تَغْضَبْ» . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ [۱] |
|---|
| نبی عَلَیۡهِ السَّلَام وفرمایل: غصه مکوه، هغه سړي دا خبره څو ځل وکړه او نبي عَلَیۡهِ السَّلَام ورته هر ځل دا وفرمایل چې غصه مکوه. |

**توضیح: لاتغضب:** هغه سړي ته نبی صَلَّی اللهُ عَلَیۡهِ وَسَلَّمَ بیا بیا وفرمایل چې غصه مکوه. د دې ند [illegible] مه شوه چې په دغه سړي کې د صبر کمزوري وه. او د غضب ماده ورپکې ډیره وه. دې سړي بیا بیا درخواست کولو چې ای د الله رسول صَلَّی اللهُ عَلَیۡهِ وَسَلَّمَ ما ته څه وصیت او نصیحت وکړه. خو نبی صَلَّی اللهُ عَلَیۡهِ وَسَلَّمَ بیابیا تاکید وکړو چې غصه مکوه. ځکه چې په حقیقت کې غضب د عقل د مغلوبیت نوم دی. او کله چې عقل مغلوبه شي نو دا یوه بدي ده. بلکې د ټولو بدیو جرړه ده. کله چې عقل مغلوبه شي نو بیا څه پاتې شول؟ ګویا د هغه سړي لپاره غټ نصیحت داؤ چې غصه مه کوه ته چې کله غصه نکوي نو دین او دنیا فائدي به ومومې. (مرقات ۸/۸۲۵)

## غصه قابو کونکی اصل پهلوان دی

| ﴿۲﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَيْسَ الشَّدِيدُ بِالصُّرَعَةِ |
|---|
| او حضرت ابو هریره رَضِیَ اللهُ عَنۡهُ فرمایې چې رسول الله صَلَّی اللهُ عَلَیۡهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: طاقتور او پهلوان هغه سړی ندی چې هغه خلک |
| إِنَّمَا الشَّدِيدُ الَّذِي يَمْلِكُ نَفْسَهُ عِنْدَ الْغَضَبِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ [۲] |
| راځملوي بلکې طاقتور او پهلوان هغه سړی دی چې هغه د غصې په وخت کې خپله ځان قابو کړي. (بخاري او مسلم) |

**توضیح: یملك نفسه:** یعنې دا څه کمال ندی چې څوک په ګُشتۍ کې راګوزار کړي. یا د لاس زور کې غلبه ترلاسه کړی شي او د پهلوانۍ تمغه ورکړی شي. لیکن د غصی او غضب په وخت کې هغه سړی مغلوب الحال کیدلو باندې د قابو نه بیرون ووځي او اول بنه پوره بی ځایه وګړیګي او جنګ شروع کړي. د پهلوانۍ په زور کولو کې خو هغه مضبوط ؤ خو د غصې د لاسه یې ماتې وخوړله.

په ګلستان سعدي کې سعدي بابا رحمه الله یوه قصه لیکلي ده چې یو پهلوان د غصې نه مغلوبه کیدلو باندې اول بنه بی ځایه وغریدلو. سترګې یې سرې شوې، د مرۍ رګونه یې وپړسیدل. او مخ یې سور شوی ؤ. بابا سعدي پوښتنه وکړه چې دا سړی څوک دی. او په ده باندې څه شویدي. خلکو ورته وویل چې دا پهلوان دی، چا په غصه کړیدی. نو ځکه یې دا حالت جوړ شویدی. باباسعدی وفرمایل: عجیبه پهلوان دی چې د طاقت ازمایلو کې خو ثابت قدم وي لیکن د ژبې د لږې شان خبرې مخې ته پر مخې رالویدلی دی.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۵۱۹ رقم الحديث ۶۱۱۶، والترمذي في السنن ۴/۳۲۱ رقم ۲۰۲۰، ومالك في الموطأ ۲/۹۰۵ رقم ۱۱

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۵۱۸ رقم الحديث ۶۱۱۴، ومسلم في ۴/۲۰۱۴ رقم الحديث (۲۶۰۹-۱۰۷)

په دې حديث کې نبی صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ظاهرې قوت په ځای باندې باطني قوت اصل ګرځولی دی. او دنيوي قوت په ځای باندې د دين قوت اصل ګرځولی دی. الشديد نه مراد پهلوان دی.
**بالصرعة**:صرعه کشتۍ او غیر نیولو ته وایي. (مرقات ۸/۸۲۶)

## د جنتي او دوزخي خلکو نښې

﴿۲﴾ وَعَنْ حَارِثَةَ بْنِ وَهْبٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَلَا أُخْبِرُكُمْ
او حضرت حارثه بن وهب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: آيا زه جنتيان درته ووايم. يعنې ايا زه دا ووايم چې کوم
بِأَهْلِ الْجَنَّةِ؟ كُلُّ ضَعِيفٍ
خلک جنتيان دي؟ (نو واورئ) هر هغه ضعيف سړی (جنتي دی) چې هغه لره خلک ضعيف او سپک وګڼي (او د هغې وجې نه هغه
مُتَضَعِّفٍ لَوْ أَقْسَمَ
سره د جبر او تکبر معامله وکړي، حالانکې) په حقيقت کې هغه د الله په نزد باندې دومره وچته مرتبه لري) که
عَلَى اللهِ لَأَبَرَّهُ. أَلَا
هغه د الله په توکل باندې په يو کومه خبره قسم وکړي نو الله تعالی به هغه قسم رښتيا کړي. او آيا زه تاسو ته هغه
أُخْبِرُكُمْ بِأَهْلِ النَّارِ؟ كُلُّ عُتُلٍّ
خلک ووايم چې هغه دوزخيان دي؟ (نو واورئ) هر هغه سړی چې هغه په دروغو او لغو خبرو باندې سخته وينا
جَوَّاظٍ . مُسْتَكْبِرٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَفِي رِوَايَةٍ مُسْلِمٍ:
کونکی جګړالو وي، مال جمع کونکی بخيل وي او تکبر کونکی وي (بخاري او مسلم) او د مسلم په يو
«كل جواظ زنيم متكبر»[1]
روايت کې دا الفاظ دي چې هر هغه سړی چې هغه مال جمع کونکی، حرموني او تکبر کونکی وي.

**توضيح**: ضعيف خو کمزوري ته وايي. ليکن متضعف هغه ته وايي چې هغه خپله کمزوری نه وي ليکن خلک هغه سپک او کمزوری ګڼي. مطلب دا چې دا کمزوری او ګمنام وي. نه غرور والا وي، نه تکبر والا وي. دا جنتي سړی دی. (مرقات ۸/۸۲۷)

**لَوْ أَقْسَمَ**: يعنې که هغه په کومه خبره باندې قسم وخوري چې دا کار به داسې کيږي نو الله تعالی د هغه عزت ساتي. لکه څنګه چې حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قسم خوړلی ؤ چې د هغې د ترور غاښونه به نه شي

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۸/۶۶۳ رقم الحديث ۴۹۱۸،ومسلم في ۴/۲۱۹۰ رقم الحديث (۲۸۵۳-۴۶)

ماتیدلی، بیا هم هغه شان وشوه.

**عتل:** ډیر سرکشه او جګړالو ته ویل کیږي. جواظ: د دې یوه تشریح دا هم ده چې: ای جمع ومنع. متکبر او سخت متکبر مراد دی. مخکې یې تشریح شویده. (مرقات ۸/۸۲۷)

**زنیم:** بدنام او ولدزنا ته زنیم وایي. په شر باندې مشهور ته هم وایې. دقرآن آیت دی: ﴿عُتُلٍّ بَعْدَ ذَٰلِكَ زَنِيمٍ﴾ (القلم: ۱۳)

## تکبر کونکی سړی به جنت ته نه داخلیږي

| |
|---|
| ﴿۴﴾وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا يَدْخُلُ النَّارَ |
| او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: هغه سړی به (دهمیشه لپاره) دوزخ |
| أحد فِي قلبه مِثْقَالُ حَبَّةٍ خَرْدَلٍ مِنْ إِيمَانٍ. وَلَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ أَحَدٌ فِي قَلْبِهِ |
| ته نه ځي چې دهغه په زړه کې د ګدن د داني هومره هم ایمان وي. او هغه سړی به جنت ته نه ځي چې دهغه |
| مِثْقَالُ حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ مِنْ كِبرٍ». رَوَاهُ مُسلِم[1] |
| په زړه کې د ګدن د داني هومره هم تکبر وي. (مسلم) |

**توضیح:** لایدخل: د دې حدیث مطلب دا دی که د چا په زړه کې د یو ذري برابر ایمان وي، هغه به د دوزخ نه راوویستلی شي. د کافر په شان به همیشه دننه نوي. دغه شان د کوم سړي په زړه کې چې یوه ذره تکبر وي هغه سړی به جنت ته نه ځي. د دې جملې مطلب دا دی چې کبر او تکبر نه دلته کفر او شرک مراد دی. لکه په راتلونکې حدیث نمبر ۵ کې راروان دي. کوم سړی چې حق لره ردوي. هغه مسلمان چیرته پاتې کیدلی شي. د ذې جدیث دویم مطلب دا دی چې دلته د کبر نه کفر مراد ندی بلکې ځان خوښي، لویې او غرور مراد دی. نو د دې حاصل دا راووتلو چې دا سړی ګناهګار دی. په دخول اوّلي سره به جنت ته نه ځي. البته د سزا خوړلو نه وروسته به جنت ته ځي. (مرقات ۸/۸۲۸)

## دتکبر حقیقت او ماهیت

| |
|---|
| ﴿۵﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ |
| او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې رسو الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: هغه سړی به جنت ته نه داخلیږي، |
| مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ مِنَ كِبْرٍ». فَقَالَ رَجُلٌ: إِنَّ الرَّجُلَ |
| د چا په زړه کې چې د ذرې برابر هم تکبر وي. (دې اوریدلو سره) یو سړي عرض وکړو چې یو سړی |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۹۳ رقم الحديث (۹۱-۱۲۸) وأبوداود في السنن ۴/۳۵۱ رقم الحديث ۴۰۹۱.

| | | | |
|---|---|---|---|
| يُحِبُّ | أَنْ | يَكُونَ | ثَوْبُهُ حَسَنًا |
| دا خوښوي چې د هغه جامه دې ښايسته وي، او د هغه پیزار دې ښايسته وي (او هغه د خپلې دې خوښې | | | |
| وَنَعْلُهُ | حَسَنًا. | | قَالَ: |
| له وجې نه ښه جامه اغوندي او ښه پيزار استعمالوي نو آيا دې ته تکبر ویلی کیږي؟) نبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: | | | |
| «إِنَّ اللهَ تَعَالَى | جَمِيلٌ | يُحِبُّ الْجَمَالَ. | الْكِبْرُ |
| الله تعالی جمیل یعنې ښه او ښایسته دی او جمال یعنې ښه والی او ښایست خوښوي. او تکبر دا دی | | | |
| بَطَرُ الْحَقِّ | وَغَمْطُ | النَّاسِ». | رَوَاهُ مُسلم[1] |
| چې د حق خبره په مستۍ سره ومنلې شي او خلک سپک او ذلیله وګڼلی شي. | | | |

**توضيح:** ثوبه حسنًا: د پوښتنه کونکې مطلب دا ؤ چې ښې جامې او ښه پیزار او ښه استوګنه هر مسلمان خوښوي نو آیا دا هم د تکبر په کړه کې راځي؟ نبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په جواب کې و فرمایل چې نا! دا خو زینت او جمال دی. او جمال الله تعالی خوښوي. تکبر دا دی چې سړی د حق خبره رد کړي. او خلک سپک او ذلیله ګڼلو باندې لیري وزغلوي. یعنې اصل تکبر د هغه خودپسندۍ او غرور نوم دی چې هغه انسان د حق نه واوړوي او د سمې لارې نه یې خطا کړي. (مرقات ۸/۸۲۹)

**جمیل:** باطنې ښه والي او ښه صفتونو باندې د جمال لفظ ویلی کیږي. ګویا د جمال تعلق د باطنې ښه والي سره دی. ځکه د دې اطلاق په الله تعالی باندې کیږي. الله جمیل ویلی شي لیکن د حسن تعلق د ظاهرې بدني اندامونو د تناسب سره دی. ځکه د دې اطلاق په الله تعالی باندې نه کیږي او الله حسین ویل جائز ندي. (مرقات ۸/۸۲۹)

## درې غټ بدبخته خلک

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: | قَالَ رَسُولُ اللهِ، صَلَّى اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: | «ثَلَاثَةٌ |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمای چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: درې کسان دي چې د هغوی سره | | | |
| لَا يُكَلِّمُهُمُ اللهُ | يَوْمَ الْقِيَامَةِ | وَلَا يُزَكِّيهِمْ». | وَفِي رِوَايَةٍ: " |
| به د قیامت په ورځ باندې الله تعالی خبرې نکوي. او نه به د هغوی ستاینه کوي. او په یو روایت کې دا | | | |
| وَلَا | يَنْظُرُ | إِلَيْهِمْ | وَلَهُمْ |
| الفاظ هم دي چې او نه به د هغوی اړخ ته (د رحمت او عنایت په نظر سره) وګوري او د هغوی لپاره به | | | |

[1] أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۹۳ رقم الحديث (۹۱-۱۴۷) وابوداود في السنن ۴/۳۵۱ رقم الحديث ۴۰۹۱.

| عَذَابٌ أَلِيمٌ: شَيْخٌ زَانٍ وَمَلِكٌ كَذَّابٌ وَعَائِلٌ مُسْتَكْبِرٌ". رَوَاهُ مُسلم [۱] |
|---|
| دردناک عذاب وي. يو خو بوډا زناکار، دويم دروغژن باچا، او دريم تکبر کونکی غريب. (مسلم) |

**توضيح**: ثلاثة: يعنې درې قسمه خلک داسې دي چې د قيامت په ورځ به الله تعالی نه دهغوی سره خبري وکړي او نه به د هغوی اړخ ته د رحمت په نظر سره وګوري بلکې د هغوی لپاره به دردناک عذاب وي. دوی به پسخيږي چې الله تعالی هغوی ته وګوري او دهغوی سره خبري وکړي. ليکن هغوی به د رحمت د دې ميدان نه ليري وساتلی شي. شيخ زان: په دې درې واړو کې يو قسم خلک هغه دي. چې خپله به بوډا کان شوي وي خو بيا به هم په زنا کې اخته وي. دبوډا زنا کار ګناه ځکه ډيره ده چې په ځوانۍ کې دشهوت جنون او مستي وي، جوش او جذبه او نارينه قوت مجبورول کوي. نو اګرکه په ځوانۍ کې هم زنا کول ګناه ده خو څه مجبوري هم ده. ليکن په بوډاوالي کې شهوانی قوت کمزوری کيږي. په بوډا کې شهوانی قوت هم غالب پاتې نوي. قبر هم نژدې دی. په داسې حالت کې زنا کول فقط خباثت نفسي دی ، نه دا چې غلبه جنسي ده. وملک كذاب: دروغ ويل د هر سړي لپاره ګناه ده ليکن د باچا لپاره د نورو نه ډيره ګناه ځکه ده چې د باچا د وجې نه به ولس په دروغ باندې اخته شي. دويمه خبره دا ده چې د باچا څه مجبوري نشته دی. هغه خپلواکه وي. هغه ته څه اړتيا نه وي نو سره د خپلواک کيدلو او غير مجبور کيدلو بی ضرورته دروغ ويل د دروغو د عام ګناه نه لويې خباثت دی. وعائل مستکبر: عائل د اهل و عيال والا فقيرته وايې. وس يو سړی فقير هم دی. عيال دار هم دی. ددې مجبورۍ او احتياج باوجود هغه زکوة صدقات اخستلو نه انکار کوي. خپل ځان او خپل اهل او عيال هلاکت کې غورزوي. او دا هر څه د داسې تکبر په بنياد باندې کوي چې هلته د تکبر څه ځای نشته دی. نو ځکه دا ګناه د دغه شان نورو ګناهونو نه لويه ده. د سوال کولو او زکوة اخستلو نه خپل ځان ساتل يو ښه عمل دی. ليکن دغه شان د احتياج باوجود لره د تکبر او غرور د وجې نه پټول نوره ګناه ده. نو ځکه د ده ګناه ډيره ده. فقر او فاقه د الله تعالی د اړخ نه ده. او زکوة د هم دغه فقيرانو حق دی ، بيا په دې کې تکبر کول ډير بد دي. (مرقات ۸۳۱، ۸۳۰/۸)

## لويي او کبريائي فقط د الله تعالی د شان سره ښايي

| ﴿۷﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " يَقُولُ اللهُ تَعَالَى: الْكِبْرِيَاءُ |
|---|
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: الله تعالی فرمايي چې ذاتي لويي |
| رِدَائِي وَالْعَظَمَةُ إِزَارِي فَمَنْ نَازَعَنِي وَاحِدًا مِنْهُمَا |
| زما څادر دی او صفاتي عظمت زما تهبند دی. نو کوم سړی چې په دې کې زما سره مقابله کوي نو زه به هغه |

[۱] أخرجه مسلم في ۱/۱۰۲ رقم الحديث (۱۰۷-۱۷۲) وأبوداود في السنن ۳/۷۴۹ رقم الحديث ۳۴۷۵.

| أَدْخَلْتُهُ النَّارَ "وَفِي رِوَايَةٍ: «قَذَفْتُهُ فِي النَّارِ» . رَوَاهُ مُسلم [1] |
|---|
| او ورته دننه کړم او په یو روایت کې دا الفاظ دي چې زه به هغه اور ته ګوزار کړم. (روایت کړي دي مسلم) |

**توضیح**: الکبریاء ردائی: یعني دا زما ذاتي حق دی. نو کوم سړی چې په دې کې زما سره مقابله کوي چې زما په ذاتې وچتوالې او صفاتی عظمتونو کې دخله کوي. نو زه به داسې سړی دوزخ کې واچوم. په دې حدیث کې یو لفظ د الکبریاء دی. دویم العظمة دی. ځینو علماؤ دې لره مترادف الفاظ ګرځولو باندې په یوه معنی حمل کړیدی. لیکن ځینو نورو علماؤ لکه ملا علی قاری او علامه طیبی فرمایې چې الکبریاء هغه لویې ته وایې چې د هغې تعلق د ذات سره وي او مخلوق هغه کما حقه نه پیژني او عظمت هغه لویې ته وایې چې هغه د الله تعالی د صفت سره متعلق وي او مخلوق هغه پیژني. نو دا الله تعالی لویې د دې کائنات په وجو سره ټول مخلوق پیژني. د دې فرق په وجه باندې د کبریا نسبت څادر اړخ ته شویدیاو د عظمت نسبت تهبند (لنګ) ته شویدی. او څادر په نسبت سره ازار ته اعلی او ارفع وي. رداء او ازار الفاظ د متشابهاتو نه دي. د دې ترجمه به په ما یلیق بشانه سره وي.

نازعنی: یعني کوم سړی چې زما ذاتی یا اضافې لویې کې د شریکیدلو کوښښ کوي او په زوره اخستنه کوي، نو زه هغه دوزخ کې اچوم. (مرقات ۸/۸۳۱)

دا حدیث د متشابهاتو د قسم نه دی. د سلف صالحینو په نزد دالفاظو به هغه ترجمه وي کومه چې ده لیکن ما یلیق بشانه لګولو سره حقیقت به الله تعالی ته سپارل وي. خو متاخرینو د څه تاویلاتو نه کار اخستلی دی. لیکن د سلفو په نزد دې ضرورت نشته دی.

## الفصل الثاني

## خودپسندۍ تباهی ده

| ﴿۸﴾عَن سَلَمَةَ بْنِ الأَكْوَعِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا يَزَالُ الرَّجُلُ |
|---|
| حضرت سلمه بن اکوع رضی الله عنه فرمایې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل: یو سړی همیشه خپل |
| يَذْهَبُ بِنَفْسِهِ حَتَّى يُكْتَبَ فِي الْجَبَّارِينَ |
| ځان راکاږي تر دې چې د هغه نوم په سرکشانو :ې یعني ظالم او متکبر خلکو په فهرست کې ولیکلی شي. |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۲۳ رقم الحديث (۲۶۲۰-۱۳۶) وابن ماجه في السنن ۲/۱۳۹۷ رقم الحديث ۴۱۷۴.

| فَيُصِيبَهُ مَا أَصَابَهُمْ » . رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ [1] |
|---|
| او بیا کوم شی چې دنیا او آخرت د مصیبت او بلا نه سرکشانو ته رسیږي، هغه دغه سړي ته هم رسیږي. (ترمذی) |

**توضیح**: یذهب بنفسه: مطلب دا دی چې دا سړی مسلسل د ځان خوښي کې اخته وي. غرور او تکبر چې دا چیرته بوتلل غواړي، بوځي یې. نو دغه شان هغه په ځان خوښۍ او لویې کې د حد نه تیر شي نو دالله تعالی په نزد باندې هغه متکبرینو او سرکشو خلکو په لسته کې ولیکلی شي. بیا الله تعالی هغه دوزخ کې واچوي. معلومه شوه چې ځان خوښي او غرور او تکبر غټه تباهي ده. (مرقات ۸/۸۳۲)

## دقیامت په ورځ به متکبرین د میږانو په شان ذلیله وي

| ﴿۹﴾عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه نه او هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي چې |
| قَالَ: " يُحْشَرُ الْمُتَكَبِّرُونَ أَمْثَالَ الذَّرِّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِي صُوَرِ الرِّجَالِ |
| نبی صلی الله علیه وسلم و فرمایل: دقیامت په ورځ به تکبر کونکو لره د میږانو په شان د سړو په صورت کې یو ځای ته |
| يَغْشَاهُمُ الذُّلُّ مِنْ كُلِّ مَكَانٍ |
| راغونډ کړی شي او د هر اړخ نه به ذلت او خواري هغوی په پوره توګه سره راګیر کړي. بیا به هغوی د جهنم یو |
| يُسَاقُونَ إِلَى سِجْنٍ فِي جَهَنَّمَ يُسَمَّى: بُولَسُ تَعْلُوهُمْ |
| محبس (قید خانه) اړخ ته چې د هغې نوم بولس دی، وشړلی شي. هلته به د اورونو اور په هغوی باندې |
| نَارُ الْأَنْيَارِ يُسْقَوْنَ مِنْ عُصَارَةِ أَهْلِ النَّارِ |
| راخپور شي. او د دوزخیانو زبیخنه یعنې دوزخیانو د بدن نه بهیدونکې وینې زوې به هغوی باندې |
| طِينَةَ الْخَبَالِ ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ [2] |
| څکولی کیږي. چې د هغې نوم طینت الخبال دی. (ترمذی) |

**توضیح**: الذر: کوچنې میږي ته الذر وایې. کوم خلک چې په دنیا کې تکبر کوي. هغوی په حقیقت کې خپل ځان لویې ګڼي. لهذا دغه شان خلک به د قیامت په ورځ باندې ذلیل او خوار کولو سره دومره واړه کړی شي څنګه چې په زمکه باندې ګرځیدونکې واړه سره شان میږان وي. دا جزا او سزا د هغه فعل سره بیخي مناسب ده. یوه قصه مونږ اوریدلي ده چې په هندوستان کې یو ډیر ښایسته

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۱۸ رقم الحديث ۲۰۰۰

(۲) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۶۵ رقم الحديث ۲/۱۷۹ ،وأحمد في المسند۲/۱۷۹.

ځوانۍ. ځا هغه ولیدلو ن حیران شو چې دا څومره ښایسته دی. نو ده د هغه نه پوښتنه وکړه چې ستا شکل او صورت ته کتلو سره ماته تعجب کیږي. دې زلمي د تکبر په توګه باندې وویله که تاته تعجب کیږي نو په دې کې د تعجب څه خبره ده زما شکل ته په کتلو سره الله تعالی ته هم تعجب کیږي. دا وینا وه چې الله تعالی هغه د میږي برابر کړو او ذلیل یې پریخودلو. (دالله تعالی پناه) دا خبره د یاد ساتلو ده چې په میدان حشر کې مختلف حالات دي. د عذاب او سزا دا صورت به هم کله راځي او کله جسمونه به غټ شي، په دې کې هیڅ تعارض نشته دی.

بولس: با باندې ضمه او فتحه دواړه دي. په دوزخ کې دننه د یو خاص محبس او کوټګۍ نوم دی. د دې لفظي لغوي مفهوم ناامیدي او حیرانتیا ده. د شیطان نوم ابلیس هم د دې مادې نه مشتق دی.

نار الانیار: یعني د اورونو اور، دا د مبالغې په توګه باندې د دې اور شدت ته اشاره ده.

عصارة: د دوزخیانو د بدنونو زبیښنه یعني بهیدونکې وینه او زوري کچه وینه به ورباندې څکولی کیږي، چې د هغې نوم طینة الخبال دی، چې هغه ډیر سخت تریخ خوندی دی. (مرقات ۸/۸۳۵)

## دغصې یخولو طریقه

|  |  |  |  |  |  |  |  |  |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَن عَطِيَّة بن عُرْوَة السعديّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ الْغَضَبَ | | | | | | | | |
| او حضرت عطیه ابن عروه سعدی رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایې چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: غصه د شیطان | | | | | | | | |
| مِنَ | الشَّيْطَانِ | وَإِنَّ | الشَّيْطَانَ | | | | | |
| اثر دی (یعنې ناحق غصه کول د شیطان راپارول او دهغې په دهوکه کې د راتلو نتیجه وي) او شیطان د | | | | | | | | |
| خُلِقَ | مِنَ | النَّارِ | وَإِنَّمَا | يُطْفَأُ | النَّارُ | بِالْمَاءِ | فَإِذَا | غَضِبَ |
| اور نه پیدا کړی شوی دی او اور په اوبو سره وژلی کیږي. نو ځکه کله چې په تاسو کې یو چاته غصه | | | | | | | | |
| أَحَدُكُمْ | فَلْيَتَوَضَّأْ». | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُدَ[۱] | | | | | |
| راشي نو هغه لپاره پکار دي چې اودس وکړي. (ابوداؤد) | | | | | | | | |

**توضیح**: یخې اوبه استعمالولو سره غصه یخه شي. ځکه چې غضب د وینې د ګرمیدلو اثر دی. لهٰذا د اوبو څکلو یا سر باندې د اوبو اچولو یا نور استعمال هم دا خاصیت دی. لیکن د اسلام په نظر کې د یخوالې ترلاسه کولو غوره صورت دا دی چې دا سړی دې اودس وکړي او بیا دې دوه رکعته نفل وکړي. د غصې په علاج کې د ټولو نه ښایسته طریقه خو اعوذ بالله ویل دي. که په دې سره ونشوه نو

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۱۴۱ رقم الحديث ۴۷۸۴، وأحمد في المسند ۴/۲۲۶.

بیا اودس کول دي. که په دې سره ونشوه نو بیا لمونځ کول دي. یو علاج دا هم دی چې حالت دې بدل کړي لکه څنګه چې په راتلونکې حدیث کې دي. (مرقات ۸/۸۳۶)

## دغصې يخولو يو نفسياتي علاج

﴿۱۱﴾وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم قَالَ: «إِذَا غَضِبَ أَحَدُكُمْ وَ
او د حضرت ابوذر رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: کله چې په تاسو کې يو چا ته

هُوَ قَائِمٌ فَلْيَجْلِسْ فَإِنْ ذَهَبَ عَنْهُ الْغَضَبُ
غصه راشي او دغه وخت هغه ولاړ وي نو (سمدستي) دې کيني او که غصه تلله نو خير دی ګنې بيا

وَإِلَّا فَلْيَضْطَجِعْ» رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ[1]
دې په اړخ باندې څملي. (احمد وترمذی)

## د بدترين سړي نښې

﴿۱۲﴾وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ عُمَيْسٍ قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ:
او حضرت اسماء بنت عميس رضي الله عنها فرمايې چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دا اوريدلي دي.

«بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ تَخَيَّلَ وَاخْتَالَ وَنَسِيَ الْكَبِيرَ
بد بنده دی، هغه بنده چا چې خپل ځان د نورو نه غوره وګڼلو. او تکبر يې وکړو او خدای د لويې شان والا

الْمُتَعَالِ بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ تَجَبَّرَ وَاعْتَدَى
هغه هير کړو، بد بنده دی هغه بنده چا چې په خلکو باندې جبر او ظلم وکړو. او په ظلم او فساد خپرولو کې د حد نه تير شو.

وَنَسِيَ الْجَبَّارَ الْأَعْلَى بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ
او خدای جبار وقهار يې هير کړو. د چا قدرت او عزت چې د هر چا نه وچت دی. بد بنده دی هغه بنده چا چې د دين

سَهَى وَلَهَى وَنَسِيَ الْمَقَابِرَ وَالْبِلَى
کارونه هير کړل او په دنياداری کې مشغوله شو. او هغه په مقبرو او خاورو ته تلونکي بدن زړيدل هير کړل.

بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ عَتَى وَطَغَى وَنَسِيَ الْمُبْتَدَأَ وَالْمُنْتَهَى
بد بنده دی هغه بنده چا چې فتنه او فساد خپور کړو. او د حد نه يې تجاوز وکړو. او خپله ابتداء او انتهاء يې

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۵/۱۴۱ رقم الحديث ۴۷۸۲، وأحمد في المسند ۴/۱۵۲.

| بِئْسَ | الْعَبْدُ | عَبْدٌ | يَخْتِلُ | الدُّنْيَا | بِالدِّينِ |
|---|---|---|---|---|---|
| هيره کړه. بد بنده دی هغه بنده چې هغه د دين په ذريعه سره د دنيا ترلاسه کوي. بد بنده دی هغه بنده چې هغه | | | | | |

| بِئْسَ | الْعَبْدُ | عَبْدٌ | يَخْتِلُ | الدِّينَ | بِالشُّبُهَاتِ | بِئْسَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دين لره د شبهاتو په ذريعه سره ده وکه ورکوي. بد بنده دی هغه بنده چا چې د مخلوق نه طمع او اميد وساتلو. | | | | | | |

| الْعَبْدُ | عَبْدٌ | طَمَعٌ | يَقُودُهُ |
|---|---|---|---|
| او حرص او طمع هغه لره د نيا دارو دروازو ته په راخکلو راخکلو بوځي. او چيرته چې غواړي بوځي يې، او بد | | | |

| بِئْسَ | الْعَبْدُ | عَبْدٌ | هَوًى | يُضِلُّهُ |
|---|---|---|---|---|
| بنده دی هغه بنده چا لره چې دنيا ارخ ته د هغه مينه او خواهش، دنيا ترلاسه کولو حرص، او د مال او جاه ډيروالي هوس | | | | |

بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ رَغَبٌ يُذِلُّهُ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ» .

ذليله او خوار کړي. او د هغه د دين بې عزتي کوي. ترمذئ او بيهقي په شعب الايمان کې نقل کړيدی

وَقَالَا: لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ أَيْضًا: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ [1]

او ويلي يې دي چې سند يې قوي ندی. دغه شان ترمذی ويلي دي چې دا حديث غريب دی

**توضيح**: تخيل : يعنې چا چې عجب، تکبر او غرور خپل کړو. او لويې باچا يې هير کړو هغه په بدترينه خلکو کې دي.

**تجبرواعتدی**: يعنې چا چې په مظلومانو باندې ظلم وکړو. او د خپل قدر او قيمت نه واوختلو. او دالله تعالی د حکم خيال يې ونه کړو. دا بدترينه سړی دی.

**سهی**: يعنې د حقوق واجبه او طاعتونو نه غافل ؤ.

**ولهی**: او په لهو لعب کې اخته ؤ. مطلب دا چې دين يې هير کړو او د دنيا په لهو لعب کې اخته شو. (مرقات ۸/۸۳۸)

**البلی**: قبر او د قبرستان خالې والی او دبدن ماتيدل راماتيدل او دهغې زره زره کيدل يې هير کړل. (مرقات ۸/۸۳۸)

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۴۵ رقم الحديث ۲۴۴۸، والبيهقي في شعب الايمان ۶/۲۷۸ رقم الحديث ۸۱۸۱.

**يختل الدنيا:** يعنې د دين په ذريعه سره دنيا ګټي. او دين د دنيا د ګټلو وسيله او ذريعه جوړه کړي. يا دا مطلب دى چې صلحاء او زاهدانو او نيکانو خلکو جامه اغوستلو باندې په دغه ديندارانه شکل سره خلکو ته دهوکه ورکولو باندې مال ګټي. او بيا يې په خوراک سره الوزي. ختل د دغه قِسم دهوکې نوم دى. (مرقات ۸/۸۳۹)

**يختل الدين بالشبهات:** دلته ختل د فساد په معنى دى. يعنې په دين اسلام کې شکوک او شبهات پيدا کولو باندې په دې کې فساد پيدا کوي. او په دغه توګه باندې مال ګټي. عبد طمع: ملاعلي قاري فرمايي که د عبد اضافت د طمع اړخ ته وکړى شي نو د دې جملې ترجمه به آسانه شي. يعنې د لالچ او طمع بنده دى. يَقُودُهُ: د اضافت په صورت کې به د يقوده جمله د طمع صفت شي او مطلب به دا شي چې دا داسې طمع او لالچ دى چې چيرته دا لالچې سړى بوتلل غواړي، هلته به يې بوځي.

**هوى:** د نفس خواهش ته وايي. د اضافت په صورت کې د عبد اضافت هوى اړخ ته دى. او د يضله هوى صفت دى اى عَبْدٌ طَمِعٍ وَعَبْدُ هَوًى. په دواړو جملو کې مبالغه ده چې دا بنده د سختې طمع او سخت خواهش نفس د وجې نه ګويا خپله مجموعه طمع او مجموعه هوى جوړه شوه. مطلب دا دى چې طمع او لالچ دا سړى دنيادارو ته راکاږي. او د هغوى په دروازو کې يې ګرځوي. **عبدرغب يذله:** رغب: حرص او لالچ ته وايي. يعنې د مرغوباتو غلام دى چې هغې دا ذليل او خوار جوړ کړيدى. (مرقات ۸/۸۴۰)

## الفصل الثالث

## غصه تيرول ډير افضل عمل دى

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا تَجَرَّعَ عَبْدٌ |
| حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: بنده د هيڅ څه هم داسې تريخ ګوټ نه څکي |
| أَفْضَلَ عِنْدَ الله عَزَّ وَجَلَّ مِنْ جُرْعَةِ غَيْظٍ يكظمها ابتغاء وَجه الله تَعَالَى» . رَوَاهُ أَحْمد[1] |
| چې هغه د خداى په نزد باندې د غصې د ګوټ څکلو نه غوره وي چې هغه يې فقط د الله تعالى د رضا لپاره څکي. (احمد) |

**توضيح:** جرعة: د اوبو ګوټ ته جرعة وايي. غيظ: قهر او غضب ته وايي. د قرآن آيت دى: ﴿وَالْكَاظِمِينَ الْغَيْظَ وَالْعَافِينَ عَنِ النَّاسِ﴾ سينه چې کله تر خلې پورې د غصې نه ډکه وي. او سړى صبر وکړي نو دېته کظم وايي. علماؤ يوه قصه بيان کړيده چې د يو غلام نه څه کار خراب شو. نو مالک يې ډير په قهر شو. غلام دا آيت ولوستلو: ﴿وَالْكَاظِمِينَ الْغَيْظَ﴾ مالک جواب ورکړو: کظمت. غلام وويل: ﴿وَالْعَافِينَ عَنِ النَّاسِ﴾ نو مالک وويل: قد عفوتك

[1] أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۴۰۱ رقم الحديث ۴۱۸۹، وأحمد في المسند ۲/۱۲۸.

غلام ولوستل: ﴿وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ﴾ مالک جواب ورکړو: ما ته آزاد کړي. د صحابؤ د دور واقعه ده.
ویل کیږي چې شیخ عبد القادر لپاره یو چا د چین نه د ډالی په توګه باندې یو ډیره ښایسته آئینه راوړې وه. شیخ عبد القادر جیلانی رحمه الله وینزې هغه پاکوله. چې ناڅاپه آئینه ګوزار شوه او ماته شوه. وینزه ویریدله او راغله او د فارسې یو مصرعه یې وویله:

*از قضا آئینہ چینی شکست*

یعنې د تقدیر الهی د وجې نه د چین نه راوړلې شوې شیشه ماته شوه.
شیخ سمدستې دویمه مصرعه جوړه کړه او جواب یې ورکړو:

*خوب شد اسباب خود بینی شکست*

یعنې ډیر ښه وشول چې د ځان کتې او ځان خوښی اسباب مات شول.
د دې حدیث نه وروسته د ورسره حدیث تشریح هم دغه شان ده.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۴﴾ | وَعَنِ | ابْنِ | عَبَّاسٍ | فِي | قَوْلِهِ | تَعَالَى: | (ادْفَعْ | بِالَّتِي هِيَ أحسن) |
| او حضرت ابن عباس رضي الله عنه د الله تعالی د دې ارشاد ﴿ادْفَعْ بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ﴾ ته بدې د نیکی په ذریعه سره | | | | | | | | |
| قَالَ: | الصَّبْرُ | عِنْدَ | الْغَضَبِ | وَالْعَفْوُ | عِنْدَ | الْإِسَاءَةِ | | |
| لیري کوه. په تفسیر کې فرمایې: چې د قهر په وخت کې صبر کول او د بدی په وخت کې عفو او درګزر | | | | | | | | |
| فَإِذَا | فَعَلُوا | عَصَمَهُمُ | الله | | | | | |
| کول، د الله تعالی د دې ارشاد مراد دی. لهذا کله چې خلک صبر او عفو کوي نو الله تعالی هغوې د نفس | | | | | | | | |
| وَخَضَعَ | لَهُمْ | عَدُوُّهُمْ | كَأَنَّهُ | | | | | |
| او د مخلوقات د آفتونو نه محفوظ ساتي. او دهغوې دښمنان داسې ذلیله شي لکه چې هغه (دښمن | | | | | | | | |
| وَلِيٌّ | حَمِيمٌ | قَرِيبٌ. | رَوَاهُ | الْبُخَارِيُّ | تَعْلِيقًا[1] | | | |
| نه وي بلکې) ډیر نږدې دوست وي. دا روایت بخاری په طریقې د تعلیق سره نقل کړیدی. | | | | | | | | |

## غصه ایمان خرابوي

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۵﴾ | وَعَنْ | بَهْزِ | بْنِ | حَكِيمٍ | عَنْ | أَبِيهِ | عَنْ | جَدِّهِ | قَالَ: |
| او حضرت بهز بن حکیم د خپل پلار نه او هغه د د بهز د نیکه نه (حضرت معاویه ابن حیدة القشیری) نه | | | | | | | | | |

---

(۱) أخرجه البخاري تعليق من حديث طويل ۸/۵۵۵ سورة السجدة.

| قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ الْغَضَبَ لَيُفْسِدُ الْإِيمَانَ كَمَا يُفْسِدُ الصبرُ الْعَسَلَ»[1] |
|---|
| روايت كوي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: غصه ايمان داسې خرابوي لكه ايلوا چې شهد خرابوي. |

**توضيح:** الصبر: صبر د يو شيره نوم دی. چې هغې ته ايلوا ويل كيږي. سخت تريخ دی. د دې په څو قطرو سره شهد خرابيږي. دلته د ايمان د فساد نه مراد د كمال ايمان فساد دی. او دا خطره هم ده چې پوره ايمان لاړ شي. كله كله سړی د پنځه منتهه بی صبرۍ او قهر دوجې نه د قتل په شان لويې جرم كولو سره د محبس ذلتونه برداشت كوي. او د آخرت عذاب بيل دی. (مرقات ۸/۸۴۳)

## د تكبر بدي او د عاجزۍ فضيلت

| ﴿۱۶﴾ وَعَنْ عمر قَالَ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ: |
|---|
| او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې (يوه ورځ) هغه په منبر باندې و دريدلو (خطبه يې ويلو كې يې) |
| يَا أَيُّهَا النَّاسُ تَوَاضَعُوا فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| و فرمايل: خلكو! تواضع او عاجزي خپله كړی ځكه ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوريدلي دي چې |
| يَقُولُ: «مَنْ تَوَاضَعَ لله رَفَعَهُ الله |
| كوم سړی د الله تعالى د رضا لپاره عاجزي او تواضع خپله كړي نو الله تعالى د هغه مرتبه وچتوي. پس |
| فَهُوَ فِي نَفْسِهِ صَغِيرٌ وَفِي أَعْيُنِ النَّاسِ عَظِيمٌ وَمَنْ |
| هغه سړی په خپل نظر كې خو حقير وي ليكن د خلكو د په نظر كې وچت وي. او كوم سړی چې د خلكو سره |
| تَكَبَّرَ وَضَعَهُ الله فَهُوَ فِي أَعْيُنِ النَّاسِ صَغِيرٌ وَفِي نَفْسِهِ |
| غرور او تكبر كوي نو الله تعالى د هغه مرتبه راګوزار كړي. نو هغه د خلكو په نظر كې سپك وي ليكن هغه په خپل نظر |
| كَبِيرٌ حَتَّى لَهُوَ أَهْوَنُ عَلَيْهِمْ مِنْ كَلْبٍ أَوْ خنزير» [2] |
| كې خپل ځان وچت مرتبې والا ګڼي. تر دې چې هغه د خلكو په نزد باندې د سپي يا خنزير نه هم بدتر شي. |

## د قدرت لرلو په وخت كې معاف كولو فضيلت

| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "قَالَ مُوسَى بْنُ عِمْرَانَ عَلَيْهِ السَّلَامُ: |
|---|
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: چې حضرت موسى بن عمران عَلَيْهِ السَّلَامُ |

---

(۱) اخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۳۱۱ رقم الحديث ۸۲۹۴.

(۲) اخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۲۷۶ رقم الحديث ۸۱۴۰.

| يَا | رَبِّ | مَنْ | أَعَزُّ | عِبَادِكَ | عِنْدَكَ؟ | قَالَ: |
|---|---|---|---|---|---|---|

ـ ض وکړو چې ای زما ربه! ستا په بندیګانو کې کوم بنده تا ډیر عزتمند دی؟ رب وفرمایل: هغه بنده

| مَنْ | إِذَا | قَدَرَ | غَفَرَ "[۱] |
|---|---|---|---|

چې هغه د قادر کیدلو نه وروسته هم عفو او درګزر وکړي.

## د قهر قابو کولو فضيلت

﴿۱۸﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَنْ خَزَنَ لِسَانَهُ

او د حضرت انس رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کوم سړی چې خپله ژبه بنده ساتي

| سَتَرَ | اللهُ | عَوْرَتَهُ | وَمَنْ | كَفَّ | غَضَبَهُ |
|---|---|---|---|---|---|

نو الله تعالی د هغه عیبونه پټوي. او کوم سړی چې خپله غصه قابو وساتي (او د انتقام اخستلو نه ځان ایسار کړي)

| كَفَّ | اللهُ | عَنْهُ | عَذَابَهُ | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ | وَمَنِ |
|---|---|---|---|---|---|---|

نو الله تعالی به د قیامت په ورځ باندې هغه د خپل عذاب نه وساتي. او کوم سړی چې د الله تعالی نه معافی

| اعْتَذَرَ | إِلَى اللهِ | قَبِلَ | اللهُ | عذره»[۲] |
|---|---|---|---|---|

غوختونکی وي نو الله تعالی د هغه معافي قبلوي.

## درې شيان د خلاصي سبب او درې شيان د هلاکت سبب

﴿۱۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " ثَلَاثٌ مُنْجِيَاتٌ

او حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: درې شیان خلاصی ورکونکي دي

| وَثَلَاثٌ | مُهْلِكَاتٌ | فَأَمَّا | الْمُنْجِيَاتُ: | فَتَقْوَى | اللهِ | فِي | السِّرِّ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

او درې شیان په آخرت کې هلاکونکي دي. کوم شیان چې خلاصی ورکونکي دي، په هغې کې یو خو په پټه

| والعلانيةِ | والقولُ | بالحقِّ | فِي | الرضى | وَالسُّخْطِ | وَالْقَصْدُ |
|---|---|---|---|---|---|---|

او ښکاره باندې د خدای نه یریدل دي. دویم شی په خوشحالۍ او خفګان کې حق خبره کول دي. دریم

| فِي | الْغِنَى | وَالْفَقْرِ. | وَأَمَّا | الْمُهْلِكَاتُ: |
|---|---|---|---|---|

شی په مالدارۍ او فقیرۍ دواړو حالتونو کې اعتدال خپلول دي. او کوم درې شیان چې هلاکونکي دي.

---

(۱) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۳۱۹ رقم الحديث ۸۳۲۷

(۲) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۳۱۵ رقم الحديث ۸۳۱۱

فَهَوًى مُتَّبَعٌ وَشُحٌّ مُطَاعٌ

په هغې کې يو خو د نفس خواهش دی چې د هغې تابعداري وکړی شي. دويم شی حرص او بخل دی. انسان چې

دَ إِعْجَابُ الْمَرْءِ بِنَفْسِهِ وَ هِيَ

د چا غلام جوړ شي. او دريم شی د سړي په خپل ځان باندې غرور کول دي. او دا دريم شی په دې ټولو

أَشَدُّهُنَّ « رَوَى الْبَيْهَقِيُّ الأَحَادِيثَ الْخَمْسَةَ فِي شعب الإِيمَان »[1]

کې بدترين خصلت دی. ذکر شوي پنځه واړه روايتونه بيهقي په شعب الايمان کې نقل کړيدي.

**توضيح: تقوی الله:** يعنې ظاهرًا او باطنًا خپله معامله د رب سره پاکه ساتل تقوی ده.

**القول بالحق:** يعنې حالات که هرڅنګه وي، واقعات که څنګه هم وي، څوک خوشحاليږي يا څوک خفه کيږي، په ژبه باندې حق خبره کول او حق باندې کلک وسيدل د خلاصی سبب دی.

**والقصد:** يعنې که سړی مالداره وي او که غريب وي. که هرڅه وي خو هغه د خپل لاس نه اعتدال نه پريږدي. په هرحالت کې د افراط او تفريط نه پاک وسيږي. او اسراف او تبذير او اقتار او کنجوسی نه ليري وسيږي. دا د باعث نجات خبره ده. (مرقات ۸/۸۴۵)

**هوی متبع:** يعنې هر وخت د خپل خواهش پوره کولو پسې لګيدلی وي. او د هغې تابعدارې کوي. بس خواهش هغه خپل معبود جوړ کړی دی. کوم اړخ ته چې کومه اشاره ورکړی کيږي. هغې باندې عمل لپاره توپ وهي.

**وشح مطاع:** يعنې د بخل او کنجوسی غلام جوړ شويدی. چې په هغې کې ډيره ممکنه ده چې کوم وخت داسې سړی د زکوة او واجبې حق نه انکار وکړي او هلاک شي. (مرقات ۸/۸۴۵)

**اعجاب المرء:** يعنې ځان خوښي، کبر او ځان ته په کتلو حيرانيدل او د ځان ستاينه کول، دا داسې ناروغی دي چې دا په انسان کې ننوتلو نه وروسته د وتلو نوم نه اخلي. تردې چې تباه يې کړي. ځکه دې ته د ټولو نه سخت وويلی شول. (مرقات ۸/۸۴۵)



(۱) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۵/۳۵۲ رقم الحديث ۷۲۵۲.

۲۰ ربیع الثاني ۱٤۱۸هـ

# باب الظلم

## د ظلم بیان

قال الله تعالیٰ: ﴿وَاللهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ﴾

**الظلم: هو وضع شئ في غير موضعه:** یعنې کوم شی د هغې د اصل مقام په ځاې په بل مقام کې کیخودلو نوم ظلم دی. د ظلم د دې تعریف دا مفهوم هر هغه شي ته شامل دی چې په هغې کې تعدی او تجاوز وي، خو د شریعت په رڼا کې د ظلم په تعریف کې دا خیال به ساتل وي چې شرعې اصطلاحی ظلم هغه دی چې په هغې کې د امور شرعیه نه تجاوز کړی شوی وي. په عرف عام کې ظلم د خلکو هغه حقوقو کې تجاوز او زیاتې ته ویل کیږي چې د هغې اړیکې د خلکو د مال او ځان او عزت او ناموس سره وي. یعنې د خلکو په مال او ځان او عزت او ناموس کې تجاوز او زیاتی کولو نوم ظلم دی. مفسرینو لیکلي دي چې د مخکنو قومونو د واقعاتو نه داسې معلومیږي چې الله تعالی کافر قومونو باندې هغه وخت لاس کیخودلو کله چې دا قومونه د شرک او کفر نه وروسته په ظلم شروع شول. د الله تعالی اعلان دی چې خلکو! ما په خپل ځان باندې ظلم حرام کړیدی او تاسو هم په یو بل باندې ظلم مکوی. په تاسو باندې هم ظلم کول حرام ګرځوم. (مرقات ۸/۸٤۶)

## الفصل الاول

### د قیامت په ورځ باندې به ظلم د تورتم په صورت کې وي

| ﴿۱﴾عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «اَلظُّلْمُ ظُلُمَاتٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1] |
|---|
| حضرت عمر رضي الله عنه نه روایت دی چې نبی صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ظلم به د قیامت په ورځ د تورتمونو سبب وي. (بخاری ومسلم) |

**توضیح: الظلم ظلمات:** یعنې د ظلم په سزا کې به داسې تورتمونو کې اخته شي چې هغې به دا د څلور واړو اړخ نه راګیر کړی وي. او د دې ظالم سره به هیڅ رڼا نه وي. د ظلم دا تورتمونه یو ندی بلکې په بیلا بیل شکلونو کې به وي. او دا ظالم به په هغې کې سرګردانه ګرځي. او د مسلمانانو سره به رڼا وي چې د هغې په مرستې سره به هغوی په اسانی سره یو خوا او بل خوا تللی شي. د دې حدیث نه معلومیږي چې د ظلم د جرم کولو په ضمن کې نور ګناهونه هم کیږي. نو ځکه په قیامت کې یو نه بلکې څو تورتمونه جوړیږي. (مرقات ۸/۸٤۶)

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۵/۱۰۰ رقم الحديث ۲۴۴۷، ومسلم في ۴/۱۹۹۶ رقم الحديث (۲۵۷۹-۵۷).

## الله تعالی ظالم ته مهلت ورکوي بیا یې نیسي

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسلم: «إِن الله لَيُمْلِي لِلظَّالِمِ |
| او حضرت ابو موسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایې چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: بیشکه الله تعالی ظالم ته مهلت |
| حَتَّى إِذَا أَخَذَهُ لَمْ يفلته » ثُمَّ قَرَأَ |
| ورکوي، تردې چې کله هغه ونیسي نو پرېږدي به يې نه. د دېنه وروسته نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا آيت ولوستلو |
| ( وَ كَذَلِكَ أَخْذُ رَبِّكَ إِذَا أَخَذَ الْقُرَى وَ هِيَ ظَالِمة ) الآيَة. مُتَّفق عَلَيْهِ[1] |
| ﴿وَكَذَلِكَ أَخْذُ رَبِّكَ الخ﴾ او د دې آیت آخر الفاظ دا دي ﴿إِنَّ أَخْذَهُ أَلِيمٌ شَدِيدٌ﴾ (بخاری ومسلم) |

## د ثمود ظالم قوم په علاقه باندې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تیریدل

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا مَرَّ بِالْحِجْرِ |
| او د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کله په مقام حجر باندې تیر شو |
| قَالَ : « لَا تَدْخُلُوا مَسَاكِنَ الَّذِينَ |
| نو (صحابؤ ته یې) وفرمایل چې تاسو د دې خلکو کورونو (کنډرو) ته مه ننوځئ چا چې (کفر غوره کولو او خپل ارخ ته د الله |
| ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ إِلَّا أَنْ تَكُونُوا بَاكِينَ |
| تعالی را الیږلی شوي پیغمبران دروغژن ګڼلو باندې) خپله په خپل ځان ظلم کړی دی. مګر دا چې تاسو ژړیدونکې |
| أَنْ يُصِيبَكُمْ مَا أَصَابَهُمْ» ثُمَّ |
| یاست. هسې نه په تاسو باندې هم هغه عذاب نازل شي. کوم چې په هغوی باندې نازل شوی ؤ. د دېنه وروسته |
| قَنَّعَ رَأْسَهُ وَ أَسْرَعَ السَّيْرَ حَتَّى اجتاز الْوَادِي . مُتَّفق عَلَيْهِ[2] |
| نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په څادر باندې خپل سر پټ کړو او په تیز تیز مزل کولو سره د هغه علاقې نه ووتلو. (بخاری ومسلم) |

**توضیح: الحجر**: نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ په ۹ هـ کې د جهاد په نیت سره د رومیانو مقابلې لپاره د تبوک ارخ ته تللی ؤ. د نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ سره د صحابؤ د دیرش زره پاک لښکر جرار ؤ. په لاره کې د نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ تیریدل د قوم ثمود په هغه علاقو باندې وشو چیرته چې په قوم ثمود باندې یو دردناک عذاب راغلی ؤ.

---

(۱) اخرجه البخاري في صحیحه ۸/۳۵۴ رقم الحدیث ۴۶۸۶، ومسلم في ۴/۱۹۹۷ رقم الحدیث (۲۵۸۳-۶۱)

(۲) اخرجه البخاري في صحیحه ۸/۱۲۵ رقم الحدیث ۴۴۱۹، ومسلم في ۴/۲۲۸۶ رقم الحدیث (۲۹۸۰-۳۹).

**الحجر**: دهغه ځاې نوم دی. چیرته چې په قوم ثمود باندې عذاب نازل شوی ؤ، دا یو تاریخي کلی دی. چې هغې ته د وادی القری ویلی کیږي. حجر د مدینې نه څه د څلور سوه میله باندې د مدینې اړخ ته پروت دی. په دې علاقو کې هغه کانړی هم دی چې د هغې نه صالح عَلَيْهِ السَّلَامْ اوښه راوتلي وه. هغه ځاې ته فج الناقة ویل کیږي. او ټولې علاقې ته مدائن صالح هم ویلی کیږي. د د غزوه تبوک په موقع باندې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په لاره باندې تللی ؤ. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قوم ثمود په علاقو کې د اوبو څکلو نه منع کړي وه. بلکې دهر استعمال نه یې منع کړي وه. نو چا چې په دغه اوبو باندې اوړه اغږلي ؤ، نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه اوړو د استعمال نه هغوې منع کړي ؤ، بلکې حکم یې ورکړو چې اوښانو باندې یې وخوره. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابؤ ته وفرمایل چې په دې علاقه کې د عذاب اثرات وس هم دي. نو ځکه په ژړا ژړ د دې علاقو نه تیر شۍ. (مرقات ۸/۸۴۷)

نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپله هم په سر باندې څادر راخپور کړو، او په ژړا سره تیر شو. د دېنه معلومه شوه چې چیرته د الله عذاب راځي، دهغې اثرات تر صدو پورې پاتې وي. د ثمودیانو هلاکت څو زره کاله پخوانی ؤ. خو اثرات یې وس هم ؤ. نن سبا په پاکستان کې په اتم اکتوبر ۲۰۰۵ء کې یو تباه کونکې زلزله راغله. دغه هم د عذاب الهی نه څوک نشي ایستلی. دا هم عذاب الهی دی. چې دهغې اثرات په علاقو او انسانانو باندې بلکې په هغه دبدنونو باندې هم دی، چې په هغوې باندې په دې زلزله کې زخم(ټپ) لګیدلی دی. وس دهغې لپاره اجتماعې توبې او استغفار ضرورت دی. دې عذاب ته په کتلو سره زمونږ مسلمانانو لپاره پکار دي چې سحر او ماښام، هفته وار(هره اونۍ) اجتماعې دعاء سره اجتماعې توبه او استغفار وکړي او ګناهونو او این جی اوز او دهغوې د مرستې نه ځان وساتي. څور ورځې وروسته په یو سفر باندې به زه سعودې عرب ته ځم. د ۳۰ ورځو آزاده ویزه ده. که الله تعالی وغوښتلنو زه به د تبوک سفر کوم. او د مدائن صالح معاینه به کوم.

الحمدلله زه په دغه سفر باندې لاړم. مدائن صالح کې په مقام العلاء کې شپه تیره کړه. او سحر مدائن صالح. وادي ثمود او الحجر علاقو ته تلل وشو. او ما د الله تبارک وتعالی قدرتونه وکتل او د الله تعالی د عظمتونو مشاهده مې وکړه. په تباه شوؤ علاقو کې د عذاب اثرات په مخونو باندې مې محسوس کړل او بیا په غسل کولو سره دا اثرات ختم شول. هغه کانړی مې ولیدلو چې دهغې نه د صالح عَلَيْهِ السَّلَامْ اوښه راوتلي وه. او بیا مې هغه ځاې وکتلو چیرته چې دغه اوښه دې ظالمانو وژلي وه. د قوم ثمود سنګ تراش کوروندا او ماڼۍ مې وکتلې. او د قرآن عظیم د صداقت غټ غټې نښانونه مې ولیدل. په بیرته راتګ باندې د دې سفر سره متعلق ما یو کتابچه ولیکله، چې په هغې کې ما د دغه علاقو ناشنا حالات. او ناشنا واقعات ولیکل. د دې کتاب نوم دی: قوم ثمود څنګه تباه شو؟

## د قیامت په ورځ باندې به د ظالم نه د ظلم بدله څنګه اخستلی کیږي؟

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿۴﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ كَانَتْ لَهُ مَظْلِمَةٌ | | | | |
| او حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل: څوک چې د کوم مسلمان ته | | | | |
| لِأَخِيهِ | مِنْ | عِرْضِهِ | | |
| ساتي او هغه حق که (غیبت او بدي کولو او روحاني او جسماني تکلیف وغیره په صورت کې) د بې عزته کولو وي یا د بل کوم شي | | | | |
| أَوْ | شَيْءٍ | مِنْهُ | الْيَوْمَ | |
| سره متعلق وي. نو هغه لپاره پکار دي چې هغه د غه حق نن (یعنې په دې دنیا کې) ورباندې معاف کړي. د دینه | | | | |
| قَبْلَ | أَنْ | لَا | يَكُونَ | دِينَارٌ |
| مخکې چې هغه ورځ راشي (یعنې د قیامت ورځ چې په هغې کې) هغه خو به نه درهم لري، نه دینار (چې هغه د غه د | | | | |
| وَلَا | دِرْهَمٌ | إِنْ | كَانَ | لَهُ |
| بدلې په توګه باندې ورکړی شي) که (هغه خپل حق معاف کړو نو بیا د ګنې بیا) د ظالم د اعمال نامه | | | | |
| عَمَلٌ | صَالِحٌ | أُخِذَ | مِنْهُ | بِقَدْرِ مَظْلِمَتِهِ |
| کې چې څه نیکۍ وي نو د هغې نه به د هغې د ظلم برابر یا واجب حق په اندازه نیکۍ اخستلی کیږي. او | | | | |
| وَإِنْ | لَمْ | يَكُنْ | لَهُ | حَسَنَاتٌ |
| (مظلوم یا حقدار ته به ورکړی شي) او که هغه هیڅ هم نیکۍ نه لري نو په دې صورت کې به د غه مظلوم | | | | |
| أُخِذَ مِنْ سَيِّئَاتِ صَاحِبِهِ فَحُمِلَ عَلَيْهِ ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1] | | | | |
| یا حقدار د ګناهونو نه (د هغې د حق په اندازه) ګناه را واړل شي او په ظالم باندې به بار کړی شي. (بخاري) | | | | |

**توضیح: مظلمة:** که د کوم ظالم په ذمه باندې د کوم مظلوم څه حق پاتې وي چې هغه ده په مظلوم باندې په صورت د ظلم کې کړی وي. (مرقات ۸/۸۵۰)

**من عرضه:** یعنې د دغه حق تعلق که د مظلوم د عزت او عظمت سره وي، یا د کومې بلې وجې سره وي چې هغه ته یې کنځل کړي وي یا د قول او فعل په ذریعه سره هغې ته یې تکلیف رسولی وي. (مرقات ۸/۸۵۰)

**او شئ:** یعنې د چا مال یې په زور اخستلی وي یا یې غلا کړی وي یا یې لاندې کړی وي.

---

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۵/۱۰۱ رقم الحديث ۲۴۴۹، واحمد في المسند ۲/۲۰۶.

فليتحلله:نو د هغه نه دې معافي غوختلو باندې د قيامت نه مخکې دې هرقسم حق معاف کړي. که مالي معامله ده نو معاوضه (بدله) دې ادا کړي ګنې د قيامت په ورځ به نه دينار وي او نه درهم. هلته به دا مظلوم د دې ظالم نيکۍ وصولوي. که نيکۍ ختمې شوې لکه څنګه چې وروستې حديث کې بيان شويدې. (مرقات ۸/۸۵۰)

## د قيامت د ټولو نه غټ فقير

| |
|---|
| ﴿۵﴾وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «أَتَدْرُونَ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې (يوه ورځ) رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: تاسو پوهيږئ |
| مَا الْمُفْلِسُ؟» قَالُوا: الْمُفْلِسُ فِينَا مَنْ |
| مفلس څوک دی؟ ځينو صحابؤ جواب وکړو چې په مونږ کې مفلس هغه سړی دی چې د هغه سره نه خو درهم وي |
| لَا دِرْهَمَ لَهُ وَلَا مَتَاعَ. فَقَالَ: «إِنَّ الْمُفْلِسَ مِنْ أُمَّتِي |
| او نه دينار وي او نه سامان او اسباب. نو نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: زما په امت مرحومه کې مفلس سړی په حقيقت کې هغه دی |
| مَنْ يَأْتِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِصَلَاةٍ وَصِيَامٍ وَزَكَاةٍ |
| چې هغه د قيامت په ورځ باندې په ميدان حشر کې (دنيا نه) لمونځ، روژه او زکوة به راوړي، خو حال به دا |
| وَيَأْتِي وَقَدْ شَتَمَ هَذَا وَقَذَفَ هَذَا. وَأَكَلَ مَالَ هَذَا. وَسَفَكَ دَمَ هَذَا |
| وي چې هغه به چا ته کنځل کړي وي، په چا باندې به يې تهمت لګولى وي، څوک به يې په ناحقه باندې |
| وَضَرَبَ هَذَا فَيُعْطَى هَذَا مِنْ حَسَنَاتِهِ وَهَذَا مِنْ حَسَنَاتِهِ |
| وهلى وي. نو د هغه د نيکيو نه (اول) يو مظلوم او صاحب حق ته (د هغه د حق په اندازه باندې) نيکۍ ورکړې کيږي. |
| فَإِنْ فَنِيَتْ حَسَنَاتُهُ قَبْلَ أَنْ يَقْضِيَ مَا عَلَيْهِ |
| تردې چې د هغه د دې ګناهونو د فيصله کيدلو نه مخکې که د هغه ټولې نيکۍ ختمې شوې نو دې |
| أُخِذَ مِنْ خَطَايَاهُمْ فَطُرِحَتْ عَلَيْهِ |
| حقدارو او مظلومانو ګناهونه (چې هغه دوي په دنيا کې کړي وي) د هغوي نه په اخستلو سره په |
| ثُمَّ طُرِحَ فِي النَّارِ». رَوَاهُ مُسلم[1] |
| د غه سړي باندې به بار کړی شي. او بيا به هغه دوزخ ته ګوزار کړی شي. |

[1] أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۱۹۹۷ رقم الحديث (۲۵۸۱-۵۹) والترمذي في ۲/۵۲۹ رقم الحديث ۲۴۱۸.

**توضيح: المفلس:** د دنيا په عرف کې خو د مفلس هم هغه پيژندنه ده کوم چې صحابه کرام د نبي کريم ﷺ د پوښتنې په جواب کې وويله. ليکن د شارع په نظر کې اصل او حقيقي مفلس هغه دی کوم چې ميدان حشر کې په آخرت کې مفلس وي. ځکه چې د هغه د کمي امکان ختم شي. نو ځکه نبي ﷺ د هغې بيان وکړو.

**فطرحت عليه:** يعنې کله چې په خلکو باندې د ظلمونو په مقابله کې د ظالم نيکۍ ختمې شي نو بيا د خلکو بدۍ ګناه به په ظالم باندې واچولی شي.

**طرحت:** د الفاظو نه معلومه شوه چې د قيامت په ورځ باندې به اعمال متجسد وي. او د اچولو قابل به وي. د دې خو يو صورت دا هم کيدلی شي چې دا اعمال به د قيامت په ورځ باندې کاغذونو او رجسټرونو په شکل کې وي.

دويم صورت دا هم ممکن دی چې الله تعالی هر عمل لره د قيامت په ورځ باندې يو جسم ورکړي. نو بيا تلل يا چا باندې اچول به ممکن شي. دريم صورت دا هم کيدلی شي چې دهغه ځاې تله (ميزان) به د دنيا د ګوړي د تللو په شان نه وي. په دې سره به اعراض هم تلل کيدلی شي. هسې د اعراضو د تللو اعتراض به په يو زمانه کې کيدلو. نن سبا خو په جديدی ټيکنالوجې سره اعراض په آسانۍ سره تللی کيږي. د هوايې جهاز وچتيدل او کيناستل عرض دی. تللی کيږي. د موسم حرارت او باد (هوا) تللی کيږي. د کتلو او اوريدلو طاقت تللی کيږي. وس خو دا اعتراض چې اعراض او کيفيات څنګه تللی کيږي. مهمل شان پاتې شويدی.

**ثم طرح في النار:** معلومه شوه، حقوق العباد د بنده د معاف کولو نه بغير نه معاف کيږي. دوزخ به ته تلل وي. هو! که الله تعالی مظلوم ته په بدله کې عطايا ورکړي او هغه راضي کړي. نو بيا ممکنه ده. بهرحال دوزخ ته به دا سړی د نورو د ګناهونو د وجې نه بلکې په حقيقت کې دا ظلمونه او حقوق د ده خپل کړي جرمونه دي. چې د هغې په وجه باندې دوزخ ته لاړو. لهذا دا حديث د قرآن آيت ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ﴾ سره متصادم او متعارض نه دی.

## په آخرت کې به د هر ظالم نه حساب اخستلی کيږي

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَتُؤَدَّنَّ الْحُقُوقُ إِلَى أَهْلِهَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل: د قيامت په ورځ به حقدارو ته |
| حَتَّى يُقَادَ لِلشَّاةِ الْجَلْحَاءِ مِنَ الشَّاةِ الْقَرْنَاءِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ |
| دهغوې حقوق ورکولی کيږي، تردې چې د بې ښکرو بيزې قصاص به د ښکرورې بيزې نه اخستلی کيږي. (مسلم) |

وَذَكَرَ حَدِيثَ جَابِرٍ: «اتَّقُوا الظُّلم» . فِي «بَابِ الإِنفاق»[1]

او د حضرت جابر رضي الله عنه روایت «اتقوا الظلم» په باب الانفاق کې ذکر شویدی.

**توضيح**: الجلحا: یعنې بغیر د ښکرو والا مظلومه بیزې لپاره به د ښکرورې ظالمې بیزې نه قصاص او بدله اخستلی کیږي. مطلب دا دی چې کوم ځناور په بل ځناور باندې په دنیا کې ظلم او زیاتی او تجاوز او تیری کړی وي. د هغه ظالم نه به بدله اخستلی کیږي. یعنې د الله تعالی د عدل او انصاف به دومره ظهور وشي چې د انسانانو نه علاوه به په ځناورو کې هم د عدل ظهور وشي. حالانکې ځناور غیر مکلف دي.

اوس پوښتنه دا ده چې ځناور خو غیر مکلف دي. د هغوې نه د قصاص او بدلې اخستلو څه مطلب دی؟ د دې جواب دا دی چې الله تعالی ﴿فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيدُ﴾ دی ﴿لَا يُسْئَلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْئَلُونَ﴾ (الانبیاء: ۲۳) په صفت عالي باندې متصف دی. هغه که هر چیرته بدله واخلي یا د چا نه هم بدله واخلي، هغه مختار علی الاطلاق دی. د ځناورو په معامله کې که انسان په حیوان باندې ظلم کړی وي. د هغه نه به هم قصاص اخستلی کیږي. او بیا د ځناورو په اړه به وفرمایي: ﴿كُونُوا تُرَابًا﴾ ټول خاوري شی. نو ټول به خاوري شي. په دغه وخت کې به کافر ووایې: ﴿يَا لَيْتَنِي كُنتُ تُرَابًا﴾ ای کاش زه هم خاوری شوی وی.

دویم جواب دا دی چې په حدیث کې د ښکروې بیزې نه مراد ظالم انسان مراد دی. او د بې ښکرو بیزې نه مظلوم انسان مراد دی. او دغه شان محاوره هم جاري ده. نو په دې حدیث کې دا واضحه شویده چې د قیامت په ورځ باندې به د ذرې ذرې حساب وي. د ظالم نه به د مظلوم پوره پوره حساب اخستلی کیږي. فرض کړه که غیر مکلف ځناور هم ظالم جوړ شو، د هغه نه به هم بدله اخستلی کیږي. نو ای انسان ته د حساب نه چیرته بچ کیدلی شې؟

جلحا: دا هغه ځناور دی چې د دې د ښکرو نه د پیدائښ نه نه وي.

القرنا: دا هغه ځناور وي چې د هغې غټ غټ ښکرونه وي. (مرقات ۸/۸۵۲)

## الفصل الثاني

### امعه مه جوړیږه، د بدی بدله بدې نه ده

﴿۷﴾ وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَا تَكُونُوا إِمَّعَةً تَقُولُونَ:

حضرت حذیفه رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ته امعه مه جوړیږه یعنې دا مه وایه که

(1) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۹۹۷ رقم الحديث (۲۵۸۲/۶۰) والترمذي في السنن ۴/۵۳۰ رقم الحديث ۲۴۲۰.

| ظَلَمُوا | وَإِنْ | أَحْسَنَّا | النَّاسُ | أَحْسَنَ | إِنْ |
|---|---|---|---|---|---|
| خلک زمونږ سره ښیګړه کوي نو مونږ به هم د هغوی سره ښیګړه کوؤ. او که خلک زمونږ سره ظلم کوي | | | | | |
| ظَلَمْنَا | وَلَكِنْ | وَطِّنُوا | أَنْفُسَكُمْ | إِنْ | أَحْسَنَ | النَّاسُ |
| نو مونږ به هم د هغوی سره ظلم کوؤ. بلکې تاسو خپل ځان په دې امر باندې قائم وساتئ. که خلک ښیګړه کوي | | | | | | |
| أَنْ تُحْسِنُوا وإِن أَساؤوا فَلَا تظلموا ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ. وَيصِح وَقفه على ابْن مَسْعُود[1] | | | | | | |
| نو تاسو هم ښیګړه کوئ او که خلک بدې کوي نو تاسو ظلم مکوئ. دا روایت ترمذی نقل کړیدی. | | | | | | |

**توضیح: امّعة:** امعه هغه سړي ته وایې چې هغه خپله هیڅ رایه نه لري. بلکې د سوچ او پوهې نه بغیر په دې وینا سره ګرځي: **انا مع فلان.** د بلني نه بغیر خوارو ته د نورو په تابعدارۍ کې ځي. **انا مع فلان:** خپل هیڅ څه مقام نلري. د نورو په وینا باندې د نورو د رایې تابع کیدلو باندې وخت تیروي. د امعه څه تفصیل توضیحات څلورم جلد **باب الامارة** کې تیر شویدی. دلته په حدیث کې د امعه نه هغه سړی مراد دی چې هغه وایې چې زما سره خلکو څنګه ښویې وساتلو. زه به د هغوی سره هم هغه ښویې کوم. که خلک زما سره ښه کوي نو به هم ښه وسیږم. که خلک بد شول نو زه به هم بدې کوم. ګویا دا شعر یې په لاس کې نیولی ولاړ دی:

**فمن شآء تقویمي فاني مقوم ومن شآء تعویجي فان معوج**

نبی ﷺ و فرمایل چې د غه شان امعه مه جوړیږه. بلکې که خلک احسان وکړي نو ته احسان وکړه او که خلک د بدۍ معامله وکړي نو ته ښیګړې او د احسان معامله وکړه او «**تخلقوا باخلاق الله**» نمونه جوړ شه.

**فلاتظلموا:** د دې جملې ترجمه دا ده چې د خلکو په بدۍ باندې تاسو ظلم مکوئ. بیا د دې جملې یو مطلب دا دی چې د بدې کونکو سره په اعتدال کې او سیدلو سره بدله واخلئ. خو ظلم او زیاتی مه کوئ. دا د ادنی مؤمن درجه ښودلې شویده. دویم مطلب دا دی چې د بدې کونکو سره فقط د بدې کولو سوچ مکوه بلکې د معاف کولو خیال هم وساته. دا دویمې درجې د متوسط مؤمن درجه ویلې شویده.

دریم مطلب دا دی چې د بدې کونکې سره ښه وکړه. دا د اعلی مؤمن درجه ښودلې شوې ده. نو **فلاتظلموا** په جمله کې ګویا د درې قِسمه مسلمانانو درې درجې ذکر شوې دي. ادنی، متوسط او د اعلی درجې مؤمن. (مرقات ۸/۸۵۲)

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۲۰ رقم الحديث ۲۰۰۷.

## د حضرت معاويه رضي الله عنه په نوم باندې د حضرت عائشې رضي الله عنها خط

| |
|---|
| ﴿۸﴾وَعَنْ مُعَاوِيَةَ أَنَّهُ كَتَبَ إِلَى عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنِ |
| او د حضرت امير معاويه رضي الله عنه نه روايت دى چې هغه ام المؤمنين حضرت عائشه رضي الله عنها ته خط وليکلو چې ته |
| اكْتُبِي إِلَيَّ كِتَابًا تُوصِينِي فِيهِ وَلَا تُكْثِرِي. فَكَتَبَتْ: |
| ماته يو نصيحت ليکلى راوليږه. او هغه نصيحت چې اوږد نه وي. نو حضرت عائشه رضي الله عنها دا کلمات ليکلي راوليږل په |
| سَلَامٌ عَلَيْكَ أَمَّا بَعْدُ: فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «من التمس رضى الله |
| تا باندې دې سلامتي وي! وروسته د دينه ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چې کوم سړى د الله تعالى رضامندۍ |
| بسخط الناس كفاهُ الله مؤونة الناس |
| او خوشحالي په نظر کې ساتي او د خلکو د خفګان او ناراضګۍ نه بې پرواه وي، نو الله تعالى د خلکو د مينې د اړخ |
| وَمن التمس رضى النَّاسِ بِسَخَطِ الله |
| نه هغه لپاره کافي کيږي. او کوم سړى چې د خلکو رضامندۍ په نظر کې ساتي او د الله تعالى خفګان او ناراضګۍ |
| وَكَلَهُ اللهُ إِلَى النَّاسِ» وَ السَّلَامُ عَلَيْكَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1] |
| نه بې پرواه وي، نو الله تعالى هغه خلکو ته سپاري. او سلامتيا دې وي په تا باندې. (ترمذى) |

**توضيح**: ولا تكثري: يعنې اوږد مضمون او اوږده الفاظ نه وي. بلکې مختصر او جامع نصيحت وليکه.

**سخط الناس**: يعنې د خلکو ناراضګۍ او خفګان يې قبول کړو ليکن الله تعالى يې راضي وساتلو.

**مؤنة الناس**: يعنې د خلکو محنت او مشقت او ضرورتونو لپاره به الله تعالى کافي شي. (مرقات ۸/۸۵۵)

**وكله الى الناس**: يعنې کوم سړى چې خداى پريخودلو باندې د خلکو د راضي کولو کوښښ کوي، الله تعالى به هغه سړى خلکو ته وسپاري. يا به خلک د هغه مونډ وباسي. (مرقات ۸/۸۵۵)

## الفصل الثالث

## د لفظ ظلم مفهوم او مطلب

| |
|---|
| ﴿۹﴾عَن ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: لَمَّا نَزَلَتْ: (الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُم بِظُلْم) |
| حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې کله دا آيت ﴿الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُمْ بِظُلْمٍ﴾ نازل شو نو په |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۲۷ رقم الحديث ۲۴۱۴.

| |
|---|
| شَقَّ ذٰلِكَ عَلٰى أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ: |
| دي سره د رسول الله ﷺ صحابوٌ ته غټ بوج محسوس شو. نو هغوي عرض وکړو چې یا رسول الله! |
| أَيُّنَا لَمْ يَظْلِمْ نَفْسَهُ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| په مونږ کې داسې کوم سړی دی چې هغه په خپل نفس باندې ظلم نه وي کړی؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: دا |
| "لَيْسَ ذَاكَ إِنَّمَا هُوَ الشِّرْكُ |
| خبره نده (یعنې د ظلم نه مراد هغه ندی کوم چې تاسو ګڼې یعنې مطلق ګناه) بلکې د ظلم نه شرک مراد دی. |
| أَلَمْ تَسْمَعُوا قَوْلَ لُقْمَانَ لِابْنِهِ: (يَا بُنَيَّ |
| آیا تاسو د لقمان هغه نصیحت ندی اوریدلی کوم چې هغه خپل (مؤمن) ځوي ته کړیؤ. (او هغه دا چې) ای زما ځویه! |
| لَا تُشْرِكْ بِاللهِ إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ؟) فِي رِوَايَةٍ: |
| د خدای سره څوک مه شریکوه ځکه شرک یقینًا ډیر غټ ظلم دی. او په یو روایت کې دا الفاظ راغلي دي چې |
| «لَيْسَ هُوَ كَمَا تَظُنُّونَ إِنَّمَا هُوَ |
| (نبي ﷺ وفرمایل) ظلم نه مراد هغه ندی، د کوم چې تاسو ګمان کړیدی. بلکې د دینه مراد هغه دی |
| كَمَا قَالَ لُقْمَانُ لِابْنِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1] |
| کوم چې لقمان خپل ځوي ته کړیؤ. (بخاری و مسلم) |

**توضيح:** ﴿وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُمْ بِظُلْمٍ﴾ (انعام: ۸۲) **شق ذلك:** یعنې دا آیت چې کله نازل شو ن د دې مطلب په صحابه کرامو باندې ډیر ګران شو. ځکه چې صحابه کرامو رضي الله عنهم دا خیال وکړو چې د ظلم د لفظ نه ګناه مراد ده. او دا خبره ظاهره ده چې د انبیاء کرامو نه علاوه د ګناه نه څوک پاکیدلی شي؟ نو ځکه هغوي پوښتنه وکړه چې: **اینا لم یظلم:** دا د هغوي د پریشانۍ ډیر غټ اظهار ؤ. نبي کریم ﷺ د هغوي په جواب کې وفرمایل چې د ظلم نه مراد د کامل درجې ظلم دی. چې هغه شرک دی. ځکه چې د سورت لقمان په یو آیت کې دي: ﴿إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ﴾ (لقمان: ۱۳) دلته د دې ظلم نه عام ګناه مراد نه ده بلکې یو خاص قسم ګناه مراد ده چې شرک دی. مطلب دا چې کومو خلکو ایمان د کفر سره ګډ کړی نه دی، یعنې داسې منافق نه ؤ چې د هغه په ژبه باندې خو دې ایمان وي او په زړه کې یې شرک پروت وي.

---

([1]) أخرجه البخاري في صحيحه ۸/۲۹۴ رقم الحديث ۴۶۲۹، وأخرجه مسلم في ۱/۱۱۴ رقم الحديث (۱۲۴-۹۷)

## بدترين سړى هغه دى چې هغه د نورو په دنيا باندې خپل آخرت تباه کړي

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم قَالَ: «مِنْ شَرِّ النَّاسِ مَنْزِلَةً |
| او د حضرت ابو امامه رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د قيامت په ورځ باندې |
| عِنْدَ اللهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَبْدٌ أَذْهَبَ آخِرَتَهُ بِدُنْيَا غَيْرِهِ». رَوَاهُ ابْن مَاجَه[۱] |
| د مرتبې په اعتبار سره بدترين سړى به هغه وي چې هغه د دنيا په وجه باندې آخرت تباه کړي. (ابن ماجه) |

**توضيح**: بدنيا غيره: مطلب دا دى چې که يو سړى د خپلې دنياوې فائدې او مقصد لپاره خپل آخرت تباه کړي نو دا هم سخت جرم دى. ليکن دا جرم هغه وخت نور هم سخت شي چې کله د بل لپاره دنيا گټل وي. مثلاً: يو سړى د ځان د فائدې لپاره نه بلکې د نورو د فائدې لپاره په چا باندې ظلم شروع کړي. او په هغې کې استعماليږي. لکه څنګه چې په دولتي او غير دولتي (سرکاري او غير سرکاري) ادارو کې ډير خلک د نورو د خوشحالولو لپاره په عامو خلکو باندې ظلم کوي. دا د غير لپاره دنيا جوړولو باندې خپل آخرت بربادول دي. لکه څنګه چې نن سبا پرويز مشرف امريکه خوشحالولو لپاره خپل مسلمانان د ظلم نښانه جوړوي.

## د قيامت په ورځ به درې قسمه ديوانې کيسونه وي

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " الدَّوَاوِينُ ثَلَاثَةٌ: |
| او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: دفتر يعنې اعمال نامې به درې قسمه وي. |
| دِيوَانٌ لَا يَغْفِرُهُ اللهُ: الْإِشْرَاكُ بِاللهِ. |
| يو خو هغه اعمال نامه ده چې هغه الله تعالى نه بښې. او دا هغه اعمال نامه ده چې په هغې کې د الله تعالى سره شريک جوړ |
| يَقُولُ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ (إِنَّ اللهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ)وَدِيوَانٌ |
| کړى شوى وي. نو الله تعالى فرمايي چې خداى شرک نه بښې. دويمه اعمال نامه هغه ده چې هغه به |
| لَا يَتْرُكُهُ اللهُ: ظُلْمُ الْعِبَادِ فِيمَا بَيْنَهُمْ |
| الله تعالى هم داسې نه پريږدي. او دا هغه اعمال نامه ده چې په هغې کې د بنديګانو خپل مينځې ظلمونه ليکلي شويدي. |
| حَتَّى يَقْتَصَّ بَعْضُهُمْ مِنْ بَعْضٍ وَدِيوَانٌ لَا يَعْبَأُ اللهُ بِهِ |
| نو هغوى به د يو بل نه بدله واخلي. او دريمه اعمال نامه هغه ده چې د هغې به الله تعالى ته پرواه نه وي. |

[۱] اخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۳۱۲ رقم الحديث ۳۹۶۶.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ظُلْمُ | الْعِبَادِ | فِيمَا | بينهم | وبينَ | الله |
| او هغه اعمال نامه هغه ده چې په هغې کې بنده ګانو د الله تعالی سره ظلم کړي وي. يعنې د هغوی د طرف نه په حقوق الله | | | | | |
| فَذَاك | إِلَى | الله | فَذَاكَ | إِلَى | الله: |
| کې تقصير او کمې کيدل ليکلی شوی وي. نو دا اعمال نامه به د الله تعالی په خوښې پورې موقوف وي. | | | | | |
| إِنْ | شَاءَ | عَذَّبَهُ | وَإِن | | |
| که وغواړي نو هغه به بنده ته د هغه د عمل مطابق سزا ورکړي او که وغواړي د هغه سره درګزر او د معافی | | | | | |
| شَاءَ | تجَاوز | عَنهُ " [1] | | | |
| معامله وکړي. او هغه ته سزا ورنکړي. | | | | | |

**توضيح:** دواوين: دا د ديوان جمع ده. ديوان دفتر ته وايې. مطلب دا دی چې د قيامت په ورځ به د خلکو فيصلې په درې قسمه دفترونه به وي. دا ديوانې کيسونه به درې بيل بيل پړاونو کې چليږي. دا دفترونه او پړاونه او مرحلې به په حقيقت کې د خلکو اعمال نامې وي. نو د بيلابيلو خلکو به بيلا بيلې اعمال نامې وي. چې د هغې به په جدا جدا ځايونو کې فيصلې وي. اولنی دفتر د شرک دی. چې هلته به ټول د شرک ريکارډ جمع وي. دا به الله تعالی نه معاف کوي. دا خلک به دوزخ ته ځي. دويم د حقوق العباد دفتر دی. چيرته چې به په يو بل باندې د ظلمونو ريکارډ او اعمال نامې وي. دا خلک به تر هغه وخته الله تعالی نه معاف کوي ترڅو چې د دې خلکو پورا پورا بدله يو بل ته ورنکړی شي. هو! که په دوی کې مظلوم د قيامت په ورځ باندې الله تعالی د خپل اړخ نه راضي کړي او هغه ته د خپل اړخ نه انعام ورکړي او هغه ظالم معاف کړي نو دا سې کيدلی شي.

دريم دفتر د حقوق الله دی. چيرته چې د انسانانو د عملونو هغه اعمال نامې وي چې د هغې تعلق به د حقوق الله سره وي. چې دې انسانانو په حقوق الله کې کمی کړی دی. د دې حکم او عام فصله به دا سې وي که الله تعالی يې معاف کول وغواړي نو معاف به يې کړي او که سزا ورکول وغواړي نو سزا به ورکړي. (مرقات ۸/۸۵۷)﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ﴾ (النساء: ۱۱۴)

## مظلوم د بددعاء نه ځان وساته

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِيَّاكَ وَدَعْوَةَ الْمَظْلُومِ |
| او حضرت علی رَضِیَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: خپل ځان د مظلوم د بددعاء نه وساته |

---

[1] اخرجه احمد في المسند، ۶/۲۴۰، والبيهقي في شعب الايمان ۶/۵۲ رقم الحديث ۷۴۷۳.

| حَقَّهُ | تَعَالَى | اللهَ | يَسْأَلُ | فَإِنَّمَا |
|---|---|---|---|---|
| (یعنې په چا باندې ظلم مکوه چې هغه ستا په حق کې بددعاء وکړي) ځکه چې هغه د الله تعالی نه فقط خپل حق غواړي. | | | | |

| «(۱)» | حَقه» | حق | ذَا | يَمْنَعُ | لَا | اللهَ | وَإِنَّ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او الله تعالی د حق خاوند لره د هغه د حق نه لیرې نه ساتي (یعنې هر حقدار ته د هغه حق خامخا ورکوي) | | | | | | | |

**توضیح**: حقه: یعنې مظلوم چې کله د الله تعالی مخې ته د ظالم د ظلم فریاد وکړي نو په حقیقت کې دا د الله تعالی نه خپل حق غواړي او الله تعالی د کوم حقدار حق نه ایساروي. ځکه د مظلوم بددعاء سمدستي لګي. او د الله تعالی د اړخ نه د هغې استقبال کیږي. چا ویلي دي:

*بترس از آه مظلوماں که هنگام دعا کردن اجابت از در حق بهر استقبال می آید*

یعنې د مظلومانو د آه و فریاد نه ځان وساته ځکه چې د هغوې د بددعاء د قبولیت لپاره د آسمان نه استقبال راځي. (مرقات ۸/۸۵۸)

## د ظالم مرسته کونکی د اسلام نه خارجیږي

| «مَنْ | ﴿۱۳﴾وَعَن أَوْسِ بن شَرحبيل أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
|---|---|
| او حضرت اوس بن شرحبیل رضي الله عنه نه روایت دی چې هغه د رسول الله نه دا اوریدلي دي: کوم سړی چې د کوم | |

| يَعْلَمُ | وَهُوَ | لِيُقَوِّيَهُ | ظَالِمٍ | مَعَ | مَشَى |
|---|---|---|---|---|---|
| ظالم تقویت او ملاتړ لپاره د هغه سره لاړ شي یعنې د هغه موافقت او ملاتړ وکړي او هغه په دې پوهیږي چې (د کوم سړی مرسته | | | | | |

| «(۲)» | » | الْإِسْلَامِ | مِنَ | خَرَجَ | فَقَدْ | ظَالِمٌ | أَنَّهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او تائید کوي) هغه یو ظالم انسان دی نو هغه سړی د اسلام نه خارج دی. یعنې هغه د کمال ایمان نه محرومه کیږي. | | | | | | | |

**توضیح**: **من مشی مع ظالم**: یعنې کوم سړې چې د کوم ظالم په ظلم کې د هغه داسې تائید او مرسته وکړه چې ظالم په خپل ظلم کې مضبوط شو او دا تائید کونکی پوهیږي چې دا سړی ظالم دی. په دې صورت کې دا تائید کونکی د اسلام نه خارجیږي. اوس پوښتنه دا ده چې د ګناه کبیره په کولو سره د اهل السنة په نزد باندې څوک د اسلام نه نه خارجیږي. نو دلته **فقد خرج من الاسلام**. څه مطلب دی؟
د دې جواب دا دی چې که د ظالم په مرسته او تائید کونکې د ظالم دا ظلم حلال ګڼي نو حرام لره حلال ګڼونکی کافر کیږي. لهذا دا سړی د اسلام نه خارج شو. لکه نن سبا چې مسلمانان حکمرانان د

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۲/۳۴۳ والبيهقي في شعب الايمان ۶/۴۹ رقم الحديث ۷۴۶۴.

(۲) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۱۲۲ رقم الحديث ۷۶۷۵.

امریکه ظلم کې دهغه مرسته کول لازم ګڼي.
دویم جواب دا دی چې: دا حکم تشدیدًا تغلیظًا تهدیدًا او زجرًا او توبیخًا دی. دریم جواب دا دی چې د اسلام نه مراد کامل اسلام دی. نو دا سړی به د کمال اسلام نه ووځي هسې به په اسلام کې خو وي. (مرقات ۸/۸۵۸)

## ظالم د ظلم سپره والی عام وي

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّهُ سَمِعَ رَجُلًا يَقُولُ: إِنَّ الظَّالِمَ |
| او د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې هغه د یو سړي نه واوریدل چې ظالم په حقیت کې خپل ځان ته |
| لَا يَضُرُّ إِلَّا نَفْسَهُ فَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: بَلَى وَاللهِ |
| نقصان رسوي. نو ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (دې اوریدلو باندې) وویل: بیشکه (ظالم د خپل ظلم په عمل سره خپل ځان |
| حَتَّى الْحُبَارَى لَتَمُوتُ فِي وَكْرِهَا |
| ته نقصان رسوي. خو د هغې سپیره والی نورو باندې هم اثر کوي) تردې چې حباری په خپله ژاله کې د ظلم د |
| هُزْلًا لِظُلْمِ الظَّالِمِ. رَوَى الْبَيْهَقِيُّ الْأَحَادِيثَ الْأَرْبَعَةَ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ» [1] |
| ظلم په وجه باندې خواریدلو سره مړه شي. څلور واړه روایتونه بیهقي په شعب الایمان کې نقل کړیدي. |

**توضیح:** حباری: د یو مارغه نوم دی. چې هغې ته په پښتو کې ملاچرګک (اردو کې ورته سرخاب) وایي. دا مارغه د اوبو په لټون کې ډیر ماهر دی. او په سوونو میله لیرې تګ سره اوبه ترلاسه کوي. خو دظالم د ظلم اثر دومره سپیره دی چې د وچکالۍ د وجې نه ملا چرګک هم په خپله ژاله کې د تَندې نه مړ شي. حالانکې دا مارغه د اوبو په ترلاسه کولو کې بی مثاله ده. حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا کلام د یو سړي په جواب کې وفرمایلو. هغه سړي ویل چې د ظالم د ظلم اثر د هغه تر نفس پورې خاص وي، بل چا ته نقصان نه ورکوي. حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې ولې نقصان نه رسوي؟ وګوره د حباری په شان مارغه د تَندې د وجې نه مړه کیږي. ځکه چې د ظالم د ظلم په وجه باندې باران بند شي. نو ن اوبه ختمې شي. حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شاید کوم حدیث اوریدلی وي. چې د هغې مضمون یې بیان کړو. (مرقات ۸/۸۵۹)



[1] اخرجه البیهقي في شعب الایمان ۶/۵۴ رقم الحدیث ۷۶۷۹.

۱۵ جمادی الاول ۱٤۱۸ھ

## باب الامر بالمعروف

## دامر بالمعروف بیان

**نوټ**: دامر بالمعروف د بحث مقام د دې لیکلی شوي تاریخ نه مخکې ؤ. خو د اهتمام په وجه باندې دا بحث وروسته ولیکلی شو. اوس د ششماهي امتحان نه وروسته دا لوستلی کیږي. ورسره ورسره لیکل هم جاري دي.

**قال الله تعالی**: ﴿كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ﴾ (ال عمران: ۱۱۰)

﴿اَلْاَمْرُ بِالْمَعْرُوْفِ﴾ دلته په دې عنوان باندې د شارحینو د اړخ نه د ټولو نه اول اعتراض دا راځي چې په قرآن او حدیث کې تقریبًا په هرځای کې د امر بالمعروف سره دنهی عن المنکر لفظ یو ځای کړی شویدی. دلته عنوان ترلو باندې صاحب مشکوة دا لفظ ولې پریخود لی دی؟

**جواب**:د دې یو جواب دا دی چې معروف ما عرفه الشرع په معنی دی. چې هغه منکر ته هم شامل دی. علامه ابن اثیر په نهایه کې لیکلي دي چې **طاعات الله** او **تقرب الی الله** او **احسان الی الناس** او هر هغه شی چې هغې اړخ ته شرع رابلل کړیدي، یا یې منع کړیده، ټولو ته د معروف لفظ شامل دی.

دویم **جواب**:دا دی چې احد الضدین دلته ذکر کړی شویدی. او دویم مقابل نهی منکر د سامع د فهم په بنیاد باندې پریخودل شویدی. او دغه شان په فصیح کلام کې کیږي. لکه د الله تعالی ارشاد دی ﴿وَجَعَلَ لَكُمْ سَرَابِيْلَ تَقِيْكُمُ الْحَرَّ﴾ (نحل:۸۱) دلته والبرد یې د سامع په فهم باندې پریخی دی. (مرقات ۸/۸۶۰)

دریم جواب : دا دی چې کیدی شي د ځینو ناسخینو او لیکونکو نه په لیکلو کې دا لفظ پاتې شوی وي. او بیا دغه شان رواج شوی وي. دا جواب ډیر واضحه دی. بهر حال دا لفظ د آشنا او پیژندګلو په معنې دی. نو کوم ته چې شریعت معروف ویلي دي . شرعًا هغه معروف دی. او کوم چې شریعت منکر ګرځولی دی، شرعًا هغه منکر دی. وس دا خبره په ذهن کې کینوئ چې د امر بالمعروف د لاندې د ادنی نه ادنی نیکې نه واخله تر اغلی نه اعلی نیکې داخله ده. دغه شان د المنکر د لاندې د غټ نه غټه او د وړې نه وړه ګناه داخل ده. په دې کې د تخصیص څه ځای نشته دی. په امر او نهې کې یو اړخ دشریعت ایجابی اړخ دی. او دویم سلبی اړخ دی. اول ته مامورات او اوامر وایې. او دویم ته نواهې او منهیات وایې. یو اړخ نرم دی ، دویم ګرم (تود) دی. څنګه چې په بجلۍ کې یو ګرم تار وي. او یو یخ تار وي. دواړو یو ځای کولو باندې برق(بجلۍ) رڼا کیږي. دواړو د یو ځای کولو نه بغیر نه رڼا نه راځي.نه ګرم تار یو اځې فائده مند دی. نه یخ فائده مند دی. دواړو کې تلازم دی. امر او د نهې هم دا حیثیت دی. دا د یو بل نه جدا کیدلی نشي. څنګه چې یې ځینې خلک کوي.

اوس نتیجه دا راووتله چې امر معروف سنن او مستحباتو ته هم شامل دی، او فرائض او واجباتو ته هم شامل دی. او منکر مکروهاتو ته هم شامل دی او حرام قطعی ته شامل دی.دمثال په توګه معروف واخلۍ چې د لارې نه تکلیف ورکونکی شی لیري کول او د مسلمان ورور سره په ورونې تندي مخ کیدل، دامر معروف یو ادنیٰ درجه ده . او د کلمه شهادت اقرار کول او کافرو ته د توحید دعوت ورکول دامرمعروف یو اعلی درجه ده. یا د مثال په توګه باندې منکر واخلۍ لکه په چَپ لاس باندې خوراک کول، ښي لاس باندې پوزه پاکول، ولاړه باندې په چپ لاس اوبه څکل. څنګه چې د منکر ادنی درجه ده او د دې نه منع کول نهی عن المنکر دی. دغه شان کفر او شرک او بدعت او زندقیت هم د منکر اعلی درجه ده او د دېنه منع کول هم نهی عن المنکر دی. ګویا په امر بالمعروف او نهی عن المنکر کې یوابتدایي او ادنی درجه ده. او یو انتهایي او اعلی درجه ده. وس کوم سړی چې معروف یا منکر په کومه درجه کې محنت او کار کوي ، هغه به د هغې مطابق ثواب ترلاسه کوي. که څوک د مکروهاتو نه منع کوي، نو دهغې مناسب ثواب به ورته ورکولی کیږي. او که د کفر نه منع کول کوي نو دهغې مطابق ثواب به ورکول کیږي. دغه شان معامله د معروف هم ده. او د دواړو درجې به جدا جدا وي. ظاهره ده چې څومره غټ کار یې وکړو هغومره غټ مقام به ورکول کیږي. داسې خو به نه وي چې کار خو یې وکړو ورکوټی او د غټ ثواب ورکړل کیدلو د امید په انتظار کې دی، داسې نه کیږي.لا یقاس الملوک بالحدادین. دغه شان کوم سړې چې معروف کار وکړو او دهغې دعوت یې ورکړو لیکن منکر کې هیڅ ونه ویل بلکې هغه یې مکمل توګه باندې پریخودلو نو ده ته به د منکر نه د منع کولو ثواب نه ورکول کیږي. ځکه چې هغه په دې کې کار ونه کړو. نو ثواب به د کوم ځاې نه ورکړل کیږي او ولې به ورکړل کیږي؟ څه چې یې وکړل د هغې ثواب به ورکړل کیږي.دغه شان په امر بالمعروف او نهی عن المنکر کې تلازم دی. وس که یو سړی داعقیده راتینګه کړي چې فقط د معروف حکم به کوم، منکر به خپله ختم شي. او دا سړی په خپلو بیاناتو او مکتوباتو کې خپرونه کوي چې معروف کوی او منکر کې هیڅ ونه ویل. داسې عقیده ساتل غلط دي. ځکه چې دا نوې فلسفه او پیداوار دی. او نوی شریعت دی. ددې لپاره العیاذ بالله نوی نبی او نوي قوانینو او قواعدو ضرورت دی. ځکه چې د قرآن او حدیث په پخوانې قوانینو کې خو دا دواړه یو ځاې ساتلی شویدي. چې په هغې کې تلازم ته اشاره ده. وس که د یو سړې په حکمت عملې سره په یو ځاې کې په امر بالمعروف باندې منکر ختم شو. نو دا حکمت عملې د شریعت کوم حکم موقوف یا منسوخ کولی نشي. دغه شان د نهی عن المنکر ضرورت ختمولو لپاره دا فرضي مثال بیانول چې د معروف مثال د رڼا په شان دی، او منکر تورتم دی. کله چې رڼا راشي ، تورتم به خپله ختم شي. دا مفروضه غلطه ده. او ددې جواب دا دی چې قرآن او حدیث متواتر حکمونه په دې مثالونو سره مه ماتوه ﴿فَلَا تَضْرِبُوْا لِلّٰهِ الْاَمْثَالَ﴾ (نحل : ۷۴)

**د امر بالمعروف او نهی عن المنکر تعریف**: اوس راځی او د امر بالمعروف او نهی عن المنکر شرعي اصطلاحي تعریف باندې پوهه شی. دې لپاره چې دا معلومه شي چې لفظ امر او لفظ نهی شرعي مفهوم څه دی. د اصول فقه په ټولو کتابونو مثلاً اصول الشاشي، نور الانوار او حسامي وغیره کې د اصول فقه علماؤ امر او د نهی تعریفونه داسې لیکلي دي:

(۱) **الامر هو قول القائل لغیره علی سبیل الاستعلاء افعل** (اصول الشاشی ونورالانوار)

(۲) **الامر امرته اذا کلفته ان یفعل شیئًا** . (مفردات القرآن)

(۳) **الامر طلب الفعل وموجبه عند الجمهور الالزام والنهی قول القائل لغیره علی سبیل الاستعلاء لاتفعل** (حسامی)

د دې ټولو تعریفونو خلاصه دا رووتله چې امر د حُکم په معنی دی. چې په هغې کې غیر ته حکم ورکولی کیږي چې دا کار وکړه او دا به کول وي. په دې کې په رضایې توګه باندې د کار کولو اپیل او درخواست او التماس نه وي بلکې د دوه ټکو په الفاظو کې حکم وي چې دا کار وکړه. که دوه نه کړو نو سزا لپاره تیار شه. او د دې ټولو تعریفونو نه معلومه شوه چې نن سبا تبلیغي حضرات د امر مفهوم د التماس او اپیل او درخواست په مفهوم باندې اخستلی دی. کوي او التماس او ثواب ګڼي. د امر. **فیاعجبا لهم**.

د امر صیغه تقریبًا په ۲۵ معنو کې استعمالیږي. لیکن شریعت چې په خپله شرعي اصطلاح کې کوم مفهوم ورکړی دی هغه هم هغه مفهوم دی کوم چې پاس د اصولو په کتابونو کې لیکلی شویدی. چې په هغې کې د حُکم (آرډر) مفهوم پروت دی. او د امر دا مفهوم خو د قوت نافذه او طاقت تقاضا کوي.

نو د دې وجې نه دنزول قرآن په وخت کې دیارلس کالو پورې الله تعالی مکي دور کې **تأمرون بالمعروف وتنهون عن المنکر** الفاظ او دا اصطلاح په قرآن کې بیخې ذکر نه کړه. کله چې مسلمانانو او پیغمبر اسلام دمکې نه مدینې ته هجرت وکړو او د اسمان نه د جهاد حکم راغلی. د دینه وروسته الله تعالی په قرآن مجید کې تأمرون بالمعروف او تنهون عن المنکر اصطلاح بیان کړه. تاته به په هیڅ مکې صورت کې دا اصطلاح او دا الفاظ ترلاسه نه شي. دا ټول په مدنې سورتونو کې دي. ګویا اسلامې حدود، سزاګانې، تعزیزات او جهاد، اوامر او نواهې دا ټول د یو عنوان امر بالمعروف او نهی عن المنکر بیلا بیل نومونه دي. مفتی اعظم پاکستان حضرت مولانا محمد شفیع رحمه الله معارف القرآن جلد ۱۱/۱۵۰ باندې لیکي چې اګرکه امر بالمعروف او نهی عن المنکر په تیرو شوؤ امتونو کې ؤ. چې د هغې تفصیل په قرآن او حدیث کې شته، خو اول خو په هغوې کې د جهاد حکم په

غټه پیمانه باندې نه ؤ، ځکه د هغوی امر په ژبه او زړه سره کیدلی شو . په امت محمدیه کې د دې دریمه درجه د لاس قوت سره امر معروف هم دی، چې په هغې کې د جهاد ټول قسمونه هم داخل دي. (معارف القرآن: ج۱\۱۵۰)

د حضرت مفتی شفیع رحمه الله د دې تشریح نه معلومه شوه چې د امر او نهی په مفهوم کې چې کومه اعلی او وچته درجه ده، هغه جهاد دی. نو د جهاد د حکم راتلو نه وروسته اسلام د امر او نهی اصطلاح خپله کړه. د تفسیرونو نه څو عبارتونه نقل کوم چې معلومه شي چې امر او نهی او جهاد کې څه نسبت دی.

(۱) علامه جصاص رحمه الله په احکام القرآن کې لیکلي دي: **فان الجهاد ضَرْبٌ من الامر بالمعروف والنهی عن المنکر** یعني جهاد مقدس د امر **بالمعروف او نهی عن المنکر** یو اعلی قسم دی. (ج۳\۱۱۹)

(۲) علامه قرطبی تفسیر قرطبی کې لیکي: **فجعل الله الامر بالمعروف والنهی عن المنکر فرقاً بین المؤمنین والمنافقین فدل على ان اخص اوصاف المؤمنین الامر بالمعروف والنهی عن المنکر ورأسها الدعاء الى الاسلام والقتال علیه.** (قرطبی: ج۴\۴۷)

(۳) علامه ابن کثیر رحمه الله د كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ لاندې لیکلي: **قال ابو هریرة** رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ **کنتم خیر امة اخرجت للناس تأتون بهم فی السلاسل فی اعناقهم حتی یدخلوا في الاسلام وقال ابو هریرة** رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ **نحن خیر الناس للناس نسوقهم بالسلاسل الى الاسلام.** (ترمذی: ج۱\۳۹)

(۴) علامه روح المعانی د كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ لاندې د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تفسیر په دې توګه نقل کړیدی: **وعن ابن عباس ان المعنی تأمرونهم ان یشهدوا ان لااله الا الله وتقاتلونهم علیها ولا اله الا الله هو اعظم المعروف وتنهون عن المنکر والمنکر هو التکذیب وهو الکر المنکر.** (روح المعانی ج۴\۲۸)

(۵) تفسیر کبیر کې علامه فخر الدین رازی رحمه الله یو پوښتنه کړیده چې امر بالمعروف او نهی او عن المنکر خو په نورو امتونو کې هم ؤ، بیا دا امت خیر الامم ولې وګرځولی شو؟

**جواب: قال القفال رحمه الله تفضیلهم على الامم انما حصل لاجل انهم یأمرون بالمعروف وینهون عن المنکر بآکد الوجوه وهو القتال لأن الامر بالمعروف قد یکون بالقلب وباللسان وبالید واقواها ما یکون بالقتال لانه القاء النفس في خطر القتل واعرف المعروف الدین الحق والایمان بالتوحید والنبوة وانکر المنکر الکفر بالله فکان الجهاد في الدین محملا لاعظم المضار لغرض ایصال الشخص الی اعظم المنافع**

فوجب ان يكون الجهاد اعظم العبادات ولما كان الجهاد في شرعنا اقوى منه من سائر الشرائع لاجرم صار ذلك موجبًا لفضل هٰذه الامة من سائر الامم. (تفسير الكبير: ج۸\۱۹۱، ۱۹۲)

(۶) شاه عبدالقادر رحمه الله د ايت: كُنْتُمْ خَيْرَ اُمَّةٍ د لاندې د امر بالمعروف تفسير داسې کړی دی: دا امت د هر امت نه غوره دی. په دې دوه صفتونو کې امر معروف يعنې جهاد او ايمان يعنې د توحيد تقيد (تاکيد) د غومره په بل دين کې نشته دی. (موضح القرآن: ۱۰۳)

شاه عبدالقادر د آيت وَلْتَكُنْ اُمَّةٌ د لاندې امر معروف سره متعلق په دې توګه ليکي: معلومه شوه مسلمانانو کې فرض دي چې يو جماعت قائم وي جهاد کولو لپاره او د دين تقيد ساتلو لپاره، تر دې چې د دين خلاف څوک ونکړي.

پاس ليکلی شوؤ ټولو عبارتونو خلاصه دا راووتله چې د امر په شرعي اصطلاحي مفهوم کې دعوت سره د جهاد مفهوم پروت دی. چې هغه د امر اصل او بنيادې مفهوم دی. او د دې جهاد د وجې نه دا امت خير الامم جوړ شويدی. لهذا د امر د امفهوم نه جهاد خارج کيدلی نشي. بلکې د جهاد نه بغير د امر مفهوم مکمل کيدلی نشي. د تبليغي جماعت خلک خو يا خپله دهوکه کې پراته دي يا نورو ته دهوکه ورکوي.

**د امر بالمعروف حکم**: د امر بالمعروف حکم د فرض کفايه په درجه کې دی که د مسلمانانو يو جماعت دا کار کوي نو د پاتې مسلمانانو ذمه به ساقط شي. هو که يو سړې ته د کوم خاص منکر علم وي او نورو ته نه وي، او هغه سړی د دې منکر په ختمولو باندې هم قادر وي نو ده ته د غه وخت امر بالمعروف کول د هغه لپاره به فرض عين شي د غه شان امر بالمعروف هغه وخت هم فرض عين کيږي کله چې څوک يو سړی د بدی نه منع کړي، هغه سړی د منع کيدلو نه مکمل انکار وکړي. وس نيغ په نيغه باندې د دې منکر نهې په سړي باندې به فرض شي. د امر بالمعروف په باب کې په هر سړي باندې دوه شيان لازم او واجب دي. اول شی د امر معروف او نهی منکر کول واجب دي. او دويم شی خپله په هغې باندې عمل واجب دي. که کوم سړی خپله عمل نه کوي نو دا ډير غټ جرم دی. ليکن د دې مطلب دا ندی چې دا سړی د امر او نهې فريضه پريږدي. که يو نيک کار يې ونکړی شو، دويم خو دې وکړي.

البته د داسې سړي په دعوت او وعظ کې په اثر نه وي. خو کول يې لازم دي. د عارفينو کلام دی: **انظروا الى ما قال ولا تنظروا الى من قال**: باباسعدی دا نظريه غلطه ګرځولې ده چې د عمل نه کولو والا دې ييخې وعظ نه کوي: وې ويل چې:

*باطل است آنچه مدعى گويد     خفته را خفته كے كند بيدار*

يعنې د مدعي دا وينا غلطه ده چې يو اوده بل اوده لره نشي رابيدارولی. وګوره په ديوال باندې ليکلی شوې عبارت نه خلک نصيحت اخلي.

د دې بحث نه وروسته په دې پوهیدل ضروري دي چې امر او نهې کونکې سړې لپاره ضروري دي چې هغه امر اونهې پیژني. او د هغه سره د دې علم وي. ګني هغه به معروف لره منکر او منکر لره معروف جوړ کړي. او نقصان به وکړي. هم دا وجه ده چې ﴿وَلْتَكُنْ مِنْكُمْ﴾ کې مِن د تبعیض لپاره دی. ځکه چې هر سړی د دې اهل نه دی. هو! علماؤ لیکلي دي چې کومه طبقه د کومو اوامرو او نواهیو سره مناسبت لري، هغوې لره په هغه شعبه کې په امر او نهې باندې دې مامور کړی شي. د حاکمانو لپاره د حدوداتو او تعزیراتو شعبه سا تل پکار دي. هغوې دې هغه نافذ کړي. او علماؤ په ذمه دې د شریعت دقیق مسئلې دي، هغوې د دې دعوت ورکړي. او عامو نیکیو حکم ورکول او د بدو نه منع کړل د عوامو ذمه ده. یعنې واضح غټ غټ احکامات دې عوام بیان کړي. په تفصیل کې دې نه ځي. ځینو علماؤ دا ذمه داري په دې ترتیب سره تقسیم کړیدي چې د حاکمانو د لپاره امر بالسنان دی. یعنې د نیزې په ثوکه باندې دعوت ورکولو باندې د منکراتو نه خلک منع کړي. او د علماؤ لپاره امر باللسان دی. او د عوامو لپاره د زړه نه د بد منلو درجه ده. د دې نه وروسته په دې خبره ځان پوهه کړی، که د آمر او داعې مخې ته فرض حکم راغلی نو د هغې دعوت فرض دی او که واجب دی نو دعوت هم واجب دی. او که حکم استحبابي دی نو دعوت هم مستحب دی او د سنت دعوت هم سنت دی. هو! که د فتنې ویره وي نو بیا امر معروف پرېخودلی کیدی شي. امام غزالی په احیاء العلوم کې د امر بالمعروف او نهی عن المنکر چې کوم بحث کړیدی هغه د سرکاري محکمې امر بالمعروف او نهی عن المنکر بحث دی. په نورو الفاظو کې ورته حسبه ویلی شویده. نن سبا په ۲۰۰۵ء کې صوبه سرحد کې چې کوم حسبه ایکټ مجلس عمل تیار کړیدی هغه هم د دې امر بالمعروف او نهی عن المنکر شعبه ده. بهر حال که ثوک یې مني او که نه یې مني، زمونږ کار ویل ؤ.

مسافر راستہ دیکھے نہ دیکھے چراغ رہ گزر جلتا رہیگا

کوئی اس خیر کو مانے نہ مانے خطیبوں کا خطاب ہوتا رہیگا

نور تفصیل د دې باب په حدیث نمبر ۱ کې وګورئ.

## الفصل الاول

۱۷ جمادی الاول ۱۴۱۸هـ

### چا چې بدې ولیدله نو هغه دې ختمه کړي

| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي سعيدٍ الخدريّ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| --- |
| او حضرت ابو سعید خدری رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي چې نبی صلی الله علیه وسلم وفرمایل: په |
| « مَنْ رَأَى مِنْكُمْ مُنْكَرًا فَلْيُغَيِّرْهُ بِيَدِهِ |
| تاسو کې چې کوم سړی کوم خلاف شرع کار ویني نو هغه لپاره پکار دي چې هغه شی په خپلو لاسونو سره بدل کړي او که |

| فَبِلِسَانِهِ | يَسْتَطِعْ | لَمْ | فَإِنْ |
|---|---|---|---|
| هغه په خپلو لاسونو سره دهغه کار کولو طاقت نه لري نو د ژبې په ذریعه سره دې د غه کار وکړي او که | | | |
| فبقلبه | يَسْتَطِعْ | لَمْ | فَإِنْ |
| د ژبې په ذریعه سره هم دغه کار کولو طاقت نلري نو بیا د ې د زړه په ذریعه سره هغه کار انجام کړي. او | | | |
| وَ ذَٰلِكَ أَضْعَفُ الْإِيمَانِ » . (رَوَاهُ مُسلِمٌ)[1] | | | |
| دا (آخرې درجه) د ایمان د ټولو نه کمزورې درجه ده . | | | |

**توضیح: من رأى منكم:** اول شی خو د بدۍ په خپلو سترګو باندې کتل دي. تر څو چې څوک کوم منکر ونه ګوري، تر هغه وخته پورې هغه ته د بدۍ ختمول متوجې ندي. او کله چې هغه بدې د کتلو نو د قدرت لرلو په صورت کې په لاس سره دهغې ازاله او ختمول فرض دي. په دې شرط سره چې د کومې غټې فتنې خطره نوي.

**مِنْكُمْ:** په لفظ سره اشاره وکړی شوه چې امر بالمعروف او نهی عن المنکر ذمه دارې په هغه ښاغلو باندې ده چې هغوې معروف او منکر پیژني. او هغه خلک متفق علیها او مختلف فیها مسائل کې فرق کولی شي. هغوې ناسخ او منسوخ پیژني. او مکي او مدني نصوصو کې فرق کولی شي. **وَلْتَكُنْ مِنْكُمْ أُمَّةٌ:** کې په مِن بعضیه سره هم دیته اشاره شویده. بهرحال په قوت سره نافیذونکې احکاماتو تعلق د حکمرانانو سره دی او دقیق مسائلو باندې مشتمل او امر او نواهي تعلق د علماؤ سره دی. او عام فهم مسائلو ذمه دارې په عامو خلکو باندې ده . مثلا: داسې سرسرې مسائل چې عوام هغه پیژني، د مثال په توګه باندې دا ویل چې شراب حرام دي او لمونځ کول فرض دي. روژه فرض ده، سود خوړل حرام دي. د دینه ډیرې فلسفې بیانول او دوه دوه ګهنتې بیان د عوامو لپاره جائز ندي. لکه څنګه چې جاهلان تبلیغیان کوي. (مرقات ۸/۸۶۰)

**فلیغیره بیده:** یعنې لاس اچولو سره بدې منع کړي. او دهغې په خلاف باندې مسلح کوښښ وکړي. دا د ټولو نه اعلی درجه ده. په دې کې قوت او مټ د استعمالولو ترغیب ورکړی شویدی. چې هغه په حقیقت کې د جهاد کولو او دهغې نه علاوه د منکراتو نه دفاع شامل ده.

**بیده:** د مټ زور ته اشاره ده . ځینې حضرات وایې چې د دې حدیث مطلب دا دی چې د منکر او بدۍ خاتمه وشي، دا دهغه ښاغلو د غلط سوچ نتیجه ده. ځکه چې دلته دیده لفظ شته دی. که په لاس سره منع کولو او د ید لفظ ذکر نه وی نو بیا د هغوې خبره او ریدلی کیدی شوه خو کله چې په لاس سره د منع کولو تصریح شته دی نو د دېنه وروسته دویمه معنی اخستل د حدیث نه اعراض یا په هغې باندې د اعتراض مترادف دی چې په هغې کې د تحریف خطره ده

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۶۹ رقم الحديث (۴۹-۷۸) وأبوداود في السنن ۴/۵۱۱ رقم الحديث ۴۳۴۰.

ځکه چې پېغمبر اسلام صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د منکر د ختمولو لپاره درې درجې ويلي دي. چې په هغې کې اوله درجه د ازاله باليد ده. اوس ازاله باليد دخپلو کمزوريو په پردو کې پټول او په هغې کې تاويلونه کول او دهغې لپاره مثالونه بيانول او په قصو سره دهغې فائدې کمول، دا ددين کار نه دی، نه د دين خدمت دی ﴿فَلَا تَضْرِبُوا لِلّٰهِ الْاَمْثَالَ﴾ (نحل: ۷۴) تبليغی جماعت لپاره په کار دي چې د دين تابع شي. دين دې د ځان نه تابع کوي. (مرقات ۸/۸۶۱)

**فبلسانه**: په ژبه باندې د منکر د ازالې مطلب دا دی چې حق صفا بيان کړی شي. په واضح الفاظو باندې د حق اعلان دې وکړی شي. او بيا دې دا حق نورو ته ورسوي. په دې کې په ژبه سره تهديد او تغليظ هم وي، د موقع او محل په مناسبت سره گرمي هم وي. او نرمې هم وي، ترغيب هم وي او ترهيب هم وي. دا فريضه نن سبا علماء کرام د تدريس په ذريعه سره پوره کوي. په جوماتونو کې تقرير او جريدو او رسالو کې د تحرير په ذريعه سره پوره کوي. د تبليغې جماعت ملگرې د چلو او گشتونو په ذريعه سره پوره کوي، خو ياد ساتل پکار دي، امر بالمعروف او نهی عن المنکر هم لازم دی. فتاوی عالمگيريه کې ليکلي دي چې سړی دې اول په ژبه باندې په نرمۍ سره پوهه کړي که ونه يې نه منله نو بيا دې سختې وکړي او که قدرت او طاقت وي نو بيا د لاس په وروړلو سره دې منع کړي. مثلًا شراب دې منع کړي. او د ډهول باجې آلات دې مات کړي.

زجاجة المصابيح کې ليکلي دي چې که د امر کونکې آمر رايه غالبه وي چې خلک به دهغه ومني او د منکر نه به منع شي نو دغه وخت نهی عن المنکر واجب ده. او که دا گما وي چې خلک به يې ونه مني، کنځل به وکړي، وهل به وکړي، نو دغه وخت نهی عن المنکر پريخودل افضل دي. دغه شان که د غټې فتنې راپورته کيدلو خطره وی نو دغه وخت هم نهی عن المنکر پريخودل جائز دی. او که داعې او امر کونکی سړی ټول مشقتونه برداشت کولی شي نو بيا نهی عن المنکر کول افضل دي او سړی مجاهد دی. علامه زنديسی رحمه الله ليکلي دي چې امر باليد دحاکمانو کار دی. امر باللسان د علماؤ کار دی. او امر بالقلب د عوام الناس کار دی.

**فبقلبه**: د دې مطلب دا دی چې په زړه کې د دغه منکر نه کرکه کوي د هغې په کونکې باندې غصه وي او په زړه کې پخه اراده وي چې کله موقع ترلاسه شي نو زه به په لاس سره دا منکر ختموم دا د ادنی درجې ايمان دی. که دا جذبه په زړه کې نه وي. نو بيا په زړه کې هم هيڅ نشته. (مرقات ۸/۸۶۱)

**اضعف الايمان**: يعنې د ايمان د اثراتو دا کمزورې ثمره ده. او د ايمان په حواله سره دا سړی د آخرې درجې مسلمان دی. د دېنه وروسته به هغه سړی مسلمان نه وي. ځکه چې کوم سړی بدی او ښيگړه کې فرق نه مني هغه د خپل شريعت او قرآن او حديث د اوامرو او نواهيو نه انکار کوي. او دا کفر دی. ځکه چې د حرام نه نهی واجب ده. دمکروهاتو نه نهې مستحب ده. دا سړی په ايمان کې

کمزوری څکه وکړځولی شو چې ده د قوت اول دوه درجو ته اهمیت ورنکړو . فتاوی عالمګیري کې امر بالمعروف لپاره پنځه شرطونه دي:(۱) د داعي عالم کیدل (۲) د الله رضا او اعلاء کلمة الله مقصود کیدل (۳) چاته چې دعوت ورکوي په هغه باندې شفقت او نرمي کول(۴) هر مشقت باندې صبر کول (۵) داعي چې څه وایي په هغې باندې خپله عمل کول. (مرقات ۸/۸۶۱)

## امر بالمعروف او نهی عن المنکر پریښودل اجتماعي عذاب ته بلنه ورکول دي

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: " مثلُ المدهنِ |
| او حضرت نعمان بن بشیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: د خدای په تپاکلی شوؤ |
| فِي حُدُودِ اللهِ وَالْوَاقِعِ فِيهَا مَثَلُ |
| حدودو کې غفلت او سستي کونکي او په دې حدودو کې راغورزیدونکي یعني د ګناه کونکي مثال د هغه |
| قَوْمٍ استهموا سفينة فَصَارَ بَعْضُهُمْ فِي أَسْفَلِهَا |
| خلکو په شان دی چې هغوي څخښي اچولو باندې په کشتۍ کې ناست وي. نو په دوې کې ځیني خلک د کشتۍ په لاندې |
| وَصَارَ بَعْضُهُمْ فِي أَعْلَاهَا فَكَانَ الَّذِي فِي أَسْفَلِهَا |
| برخه کې کیناستل او ځیني خلک پاس برخه کې کیناستل. بیا کوم خلک چې د کشتۍ په لاندې برخه کې وي |
| يَمُرُّ بِالْمَاءِ عَلَى الَّذِينَ فِي أَعْلَاهَا |
| هغوي چې کله د اوبو اخستلو لپاره پاسنۍ برخې ته راشي نو په دې برخه کې ناست خلک د دې په راتګ سره |
| فَتَأَذَّوْا بِهِ فَأَخَذَ فَأْسًا فَجَعَلَ يَنْقُرُ أَسْفَلَ |
| تکلیف محسوسوي نو د لاندې برخې په خلکو کې یو کَس داسې وکړي چې په تبرګي سره د کشتۍ تخته |
| السَّفِينَةِ فَأَتَوْهُ فَقَالُوا: مَالك؟ |
| ماتول شروع کړي. نو پاس خلک هغه ته راشي او هغه ته ووایي چې دا په تا څه شویدي؟ په دې باندې هغه |
| قَالَ: تَأَذَّيْتُمْ بِي |
| سړی جواب ورکړي چې کله زه پاس ځم او ستاسو ترمینځ تریږم نو تاسو تکلیف او ناخوښي محسوسوۍ او زه |
| وَلَا بُدَّ لِي مِنَ الْمَاءِ. فَإِنْ أَخَذُوا عَلَى يَدَيْهِ |
| د اوبو په ترلاسه کولو باندې مجبوره یم. په داسې حالت کې خو دې یا دا خلک د ده لاس ونیسي، دې لپاره |

| أَهۡلَكُوهُ | تَرَكُوهُ | وَإِنۡ | أَنۡفُسَهُمۡ | وَنَجَّوۡا | أَنۡجَوۡهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې ده لره هم او خپل ځان لره هم وساتي يا ده لره په خپل حال باندې پرېږدي او بيا ده لره هم په هلاکت کې | | | | | |
| وَأَهۡلَكُوا أَنۡفُسَهُمۡ "(رَوَاهُ الۡبُخَارِيّ)(۱) | | | | | |
| واچوي او خپله هم هلاک شي. (بخاری) | | | | | |

**توضیح:المداهن:** کوم سړی چې منکر ته ګوري مثلاً زنا کيږي، شراب څکل کيږي. غلاوي کيږي. ډاکې کيږي. خيانتونه کيږي. ګډاګانې او سرودونو مجلسونه کيږي. او دا سړی د هغې په ايسارولو باندې هم قدرت لري خو د چا د لحاظ د وجې نه يا د څه طمع او لالچ د وجې نه څه نکوي بلکې هر څه په خوشحالۍ برداشت کوي. دا مداهنت دی چې حرام دی او دا سړی مداهن دی او هم د ده لپاره وعيد دی. دمداهنت په مقابله کې مدارات دي. دا دهغه نرمۍ نوم دی چې يو سړی د خپلو حقوقو نه لاس په سر شي. د شراو ضرر نه د ځان ساتلو لپاره د شرافت نفس د لاندې د خلکو دردونه برداشت کوي. او نرم بنويې ساتي . دې ته ويلی شويدي چې: دارهم مادمت فی دراهم يعنې ترڅو پورې چې دهغه په کور او ګاونډ کې يې ، دهغه سره تعلق ساته او د دې په اړه ويلی شويدي چې :

آسائش دو گیتی تفسیر ایں دو حرف است        بادوستاں تلطف بادو شمناں مدارا

په اسلام کې مدارات جائز دي او مداهنت حرام دی. حضرت اشرف على تهانوي رحمه الله په ملفوظاتو کې ليکلي دي چې مسلمان لره د ريښمو په شان کيدل پکار دي چې ريښم ډير نرم دي. خو که څوک يې ماتول غواړي نو نه ماتيږي. يعنې حق بات وايه خو لهجه د ريښمو په نرمه ساته او حق مه پرېږده . د ريښمو په شان په هغې باندې مضبوط وسيږه. خلاصه دا چې په مداهنت کې شخصي او ذاتي فائدو خيال ساتلی کيږي. او په مدارات کې شريعت او دهغې د قواعدو خيال ساتلی کيږي چې په دې کې د دين عمومي فائده ده .(مرقات ۸/۸۶۳،۸۶۴)

**استهموا سفينة:** يعنې کور او سيټ نيولو لپاره خښنې کول. په دې خبره پوهيدل ضروري دي په سمندري کشتۍ کې د ناستې لپاره بيلابيلې برخې وي او په ټولو کې راحت او آرام په اعتبار سره فرق وي. د ټولو نه پاس برخه عرشه بللی کيږي. چې هغه د ټولو نه ډيره ښايسته وي. مخکنۍ زمانه کې په کشتۍ کې د ناستې په اعتبار سره څه فرق نه ؤ. د ټولو درجو ټکټ به په يو قيمت باندې ؤ. نو ځکه په هغه زمانه کې د ښه او بيکاره ځای د تقسيم لپاره د خفګان ختمولو لپاره به خښنې اچول کيدلو . دې لپاره چې څه ګله نه وي. نن سبا د ټکټ او قيمت اعتبار دی. که ټکټ يې ګران اخستلی دی. نو ښه ځای به ورکړی کيږي چې هغې ته فرسټ کلاس وايې ګنې سيکنډ او تهرډ کلاس کې به ناسته وي. او ديکې به خوري. په دې حديث کې د خښنې چې کوم ذکر دی دا دهغه پس منظر په رڼا کې دی. (مرقات ۸/۸۶۴)

**في اسفلها:** پخوانۍ زمانه کې به د کشتۍ دا قانون ؤ چې او به به پاس په عرشه کې ترلاسه کيدلې، لهذا لاندې

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۵/۲۹۲ رقم الحديث ۲۶۸۶ والترمذي في السنن ۴/۴۰۸ رقم الحديث ۲۱۷۳.

ناست خلک به پاس ختلو باندې او به ترلاسه کولو سره لاندې راتلل. ډیر وختونه به د دې تیریدونکو د وجه نه د هغه ځای خلکو تکلیف محسوسولو . نو هغوې به دوې ته ویل چې په مونږ مه تیریږئ ، مونږ مه تنګوئ. خپله د خپلو اوبو بندوبست وکړئ. په دې حدیث کې دې چې فرض کړه که داسې صورت پیدا شي نو او لاندې برخې خلکو په تبرګې سره د کشتۍ لاندینۍ برخه ماتول شروع کړه، دې لپاره چې د سمندر نه اوبه ترلاسه کړي. وس که پاسنو دې منکر منع کولو کوښښ وکړو نو ټول به بچ شي. خو که هغوې منع نکړل نو په سورې سره به اوبه دننه راتلو باندې ټوله کشتۍ د اوبو نه ډکه شي او بیا به ډوبه شي. دا مثال دی د امر معروف او نهی منکر ، که د منکر نه په معاشره کې انکار وي نو معاشره به بچ شي خو که د منکر نه انکار ختم شو نو د اجتماعي عذاب په راتګ سره به ټوله معاشره تباه شي. لهذا مسلمانانو او د هغوې په حکمرانانو باندې فرض دي چې هغوې د الله تعالی د حدودو لحاظ وساتي. ګنې ټول به تباه شي.(مرقات ۸/۸۶۴)

## د بې عمله واعظ انجام

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " يُجَاءُ بِالرَّجُلِ |
| او حضرت اسامه بن زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: د قیامت په ورځ به |
| يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيُلْقَى فِي النَّارِ فَتَنْدَلِقُ أَقْتَابُهُ |
| یو سړی راوستلی شي چې هغه به اور کې واچولی شي او اور ته په رسیدلو سره به سمدستي د هغه کولمې بیرون راوځي، |
| فِي النَّارِ فَيَطْحَنُ فِيهَا كَطَحْنِ الْحِمَارِ بِرَحَاهُ |
| او هغه به کولمې داسې میده کوي څنګه چې خر د خپلې میچنې په ذریعه سره اوړه میده کوي. نو (د دې |
| فَيَجْتَمِعُ أَهْلُ النَّارِ عَلَيْهِ فَيَقُولُونَ: أَيْ فُلَانُ مَا شَأْنُكَ؟ |
| سړي حالت کتلو باندې به) دوزخیان هغه ته راغونډ شي او ورته به وایي چې ای فلانکې سړیه! دا ستا څه حال دی؟ |
| أَلَيْسَ كُنْتَ تَأْمُرُنَا بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَانَا عَنِ الْمُنْكَرِ؟ قَالَ: |
| تا خو به مونږ ته د نیک کار تلقین او نصیحت کولو ، او د بدو کارونو نه به دې منع کولو . هغه سړی به جواب |
| كُنْتُ آمُرُكُمْ بِالْمَعْرُوفِ وَلَا آتِيهِ |
| ورکړي چې بیشکه ما به تاسو ته د نیک کار تلقین کولو ، خو خپله به مې هغه نیکې نکوله او تاسو |
| وَأَنْهَاكُمْ عَنِ الْمُنْكَرِ وَآتِيهِ ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1] |
| به مې د بد کار نه منع کولی. خو خپله به د هغه بد کار نه نه منع کیدلم. |

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۳۳۱ ۶ رقم الحديث ۳۲۶۷ .ومسلم في صحيحه ۴/۲۲۹۰ رقم الحديث (۲۹۸۹-۵۱)

**توضیح: فتندلق:** اندلاق: چاودلو او ژر ژر بیرون راوتلو په معنی دی. یعنې دا بې عمله واعظ چې کله د دوزخ په اور کې غوپه کړی شي نو په اور کې به د ده کولمي سمدستي چاودلو سره بیرون راوځي.

**اقتاب:** دا جمع ده. د دې مفرد قتب دی. قاف باندې کسره او تا باندې فتحه ده. کولمو ته وایي. لیکن د لغت امام ابو عبیده ویلي دي چې اقتاب خیټه کې دننه د کولمو سره هر څه ته وایي. او د کولمو لپاره د اقصاب لفظ ویلی کیږي. په دې فرق سره د حدیث مفهوم ډیر فراخه شو او مطلب واضحه شو.

**فیطحن:** دا د مضارع معلوم صیغه ده. د اوړو اغږلو په معنی دی. یعنې دا سړی به د کولمو نه ګیر چاپیره ګرځي او هغه به میده کوي.

**کطحن الحمار:** دلته طحن مصدر دی چې مضاف الی الفاعل دی. او مفعول محذوف دی او برحاه کې با استعانت لپاره ده. اصل عبارت داسې دی: **کطحن الحمار الدقیق باستعانة الرحی**.(طیبی) (مرقات ۸/۸۶۶ الکاشف :۸/۳۱۳)

علامه طیبی فرمایي چې دلته تشبیه المرکب بالمرکب ده. چې تمثیل ورته وایي. چې په هغې کې د یو هیئت سره بل هیئت ته تشبیه ورکړی شویده. دلته ارټ باندې تړلی شوی خر یا میچنه پسې تړلی شوی خر او دهغې نه ګیر چاپیره تاویدل او د میچني ګرځیدل او اوړو میده کیدل دا یو کیفیت او هیئت دی. او امر معرو کولو سره د بدعمل واعظ دوزخ ته تګ او د خیټې نه د ټولو شیانو راوتل او د دغه سړي په هغې باندې ګرځیدل او د کولمو وغیره میده کیدل دا دویم کیفیت دی. دې دواړو لره د یو بل سره تشبیه ورکړی شویده. بهرحال دې سړي ته دا سزا د عمل نه کولو په وجه باندې به ورکولی کیږي. د دې وجې نه نه چې هغه دا دعوت ولې ورکړی دی.(الکاشف :۹/۳۱۳)

## الفصل الثاني

## امر بالمعروف او نهی عن المنکر کوي ګنې اجتماعي عذاب ته تیار شۍ

| |
|---|
| ﴿۴﴾عَنْ حُذَيْفَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «وَالَّذِي |
| حضرت حذیفه رضی الله عنه نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي چې نبی صلی الله علیه وسلم وفرمایل: قسم دی په هغه پاک ذات |
| نَفْسِي بِيَدِهِ لَتَأْمُرُنَّ بِالْمَعْرُوفِ وَلَتَنْهَوُنَّ عَنِ الْمُنْكَرِ أَوْ لَيُوشِكَنَّ اللهُ أَنْ يَبْعَثَ عَلَيْكُمْ |
| باندې چې د چا په لاس کې زما ځان دی تاسو یقینًا د امر بالمعروف او نهی عن المنکر فریضه کوئ یا ډیر ژر به |
| عَذَابًا مِنْ عِنْدِهِ ثُمَّ لَتَدْعُنَّهُ وَلَا يُسْتَجَابُ لَكُمْ » . رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ [1] |
| الله تعالی تاسو باندې خپل عذاب نازل کړي، بیا به تاسو د الله تعالی نه دعا هم غواړئ، نو ستاسو دعا به نه قبلیږي. |

[1] اخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۰۶ رقم الحديث ۲۱۶۹، وابن ماجه ۲/۱۳۲۷ رقم الحديث ۴۰۰۴، احمد في المسند ۵/۳۸۸.

**توضیح**: عذاباً: د دې حديث يو مطلب دا دی چې تاسو امر معروف او نهی منکر کوی ګنې الله تعالی به په تاسو باندې خپل عذاب راولیږي. بيا به تاسو د دغه عذاب د لیرې کولو لپاره دعاګانې غواړی لیکن دعا به نه قبلیږي. د دې حدیث دویم مطلب خپله بزار او طبرانې يو حديث نه واضح کیږي. هغه مطلب داسې دی چې حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: په دوه خبرو کې د يوې خبرې کيدل ضروري دي يا تاسو يقيناً امر بالمعروف او نهی عن المنکر کوی يا د دې دواړو کارونو د پریخودلو باندې به يقيناً الله تعالی په تاسو باندې ناكاره خلک مسلط کړي، بيا ستاسو نيکان خلک به (د ناكاره خلکو د هلاکت لپاره) دعا کوي خو د هغوی دعاء به نه قبلیږي. (طبرانی اوسط) (مرقات ۸/۸۶۶)

## د ګناه نه کرکه نه کول په هغې کې د ګډون په شان ده

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنِ الْعرس بن عَمِيرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِذَا |
| او حضرت عرس بن عمیره د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت کوي چې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: کله چې په |
| عُمِلَتِ الْخَطِيئَةُ فِي الْأَرْضِ مَنْ شَهِدَهَا فَكَرِهَهَا كَانَ كَمَنْ غَابَ عَنْهَا |
| زمکه باندې ګناهونه وشي نو کوم سړی چې دغه ګناهونه بد وګڼي دا د هغه سړي په شان دی کوم چې هلته نوي |
| وَمَنْ غَابَ عَنْهَا فَرَضِيَهَا |
| او کوم سړی چې هلته نوي خو هغه د دې ګناهونو په واقع کيدلو باندې خبروي او هغه دغه ګناهونه بد ونه ګڼي |
| كَانَ كَمَنْ شَهِدَهَا» . رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| نو دا د هغه سړي په شان دی کوم چې هلته موجود وي. |

**توضیح**: كَمَن شهدها: ظاهره ده کوم سړی چې د کومې په اړه باندې واوري او د هغه په خله کې او به راځي چې کاش زه هم هلته وی او خوند به مي اخستلی وی او تفریح به مې شوی وی او مزې به مې کړې وی نو دغه سړي د ګناه سره موافقت وکړو، کرکه يې ونه کړه. دا سړی اګر که په زرګونو ميله د دې ګناه نه لیرې وي، دا به په دې ګناه کې شريک ګڼلی کیږي. خو يو سړی مثلًا د ګناه په مجلس او د هغې په علاقه کې دی، ګناه په سترګو ويني خو په زړه سره د هغې نه کرکه کوي او هغه بد ګڼي، دا سړی داسې دی لکه ګويا هغه نه ګناه کړې ده او نه يې هغه ليدلې ده. د دې وجه دا ده چې انسان د ايمان آخرې درجه په زړه سره د بد ګڼلو ده. چا چې بد ومنلو هغه کامياب شو، چا چې بد ونه منلو، ناکامه شو. د نژدې والي او ليرې والي (قرب وبُعد) اعتبار په کې نشته دی.

---

[1] اخرجه أبوداود في السنن ۴/۵۱۵۰ رقم الحدیث ۴۳۴۵.

## همت مه بایله اوس د ګناهونو د ختمولو وخت دی

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنكم تقرؤون هذه الآية: |
| او د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه روایت دی چې (یوه ورځ) هغه وفرمایل: خلکو! تاسو دا آیت لولی: |
| (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا عَلَيْكُمْ أَنْفُسَكُمْ لَا يَضُرُّكُمْ مَنْ ضَلَّ |
| یعنې ای مؤمنانو! تاسو خپل نفسونو لازم ونیسی. کوم سړی چې بې لارې شو هغه تاسو ته ضرر نشي در رسولی |
| إِذَا اهْتَدَيْتُمْ) فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
| او حال دا وي چې تاسو په هدایت یاست پس ما د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه دا اوریدلي دي چې کله |
| «إِنَّ النَّاسَ إِذَا رَأَوْا مُنْكَرًا فَلَمْ يُغَيِّرُوهُ |
| خلک یو خلاف شرع کار ووینی او د هغې د اصلاح او ماتوني کوښښ ونکړي او خلک د هغې نه لیري ونه ساتي |
| يُوشِكُ أَنْ يَعُمَّهُمُ اللهُ بِعِقَابِهِ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ وَالتِّرْمِذِيُّ |
| نو نژدې ده چې الله تعالی هغوې په خپل عذاب کې اخته کړي دا روایت ابن ماجه او ترمذي نقل کړیدی |
| وَصَحَّحَهُ. وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُد: «إِذَا رَأَوُا |
| او دا يې صحیح ګرځولی دی: د غه شان د ابو داؤد په روایت کې داسې دي چې کله خلک څوک په |
| الظَّالِمَ فَلَم يَأْخُذُوا عَلَى يَدَيْهِ أَوْشَكَ أَنْ يَعُمَّهُمُ اللهُ بِعِقَابٍ». |
| ظلم کولو باندې ووینې او د هغه لاس ونه نیسي نو نژدې ده چې الله تعالی دا ټول په خپل عذاب کې راګیر کړي. |
| وَفِي أُخْرَى لَهُ: «مَا مِنْ قَوْمٍ يُعْمَلُ فِيهِمْ بِالْمَعَاصِي |
| او د ابوداؤد په یو بل روایت کې دا الفاظ دي چې په کوم قوم کې ګناه او د معاصي کول شروع شي او د |
| ثُمَّ يَقْدِرُونَ عَلَى أَنْ يُغَيِّرُوا ثُمَّ لَا يُغَيِّرُونَ |
| هغه قوم خلک د هغې د اصلاح او ماتوني قدرت لري خو د دې سره هم هغوې د هغې اصلاح او ماتونه ونکړي |
| إِلَّا يُوشِكُ أَنْ يَعُمَّهُمُ اللهُ بِعِقَابٍ» . وَفِي أُخْرَى لَهُ: |
| نو نژدې ده چې الله تعالی دا ټول په عذاب کې اخته کړي. او د ابوداؤد په یو بل روایت کې دا الفاظ دي چې په کوم قوم کې |
| «مَا مِنْ قَوْمٍ يُعْمَلُ فِيهِمْ |
| ګناه او معاصي شروع شي او په د غه قوم کې د هغه خلکو شمیره ډیره وي چې هغوې ګناه او معاصي نکوي (خو سره د |

| بِالْمَعَاصِي | هُمْ | أَكْثَرُ | مِمَّن | يعمله | » . | (۱) |
|---|---|---|---|---|---|---|

(دې نه هغوي خپل مینځ کې دغه ګناهګار خلک د ګناه کولو نه منع کوي نو الله تعالی به دا ټول خلک په عذاب کې راګیر کړي)

**توضیح: هٰذه الآية:** د دې آیت د ظاهري الفاظو نه دا معلومیږي چې که خلک بې لارې شي نو ته خپل ځان وساته. د خپل نفس فکر وکړه. بې لارې خلک تاته ضرر او نقصان نشي دررسولی. خو په دې شرط سره چې ته په هدایت باندې یې. شاید د ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څه خلکو پوښتنه کړې وي چې وس د امر او نهي وخت ندی لهذا مونږ دې له پرېخودلو باندې د خپل ځان په فکر کې کینو. دې لپاره چې خپله د ګمراهۍ نه ځان وساتو. په دې باندې ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عام و خلکو ته عمومي بیان کولو باندې پوهه کړل. کیدی شي ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جمعې په خطبه کې یا په بله کومه عامه غونډه کې دا خبره کړې وي. د دهٔ اعلان مطلب او مقصد دا دی چې وس هغه وخت ندی راغلی چې تاسو د دې ارشاد په مطابق باندې د امر او نهي عمل پرېږدی. وس خو به تاسو مخکې ځی. او په دنیا باندې غالبه کیدل دي. د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ارشاد مطابق که تاسو وس امر او نهي پرېږدی، نو نږدې ده چې په تاسو باندې عمومي او اجتماعي عذاب راشي. ځکه چې د لاس د قدرت لرلو باجود او د افرادو د ډېروالي باوجود امر او نهي پرېخودل د ذلت سبب دی.

**ان يعمهم الله:** یعنې نږدې ده چې الله تعالی عمومي او اجتماعي عذاب نازل کړي. د دې عمومي عذاب یو صورت دا کیدی شي چې کافر قومونه راشي او په مسلمانانو باندې قابض شي. او هغوي په قسما قسم ذلتونو کې اخته کړي. نو نن سبا د مسلمانانو سره په هرځای کې هم دا کیږي. دا مخکې لیکل شوي دي چې د امر او نهي په مصداقاتو کې اولنی مصداق جهاد دی. د عذاب دویم صورت دا دی چې کله نهي عن المنکر بنده شي نو هم دا منکر او معصیت به دومره عام شي ټول خلک به راګیر کړي. د ګناه داسې عام کیدل خپله یو عذاب دی مثلاً وژنه عامه شي. زنا عامه شي. رشوت او خیانت عام شي دروغ او د وعدې خلاف کول عام شي. نو د عزتمند سړي لپاره به ژوند کول ګران شي. هم دا عذاب دی. **هُمْ أَكْثَرُ:** یعنې د ګناه نه کونکې د ګناه کونکو نه ډېر شي. یعنې خیر غالب وي، مغلوبه نوي. د ښه خلکو په لاس کې قدرت او اختیار وي. او بیا هم نهي عن المنکر نکوي. نو ټول به عام عذاب راحصار کړي. (مرقات ۸/۸۶۹)

## د قدرت لرلو باوجود د منکر نه، نه ایسارول د عذاب سبب دی

﴿۷﴾ وَعَن جَرِير بن عبد الله قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «مَا مِنْ رَجُلٍ

او حضرت جریر بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اورېدلي دي چې د کوم

| يَكُونُ | فِي | قَوْمٍ يَعْمَلُ | فِيهِمْ | بِالْمَعَاصِي | يَقْدِرُونَ | عَلَى | أَنْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

قوم یو سړی یو ګناه او معصیت کوي او د دغه قوم خلک په دې باندې قدرت لري چې (د لاس یا د ژبې په ذریعه سره)

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۴/۵۰۹ رقم الحديث ۴۳۳۸، والترمذي في السنن ۴/۴۰۶ رقم الحديث ۲۱۶۸.

| يُغَيِّرُوا | عَلَيْهِ | وَلَا | يُغَيِّرُونَ |
|---|---|---|---|

د دغه ګناه اصلاح يا بيخ كندي وكړي او په هغه سړي غالب شي ليكن د هغې باوجود هم د هغې اصلاح ونكړي

إِلَّا أَصَابَهُمُ اللهُ مِنْهُ بِعِقَابٍ قبل أن يموتوا» . رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَابْن مَاجَه[1]

نو الله تعالى په هغه خلكو باندې د خپل اړخ نه عذاب نازلوي، مخكې د دېنه چې هغوي مړه شي.

**۲۳ جمادى الاول ۱٤۱۸هـ د امر بالمعروف او نهى عن المنكر وخت تر كومه پورې دى؟**

﴿۸﴾ وَعَن أَبِي ثعلبة فِي قَوْلِهِ تَعَالَى: (عَلَيْكُمْ أَنْفُسَكُمْ لَا يَضُرُّكُمْ مَنْ ضَلَّ إِذَا اهْتَدَيْتُمْ)

او د حضرت ابو ثعلبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د الله تعالى د ارشاد (عَلَيْكُمْ أَنْفُسَكُمْ لَا يَضُرُّكُمْ مَنْ ضَلَّ إِذَا اهْتَدَيْتُمْ)

فَقَالَ: أَمَا وَاللهِ لَقَدْ سَأَلْتُ عَنْهَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

په تفسير كې نقل شوېدى چې هغه وويل: پوهه شئ: په خداى قسم! ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د دې آيت په اره پوښتنه وكړه (چې آيا زه د دې آيت په مطابق باندې د امر بالمعروف او نهې عن المنكر د فريضې نه منع شم؟)

فَقَالَ: " بَلِ ائْتَمِرُوا بِالْمَعْرُوفِ

نو نبى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې (هيڅكله نه) ته د دې فريضې د ادا كولو نه مه منع كيږه) بلكې د نيكۍ حكم وركوه

وَتَنَاهَوْا عَنِ الْمُنْكَرِ حَتَّى إِذَا رأيت شُحاً مُطاعاً وَهوًى

تر دې چې ته كله بخل ووينې چې خلک د هغې تابعداري كوي. ته چې كله د نفس خواهشات ووينې

مُتَّبَعاً ودُنيا مُؤْثَرَةً

چې خلک د هغې غلامان شويدي. ته چې كله دنيا ووينې چې كله خلک ديته په آخرت باندې ترجيح وركوي

وَإِعْجَابَ كُلِّ ذِي رَأْيٍ

او كله چې ته ووينې چې هر يو عقل مند او د يو مسلک منونكى خپل عقل او خپل مسلک د ټول نه ښه او

بِرَأْيِهِ وَرَأَيْتَ أَمْرًا لَا بُدَّ لَكَ مِنْهُ فَعَلَيْكَ. نَفْسَكَ

خوښ وګڼي او چې ته كله يو داسې شى ووينې چې د هغې نه غيره ستا بله څه چاره نوي نو ته خپل ځان لازم كړه

وَدَعْ أَمْرَ الْعَوَامِّ فَإِنَّ وَرَاءَكُمْ

(يعنې خپل ځان د ګناهونو نه وساته) او د عوامو د معاملاتو سره هيڅ اړيكې مه ساته. ځكه چې ستا مخې ته

---

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۴/۵۱۰ رقم الحديث ۴۳۳۹، وابن ماجه في السنن ۲/۱۳۲۸ رقم الحديث ۴۰۰۹.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَيَّامٌ | | الصَّبْرِ | | فَمَنْ |
| ورځې راتلونکې دي چې په هغې کې به صبر کول ضروري وي لهٰذا کوم سړي چې په دغه ورځو کې | | | | |
| صَبَرَ | فِيهِنَّ | قَبَضَ | عَلَى | الْجَمْرِ |
| صبر وکړو د هغه حالت به دا وي چې ګويا هغه په لاس کې سپرغۍ راخستلي ده او په دغه ورځو کې | | | | |
| لِلْعَامِلِ | فِيهِنَّ | أَجْرُ | خَمْسِينَ | رَجُلًا |
| چې کوم سړی په دين او شريعت باندې عمل کوي هغه ته به د هغه پنځوس کسانو د عمل برابر ثواب ورکولی کيږي | | | | |
| يَعْمَلُوْنَ | مِثْلَ | عَمَلِهِ | قَالُوْا | يَارَسُوْلَ اللهِ |
| څوک چې د دې سړي په شان عمل وکړي. صحابوٌ (دې اوريدلو سره) عرض وکړو يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! | | | | |
| أَجْرُ | | خَمْسِيْنَ | مِنْهُمْ؟ | قَالَ: |
| آيا د دې پنځوس کسانو د عمل اعتبار به وي څوک چې د هغې د زمانې سره تعلق ساتي. نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: | | | | |
| «أَجْرُ خَمْسِينَ مِنْكُمْ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَابْنُ مَاجَه[1] | | | | |
| نا! بلکې ستاسو د پنځوس کسانو اجر او ثواب. (ترمذی، ابن ماجه) | | | | |

**توضيح: لَايَضرُكُمْ مَنْ ضَلَّ:** د دې آيت په متعلق باندې پوښتنه د ابوثعلبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم شوي وه. د پوښتنه کونکې مقصد دا ؤ چې کيدلی شي د امر اونهې زمانه ختمه شوي وي. وس د دې ټولو په پريخودلو باندې په کور کې چُپ کيناستل پکار دي. حضرت ابوثعلبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په هغه توګه جواب ورکړو څنګه چې ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جواب ورکړی ؤ، چې ما د دې آيت په اړه باندې د ابوبکرصديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپله پوښتنه کړي وه. نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې وس خو دامر او نهې وخت دی. هو! چې کله پنځه کارونه شروع شي. نو بيا ته خپل ځان وساته. او عام خلک پريږده. هغه پنځه کارونه دا دي:

(۱) ته چې کله ووينې چې خلک د بخل او کنجوسۍ اتباع شروع کړي. (۲) کله چې نفسانې خواهشات ووينې چې خلک دهغې غلامان جوړ شي. (۳) کله چې ته ووينې خلک د دنيا غلامان جوړيدلو باندې هغې ته په دين باندې ترجيح ورکړي. (۴) ته چې کله ووينې چې هر عقل مند په خپله رايه باندې غرور کوي او کتاب الله او سنت رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د نظر نه وغورزوي. (۵) او کله چې تا وکتل چې وس په ګناه کې د اخته کيدلو ويره پيدا شوه. ګناه په سر باندې داسې ګرځيږي چې د دېنه ځان ساتل

کړان دي، نو وس د عامو خلکو معامله هغوی ته پرېږده. ځکه چې اوس د امر او نهې د دعوت وخت ندی. د ځان ساتنې لپاره چې چیرته کیدلی شي، و تختته. ځکه چې وس تولي ختمې دي، د خویدلو ویره ده. (مرقات ۸/۸۷۱)

چوں گل بسیار شد پیلان بلغزند

## د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جامع او اوږده خطبه

﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَامَ فِينَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت ابو سعید خدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې (یوه ورځ) د مازیګر نه وروسته رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

خَطِيبًا بَعْدَ الْعَصْرِ فَلَمْ يَدَعْ شَيْئًا

زمونږ مخې ته ودریدلو او خطبه یې وکړه. په دې خطبه کې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا سې کومه ضروري خبره پرې نه خودله

يَكُونُ إِلَى قِيَامِ السَّاعَةِ إِلَّا ذَكَرَهُ حَفِظَهُ مَنْ حَفِظَهُ

چې هغه تر قیامته پورې پیښدلی شي. نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا خبرې ذکر کړې. او یاد ساتونکو هغه یادې وساتلې

وَنَسِيَهُ مَنْ نَسِيَهُ وَكَانَ فِيمَا قَالَ:

او هیرونکې هغه هیرې کړې. د غه وخت چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څه وفرمایل په هغې کې دا هم وُ چې:

«إِنَّ الدُّنْيَا حُلْوَةٌ خَضِرَةٌ وَإِنَّ اللهَ مُسْتَخْلِفُكُمْ فِيهَا فَنَاظِرٌ

دنیا ډیره خوږه او شنه ده. او یقینًا الله تعالی تاسو په دې دنیا کې خلیفه جوړ کړي یاست. لهذا هغه ګوري

كَيْفَ تَعْمَلُونَ أَلَا فَاتَّقُوا الدُّنْيَا وَاتَّقُوا النِّسَاءَ»

چې تاسو څنګه عمل کوئ، پس خبردار! تاسو د دنیا نه ځان ساتئ او د ښځو د فتنو نه ځان ساتئ. نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

وَذَكَرَ: «إِنَّ لِكُلِّ غَادِرٍ لِوَاءً يَوْمَ الْقِيَامَةِ

دا هم وفرمایل چې د قیامت په ورځ باندې به د هر وعده ماتونکې لپاره یوه نښه ودرولی شي چې هغه په دنیا

بِقَدْرِ غَدْرَتِهِ فِي الدُّنْيَا وَلَا غَدْرَ أَكْبَرُ مِنْ غَدْرِ أَمِيرِ الْعَامَّةِ

کې د ده د وعده ماتولو په برابر وي. او هیڅ وعده ماتول د امیر عامه د وعده ماتولو نه ډیره نده نو د هغه

يُغْرَزُ لِوَاؤُهُ عِنْدَ اسْتِهِ». قَالَ:

د غه نښان به د هغه د مقعد سره نږدې ودرولی شي. (دې لپاره چې د هغه ډیره رسوایي وشي) نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا هم وفرمایل:

« وَلَا يَمْنَعَنَّ أَحَدًا مِنْكُمْ هَيْبَةُ النَّاسِ أَنْ يَقُولَ بِحَقٍّ

چې په تاسو کې دې هيڅوک هم څه ويره او هيبت د حق خبرې کولو نه منع نه کړي او حال دا چې هغه د

إِذَا عَلِمَهُ » وَ فِي رِوَايَةٍ :

حق خبرې نه خبر وي. او په يو روايت کې په دې ځاې (ولا يمنعن احدا منكم هيبة الناس ان يقول حق) په

«إِنْ رَأَى مُنْكَرًا أَنْ يُغَيِّرَهُ» فَبَكَى أَبُو سَعِيدٍ

ځاې دا دي چې کله په تاسو څوک خلاف شرع کار وويني. نو هغه منع کړي، حضرت ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ژړا شو

وَقَالَ: قَدْ رَأَيْنَاهُ فَمَنَعَتْنَا هَيْبَةُ النَّاسِ

او وې فرمايل چې مونږ خلاف شرع کار وليدلو او د خلکو د ويرې نه مونږ د هغې په اړه هيڅ ونه ويلی شو. (د

أَنْ نَتَكَلَّمَ فِيهِ. ثُمَّ قَالَ:

دې نه وروسته ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيان وکړ چې) نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا هم وفرمايل چې پوه شئ! د

(أَلَا إِنَّ بَنِي آدَمَ خُلِقُوا عَلَى طَبَقَاتٍ شَتَّى فَمِنهُمْ

آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ اولاد په بيلا بيلو ډلو او په متضاد قسمونو او مرتبو کې پيدا کړی شوي دي. نو په دوې کې

مَن يولَدُ مؤمنا ويحيى مُؤْمِنًا

ځيني هغه دي چې هغه مؤمنان پيدا کولی شي چې هغه د ايمان په حالت کې ژوندي وي او په ايمان باندې

وَيَمُوتُ مُؤْمِنًا وَمِنْهُمْ مَنْ يُولَدُ كَافِرًا وَيحيى كَافِرًا

د هغوې خاتمه کيږي. او په دوې کې ځيني هغه دي چې هغه کافر پيدا کولی شي. هغه د کفر په حالت کې ژوندي

وَيَمُوتُ كَافِرًا وَمِنْهُمْ مَنْ يُولَدُ مُؤْمِنًا

وي او په کفر باندې د هغوې خاتمه کيږي. او په دوې کې ځيني هغه دي چې هغوې مؤمنان پيدا کولی شي

وَيحيى مُؤْمِنًا وَيَمُوتُ كَافِرًا وَمِنْهُمْ

هغوې د ايمان په حالت کې ژوندي وي خو په کفر باندې د هغوې خاتمه کيږي. او په دوې کې ځيني هغه دي

مَنْ يُولَدُ كَافِرًا وَيحيى كَافِرًا وَيَمُوتُ مُؤْمِنًا)

چې هغه کافر پيدا کولی شي هغوې د کفر په حالت کې ژوند تيروي ليکن د هغوې خاتمه په ايمان باندې کيږي

قَالَ: وَذَكَرَ الْغَضَبَ (فَمِنْهُمْ
حضرت ابو سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې (په دغه وخت کې) نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د غضب او غصي قسمونه هم ذکر کړل
مَنْ يَكُونُ سَرِيعَ الْغَضَبِ سَرِيعَ الْفَيْءِ فَإِحْدَاهُمَا
نو نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: ځینې کسان ډیر ژر غصه کیږي خو دهغوې غضب او غصه ژر ختمیږي. نو په
بِالْأُخْرَى وَمِنْهُمْ مَنْ يَكُونُ بَطِيءَ الْغَضَبِ بَطِيءَ الْفَيْءِ
دې دواړو کې هریو د بل لپاره بدل جوړ شي. او ځینې کسان داسې وي چې هغوي ته غصه په قلاره ورځي
فَإِحْدَاهُمَا بِالْأُخْرَى وَخِيَارُكُمْ مَنْ يَكُونُ بَطِيءَ الْغَضَبِ سَرِيعَ الْفَيْءِ
او په قلاره ترینه ځي او په تاسو کې غوره سړی هغه دی چې هغه ته غصه په قلاره ورځي او ژر ترینه ځي
وَشِرَارُكُمْ مَنْ يَكُونُ سَرِيعَ الْغَضَبِ بَطِيءَ الْفَيْءِ».
او بد سړی په تاسو کې هغه دی چې هغه غصه ژر ورځي او په قلاره ترینه وځي. (د دېنه وروسته) نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل:
قَالَ: «اتَّقُوا الْغَضَبَ فَإِنَّهُ جَمْرَةٌ عَلَى قَلْبِ ابْنِ آدَمَ
تاسو ته غصي نه ځان وساتئ. ځکه چې دغه غصه د بنی آدم په زړه باندې یوه بلیدونکې سپرغۍ ده.
أَلَا تَرَوْنَ إِلَى انْتِفَاخِ أَوْدَاجِهِ؟ وَحُمْرَةِ عَيْنَيْهِ؟
آیا تاسو نه ګورئ چې د هغه د مرۍ رګونه وپړسیږي او سترګې یې سرې شي. لهذا کله چې یو سړی دا
فَمَنْ أَحَسَّ بِشَيْءٍ مِنْ ذَلِكَ فَلْيَضْطَجِعْ
محسوس کړي چې وس غصه ورځي نو هغه لپاره پکار دي چې هغه سمدستي په اړخ باندې څملي او د
وَلْيَتَلَبَّدْ بِالْأَرْضِ) قَالَ: وَذَكَرَ الدَّيْنَ
زمکې سره یو ځای شي. او ابو سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ و فرمایل: چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قرض ذکر هم وکړو
فَقَالَ: «مِنْكُمْ مَنْ يَكُونُ حَسَنَ الْقَضَاءِ
نو نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې په تاسو کې ځینې کسان داسې وي چې هغوي (د قرض په) ادا کولو کې خوښه وي لیکن
وَإِذَا كَانَ لَهُ أَفْحَشَ فِي الطَّلَبِ فَإِحْدَاهُمَا بِالْأُخْرَى وَمِنْهُم مَنْ يكونُ سيِّءَ الْقَضَاءِ
د خپل قرض په وصولولو کې سختي کوي او ځینې کسان داسې وي چې هغوي د قرض په ادا کولو کې خو بد

| |
|---|
| وَإِنْ كَانَ لَهُ أَجْمَلَ فِي الطَّلَبِ فَإِحْدَاهُمَا بِالْأُخْرَى |
| ثابت شي خو ديو چا نه د خپل قرض په وصولولو کې ښه ثابت شي. نو په دې کې هر يو د بل خصلت بدل شي |
| وَخِيَارُكُمْ مَنْ إِذَا كَانَ عَلَيْهِ الدَّيْنُ أَحْسَنَ الْقَضَاءِ وَإِنْ كَانَ لَهُ |
| لهذا په تاسو کې غوره خلک هغه دي چې هغه د چا په قرض ادا کولو کې هم ښه وي او د چا نه د خپل قرض |
| أَجْمَلَ فِي الطَّلَبِ وَشِرَارُكُمْ مَنْ إِذَا كَانَ عَلَيْهِ الدَّيْنُ أَسَاءَ الْقَضَاءَ |
| په وصولولو کې هم ښه وي. او په تاسو کې بدترينه خلک هغه دي چې هغه د چا په قرض ادا کولو کې هم بد وي |
| وَإِنْ كَانَ لَهُ أَفْحَشَ فِي الطَّلَبِ) |
| او د چا نه خپل قرض وصولولو کې هم بد وي. نبی کريم ﷺ په خپله خطبه کې دا نصيحتونه وکړل تر دې چې |
| حَتَّى إِذَا كَانَتِ الشَّمْسُ عَلَى رؤُوسِ النَّخْلِ وَأَطْرَافِ الْحِيطَانِ فَقَالَ: (أَمَا |
| د لمر رڼا فقط د کهجورو په سرونو او د ديوالونو په غاړو باندې پاتې شوه نو نبی ﷺ وفرمايل: يادساتئ! |
| إِنَّهُ لَمْ يَبْقَ مِنَ الدُّنْيَا فِيمَا مَضَى مِنْهَا إِلَّا كَمَا بَقِيَ |
| د دې دنيا چې کوم وخت تير شويدی دهغې په نسبت سره د دې دنيا فقط دومره وخت پاتې دی لکه څومره چې د نن ورځې |
| مِنْ يَوْمِكُمْ هَذَا فِيمَا مَضَى مِنْهُ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ [1] |
| د برخې په نسبت سره دا آخرې وخت (يعنې څنګه چې د نن ورځې نږدې ټوله برخه تيره شويده وس ډير لږ وخت پاتې دی. |

**توضيح**: **خطيبًا**: د نبی ﷺ په اوږدو خطبو کې دا يوه خطبه ده چې په دې کې نبی ﷺ د دنيا بی ثباتې او فنا کيدل بيان کړيده. او د انسانانو بيلابيل طبيعتونه او معاملات او نفسيات او دهغوې ابتداء او انتهاء بيان کړيده.

**فلم يدع شيئًا**: يعنې تر قيامته پورې راتلونکې د دين سره متعلق اهم اهم کارونه يې بيان کړل. په هغې کې يې يو شی هم پرې نه خودلو. **حلوة**: يعنې دنيا يو خوږ، خوندور، خايسته او خوږ شی دی.

**خَضِرةٌ**: اى ناعمة طرية: يعنې تازه او شين او ګلزار او شينکی دی. عربو به شينکې ډير خوښولو. دنيا يې شينکی، وګرځولو ځکه چې شينکې ډير ژر ختميدونکی دی. نو دنيا هم دغه شان ده.

**مستخلفلکم**: مطلب دا دی چې الله تعالی په عارضې توګه باندې تاسو د دنيا د شيانو مالکان جوړ

---

[1] أخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۱۹ رقم الحديث ۲۱۹۱ وابن ماجه في السنن ۱۳۲۵ رقم الحديث ۴۰۰۰.

کړي یاست. اصل مالک الله تعالی دی.

**غدر امیر العامة:** د دې جملې یو مطلب دا دی چې یو ظالم، غاصب، متغلب حاکم راشي او د چا په جائز حکومت باندې قبضه وکړي. نه شوریٰ او مشوره وي. نه د چا خوښه وي بلکې په زوره باندې په اقتدار قابض شي. د داسې خائن په دُبر کې به د قیامت په ورځ بیرغ ودرولی شي. ځکه چې هغه عوامو د عام امیرالمؤمنین په خلافت باندې قبضه وکړه. او د خیانت دویم مطلب دا دی چې یو باغي سړی د بغاوت بیرغ پورته کولو باندې او عوام الناس د اتفاقي امیر په خلاف بغاوت وکړي. (مرقات ۸/۸۷۴)

**خلقوا:** په دې کې د انسان پیدائښ او انجام د هدایت او ضلالت په اعتبار سره په څلور طبقو کې تقسیم کړی شویدی. (۱) کامیاب انسان (۲) ناکام انسان (۳) په ابتداء کې کامیاب او په انتهاء کې ناکام (۴) په ابتداء کې ناکام او په انتهاء کې کامیاب.

**وذکر الغضب:** په دې کې د انسان د غصې (قهر) بیلابیل حالات بیان کړی شویدي. د انسان د توازن او ورانیدلو نښه یې ښودلې ده: (۱) یو هغه سړی د چې هغه ډیر ژر غصه کیږي او ډیر ژر راضي کیږي. دا په تول کې برابر دي. فاحداهما بالاخری. هم دغه مطلب دی. (۲) دغه شان یو سړی ډیر وروسته غصه کیږي خو د غصې نه وروسته تر ډیر وخته پورې یې غصه پاتې وي. دا هم په تول کې برابر دی. (۳) یو سړی داسې چې ډیر په قلاره غصه کیږي خو ډیر ژر راضي کیږي. دا د ټولو نه د ښه صفت والا سړی دی. (۴) یو سړی داسې دی چې ډیر ژر غصه کیږي او بیا د راضې کیدلو نوم نه اخلي. دا سړی د بدترین صفت والا دی. د دېنه وروسته نبی کریم ﷺ د قرض او دَین قانون بیان کړو او په هغې کې یې هم د خلکو څلور طبقې (ډلې) جوړې کړې: (۱) یو سړی داسې دی چې هغه قرضداری دی نو په ښایسته طریقه باندې قرض ادا کوي. خو د قرض په راخستلو کې د بل سره سختي کوي. د افحش مطلب هم دا دی چې سختي کوي. او غلیظه رویه خپلوي. دا هم سربر دی (۲) یو هغه سړی دی چې د قرض په ورکولو کې خو ښه ندی خو په بیرته اخستلو کې ډیر نرم او ښه دی. دا هم سر بر دی (۳) یو هغه سړی دی چې د قرض په ادا کولو کې هم ښه دی او په بیرته اخستلو کې هم ډیر نرم او ښه دی. دا د بهترین خصلت سړی دی (۴) یو هغه سړی دی چې د قرض په ورکولو کې ډیر بیکاره دی او که د هغه په چا باندې قرض وي نو په غوختلو کې هم ډیر ناکاره دی. دا بدترین سړی دی. وس لمر د ډوبیدلو وخت شوی دی. نو نبی کریم ﷺ وفرمایل چې د دنیا عمر ختم شویدی. بس دومره پاتې دی لکه څنګه چې د ټولې ورځې یو ذره وخت وس پاتې دی. (مرقات ۸/۸۷۷)

﴿۱۰﴾ وَ عَنْ أَبِي الْبَخْتَرِيِّ عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت ابو البختری رضی الله عنه نبی کریم ﷺ په صحابوٌ کې د یو سړي نه روایت کوي چې

| قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: «لن يهْلك النَّاس |
|---|
| هغه بیان کړل چې، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: خلک به تر هغه وخته پورې بیخي هلاک او برباد نشي |
| حَتَّى يعذروا فِي أنفسهم». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| ترڅو چې د هغوی نه ډیر ګناهونه او بدۍ را ښکاره شي. |

**توضیح**: **يعذروا**: دا اعذار د باب افعال نه دی. او د سلب مأخذ لپاره دی. چې د هغې مطلب به دا وي چې دې خلکو دومره ګناهونه وکړل چې وس د هغوی د اړخ نه عذر معذرت هم ختم شو. وس دا خلک خپل ځانونه د عذر خاوندان نه ګڼي. نو دالله تعالی څپیړه ورته ورسیږي. د دې جملې دویم مطلب دا دی چې وس دا خلک به د خپلو ګناهونو څپله هم معذرت نکوي. بلکې د ګناه اقرار هم کوي. او په ښکاره باندې ګناه هم کوي. نو هلاک شي. د دې جملې دریم مطلب دا دی چې عذر او عذار په نظر کې ساتلو باندې باطل تاویلونه کوي. او ګناه ته قانوني شکل ورکوي. دا علمي غلطي ده. چې په دې سره سړی دبې لارې کیدلو سره هلاک کیږي. په دغه توګه باندې ګناهونه ډیریږي. او په دې کې قومونه غرق شي. (مرقات ۸/۸۷۹)

## د قدرت لرلو سره هم د منکر نه بندول اجتماعی عذاب ته دعوت ورکول دي

| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ عَدِيِّ بْنِ عَدِيٍّ الْكِنْدِيِّ قَالَ: حَدَّثَنَا مَوْلًى لَنَا أَنَّهُ |
|---|
| او حضرت عدی بن عدی کندی فرمایي چې په مونږ کې زمونږ یو آزاد کړی شوي غلام بیان کړل چې هغه |
| سَمِعَ جَدِّي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| زما د نیکه حضرت عمیر کندی نه اوریدلي دي چې هغه به ویل چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوریدلي دي |
| يَقُولُ: «إِنَّ اللهَ تَعَالَى لَا يُعَذِّبُ الْعَامَّةَ بِعَمَلِ الْخَاصَّةِ |
| چې فرمایل یې: الله تعالی د یو قوم د ځینو کسانو د بد عملونو د وجې نه د هغې اکثر خلک په عذاب کې نه اخته کوي |
| حَتَّى يَرَوُا الْمُنْكَرَ بَيْنَ ظَهْرَانِيهِمْ وَهُمْ |
| هو! کله د هغه قوم خلک دا ویني چې د هغوی په مینځ کې د ځینو خلکو د وجې نه خلاف شرع کارونه کیږي |
| قَادِرُونَ عَلَى أَنْ يُنْكِرُوهُ فَلَا يُنْكِرُوا |
| او هغوی د دې خلاف شرع کارونو اصلاح او ماتونه ونکړي په دې شرط سره چې هغوی د دې اصلاح قدرت |

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۲/۵۱۵ رقم الحديث ۴۳۴۷، وأحمد في المسند ۴/۲۱۰.

فَإِذَا فَعَلُوا ذَلِكَ عَذَّبَ اللهُ العَامَّةَ والخَاصَّةَ» . رَوَاهُ فِي «شرح السّنة» [1]

لړي نو په دې حالت کې د قوم اکثر اخلک پکې اخته شي نو بیا الله تعالی عام او خاص ټول په عذاب کې اخته کوي

## نهی عن المنکر پرېښودلو باندې بنی اسرائیلو نه خنزیران جوړ شول

﴿۱۲﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَمَّا وَقَعَتْ

او حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: بني اسرائيل چې

بَنُو إِسْرَائِيلَ فِي الْمَعَاصِي نَهَتْهُمْ عُلَمَاؤُهُمْ فَلَمْ يَنْتَهُوا فَجَالَسُوهُمْ

کله په ګناهونو کې اخته شول نو د هغوی علماؤ هغوی منع کړل او کله چې هغوی منع نشول نو د هغوی هغه علماء

فِي مَجَالِسِهِمْ وَآكَلُوهُمْ وَشَارَبُوهُمْ

هم د هغوی سره د هغوی په مجلسونو کې کیناستل. او د هغوی سره یې په لوښي او به وڅکلي. نو الله تعالی

فَضَرَبَ اللهُ قُلُوبَ بَعْضِهِمْ بِبَعْضٍ فَلَعَنَهُمْ

هغوی ټول خپل مینځ کې ګډ وډ کړل او د هغوی زړونه یې د یو بل سره یو ځای کړل بیا الله تعالی په هغوی باندې

عَلَى لِسَانِ دَاوُدَ وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ ذَلِكَ بِمَا عَصَوْا وَكَانُوا

حضرت داؤد عَلَيْهِ السَّلَامُ او حضرت عیسی بن مریم عَلَيْهِ السَّلَامُ د ژبې په ذریعه لعنت وکړو او دا لعنت یې ځکه وکړو

يَعْتَدُونَ) قَالَ: فَجَلَسَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ

چې دغه خلکو ګناهونه کول او د حد نه تیر شوي ؤ. حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې دغه وخت

مُتَّكِئًا فَقَالَ: (لَا وَالَّذِي نَفْسِي

یې تکیه وهلې وه. نیغ کیناستلو. نو وې فرمایل په هغه پاک ذات باندې قسم چې د هغه په قبضه کې زما ځان دی

بِيَدِهِ حَتَّى تَأْطِرُوهُمْ

تاسو به تر هغه وخته پورې د الله د عذاب نه خلاصی بیا نه مومئ تر څو چې ظالمان د هغوی د ظلم نه او فاسقان

أَطْرًا) رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَفِي رِوَايَتِهِ

د هغوی د ګناهونو نه منع نکړئ. (ترمذي، ابوداؤد) او د ابوداؤد په یو روایت کې داسې دي چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ

---

[1] أخرجه البغوي في شرح السنة ۱۴/۳۴۶ رقم الحد... ۴۰، ومالک في الموطا ۲/۹۹۱ رقم الحديث ۲۳.

قَالَ: ﴿كَلَّا وَاللهِ

وفرمایل: (ستاسو دا ګمان دی چې د چپتیا او مداهنت باوجود به هم تاسو د عذاب الهی نه خلاصی بیاموئ)

لَتَأْمُرُنَّ بِالْمَعْرُوفِ وَلَتَنْهَوُنَّ

داسې هیڅکله نده بلکې په خدای قسم چې ستاسو لپاره ضروري ده چې خلکو د نیکۍ لارې خپلولو حکم وکړئ

عَنِ الْمُنْكَرِ وَلَتَأْخُذُنَّ عَلَى يَدَيِ الظَّالِمِ ولتأطرنه

او هغوئ د بدۍ د لارې نه منع کړئ. د ظالم لاس ونیسئ هغوئ د حق اړخ ته مائله کړئ او هغوئ لره به

على الحق أطرا ولنقصرنه عَلَى الْحَقِّ قَصْرًا أَوْ لَيَضْرِبَنَّ الله بِقُلُوبِ

د حق او انصاف په لاره باندې قائم کړئ. که تاسو داسې نکوئ نو بیا به الله تعالی ستاسو زړونه هم د یو بل

بَعْضِكُمْ عَلَى بَعْضٍ ثُمَّ لَيَلْعَنَنَّكُمْ كَمَا لَعَنَهُمْ ﴾. [۱]

سره ګډوډ کړي او بیا به په تاسو باندې لعنت وکړي لکه څنګه چې په بنی اسرائیلو باندې (د هغوئ د ګناهونو د وجې نه) لعنت کړی ؤ.

**توضیح: فضرب الله:** یعنې کله چې علماؤ بنی اسرائیل منع کړل. خو هغه خلک د ګناهونو نه منع نشول. نو علماء هم د هغوئ سره په ګناهونو کې شریک شول. چې په هغې سره په هغوئ باندې اجتماعي عذاب راغلی. او د هغوئ نوم نښان ورک شو.

**فضرب الله قلوب بعضهم:** مطلب هم دا دی چې ټول په شریکه باندې په ګناه کې اخته شول. نو الله تعالی اول د هغوئ زړونه تور کړل. او په هغې کې د یو بل سره خلط ملط شول. بیا د هغوئ زړونه په اجتماعي توګه باندې سخت کړی شول. چې په هغې سره هغوئ د الله تعالی نه لیري شول. هغوئ اوس د دې قابل پاتې نه شول. چې حق قبول کړی شي. نو ځکه په مسخ کیدلو سره څه خو خنزیران شول. او څه شادوګان شول. د دې نه وروسته نبی صلی الله علیه وسلم په نیغ کیناستلو او غوندې ته یې نور ارشادات وفرمایل: چې په هغې کې دا ارشاد هم ؤ چې په خدای قسم! تاسو به د ظالم لاس نیولو سره د منکر نه ایساروی. ګنې ستاسو زړونه به هم د هغوئ په شان شي.

**تأطروهم اطرًا:** دا لفظ ضرب او نصر دواړو نه راځي. د دې مصدر اطرًا دی. ایسارولو او منع کولو په معنې دی. یعنې په تاسو باندې لازم ده چې ګناه ګاران او ظلم کونکې او فساد کونکو لاس نیولو باندې هغوئ د منکر نه منع کړی. که هغوئ منع نشول نو تاسو د هغوئ نه جدا شئ. او ځان ترینه بیل کړئ. د هغوئ سره مه کینئ. مه د هغوئ سره خوراک کوئ. مه د هغوئ نه خورئ. مه ورباندې څکئ

(۱) اخرجه أبوداود في السنن ۴/۵۱۹ رقم الحدیث ۴۳۳۷ والترمذي في السنن ۵/۲۳۵ رقم الحدیث ۳۰۴۷.

او مه ترینه څکي. یو روایت کې دي : ولتأطرنه علی الحق اطرًا : د دې تشریح ورسره هم یو ځای شویده: ای لتقصرنه علی الحق قصرا. ملا علي قاري رحمه الله فرمايي: ای لتمنعن الظالم باللسان عند العجز عن اخذ الید بالید علی الحق ای علی اجباره علی الحق والکاره علی الباطل اطرًا ای منعا ظاهرا لیس فیه لومة لائم. (مرقات ۸/۸۸۱)

## د بې عمله نصیحت کونکې او بې عمله عالم لپاره وعید

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : "رَأَيْتُ لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِي رِجَالًا |
| او د حضرت انس رضي الله عنه روايت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل: ما د معراج په شپه څه خلک ولیدل |
| تُقْرَضُ شِفَاهُهُمْ بِمَقَارِيضَ مِنْ نَارٍ قُلْتُ: مَنْ هٰؤُلاءِ يَا جِبْرِيلُ؟ |
| چې د هغوې شونډې د اور په پیتیګانو باندې غوڅولی شوې. ما پوښتنه وکړه چې جبرائیل دا خلک څوک دي؟ |
| قَالَ: هٰؤُلاءِ خُطَبَاءُ أُمَّتِكَ يَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبِرِّ |
| هغه وفرمایل چې دا ستا دامت هغه علماء او واعظان او مشائخ دي چې خلکو ته به يې خو د نيکۍ حکم کولو خو |
| وَيَنْسَوْنَ أَنْفُسَهُمْ . « رَوَاهُ فِي » شرح السنة « وَ الْبَيْهَقِيِّ فِي » شعب الإيمان. " |
| خپله يې خپل ځان هير کړی ؤ. دا روایت بغوي په شرح السنة کې او بيهقي په شعب الايمان کې نقل کړيدی او د |
| وَفِي رِوَايَتِهِ قَالَ: «خُطَبَاءُ مِنْ أُمَّتِكَ الَّذِينَ |
| بیهقي په یو روایت کې دا الفاظ دي چې حضرت جبرائیل جواب ورکړو: دا خلک ستا د امت هغه واعظین او خطیبان دي |
| يقولونَ مَا لَا يفعلونَ و يقرؤونَ كتابَ الله وَلَا يعملونَ » . "[1] |
| چې دوی به هغه خبره کوله چې هغه به يې خپله نه کوله. دوی به کتاب الله لوستلو خو په هغې باندې به يې عمل نه کولو. |

**توضیح** :تقرض: د غوڅولو په معنی باندې راځي. **شفاههم**: د ډېنه شونډې مراد دي. دا د بې عمله عالم او واعظ (نصیحت کونکی) لپاره سخت وعید دی. یو بل حدیث کې دي: **ویل للجاهل منه وللعالم سبع مرات**. یو بل حدیث کې دي: **اشد الناس عذابًا یوم القیٰمة عالم لم ینفعه الله بعلمه**. یو شاعر وېلي دي: (مرقات ۸/۸۸۲)

فساد کبیر عالم متهتک     واکبر منه جاهل متنسك

---

[1] أخرجه البغوي في شرح السنة ۱۴/۵۳۵ رقم الحديث ۴۱۵۹ والبيهقي في شعب الايمان ۲/۲۸۳ رقم الحديث ۱۷۷۳.

## يهودو خيانت وکړو نو خنزيران ترينه جوړ شو

| |
|---|
| ﴿۱٤﴾ وَ عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : |
| او حضرت عمار بن ياسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: (د حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَام |
| «أُنْزِلَتِ الْمَائِدَةُ مِنَ السَّمَاءِ خُبْزًا وَلَحْمًا وَأُمِرُوا أَنْ لَا يَخُونُوا |
| په قوم باندې) د آسمان نه ډوډۍ او د غوښې دسترخوان راوليږلی شو. او هغوی ته حکم وکړو شو چې نه خو دې خيانت کوي |
| وَلَا يَدَّخِرُوا لِغَدٍ فَخَانُوا وَادَّخَرُوا وَرَفَعُوا |
| او نه دې د راتلونکې ورځ لپاره څه ذخيره کوی خو خيانت هم وکړو او ذخيره يې هم وکړه او د راتلونکې ورځې |
| لِغَدٍ فَمُسِخُوا قِرَدَةً وَ خَنَازِيرَ » . رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ [1] |
| لپاره يې کيخودله. نو هغوی د شادوګانو او خنزيرانو په شکل کې بدل کړی شول. |

**توضيح**: دخيانت صورت دا ؤ چې د اعلیٰ په ځای يې ادنی د اجازت نه بغير واخستلو. يا يې نور شيان واخستل. قردةً وخنازير: داسې معلوميږي چې دبوډاګانو شکلونه مسخ کيدلو باندې په شادوګانو بدل شو او د زلمو شکلونه په خنزيرانو بدل شو. (مرقات ۸/۸۸۳)

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث

## دين دوچې نه د ظلم برداشت کولو فضيلت

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّهُ تُصِيبُ أُمَّتِي فِي |
| حضرت عمر بن الخطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: زما امت ته به په آخره |
| آخِرِ الزَّمَانِ مِنْ سُلْطَانِهِمْ شَدَائِدُ |
| زمانه کې د حکمرانانو نه (ديني يا دنياوي) سختۍ او تکليفونه برداشت کول وي. او په دغه وخت کې د تکليفونو نه |
| لَا يَنْجُو مِنْهُ إِلَّا رَجُلٌ عَرَفَ دِينَ اللهِ فَجَاهَدَ عَلَيْهِ |
| نجات موندونکی به يو سړی خو هغه وي چې هغه د خدای په دين باندې پوهيږي. نو هغه سړی به د خدای د دين |
| بِلِسَانِهِ وَيَدِهِ وَقَلْبِهِ فَذَلِكَ الَّذِي |
| د سرلوړی لپاره په خپله ژبه او لاس او خپل زړه په ذريعه سره جهاد کوي. نو دا به هغه سړی وي چې |

---

([1]) اخرجه الترمذي في السنن ۵/۲۴۲ رقم الحديث ۳۰۶۱.

| سَبَقَتْ | لَهُ | السَّوَابِقُ | وَرَجُلٌ |
|---|---|---|---|

هغه کمال، ایمان، ثواب او دنیا او آخرت نیک بختو ته د ټولو نه مخکې ورسیږي. او یو سړی به هغه وي چې

| عَرَفَ | دِينَ | الله | فَصَدَّقَ | بِهِ | وَرَجُلٌ | عَرَفَ |
|---|---|---|---|---|---|---|

هغه د خدای په دین خو پوهیږي خو د اولني سړي نه یوه درجه کم دی. نو دغه سړی به د دین تصدیق کوي او دا به

| دِينَ | الله | فَسَكَتَ | عَلَيْهِ |
|---|---|---|---|

ښه ګڼي او یو سړی به هغه وي چې هغه د خدای په دین (به څه لږ ډېر) پوهیږي نو هغه به سکوت خپل کړي. نو د دغه سړي

| فَإِنْ | رَأَى | مَنْ | يَعْمَلُ | الْخَيْرَ | أَحَبَّهُ | عَلَيْهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|

حالت به دا وي چې کله هغه څوک په نیک کار کولو باندې ووینې نو هغه لره به دوست ساتي او څوک په

| وَإِنْ | رَأَى | مَنْ | يَعْمَلُ | بِبَاطِلٍ |
|---|---|---|---|---|

غلط کولو کار به ووینې، نو د هغې نه به نفرت وکړي او د غه سړی به هم په پټه توګه باندې د نیکۍ او ښیګړې د

أَبْغَضَهُ عَلَيْهِ فَذَلِكَ يَنْجُو على إبطانه كُله ». [1]

کارونو سره مینه او د ګناه او بدۍ سره نه د کرکې ساتلو په وجه باندې نجات بیا مومي.

**توضیح: سلطانهم:** یعنې د وخت ظالم باچا د اړخ نه به اهل حق او اهل خیر او ایمان ته سخت دینې او دنیاوي تکلیفونه ورسیږي. لکه یزید او حجاج بن یوسف نه مسلمانانو ته تکلیف ورسیدلو. هلاکو خان او چنګیز خان د اړخ نه ورسیدل او تر ننه پورې د عربو او عجمو ظالمو حکمرانانو د اړخ نه حق او اهل حق په خلاف طاقت استعمالیږي. نن د حکومت وخت ټول فوځي طاقتونه حق او د نظام حق او علماء حق او مدرسي او جوماتونو په خلاف استعمالیږي. عبدالرحمان بابا صحیح ویلي دي:

په سبب د ظالمانو حاکمانو        اور او کور او پېښور دریواړه یو دي

**عرف دین الله:** یعنې خپله هم کامل، عارف او عالم دی. او نور هم کمال دین ته راولي. اول خپله د دین اصول، او جزئیات او د هغې قاعدې او فروع پېژني. بیا د هغې په رڼا کې نورو لره په سمه لاره راولي. او روانوي. ګویا کامل عالم، عارف الله، عامل به وي. نو بیا به هله د وخت د دې فتنو نه وساتلی شي. هغه هم ځکه چې هغه جهاد بالید، جهاد باللسان او جهاد بالقلب به کوي. په درې واړه طریقو سره به د دین حق خدمت کوي. (مرقات ۸/۸۸۴)

---

[1] اخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۹۵ رقم الحديث ۷۵۸۷.

**سبقت له السوابق:** يعنې ديني او دنياوي نيک بختو ته به د تولو نه مخکې ورسيږي. د دينه وروسته به د دويمې درجې سړی وي. چې هغه به په دين باندې پوهيږي او دهغې تصديق به کوي، او په ژبه باندې به امر بالمعروف او نهی عن المنکر کوي. خو په لاس سره به يې د نهی عن المنکر طاقت نوي. نو ځکه هغه به د دويمې درجې مسلمان وي. او په دويم نمبر باندې به کامياب وي. دريم هغه سړی دی چې هغه به دين باندې لږ ډير پوهيږي يعنې ډير عالم به نوي. هغه چې کله نيکې ويني نو هغه به په زړه سره خوښوي. او کله چې بدې ويني نو هغه به د زړه نه بده ګڼي او په ژبه سره به يې د بندولو طاقت نلري. دا سړی به هم د خپل زړه د جذبې د وجې نه به کامياب وي.

**على ابطانه:** يعنې د په زړه کې د دې پټې جذبې د وجې نه به کامياب شي. دا حديث ګويا دهغه حديث په شان دی کوم چې د دې باب اول حديث دی: چې په هغې کې **مَنْ رَأَى مِنْكُمْ مُنْكَرًا فَلْيُغَيِّرْهُ بِيَدِهِ الخ** درې درجې بيان کړی شويدي. (مرقات ۸/۸۸۵)

## الله تعالی د عبادت سره د دين ملاتړ کول هم ضروري دي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَوْحَى اللهُ عَزَّ وَجَلَّ إِلَى جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ: | | | | | |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: الله تعالى حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَام ته حکم وکړو | | | | | |
| أَنِ اقْلِبْ | مَدِينَةَ | كَذَا | وَكَذَا | بِأَهْلِهَا | |
| چې فلانکی ښار چې د هغې حالات داسې دي، د هغې د وسيدونکو سره يې ورباندې واړوه. حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَام | | | | | |
| قَالَ: يَارَبِّ | إِنَّ | فِيهِمْ | عَبْدَكَ | فُلَانًا | لَمْ يَعْصِكَ |
| ووېل چې زما پروردګاره! په دې ښار کې ستا هغه فلانکی بنده هم دی. چې هغه د يوې دقيې لپاره هم ستا نافرماني | | | | | |
| طَرْفَةَ | عَيْنٍ". | قَالَ:" | فَقَالَ: | اقْلِبْهَا | |
| نده کړي. نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايل چې (کله چې جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَام دا ووېل نو) الله تعالى وفرمايل چې ته دا ښار | | | | | |
| عَلَيْهِ | وَعَلَيْهِمْ | فَإِنَّ | وَجهه | | |
| اول په دې سړي باندې واړوه او بيا يې دهغې ټول وسيدونکو باندې واړوه ځکه چې زما رضا او د دين په | | | | | |
| لم | يتمعر | فِي | سَاعَةٍ | قط". [1] | |
| مينه کې د دې سړي د مخ رنګ (ښار د خلکو ګناه په کتلو باندې) د يو ساعت لپاره هم ندی بدل شوی. | | | | | |

[1] اخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶/۹۷ رقم الحديث ۷۵۹۵.

**توضیح:** ان اقلب: دا صیغه د باب ضرب ده. د امر صیغه ده. همزه وصلیه ده. دنسکورولو په معنی باندې دی. یعنې الله تعالی حضرت جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَامُ ته حکم وکړو چې فلانکی ښار د هغې د وسیدونکو سره په هغوې باندې نسکور کړه. دا قصه مخکنو قومونو کې د یو قوم ده. چې هغه په فسق او فجور باندې پلیته وه. چې په هغې سره په دوې باندې د هلاکت فیصله وشوه.

**طرفة عین:** یعنې دې عابد او زاهد بنده یو ساعت هم ستا نافرمانې نده کړې. د ښار په اړولو سره به دا هم مړ شي. او حال دا دی چې دا بیګناه دی. د دینه معلومه شوه چې کله د نیکانو خلکو په الله تعالی نافرمانه خلک د عذاب نه ساتي. فاسقانو او فاجرانو لپاره پکار دي چې هغوې د ښه خلکو عزت وکړي. او هوې د خپلې بقاء ذریعه وګڼي.

**اقلبها علیه وعلیهم:** په دې جمله کې ډیره مبالغه ده. چې اول په دې عابد باندې ښار واړوه. د دینه وروسته په فاسقانو فاجرانو باندې ښار واړوه. لم یتمعر: یعنې د ګناهونو په دې بی ادبه طوفان کې د دې سړي په مخ باندې د غم او غصې نه د الله تعالی د رضا لپاره کله هم تندی تریو نکړو. تمعر د باب تفعل نه دی. د مخ هغه بدلون ته ویل کیږي چې کله څوک یو مکروه کار ویني. ساعة: معلومه شوه که یو سړی یو ځل هم نهی منکر وکړي نو بچ کیدلی شي. خو د دې سړي د ایمان تاؤ لکه چې ختم شوی ؤ. او اوس په هغې کې د بدی نه د کرکې څه نوم هم نه ؤ. د دین جذبه او ملاتړ کې د ده د غیرت رګ کله هم نه دی راپاریدلی. نو ځکه دا سړی د الله تعالی د عذاب د نورو په نسبت سره ډیر مستحق شو.

د دې حدیث نه معلومه شوه چې الله تعالی د خپل ذات د عبادت سره د انسان د خپل دین ملاتړ هم غواړي. الله تعالی دا نه غواړي چې یو انسان دې فقط د یو تاجر په شان ذهن وساتي چې د الله تعالی نه دې فقط د اخستلو په فکر کې وي. او د ورکولو دې هیڅ فکر نوي. حالانکې د الله تعالی ارشاد دی: إِنْ تَنْصُرُوا اللَّهَ يَنْصُرْكُمْ. (سورة محمد: ۷) یعنې که تاسو د الله تعالی مرسته کوی نو هله به الله تعالی ستاسو مرسته کوي.

اول تاسو د الله تعالی د دین ملاتړو او خدمت وکړی. د دینه وروسته د الله تعالی نه انعام وغواړی. په دې حدیث کې دا مذکور سړی یوائې د الله تعالی نه د اخستلو په فکر کې یوائې د ځان نه تاجر جوړ کړی ؤ. او د الله تعالی د دین د ورکیدلو نه دهغه سره څه درد ؤ. نه غم ؤ. نه فکر ؤ. د ګوتې غوڅیدلو نه بغیر د شهید مرتبې امیدوار ناست ؤ. دا پې څکونکی مجنون ؤ. وینه ورکونکی مجنون نه ؤ. د لیلی حصول د ده مقصود نه ؤ بلکې فقط بې څکل د ده مقصود ؤ.

بهرحال الله تعالی د خپل دین ملاتړ غواړي. د عبادت سره ملاتړ لوی شی دی. نن سبا د دې ډیر کمی دی. خلک د مصیبت راتلو نه بغیر او میدان ته د کوزیدلو نه بغیر جنت ته تلل غواړي.

وکل يدعي وصلاً بليلى ‌ ‌ ‌ ‌ وليلى لاتقر لهم بذاك

**قصه**:د مثال په توګه چا دا قصه بيان کړيده چې يو سړی ؤ. د هغه درې ځامن ؤ.دوه ډير نيکان ؤ. يو آزاد خيال ؤ.يوه ورځې د دوي پلار چا د ګريوان نه ونيولو او وې وهلو. د ده په ځامنو کې يو عابد ځوي يې په خوا تير شو. او وېکتل چې څوک د هغه پلار وهي. د اشراق وخت ؤ. غلی جومات ته لاړو. اولمونځ يې شروع کړو. لږ وخت وروسته يې بل ځوي راغلو. او پلار يې په هغه حالت کې وليدلونو وې ويل چې دا سړی ښه نکوي. چې زما پلار وهي. دومره وينا کولو سره هغه هم جومات ته لاړو. او لمونځ يې شروع کړو. څه ساعت وروسته آزاد خيال ځوي راغلو. هغه وکتل چې يو سړې د هغه د پلار د ګريوان نه نيولی دی او وهي يې. نو دغه ځوې سمدستې په هغه سړې بريد وکړو او خپل پلار يې ترينه خلاص کړو. کور ته راتګ باندې پلار فيصله وکړه چې زما فقط دا يو ځوې دی چې هغه زه د دښمن نه خلاص کړم. پاتې دواړه زما ځامن نه دي. او زما د مال نه محرومه دي.بيخې هم دا نقشه ده چې کوم خلک امر بالمعروف او نهي عن المنکر نکوي او په عبادت کې اخته دي. دا ګوري چې فاسقانو فاجرانو د نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ګريوان کې لاس اچولی دی. او د نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سنت او طريقې ختموي، بلکې دين ختموي. او دوې چپ ناست تماشا کونکي دي. د دوې نه به نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څومره خفه وي. دا ظاره ده چې د دوې په نسبت باندې کوم خلک چې نهی عن المنکر کوي، نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د هغوې نه څومره خوشحاله وي. دا هم ظاره ده.

## ديو کمزورې سړې په رښتياوينا باندې بخښنه کيدل

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۷﴾ وَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : "إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ يَسْأَلُ | | | | | | |
| او حضرت ابوسعيد خدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايې چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل:الله عزوجل به د | | | | | | |
| الْعَبْدَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيَقُولُ: مَا لَكَ إِذَا رَأَيْتَ الْمُنْكَرَ | | | | | | |
| قيامت په ورځ باندې د بنده نه پوښتنه کولو کې وفرمايې چې په تا څه شوي ؤ چې کله تا يو خلاف شرع کار به وليدلو (نو | | | | | | |
| فَلَمْ تُنْكِرْهُ؟" قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: | | | | | | |
| د ژبې او لاس) د هغې د ختمولو فريضه دې ادا نکړه. رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايې چې (الله تعالى به د دې | | | | | | |
| "فَيُلَقَّى حُجَّتَهُ فَيَقُولُ: | | | | | | |
| بنده د معاف کولو اراده وکړي نو د سوال کولو سره به) هغه ته تاويلونه او دليلونه وښودلی شي. نو هغه به عرض وکړي | | | | | | |

| يَا رَبِّ خِفْتُ النَّاسَ وَرَجَوْتُكَ « رَوَى الْبَيْهَقِيُّ الْأَحَادِيثَ الثَّلَاثَةَ فِي» شُعَبِ الْإِيمَانِ "[1] |
|---|
| چې زما پروردګاره! زه د خلکو د ظلم او زياتي نه ويريدلم او ستا د عفو او درګزر او مغفرت او بخښني مې اميد لرلو. |

**توضيح**: فيلقى حجته:لقى يلقى تلقية:د باب تفعيل نه د مجهول صيغه ده. د ګوزارولو په معنى دى.لكه وَمَا يُلَقّٰهَا اِلَّا الَّذِيْنَ صَبَرُوْا . يعنې دغه سړي ته حجت او دليل او د بچ كيدلو تاويلونه وركړى شي. مطلب دا دى چې كله الله تعالى دا معاف كول وغواړي نو هغه ته د جواب وركولو او تاويل كولو او دليل وړاندې كولو طريقه به وښايې نو هغه به وايې:

اى زما ربه! ستا د بنديګانو نه به ويريدلم. او ستا په فراخه رحمت او مغفرت باندې به مې نظر ساتلو. الله تعالى به هغه معاف كړي چې واقعې د خلكو نه ويريدل يو طبعې مجبوري ده. بيا دغه سړي په پاكو ټكو كې پاك جواب وركړو چې د هغې د حقيقت سره ژور تعلق ؤ نو د الله رحمت په جوش كې راغلو. ځكه:

*رحمت حق بہانہ می جوید، بہانہ می جوید*

لعل رحمة ربي حين يقسمها  تأتي على حسب العصيان في القسم

## امر بالمعروف او نهى عن المنكر به د قيامت په ورځ د انسان په شكل كې راشي

| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ : قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وَالَّذِي |
|---|
| او حضرت ابو موسى اشعرى رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: په هغه پاك ذات باندې قسم |
| نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ إِنَّ الْمَعْرُوفَ وَالْمُنْكَرَ |
| چې د هغه په قبضه كې د محمّد (صلى الله عليه وسلم) ځان دى. د قيامت په ورځ به مشروع عمل او غير مشروع عمل |
| خَلِيقَتَانِ تُنْصَبَانِ لِلنَّاسِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ |
| (د انسانانو په شكل او صورت كې) پيدا كړى شي. او دا به (هغه) خلكو مخې ته ودريږي (چا چې دا اعمال په دنيا |
| فَأَمَّا الْمَعْرُوفُ فَيُبَشِّرُ أَصْحَابَهُ وَيُوعِدُهُمُ الْخَيْرَ |
| كې خپل كړي وي) نو مشروع عمل به خپلو خلكو ته زيرى واوروي او د انجام د ښيګړې وعده به وركړي |
| وَأَمَّا الْمُنْكَرُ فَيَقُولُ: إِلَيْكُمْ إِلَيْكُمْ وَمَا يَسْتَطِيعُونَ لَهُ |
| او غير مشروع عمل به خپلو خلكو ته وايې چې زما نه ليرې شئ. خو هغه خلك به د ده نه د بيليدلو طاقت |

(1) اخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۳۳۲ رقم الحديث ۴۰۱۷ والبيهقي في شعب الايمان ۶/۹۱ رقم الحديث ۷۵۷۵.

| إِلَّا لُزُومًا . «رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي» شعب الإيمان "(۱)" |
|---|
| نلري بلکې د ده سره اینختلي وي. (احمد، بیهقی فی شعب الایمان) |

**توضیح**: خلیقتان ای مخلوقتان: یعني امر بالمعروف او نهی عن المنکر دواړه په قبر کې او د قیامت په ورځ به د انسانانو په شکل کې راشي. دا هم ممکنه ده چې دانسان ټول نیک او بد اعمال مراد وي. ملاعلي قاري رحمه الله دواړو ته اشاره کړېده.

**فتنصبان**: یعني د خلکو مخې ته به ظاهره کړی شي. معروف به د ښایسته او ښه سړي په شکل کې به وي. او منکر به د بدشکله سړي په شکل کې وي. معروف به د ښه انجام زیری ورکوي او د ښه عواقبو وعده به کوي. او بد عمل به الیکم الیکم یعني زما د خوانه لیري شي، او وتختئ، آوازونه به کوي. خو خلک به د دغه بد عمل سره ونخلي. او لیري کیدلی به نشي. لهذا د دې بد عمل بدعواقب به دې خلکو سره مخ کیږي. او د ښه عمل والا به جنت الفردوس ته په خوشحالۍ خوشحالۍ ځي. او د خوند او مزې ژوند به کوي. (مرقات ۸/۸۸۷)

الله تعالی دې فقیر بنده محمد بن نور محمد د ایمان او یقین د دولت سره د دنیا نه د شهادت د مرګ سره واخلي. او جنت الفردوس دې ورته نصیب کړي. **آمین یارب العلمین**.

الحمد الله نن د خالي په ورځ ۲۸ ذوالقعده ۱۴۲۶ھ بمطابق ۳۱ دسمبر ۲۰۰۵ باندې زه د دې لیکنې نه فارغه شوم. دا وخت زه په کراچۍ کې یم. خو بیا هم د دې جلد د . . خه ما په حرمین شریفین کې لیکلي ده.

**اللّٰهم تقبله منی اللّٰهم تقبله منی اللّٰهم تقبله منی اللّٰهم لك الحمد كما ينبغي لجلال وجهك وعظيم سلطانك**

**وصلى الله تعالى على نبيه الكريم وعلى آله وصحبه اجمعين**



(۱) اخرجه احمد في المسند ۴/۳۹۱ والبيهقي في شعب الايمان ۷/۵۱۷ رقم الحديث ۱۱۱۸.

۵ ربیع الثاني ۱٤۱۸هـ

# کتاب الرقاق

## د رقاق بیان

قال الله تبارك وتعالى: ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَلْتَنْظُرْ نَفْسٌ مَا قَدَّمَتْ لِغَدٍ﴾ (الحشر: ۱۸)

﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا أَنْفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا﴾ (التحريم: ٦)

رقاق جمع ده، د دې مفرد رقيق دی لکه صغار چې جمع دی،د دې مفرد صغير دی او کبار جمع ده، چې د هغې مفرد کبير دی. رقائق هم جمع ده. د دې مفرد رقيقه ده. د دواړو مطلب يو دی.يعنې زړه نرمونکې خبرې، دلته د رقاق نه مراد هغه خبرې دي چې د هغې په اوريدلو باندې د انسان زړه نرميږي. او زړه د دنيا نه بې ميني کيدلو باندې آخرت اړخ ته راګرځي. (مرقات ۸/۸۹۳)

د رقاق په نوم باندې د احاديثو په کتابونو کې اوږده بابونه ترلاسه کيږي.په دې بابونو کې محدثين هغه حديثونه بيانوي چې د هغې نه زړه متأثره کيږي. او د موم په شان نرميږي. صاحب مشکوة هم د عامو محدثينو اتباع کولو باندې کتاب الرقاق ذکر کړی دی. او په دې کې د فضل الفقراء نه واخله تر کتاب الفتن پورې اته بابونه ايخودلي دي.د رقاق د عنوان لاندې خو خالص د رقاق سره متعلق ۷۴ حديثونه ذکر کړيدي. او بيا د اته بابونو د بيلابيل عنواناتو لاندې او حکمت او نصيحت باندې بنا حديثونو يوه لويه ذخيره راغونډه کړيده. که يو انسان په سينه کې د کاڼې په ځاې باندې د غوښې زړه لري نو هغه به د دې حديثونو په اوريدلو باندې اوبه اوبه شي. او که داسې ونشوه نو بيا په هغه باندې د کوم شي اثر به محال وي. يو شاعر وايي:

لاينفع الوعظ قلبا قاسيا ابدا وهل يلين بقول الواعظ الحجر

## الْفَصْلُ الأَوَّل

### د قدر وړ دوه نعمتونه

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " نِعْمَتَانِ مَغْبُونٌ فِيهِمَا |
| حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: دوه نعمتونه چې د هغې په اړه باندې |
| كَثِيرٌ مِنَ النَّاسِ: الصِّحَّةُ وَالْفَرَاغُ ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1] |
| ډيرو خلکو د هو که خوړلي ده(او هغه دوه نعمتونه) روغتيا او فراغت دی. |

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۲۲۹ رقم الحديث ۶۴۱۲،والترمذي في السنن ۴/۲۷۷ رقم الحديث ۲۳۰۴.

**توضیح**: مغبونٌ: دا غبن یغبن د باب نصر ینصر نه دی د نقصان او خسارې په معنی دی. په خاصه توګه باندې د تجارتي معاملاتو په خسارو باندې ویلی کیږي. دا صیغه د باب سمع نه هم راځي. چې د غلطۍ او دهوکه خوړلو په معنی باندې راځي. دلته دواړه معنې صحیح دي. د دې حدیث مطلب دا دی چې ډیر خلک داسې دي چې هغوې بدني روغتیا او د وخت د فراغت قدر نه کوي. او د دې دواړو نعمتونو په اړه باندې دهوکه، غلطي او تاوان کې پراته دي. بدن د روغتیا په وخت کې د بدن نه د بدن کار نه اخلي چې دا په عبادت کې اخته کړي. او د مصیبتونو او مشغلو نه په فارغه وخت کې کار نکوي چې کمال ترلاسه کړي.او فرصت غنیمت نه ګڼي چې دا په کار راولي.بیا کله چې بدنې اعتبار سره ناروغه شیاو د وختونو په اعتبار سره د نیا په مشغلو کې راګیر شي نو بیا هغوې ته د بدن روغتیا او د وختونو د فرصت قدر ورشي.لکه هوښیارانو ویلي دي: **اَلنِّعْمَةُ اِذَافُقِدَتْ عُرِفَتْ**. خو وس په تیر شوي وخت باندې د افسوس ورغوي مړلو نه غیره هیڅ په لاس نه راځی.ځکه چې په مناسب موقع باندې هغه نه عبادت وکړو او نه یې آخرت جوړ کړو او نه یې د دنیا کار وکړو. وس د پښیمانتیا نه به ورته څه ترلاسه شي.

**الن قد ندمت ولم ینفع الندم**:یو حدیث کې نبی کریم صلی الله علیه وسلم داسې ارشاد فرمایلی دی چې د جنت والا به په هیڅ شي باندې افسوس او پښیمانتیا نکوي ، خو په هغه وختونو به افسوس کوي چې هغه په دنیا کې د الله تعالی د یادولو نه بغیر تیر شوي وي. (مرقات ۹/۵)

## د دنیا او آخرت مثال

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنِ الْمُسْتَوْرِدِ بْنِ شَدَّادٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «وَاللهِ |
| او حضرت مستورد بن شداد رضي الله عنه فرمایې چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا اوریدلي دي چې په خدای قسم! |
| مَا الدُّنْيَا فِي الْآخِرَةِ إِلَّا مِثْلُ مَا يجعلُ أحدُكم إصبعَه فِي الْيَمِّ |
| د آخرت په مقابله کې د دنیا مثال داسې دی لکه په تاسو کې یو سړی خپله ګوته په سمندر کې ډوبه کړي |
| فَلْيَنْظر بِمَ يرجعُ » . رَوَاهُ مُسلم[1] |
| او بیا وګوري چې هغه ګوتې بیرته د ځان سره څه راوړل. |

**توضیح**: واللہ: دلته قسم د مبالغې په توګه باندې راغلی دی. نور یې هیڅ مقصد ندی. ما الدنیا: کې لفظ (ما) د نفی په معنی دی. (مرقات ۹/۶)

---

[1] أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۱۹۳ رقم الحديث (۲۸۵۸-۵۵) والترمذي في السنن ۴/۴۸۶ رقم الحديث ۲۳۲۳.

فِي الأُخرة: په دې کې د في لفظ مقابلې او بدليت په معنى دى. (مرقات ۹/۶)

اليم: سين او سمندر ته وايي. د حديث مطلب دا دى لکه يو سړى د خپل کوچنۍ (وړه) ګوته په سمند کې ډوبه کړي، او بيا وګوري چې د سمندر د ډيرو اوبو په مقابله کې د هغه په ګوته پسې څومره اوبه نختي دي. دغه شان د دنيا کمتر او سپک نعمتونه دي چې دا ختميدونکې بلکې ډير ژر ختميدونکې دي. د آخرت د هميشه او د ډير مقدار نعمتونو په مقابله کې د دې حيثيت څه دى؟ دا مثال هم د ښودني لپاره دى. ګنې د عارضې او فاني دنيا حقيقت د هميشګرۍ آخرت په مقابله کې هيڅ هم ندى. لهذا انسان لپاره پکار دي چې هغه د دنيا په فاني نعمتونو باندې د آخرت دائمي نعمتونه قربان نه کړي. بلکې هر وخت دې دا سوچ کوي چې دنيا د آخرت فصل (پټى) دى دلته د فصل کرل دي. او هلته په آخرت کې يې ميوه خوړل دي. (مرقات ۹/۶)

جگہ جی لگانے کی دنیا نہیں ہے    یہ عبرت کی جا ہے تماشا نہیں ہے

يرجع: د دې ضمير اصبع اړخ ته راګرځي. او دې اړخ ته مذکر او مؤنث دواړو ضمائر راګرځولى کيدلى شي. په يوه نسخه کې ترجع د مؤنث سره دى. هغه نسخه ډيره بهتره ده. (مرقات ۹/۶)

## دنيا يو بې حيثيته شى دى

| ﴿۳﴾ وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِجَدْيٍ |
|---|
| او حضرت جابر رضي الله عنه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د بيزې يو داسې مړ بچي په خوا باندې تير شو. |
| أَسَكَّ مَيِّتٍ. قَالَ: «أَيُّكُمْ |
| چې د هغې غوږونه ډير واړه وُ يا غوڅ کړى شوي وُ. يا د هغې غوږونه نه وُ. نو نبي صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې په تاسو کې |
| يُحِبُّ أَنَّ هَذَا لَهُ بِدِرْهَمٍ؟» فَقَالُوا: مَا نحبُّ أَنه |
| څوک داسې شته دى چې هغه دا په يو درهم باندې اخستل خوښ کړي؟ صحابۇ وويل چې مونږ خو دا |
| لنا بشيءٍ قال: «فَوَاللهِ لَلدُّنْيَا |
| د هيڅ شي په بدل کې اخستل نه خوښوُ. نبي صلى الله عليه وسلم وفرمايل: په خداى قسم! دا دنيا د خداى په نزد باندې |
| أَهْوَنُ عَلَى اللهِ مِنْ هَذَا عَلَيْكُم ». رَوَاهُ مُسلم[1] |
| د دېنه څه ډيره بې وقعته او کمه ده. لکه څنګه چې ستاسو په نظر کې دا مړ بچى ذليل او سپک دى. |

---

([1]) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۷۲ رقم الحديث (۲۹۵۷-۲) والترمذي في السنن ۴/۴۸۵ رقم الحديث ۲۳۲۱

**توضيح**: جدى: د ييزې ورکوټي بچې ته جدى ويل کيږي.

اسك: كاف باندې شد دى. د ييزې هغه بچې ته ويل کيږي چې دهغې غوږونه ييخې غوڅ کړى شوي وي. يا ييخې نه وي. يا واړه واړه وي. دا دهغې کمزورى، ذلت او سپكاوې اړخ ته اشاره ده. او په خاصه توګه باندې كله چې هغه بچى مړ وي، مردار هم وي. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دې مثال سره د نيا سپكوالې، او بى ثباتى. او بى حيثيته او بى حقيقتۀ كيدلو اړخ ته انسانان متوجي كړي دي چې د ژوند مقصود آخرت دى. هغه هيرول پكار ندي او د دنيا د ميني نه ځان ساتل پكار دي. ځكه چې په يو حديث كې دي: **حب الدنيا رأس كل خطيئة** او يو قول دى چې: **ترك الدنيا رأس كل عبادة**. د دې وجه دا ده چې د دنيا په مينه كې راګير سړى هر كار د خود غرضى او حرص په بنياد باندې كوي. اهل الله او اهل معرفت ويلي دي: چې د كوم سړې په زړه كې د دنيا مينه كيناستله، نو د ټولې دنيا اولياء الله او نيكان خلك هغه په سمه لاره باندې نشي راوستلى. او كوم سړې چې دنيا د زړه نه وويستله نو د ټولې دنيا فساد كونكې هغه بې لارې كولى نشي. (مرقات ۹/۷)

## دنيا د مؤمن لپاره محبس دى

| ﴿۴﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الدُّنْيَا سِجْنُ المؤمنِ |
|---|
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: دنيا د مؤمن لپاره قيد خانه ده. |
| وجنّةُ الكافرِ». رَوَاهُ مُسلم[1] |
| او د كافر لپاره جنت دى. (مسلم) |

**توضيح**: **سجن المؤمن**: د دې حديث دوه مفهومه بيان كړى شويدي. اول مفهوم دا دى چې دنيا د مؤمن لپاره محبس (قيد خانه) په شان دى. مطلب دا دى چې د مؤمن لپاره الله تعالى په آخرت كې كوم عظيم نعمتونه او غټ ثواب او اجر عظيم تيار كړى دى، دهغې په مقابله كې د مؤمن لپاره دنيا د محبس په توګه دى. اګركه هغه په دنيا كې د آرام ژوند تيروي. دغه شان د كافر لپاره چې په آخرت كې كوم قِسم قِسم عذابونه تيار كړى شويدي، دهغې په مقابله كې د دنيا ژوند داسې دى لكه چې هغه په جنت كې وسيږي، اګركه هغه ته دلته تكليف هم وي. او په مصيبت كې پروت وي. ددې حيقيت د منځ يو ځل يو غريب يهودې حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل چې ستا د نيكه بابا دا وينا چې دنيا د مؤمن لپاره محبس او د كافر لپاره جنت دى. زما او ستا په حالت باندې څنګه صادق كيدلى شي. ځكه چې ته په اس باندې سپرلي كوي.

---

([1])أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۷۲ رقم الحديث (۲۹۵۶-۱) والترمذي في السنن ۴/۴۸۶ رقم الحديث ۲۳۲۴.

د آرام ژوند تیروي او زه د مصیبتونو او دردونو او تکلیفونو او ناروغو نه ډک ژوند تیروم؟ د هغه په جواب کې حضرت حسن رضي الله عنه ذکر شوي حدیث هم دا مفهوم بیان کړو چې د آخرت د مصیبتونو په مقابله کې ته دلته په جنت کې یې. د دې حدیث دویم مفهوم دا دی چې دنیا د مؤمن لپاره محبس دی ځکه چې هر هر ساعت مؤمن په دې دنیا کې په احتیاط سره تیروي، قدم قدم باندې د هغه لپاره پابندۍ دي، او هغه انتهایي د پابندۍ ژوند تیروي، ګویا دا دنیا د هغې لپاره محبس دی. او هغه په دې کې قیدې په حیثیت سره ژوند تیروي. د دې په خلاف باندې کافر په دې دنیا کې د هیڅ پابندۍ قائل ندی، او نه پابند دی. دنیا د هر جائز او ناجائز خوند نه مزې اخلي. او دا چیغه وهي چې:

بابر بعیش کوش که عالم دوباره نیست

ملا علی قاری رحمه الله لیکلي دي چې دا دویم مفهوم ډیر واضح او د حدیث مطابق دی. د دې تائید د مشهور بزرګ حضرت فضیل بن عیاض رحمه الله د قول نه هم کیږي. ده وفرمایل: **من ترك الدنيا لذات الدنيا وشهواتها فهو في سجن فاما الذى لايترك لذاتها وتمتعاتها فاى سجن عليه.** (مرقات ۹/۷)

نقل کړی شوي دي چې کله داؤد طائی رحمه الله وفات شو نو یو غیبي آواز وشو چې: **أُطْلِقَ دَاوُدُ مِنَ السِّجْنِ** چې داؤد طائی د محبس نه آزاد کړی شو. چا څه بنه ویلي دي: (مرقات ۹/۸)

کون کہتا ہے کہ مؤمن مر گیا　　قید سے چھوٹا وہ اپنے گھر گیا

## کافر ته په ښه کار باندې څنګه بدله ور کولی کیږي؟

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ اللهَ لَا يَظْلِمُ مُؤْمِنًا حَسَنَةً |
| او حضرت انس رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: الله تعالی د مؤمن د نیکۍ اجر نه ضائع کوي |
| يُعْطَى بِهَا فِي الدُّنْيَا وَيُجْزَى بِهَا فِي الْآخِرَةِ |
| ځکه چې د هغه د نیکۍ په وجه باندې هغه ته په دنیا کې ښیګړې ورکولی کیږي. او په آخرت کې به هم هغه ته اجر |
| وَأَمَّا الْكَافِرُ فَيُطْعَمُ بِحَسَنَاتِ مَا عَمِلَ بِهَا لِلّٰهِ فِي الدُّنْيَا |
| او ثواب ورکولی کیږي. او کافر چې د خدای د رضا لپاره کوم ښه کار ونه کوي، هغه ته په دې دنیا کې خوراک څکاک |
| حَتَّى إِذَا أَفْضَى إِلَى الْآخِرَةِ لَمْ يَكُنْ لَهُ |
| ورکولی کیږي. تر دې چې کله هغه آخرت ته ورسیږي نو د هغه په اعمال نامه کې به داسې کومه نیکۍ نوي |

**توضيح**: حجبت: دا د حجاب نه دی. د پردي په معنی دی. په یوه نسخه کې د حفت لفظ دی. هغه د پټولو په معنې دی. مطلب دا دی چې څنګه جنت او دوزخ په حقیت کې ډیر غټ فرق دی، دغه شان هغې ته د رسیدلو په اسبابو کې هم ډیر فرق دی. ځکه چې د هر وی مخې ته پردي پرتي دي. دې پردو نه به اوړیدل غواړي، نو دوزخ چې په کومو پردو کې پټ کړی شویدی. هغه د انسان خواهشات دي، چې هغې ته په نورو الفاظو کې آزاد ژوند ویلی شي. کله چې انسان د حرامو او حلالو فرق ختم کړي، او د نفس او خواهشاتو مطابق آزاد ژوند تیروي، زنا او شراب و کباب کې اخته وي، نه عبادت له راځي، او نه د کومې ګناه نه ځان ساتي، نو ګویا هغه د دوزخ په مَنډو او ښایسته پردو کې سفر کوي. څنګه چې دا پردي ختمي شي، مخامخ دوزخ او د هغې اور دی. په دې کې انسان راګیر شي. ګویا په دې پردو کې د دوزخ اور پټ کړی شویدی. دغه شان د جنت معامله ده چې هغه په امور تکلیفه شرعیه کې پټ کړی شویدی. قدم قدم باندې شرعې پابندۍ دي. حرام او حلال او جائز او ناجائز پابندۍ دي. عبادتونه او اوامر شرعیه مشقتونه برداشت کول دي. او نواهې او خواهشاتو نه ځان ساتل دي. نفس باندې دا شیان ګران دی. د واوري په هواګانو کې په کړنګو یخو اوبو باندې سحر وختې د لمونځ لپاره او دس کول څومره ګران دي. د مشقتونو د دې پردو نه شاته جنت دی. څنګه چې دا پردي ختمي شي، مخامخ به جنت راښکاره شي. خلاصه دا چې ظاهر بین، ظاهر پرست او بی عقله او تندي خوښونې خلک په ظاهر رنګ رونق باندې دهوکه شي، او حقیت خوښونکې خلک او عقلمند خلک په سنجیدګۍ سره په مستقبل باندې ژور نظر ساتي. او حقیقت راګیر کړي.

فسوف ترٰی اذا انکشف الغبار افرس تحت رجلك ام حمار

## د مال و زر لالچ کونکی غلام مه جوړیږه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۷﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «تَعِسَ عَبْدُ الدِّينَارِ | | | | | |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: هلاک دې شي هغه سړی چې هغه د دینار غلام وي | | | | | |
| وَعَبْدُ | الدِّرْهَمِ | وَعَبْدُ | الْخَمِيصَةِ | إِنْ | أُعْطِيَ |
| د درهم غلام وي او د څادر غلام وي. چې کله هغه ته (مال او دولت او د فخر جامه) ترلاسه شي نو خوشحاله او | | | | | |
| رَضِيَ | وَإِنْ | لَمْ | يُعْطَ | سَخِطَ | |
| راضي او که ورنکړی شي نو خفه وي. د دغه شان سړي د دې بد خصلت وجې نه ګویا نبی عَلَيْهِ السَّلَام یا بددعاء وکړه چې هلاک | | | | | |
| تَعِسَ | وَانْتَكَسَ | وَإِذَا | | | |
| دې شي. دغه شان سړی او ذلیل او سر ټیټی دې شي. او (ګوری) کله چې د دغه سړي په خپه کې ازغی لاړ شي نو هغه دې | | | | | |

شِيكَ فَلَا انْتُقِشَ.

ځوک راونه باسي. (د دینه وروسته یې د دین د طالبانو د زاهدانو هم ذکر وکړو چې هغه د کامیابۍ تر لاسه کولو او د دین د سرلوړۍ

طُوبَى لِعَبْدٍ أَخَذَ

لپاره محنت او مشقت او جهاد په ذریعه سره د الله تعالی په لاره کې مشغولوي، نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل) سعادت او خوش بختي ده

بِعِنَانِ فَرَسِهِ فِي سَبِيلِ اللهِ أَشْعَثُ رَأْسُهُ

د د هغه بنده لپاره چې هغه د خدای په لاره کې د جهاد لپاره د خپل اس واګې نیولي وي، د هغه د سر ویښتان بیراو

مُغْبَرَّةٌ قَدَمَاهُ إِنْ كَانَ فِي الْحِرَاسَةِ كَانَ فِي الْحِرَاسَةِ

قدمونو باندې دوړې وي، که ده ته د لښکر (د مخکنې صفونو) ساتنه باندې مامور کړی شي، نو په پوره توګه باندې ساتنه کوي

وَإِنْ كَانَ فِي السَّاقَةِ كَانَ فِي السَّاقَةِ

او که دا په لښکر کې شاته وساتلی شي نو په نو په لښکر کې شاته وي. او که هغه د خلکو په مجلسونو کې ګډون کول غواړي

وَإِنِ اسْتَأْذَنَ لَمْ يُؤْذَنْ لَهُ وَإِنْ شَفَعَ لَمْ يشفع». رَوَاهُ الْبُخَارِيّ [1]

نو هغه ته د ګډون اجازت نه ورکولی کیږي او که هغه د چا سفارش کوي نو د هغه سفارش نشي قبلیدلی.

**توضیح**: تعِس: عین باندې کسره ده. ناکام او نامراد په معنی دی. مراد بد دعاء ده. یعنې د درهم او دینار غلام دې هلاک شي. درهم او دینار انسان هغه لالچې غلام دی ځوک چې په ناجائز طریقه باندې مال راغونډوي. او په ناجائز لارو کې یې خرچه کوي. او د هغې شرعي حقوق نه ادا کوي. (مرقات ۹/۱۱)

الخمیصة: ګل شوی تور څادر او جامې ته خمیصه وایې. که هغه د ریښمو وي او که د وړۍ وي. ریاکار، متکبر، او عیش پرست خلک دا استعمالوي. علامه حریري وایې:

لبست الخمیصة ابغی الخبیصة وانشبت شصّ في كل شيصة

ان اعطی: دا جمله د دې سړي د حریص کیدلو، خدو غرض، او مطلب پرست کیدلو وضاحت او ښکاره کونکې دی.

وانتکس: انتکاس د سرټیټی په معنې دی. ذلیل کیدل مراد دي. په دې جمله کې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د لالچ کونکي سړي لپاره مکرره بد دعاء کړیده.

واذا شیك: شوكة: ازغي (غند) تدویل کیږي. مطلب دا دی چې کله د ده په خپه کې ازغی لاړ شي نو خدای دې

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۸۱/۶ رقم الحديث ۲۸۸۷، وابن ماجه في السنن ۲/۱۳۸۶ رقم الحديث ۴۱۳۵

وکړي چې دنه پکې پاتې شي.

**فلا انتقش: انتقاش** په خپه کې ننوتلي ازغي د لټولو په معنې دی. دا صیغه معروف او مجهول دواړه ویلی شویده. د معروف مطلب دا دی چې داسې سړی دې د دې ازغي په راویستلو باندې خپله قادره نشي. او د مجهول مطلب دا دی چې د دې سړي د خپې نه دې دا ازغی راونه ویستلی شي. هیڅوک دې د ده مرسته ونکړي. مراد دا دی چې د داسې نامراده دې په هیڅ صورت کې مسلمان مرسته ونکړي. د دې نامراده سړي په مقابله کې نبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یو کامیاب او بامراد سړي تذکره هم کړیده.

**طوبٰی:** یعنې سعادت او خوش بختي دې نصیب شي، یا د جنت د طوبٰی ونه دې د دې سړي په نصیب شي.

**لعبدٍ:** یعنې کوم سړی چې خالص د الله تعالی بنده وي. دراهم او دنانیرو بنده نه وي.

**بعنان:** عنان واګو ته وایي.

**في سبیل الله:** ای طریق الجهاد: یعنې مبارک دې وي په هغه سړي چې هغه هر وخت د جهاد لپاره تیار وي. د اس واګې په لاس کې کلک نیولي د خپل امیر د حکم په انتظار کې وي چې کله ورته حکم ورکولی کیږي. او دا مجاهد په دښمن باندې وردانګي.

**اشعث:** بیر. د دوړو ډکو ویښتانو والا ته اشعث وایي.

**مغبرة قدماه:** یعنې د چا خپې چې په خاورو باندې ککړې وي. مطلب دا چې په پورا محنت او مشقت سره د الله په لاره کې جهاد کوي. د عیش او آرام نو او نښان نه غواړي. گمنامه ژوند تیروي. د امیر د اطاعت پابند وي. چیرته چې حکم وي. هلته په منډه ځي. ګویا هغه د الله په لاره کې د ځان نه ناخبره سرمست درویش دی. رنګ، نسل، علاقه او د وطن پابند نه دی. لکه یو چا څه ویلي دي:

درویش خدا مست نه شرقی ہے نہ غربی　　　　گھر اس کا نہ دلی نہ صفاہاں نہ سمرقند

**في الحراسة:** حراسه څوکیدارۍ ته وایي. دلته د مجاهدینو د لښکر څوکیدارۍ مراد ده. او هغه هم د مقدمة الجیش چې هغه د ټولو نه ډیره نازکه او حساسه څوکیداري ده. ځکه چې په دې کې د دښمن خطره ډیره وي.

**الساقة:** د لښکر آخرې برخې ته ساقه وایي. په دې دواړو ځایونو کې ډیر مشقت وي. د لښکر اوله برخه په جنګ کې اول ننوځي. او وروستی برخه د ټولو نه وروسته د جنګ نه راوځي. دا مرد مجاهد په دواړو حالتونو کې د امیر اطاعت کوي. او مشق برداشت کوي.

دلته یو فني پوښتنه ده. هغه دا چې په شرط او جزاء کې مغایرت ضروري دی. دلته شرط او جزاء دواړه یو شی دی. د دې جواب دا دی چې شرط او جزا کله دواړه یو شی وي نو د جزاء نه کامله جزاء مراد اخستل کیږي. عبارت به په دې توګه وي: ان کان في الحراسة کان کاملا في الحراسة. دغه شان په شرط او جزاء کې به تغایر راشي. د دې حدیث مطلب دا هم کیدی شي چې دا ګمنام مخلص مجاهد دی د نوم او ځان ښودنې شوقین نه دی دا یو ځای کې په څوکیداری ودروه، نو د مجاهدینو څوکیداري کوي. او که د لښکر په بیخې آخره کې د کمزورو، ښځو او ماشومانو خواته د ساتنې لپاره وټاکي نو هلته هم وسیږي. ګمنام مسکین فقط د اجر او ثواب طلبګار دی. دا مطلب د حدیث د آخري برخې سره ډیر مناسب دی خو یو شارح هم دا مطلب نه دی لیکلی. (مرقات ۹/۱۳،۱۴)

**لم یؤذن له:** یعنې ګمنام مسکین دی، نه ده ته رخصت ورکولی کیږي، نه د ده سفارش کار کوي، نه د ده خبره څوک اوري. بس تېول ثوابونه راغونډوي، او چپ وسیږي. (مرقات ۹/۱۴)

## ٦ ربیع الثاني ١٤١٨هـ مالداري په خپل ذات کې بد شی نه دی

﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِنَّ مِمَّا

او د حضرت ابو سعید خدری رضي الله عنه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې د خپل وفات نه وروسته

أَخَافُ عَلَيْكُمْ مِنْ بَعْدِي مَا يُفْتَحُ عَلَيْكُمْ مِنْ زَهْرَةِ الدُّنْيَا وَزِينَتِهَا».

ستاسو په اړه ما سره د څه ویره ده، په هغو کې یو شی د دنیا تازه والی او زینت دی. کومه چې به تاسو ته ترلاسه کیږي.

فَقَالَ رجلٌ: يَا رَسُول الله أَوَ يَأْتِي الْخَيْرُ بِالشَّرِّ؟

دې اوریدلو باندې یو سړي وویل چې یا رسول الله صلی الله علیه وسلم! آیا ښیګړه به د خپل ځان سره بدي هم راوړي؟

فَسَكَتَ حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهُ يُنَزَّلُ عَلَيْهِ قَالَ:

نبی علیه السلام چپ ؤ، تر دې چې مونږ داګماو کړو چې په نبی علیه السلام باندې وحې نازلیږي. حضرت ابو سعید خدری رضي الله عنه فرمایي

فَمَسَحَ عَنْهُ الرُّحَضَاءَ وَقَالَ: «أَيْنَ السَّائِلُ؟».

چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم د خپل مخ مبارک نه خوله وچه کړه او بیایې وفرمایل چې هغه سړی چیرته دی چا چې پوښتنه کړې وه؟

وَكَأَنَّهُ حَمِدَهُ فَقَالَ: «إِنَّهُ

ګویا نبی صلی الله علیه وسلم د پوښتنه کونکي د پوښتنې صفت وکړو. او د دې نه وروسته یې وفرمایل: حقیقت دا دی چې

لَا يَأْتِي الْخَيْرُ بِالشَّرِّ وَإِنَّ مِمَّا يُنْبِتُ الرَّبِيعُ

چې ښیګړه د ځان سره بدي نه راوړي (نبی صلی الله علیه وسلم د دې مثال داسې بیان کړو چې) د پسرلي موسم چې هغه شینکی

| |
|---|
| مَا يَقْتُلُ حَبَطًا أَوْ يُلِمُّ إِلَّا آكِلَةَ الْخَضِرِ أكلت |
| راټوکوي او د څاروي خيټه په مړولو باندې وژني يا يې مرګ ته نيژدې کوي، ځکه چې دې خوړونکې څاروي دا |
| حَتَّى امتدت خاصرتاها استقبلت الشَّمْسِ فَثَلَطَتْ |
| شينکې دومره وخوړلو چې د دې دواړه تشې راوپړسيدل، نو هغه لمر ته مخامخ کيناستلو. او نرۍ خاشنه |
| وَبَالَتْ ثُمَّ عَادَتْ فَأَكَلَتْ. وَإِنَّ هَذَا الْمَالَ |
| او متيازې کولو باندې څرځاي ته لاړو او شينکی خوړل يې شروع کړل، او حقيقت دا دی چې د دنيا دا مال او |
| خَضِرَةٌ حُلْوَةٌ فَمَنْ أَخَذَهُ بِحَقِّهِ وَوَضَعَهُ |
| زر، تازګي، او نرمه او زړه راخکونکي ده. لهذا کوم سړی چې د دنيا مال او زر د حق سره ترلاسه کړي او هغه |
| فِي حَقِّهِ فَنِعْمَ الْمَعُونَةُ هُوَ وَمَنْ أَخَذَهُ |
| د دې په حق کې خرچه کړي نو دغه مال او زر به د ده په حق کې ډير ښه مرسته کونکی ثابت شي. او کوم سړی |
| بِغَيْرِ حَقِّهِ كَانَ كَالَّذِي |
| چې دا مال او زر په د حق نه بغير يعني په ناجائزه توګه باندې ترلاسه کړي نو دا د هغه سړي په شان دی چې |
| يَأْكُلُ وَلَا يَشْبَعُ وَيَكُونُ |
| هغه خوراک کوي او مړيګي نه او دغه مال او زر به د قيامت په ورځ باندې د هغه په حق کې (د هغه د |
| شَهِيدًا عَلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1] |
| اسراف او د هغه د حرص او طمع) ګواه وي. |

**توضیح:** او يأتي الخير بالشر: د هغه سړي د پوښتنې مقصد دا دی چې په قرآن کريم الله تعالی مال د الخير په نوم سره ياد کړی دی. سورة عاديات کې دي: وَإِنَّهُ لِحُبِّ الْخَيْرِ لَشَدِيدٌ. کله چې د دنيا مال خير دی نو دا د وېرې او شر او ضرر سبب څنګه جوړيدلی شي؟

**فسکت:** د وحي د نزول په انتظار کې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چپ شو. دې لپاره چې د الله تعالی دا رخ نه د دې پوښتنې په اړه باندې جواب راشي.

---

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۳/۳۲۷ رقم الحديث ۱۴۶۵ ومسلم في صحيحه ۲/۷۲۸ رقم الحديث (۱۰۵۲-۱۲۳).

**الرحضاء**: د تبې د وجې نه چې په مخ باندې کومه خوله راځي هغې ته رحضاء وايي. شاعر ساحر ابوطيب متنبی وايي:

لم تحك نائلك السحاب والما حمت به فصبيبها الرحضاء

په حديث کې چې د کومې خولې ذکر راغلی ديدا دوحې د سختوالي د وجې نه به راتلله. (قال) يعنې د حديث راوي ابوسعيد خدری رضي الله عنه فرمايي (وکأنه حمده) يعنې نبی کريم صلی الله عليه وسلم د هغه سړي پوښتنه خوښه کړه. ځکه چې دا پوښتنه علمي وه چې دامت لپاره فائده منده وه. (انه) دا ضمير شان دی.

**لايأتی الخير بالشر**: يعنې نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې ښيګړه بدي نه راوړي. يعنې بنفسه مال اګرکه ډير وي. دا دخپل ذات په اعتبار سره بدي نه راوړي، په دې کې که بدي راځي نو هغه د عارض او خارج د وجې نه راځي. چې سړی د اعتدال د حد نه په وتلو سره بخل او حرص او لالچ او اسراف کې اخته شي. بيا مال نقصان کوي. د دې مثال داسې دی چې د پسرلي موسم بهترين شينکی او ګياه راټوکوي، چې هغه فی نفسه خير خير دی. خو که ښايسته ګياه يو څاروی د حد اعتدال نه ډير وخوري نو د دې عارض د وجې نه هلاکت راځي چې په هغې سره به دا هلاک شي. نو دا هلاکت او ضرر عارضی خارجې دی. او د دې په اراده سره په پسرلي کې چې کله په زمکه کې په قِسما قِسم ګياه پيدا شي او څاروي د هغې خوړولو ته مخه کړي او ګياه په ښايسته ګڼلو باندې د حد اعتدال نه ډير وخوري نو د بدهضمی د وجې نه د هغې خيټه خرابه شي بلکې کولمې يې وپړسيږي، او څناور په حقيقت کې مړ شي. يا که واقعې مړ نشي نو مرګ ته نژدې شي. نو څنګه چې دلته د پسرلي د موسم څه قصور نشته بلکې د حد اعتدال نه د ډير خوړونکې څناور قصور دی، دغه شان معامله د دنيا د مال او انسان ده که انسان مال دغه شان جمع کوي، چې دهغه حق نوي او دحلال او حرام فرق نکوي، يا د مال د ډيروالي د وجې نه په انتهايي عيش وعشرت او عياشی او غفلت کې ژوند تيرول شروع کړي، نوپه دغه توګه هغه اخلاق رذيله کې ګرفتاريدلو په وجه باندې به هلاک شي. دلته قصور د مال ندی. بلکې دهغه د غلط استعمال دی. (مرقات ۹/۱۵)

**مايقتل حبط**: احبط د هلاکت په معنی دی. خو هغه هلاکت چې هغه د څه شي په خوړولو باندې په خيټه کې د بدهضمی د وجه نه پيدا شي او خوړونکی سمدستي مړ شي.

**اويلم**: **المريلم**: نژدې کيدلو په معنی دی. يعنې هلاکت ته نژدې شي.

**الاآکلة**: علامه طيبي رحمه الله فرمايي: آکلة منصوب دی، او دا ديقتل لپاره مفعول به دی او استثناء مفرغ ده. عبارت داسې دی چې: **ان ممايلبت الربيع مايقتل آکلة الا آکل الخضر**. ملا علی قاری رحمه الله داسې عبارت راوباسي: ان

**مماینبت الربیع مایقتل اویلم کل آکلة الا آکلة الخضر**. دا عبارت په مستثنی متصل باندې هم حمل کولی شي. علامه طیبي رحمه الله دا هم لیکلي دي چې دا استثناء منقطع ده. چې د لکن په معنی دی.. نوی کلام دی، دا ډیر آسان دی.

**اکلت: ای الماشية الآکلة اکل**: یعنې خوړونکی سبزه خور څناور شینکی وخوړلو. (مرقات ۹/۱۵)

**امتدت**: دا امتداد نه دی: یعنې د ډیري ګیاه په خوړلو باندې یې دواړه تشي وپړسیدل.

**خاصر**: تشو ته وایي. **عین الشمس**: د څاروي خیټه چې کله د ډیر خوراک د وجې نه وپړسیږي. نو هغه لمر ته مخامخ ودریږي یا کیني. دې لپاره چې د لمر د تپ د وجې نه په خیټه کې دننه هرڅه هضم شي.

**ثلطت**: خاشنه او پاخانه چې کله نرمه او نری شي، دستونه کیدلو سره بیرون راوځي. نو دیته ثلط وایي.

**ثم عات**: یعنې کله چې خیټه خالي شي، نو بیا د ګیاه خوړلو لپاره د څریدلو لپاره څاروی ځي. علامه ازهری رحمه الله په حواله سره علامه طیبی رحمه الله فرمایې چې په دې حدیث کې نبی ﷺ دوه مثالونه بیان کړیدي. اول مثال د هغه لالچ کونکې سړې دی، چې هغه په ناجائز او حرام طریقې سره مال راغونډوي، او د هغې حقوق نه ادا کوي. دا د زهرجني ګیاه پشان دی. د دې په اړه یې وفرمایل چې: **ما یقتل حبطاً**: دا مال دغه سړی هلاکوي. دویم مثال دهغه درمیانه سړې دی چې هغه په **الا آکلة الخضر** سره نبی کریم ﷺ بیان کړو دا مال د زهرجني ګیاه په شان نه دی. بلکې د ژبې د موسم د هغې ګیاه په شان دی چې هغه د خوراک قابله ده. اګرکه د حرص او لالچ په وجه باندې دغه سړې د مال په جمع کولو کې د حداعتدال نه تجاوز کړیدی. او اسراف یې کړیدی. لیکن ډیر ژر دا سړی خبردار شو او توبه یې وکړه او د حرص نه منع شو. څنګه چې د دې څناور مثال دی، چا چې ګیاه ډیره وخوړله. خو ژر یې خپل علاج هم وکړو نو بچ شو.

علامه طیبي رحمه الله د دې حدیث د مثال په اړه باندې یوه بله تشریح هم کوي چې د دې حدیث نه څلور مثالونه راوتلی شي. اول مثال خو د هغه کافر دی چې هغه د دنیا زهرجني ګیاه خوړلو سره هلاک شي. دویم مثال دهغه ظالم مسلمان دی چې هغه په ګناهونو کې اخته کیدلو سره هلاکت ته نژدې شي. دریم مثال دهغه درمیانه مسلمان دی چې هغه کله ګناه او کله نیکې کوي. **مایقتل حبطاً** کې اول مثال اړخ ته اشاره ده. **اویلم**: کې دویم مثال اړخ ته اشاره ده. او **آکلة الخضر** کې دریم مثال اړخ ته اشاره ده او څلورم مثال اګرکه په دې حدیث کې ذکر ندی خو په بل حدیث کې دي چې چا دنیا پریخودله او عقبی یې غوره کړه چې هغه ته سابق بالخیرات ویلی کیږي، په قرآن کې الله تعالی هغه ذکر کړیدی. امام غزالی رحمه الله دنیا او په دې کې د وسیدونکو خلکو مثال د یو سمندرې کشتۍ سره ورکړی دی. چې هغه په

سمندر کې سفر کوي. او څه لږ وخت وروسته د يو ټاپو سره ودريږي. د کشتۍ مالک په هغې کې سپاره شو خلکو ته وايي چې دې وچ ټاپو ته کوز شۍ، او قضائ حاجت او داسې نور ضرورتونو نه فارغه کولو باندې ژر راشۍ، دې لپاره چې مخکې سفر جارې وي.امام غزالي رحمه الله فرمايې چې په ټاپو کې کوزيدونکې انسانان په درې قسمونو کې تقسيم شي.يوه طبقه خو د کشتۍ د مالک د اعلان په مطابق باندې خپل قضائ حاجت او د ضرورت تر حده ايسار يدلو پورې بيرته ژر ژر کشتۍ ارخ ته راغلل. او چيرته غوارې په خالي کشتۍ کې په هغه ځاې کې کيناستلو .دويمې طبقې د ټاپو نه ښايسته ښايسته کاڼي او شيان راغونډ کړل، په دې کې هم ناوخته شو او په اوږو باندې هم بار راوړل ګران شو او ناوخته راتګ باندې چې يې وکتل نو په کشتۍ کې خالي ځاې نشته دی.او غاړو ته په وسپنو او کونډو باندې کيناستل او خپل بارې په خپل سر کيخودلو او په ډير تکليف کې ؤ خو کيناستل. او دريمه طبقه د هغه خلکو جوړه شوه چې هغوې د ټاپو په نظر ښايسته راتلونکې شيان وکتل او په هغې کې اخته شو او وې ويل چې مونږ به هم دلته يو . په کشتۍ کې د کيناستلو او د مخکې سفر کولو مونږ ته ضرورت نشته دی. دې وينا سره د هغوې نه کشتۍ لاړه.او دا خلک څه وخته پورې په دې جزيره کې خوشحاله ؤ.خو کله چې د ژوند د ضرورت اسباب ختم شو، نو دا خلک په دې جزيره کې په نهايت درد او سختئ سره مړه شول. په دې حديث کې اول مثال د زاهد مؤمن دی. دويم مثال د ميانه رو ګناهګار مسلمان دی. او دريم مثال د کافر دی. بهرحال د حديث چې څومره برخه تيره شويده، دهغې مطلب او خلاصه دا راوولته چې مال خير دی او خير شر نه راوړي. خو کله کله دغه مال په غلطه طريقه باندې ترلاسه کيدلی شي. او د دې د حقوق لحاظ نشې کيدلی. چې هغه انسان هلاکوي. څنګه چې زهرجنه ګياه څاروی تباه کوي. نو مال صالح پکار دی. زهرجن کيدل پکار ندی.دغه شان کله کله مال صالح وي خو د حد اعتدال نه ډير استعمالولو باندې نقصان کوي، څنګه چې ښايسته ګياه ده خو دا څناور د حد نه ډيره وخوړله نو په دې سره بدهضمې پيدا شوه. او دستونه يې شروع شول. نو دينا چې کله ډيره شي نو دا هم انسان په دستونو کې اخته کوي. يو ولي الله ويلي دي چې د دنيا مثال د زهرجن مار په شان دی. که د مار په دم پوهيږي نو مار به دې په قابو کې وي. او که نه وي نو ټک به درله درکوي. او د دې مار دم دا دی چې د دنيا مال په جائز طريقه باندې ترلاسه کړی شي او په جائز طريقه باندې استعمال کړی شي. **وان هٰذاالمال**: په دې جمله کې نبی کريم ﷺ د دنيا په مينه کې د خلکو بيلابيل حالتونه بيان کړيدي. چې دا دنيا د ښايست او زينت په اعتبار سره شنه، تازه ، زړه راخکونکې او خوږه ده .طبعًا هر سړی دا خوښوي.نو چا چې دا په صحيح او جائز طريقه باندې ترلاسه کړه او په جائز طريقه باندې يې استعمال کړه نو نو دا د يو صالح انسان د مقصدونو لپاره يو ښه معاون او مرست کونکی دی. او چا چې دا دنيا او مال په ناجائز طريقه باندې ترلاسه کړو او په ناجائز کارونو کې يې خرچ کړو نو دا دهغه لپاره د خپل ځان ګناه د. چې د هغې په وجه باندې به انسان په يو لاعلاجه ناروغۍ کې اخته شي. هغه به د دنيا غلام

کیدلو باندې د دې څوکیدار شي. او دهغه مثال به د جوع البقر د ناروغی والا مریض په شان شي. چې هغه خوراک کوي خو ولږه یې نه ختمیږي یا د استقاء د مریض په شان به شي چې هغه او به څکي خو تنده یې نه ختمیږي. هم دا بس نده بلکې د قیامت په ورځ باندې به دا مال دهغه په خلاف باندې ودریږي او دا به ګواهي ورکوي چې دا سړی ډیر حریص، لالچي او حرام خور او غل ؤ. (مرقات ۹/۱۷)

خلاصه دا چې د دنیا مال حجاب اکبر دی. دا د دوزخ د او رنه هم پرده جوړیدلی شي او د جنت لپاره هم پرده جوړیدلی شي.

یارناپائیدار دوست مدار — دوستی رانه شاید این غدار

جگہ جی لگانے کی دنیا نہیں ہے — یہ عبرت کی جاہے تماشا نہیں ہے

## غریبې او ولږه نه بلکې ډیر مالونه د خطرې سبب دی

| |
|---|
| ﴿۱﴾وَعَنْ عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: «فَوَاللهِ |
| او حضرت عمرو بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: په خدای قسم! ما سره ستاسو د |
| لَا الْفَقْرُ أَخْشَى عَلَيْكُمْ وَلَكِنْ أَخْشَى عَلَيْكُمْ أَنْ تُبْسَطَ عَلَيْكُمُ الدُّنْيَا كَمَا |
| غریبي هیڅ ویره نشته دی بلکې د دینه ویریږم چې دنیا به په تاسو باندې فراخه کړی شي لکه څنګه چې |
| بُسِطَتْ عَلَى مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ فَتَنَافَسُوهَا كَمَا |
| په هغه خلکو باندې فراخه کړی شوي وه چې ستاسو نه مخکې ؤ. نو تاسو به دنیا اړخ ته رغبت وکړی لکه |
| تَنَافَسُوهَا وتهلككم كَمَا |
| څنګه چې ستاسو نه مخکې خلکو دېته رغبت کړی ؤ. او بیا به دا دنیا تاسو داسې تباه کړي لکه څنګه چې |
| أهلكتهم» . مُتَّفق عَلَيْهِ[1] |
| یې هغوی تباه کړي ؤ. (بخاری ومسلم) |

**توضیح**: فتنافسوها: ای فتتنافسوا فیها: خوښ شي ته د زړه میلان ته تنافس وایې. مراد رغبت دی چې د دنیا ترلاسه کولو لپاره د یو بل نه مخکې کیدلو سره به منډه اخلی. او د دې په جمع کولو کې به اخته شی. په دې کې به حرص کول شروع کړی. بیا د ډیروالي د وجې نه به په تکبر او تجبر او بغاوت کې پریوځی. نو هغوی به تاسو هلاک کړي. دا د دنیا هم هلاکت دی او د آخرت هم هلاکت دی. د ریښمو د چینجي په شان چې

[1]أخرجه البخاري في صحيحه ۷/۳۱۹ رقم الحديث ۴۰۱۵ ومسلم في صحيحه ۴/۲۲۷۳ رقم الحديث ۲۹۶۱ ۶/.

هغه د خپل بدن نه د ريښمو تار را ايستلو باندې په خپل بدن باندې تاوهي. او په آخر کې په هغې کې په لاندې کيدلو سره مړ شي. يا د څپياکو د چينجي (کونګټ) په شان چې د ګندګۍ غونډارې جوړلو باندې خپلې سورې ته د ننويستلو کوښښ کوي خو د سورې د تنګوالي د وجې نه هغه پرېخودلو باندې خپله د ننه لاړ شي. انسان هم هر څه پرېخودلو باندې قبر ته يواځې داخليږي. (مرقات ۹/۱۸،۱۹)

جگہ جی لگانے کی دنیا نہیں ہے یہ عبرت کی جا ہے تماشا نہیں ہے

بهر حال د مال په ډيروالي کې ۱۱ هلاکت هم دی چې مال کله سړی ګير کړي نو هغه بزدله کيدلو باندې د جهاد نه ويريږي. نو دښمن په راتلو سره هغه هلاک کړي.

## د کفاف په اندازه مال ښه دی

| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ رِزْقَ آلِ مُحَمَّدٍ |
|---|
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم دا دعاء وکړه: ای الله ته آل د محمد صلى الله عليه وسلم ته |
| قُوتًا» وَفِي رِوَايَةٍ «كَفَافًا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1] |
| قوت لايموت رزق ورکړه او په يو روايت کې د کفاف (چې د انسان لپاره کافي کيږي) لفظ دی. |

**توضيح: آل محمد:** د نبی کريم صلى الله عليه وسلم د خپل ذات لپاره دا معيار ټاکلی شوی ؤ چې د ځان سره به يې څه جمع نه ساتل. د خپل اهل بيت لپاره يې دا معيار ؤ چې د کافي کيدلو په اندازه او د قوت لايموت تر اندازې پورې د ساتلو اجازت به يې کولو او د عام امت لپاره يې دا معيار ؤ چې د حلال رزق ګټلو او په صحيح طريقه باندې د استعمالولو اجازت به يې ورکولو. د علماؤ يوه ډله دې اړخ ته تللي ده چې د حلال مال فراخي د فقر او ولږې نه غوره دی. خويوه ډله دې اړخ ته تللي ده چې فقر او ولږه د مال د فراختيا نه غوره ده. بهر حال د هر سړي احوال بيل بيل وي. **لايقاس الملوك بالحدادين:** باچاهان په آهنګرو باندې نشي قياس کيدلی. کفاف او قوت لايموت د بل سره نږدې نږدې يو مفهوم لري. (مرقات ۸/۱۹،۲۰)

علامه طيبی رحمه الله ليکي چې د کفاف حکم او مفهوم د خلکو د احوالو د اختلاف سره بيليږي. ځينې خلک په ټوله اونۍ (هفته) کې يو ځل ډوډۍ خوري. د هغوی لپاره هغه کفاف دی. ځينې خلک يې په ورځ کې دوه ځل خوري. د هغوی لپاره هغه کفاف دی. ځينې خلک عيالداره وي نو د هغوی لپاره دومره کفاف دی چې د هغوی د بچيانو لپاره کافي شي. ځينې خلک د لږ عيال وي نو د هغوی لپاره لږه غذا کفاف دی. خلاصه دا چې د کفاف ټاکلې اندازه نشته بلکې د کافي کيدلو په اندازه باندې کفاف دی. دې لپاره چې په طاعاتو کې قوت وي او بې ځايه مشغولتيا هم نوي. (الکاشف: ۹/۳۳۶)

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۲۸۱ رقم الحديث ۶۴۶۰ ومسلم في صحيحه ۴/۲۲۸۱ رقم الحديث (۱۰۵۵-۱۸)

﴿۱۱﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «قَدْ أَفْلَحَ

او حضرت عبد الله ابن عمرو رضي الله عنه فرمايي چي رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل: هغه سړی کاميابی او نجات

مَنْ أَسْلَمَ وَرُزِقَ كَفَافًا

ته ورسيدلو چا چې اسلام قبول کړو ، هغه ته د کفاف په اندازه رزق ورکړی شو او الله تعالى په هغه څه باندې چې

وَقَنَّعَهُ اللهُ بِمَا آتَاهُ» . رَوَاهُ مُسلم[1]

ته ورکړی شويدی ، قناعت يې ورکړو.

## د انسان مال په درې قسمه دی

﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَقُولُ الْعَبْدُ: مَالِي مَالِي.

او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چي رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل: بنده وايي چې زما مال زما مال

وَإِن مَاله مِنْ مَالِهِ ثَلَاثٌ:

او حقيقت دا دی چې هغه ته د دې مال او دولت نه کومه برخه ترلاسه کيږي هغه فی الجمله درې شيان دی:

مَا أَكَلَ فَأَفْنَى أَوْ لَبِسَ فَأَبْلَى

يو خو هغه شی کوم چې د ده خوړلو او ختم يې کړو. دويم شی هغه کوم چې ده واغوستل او زوړ يې کړو يعنې ويستلو باندې

أَوْ أَعْطَى فَاقْتَنَى.

يې ګوزار کړیاو دريم شی هغه دی کوم چې ده د خدای په لاره کې ورکړو او (آخرت لپاره يې) ذخيره کړي. د دې درې وارو

وَمَا سِوَى ذَلِك فَهُوَ ذاهبٌ

شيانو نه غير د چې هر څه دي (لکه زمکه. جائيداد، څاروي او داسې نور) ټول داسي دي چې هغه دا د خلکو لپاره

وتاركهُ للنَّاس". رَوَاهُ مُسلم[2]

پريخودلو باندې (د دې دنيا نه) تلونکی دی.

**توضيح**: وان ماله: ما موصوله بمعنې الذی دی او د له حرف د حصل سره متعلق دی. او من مالِه هم د دې سره متعلق دی. او ثلاث خبر دی. فابلی : يعنې جامه مال دی ، کوم چې يې واغوستلو او زړه يې کړه.

---

(1) أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۷۳۰ رقم الحديث (۱۰۵۴-۱۲۵) والترمذي في السنن ۴/۴۹۷ رقم الحديث ۲۳۴۸.

(2) أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۷۳ رقم الحديث (۲۹۵۹-۴) والترمذي في السنن ۴/۴۹۴ رقم الحديث ۲۳۴۲.

**فاقتنی**:ای جعله قنية وذخيرة للعقبیٰ: يعنې خيرات او صدقه کولو باندې د آخرت لپاره ذخيره وساتله. فهو : يعنې دغه بنده تلونکی دی. او مال د خلکو لپاره د ميراث په توګه باندې پريخودونکی دی. يعنې د انسان اصل مال کوم چې د هغه په کار راغلو په درې قسمه دی(۱) کوم چې هغه وخوړلو ، دا د ده مال دی.(۲) کوم چې يې و اغوستلو دا د ده مال دی(۳) کوم چې يې د الله نوم باندې ورکړو ،دا د ده مال دی. چې د هغې اجر به په آخرت کې ورکولی کيږي. د دينه علاوه وبال دی، نه دا چې د ده مال دی. (مرقات۸/۲۱)

## د انسان سره به قبر ته فقط د ده عمل ځي

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " يَتْبَعُ الْمَيِّتَ ثَلَاثَةٌ: |
| او حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايې چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: د مړي سره (تر قبر پورې) درې شيان ځي |
| فَيَرْجِعُ اثْنَانِ وَيَبْقَى مَعَهُ وَاحِدٌ يَتْبَعُهُ أَهْلُهُ |
| په هغې کې دوه شيان خو بيرته راځي او يو شی د هغه سره پاتې کيږي. نو د هغه متعلقين(لکه اولاد ، عزيزان او خپلوان |
| وَمَالُهُ وَعَمَلُهُ فَيَرْجِعُ أَهْلُهُ وَمَالُهُ |
| او داسې نور) او د هغه مالونه(لکه نوکر چاکر ، کټ، ګاډي)او د هغه اعمال د هغه سره پاتې کيږي. په دې |
| وَيَبْقَى عَمَلُهُ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ (۱) |
| دريواړو کې متعلقين او مال خو (هغه يواځې پريخودلو باندې) بيرته راشي او د هغه اعمال د هغه سره پاتې کيږي |

## خپل مال د آخرت ذخيره جوړه کړه

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَيُّكُمْ |
| او حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايې چې(يوه ورځ) رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې په تاسو هغه سړی |
| مَالُ وَارِثِهِ أَحَبُّ إِلَيْهِ مِنْ مَالِهِ؟» قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ |
| څوک دی چې هغه د مال نه ډير د خپل وارث مال خوښوي؟ صحابو عرض وکړو چې يارسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! په |
| مَا مِنَّا أَحَدٌ إِلَّا مَالُهُ أَحَبُّ إِلَيْهِ مِنْ مَالِ وَارِثِهِ. قَالَ: |
| مونږ کې يو سړی داسې نشته چې هغه د خپل مال نه ډير د وارث مال خوښوي.نبی صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: |
| «فَإِنَّ مَالَهُ مَا قَدَّمَ |
| په حقيقت کې د ده مال هغه دی کوم چې ده (صدقه او داسې نور د ثواب به صورت کې) مخکې وليږلو او د ده د |

---

(۱)أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۳۶۲ رقم الحديث ۶۵۱۴،وأخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۷۳ رقم الحديث ۲۹۶۰ ،۵.

| وَمَالَ وَارِثِهِمَا أخر» . رَوَاهُ البُخَارِيّ[1] |
|---|
| وارث مال هغه دی کوم چې هغه د ده د خپل ځان نه وروسته پريخودلو . |

**توضيح** :مال وارثه: يعنې په تاسو کې څوک داسې دی چې هغه ته د خپل مال نه ډير د خپل وراث مال خوښ وي.صحابو وفرمايل چې داسې سړی هيڅوک نشته چې هغه ته د خپل مال نه ډير د خپل وارث مال خوښ وي.نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې بيا لږ سوچ وکړه چې کوم مال د مړې نه پاتې شي ، هغه د ده د وارثانو دی.او کوم مال چې يې د خپل مرګ نه مخکې د الله په لاره کې خرچه کړي، هغه په حقيقت کې د ده خپل مال دی. حالانکې دا سړی د هغه مال د خرچ کولو په ځای باندې وروسته خپل وارث ته پريږدي. نو په حقيقت کې دا سړی د خپل مال نه ډير د وارث د مال خيال ساتي. چې دا سراسر د عقل، مشاهدې او تجربې نه خلاف ده. (مرقات ۸/۲۲)

| ﴿۱۵﴾ وَعَن مُطرّف عَنْ أَبِيهِ قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| او حضرت مطرف د خپل پلار (عبدالله بن شخير) نه نقل کوي چې هغه وفرمايل چې زه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر |
| وَهُوَ يَقْرَأُ: (أَلْهٰكُمُ التَّكَاثُرُ) |
| شوم نو د هغه وخت نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلْهٰكُمُ التَّكَاثُرُ لوستلو (چې د دې معنی داده: ای خلکو! تاسو خپل مينځ کې په خپلې مالدارۍ |
| قَالَ:" يَقُولُ ابْنُ آدَمَ: |
| او مشرۍ باندې فخر او ناز کولو په سبب باندې د آخرت نه بې پرواه شوي وی) نو نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې ابن آدم وائی |
| مَالِي مَالِي". قَالَ: «وَهَلْ لَكَ يَا ابْنَ آدَمَ |
| زما مال زما مال وايي.بيا نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې ای ابن آدم! تا ته چې ستا د مال نه څه تر لاسه کيږي او ته څومره فائده اخلې، |
| إِلَّا مَا أَكَلْتَ فَأَفْنَيْتَ أَوْ لَبِسْتَ فَأَبْلَيْتَ |
| هغه دومره ده چې ته کوم شيان وخوري او هغه ختم کړې يا واغوندې او هغه زاړه کړې يا د خدای په لاره کې |
| أَوْ تصدَّقت فأَمضيت؟؟» . رَوَاهُ مُسلم[2] |
| خرچه کړې او د آخرت لپاره يې ذخيره جوړه کړې. |

## مالداري په زړه ده ، په مال نه ده

| ﴿۱۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَيْسَ الْغِنَى |
|---|
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: اصل مالداري او دولت مندي |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۲۶۰ رقم الحديث ۶۴۴۲،وأحمد في المسند ۱/۳۸۲.

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۷۳ رقم الحديث (۲۹۵۸-۳) وأحمد في المسند ۴/۲۴ .

عَنْ كَثْرَةِ الْعَرَضِ وَلَكِنَّ الْغِنَى

دا نده چې چې دڅان سره ډير مال او متاع وي بلکې حقيقي مالداري چې د کوم شي نوم دی هغه نفس يعني

غِنَى النَّفس» مُتَّفق عَلَيْهِ(۱)

د زړه مالدارۍ او غني کيدل دي.

## الْفَصْلُ الثَّانِي

﴿۱۷﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: «من أَخذ عَنِّي هَؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ

او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: کوم سړی دی چې هغه زمانه پنځه

فَيَعْمَلُ بِهِنَّ أَوْ يُعَلِّمُ مَنْ يَعْمَلُ بِهِنَّ؟»

خبرې زده کړي او بيا په هغې باندې عمل وکړي يا يې هغه چا ته وښايي چې هغه په دې باندې د عمل کونکی وي

قُلْتُ: أَنَا يَا رَسُولَ اللهِ فَأَخذ بِيَدِي

ما عرض وکړو چې يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! هغه سړی زه يم. نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (دې او ريدلو باندې) زما لاس ونيولو

فَعَدَّ خَمْسًا فَقَالَ: «اتَّقِ الْمَحَارِمَ

او پنځه خبرې يې راته وشميرلې او (هغه يې په دې توګه) بيان کړې (۱) ته د هغه شيانو نه ځان وساته کوم چې شريعت حرام کړيدي

تَكُنْ أَعْبَدَ النَّاسِ وَارْضَ

که ته د دې نه ځان ساتې نو ته به په بنديګانو کې د ټولو نه ډير عبادت ګزار بنده يې (۲) ته په هغه څه باندې راضي

بِمَا قَسَمَ اللهُ لَكَ

او شکر ايستونکی شه کوم څه چې الله تعالى ستا په قسمت کې ليکلي دي. که ته د الله په تقدير باندې راضي

تَكُنْ أَغْنَى النَّاسِ وَ أَحْسِنْ إِلَى جَارِكَ

او مطمئن شوې نو ستا شمير به په مالداره خلکو کې کيږي. (۳) ته د خپلو ګاونډيانو سره ښه خوي کوه

تَكُنْ مُؤْمِنًا وَأَحِبَّ لِلنَّاسِ مَا تُحِبُّ لِنَفْسِكَ

که ته دغه شان کوې نو ته به کامل مؤمن ګڼلی کيږې (۴) ته چې کوم شی د خپل ځان لپاره خوښوې هغه د

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۲۷۱ رقم الحديث ۶۴۴۶ ومسلم في صحيحه ۷۲۶ رقم الحديث (۱۰۵۱-۱۲۰)

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| تَكُنْ | مُسْلِمًا | وَلَا | تُكْثِرِ | الضَّحِكَ | فَإِنَّ | كَثْرَةَ |

نورو ته لو خلکو لپاره خوښوه. که ته دغه شان کوي نو ته به کامل مسلمان ګڼلی کیږي(۵) او ته ډیري

الضَّحِكَ تُمِيتُ الْقَلْبَ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ

خندا کولو نه ځان وساته ځکه چې ډیر خندل زړه لره مړ (او د خدای د یادولو نه ناخبره) کوي.(احمد. ترمذی)

## د عبادت لپاره فارغیدل د پریشانۍ حل دی

﴿۱۸﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللهَ يَقُولُ: ابْنَ آدَمَ تَفَرَّغْ لِعِبَادَتِي

او حضرت ابو هریره رضی الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې ای ابن آدم! زما د عبادت لپاره ته خپل زړه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَمْلَأْ | صَدْرَكَ | غِنًى | وَأَسِدَّ | فَقْرَكَ |

ښه فارغه او مطمئن کړه، زه به ستا سینه د استغناء نه ډکه کړم. او ستا لپاره به د فقر او غریبۍ لاره بنده کړم

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَإِنْ | لَا | تَفْعَلْ | مَلَأْتُ | يَدَكَ | شُغْلًا | وَلَمْ |

او که ته داسې ونکړې نو بیا به زه ستا لاس په قسما قسم فکرونو او مشغلو نه ډک کړم او ستا فقر او احتیاج

أَسُدَّ فقرك". رَوَاهُ أَحمد وَابن مَاجَه[۲]

به لرې نه کړم.(مسند احمد او ابن ماجه)

**توضیح: تفرغ لعبادتي:** د دې حدیث مطلب دا دی چې الله تعالی انسان ته لارښودنه کوي چې ای انسانه! ته زما د عبادت لپاره فارغه شه زه به ستا ضرورتونه پورا کړم. او د فقر او ولږې لارې به دربانډې بندې کړم. او ستا زړه به د استغناء نه ډک کړم، بس ته د آخرت په فکر کې شه. زه به ستا دنیا جوړه کړم.

**وان لا تفعل:** یعنې که ته داسې ونه کړې نو زه به ستا لاسونه په دنیاوي مشغلو او مادي فکرونو او د زمانې مشکلاتو نه ډک کړم. بیا به ستړی ستړی ګرځې، دهیکي به خوري، نه به څه په لاس راځي او نه به زړه مستغني وي. خلاصه دا چې : **کونو ابناء الآخرة ولاتکونوا ابناء الدنیا.** یعنې د آخرت بندیګان جوړ شئ، د دنیا بنده ګان مه جوړیږئ.

**ابن آدم:** دا منادی ده، دلته حرف ندا محذوف ده. اصل عبارت: یا ابن آدم دی.(مرقات ۸/۲۷)

---

(۱) اخرجه الترمذي ۴/۴۷۸ رقم الحديث ۲۳۰۵ وابن ماجه في السنن ۲/۱۴۱۰ رقم الحديث ۴۲۱۷.

(۲) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۵۴ رقم الحديث ۲۴۶۶ وابن ماجه في ۲/۱۳۷۶ رقم الحديث ۴۱۰۷.

## تقوی سره برابر هیڅ عبادت نشته

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: ذُكِرَ رَجُلٌ عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې ته د يو داسې سړي ذکر وکړې شو چې هغه |
| بِعِبَادَةٍ وَاجْتِهَادٍ وَذُكِرَ آخَرُ |
| په عبادت او طاعت کې ډير مشغول وي او په دې کې ډير کوښښ او پابندي کوي. او د يو بل سړي په اړه ذکر |
| بِرِعَةٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| وکړې شو چې هغه پرهيزګارۍ خپله کړې. نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: چې (د پرهيزګارۍ نه بغير) |
| «لَا تَعْدِلُ بِالرِّعَةِ» . يَعْنِي الْوَرَعَ. رَوَاهُ التِّرمذيُّ [1] |
| د عبادت او طاعت ډيروالی او په دې کې د سعي او پابندۍ کول د پرهيزګارۍ سره برابر مه ګڼوئ. |

**توضيح: بعبادة:** يعنې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې ته د يو سړي تذکره چا وکړه چې هغه ډير زيات عبادت کوي خو د ګناهونو نه په ځان ساتلو کې څه لږ کمزوری دی.

برعة: دا لفظ د عدة په وزن باندې دی. را باندې کسره ده. او عين باندې زبر دی. دا د ورع په معنې دی. ورع تقوی ته وايي. او تقوی د ګناهونو نه ځان ساتلو ته وايي. يعنې د يو بل تذکره د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې ته په دې توګه وشوه چې هغه د ګناهونو نه د ځان ساتلو ډير کوښښ کوي اګر که ډير عبادت نکوي.

لاتعدل: نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جواب ورکړو چې د عبادت ډير والی د تقوی او د ګناهونو نه د ځان ساتلو سره مه برابروئ. دا د نهې معروف صيغه ده او د مجهول هم کيدلی شي. د غه وخت به په تاء باندې ضمه وي او دال باندې به فتحه وي او صيغه به د نفي وي. مطلب دا چې په شريعت کې هيڅ خصلت د تقوی مقابله نشي کولی. د تقوی خصلت د ټولو نه اعلی دی. (مرقات ۸/۲۷)

**د تقوی تعريف:** ورع او تقوی يو شی دی. د دې دواړو يو څو تعريفونه دي. وګورئ:

علامه مير سيد سند شريف جرجاني په خپل کتاب التعريفات کې تقوی او د ورع تعريف داسې کړی دی:

**(۱) التقوی فی اللغة بمعنی الاتقاء وعند اهل الحقيقة هو الاحتراز بطاعة الله عن عقوبته**

**(۲) وقيل محافظ آداب الشريعة. (۳) وقيل مجانبة کل ما يبعدك عن الله.**

---

[1] اخرجه الترمذي في السنن ۵۷۷ / ۲ رقم الحديث ۲۵۱۹

(۴) وقیل ترك حظوظ النفس ومباینة النهی (۵) وقیل ان لا تری فی نفسك شیئا سوی الله

(۶) وقیل ان لا تری فی نفسك خیرا من احد (۷) وقیل الاقتداء بالنبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قولا وفعلا

(۸) ولاورع هو الاجتناب الشبهات خوفا من الوقوع فی المحرمات

(۹) وقیل هو ملازمة الاعمال الجمیلة (تعریفات: ص: ۵۷، ۲۲۴)

(۱۰) وقال الراغب الاصفهانیؒ الورع فی عرف الشرع عبارة عن ترك التسرع الی تناول اعراض الدنیا وذلك ثلاثة اضرب (الف) واجب وهو الاحجام عن المحارم وذلك للناس کافة (ب) وندب وهو الوقوف عن الشبهات وذلك للاوساط من الناس (ج) وفضیلة وهو الکف عن کثیر من المباحات والاقتصار علی اقل الضرورات وذلك للنبیین والصدیقین والشهداء والصالحین.

ذکر شوې تعریفونه ما په عربۍ کې نقل کړل. پوهیدونکو لپاره ذخیره ده. وس دوه تعریفونو باندې پښتو کې پوهه شی: حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یوه ورځ د یو سړي نه پوښتنه وکړه چې دتقوی مفهوم څه دی. نو هغه سړي وویل چې د تقوی مفهوم داسې دی چې مثلاً یو سړی د غنو (ازغو) په بوټو کې روان دی. خو هغه خپل بدن او خپلې جامې د جاخو او د غنو نه ساتلو سره روغ ووځي. دا د تقوی تصور دی. د ځینو احادیثو نه د تقوی مفهوم داسې راوځي چې سړی ظاهرًا او باطنًا خپله معامله د خپل رب سره پاکه وساتي.

## د پنځه مصیبتونو نه مخکې پنځه نعمتونه

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ الْأَوْدِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِرَجُلٍ وَهُوَ يَعِظُهُ: |
| او حضرت عمرو بن میمون اودی رحمه الله (تابعی) فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یو کس ته نصیحت کولو کې وفرمایل: |
| " اغْتَنِمْ خَمْسًا قَبْلَ خَمْسٍ: شَبَابَكَ قَبْلَ هَرَمِكَ وَصِحَّتَكَ قَبْلَ سَقَمِكَ |
| پنځه شیان د پنځه شیانو نه مخکې غنیمت وګڼه! (۱) بوډاوالي نه مخکې ځواني (۲) ناروغتیا نه مخکې روغتیا |
| وَغِنَاكَ قَبْلَ فَقْرِكَ وَفَرَاغَكَ قَبْلَ |
| (۳) د فقر او غریبۍ نه مخکې مالداري او خوشحالي (۴) مشغلو او فکرونو کې اخته کیدلو نه مخکې د وخت |
| شُغْلِكَ وَحَيَاتَكَ قَبْلَ مَوْتِكَ ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ مُرْسلا[1] |
| فراغت او اطمینان لره (۵) د مرګ نه مخکې ژوند لره. |

[1] اخرجه البغوي في شرح السنة ۱۴/۲۲۴ رقم الحدیث ۴۰۲۱.

## په نیک کار کولو کې مه ناوخته کوه

﴿۲۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کوي چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل:

«مَا يَنْتَظِرُ أَحَدُكُمْ إِلَّا غِنًى مُطْغِيًا

په تاسو کې یو سړی مالدارۍ انتظار کوي چې هغه ګناهګارونکې او امر او نهي د حدودو نه تجاوز کونکې ده.

أَوْ فَقْرًا مُنْسِيًا أَوْ مَرَضًا مُفْسِدًا

یا د فقر او غریبۍ انتظار کوي چې هغه د حق اطاعت هیرونکی دی. یا د ناروغۍ انتظار کوي. چې هغه تباه کونکې ده.

أَوْ هَرَمًا مُفَنِّدًا أَوْ مَوْتًا مُجْهِزًا

یا د سخت بوډوالي انتظار کوي. چې هغه بی عقله او بدحواس جوړونکې ده. یا د مرګ انتظار کوي چې هغه ناڅاپه کار

أَوِ الدَّجَّالَ فَالدَّجَّالُ شَرٌّ غَائِبٌ يُنْتَظَرُ

کوي یا د دجال انتظار کوي. نو هغه بد خصلته دجال تر وسه ندی راښکاره شوی. د هغه انتظار کیدلی شي.

أَوِ السَّاعَةَ وَالسَّاعَةُ أَدْهَى وَأَمَرُّ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ [1]

او هغه به په آخره زمانه کې راښکاره کیږي چې هغه په حوادثو او مصیبتونو کې د ټولو نه ډیر سخت دی.

**توضیح: ما ینتظر احدکم:** دا کلام د زجر او توبیخ او رټنې په انداز کې دی. په دې سره عبادت کې سستې کونکو لره بیدارولی شي. مطلب دا دی چې ای سستې کونکو مسلمانانو! تاسو به د خپل رب عبادت کله کوئ؟ د څه شي تاسو ته انتظار دی. که د بدن د روغتیا په زمانه کې او لږ مصروفیت په زمانه کې تاسو عبادت ونکړئ نو د مشغلو ډیروالي او د بدن د کمزورۍ والې په وخت کې به تاسو څنګه عبادت وکړئ شئ؟ شاید تاسو ته نور څه انتظار نشته . یعنې ګمراه کونکې مالدارۍ انتظار دی یا عبادت هیرونکې فقر او غریبۍ انتظار دی یا د جسم بربادونکې ناروغۍ انتظار دی. یا لیونی جوړونکې بوډاوالي انتظار دی. یا ناڅاپه څکونکې مرګ انتظار دی. یا د دجال د راوتلو انتظار دی. چې هغه بدترین غیبې مصیبت دی چې د هغې انتظار کیدلی شي. یا د قیامت انتظار دی. حالانکې قیامت دروند مصیبت او تریخ حقیقت دی. خلاصه دا چې وس درسره وخت شته ، عبادت وکړئ ، سستی مکوئ. کله چې دا مصیبتونه راښکاره شي، بیا د عبادت دا ښایسته موقع به په لاس نه راځي. بیا به شرمیږئ، خو فائده به نه وي. (مرقات ۸/۲۹)

---

[1] أخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۷۸ رقم الحديث ۲۳۰۶

اب پچھتائے کیا ہیت جب چڑیا چگ گئیں کھیت

## د دنیا بدي، د ذکر الله فضیلت

۲ ربیع الثاني ۱٤۱۸هـ

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «أَلَا إِنَّ الدُّنْيَا مَلْعُونَةٌ |
| او حضرت ابو هریره رضي الله عنه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل: یادساتئ دنیا ملعونه ده. |
| مَلْعُونٌ مَا فِيهَا إِلَّا ذِكْرُ اللهِ وَمَا وَالَاهُ |
| او څه چې په دنیا کې دننه دي هغه هم ملعون دي. البته د الله یاد و نه د خدای خوښ شی دی. او هغه څه چې د الله د یادونې |
| وَعَالِمٌ أَوْ مُتَعَلِّمٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ[1] |
| ذریعې وي او عالم او متعلم (ترمذی او ابن ماجه). |

**توضیح: ملعونة**: د دنیا کوم شیان چې د الله تعالی په نزد باندې معلون دي، د هغې نه مراد حرام او ناخوښه شیان دي. مطلب دا چې د هغه ناجائز کارونو نه ځان وساتئ چې هغه د الله تعالی په نزد باندې د لعنت او کرکې وړ دي.

**الا ذکر الله**: یعنې کوم شیان چې د الله تعالی په نزد باندې خوښ او مقبول دي، هغه خپل کړئ، لکه د الله تعالی ذکر، او تعلیم او تعلم، او طاعاتونه او عبادتونه دي. د هغې په خپلولو باندې به تاسو د الله تعالی په دربار کې مقبول شئ. ځکه چې دا شیان د الله تعالی په نزد باندې خوښ او مقبول دي.

**وماوالاه**: دا لفظ د موالات نه دی. د دې یو معنی محبوب او د خوښ کړی شوي ده. مطلب به دا وي چې د الله تعالی ذکر، الله تعالی خوښ او مقبول دی. د الله د یاد نه غیره کوم چې ښه عملونه دي. (مرقات ۸/۳۰)

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَوْ كَانَتِ الدُّنْيَا تَعْدِلُ |
| او حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل: دې دنیا کې د الله په نزد باندې |
| عِنْدَ اللهِ جَنَاحَ بَعُوضَةٍ مَا سَقَى كَافِرًا مِنْهَا شربة» رَوَاهُ أَحْمد وَالتِّرْمِذِيّ وَابْن مَاجَه[2] |
| د ماشي د وزر هومره قدر لرلی نو الله تعالی به د دېنه کافر ته یو ګوټ هم نه وی ځکولی. (احمد، ترمذی، ابن ماجه) |

**توضیح: جناح بعوضة**: یعنې د دنیا وقعت او قدر او قیمت د الله تعالی په نزد باندې د ماشي د وزر په برابر هم ندی. دا یو بې وقعته او بې حقیقته شی دی. نو ځکه که کافر ته هم دنیا ترلاسه شي نو

---

([1]) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۸۵ رقم الحديث ۲۳۲۲ وابن ماجه في السنن ۲/۱۳۷۷ رقم الحديث ۴۱۱۲

([2]) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۵۸ رقم الحديث ۲۳۲۰ وابن ماجه في السنن ۲/۱۳۷۷ رقم الحديث ۴۱۱۰.

هیڅ خبره نده. که د الله تعالی په نزد باندې د دنیا څه لږ قدر او قیمت وی نو په دنیا کې به یې کافر ته یو ګوټ نه وی ورکړی شوی. لهذا د دې بی حقیقته عارضې ځکي نه کافر دې هم فائده واخلي. ددې حدیث د اوریدلو نه وروسته هر مسلمان لپاره دا عقیده ساتل پکار دي چې د دنیا ډیروالی د انسان د مقبولیت نښه نده. بلکې دا ذمه دارې او د مسئولیت نښه ده. الله تعالی دنیا کافر او مسلمان دواړو ته ورکوي. خو دین او علم فقط مسلمان ته ورکوي. (مرقات ۸/۳۲)

## دنیا پسې دومره مه کیږه چې د عبادت نه غافله شي

| |
|---|
| ﴿۲۴﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تَتَّخِذُوا الضَّيْعَةَ |
| او حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: جائیداد (په داسې توګه) مه غوره کوی. |
| فَتَرْغَبُوا فِي الدُّنْيَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي «شعب الْإِيمَان»[1] |
| چې هغه د دنیا اړخ ته د رغبت سبب وګرځي. (ترمذی، بیهقی فی شعب الایمان) |

**توضیح: الضیعة**: جائیداد جوړولو ته وایې. مثلا زمکې اخستل. صنعت او تجارت او کاروبار، جائیداد جوړول، دا ضیعة ده. د حدیث مطلب دا دی چې داسې جائیداد مه جوړوی، په دې سره به د قناعت په ځای باندې حرص او لالچ او د دنیا په مینه کې راګیر شی. بیا به داسې مقام ته ورسیږی چې بیرته به نشی راستنیدلی او دنیا به پاتې شی. آخرت او د آخرت عملونه به پاتې شي. تجربه ګواه ده چې هم داسې کیږي. د دې حدیث مطلب دا نه دی چې د دنیا جائز کاروبار مه کوی. د حلالې ګټې کولو نه اسلام منع کول نه کوي، بلکې د هغه کاروبار نه ویره ورکړی شویده چې په هغې سره سړی د عبادت او طاعت نه غافله شي او بیا د مالي حقوقو ادا کول هم پاتې شي، ظاهره ده دا تباهي ده. حدیث کې دي: کونوا ابناء الآخرة ولا تکونوا من ابناء الدنیا. دا واضح اعلان دی. (مرقات ۸/۳۳)

## دنیا کامیابه، آخرت کامیابه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۵﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ أَحَبَّ دُنْيَاهُ | | | | |
| او حضرت ابوموسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: کوم سړی چې خپله دنیا خوښه | | | | |
| أَضَرَّ | بِآخِرَتِهِ | وَمَنْ | أَحَبَّ | آخِرَتَهُ |
| (داسې خوښه ساتل چې د خدای په مینه باندې غالبه راشي) نو هغه خپل آخرت ته نقصان رسوي. او کوم سړی چې خپل آخرت | | | | |

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۲۸۸ رقم الحدیث ۲۳۲۸ واحمد في المسند ۱/۳۷۷ والبیهقي في شعب الایمان ۷/۳۰۴ رقم: ۱۰۳۹۱.

| أَضَرَّ | بِدُنْيَاهُ | فَآثِرُوا | مَا | يَبْقَى |
|---|---|---|---|---|

خوښوي هغه خپلې دنيا ته نقصان ته رسوي. نو تاسو لپاره پکار دي چې کوم شی فنا کیدونکی دی، یعنې دنیا

عَلَى مَا يَفْنَى » . رَوَاهُ أَحْمد وَالْبَيْهَقِيّ فِي «شعب الْإِيمَان»[1]

دې باندې هغه څه ترجيح ورکړی چې هغه پاتې کیدونکی دی. یعنې آخرت

**توضیح**: احب: د کوم سره چې مینه کیږي. د هغې تذکره په کثرت سره کیږي. او د کوم شي تذکره چې په کثرت سره شروع شي ، انسان په هغې کې کوښښ کونکی او مشغول شي.د دويم اړخ نه غفلت وشي. اوس په زړه باندې که دا کیفیت د دنیا راغلی نو آخرت یې لاړو ، او که د آخرت راغلی نو دنیا لاړه. ځکه چې دنیا او آخرت دواړه بني دي.يوه بنه راضي شي نو بله به ناراضه وي، هو ! ځوک چې الله يې وساتي نو ساتي يې. نبی کریم ﷺ په آخره کې ترغيب ورکړو چې دنيا ناپائیداره ده . د دې مينه بیکاره ده. آخرت باقي دی او پائیداره دی، لهذا دا غوره کړی.

يارناپائيدار دوست مدرا    دوستی رانشايد اين غدار

﴿۲۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسلم: «لُعِنَ عَبْدُ الدِّينَارِ

او حضرت ابو هریره رضي الله عنه نبی کریم ﷺ نه روایت کوي چې نبی ﷺ وفرمایل: کوم سړی چې د دینار

وَلُعِنَ عَبْدُ الدِّرْهَمِ » . رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[2]

او درهم غلام شي نو هغه ملعون دی. یا دا معنی ده چې کوم سړی د دینار او درهم غلام شي نو هغه دې هلاک شي.

## د مال او د عزت مینه دین ته ضرر رسونکې ده

﴿۲۷﴾ وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

او حضرت کعب بن مالک رضي الله عنه خپل پلار نه نقل کوي چې هغه وفرمایل چې رسول الله ﷺ وفرمایل:

« مَا ذِئْبَانِ جَائِعَانِ أُرْسِلَا فِي غَنَمٍ بِأَفْسَدَ لَهَا مِنْ حِرْصِ الْمَرْءِ

دوه وږي شرمخان چې هغه د ګډو په رمه کې پريخودلی شي، دومره نقصان نه رسوي څومره چې د انسان حرص،

---

([1])أخرجه أحمد في المسند۲/۴۱۲ والبيهقي في شعب الايمان ۷/۲۸۸ رقم الحديث ۱۰۳۳۷

([2])أخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۹۷ رقم الحديث ۲۳۷۵.

عَلَى الْمَالِ و الشرف لدِينِهِ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ والدارمي[1]

چې هغه د مال او عزت لپاره وي، د هغه دین ته نقصان رسوي.

**توضیح: عن ابیه:** د دې سند په بیان کې څه سهو او غلطي شوېده. ځکه چې د ذکر شوي سند تقاضا دا ده چې کعب رَضِیَ اللهُ عَنْهُ خپل پلار نه بیان کوي او حال دا دی چې د حضرت کعب رَضِیَ اللهُ عَنْهُ پلار نه ؤ مسلمان شوی. نو په دې سره د حدیث بیانولو مقصد څه شو؟ ځکه علماء وایي چې اصل سند چې هغه په ترمذي کې هم دی، په دې عن ابن کعب بن مالک عن ابیه یعنې د حضرت کعب ځوې د خپل پلار حضرت کعب رَضِیَ اللهُ عَنْهُ نقل کوي، دغه شان علماؤ دا هم لیکلي دي چې په ځینو روایتونو کې د **عن ابیه:** لفظ نشته دی. دا د چا نه سهو شوېده. اصل روایت د حضرت کعب رَضِیَ اللهُ عَنْهُ روایت دی. (مرقات ۸/۳۴)

**جائعان:** شرمخ هسې هم یو جذباتې او سخت برید کونکی بې رحمه درنده دی. خو چې سخت وږی هم وی، نو په برید کولو کې هغه بیخې لیونی شي. د دوه شرمخانو تذکره شاید د دې لپاره وي چې د فساد په جوړولو کې دا کامل او مکمل وي. ځکه چې د دوه جوړا یو ځای کیدلو باندې په کلکې مسابقې سره د بیزو رمه شلوي. په دې حدیث کې یو اړخ ته د دې فساد او نقصان صورت پیش کړی شویدی. او بل اړخ ته د یو مسلمان سړې د مال او عزت سره د مینې د وجې نه د هغه دین او ایمان ته نقصان بیان شوی دی. او ویلی شویدي چې د دوه شرمخانو نقصان د بیزو د دې نقصان نه کم دی. کوم نقصان چې د سړې دین ته مال او د عزت د وجې نه رسیږي. دا دی و هیئت تشبیه د بل هیئت سره ده. چې هغه ته په علم معاني او علم بیان کې د تمثیل نوم ورکولی کیږي.

## بې ضرورته په تعمیراتو کې پیسه خرج کول منع دي

﴿۲۸﴾ وَعَن خباب عَنْ رَسُولِ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَا أَنْفَقَ مُؤْمِنٌ مِنْ نَفَقَةٍ

او حضرت خباب رَضِیَ اللهُ عَنْهُ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي صَلَّى اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: مسلمان چې هر څه خرچ

إِلَّا أُجِرَ فِيهَا إِلَّا نَفَقَتَهُ فِي هَذَا التُّرَابِ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَابْن مَاجه[2]

کوي هغه ته د هغې ثواب ورکولی کیږي، سوا د دینه چې هغه څه په دې خټه کې کوي. (ترمذی، ابن ماجه)

﴿۲۹﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «النَّفَقَةُ كُلُّهَا فِي سَبِيلِ الله

او حضرت انس رَضِیَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: ټول مصرفونه د الله په لاره کې (د خرچ کولو برابر)

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۲/۵۰۸ رقم الحديث ۲۳۷۶ واحمد في المسند ۳/۴۶ .

(۲) اخرجه الترمذي في السنن ۲/۵۸۲ رقم الحديث ۲۴۸۳ وابن ماجه في السنن ۲/۱۳۹۳ واحمد في المسند ۵/۱۱۰.

إِلَّا الْبِنَاءَ فَلَا خَيْرَ فِيهِ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[1]

دي البته په تعمير (آبادی) باندې خرچ کول نیکې او ثواب نلري.

﴿۲۰﴾ وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ يَوْمًا وَنَحْنُ مَعَهُ

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يوه ورځ بيرون راووتلو. مونږ د صحابؤ يو ډله هم ورسره ؤ،

فَرَأَى قُبَّةً مُشْرِفَةً فَقَالَ: «مَا هَذِهِ؟» قَالَ أَصْحَابُهُ: هَذِهِ لِفُلَانٍ

نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په لاره کې يو اوچته قبه وليدله. نو وې فرمايل چې دا قبه د چا ده؟ صحابؤ عرض وکړو چې دا قبه

رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ فَسَكَتَ

فلانکي سړي جوړه کړيده. چې يو انصاري دی. نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (دې اوريدلو سره) چپ شو او (هيڅ يې ونه فرمايل خو) دا

وَحَمَلَهَا فِي نَفْسِهِ حَتَّى إِذَا جَاءَ صَاحِبُهَا

خبره يې (ناخوښې او غصې په توګه باندې) خپل زړه کې وساتله. تردې چې کله چې د دې قبې مالک د نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

فَسَلَّمَ عَلَيْهِ فِي النَّاسِ فَأَعْرَضَ عَنْهُ

خدمت کې حاضر شو او هغه د خلکو په شتون کې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته سلام وکړو نو نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه نه مخ واړولو.

صَنَعَ ذَلِكَ مِرَارًا حَتَّى عرفَ الرجلُ الغضبَ فِيهِ

نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ داسې څو ځل وکړل. آخر د غه سړي د نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مخ باندې د غصې اثرات محسوس کړل

والإعراضَ فَشَكَا ذَلِكَ إِلَى أَصْحَابِهِ

او د نبی عَلَيْهِ السَّلَام مخ اړونه يې معلومه کړه. نو هغه صحابي نورو صحابؤ ته د دې کار شکايت وکړو چې په

وَقَالَ: وَاللهِ . إِنِّي لَأُنْكِرُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

خدا قسم! زه داسې وينم لکه چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما سره ناشنا وي (يعنې د نبی عَلَيْهِ السَّلَام په مخ مبارک باندې چې د

قَالُوا: خَرَجَ فَرَأَى قُبَّتَكَ.

غصې کوم اثرات وينم هغه ما مخکې نۀ کتلي او ما ته يې سبب هم معلوم ندی ولې دومره سخت خفه دی؟) صحابؤ هغه ته وفرمايل

فَرَجَعَ الرَّجُلُ إِلَى قُبَّتِهِ

چې نبی عَلَيْهِ السَّلَام د غلته (ستا اړخ) ته د رغلی ؤ، او ستا قبه يې وکتله (نو خفه شو) هغه سړي (دې اوريدلو سره سمدستي) خپلې قبې

[1] أخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۶۱ رقم الحديث ۲۴۸۲.

فَهَدَمَهَا حَتّٰى سَوَّاهَا بِالْأَرْضِ.

ارخ ته لاړو او هغه يې ورانه کړه. تردې چې د زمکې سره يې برابره کړه. (د دې واقعې نه وروسته) يوه

فَخَرَجَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ فَلَمْ يَرَهَا قَالَ: «مَا فَعَلَتِ الْقُبَّةُ؟»

ورځ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ارخ ته لاړو. او قبه يې هلته ونه ليدله. نو پوښتنه يې وکړه چې هغه قبه باندې څه وشو؟

قَالُوا: شَكَا إِلَيْنَا صَاحِبُهَا إِعْرَاضَكَ

صحابؤ عرض وکړو چې د قبې والا د خپل ځان په اړه باندې ستا د بې التفاتۍ او خفګان مونږ ته شکايت کړې ؤ.

فَأَخْبَرْنَاهُ فَهَدَمَهَا. فَقَالَ:

نو مونږ هغه د صورت حال نه خبر کړې ؤ. نو هغه سړې دا قبه ورانه کړه. نو هله نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل

«أَمَا إِنَّ كُلَّ بِنَاءٍ وَبَالٌ عَلَى صَاحِبِهِ

چې ياد ساتئ: دا عمارت (آبادي) د خپل جوړونکي لپاره په آخرت کې وبال يعنې د عذاب سبب به جوړيږي.

إِلَّا مَا لَا إِلَّا مَا لَا» يَعْنِي مَا لَا بُدَّ مِنْهُ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[1]

الا مالا الا مالا. يعنې د هغه څه نه غيره چې هغې نه خلاصي نوي.

﴿۳۱﴾ وَعَنْ أَبِي هَاشِمِ بْنِ عُتْبَةَ قَالَ: عَهِدَ إِلَيَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت ابو هاشم بن عتبه فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته وصيت کولو کې وفرمايل: د دنيا

«إِنَّمَا يَكْفِيكَ مِنْ جَمْعِ الْمَالِ خَادِمٌ وَمَرْكَبٌ

په ټولو مالونو کې چې څه ستا لپاره کافي دي هغه د دينه غيره هيڅ ندي چې ستا سره يو خادم وي او يو سپرلي وي.

فِي سَبِيلِ اللهِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ. وَفِي بَعْضِ

چې هغه د خداى په لاره کې وي. دا روايت احمد، ترمذې، نسائي او ابن ماجه نقل کړيدى. او د

نسخ «المصابيح» عَنْ أَبِي هَاشِم بن عتبد بِالدَّال

مصابيح ځينو نسخو کې د حديث په سند کې عن ابى هاشم ابن عتبد نقل شويدى. يعنې عتبه کې د تا په ځاى.

---

[1] اخرجه ابوداود في السنن ۵/۴۰۳ رقم الحديث ۵۲۳۷ واحمد في المسند ۳/۲۲۰.

| بدل التَّاء وَهُوَ تَصْحِيفٌ[1] |
|---|
| باندې دال دی. او دا غلط چې دا د کوم راوي د سهو نتیجه ده. |

## دژوند د ضروریاتو د خپلو لو حد

| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " لَيْسَ لِابْنِ |
|---|
| او د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: ابن آدم د دې شیانو نه علاوه |
| آدَمَ حَقٌّ فِي سِوَى هَذِهِ الْخِصَالِ: بَيْتٌ يَسْكُنُهُ وَثَوْبٌ يُوَارِي بِهِ |
| په نورو شیانو باندې خپل حق نلري. یو خو کور چې په هغې کې استوګنه خپله کړي. دویم جامه چې په هغې |
| عَوْرَتَهُ وجلف الْخبز وَالْمَاء ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[2] |
| سره خپل ستر پټ کړي. دریم د ترکارۍ نه بغیر وچه ډوډۍ او څلورم اوبه. |

**توضیح: جلف الخبز**: یعنې د ترکارۍ نه بغیر ډوډۍ، یا هغه ډوډۍ چې مخکښې وي، کلکه او وچه شوي وي. دا دواړه مطلبونه به هغه وخت اخستل کیږي کله چې په جلف کې په جیم باندې کسره وي. خو که جیم باندې زبر وي نو دغه وخت به دا د جلفة جمع وي. چې دا د ډوډۍ وچې ټکړې ته وایې. (مرقات ۸/۳۹)

## د الله او د مخلوق په نزد د محبوب جوړیدو طریقه

| ﴿۲۳﴾ وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ |
|---|
| او حضرت سهل بن سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یو سړی حاضر شو او عرض یې وکړو چې یارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! |
| دُلَّنِي عَلَى عَمَلٍ إِذَا أَنَا عَمِلْتُهُ أَحَبَّنِي اللهُ وَأَحَبَّنِي النَّاسُ. |
| ماته یو داسې عمل وښایه چې زه کله هغه خپل کړم نو الله تعالی هم زما سره مینه وکړي او خلک هم زما سره مینه |
| قَالَ: «ازْهَدْ فِي الدُّنْيَا يُحِبُّكَ اللهُ |
| وکړي؟ نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: د دنیا نه زهد خپل کړه. که ته داسې وکړې نو ګویا ته د هغه څه کرکه کونکی یې |
| وَازْهَدْ فِيمَا عِنْدَ النَّاسِ |
| د کوم نه چې الله کرکه کوي او الله تعالی به ستا سره مینه ولري. او هغه څه ته رغبت مکوه کوم چې د خلکو سره |

(1) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۸۸ رقم الحديث ۲۳۲۷ وابن ماجه في السنن ۲/۱۴۳۲ رقم الحديث ۴۱۰۳.

(2) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۹۲ رقم الحديث ۲۳۴۱. وأحمد في المسند ۶۲ ۱.

يُحِبَّكَ النَّاسُ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه[1]

دی (یعني مال دولت) خلک به ستا سره مینه وکړي.

## په عیش او آرام کې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم مثال

﴿۳۴﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَامَ عَلَى حَصِيرٍ فَقَامَ

او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه روایت دی چې رسول الله بورۍ باندې اوده ؤ او د خوب نه راپاڅیدلو نو

وَقَدْ أَثَّرَ فِي جَسَدِهِ فَقَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ:

د نبی صلی الله علیه وسلم په بدن مبارک باندې د بورۍ نښانونه جوړ ؤ. حضرت ابن مسعود رضي الله عنه عرض وکړو

يَا رَسُولَ اللهِ لَوْ أَمَرْتَنَا أَنْ نَبْسُطَ لَكَ وَنَعْمَلَ.

چې یارسول الله صلی الله علیه وسلم! که مونږ ته اجازت وکړې نو مونږ به ستا لپاره نرمه بستره خپره او د ښه جامو انتظام به وکړو.

فَقَالَ: «مَا لِي وَلِلدُّنْيَا؟ وَمَا أَنَا وَالدُّنْيَا

نبی صلی الله علیه وسلم و فرمایل: زما د دې دنیا سره او د دې دنیا زما سره څه کار؟ زما او د دنیا مثال خو داسې دی

إِلَّا كَرَاكِبٍ اسْتَظَلَّ تَحْتَ شَجَرَةٍ ثُمَّ

لکه یو سپور سړی دیو بوټي د سیورې په لټون کې راشي او هلته پخپله سپرلۍ باندې ولاړ وي. او بیا هغه

رَاحَ وَتَرَكَهَا». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه[2]

بوټی هلته پرېږدي او خپل منزل ارخ ته روان شي.

## ارزښتناک انسان

﴿۳۵﴾ وَ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ: «أَغْبَطُ

او حضرت ابو امامه رضي الله عنه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوي چې نبی صلی الله علیه وسلم و فرمایل: زما په نزد

أَوْلِيَائِي عِنْدِي لَمُؤْمِنٌ خَفِيفُ الْحَاذِ ذُو حَظٍّ مِنَ الصَّلَاةِ

زما په ملګرو کې د ټولو نه ارزښتناک مؤمن هغه دی لږې مشغولا والا دی، د لمونځ سره ډېر تړاؤ لري. او

---

(1) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۷۷۳ رقم الحديث ۴۱۰۲.

(2) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۰۸ رقم الحديث ۲۳۷۷ وابن ماجه في ۲/۱۳۷۶ رقم الحديث ۴۱۰۹.

| |
|---|
| أَحْسَنَ عِبَادَةَ رَبِّهِ وَأَطَاعَهُ فِي السِّرِّ وَكَانَ غَامِضًا فِي النَّاسِ |
| د خپل رب تول عبادتونه په ښه طريقه سره کوي. په پټه توګه باندې په عبادت الهی کې مشغول وي. په خلکو کې ګمنام دی |
| لَا يُشَارُ إِلَيْهِ بِالْأَصَابِعِ وَكَانَ رِزْقُهُ كَفَافًا |
| چې د هغه اړخ ته په ګوتو سره اشاره نشي کيدلی. د غه شان د هغه رزق د کافي کيدلو په اندازه دی. او په هم دې |
| فَصَبَرَ عَلَى ذَلِكَ » ثُمَّ نَقَدَ بِيَدِهِ |
| باندې صبر کونکی او قناعت کونکی دی. دې ويلو سره نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپل لاس د ګوتو نه ټق ووېستلو |
| فَقَالَ: «عُجِّلَتْ مَنِيَّتُهُ قَلَّتْ بَوَاكِيهِ |
| او وې فرمايل چې مرګ بس (ټق وېستلو سره) خپل کار ژر پورا کوي. او د ده په مرګ باندې ژړيدونکې ښځې هم لږې وي. |
| قَلَّ تُرَاثُهُ» . رَوَاهُ أَحْمَد وَالتِّرْمِذِيّ وَابْنُ مَاجَه[1] |
| او د ده ميراث هم ډير لږ (يعنې د نشتوالې برابر) وي. |

**توضيح:** **اغبط:** دا د غبطې نه دی چې د ارزښت ورکولو په معنې دی. يعنې زما مسلمان دوستان او محبوبينو کې د ټولو نه ډير د ارزښت وړ سړی هغه مسلمان دی. **ای احق احباء وانصاری بان يغبط به.** (طيبی)

**خفيف الحاذ:** حاذ شاه (ملا) ته وايي. يعنې قليل المال لږ بوج والا وي. نه ډير مال وي نه ډير عيال وي نه غټ جنجال وي. **ذو حظ:** يعنې په لمونځونو کې د هغه ښه پورا برخه وي.

**غامضًا:** يعنې ګمنام (ورک نومی) وي. په خلکو کې غير مشهور وي.

**لايشار اليه:** يعنې په ګوتو او لاسونو سره هغه اړخ ته اشاره نشې کيدی يعنې مشار اليه بالبنان نه وي دا د غامضًا تفصيل او تفسير دی.

**كفافا:** يعنې د خوراک څکاک سامان دومره وي چې په هغې سره ځان وساتل شي. د کافي کيدلو په اندازه وي.

**نقد بيده:** عام رواج دی چې د يو کار په تندۍ کيدلو اړخ ته خلک اشاره کوي نو دوه ګوتې د يو بل سره يو ځای کولو باندې ټق وباسي ، چې د هغې نه آواز پيدا کيږي، د ښي لاس موټه ګوته او مينځنۍ (وسطی) ګوتې بندونه د يو بل سره جوختولو باندې چې کله جدا کړي نو د هغې نه يو آواز پيدا کيږي .

---

[1] أخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۹۶ وابن ماجه ۲/۱۳۷۸ رقم الحديث ۲۳۴۷ واحمدفي المسند ۵/۲۵۲.

د ډېنه په نقد بیده سره تعبیر کړی شویدی. چې د هغې نه مراد په تُندی سره پاڅیدل مراد دي. ګویا دا سړی په دنیا کې بې تعلق پاتې کیدلو باندې د الله تعالی په عبادت کې مشغول ؤ. دنیا د کارونو نه پاک صفا راوتلو باندې د ګمنامې په حالت کې ډیر ژر د خپل رب سره یو ځاې شو. دنیا د کارونو نه آزاد ؤ، نو ځکه یې نه ورباندې څوک ژړیدونکی ؤ، نه مال ؤ، نه د میراث جګړې وي، نه تقسیم ؤ، نه حساب کتاب ؤ. (مرقات ۸/۴۴)

## د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دنیا نه بې رغبتي

﴿۲۶﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " عَرَضَ عَلَيَّ رَبِّي

او حضرت ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: زما رب زما مخې ته دا امر ښکاره کړو

لِيَجْعَلَ لِي بَطْحَاءَ مَكَّةَ ذَهَبًا فَقُلْتُ: لَا يَارَبِّ

چې هغه زما لپاره د مکې د ګیټکو نه سره زر جوړ کړي. لیکن ما عرض وکړو چې زما ربه زما دغه څیز ته یېڅې څه

وَلَكِنْ أَشْبَعُ يَوْمًا وَأَجُوعُ يَوْمًا فَإِذَا جُعْتُ

خواهش نشته دی. زه خو بس دا غواړم چې یوه ورځ په مړه خیټه وخورم او یوه ورځ وږی یم چې زه کله وږی یم

تَضَرَّعْتُ إِلَيْكَ وَذَكَرْتُكَ وَإِذَا شَبِعْتُ حَمِدْتُكَ

نو ستا په دربار کې فریاد وکړم. خپله عاجزي بیان کړم. او تا یاد کړم. او کله چې زه موړ شم نو ستا حمد او

وَشَكَرْتُكَ ". رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ[1]

ستاینه وکړم او ستا شکر ادا کړم. (احمد، ترمذی)

## د دنیا اصل دولت

﴿۲۷﴾وَعَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ مِحْصَنٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ: «مَنْ

او حضرت عبید الله بن محصن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: په تاسو کې چې کوم

أَصْبَحَ مِنْكُمْ آمِنًا فِي سِرْبِهِ مُعَافًى فِي جَسَدِهِ

سړی په داسې حال کې صبا کړي چې هغه د خپل ځان د اړخ نه بې خوفه وي. د هغه بدن روغ رمت وي او د

عِنْدَهُ قُوتُ يَوْمِهِ فَكَأَنَّمَا

هغه سره د یوې ورځې په اندازه باندې د کافي کیدلو په اندازه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خوراک سامان وي. نو ګویا د هغه لپاره

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن [illegible]

| حِيزَتْ لَهُ الدُّنْيَا ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ قَالَ : هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[1] |
|---|
| خو د دنيا (نعمتونه) جمع كړى شوېدي. (روايت كړې دې ترمذى، او هغه وائى دا حديث غريب دې) |

**توضيح**: في سربه: كې په سين باندې كسره ده. د دينه مراد د هغه سړې ذات او ځان دى يعنې د خپل ځان په اړه باندې بې ويري وي. نه د دښمن ويره وي. نه څه بدنې ويره وي. بلكې فارغ البال وي. د كسرې په صورت كې د دې لفظ اطلاق په جماعت باندې هم كيدلى شي. مطلب به داوي چې د سړى د خپل بال بچ سره په امن سره وسيږي. ځينو شارحينو په سين باندې د زبر قول كړيدى. چې هغه د كور په معنې دى. په خاصه توګه هغه كور كې هغه په زمكه كې دننه په سرنګ كې وي. لكه د لومبړي و منګك كور زمكه كې دننه وي. حيزت: دا د حاز يحوز نه د مجهول صيغه ده. جمع كيدلو او جمع كولو په معنى دى. ګويا ټوله دنيا د ده نه ګير چاپيره راغونډه كړى شويده.

حذافير: دا د حذفور جمع ده. لكه عصافير د عصفور جمع ده. او جماهير د جمهور جمع ده. اطراف او اړخونه مراد دي. اى بتمامها وبجميع اطرافها. (مرقات ۸/۴۷)

## د لږ نه لږ خوراک کولو فائدي

| ﴿۲۸﴾ وَعَن مقدامِ بْنِ مَعْدِي كَرِبَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
|---|
| او حضرت مقدام بن معديكرب رضي الله عنه روايت دى چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دا اوريدلي دي چې |
| «مَا مَلَأَ آدَمِيٌّ وِعَاءً شَرًّا مِنْ بَطْنٍ بِحَسْبِ ابْنِ آدَمَ |
| چې انسان (كه خپله خيټه د حد نه ډيره ډكه كړي نو هغه) د خيټې نه بدترين هيڅ لوخى ډک نكړو، ابن آدم لپاره |
| أُكُلَاتٌ يُقِمْنَ صُلْبَهُ فَإِنْ كَانَ لَا مَحَالَةَ فَثُلُثٌ |
| پس يو څو نوړى كافې دي. چې هغه د ده د ملا ملاهو كړي نيغ او ولاړ وساتي. نو ده لپاره پكار دي چې خيټه |
| لِطَعَامٍ وَثُلُثٌ لِشَرَابٍ وَثُلُثٌ لِنَفَسِهِ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه[2] |
| درې برخې كړي، يوه برخه د خوراک لپاره وي او يوه برخه د اوبو لپاره وي او يوه برخه د ساه اخستلو لپاره وي |

**توضيح**: اكلات: يعنې د انسان لپاره په خوراک كې يو څو نوړى كافې كړي. چې په هغې سره د ده ملا نيغه وي. امام غزالى رحمه الله د لږ خوراک او د ولږې لس فائدې ليكلي دي. مختصرًا يې وګورئ
۱: زړه پاک او طبيعت بيداره وي. ۲: زړه نرم وي. ۳: په انسان كې عاجزې راځى تكبر ختميږي.

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۹۶ رقم الحديث ۲۳۴۶ وابن ماجه في السنن ۲/۱۳۷۸ رقم الحديث: ۴۱۴۱

(۲) اخرجه الترمذي في السنن ۲/۵۰۹ رقم الحديث ۲۳۸۰ وابن ماجه في السنن ۲/۱۱۱۱ رقم الحديث ۳۳۴۹.

۴:خدای دويري او عذاب توجه يې وي.۵: دتېرلوګناهونوخواهشات مړه شي.۶:دډيرخوب نه ځان خلاص شي.۷:عبادت باندې هميشوالی ترلاسه کيږي.۸:دمرضونونه نجات اوبدني روغتيا ترلاسه کيږي ۹:دډيروجمع کولود مشقتونونه انسان محفوظ وي.۱۰:خدای دمخلوق لپاره قرباني اودخواخوږی جذبه پيدا کيږي.

## دډير خوراک کولو نقصان

﴿۳۹﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمِعَ رَجُلًا يَتَجَشَّأُ فَقَالَ:

او د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو کس نه ډرقی کول واوريدل نو وې فرمايل

«أَقْصِرْ مِنْ جُشَائِكَ فَإِنَّ أَطْوَلَ النَّاسِ جُوعًا

چې خپل ډرقی ايسا کړه ځکه چې د قيامت په ورځ باندې به د ټولو نه ډير وږی هغه سړی وي چې هغه په دنيا

يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَطْوَلُهُمْ

په دوې کې د ټولو نه د ډکي خيټې والا وي. يعنې کوم سړی چې په دې دنيا کې د ټولو نه ډير خوراک کوي

شِبَعًا فِي الدُّنْيَا». رَوَاهُ فِي «شرح السّنة» . وروى التِّرْمِذِيّ نحوه [1]

هغه به د قيامت په ورځ باندې د ټولو نه ډير وږی وي. چې د هغې د وجې نه به هغه په ډيره پريشانی کې وي

﴿۴۰﴾وَعَن كَعْب بن عِيَاضٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «إِنَّ لِكُلِّ

او حضرت کعب بن عياض رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوريدلي دي چې د هر

أُمَّةٍ فِتْنَةً وَ فِتْنَةُ

امت لپاره ديو نا يو ازميښت ؤ ،نو زما د امت لپاره فتنه او ازميښت چې دی نو هغه مال دولت دی. يعنې الله تعالی زما د امت خلکو

أُمَّتِي الْمَالُ » . رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ . [2]

ته مال دولت ورکولو باندې ازمايي [اې هغوي په نيغه لاره او د اعتدال په حد باندې قائم وسيږي او که نه

## دمال ډيروالی د دې امت فتنه ده

﴿۴۱﴾وَعَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " يُجَاءُ

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د قيامت په ورځ باندې به

---

([1])اخرجه البغوي في شرح السنة ۱۲/۲۵۰ رقم الحديث ۴۰۴۹ والترمذي في ۴/۵۶۰ رقم الحديث ۲۴۷۸.

([2])اخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۹۲ رقم الحديث ۲۳۳۶،واحمد في المسند ۴/۱۶۰ .

بِابْنِ آدَمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ كَأَنَّهُ بَذَجٌ فَيُوقَفُ بَيْنَ يَدَيِ اللهِ

ابن آدم داسې پېش کړی شي ګویا هغه د بېزې بچی دی. بیا به هغه الله تعالی ته مخامخ ودرولی شي. او الله تعالی به هغه ته

فَيَقُولُ لَهُ: أَعْطَيْتُكَ وَخَوَّلْتُكَ وَأَنْعَمْتُ عَلَيْكَ

وفرمایي چې ما تاته (ژوندون، علم، پوهه، روغتیا، او امن او عافیت په شان نعمت) درکړي ؤ (مال او دولت، خادمان

فَمَا صَنَعْتَ؟ فَيَقُولُ: يَا رَبِّ

او جاه او عزت په شان شیانو مالک مې) جوړی کړی وي او نو تا څه کار وکړو؟ ابن آدم به ووایي زما پروردګار!

جَمَعْتُهُ وَثَمَّرْتُهُ وَتَرَكْتُهُ أَكْثَرَ

زه د مال دولت په جمع کولو او دهغې په ډېرولو کې اخته وم. او هغه مې په دنیا کې دهغې نه ډېر پرېخودلو څومره چې هغه ؤ.

مَا كَانَ فَارْجِعْنِي آتِكَ بِهِ كُلِّهِ.

او وس ته ما دنیا ته بیا ولېږه دې لپاره چې زه هغه ټول مال دولت سره ستا په دربار کې حاضر شم. الله تعالی

فَيَقُولُ لَهُ: أَرِنِي مَا قَدَّمْتَ.

به هغه ته وفرمايي که ته هغه مخکې رالېږلی وي نو ماته وښایه (هغه به د الله تعالی په دې ارشاد ډېر شرمنده او خجالت شي څنګه چه

فَيَقُولُ: رَبِّ جَمَعْتُهُ

د مجرمانو عادت دی چې کله هغوی په خپل جرم کې ونیولی شي) هغه به ووائي چې زه خو بس د مال دولت په جمع کولو او ډېرولو کې

وَثَمَّرْتُهُ وَتَرَكْتُهُ أَكْثَر

هغه به ووايي چې زه خو بس د مال دولت په جمع کولو او ډېرولو کې اخته وُم. او هغه مې په دنیا کې دهغې نه ډېر

ماکان فَارْجِعْنِي آتِكَ بِهِ

پرېښی دی څومره چې مخکې ؤ. او وس ته ما دنیا ته بیا ولېږه، دې لپاره چې زه هغه ټول مال دولت سره ستا

كُلِّهِ. فَإِذَا عَبْدٌ لَمْ يُقَدِّمْ خَيْرًا فَيُمْضَى بِهِ

په دربار کې حاضر شم. په دې توګه به دا ښکاره شي چې هغه هیڅ ښېګړه هم مخکې نده لېږلې. نو د هغه به

إِلَى النَّارِ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَضَعفه[1]

دوزخ ته د لېږلو حکم ورکړی شي.

---

(1) أخرجه الترمذي في السنن ٤/٥٣٤ رقم الحديث ٢٤٢٧ والدارقطني ١/٥١ رقم الحديث ٢ من باب النية

**توضيح:** بذج: د ګډې ورکوټي بچي ته بذج وايي. دلته په ذلت او سپکوالي کې تشبيه ده. اعطيتک: يعني تا ته مې ژوند درکړو. بدني نعمتونه مې درکړل. وخولتک: اى جعلتک ذا خول: يعني تا ته مې جاه و جلال او مال او خادمان درکړي ؤ تردې چې د ځينو انسانانو مې ته مالک جوړ کړې. انعمت: يعني د دينه ډير دا چې د آسمان نه مې ستا د هدايت لپاره کتاب راولیږلو او د شان والا رسول باندې مې تا ته عزت درکړو. نو تا دهغې څه حق ادا کړو؟ دا ناشکره انسان جواب ورکوي چې ما مال جمع کړو او هغه مې بنه ډير کړو. او وروسته مې پريخودلو. ته ما ته اجازت راکړه چې زه دنيا ته لاړ شم او ټول تا ته حاضر کړم. کله چې فرښتې ووينې چې هغه مالي حقونه ندي ادا کړي. نو هغوې به دا دوزخ ته ګوزار کړي. (مرقات ۹/۵۱)

## د قيامت په ورځ باندې چې د کوم نعمت د ټولو نه مخکې پوښتنه کيږي

| |
|---|
| ﴿۴۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ أَوَّلَ مَا يُسْأَلُ الْعَبْدُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د قيامت په ورځ باندې د بنده چې |
| مِنَ النَّعِيمِ أَنْ يُقَالَ لَهُ: أَلَمْ نُصِحَّ جِسْمَكَ؟ وَنُرْوِكَ من الْمَاءِ |
| د نعمتونو په اړه باندې پوښتنه کيږي هغه به دا وي چې آيا مونږ ستا بدن ته روغتيا نه وه ورکړې؟ او ته مونږ به |
| الْبَارِدِ؟". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1] |
| يخو اوبو باندې نه وې موړ کړى؟ |

## د قيامت په ورځ باندې به د پنځه شيانو پوښتنه خامخا کيږي

| |
|---|
| ﴿۴۳﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " لَا تَزُولُ قَدَمَا ابْنِ آدَمَ |
| او حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت کوي چې نبى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د |
| يَوْمَ الْقِيَامَةِ حَتَّى يُسْأَلَ عَنْ خَمْسٍ: |
| قيامت په ورځ باندې به د انسان خپې نه خوزيږي ترڅو پورې چې د هغه نه د پنځه خبرو پوښتنه ونکړى شي. نو |
| عَنْ عُمُرِهِ فِيمَا أَفْنَاهُ وَعَنْ شَبَابِهِ فِيمَا أَبْلَاهُ |
| د هغه نه به پوښتنه وکړى شي چې هغه خپل عمر په کوم کار کې تير کړو؟ هغه خپله ځوانى په څه کې زړه کړه؟ |
| وَعَنْ مَالِهِ مِنْ أَيْنَ اكْتَسَبَهُ وَفِيمَا أَنْفَقَهُ وَمَاذَا عَمِلَ |
| هغه مال مال څنګه ګټلى ؤ؟ هغه مال چيرته مصرف کړو؟ او دا چې هغه کوم علم ترلاسه کړى ؤ، د هغې |

---

[1] أخرجه الترمذي في السنن ۵/۲۱۸ رقم الحديث ۳۳۵۸.

| فِيمَا عَلِمَ؟". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[1] |
|---|
| په مطابق يې عمل کړی ؤ او که نه (ترمذی روايت کړې دې) |

# الْفَصْلُ الثَّالِثُ

## دانسان غوره والی فقط په تقوی دی

| ﴿۴۴﴾ عَنْ أَبِي ذَرٍّ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ: «إِنَّكَ لَسْتَ بِخَيْرٍ مِنْ أَحْمَرَ وَلَا |
|---|
| حضرت ابوذر رضي الله عنه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل: نه خو ته د سور رنګ والا نه |
| أَسْوَدَ إِلَّا أَنْ تفضله بتقوى». رَوَاهُ أَحْمد[2] |
| غوره يې او نه ته د تور رنګ والا نه غوره يې مګر دا چې ته د هغوې نه د تقوی په اعتبار سره افضل يې. |

## دنيا په بې رغبتۍ سره په زړه کې معرفت او حکمت پيدا کيږي

| ﴿۴۵﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا زَهِدَ عَبْدٌ |
|---|
| او حضرت ابوذر رضی الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل: کوم بنده چې په دنيا کې زهد |
| فِي الدُّنْيَا إِلَّا أَنْبَتَ اللهُ الْحِكْمَةَ فِي قَلْبِهِ |
| يعنې بې رغبتي خپله کړه الله تعالی د هغه په زړه کې د حکمت يعنې معرفت او يقين دولت پيدا کړو. د هغه |
| وَأَنْطَقَ لِسَانَهُ وَبَصَّرَهُ عَيْبَ الدُّنْيَا وَدَاءَهَا وَدَوَاءَهَا |
| ژبه يې د دې (حکمت) سره ګويا کړه او هغه ته يې د دنيا عيبونه، د هغې ناروغې او د دې ناروغۍ علاج هم و ښودلو. |
| وَأَخْرَجَهُ مِنْهَا سَالِمًا إِلَى دَارِ السَّلَامِ» رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي «شعب الْإِيمَان»[3] |
| او الله تعالی هغه د دې دنيا نه په سلامتۍ سره دار السلام ته ورسولو. |

## د کاميابۍ راز

| ﴿۴۶﴾ وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «قَدْ أَفْلَحَ مَنْ |
|---|
| او د حضرت ابوذر رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل: هغه سړی کامياب شو چا |

---

(1) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۲۹ رقم الحديث ۲۴۱۶.

(2) اخرجه احمد في المسند ۵/۱۵۸

(3) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۷/۳۴۶ رقم الحديث ۱۰۳۲.

| أَخْلَصَ | الله | قلبَه | للإيمان | وجعلَ | قلبَه | سليماً | ولسانَه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| زړه چې الله تعالي د ايمان لپاره خالص او مخلص کړو. د هغه زړه يې روغ او سالم وساتلو. د هغه ژبه يې | | | | | | | |
| صَادِقًا | وَنَفْسَهُ | مُطْمَئِنَّةً | وَخَلِيقَتَهُ | مُسْتَقِيمَةً | | | |
| رښتيا ويونکې جوړه کړه. د هغه نفس يې مطمئن کړو. د هغه خلقت او طبيعت يې مستقيم او نيغ وساتلو. | | | | | | | |
| وَجَعَلَ | أُذُنَهُ | مُسْتَمِعَةً | وَعَيْنَهُ | نَاظِرَةً | فَأَمَّا | الْأُذُنُ | فَقَمِعٌ | وَأَمَّا | الْعَيْنُ | فَمُقِرَّةٌ |
| د هغه غوږونه يې اوريدونکې جوړ کړل. نو غوږونه خو پيپه ده، او سترګه هغه شي لره ساتونکې او ثابت لرونکې ده. | | | | | | | |
| لِمَا | يُوعَى | الْقَلْبُ | وَقَدْ | أَفْلَحَ | مَنْ | | |
| کوم چې زړه محفوظ کوي. او په دې کې هيڅ شک نشته چې هغه سړی کامياب شو، د چا زړه چې خدای يا | | | | | | | |
| جَعَلَ قَلْبَهُ وَاعِيًا» رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي «شعب الْإِيمَان»[1] | | | | | | | |
| هغه سړې خپل زړه (د حق خبرې او برحق شيانو) ساتونکی جوړ کړو. | | | | | | | |

**توضيح**: **قد افلح**: يعنې د کوم سړې په زړه او مازغو کې چې الله تعالى خالص ايمان کينولو او د هغه زړه يې د بغض او حسد، دنيا د مينې، رذيلو اخلاقو او شيطانې وسوسو نه پاک کړو. او په قول او اقرار کې هغه ته رېښتونې ژبه ورکړه او د خدای تابعدارې او ذکر الٰهی کې يې هغه مطمئن کړو او د هغه طبيعت او مزاج يې د افراط او تفريط نه پاک او حق باندې وسيدونکی جوړ کړو. د هغه غوږونه يې د حق اوريدلو او سترګې يې د حق ليدلو والا جوړې کړې.

**فقمع**: قاف باندې زبر او زير دواړه لوستلی شي. او ميم ساکن دی. که قاف باندې زبر وويلی شي او ميم باندې زير وويلی شي نو بيا هم صحيح ده. قمع د پيپ (قيف) په معنی دی. او قيف هغه آلې ته وايي چې د هغې په ذريعه سره تنګ لوخې مثلا بوتل وغيره کې تيل او داسې نور څه اچولی کيږي. د دې آلې سره پائپ وي. پاس خله يې برسيرته وي. دا پائپ د تنګ خلې په لوخې کې کيخودل شي او بيا په هغې کې تيل او داسې نور څه وراړوي. مطلب دا چې غوږونه يې د حق قبلولو لپاره پيپه جوړه کړيده. د دې په ذريعه سره غوږونو ته حق رسيدلو باندې په هغې کې پيوسته شي. او زړه او مازغه هغه قبلوي. (مرقات ۸/۵۵)

**فمقرة**: يعنې سترګې هغه شی هم هغه شان او ثابت او قائم ساتي. مطلب دا چې سترګو يو شی وليدلو او د هغې نقش او صورت يې زړه ته ورسولو. او زړه هغه صورت محفوظ کړو. ګويا اوريدلي حقيقتونه

---

[1] أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۱/۱۳۲ رقم الحديث ۱۰۸ واحمد في المسند ۵/۱۴۷ .

غوږونو زړه ته ورسول. او په نظر راتلونکې شیان سترګو زړه ته ورسول. زړه باچا دی. او حواس ظاهره د دې لپاره جاسوسان او خادمان دي.هر خادم چې په کوم کار باندې ټاکل شویدی، هغه هم هغه پورا کوي.

**والقلب واعيًا:** دا جمله د هغه مخکنو جملو لپاره د نتیجې په توګه ده. کوم چې د زړه جاسوسانو کوم خبرونه ورکړي دي، زړه هغه برقرار وساتل. خلاصه دا ده چې هغه سړی کامیاب دی د چا زړه چې الله تعالی دحق او صداقت ساتونکی جوړ کړو. (مرقات ۸/۵۵،۵۶)

## د دنیا ډیروالی د قبولیت نښه نده

| |
|---|
| ﴿۴۷﴾ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِذَا رَأَيْتَ |
| او حضرت عقبه بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: کله چې ته ووینې |
| اللهَ عَزَّ وَجَلَّ يُعْطِي الْعَبْدَ مِنَ الدُّنْيَا عَلَى مَعَاصِيهِ مَا يُحِبُّ |
| چې الله تعالی یو بنده د هغه په ګناهونو او معصیتونو کې اخته کولو سره هم هغه خوښ شیان ورته ورکوي نو |
| فَإِنَّمَا هُوَ اسْتِدْرَاجٌ» ثُمَّ تَلَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| پوهه شه چې دا استدراج دی. د دینه وروسته نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (د استشهاد په توګه باندې) دا آیت تلاوت کړو (ترجمه |
| (فَلَمَّا نسوا ماذكروا بِهِ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ أَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ |
| یې دا ده) کله چې کافرو دا نصیحت هیر کړو کوم چې هغوې ته شوې ؤ نو مونږ په هغوې باندې د هر څه دروزاې |
| حَتَّى إِذَا فَرِحُوا بِمَا أُوتُوا أَخَذْنَاهُمْ |
| رابرسیرته کړي تردې چې کله هغوې په دې شیانو باندې خوشحاله شو کوم چې هغوې ته ورکړی شوي ؤ |
| بَغْتَةً فَإِذَا هم مبلسون) رَوَاهُ أَحْمد[۱] |
| نو مونږ هغوې (په خپل عذاب کې) ونیول او هغوې ډیر حیران او پریشان پاتې شول. |

**توضیح: استدراج:** په لغت کې استدراج درجه په درجه او مرحله وار د چا وړل او رسولو ته وایي. لکه یو چا لره د زینې د یوې پوړۍ نه بلې پوړۍ ته وخیژولی شي. په نورو الفاظو کې هغې ته مهلت ورکولو سره تعبیر کیږي.

د دې حدیث مطلب دا دی چې په دې دنیا کې الله تعالی کله یو کافر یا فاسق فاجر ته د هغه د مقصود مطابق د دنیا جاه او جلال ورکړي، دا د دې سړي د مقبولیت عند الله نښه نده بلکې دا استدراج او مهلت دی. کله چې د هغه د ګناهونو پیمانه ډکه شي او هغه په پورا سرکشۍ راتګ وکړي نو کله الله تعالی په دنیا

---

(۱) أخرجه أحمد في المسند ۵/۱۴۵ .

کې په هغه باندې ناڅاپه لاس کیږدي. او کله په آخرت کې د هغه سخته نیوکه کیږي. لهذا په ګناهونو کې ککړ سړي لره خیال کول پکار دي چې آیا هغه په راحت کې دی او که په مصیبت کې دی.

## دز اهدانو شان څه بل شان وي

| |
|---|
| ﴿۲۸﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ الصُّفَّةِ تُوُفِّيَ وَتَرَكَ |
| او حضرت ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې په اصحاب صفه کې یو ګس وفات شو، او د یو دینار په |
| دِينَارًا فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «كَيَّةٌ» |
| صورت کې یې خپل میراث پریخودلو. رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: چې دا یو دینار یو داغ دی. |
| قَالَ: ثُمَّ تُوُفِّيَ آخَرُ فَتَرَكَ |
| حضرت ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې بیا (څه ورځې وروسته) په صفه والاؤ کې یو بل ګس وفات شو او هغه |
| دِينَارَيْنِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «كَيَّتَانِ» رَوَاهُ أَحْمَدُ والبيهقيُّ فِي «شعب الإيمان»[1] |
| په خپل میراث کې دوه دیناره پریخودل. رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: دا دوه دینار دوه داغه دي. |

**توضیح**: کیة: اور کې وسپنه تو دولو باندې بدن ته داغ ورکولو ته کیة وایي. دلته یو دینار یو داغ او دوه دیناره دوه دغه ګرځولی شویدي. اوس سوال دا دی چې کله یو سړی د مال حق ادا کولو نه وروسته مري او یو یا دوه یا ډیر دیناره په کور کې پریږدي. نو دا عمل خو شرعًا جائز دی. بیا دلته د دې اصحاب صفه په اړه باندې د دومره سخت وعید څه مطلب دی؟ د دې جواب دا دی چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د عام امت لپاره او د خپلو صحابؤ لپاره د دنیا راغونډولو او د عبادت کولو بیل بیل معیار ساتلی ؤ. دغه شان نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپل اهل بیت لپاره هم بیل معیار ساتلی ؤ. او د خپل ځان لپاره یې هم په عملي میدان کې بیل معیار ساتلی ؤ. لهذا یو عمل داسې وي چې هغه د عام امت لپاره جائز وي. خو د صحابؤ شان وچت وي. هغه عمل د هغوی د شان سره نه ښایي. دلته د اصحاب صفه دې دوه کسانو ته په دې تناظر سره وعید وا ورولی شو چې دا د دنیا پریخودنکي، او زاهدان، درویش دې خپل ځان نه وروسته مال پرېږدي، دا ښه ندي. خلک هغوی زاهدان ګڼي، په هغوی باندې خرچه کوي، او دوی خپل ځان پسې وروسته دینار پرېږدي. دا د هغوی د اوچت شان سره منافي ده. ملاعلی قاری رحمه الله د دې حدیث مطلب داسې بیان کړیدی چې کله دا دواړه اصحاب صفه فقیران او مسکینان ؤ نو خلکو به زکوة او صدقاتو په مالونو سره د هغوی مرسته کوله. نو د هغوی سره خو دوه دیناره ؤ. نو په هغوی باندې زکوة نه کیدلو، کله چې دوی د زکوة مستحق نه ؤ او بیا هم زکوة او صدقاتو ته د سوال لاس نه

---

[1] اخرجه احمد في المسند ۵/۲۵۸ والبیهقي في شعب الایمان ۵/۳۶۴ رقم الحدیث ۶۹۶۴.

اوېدول نو دا ناجائز ؤ.نو ځکه سخت وعید واوروله شو.په دې حدیث سره عامو مسلمانانو ته دا تعلیم ورکول کیږي چې کوم سړی د زکوة مستحق نه وي نو هغه دې د صدقاتو او زکوة نه ځان وساتي.یا دا چې کوم سړی په ظاهر توګه باندې زهد او تقوی خپلوي او په پټه توګه باندې مال راغونډوي، دا ډیر بد دی. (مرقات ۸/۵۹)

| |
|---|
| ﴿۴۹﴾ وَعَن مُعَاوِيَة أَنَّهُ دَخَلَ عَلَى خَالِهِ أَبِي هَاشِمِ بْنِ عتبَة |
| او حضرت معاویه بن ابی سفیان رضی الله عنه نه روایت دی چې هغه د خپل مام هاشم بن عتبه ته د هغه د ناروغۍ |
| يعودهُ فَبَكَى أَبُو هَاشِمٍ فَقَالَ: |
| پوښتنې ته لاړو. نو حضرت ابو هاشم (هغه ته په کتلو سره) په ژړا شو. حضرت معاویه رضی الله عنه پوښتنه وکړه چې |
| مَا يُبْكِيكَ يَا خَالِ؟ أَوَجَعٌ يُشْئِزُكَ أَمْ حِرْصٌ عَلَى الدُّنْيَا؟ قَالَ: |
| ماما جانه ولې ژاړې؟ آیا ناروغې ته په تکلیف کې اخته کړی یې یا د دنیا حرص او ارزو؟ هغه وفرمایل: |
| كلا ولكنّ رَسُول الله عهد إلينا عَهْدًا لَمْ آخُذْ بِهِ. |
| داسې هیڅکله هم نده بلکې رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ ته یو وصیت کړی ؤ او زه په هغې باندې د عمل کولو |
| قَالَ: وَمَا ذَلِكَ؟ قَالَ: سَمِعْتُهُ يَقُولُ |
| نه قاصر پاتې یم معاویه رضی الله عنه پوښتنه وکړه هغه وصیت څه ؤ؟ هغه وفرمایل: ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا اوریدلي ؤ |
| «إِنَّمَا يَكْفِيكَ مِنْ جَمْعِ الْمَالِ خَادِمٌ وَمَرْكَبٌ |
| چې تاسو لپاره د دنیا د مال بس په دومره اندازه باندې جمع کول کافي دي چې ستا سره یو خادم وي او د |
| فِي سَبِيلِ الله» . وَإِنِّي أَرَانِي |
| خدای په لاره کې د جنګیدلو لپاره یوه سپرلي وي. او زما خیال دی چې ما (د دې دواړو شیانو نه څه ډیر) |
| قَدْ جَمَعْتُ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَه[1] |
| مال او اسباب د خپل ځان سره ساتلي دي. (احمد، ترمذی، نسائی، ابن ماجه) |

**توضیح:يشئزك:ای يقلقك:** یعنې آیا تا بدنې دردپریشانه کوي یا د دنیا پریخودو په وجه ژاړې اشئاز د باب افعال نه دی قلق او اضطراب په معنې دی.په اصل کې د کاڼو تنګې دره باندې د تیریدلو تکلیف ته وایي.

---

[1] اخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۸۸ رقم الحديث ۲۳۲۷ والنسائي في السنن ۸/۲۱۸ رقم الحديث ۵۳۷۲.

| ﴿۵۰﴾ وَعَنْ أُمِّ الدَّرْدَاءِ قَالَتْ: قُلْتُ: لِأَبِي الدَّرْدَاءِ: مَالَكَ |
|---|
| او حضرت ام درداء رضي الله عنها فرمايي چې ما (خپل خاوند) حضرت ابو درداء رضي الله عنه ته وويل: په تا څه شويدي چې |
| لَا تَطْلُبُ كَمَا يَطْلُبُ فُلَانٌ؟ |
| ته (نبي صلی الله علیه وسلم نه يا د صحابو نه) مال او اسباب او منصب نه غواړي. څنګه چې يې فلانکی فلانکی سړی غواړي.؟ |
| فَقَالَ: أَنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «إِنَّ |
| حضرت ابو درداء رضي الله عنه (دې او ريدلو سره) وفرمايل چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوريدلي دي چې ستاسو |
| أَمَامَكُمْ عَقَبَةً كَؤُودًا لَا يَجُوزُهَا الْمُثْقِلُونَ». |
| مخې ته يوه سخت مزل کونکې غونډۍ ده، په دې کې هغه خلک نشي تيريدلی څوک چې د دروند بار والا وي. |
| فَأُحِبُّ أَنْ أَتَخَفَّفَ لِتِلْكَ الْعَقَبَةِ. [1] |
| نو زه دا غواړم چې سپک يم دې لپاره چې په دې غونډۍ باندې (په آسانتيا او سهولت سره) تير شم. |

**توضیح**: عقبة: د غره وچتې څوکې ته غونډۍ وايي. دلته په دې سخته غونډۍ باندې د مرګ سختي او د قبر احوال او د ميدان محشر مصيبتونه مراد دي.

**كئودًا**: کاف باندې فتحه ده. همزه باندې ضمه ده. واو ساکن دی. دا د باب فتح نه مصدر دی. چې د سختې او مشقت په معنی دی. دا د عقبة لپاره صفت دی. يعنې سخت مزل غونډۍ.

**المثقلون**: د باب افعال نه ده يعنې د دروند بار وچتونکې خلک، دلته د دنيا مينه او د مال مينې دروند بار وچتونکي خلک مراد دي. ځکه ويلی شويدي **فاز المخففون وهلك المثقلون**.

## د دنيا مال د مال خاوند د ضرر نه نشي بچ کولې

| ﴿۵۱﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «هَلْ مِنْ أَحَدٍ يَمْشِي عَلَى الْمَاءِ |
|---|
| او حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: آيا څوک په اوبو باندې داسې تللی |
| إِلَّا ابْتَلَّتْ قَدَمَاهُ؟» قَالُوا: لَا يَا رَسُولَ اللهِ |
| شي چې د هغه خپې لمدې نشي. صحابو وفرمايل چې يا رسول الله صلی الله علیه وسلم داسې خو ممکنه نده. |

[1] اخرجه البيهقي في شعب الايمان ۷/۳۰۹ رقم الحديث ۱۰۴۰۸.

| قَالَ: «كَذَلِكَ صَاحِبُ الدُّنْيَا لَا يسلمُ منَ الذُّنُوب» . رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيّ فِي «شعب الْإِيمَان»[1] |
|---|
| نبی کریم ﷺ وفرمایل: همدا حال د دنیا دار دی چې هغه د ګناهونو نه روغ او سلامت نشي پاتې کیدلی. |

**توضیح**: علی الماء: یعنې سمندر کې یا په هر قِسم اوبو کې تیریدونکی سړی د اوبو د لوند والي نه نشي بچ کیدلی. دغه شان په دنیا کې اخته کیدونکی سړی د ګناهونو نه محفوظ نشي پاتې کیدلی.

په عربۍ کې یو شاعر د دې مفهوم داسې بیان کړیدی:

القاه في اليم مكتوفا فقال له — اياك اياك ان تبتل بالماء

په فارسۍ کې شاعر داسې ویلي دي:

درمیان قعر دریا تخته بندم کرده — بازمی گویی که دامن ترمکن هوشیار باش

د سمندر په منیځ کې یې د تختې سره تړلی او بیا وایې: چې خبردار! لمن دې لمده نه شي.

| ﴿۵۲﴾وَعَن جُبَير بن نفير رَضِيَ الله عَنهُ مُرْسَلًا قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
|---|
| او حضرت جبیر ابن نفیر (تابعی) بطریق ارسال روایت کوي چې نبی کریم ﷺ ماته وفرمایل: |
| «مَا أُوحِيَ إِلَيَّ أَنْ أَجْمَعَ الْمَالَ وَأَكُونَ مِنَ التَّاجِرِينَ وَلَكِنْ أُوحِيَ إِلَيَّ |
| ما باندې دا وحې نده نازله شوې چې زه مال دولت جمع کړم او تاجر جوړ شم بلکې په ما باندې دا وحې نازله شویده |
| أَنْ (سَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَكُنْ مِنَ السَّاجِدِينَ. |
| چې ته د خپل رب ثناء او صفت سره د هغه پاکې بیان کړه او په سجده کونکو کې شه. دغه شان د خپل |
| واعبد ربّك حَتَّى يَأْتِيك الْيَقِين) رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ» وَأَبُو نُعَيْمٍ فِي «الْحِلْية» عَن أبي مُسلم[2] |
| رب په عبادت کې مشغول وسیږه تر دې چې ستا (د دنیاوي ژوند) آخرې وخت راشي. (شرح السنة) |
| ﴿۵۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ الله عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ طَلَبَ |
| او حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چې د چا مخې ته د لاسونو . |
| الدُّنْيَا حَلَالًا اسْتِعْفَافًا عَنِ الْمَسْأَلَةِ وَ سَعْيًا عَلَى أَهْلِهِ |
| خپرولو د ذلت نه وساتل شي، د خپل اهل د ژوند ضرورتونه پوره کولو او د خپلو ګاونډیانو سره د احسان کولو |

---

([1])اخرجه البيهقي في شعب الايمان ۷/۳۲۳ رقم الحديث ۱۰۴۵۷.

([2])اخرجه البغوي في شرح السنة ۱۴/۲۳۷ رقم الحديث ۴۰۳۶.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَتَعَطُّفًا | عَلَى | جَارِهِ | لَقِيَ | اللهَ | تَعَالَى | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ |

په خاطر جائز وسيلي او ذريعو باندې دنيا ترلاسه كړي، هغه به د قيامت په ورځ باندې د الله تعالى سره په داسې

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَوَجْهُهُ | مِثْلُ | الْقَمَرِ | لَيْلَةَ | الْبَدْرِ. | وَمَنْ | طَلَبَ | الدُّنْيَا | حَلَالًا |

حال كې مخ كيږي چې د هغه مخ به د څوارلسمې سپوږمۍ په شان وي. او كوم سړى چې په مال دولت كې په

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مُكَاثِرًا | مفاخرا | مرائيا | لَقِيَ | اللهَ |

مال ډيرولو باندې فخر كولو او د ځان ښودنې لپاره جائز وسيلو او ذريعو سره (هم) دنيا (مال اسباب) ترلاسه كړي

وَهُوَ عَلَيْهِ غَضْبَانُ» . رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ» وَأَبُو نُعَيْمٍ فِي «الْحِلْيَة»[1]

نو هغه به د الله تعالى سره په داسې حال كې مخ كيږي چې الله تعالى به په هغه باندې غصه وي. (بيهقى)

## مال د جنت او دوزخ لپاره غټه پر ده ده

﴿۵۴﴾وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِنَّ هَذَا الْخَيْرَ

او حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه روايت كوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: دا خير (يعنې د مال او دولت انبار)

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| خَزَائِنُ | لِتِلْكَ | الْخَزَائِنِ | مَفَاتِيحُ | فَطُوبَى | لِعَبْدٍ | جَعَلَهُ | اللهُ |

خزاني دي او د دې خزانو لپاره كنجياني دي. پس زيرى دې وي هغه بنده لپاره چې خداى هغه د خير د دروازو د

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِفْتَاحًا | لِلْخَيْرِ | مِغْلَاقًا | لِلشَّرِّ | وَوَيْلٌ |

برسيرته كولو او د بدۍ د دروازو د بندولو لپاره سبب او ذريعه جوړه كړې وي. او (دين او دنيا) هلاكت او تباهي ده

لِعَبْدٍ جَعَلَهُ اللهُ مِفْتَاحًا لِلشَّرِّ مِغْلَاقًا لِلْخَيْرِ» . رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه[2]

د هغه بنده لپاره چې خداى د بدۍ د دروازو د برسيرته كولو او د خير دروازو د بندولو سبب او ذريعه جوړه كړيده

**توضيح: هذا الخير:** د خير نه مراد د مال خزاني او انبارونه مراد دي. كوم چې انسان راغونډوي. او الله تعالى پيدا كړيدي. علامه طيبي ليكي چې مال باندې د خير اطلاق په هغه صورت كې كيږي كله چې هغه ډير او كثير وي. **خزائن:** دا د خزانة جمع ده. خزانه جمع كړى شوي مال ته وايي. او دا لفظ د ان لپاره خبر دى. او هذا الخير د دې لپاره اسم دى. **لتلك الخزائن:** اسم اشاره او مشار اليه يو ځاى كيدلو باندې خبر مقدم دى او **مفاتيح** د دې

(۱) اخرجه البيهقي في شعب الايمان ۷/۲۹۸ رقم الحديث ۱۰۳۷۵ وابونعيم في الحلية ۸/۲۱۵ .

(۲) اخرجه ابن ماجه في السنن ۱/۸۷ رقم الحديث ۲۳۸.

لپاره مبتداء مؤخر ده. د حدیث مطلب دا دی چې دا ډیر مالونه د خزانو په صورت کې دي. کوم چې الله تعالی پیدا کړیدي. او د الله تعالی د اړخ نه د هغه بندیګان په دې باندې تاکلی شوي ذمه واران دي. چې هغه ګویا د دې خزانو په بر سیر ته کولو او بندولو کې د کنجیانو په شان دي. بس هغه بنده د مبارکی مستحق دی چا لره چې الله تعالی په هره ښیګړه کې یعنې مال خرچ کولو لپاره کنجې جوړه کړیده. چې هغه د دې خزانې مال په نیکی او ښیګړه کې خرچ کوي. او هغه لره الله تعالی د شر او فساد د بندولو چابې جوړه کړیده چې دا مال په غلطه طریقه باندې نه خرچ کوي. او د بخل او کنجوسۍ نه کار نه اخلي. او د هغه بنده لپاره دې هلاکت وي چا لره چې الله تعالی د شر خیرولو لپاره چابې جوړه کړیده. او د ښیګړې بندولو لپاره یې چابې جوړه کړیده. یعنې دا مالونه د خیر په لاره کې نه خرچ کوي. او د شر په لارو کې په خلاص زړه سره خرچ کوي. د دې حدیث نه معلومه شوه چې دانسان ګټلی شوی مال د جنت او دوزخ ترمینځ یو غټه پرده ده. دا مال د دوزخ د اور لپاره هم پرده کیدلی شي چې د دې په ذریعه سره ثواب وګټلی شي او هم دا مال د جنت لپاره هم پرده جوړیدلی شي چې د دې په ذریعه سره ګناه وګټلی شي او دوزخ ته لاړ شي. (مرقات ۹/۶۲)

## د بې برکته مال نښه

| ﴿۵۵﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا لَمْ يُبَارَكْ لِلْعَبْدِ |
|---|
| او حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: کله چې د یو بنده په مال دولت کې برکت نه وي |
| فِي مَالِهِ جَعَلَهُ فِي الْمَاءِ وَالطِّينِ» . [1] |
| نو هغه دا مال په اوبو او ختو کې یو کوي یعنې خپل دولت د ضرورت نه ډیر عمارتونه او دهغې په زینت او بنایست کې خرچ کوي. |
| ﴿۵۶﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «اتَّقُوا الْحَرَامَ فِي الْبُنْيَانِ |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا روایت دی چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل (خلکو) تاسو په آبادو کې د حرام مال مصرف |
| فَإِنَّهُ أَسَاسُ الْخَرَابِ» . رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ» . [2] |
| کولو نه ځان وساتی. ځکه چې په آبادو کې حرام مال لګول (دین یا دهغه آبادې) د خرابۍ بنیاد او جړه ده. |

**توضیح**: **الحرام فی البنیان**: د دې جملې یو مطلب دا دی چې په آبادو کې د حرام مال مصرف کولو نه ځان وساتی. دا معنی بعیده ده. دویمه معنی دا ده چې په آبادو کې دومره د حد نه تجاوز مکوی چې هغه آبادې د حرامو په زمره کې راشي. دا مطلب ډیر واضح دی. **اساس الخراب**: دا جمله په ماسبق باندې متفرع ده چې د آبادو انجام خو خرابې ده. نو دا بې ځایه تکلیف ولې کوی. (مرقات ۹/۶۴)

---

[1] أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۷/۳۹۴ رقم الحديث ۱۰۷۱۹.

[2] أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۷/۳۹۴ رقم الحديث ۱۰۷۲۲.

## مال او دولت جمع كول بې عقلي ده

| |
|---|
| ﴿٥٧﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «الدُّنْيَا |
| او حضرت عائشه رضي الله عنها د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه روايت كوي چې نبي صلى الله عليه وسلم وفرمايل: دنيا د هغه |
| دَارُ مَنْ لَا دَارَ لَهُ وَمَالُ مَنْ |
| سړي كور دی د چا لپاره چې په (آخرت كې) كور نشته دی. او مال د هغه سړي دی، چا لپاره چې (آخرت كې) |
| لَا مَالَ لَهُ وَلَهَا يَجْمَعُ مَنْ لَا عَقْلَ لَهُ» . رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ»[1] |
| مال نه وي. د غه شان مال دولت هغه سړی جمع كوي، د چا چې عقل نوي. (احمد او بيهقي روايت كړې دي) |

## شراب د ټولو بديو مجموعه ده

| |
|---|
| ﴿٥٨﴾ وَعَنْ حُذَيْفَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي خُطْبَتِهِ: |
| او حضرت حذيفه رضي الله عنه فرمايي چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه په يوه خطبه كې واوريدل (يادساتئ) |
| « الْخَمْرُ جِمَاعُ الْإِثْمِ وَ النِّسَاءُ حَبَائِلُ الشَّيْطَانِ وَ حُبُّ الدُّنْيَا رَأْسُ كُلِّ خَطِيئَةٍ » |
| د شراب څښل د ګناهونو جمع كول دي. او ښځې د شيطان جال دی. او د دنيا مينه د هرې ګناه سر دی. |
| قَالَ : وَ سَمِعْتُهُ يَقُولُ : « أَخِّرُوا النِّسَاءَ حَيْثُ |
| حذيفه رضي الله عنه فرمايي چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دا هم اوريدلي دي چې ښځې وروسته كړه |
| أَخَّرَهُنَّ اللهُ». (٢) وروى البيهقي مِنْهُ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ» عَنِ الْحَسَنِ مُرْسَلًا: «حب الدُّنْيَا رأس كل خَطِيئَة» (٣) |
| څنګه چې الله تعالى دوې وروسته كړيدي (روايت كړې دې رزين او بيهقي په شعب الايمان كې) |

**توضيح:** جماع الاثم: جيم باندې كسره ده د جمع كولو په معنى دی مطلب دا چې شراب څښل د ټولو ګناهونو مجموعه ده. ځكه چې كله عقل لاړشي نو انسان هره ګناه كولی شي. عقل بريک دی. كله چې دا فيل (خراب) شي نو ګاړی يا انساني بدن د هر ديوال سره ټكره كوي. (مرقات ۹/۶۵)

| |
|---|
| ﴿٥٩﴾ وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عَلَيْهِ وسلم: «إِنَّ أَخْوَفَ مَا |
| او حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د اخپل امت په اړه باندې چې د كومو |

---

(١) اخرجه أحمد في المسند ٦/٧١ والبيهقي في شعب الايمان ٧/٣٧٥ رقم الحديث ١٠٦٣٨.

(٢) اخرجه رواه رزين وروي عبدالرزاق في المصنف عن ابن مسعودلوله اخروهن حيث اخرهن الله ٣/١٤٩ رقم الحديث ٥١١٥.

(٣) اخرجه البيهقي في شعب الايمان ٧/٣٨٨ رقم الحديث ١٠٥٠١.

أَتَخَوَّفُ عَلَى أُمَّتِي الْهَوَى

شيانو نه ډير ويريږم، په هغې کې خويو د نفس خواهش دی. دويم (د عمل و روستوالي او د نيکو نه د غفلت په ذريعه سره) د

وَطُولُ الْأَمَلِ فَأَمَّا الْهَوَى فَيَصُدُّ عَنِ الْحَقِّ

اوږد عمر ارمان کول دي. نو د نفس خواهش د حق قبلولو او په هغې باندې د عمل کولو نه منع کول کوي. او

وَأَما طول الأمل فيُنسي الْآخِرَةَ وَهَذِهِ الدُّنْيَا مُرْتَحِلَةٌ ذَاهِبَةٌ

ترکومې پورې چې د اوږد عمر د ارمان اړيکه ده نو هغه آخرت هيروي. او (ياد ساتئ) دا دنيا سفر کونکې

وَهَذِهِ الْآخِرَةُ مُرْتَحِلَةٌ قَادِمَةٌ وَلِكُلِّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا بَنُونَ

تلونکې ده. او آخرت سفر کونکې راتلونکې دی. د غه شان د دې دواړو (يعنې دنيا او آخرت) لپاره ځامن

فَإِنِ اسْتَطَعْتُم أَن لَا تَكُونُوا بَنِي الدُّنْيَا فَافْعَلُوا فَإِنَّكُمُ الْيَوْمَ

دي. لهذا که ستاسو نه کيدلی شي نو نو د دنيا ځامن مه جوړيږئ. نو داسې خامخا وکړئ ځکه چې تاسو نن په دنيا

فِي دَارِ الْعَمَلِ وَلَا حِسَابَ وَأَنْتُمْ غَدًا

کې موجود ياست چې دا دار العمل دی چيرته چې د عمل حساب نه اخستلی کيږي او کله چې تاسو د آخرت کور

فِي دَارِ الْآخِرَةِ وَلَا عَمَلَ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَان»[1]

ته لاړ شئ نو هلته به د عمل کولو هيڅ موقع نه درکولی کيږي.

﴿۶۰﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ الله عَنْهُ قَالَ: ارْتَحَلَتِ الدُّنْيَا مُدْبِرَةً

او حضرت علي رضي الله عنه (موقوفًا) روايت دی چې هغه وفرمايل: دا دنيا د دې ځای نه مخ اړونکې سفر

وَارْتَحَلَتِ الْآخِرَةُ مُقْبِلَةً وَلِكُلِّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا

باندې تلونکې ده. او آخرت د هغه ځای نه سفر راکونکی زمونږ په اړخ باندې راروان دی. او په دې دواړو کې د هر يو

بَنُونَ فَكُونُوا مِنْ أَبْنَاءِ الْآخِرَةِ وَلَا تَكُونُوا مِنْ أَبْنَاءِ الدُّنْيَا فَإِنَّ الْيَوْمَ عَمَلٌ

ځامن دي. نو تاسو د آخرت ځامن جوړ شئ او د دنيا ځامن مه جوړيږئ. ياد ساتئ! نن ورځ د عمل کولو ده.

---

[1] اخرجه البيهقي في شعب الايمان ۷/۳۷۰ رقم الحديث ۱۰۶۱۶

وَلَا حِسَابَ وَغَدًا حِسَابٌ وَلَا عَمَلَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1]

د حساب ورځ نده. او سبا (قيامت) ورځ د حساب ورځ به وي، د عمل كولو نه.

﴿٦١﴾ وَعَنْ عَمْرٍو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَطَبَ يَوْمًا

او د حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دى چې يوه ورځ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خطبه وفرمايله: او په دې

فَقَالَ فِي خُطْبَتِهِ: «أَلَا إِنَّ الدُّنْيَا عَرَضٌ حَاضِرٌ يَأْكُلُ مِنْهُ الْبَرُّ وَالْفَاجِرُ

خطبه كې يې وفرمايل: (خلكو!) يادساتئ! دنيا يو ناپائيدار شكه ده. د دېنه نيكان هم خوري او بدان هم.

أَلَا وَإِنَّ الآخرة أَجَلٌ صَادِقٌ وَيَقْضِي فِيهَا مَلِكٌ قَادِرٌ

خبردار اوسئ! آخرت يو واقعي نيټه ده چې هغه ربښتيني يعني محقق او ثابته ده. او په (آخرت) كې هر قسم قدرت لرونكى باچا

أَلَا وَإِنَّ الْخَيْرَ كُلَّهُ بِحَذَافِيرِهِ فِي الْجَنَّةِ

(يعنې الله تعالى) به فيصله كوي. خبردار وسئ! ټولې ښيګړې او ښه والى د خپلو اقسامو سره په جنت كې دي.

أَلَا وَإِنَّ الشَّرَّ كُلَّهُ بِحَذَافِيرِهِ فِي النَّارِ أَلَا فَاعْمَلُوا وَأَنْتُمْ

خبردار وسئ! او بدى د خپلو ټولو اقسامو سره په دوزخ كې دي. نو تاسو (نيك) عمل كوئ په داسې حال كې چې په تاسو

مِنَ اللهِ عَلَى حَذَرٍ وَاعْلَمُوا أَنَّكُمْ مَعْرُوضُونَ عَلَى أَعْمَالِكُمْ

باندې د خداى د حساب او عذاب ويره خپره وي. او دا خبره ياد ساتئ چې تاسو به د خپلو اعمالو سره پيش كيږئ نو

فَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُ وَمَنْ يَعْمَلْ

كوم سړى چې لږه نيكي هم كوي هغه (آخرت يا دنيا كې) به د هغې جزا بيامومي. او كوم سړى چې د ذرې

مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شرا يره». لِلشَّافِعِيِّ[2]

برابر هم بدي كوي هغه به د هغې سزا بيامومي.

﴿٦٢﴾ وَعَنْ شَدَّادٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وسلم يَقُول: «يَا أَيُّهَا النَّاسُ

او حضرت شداد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوريدلي دي، خلكو! دا دنيا يو

---

(1) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۲۳۵ في باب رقم ۴ باب في الأمل وطوله.

(2) لم اقف عليه في مسندالامام الشافعي.

إِنَّ الدُّنْيَا عَرَضٌ حَاضِرٌ يَأْكُلُ مِنْهَا الْبَرُّ وَالْفَاجِرُ وَإِنَّ الْآخِرَةَ وَعْدٌ

ناپائیداره څکنده چې پهدې کې نیک او بد دواړه خوراک کوي. او بیشکه آخرت یو ریښتینې او یقیني تو ګسباندې پوره کیدونکې

صَادِقٌ يَحْكُمُ فِيهَا مَلِكٌ عَادِلٌ قَادِرٌ يُحِقُّ فِيهَا الْحَقَّ

وعده ده. په دې (آخرت) کې هر قسم قدرت لرونکی او عدل او انصاف کونکی باچا حق به ثابت وساتي او باطل

وَيُبْطِلُ الْبَاطِلَ كُونُوا مِنْ أَبْنَاءِ الْآخِرَةِ وَلَا تَكُونُوا مِنْ أَبْنَاءِ الدُّنْيَا

به ختم کړي. تاسو د آخرت ځامن جوړ شئ. او د دنيا په ځامنو کې ځانونه مه شماری. ځکه چې د هرې

فَإِنَّ كل أم يتبعها ولدها»[1]

مور ځوې د هغې (د مور) تابع وي.

﴿۶۳﴾ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا طَلَعَتِ

او حضرت ابو درداء رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمایل کله چې هم لمر راخیژي د هغې

الشَّمْسُ إِلَّا وَبِجَنْبَتَيْهَا مَلَكَانِ يُنَادِيَانِ يُسْمِعَانِ الْخَلَائِقَ غَيْرَ الثَّقَلَيْنِ: يَا أَيُّهَا النَّاسُ

دواړو اړخ ته دوه فرښتې وي. چې هغوې اعلان کوي، چې هغه د انس او جن نه غیره ټول مخلوق ته اوروي چې خلکو!

هَلُمُّوا إِلَى رَبِّكُمْ مَا قَلَّ وَكَفَى خَيْرٌ

خپل رب اړخ ته راشئ. او په دې خبره پوهه شئ چې کوم مال لږ وي او کفایت وکړي، دا د هغه مال نه ډیر بهتر

مِمَّا كَثُرَ وَ أَلْهَى « رَوَاهُمَا أَبُو نُعَيْمٍ فِي » الْحِلْيَةِ "[2]

دی چې هغه ډیر وي او د خدای د عبادت نه منع او د اطمینان او د سکون د ژوند نه محرومه وساتي.

﴿۶۴﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يَبْلُغُ بِهِ

او حضرت ابو هريره رضي الله عنه روايت نقل شويدی چې هغه به رسول الله صلى الله عليه وسلم ته رسولو، په دې مرفوع حديث کې

قَالَ: " إِذَا مَاتَ الْمَيِّتُ قَالَتِ الْمَلَائِكَةُ: مَا قَدَّمَ؟

ابو هريره رضي الله عنه فرمايي: کله چې يو سړی مړ شي نو فرښتې دا وايي چې دې سړي د آخرت لپاره څه پريخې دي

---

[1] اخرجه ابونعيم في الحلية ۱/۲۶۴.

[2] اخرجه احمد في المسند ۵/۱۹۷ وابونعيم في الحلية ۱/۲۲۶

وَقَالَ بَنُو آدَمَ: مَا خَلَّفَ؟ «. رَوَاهُ الْبَيْهَقِيّ فِي» شعب الْإِيمَان "[١]

او خلک دا پوښتنه کوي چې ده (په خپل میراث کې) څه پریخي دي.

﴿٦٥﴾ وَعَنْ مَالِكٍ رَضِيَ الله عَنْهُ: أَنَّ لُقْمَانَ قَالَ لِابْنِهِ: «يَا بُنَيَّ

او حضرت امام مالک رحمه الله نه روایت دی چې لقمان خپل ځوی ته وفرمایل: زما ځویه! د کومې خبرې

إِنَّ النَّاسَ قَدْ تَطَاوَلَ عَلَيْهِمْ مَا يُوعَدُونَ وَهُمْ إِلَى الْآخِرَةِ

چې د خلکو سره وعده کړی شوي وه. د هغې نیتهه په هغوي باندې اوږده شوه او حال دا دی چې خلک د آخرت اړخ ته

سِرَاعًا يذهبون وَإِنَّكَ قداستدبرت الدُّنْيَامُنْذُ كُنْتَ وَاسْتَقْبَلْتَ الْآخِرَةَ

تیز روان دي. او زما ځویه! کله چې ته پیدا شوي د هغه وخت نه ستا شا د دنیا اړخ ته او ستا مخ د آخرت په اړخ دی.

وَإِنَّ دَارًا تسيرإليها أقربُ إِليك من دارٍ

او په دې کې هیڅ شک نشته چې کوم کور او مقام اړخ ته ته روان یې، هغه ستا لپاره د دې کور او مقام په

تخرج مِنْهَا». رَوَاهُ رزين[٢]

نسبت ډیر نژدې دی کوم چې ته پریږدې.

﴿٦٦﴾ وَعَنْ عَبْدِ الله بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ الله عَنْهُمَا قَالَ: قِيلَ لِرَسُولِ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

او حضرت عبد الله بن عمرو رضی الله عنه فرمایي چې (یو ورځ) د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه پوښتنه وکړی شوه

أَيُّ النَّاسِ أَفْضَلُ؟ قَالَ: «كُلُّ مَخمومُ الْقلب صَدُوق اللِّسَان».

چې کوم سړی غوره دی؟ نو نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: هغه سړی چې د مخموم زړه او رېښتیني ژبې والا وي. (دې

قَالُوا: صدوق اللِّسَانِ نَعْرِفُهُ فَمَا مَخْمُومُ الْقَلْبِ ؟

اوریدلو سره) صحابو وفرمایل: چې د ژبې رېښتین والی خو مونږ پیژنو. خو د مخموم زړه نه څه مراد دي؟

قَالَ: «هُوَ التَّقِيُّ النَّقِيُّ لَا إِثْمَ عَلَيْهِ

نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: مخموم زړه والا هغه سړی دی چې د هغه زړه پاک صاف وي، پرهیزګاره وي، په هغې کې څه ګناه نه وي.

---

(١) اخرجه رواه البيهقي في شعب الايمان ٧/٣٢٨ رقم الحديث ١٠٤٧٥.

(٢) اخرجه رواه رزين.

وَلَا بَغْيَ وَلَا غِلَّ وَلَا حَسَدَ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ»[1]

هغه څه ظلم نه وي کړی او په هغې کې څه کرکه، او کینه او حسد ماده نه وي.

**توضيح:** مخموم القلب: د مخموم لفظ په اصل کې د خم نه مشتق دی. چې د هغې معنی د پاکولو ده. د دېنه هغه پاک او صاف زړه مراد دی چې په هغې کې د غیرالله څه وسوسه او شائبه نوی. او د غیرالله د دوړو نه بیخې پاک صاف وي. چې هغه غلط خیالونه، او پلید اخلاق او رذیلو صفاتو نه محفوظ وي دېته قلب سلیم هم ویلی شویدی. په حدیث کې ددې تشریح خپله شته دی. **بغي:** سرکشي او تجاوز ته ویلی شویده. او د زړه کرکه او کینې ته غل ویلی شویدی او حسد خو حسد دی. (مرقات ۹/۷۳)

﴿۶۷﴾ وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " أَرْبَعٌ

او حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صَلَّی اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: څلور شیان داسې دي

إِذَا كُنَّ فِيكَ فَلَا عَلَيْكَ مَا فَاتَكَ مِنَ الدُّنْيَا: حِفْظُ أَمَانَةٍ

چې هغه په تا کې وي نو د دنیا د شتون او نه شتون دې تا سره هیڅ غم نوي. یو خو د امانت حفاظت کول.

وَصِدْقُ حَدِيثٍ وَحُسْنُ خَلِيقَةٍ وَعِفَّةٌ فِي طُعْمَةٍ «. رَوَاهُ أَحمد وَالْبَيْهَقِيُّ فِي» شعب الْإِيمَان "[2]

دویم ریښتیا خبره کول، دریم د اخلاقو ښه کیدل، او څلورم په خوراک کې احتیاط او پرهیزګارې خپلول.

## د لقمان حکیم نصیحت

﴿۶۸﴾ وَعَنْ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: بَلَغَنِي أَنَّهُ قِيلَ لِلُقْمَانَ الْحَكِيمِ:

او حضرت امام مالک رحمه الله فرمایي چې ما ته دا روایت رارسیدلی دی چې کله چې لقمان حکیم نه پوښتنه وکړی

مَا بَلَغَ بِكَ مَا ترى؟ يَعْنِي الْفَضْلَ قَالَ: صِدْقُ الْحَدِيثِ

شو چې په کومه مرتبه باندې مونږ تا وینو، دېته ته کوم شي راورسولي؟ نو لقمان حکیم وفرمایل: ریښتیا ویلو،

وَ أَدَاءُ الْأَمَانَةِ وَ تَرْكُ مَا لَا يَعْنِينِي . رَوَاهُ فِي « الْمُوَطَّأِ »[3]

امانت ادا کولو، او کوم شیان چې زما لپاره بې فائدې او غیر ضرورې ؤ ، د هغې په پریخودلو سره

(1) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۴۰۹ رقم الحديث ۴۲۱۵.

(2) أخرجه احمد في المسند ۲/۱۷۷ ورواه البيهقي في شعب الايمان ۴/۳۲۱ رقم الحديث ۵۲۵۸.

(3) أخرجه مالک في الموطأ ۲/۹۹۰ رقم الحديث ۱۷ من كتاب الأحكام.

**توضيح**: لقمان الحکيم: د حکمت او هوښيارتيا کې په دنيا کې چا د شهرت دی او غټو دانشورانو او مدبرانو چې دچا د حکمتونو نه فائدې اخستلې دې. هغه ښاغلی د حضرت لقمان حکيم په نوم سره مشهور دی. چې دا د حضرت ايوب عَلَيْهِ السَّلَام وراره يا د ترور ځوی ؤ. د علماء کرامو په دې کې اختلاف دی چې آيا هغه پيغمبر يا نبي ؤ او که نبي نه ؤ؟ هو خو په دې خبره د ټولو اتفاق دی چې يو کامل ولي ؤ. حيوة الحيوان کې يې ليکلي دي چې د الله تعالی د اړخ نه ورته اختيار ورکړی شو چې نبوت اختيار کړه يا حکمت او ولايت اختيار کړه. نو هغه ولايت اختيار کړو او وې ويل چې د نبوت ذمه واری ډيرې دي. نقل شويدي چې چې هغه د يو زر (١٠٠٠) انبياء کرامو نه فيض ترلاسه کړی دی. الله تعالی په قرآن مجيد کې د حضرت لقمان نوم اخستلو باندې تذکره کړيده. حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې لقمان نه نبي ؤ او نه کوم باچا ؤ. بلکې يو تور پوستی غلام ؤ، بيزې به يې څرولې. الله تعالی هغه مقبول جوړ کړی او هغه ته يې حکمت او هوښيارتيا او عقل ورکړی ؤ.

## د قيامت په ورځ به نيک اعمال شفاعت کوي

| |
|---|
| ﴿٦٩﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "تَجِيءُ الْأَعْمَالُ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل (د قيامت په ورځ) اعمال به راشي. |
| فتجيء الصَّلَاة فتقول: يارب أَنَا الصَّلَاةُ. فَيَقُولُ: إِنَّكِ عَلَى خَيْرٍ. فَتَجِيءُ الصَّدَقَة |
| لمونځ به پيش شي او وبه وايي چې ای ربه! زه لمونځ يم. الله تعالی به وفرمايي: بې شکه ته بنيګړه يې. بيا صدقه يعني |
| فَتقول: يارب أَنَا الصَّدَقَةُ. فَيَقُولُ: إِنَّكِ عَلَى خَيْرٍ |
| زکوة به پيش شي او وبه وايي چې ای ربه! زه صدقه يم. الله تعالی به وفرمايي: بې شکه ته بنيګړه يې. او |
| ثُمَّ يَجِيءُ الصّيام فَيَقُول: يارب أَنَا الصِّيَامُ. فَيَقُولُ: إِنَّكَ عَلَى خَيْرٍ. |
| بيا به روژه پيش شي او وبه وايي چې ای ربه! زه روژه يم. الله تعالی به وفرمايي: بې شکه ته بنيګړه يې. |
| ثُمَّ تَجِيءُ الْأَعْمَالُ عَلَى ذَلِكَ. يَقُولُ اللهُ تَعَالَى: إِنَّكِ عَلَى خَيْرٍ. ثُمَّ يَجِيءُ الْإِسْلَامُ فَيَقُولُ: يَا رَبِّ |
| دغه شان نور اعمال به پيش شي. او الله تعالی به فرمايي چې ته خير باندې يې. بيا به اسلام پيش شي او وبه وايي ای ربه! |
| أَنْتَ السَّلَامُ وَأَنَا الْإِسْلَامُ. فَيَقُولُ اللهُ تَعَالَى: إِنَّكَ عَلَى خَيْرٍ بِكَ الْيَوْمَ |
| ستا نوم سلام دی او زه اسلام يم. نو الله تعالی به وفرمايي بيشکه ته بنيګړه باندې يې. نن ورځ به ستا په وجه |
| آخُذُ وَبِكَ أُعْطِي. قَالَ اللهُ تَعَالَى فِي كِتَابِهِ: ﴿وَمَنْ |
| باندې نيوکه کوم. او ستا په وسيله سره به ورکړه کوم. نو الله تعالی په خپل کتاب کې وفرمايل (ترجمه) يعنې کوم سړی |

| |
|---|
| يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَنْ يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُوَ فِي الْآخِرَة من الخاسرين)»[1] |
| چې د اسلام نه غیره بل دین غوره کړي دهغه نه به هغه دین هیڅکله هم قبول نشي او په آخرت کې به د تاوانیانو نه وي. |

## دنیا ړخ ته مائله کونکو شیانو نه ځان وساتئ

| |
|---|
| ﴿۷۰﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ الله عَنْهَا قَالَتْ: كَانَ لَنَا سِتْرٌ فِيهِ تَمَاثِيلُ طَيْرٍ |
| او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې زمونږ لپاره یو پرده وه. په هغې باندې د مرغانو تصويران جوړ ؤ. |
| فَقَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا عَائِشَةُ حوِّليه فإني إذا رأيته ذكرت الدُّنْيَا»[2] |
| نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: عائشه (رَضِيَ اللهُ عَنْهَا)! دا پرده بدله کړه ځکه چې زه کله دېته گورم نو دنیا رایاده شي. |

## غوره نصيحتونه

| |
|---|
| ﴿۷۱﴾ وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ رَضِيَ الله عَنْهُ قَالَ: جَاءَ رَجل إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابو ایوب انصاری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو سړی د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شو |
| فَقَالَ: عِظْنِي وَأَوْجِزْ. فَقَالَ: «إِذَا قُمْتَ فِي صَلَاتِكَ |
| او وې ویل چې ماته څه نصیحت وکړه. چې لنډ او جامع وي. نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: کله چې ته لمونځ ته ودرېږې |
| فَصَلِّ صَلَاةَ مُوَدِّعٍ وَلَا تَكَلَّمْ بِكَلَامٍ |
| نو دهغه سړي په شان لمونځ کوه چې هغه رخصتیدونکی او پریخودونکی وي. دغه شان د خپلې ژبې نه داسې خبره مه راوباسه |

| |
|---|
| تُعْذِرُ مِنْهُ غَدًا وَأَجْمِعِ الْإِيَاسَ |
| چې د هغې په وجه باندې سبا په تا باندې عذر کول وي. او د هغه څه نه د نا امیدۍ کولو پخه اراده وکړه کوم |
| مِمَّا فِي أَيْدِي النَّاس»[3] |
| چې د خلکو په لاسونو کې دي. |

[1] أخرجه مالک في الموطا ۲/۹۹۰ رقم حدیث ۱۷ من کتاب الکلام وأحمد في المسند ۲/۳۶۲.

[2] أخرجه أحمد في المسند ۶/۲۴۱

[3] أخرجه ابن ماجه في ۱۳۹۶ رقم الحدیث ۴۱۷۱ وأحمد في المسند ۵/۴۱۲.

**توضيح:** اوجز: يعني لنډ نصيحت راته وکړه. نبي ﷺ وفرمايل کله چې لمونځ کوې نو داسې په اخلاص سره يې وکړه چې ګويا دا ستا آخرې لمونځ دی. دويم نصيحت دا چې د ژبې نه داسې بې خونده خبره مه راوباسه چې سبا د قيامت په ورځ باندې د الله تعالى مخې ته يا سبا د خپلو دوستانو مخې ته عذر کول وي. اول يې وتله او بيا خبره وکړه. دريم نصيحت دا دی چې د خلکو د اړخ نه بيخې نااميده شه چې هغوی به تا ته څه روپۍ پيسې درکړي، دې لپاره چې ته په حرص او لالچ کې رانشې. (مرقات ۹/۷۳)

## حضرت معاذ رضي الله عنه ته د رسول الله ﷺ نصيحتونه

﴿۴۲﴾ وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: لَمَّا بَعَثَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه روايت دی چې کله رسول الله ﷺ هغه لره (قاضي يا عامل جوړولو باندې)

إِلَى الْيَمَنِ خَرَجَ مَعَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوصِيهِ

يمن ته ليږلو نو نبي ﷺ (د رخصتولو لپاره څه لرې ليرې) د هغه سره لاړو. او په دې دوران کې يې ورته تلقين او نصيحتونه

وَمُعَاذٌ رَاكِبٌ وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْشِي تَحْتَ رَاحِلَتِهِ

کول. د غه وخت کې خو حضرت معاذ رضي الله عنه په خپله سپرلۍ باندې ؤ. او رسول الله ﷺ د هغه د سپرلۍ سره سره

فَلَمَّا فَرَغَ قَالَ: يَا مُعَاذُ إِنَّكَ عَسَى

(پيدل) روان ؤ. کله چې نبي کريم ﷺ د نصيحتونو او هداياتو نه فارغه شو نو وې فرمايل: معاذ! شايد چې

أَنْ لَا تَلْقَانِي بَعْدَ عَامِي هَذَا وَلَعَلَّكَ

زما د عمر د دې کال نه وروسته ته زما سره ملاقات و نکړې شي. او ممکنه ده چې ته (کله د يمن نه ير ته راځې

أَنْ تَمُرَّ بِمَسْجِدِي هَذَا وَقَبْرِي " فَبَكَى مُعَاذٌ

نو زما سره د ملاقات په ځاې) زما په دې جومات او قبر باندې تير شې؟ معاذ رضي الله عنه (دې اوريدلو سره)

جَشَعًا لِفِرَاقِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ الْتَفَتَ

د رسول الله ﷺ نه د بيلتون په غم کې په زور زور سره وژړل، او رسول الله ﷺ د معاذ رضي الله عنه مخ اړولو باندې

فَأَقْبَلَ بِوَجْهِهِ نَحْوَ الْمَدِينَةِ فَقَالَ: «إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِيَ الْمُتَّقُونَ

د مدينې په اړخ خپل مخ کړو او بيا يې وفرمايل: ما ته ډير نژدې هغه خلک دي. کوم چې پرهيزګاره دي.

| مَنْ كَانُوا وَحَيْثُ كَانُوا» رَوَى الْأَحَادِيثَ الْأَرْبَعَةَ أَحْمَد[1] |
| --- |
| که هغه هرڅوک وي او چیرته هم وي. (مسند احمد) |

**توضیح: جشعًا:** جیم او شین دواړو باندې فتحه ده .جزع فزع سره ژړا کولو ته وايې. حضرت معاذ رضي الله عنه چې کله نبي کریم صلی الله علیه وسلم د مدینې نه یمن اړخ ته عامل لیږلو نو په ډیر اهتمام سره یې هغه ته اهم نصیحتونه وکړل. د نصیحتونو نه فارغیدلو باندې نبي صلی الله علیه وسلم خپل وفات اړخ ته اشاره وکړه. نبي صلی الله علیه وسلم د حضرت معاذ رضي الله عنه مخ واړولو دې لپاره چې هغه ته عملې روزنه ورکړي چې په دنیا کې بیلتون لازمې دی. دغه شان نبي کریم صلی الله علیه وسلم د حضرت معاذ رضي الله عنه ژړا حالت ونه کتلی شو، بیا مدینې اړخ ته یې خپل نوراني مخ کولو باندې نبي صلی الله علیه وسلم حضرت معاذ رضي الله عنه ډاډګیرنه ورکړه چې دا بیلتون عارضې دی. چې دا د آدم علیه السلام په نسل کې جریان لري.

وقد فارق الناس الأحبة قبلنا　　　واعى دواء الموت كلُّ طبيب

او بیا نبي صلی الله علیه وسلم معاذ رضي الله عنه او ټول امت ته زیری ورکړو چې څوک نیک او پرهیزګاره وي هغه ماته نژدې دی. که هغه هر څوک وي، او چیرته هم وي، ظاهرې او بدنې اعتبار سره هغه اګر که لیري وي، خو د زړه په اعتبار سره به نژدې وي.

حبیب غاب عن عیني وجسمي　　　وعن قلبي حبیب لا یغیب

او که یو سړی پرهیزګاره او مؤمن نشو نو هغه به زما نه لیري وي، که هغه مې په ګاونډ کې ولې نه وسیږي. هم د دې حدیث مفهوم فارسي شاعر په کمال سره بیان کړیدی.

گر بامنے در یمنے نزد منے　　　گر بے منے نزد منے در یمنے

یعنې که زما په طریقه باندې وسیږې ن که په یمن کې یې، زما سره به یې. او که زما په طریقه باندې نه وي ن که ته زما سره یې. په لیرې یمن کې به ګڼلی کیږې.

## اسلام باندې د شرح صدر نښه

| ﴿٤٢﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: تَلَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (فَمَنْ يُرِدِ اللهُ |
| --- |
| او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمايې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دا آیت ولوستلو (ترجمه) الله تعالی چې چا |
| أَنْ يَهْدِيَهُ يَشْرَحْ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ) فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ النُّورَ |
| ته هدایت کوي نو د هغه سینه د اسلام لپاره فراخه کوي. بیا نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کله (د هدایت) |

[1] أخرجه احمد في المسند ٥/٢٣٥.

| |
|---|
| إِذَا دَخَلَ الصَّدْرَ انْفَسَحَ». فَقِيلَ: يَا رَسُولَ الله هَلْ لِتِلْكَ |
| رڼا سيني ته ننوځي. نو سينه فراخه شي. صحابؤ عرض وکړو يارسول الله ﷺ! آيا د دې حالت او کيفيت څه |
| مِنْ عِلْمٍ يُعْرَفُ بِهِ؟ قَالَ: «نَعَمْ التَّجَافِي مِنْ دَارِ الْغُرُورِ |
| ننبه شتهدي چې په هغې سره دا وپيژندلی شي؟ نبی کريم ﷺ وفرمايل: د دې ننبه شته دی. دار الغرور (دنيا) نه لیرې |
| وَالْإِنَابَةُ إِلَى دَارِ الْخُلُودِ وَالِاسْتِعْدَادُ |
| کيدل د آخرت اړخ ته چې هغه هميشه پاتې کيدونکی جهان دی. رجوع کول او پورا توګه باندې متوجې کيدل |
| لِلْمَوْتِ قبل نُزُوله»[1] |
| او د مرګ نه مخکې د د مرګ تياری کول. |

## لږې خبر کونکی، د دنيا پريخودنکی پير جوړ کړه

| |
|---|
| ﴿۷۴﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ وَأَبِي خَلَّادٍ رَضِيَ الله عَنْهُمَا: أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| حضرت ابو هريره رضی الله عنه او حضرت ابو خلاد رضی الله عنه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: |
| «إِذَا رَأَيْتُمُ الْعَبْدَ يُعْطِي زُهْدًا فِي الدُّنْيَا وَقِلَّةَ مَنْطِقٍ |
| کله چې تاسو يو بنده ووينئ چې هغه (دنيا نه) بې رغبتنې او (بيکاره خبرو نه ځان ساتنه او) لږې خبرې ورکړې شوي |
| فَاقْتَرِبُوا مِنْهُ فَإِنَّهُ يلقى الْحِكْمَةَ». رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِي «شعب الْإِيمَان»[2] |
| وي نو د هغه نزديکت او صحبت ترلاسه کړه. ځکه چې هغه ته حکمت او هوښيارتيا ورکړې شويده. |

**توضيح: فاقتربوا منه**: يعنې کوم سړې ته چې الله تعالی زهد او قناعت او دنيا پريخودلو صفت ورکړې وي او لږې خبرې کول يې د هغه عادت جوړ کړې وي. نو د داسې سړې نه فائده ترلاسه کولو لپاره د هغه مجلس اختيار کړه. هغه زهد او دنيا پريخودلو صفت به نورو ته نقل کړي او د لږو خبرو کولو صفت به نورو خلکو ته نقل کړي.

صوفياء کرامو په نزد باندې زهد، دنيا پريخودل، او لږ خبرې کول د وچتو مرتبو ترلاسه کولو لپاره ډير اهم شيان دي. د هغوې په نزد دا مقوله مشهوره ده: کم خوردن کم خفتن کم گفتن.

---

(1) أخرجه رواه البيهقي في شعب الايمان ۷/۳۵۲ رقم الحديث ۱۰۵۵۲

(2) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۳۷۳ رقم الحديث ۴۱۰۱ والبيهقي في شعب الايمان ۴/۲۵۴ رقم الحديث ۴۹۸۵.

خو نن سبا د دې په عکس (سرچپه) معامله روانه ده. ښه پیر هغه وي چې هغه ډیر مالداره، جاګیرداره وي، او د هغه د سترګو په اشاره باندې ټول مریدان مالداره جوړیږي. دغه شان هغه مسلسل خبري کوي. او کله چې اوده شي نو بیا اوده وي. علماؤ لیکلي دي چې : **من لمن یکن سکوته نافعًا لم یکن نطقه نافعًا**. د چا چپتیا چې فائده منده نه وي، د هغه خبرې کول هم فائده مند ندي.

بهرحال د دې حدیث نه د دې شرطونو سره د پیرۍ مریدۍ ثبوت ترلاسه کیږي. که صحیح مصلح پیر ترلاسه شي نو هغه کبریت احمر دی. حضرت لاهوری رحمه الله لیکلي دي چې د صوفیاؤ د بوټانو نه هغه ملغلري ترلاسه کیږي چې هغه د باچاهانو په تاجونو کې نشي موندل کیدلی.

*نہیں ملتے یہ جوہر بادشاہوں کے خزینوں میں*

په آخر کې دا خبره به ذهن کې کینوئ چې د تصوف طریقه خو د دین طریقه ده. او د دین د ښودنې په میدان کې د علم شتون ضروري دی.

امام بخاری رحمه الله پخپل کتاب بخاری کې داسې باب تړي: **العلم قبل القول والعمل**. یعنې قول او فعل او وینا او عمل کولو نه مخکې د علم کیدل ضروري دي. لهذا تصوف لپاره د کافې کیدلو په اندازه باندې د علم کیدل ضروري دي. د تصوف په لاره کې امي (غیر عالم) ډیر مخکې ځي خو انجام یې د نقصان سبب جوړ شي. الا ماشاءالله.

باباسعدی رحمه الله عالم او غیر عالم پیر په اړه باندې فرمایي:

| | |
|---|---|
| صاحب دلے بہ مدرسہ آمد ز خانقاہ | بشکست عہدِ صحبتِ اہلِ طریق را |
| گفتم میانِ عالم وعابد چہ فرق بود | کہ توکردی اختیار ازاں این فریق را |
| گفت او گلیم خویش بیرون می برد ز موج | واین جہد می کند کہ بگیرد غریق را |



١٢ ربیع الثاني ١٤١٨هـ

## بَابُ فَضْلِ الْفُقَرَاءِ وَمَا كَانَ مِنْ عَيْشِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

## د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د معاشي ژوند او د فقيرانو د فضيلت بيان

فقرآء د فقير جمع ده. د فقير معنی د مفلس، محتاج او د غريب ده. فقير او مسکين دوه بيل بيل الفاظ دي. خو په دې کې بحث دی چې د دې الفاظو مفهوم هم بيل بيل دی يا يو دی؟ د ځينو علماؤ خيال دی چې دا دواړه مترادف دي. د دواړو معنی يو ده. د ځينو نورو علماؤ خيال دی چې د دواړو معنې بيلې بيلې دي. يعنې فقير هغه ته وايي چې د هغه سره څه مال وی خو د نصاب نه کم وي او مسکين هغه وي چې د هغه سره هيڅ هم نوي. ځينو علماؤ د دې عَکس ليکلی دی چې مسکين هغه وي چې د هغه سره څه مال وي، بلکه ښځنکه چې په قرآن کريم کې دي (أَمَّا السَّفِينَةُ فَكَانَتْ لِمَسٰكِينَ) (الکهف: ٧٩) نو دلته د مسکينان د کشتۍ مالکان وګرځولی شو. او فقير هغه وي چې د هغه سره هيڅ هم نوي. ځينو علماؤ د فقير او مسکين لپاره يو قانون بيان کړيدی هغه دا چې چيرته فقير او مسکين يو ځای ذکر وي نو د دواړې معنی بيله بيله ده. او چيرته چې دواړه بيل بيل ذکر شي نو د ترادف په توګه باندې د دواړو يو مفهوم به اخستل کيږي. ضابطه دا ده: **الفقير والمسكين اذا اجتمعا افترقا واذا افترقا اجتمعا.** د فقيرانو د فضيلت مطلب دا دی چې هغوې ته په فقر او ولږه باندې کوم اجر او ثواب ورکولی کيږي هغه ځومره لويې دی. او په قيامت کې به فقيرانو ته ځومره غټې درجې ورکولی کيږي.

اوس په دې کې بحث دی چې آيا فقر او فاقه افضله ده او که غِنا او مالدارې افضله ده. د ځينو علماؤ په نزد باندې غنا او مالدارې افضله ده. ځکه چې په دې کې عبادت په آرام سره کيږي. او د دېنه غيره صدقات او داسې نورو ذريعو سره غټې درجې کمل کيدلی شي. خو د عام علماؤ او د صوفياو په نزد باندې فقر او فاقه د غِنا نه مطلقًا افضله ده. فريق اول د حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دې روايت او واقعې نه استدلال کړيدی چې په هغې کې فقيرانو صحابؤ د نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې ته د مالدارو د درجو ذکر وکړو چې هغوې عبادت هم کوي او مالداره دي، خرچ هم کوي. په دې باندې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فقيرانو ته د څو تسبيحاتو وظيفه وښودله چې په دې سره به تاسو د غنيانو نه مخکې شئ. کله چې مالدارو ته معلومه شوه نو هغوې هم دا وظيفه ويل شروع کړل. فقيرانو نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته شکايت وکړو نو نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې: ذلک فضل الله يؤتيه من يشآء. دا د دې خبرې دليل دی چې د مالدارو مقام وچت دی. خو جمهور فرمايي چې د فقر او ولږې ژوند ټولو انبياؤ اختيار کړی دی. او د الله تعالی نه يې دا غوختلی دی. معلومه شوه چې دا افضل دی. نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: **الفقر فخري.**

په دې موضوع باندې باباسعدی رحمه الله په ګلستان کې يو اوږد بحث کړيدی. او د يو عالم سره يې

اوږده مناظره کړیده. باباسعدی خپله د غِنا د افضل کیدلو قائل ؤ. او د هغه مقابل عالم د فقر او ولږې قائل ؤ. د دواړو بحث ډیرشو. نو دواړه د ښار قاضي ته لاړل. هغه داسې فیصله واوروله چې د غِنا او نقر بیل بیل ځایونه دي. په څه موقعو کې فقر افضل دی او په څه موقعو کې غِنا افضله ده. ځی بحث مکوی. او مه یو بل ذلیله کوی. وس دا خبره چې نبی کریم صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ فقر او ولږه څنګه وه نو علماء لیکي چې د نبی صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ فقر شاهانه ؤ. عاجزانه نه ؤ. دغه فقر اختیاري ؤ. اضطراري نه ؤ. دلته په دې خبره هم پوهیدل پکار دي چې نبی کریم صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ د خپل ځان لپاره او د خپل اهل بیت لپاره عزیمت باندې بناء یو امتیازې د فقیرۍ ژوندې خپل کړی ؤ. او عام امت ته یې دا اختیار ورکړی ؤ چې هغوی د فراختیا ژوندې په جائزحدودو کې دننه خپلولی شي. **الحمد لله لاضيق ولا حرجَ ففی الامر سعة.**

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّل

## د الله تعالی په نزد باندې د غربت فضیلت

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱﴾ | عَنْ | أَبِي | هُرَيْرَةَ | قَالَ: | قَالَ رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: «رُبَّ |

حضرت ابو هریره رَضِیَ اللہُ عَنْہُ فرمایي چې رسول الله صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ وفرمایل: ډیر خلک داسې دي چې هغوی (په ظاهره خو)

| أَشْعَثَ | مَدْفُوعٍ | بِالْأَبْوَابِ |
|---|---|---|

بیر ایختان او په خرپړ په نظر راځي. چې هغوی د دروازو نه ټیله (دیکه) کولی شي. خو (هغوی د خدای په نزد باندې داسې

| لَوْ | أَقْسَمَ | عَلَى | اللهِ | لَأَبَرَّهُ | » | . | رَوَاهُ | مُسلم [1] |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

وچت مقام لري چې) که هغوی د الله تعالی په بهروسه باندې قسم وکړي نو الله تعالی به هغه قسم یقینًا پورا کوي

**توضیح: مدفوع: اشعث:** بیر ایختانو ته وایي. او اغبر: په خاورو ککړ بدن ته وایي. او **مدفوع بالابواب** مطلب دا دی چې هغه سړی داسې ګمنام او لاچاره فقیر وي که د چا د کور په دروازه کې ودریږي نو هغه دهغه ځای نه زغلولی شي او د هغه هیڅ قدر او قیمت نشي کیدلی. نه په عام محفلونو او مجلسونو کې دهغه د پوښتنې کولو شوک وي. خلاصه دا چې د دنیا د خلکو په نزد باندې هغه د ټولو نه سپک او د ټولو نه ډیر غریب وي. خو د الله تعالی په نزد باندې هغه دومره معزز وي چې که په الله تعالی باندې اعتماد کولو سره هغه دا قسم وکړي چې د الله تعالی په ذات قسم! الله تعالی به دا کار کوي نو الله تعالی به د هغه د قسم لحاظ کولو باندې د هغه قسم ربښتیا ښکاره کړي. دا د دغه سړي غټ شان دی. معلومه شوه چې فقر او ولږه او غریبي د الله تعالی په نزد باندې ډیره عزتمنده ده. (مرقات ۹/۸۳)

---

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۲۴ رقم الحديث (۲۶۲۲-۱۳۸)

## د ضعيف دوجې نه الله تعالى په نورو باندې خورې

﴿۲﴾ وَعَنْ مُصعب بن سعدٍ قَالَ: رَأَى سَعْدٌ
حضرت مصعب بن سعد (تابعی) فرمایې چې (زما پلار) حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل ځان په اړه باندې دا گمان
أَنَّ لَهُ فَضْلًا عَلَى مَنْ دُونَهُ فَقَالَ
وکړو چې دا دهغه سړي نه افضل دی کوم چې د ده کمزوری دی. نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: تا ته (د دین د دشمنانو
رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «هَلْ تُنْصَرُونَ
په مقابله کې) مرسته او مدد او رزق د کومو خلکو په وجې باندې درکولی کیږي؟ هم د دوې په وجې باندې
وَتُرْزَقُونَ إِلَّا بِضُعَفَائِكُمْ؟». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1]
چې کمزورې او ضعیفه او غریب او لاچاره دي.

**توضيح: رأى سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ:** حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبی اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماما ؤ. د شان والا صحابی ؤ. د عراق فاتح ؤ. او د ډیر ښایسته ښویونو مالک ؤ. مثلًا اعلیٰ درجې مړنی ؤ. فیاض ؤ، د اعلیٰ شرافت خاوند ؤ. د هغه په ذهن کې دا خبره راغله چې کوم خلک زما په شان د ښونه او خصوصیتونه نه لري. دهغوې په مقابله کې د خدمت په حوالې سره د اسلام او د مسلمانانو ډیر خدمت کوم. لهذا اسلام لپاره زما شتون ډیر فائده مند دی. گویا نور گمنام شان غریب مسلمانان زما په وجې باندې پاتې دي. شاید حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په ژبه سره به ددې اظهار کړی وي. ددې په جواب کې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې دا خیال مکوه چې د دغه فقیرانو مسکینانو او درویشانو په وجه باندې ته خورې ځکې او د ښمن باندې غالب کیږې. لهذا دا سپک مه گڼه: (مرقات ۹/۸۴) گویا:

اس دور میں کچھ خاک نشینوں کی بدولت — باقی اسلام کی عظمت کی نشان ہے

## جنت د مسکینانو مسکن دی

﴿۳﴾ وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:
او حضرت اسامه بن زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایې چې (یو ورځ) رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې زه (د معراج په شپه یا په خوب
«قُمْتُ عَلَى بَابِ الْجَنَّةِ
کې یا په حالت د کشف کې) د جنت په دروازه و دریدلم (ما و کتل چې) کوم خلک جنت ته داخل شو په هغوې

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۸۸ رقم الحديث ۲۸۹۶، واحمد في المسند ۱۷۳۱.

| فَكَانَ عَامَّةُ مَنْ دَخَلَهَا الْمَسَاكِينَ وَأَصْحَابُ الْجَدِّ مَحْبُوسُونَ غَيْرَ أَنَّ أَصْحَابَ النَّارِ |
|---|
| ډېره شمېره د غريبانانو ده. او مالداران د قيامت په ميدان کې ايسار کړى شوېدي. البته اصحاب نار يعنې د کافرانو |
| قَدْ أُمِرَ بِهِمْ إِلَى النَّارِ وَقُمْتُ عَلَى بَابِ النَّارِ فَإِذَا |
| دوزخ ته د بوتللو حکم ورکړى شوېدى. او کله چې زه د دوزخ دروازې باندې ودرېدلم نو مې کتل چې کوم |
| عَامَّةُ مَنْ دَخَلَهَا النِّسَاءُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1] |
| خلک دوزخ ته ګوزار کړى شو په هغوې کې ډېره شمېره د ښځو ده. |

**توضيح: قمت:** يعنې ما چې کله چې د جنت په دروازه کې ودرېدلو باندې د ننه وکتل نو اکثر ننوتونکې غريبانان، لاچاره او مسکينان ؤ. شايد دا حالت نبي کريم ﷺ د معراج په شپه باندې کتلى ؤ. يا يې په کشف کې کتلى ؤ يا يې په خوب کې ليدلى ؤ. په دې کې نبي ﷺ دا هم وليدل چې کافرانو دوزخ اړخ ته روان کړى شو او مالدار مسلمانان د حساب کتاب ورکولو لپاره ودرولى شوي ؤ. او دوزخ ته چې کله نبي ﷺ وکتل نو اکثر پکې ښځې وې ځکه چې ښځې د خاوندانو ناشکرې کوي. او خپل مېنځ کې لعن طعن کوى. غيبت او چغلې کې وخت تېروي. شايد په ابتداء کې په دوزخ کې ډېرې وي. سزا خوړلو نه وروسته به جنت کې بيا ډېرې وي. يا ځو مره چې دي دا شمېره هم ډېره وه. راتلونکې حديث نمبر ۴ کې هم دا مضمون بيان کړېدېش دى. **الجد:** مال ته جد وويلى شو. او **اصحاب الجد**: مالدار خلک دي. (مرقات ۹/۸۴)

## په دوزخ کې به ښځې ډېرې وي

| ﴿۴﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «اطَّلَعْتُ فِي الْجَنَّةِ |
|---|
| او حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايې چې رسول الله ﷺ وفرمايل: ما جنت ته په ورښکاره کېدلو سره وکتل نو په |
| فَرَأَيْتُ أَكْثَرَ أَهْلِهَا الْفُقَرَاءَ. وَاطَّلَعْتُ فِي النَّارِ |
| هغې کې ډېره شمېره د غريبانانو او لاچاره خلکو په نظر راتلله او دوزخ ته مې په ورښکاره کېدلو سره وکتل |
| فَرَأَيْتُ أَكْثَرَ أَهْلِهَا النِّسَاءَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[2] |
| نو په هغې کې اکثر ښځې په نظر راتللې. |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۸۸ رقم الحديث ۲۸۹۶ وأحمد في المسند ۱/۱۷۳.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۴۱۵ رقم الحديث ۶۵۴۶ ومسلم في صحيحه ۲۰۹۱ رقم الحديث (۲۷۳۷-۹۴)

## فقيران او مسكينان به جنت ته اول ځي

| ﴿۵﴾وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ فُقَرَاءَ |
|---|
| او حضرت عبدالله بن عمرو رَضِىَاللّٰهُعَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّىٰاللّٰهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ و فرمايل: فقيران مهاجرين به |
| الْمُهَاجِرِينَ يَسْبِقُونَ الْأَغْنِيَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَى الْجَنَّةِ بِأَرْبَعِينَ خَرِيفًا». [1] |
| د قيامت په ورځ د مالدارو نه څلويښت كاله مخكې جنت ته ننوځي. |

**توضيح**: خريفًا: خريف د منې (خزان) موسم ته وايي. په كال كې خو د منې موسم يو ځل راځي لهذا د دې نه كال هم مراد اخستلى شي. دلته كال مراد دى. مطلب دا دى چې په مهاجرينو كې كوم فقيران دي هغوى به د مالدارانو نه څلويښت كاله مخكې جنت ته ځي.

**سوال**: دلته دا اعتراض دى چې په دې حديث كې او په راتلونكې فصل ثانى كې حديث نمبر ۱۳ كې واضح تعارض دى. ځكه چې هلته پنځه سوه كاله مخكې د تللو ذكر دى؟

**جواب**: د دې سوال اول جواب دا دى چې په حديث كې تعيين او تحديد بيانول مقصود ندي. بلكې تكثير بيانول دي. نو په څلويښت كاله سره هم ډيروالى بيانول مقصود دى او په پنځه سوه كاله سره هم ډيروالى بيانول مطلب دى. يعنې ډيره زمانه مخكې به ځي.

**دويم جواب**: دا دى چې دلته كوم حديث د عبدالله بن عمرو رَضِىَاللّٰهُعَنْهُ نه منقول دى ، د دېنه هغه فقيران مراد دي چې هغه د مهاجرينو نه علاوه وي. دهغوې لپاره څلويښت كالو ذكر دى. او د فصل ثانى اولنى حديث كوم چې ابو هريره رَضِىَاللّٰهُعَنْهُ منقول دى، هلته فقيرانو نه مهاجرين فقيران مراد دي. چې هغه به پنځه سوه كاله مخكې جنت ته ځي.

**دريم جواب**: دا دى چې خپله په دې فقيرانو كې فرق دى. څلويښت كالو والا فقيران هغه دي چې هغوې مجبورًا فقيران دى، دنيا پريخودونكې زاهدان ندي بلكې جبرې فقيران دي.او پنځه سوه كاله مخكې تلونكې هغه فقيران دي چې هغوې دنيا پريخودونكې، زاهدان او متوكلين دي. ګويا اول قسم د نيا سره د رغبت لرلو سره فقيران دي. او دويم قسم بې رغبته فقيران دي. بهرحال مالداره به وروسته ځكه ځي چې په دوې باندې به د ټكي ټكي حساب وركول وي. او فقير او درويش به نيغ تيريږي. (مرقات ۹/۹۶)

درویش خدا مست نہ شرقی ہے نہ غربی　　　گھر اس کا نہ دلی نہ صفاہان نہ سمرقند

## د غريب او مالدار تول

| ﴿۶﴾ وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ: مَرَّ رَجُلٌ عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| او حضرت سهل بن سعد رَضِىَاللّٰهُعَنْهُ فرمايي چې (يوه ورځ) د رسول الله صَلَّىٰاللّٰهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ په مخه باندې يو سړى تيرشو نو |

---

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۸۵ رقم الحديث (۲۹۷۹-۳۷) وابن ماجه في السنن ۲/۱۳۸۱ رقم الحديث ۴۱۲۳.

فَقَالَ لِرَجُلٍ عِنْدَهُ جَالِسٍ: «مَا رَأْيُكَ فِي هَذَا؟»
نبی ﷺ خپلې خواته ناستي يو سړي نه پوښتنه وکړه چې دا کوم سړی تير شو، د ده په اړه باندې ستا څه خيال دی. يعنې دا

فَقَالَ رَجُلٌ مِنْ أَشْرَافِ النَّاسِ: هَذَا وَاللهِ
څه ښه سړی دی يا بد؟ هغه سړي جواب ورکړو چې دا سړی ډير عزتمند او ډير شريفو خلکو کې دی. په خدای

حَرِيٌّ إِنْ خَطَبَ أَنْ يُنْكَحَ
قسم چې د دې سړي حيثيت دا دی که کوم مې ښځې ته د نکاح پيغام ورو ليږي، نو د ده نکاح کيږي. او که د

وَإِنْ شَفَعَ أَنْ يُشَفَّعَ. قَالَ: فَسَكَتَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
چا سفارش وکړي نو د ده سفارش به و منلی شي. راوي حضرت سهل رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ

ثُمَّ مر رَجُلٌ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:
(دا جواب اوريدو سره) چپ شو، پديکې بل سړی په مخه تير شو نو نبی ﷺ (هغه ته په کتلو سره) خپلې خواته

«مَا رَأْيُكَ فِي هَذَا؟» فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ
ناست سړي نه پوښتنه وکړه چې ښه د دې سړي په اړه ستا څه خيال دی؟ هغه جواب ورکړو چې يا رسول الله ﷺ!

هَذَا رَجُلٌ مِنْ فُقَرَاءِ الْمُسْلِمِينَ هَذَا حَرِيٌّ إِنْ خَطَبَ
دا سړی خو په لاچاره غريبانانو مسلمانانو کې دی. د دې حيثيت دا دی که دا چا ته د نکاح پيغام وليږي نو د

أَنْ لَا يُنْكَحَ. وَإِنْ شَفَعَ أَنْ لَا يُشَفَّعَ. وَإِنْ قَالَ
ده سره څوک نکاح ونکړي. که د چا سفارش وکړي نو د دې سفارش دې قبول نوي او که څه خبره وکړي

أَنْ لَا يُسْمَعَ لِقَوْلِهِ. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «هَذَا خَيْرٌ
نو د ده هغه خبرې اوريدلو ته څوک تيار نوي. نبی کريم ﷺ و فرمايل: دا سړی د هغه سړي په

مِنْ مِلْءِ الْأَرْضِ مِثْلَ هَذَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1]
شان خلکو باندې ډکې زمکې نه غوره دی.

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۲۷۳ رقم الحديث ۶۴۴۷ وابن ماجه في السنن ۲/۱۳۷۹ رقم الحديث ۴۱۲۰.

۱۳ربیع الثاني ۱٤۱۸هـ

## د نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عملي ژوند

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: مَا شَبِعَ آل مُحَمَّد من خبز الشَّعِيرِ يَوْمَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ |
| او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایي چې داسې کله هم ندي شوي چې د محمّد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اهل بیت دوه ورزې پرله پسې |
| حَتَّى قُبِضَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ". مُتَّفق عَلَيْهِ[1] |
| د وربشو ډوډۍ باندې خيټه ډکه کړې وي (چیرته دا چې د غنمو ډوډۍ نه) تر دې چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دنیا نه لاړو. |

**توضیح**: آل محمد: یعنې د غنمو خبره پریده ، د وربشو په ډوډۍ باندې هم دوه ورځې پرله پسې د نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کور د خلکو خیټه نده ډکه شوي.که یوه ورځ خوراک ؤ نو به بله ورځ ندی ترلاسه شوی.وس دلته پوښتنه دا ده چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ خو په آخرې عمر کې په ډیرو فتوحاتو سره په حال آسوده شوي ؤ، بیا دا ولې ښکه وي؟ د دې جواب دا دی چې د نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فقر اختیاري ؤ. په آخرې وخت کې هم نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د دنیا نه فائده نده اخیستې او ولې یې تیري کړې، اګر که سهولت شوی ؤ. دلته دا خبره یادساتې چې دا معیار نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپل ځان لپاره او خپل اهل وعیال لپاره جوړ کړی ؤ، د عام امت لپاره دا معیار نه ؤ. (مرقات۹/۸۹)

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَن سعيد المَقْبُرِي عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ: |
| او حضرت سعید مقبری رحمه الله (تابعی) د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت کوي چې (یوه ورځ) |
| أَنَّهُ مَرَّ بِقَوْمٍ بَيْنَ أَيْدِيهِمْ شَاةٌ مَصْلِيَّةٌ |
| حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څه کسانو په مخه باندې تیر شو. او د هغوې مخې ته وریته کړی شوي بیزه پرته وه. |
| فَدَعَوْهُ فَأَبَى أَنْ يَأْكُلَ وَقَالَ: خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| هغوې حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم راوغوختلو خو هغه انکار وکړو او وې فرمایل چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې دنیا نه لاړو، |
| وَلَمْ يَشْبَعْ مِنْ خُبْزِ |
| او کله یې هم د وربشو په ډوډۍ باندې خیټه نوه مړه کړې.لهذا ښکه کیدلی شي چې زه د وریته شوې بیزې په شان |
| الشَّعِيرِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[2] |
| مزیدار خوراک باندې خپله خیټه ډکه کړم.او حال دا چې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته په مړه خیټه د وربشو ډوډۍ هم نه وه. |

---

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۹/۵٤۹ رقم الحديث ۵٤۱۶ ومسلم في صحيحه ٤/۲۲۸۱ رقم الحديث (۲۹۷۰-۲۲)

[2] اخرجه البخاري في صحيحه ۹/۵٤۹ رقم الحديث ۵٤۱٤.

**توضيح**: **مَصْلِيَّةٌ**: دا لفظ د **مَرْمِيَةٌ** **مجهلية** په وزن باندې دی. وریته شوې ېیزې ته وایې. (مرقات ۹/۹۰)

## نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قرض هم اخستی دی

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ أَنَّهُ مَشَى إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِخُبْزِ شَعِيرٍ |
| او د حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روایت دی چې هغه د نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې د وربشو ډودۍ او داسې وازګه |
| وَ إِهَالَةٍ سَنِخَةٍ وَ لَقَدْ |
| راوړه چې هغه د ډیرو ورځو د ساتلو په وجه باندې بدبويه شوې وه. دغه شان (حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا هم) |
| رَهَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دِرْعًا لَهُ بِالْمَدِينَةِ عِنْدَ يَهُودِيٍّ |
| بیان کړل چې نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (يو ځل) خپله زغره مدينه کې د یو یهودي سره ګروه کړلو باندې د خپل اهل بيت لپاره |
| وَأَخَذَ مِنْهُ شَعِيرًا لِأَهْلِهِ وَلَقَدْ سَمِعْتُهُ |
| وربشې واخستلې. حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روايت کونکې دا بيان هم دی چې ما د حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ |
| يَقُولُ: «مَا أَمْسَى عِنْدَ آلِ مُحَمَّدٍ صَاعُ بُرٍّ |
| دا هم اوريدلي دي چې د محمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اهل بيت يو مابنام هم داسې نه ؤ چې په هغې کې د هغوې |
| وَلَا صَاعُ حَبٍّ وَ إِنَّ عِنْدَهُ لَتِسْعَ نِسْوَةٍ » . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ [1] |
| سره يو صاع غنم يا څه غله وي. او حال دا چې د نبی صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نهه بيبياني وي. (روايت کړې دې بخاری) |

**توضيح**: **اهالة سنخة**: **اهالة**: وازګې ته وايې. که هغه کلکه وي او که مائع وي. دغه شان د ګډې دلم غوښنه او تيل هم مراد اخستل کيدلی شي. ملا علی قاری ليکلي دي: كلّ دهن يؤتدم به يعنی هر هغه تيل چې هغه د ترکارۍ په توګه باندې استعماليدلی شي.

**سنخة**: مطلب دا دی چې په هغې کې بدلون راغلی وي. تر ډير وخته پورې اګدلو په وجه باندې دهغې بويې کې بدلون راغلی وي. ګويا لږ شان بدبويې محسوسيدله. دغه قِسم وازګي وغيره عام د اطرافو خلک خوري. دا خوسا شوي غوښنه نوي، فقط ډير وخته پورې اګدلو سره يو قِسم بدبويې پيدا شي.

**رهن درعًا**: نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا معامله د يهودې سره وکړه. نو شايد په مسلمانانو کې به څوک نه ترلاسه شوی. بيا د بيان جواز لپاره يې يهودې اختيار کړو. صاع: دلته يوه پوښتنه پيدا کيږي چې

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۴/۳۰۲ رقم الحديث ۲۰۶۹ وابن ماجه في السنن ۱۳۸۹ رقم الحديث ۴۱۴۸.

نبی کریم ﷺ خو به خپلو بیبیانو ته د ټول کال خرچه د اول نه ورکوله. لکه څنګه چې په نورو احادیثو کې ذکر ده . دلته یې څنګه وفرمایل چې یو صاع غنم یا غله به نوه؟ د دې جواب دا دی چې دا حالت په ابتداء د اسلام کې ؤ . که په مکه کې ؤ یا مدینه کېؤ . بیا کله چې فراختیا راغله نو بیا به نبی ﷺ د ټول کال خرچه ورکوله. څه ازواجو قبوله کړه او څه ولږه اختیار کړه. دا جواب هم کیدلی شي چې دلته د آل لفظ مقحم او زائد وي. مطلب دا چې دا معامله د محمد ﷺ خپله وه چې د نبی ﷺ سره به هیڅ نه ؤ ، بهرحال دا فقر اختیاري ؤ . (مرقات۹/۹۰)

## د دنیا ډیرول د کافرو عادت دی

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَ عَن عمر قَالَ : دَخَلْتُ عَلَى رَسُولِ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| او حضرت عمر فاروق رضي الله عنه فرمایي چې (یوه ورځ) زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم نو ومې کتل |
| فَإِذَا هُوَ مُضْطَجِعٌ عَلَى رِمَالِ حَصِيرٍ لَيْسَ بَيْنَهُ |
| چې نبی کریم ﷺ د کهجورو د پټو په اوږدې باندې پروت دی. د نبی ﷺ د بدن مبارک او اوږدې |
| وَ بَيْنَهُ فِرَاشٌ قَدْ أَثَّرَ الرِّمَالُ بِجَنْبِهِ |
| ترمینځ څه بستره نوه. چې د هغې په وجه باندې اوږدې د نبی ﷺ په اړخ مبارک باندې خاپونه جوړ کړي ؤ. |
| مُتَّكِئًا عَلَى وِسَادَةٍ مِنْ أَدَمٍ حَشْوُهَا لِيفٌ. |
| د غشان نبی ﷺ چې د سر د لاندې کوم بالخت ایخی ؤ. هغه د څرمنې ؤ او په هغې کې به د کهجورو پاڼې ډکې کړې وې. |
| قُلْتُ: يَا رَسُولَ الله: ادْعُ اللَّهَ فَلْيُوَسِّعْ عَلَى أُمَّتِكَ |
| ما وویل چې یا رسول الله ﷺ! د الله تعالی نه دعا وغواړئ نکوي چې هغه ستا امت ته مالي فراختیا او وسعت ورکړي؟ |
| فَإِنَّ فَارِسَ وَالرُّومَ قَدْ وُسِّعَ عَلَيْهِمْ وَهُمْ لَا يَعْبُدُونَ اللهَ. |
| فارس او د روم خلکو ته ډومره فراختیا ورکړې شوېده. او حال دا دی چې هغوی د الله تعالی بندګي نکوي. |
| فَقَالَ: «أَوَ فِي هَذَا أَنْتَ يَا ابْنَ الْخطاب؟ |
| نبی علیه السلام وفرمایل: ابن خطاب! دا ته څه وایې، آیا ته وس هم په دغه خای یې (د کوم ځای نه چې ته په شروع کې راغلی وې) |
| أُولئكَ قوم عجلت لَهُم طيبتآتهم فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا » |
| دا هغه خلک دي چې هغوی ته ټول نعمتونه او ښیګړې بس د هغوی په دنیاوي ژوند کې ورکړې شوېدي. |

| |
|---|
| وَفِي رِوَايَةٍ: «أَمَا تَرْضَى أَنْ تَكُونَ لَهُمُ الدُّنْيَا |
| او په يو روايت کې دا الفاظ دي چې آيا ته په دې باندې راضي او مطمئن نه يې چې هغوی ته دنيا ورکړی شي |
| وَلَنَا الْآخِرَةُ؟» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1] |
| او مونږ ته آخرت راکړی شي. |

**توضيح**: رمال حصير: رمال کې په را باندې کسره او ضمه دواړه جائز دي. دا جمع ده . د دې مفرد رميل دی. چې د مرمول په معنیٰ دی. او مرمول منسوج په معنې دی او منسوج ترجمه ودل شوي ده . يعنې ودل شوی پړی. بيا رمال مضاف دی حصير ته . او حصير انډيري (پوزکې) ته وايي. **اير مال من حصير** . انډيری چې کله وودلی شي نو په هغې کې کله کله رسۍ استعماليږي. کله فقط ډکې يو ځاې کولی شي. د ډکو نه ودل شوی انډيری څه نرم او ښه وي، خو د رسو نه ودل شوی انډيری سخت وي. ځکه چې دا ودل شوي رسې موړه موړه وي. چې هغه په بدن کې نخلي. او په بدن باندې نښې جوړوي. دلته د دغه شان انډيري نقشه پيش کړی شويده چې د ودل شوؤ پړو انډيری ؤ او په هغې باندې څه بستر نه ؤ. چې د هغې په وجه باندې په بدن نښې جوړې شوې وي. (مرقات ۹/۹۱)

**حشوها**: يعنې په بالخت کې چې څه ډک کړی شوي ؤ هغه څه مالوچ يا نرم شی نه ؤ بلکې په بالخت کې دننه د کهجورو پاڼې ډکې کړی شوي وي. ليف: د کهجورو پاڼو ته وايي. (مرقات ۹/۹۲) **انت يا ابن الخطاب**: يعنې دا پوښتنه خو د يو کمې مرتبې والا سړې لپاره هم کول پکار نه ؤ، د خطاب ځويه (رضی الله عنه) ستا شان خو اوچت دی. دا پوښتنه کول پکار نه ؤ. کروړونو درود او کروړونو سلام دې په داسې عظيم پيغمبر باندې!

سلام اس پر کہ جس نے بادشاہی میں فقیری کی

## دا صحاب صفه د طالبانو غريبي

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: لَقَدْ رَأَيْتُ سَبْعِينَ مِنْ أَصْحَابِ الصُّفَّةِ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما په اصحاب صفه کې اويا (۷۰) کسان وليدل چې په هغوی کې يو سړی |
| مَا مِنْهُمْ رَجُلٌ عَلَيْهِ رِدَاءٌ إِمَّا إِزَارٌ وَإِمَّا كِسَاءٌ قَدْ رَبَطُوا فِي أَعْنَاقِهِمْ |
| داسې نه ؤ چې د هغه څه سره څه څادر وي يا خو به تهبند ؤ يا به کمبل وه. چې هغه به يې خپلو څټونو کې اچوله |
| فَمِنْهَا مَا يَبْلُغُ نِصْفَ السَّاقَيْنِ وَمِنْهَا |
| په دې تهبند او کمبلو کې خو ځينې داسې وي چې هغه به فقط د پونډو ترنيمې پورې راتللي او ځينې داسې وي |

مَا يَبْلُغُ الْكَعْبَيْنِ فَيَجْمَعُهُ بِيَدِهِ

چې هغه به تر دواړو ګيټګو پورې رسيدلې. نو كله چې به يو سړى سجدې ته تللو نو هغه به د دې ويرې نه چې هسې

كَرَاهِيَةً أَن ترى عَوْرَته ". رَوَاهُ الْبُخَارِيّ(١)

نه د هغه ستر (عورت) بر سيرته شي خپل د غه تهبند يا كمبل به يې په لاس سره نيولې وه.

## دنياداري په لحاظ سره د ځان نه كم باندې نظر ساته

﴿۱۲﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا نَظَرَ أَحَدُكُمْ

او حضرت ابو هريره رضي الله عنه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: په تاسو كې چې يو څوك داسې سړى ووينې

إِلَى مَنْ فُضِّلَ عَلَيْهِ فِي الْمَالِ وَالْخَلْقِ

چې هغه د ده نه ډير مالدار او د ده نه ډير ښايسته شكل او صورت والا وي نو هغه لپاره پكار دي چې هغه سړي ته

فَلْيَنْظُرْ إِلَى مَنْ هُوَ أَسْفَلَ مِنْهُ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ

وګوري چې هغه د ده نه د كمې درجې وي. (بخاري او مسلم) او د مسلم په يو روايت كې دا الفاظ دي چې

قَالَ: «انْظُرُوا إِلَى مَنْ هُوَ أَسْفَلَ مِنْكُمْ

نبي صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ته هغه سړي ته ګوره چې هغه ستا نه په مرتبه كې ډير كم وي. او هغه سړي ا رخ ته

وَلَا تَنْظُرُوا إِلَى من هُوَ قوقكم فَهُوَ أَجْدَرُ

مه ګوره چې هغه ستا نه په مرتبه كې لوېې وي. پس داسې كول به ستا لپاره ډير مناسب وي، دې لپاره چې

أَنْ لَا تَزْدَرُوا نِعْمَةَ اللهِ عَلَيْكُم(٢)

ته د خداى د هغه نعمت چې تا ته يې دركړيدى، سپك ونه ګڼې.

**توضيح**: اسفل منه: يعنې يو سړى د متوسط طبقې سره تعلق لري. د هغه نه د ډير مال والا هم شته دى او د كم مال والا هم شته. ده لپاره پكار دي چې كله د خپل ځان نه د غټ شان و شوكت والا وګوري نو په حرص او لالچ كې د هغه ستر كې دې ورته ټيغې كيدلو باندې واه واه ونكړي. بلكې د دنيا په اعتبار سره چې د هغه نه كوم خلك كم دي. هغوي ته دې وګوري او د خداى شكر دې ادا كړي، هو! خو د دين په حواله سره دې د ځان نه غټو ته وګوري ا ... ده ته د رسيدلو كوښښ دې وكړي. كه داسې نكوي نو خطره ده چې د الله تعالى

(١) اخرجه البخاري في صحيحه ١/٥٣٦ رقم الحديث ٢٢٢

د نعمت ناقدرې ونشي. ازرأ: د دې تحقير او سپكاوې او ناقدرې په معنى دى. (مرقات ۹/۹۵)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

﴿۱۳﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَدْخُلُ الْفُقَرَاءُ الْجَنَّةَ قَبْلَ

حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: جنت ته به غريبانان د مالدارو نه

الْأَغْنِيَاءِ بِخَمْسِمِائَةِ عَامٍ نِصْفِ يَوْمٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[1]

پنځه سوه كاله مخكې ننوځي. چې هغه د نيمې ورځ برابر ده.

﴿۱۴﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «اَللّٰهُمَّ أَحْيِنِي مِسْكِينًا

او د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دى چې نبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا دعاء وكړه: اى الله! ما مسكين ژوندى

وَأَمِتْنِي مِسْكِينًا وَاحْشُرْنِي فِي زُمْرَةِ الْمَسَاكِينِ»

وساتې، د مسكينى په حالت كې ما ته مرګ راكړې، او د مسكينانو په زمره (ډله) كې زما حشر وكړې.

فَقَالَتْ عَائِشَةُ: لِمَ يَا رَسُولَ اللهِ؟ قَالَ:

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وفرمايل چې يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! ته داسې دعاء ولې كوې؟ نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل:

«إِنَّهُمْ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ قَبْلَ أَغْنِيَائِهِمْ بِأَرْبَعِينَ خَرِيفًا يَا عَائِشَةُ

ځكه چې مسكينان به د مالدارو نه څلويښت كاله مخكې جنت ته ننوځي. ګوره عائشې! هيڅ مسكين د

لَا تَرُدِّي الْمِسْكِينَ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ يَا عَائِشَةُ

خپلې دروازې نه نااميده مه ليږه اګر كه هغه ته د وركولو لپاره ديو كهجورې ټكړا ولې نه وي. عائشه! (خپل زړه كې)

أَحِبِّي الْمَسَاكِينَ وَقَرِّبِيهِمْ

د مسكينانو سره مينه ساته او هغوى خپل (مجلسونو او محفلونو كې) نزدې كينوه. كه ته داسې كوې نو

فَإِنَّ اللهَ يُقَرِّبُكَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ الْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ»[2]

د قيامت به ورځ الله تعالى تا ځان ته رانژدې كړې. (روايت كړې دې ترمذى او بيهقى په شعب الايمان،

---

[1] أخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۹۹ رقم الحديث ۲۳۵۴ وابن ماجه ۲/۱۳۸۰ رقم الحديث ۴۱۲۲

و روی ابْنُ مَاجَهْ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ إِلَى قَوْلِهِ : « زمرة الْمَسَاكِين » [۱]

کښ) او په ابن ماجه کښ دا يت د ابو سعيد رضی الله عنه نه زمرة المساکين پورې نقل کړې دې

## د معاشرې کمزورې طبقه د برکت سبب دی

﴿۱۵﴾ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «ابْغُونِي

او حضرت ابو درداء رضی الله عنه نبی کريم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوي چې نبی صلی الله علیه وسلم وفرمايل: تاسو خلک

فِي ضُعَفَائِكُمْ فَإِنَّمَا تُرْزَقُونَ

ما په خپلو کمزورو خلکو کې ولټوئ ځکه چې تاسو ته رزق درکيدل يا يې دا وفرمايل چې تاسو ته د خپل

أَوْ تُنْصَرُونَ - بِضُعَفَائِكُمْ » . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ [۲]

دښمن په مقابله کې مرسته درکيدل د دې خلکو په وجه باندې ده . چې هغه په تاسو کې کمزورې دي.

**توضيح: ابغوني:** يعنې نبی کريم صلی الله علیه وسلم فرمايې چې تاسو ما د خپلې معاشرې په کمزور او لاچاره خلکو کې ولټوئ ، ما به دهغوې سره ومومئ، د دې جملې دوه مفهومه کيدلی شي. يو دا چې ما په مالدارانو او طاقتورو خلکو کې مه لټوئ بلکې زه د غريبانانو او کمزورو سره يم.لهذا تاسو د مالدارو د مجلسونو او ګڼون نه ځان وساتئ. دويم مفهوم دا دی چې که زما رضا او زما خوشحاليدل غواړئ نو غريب، ناداره او کمزورو خلکو مرسته وکړئ او دهغوې خوشحالې ترلاسه کړئ.(مرقات ۹/۹۹)

**اوتنصرون:** دلته د او لفظ د تنويع لپاره دی.په ځينو روايتونو کې واؤ دی.چې هغه د دې تائيد دی. خو بيا هم ممکنه ده چې دلته او د شک لپاره وي او د راوي شک وي چې نبی کريم صلی الله علیه وسلم کوم ارشاد فرمايلی ؤ.

**بضعفائکم:** يعنې الله تعالی د دې لاچارو او کمزورو خلکو په وجه باندې ميدان جنګ کې ستاسو مرسته کوي. او د دې کمزورو په وجه باندې تاسو ته روزي درکوي. ځکه چې دا په ظاهره باندې خو ساده خلک دي. خو په دوې کې دننه غټ د الله والا خلک وي . چې د هغوې په وجه باندې الله تعالی په عام انسانانو باندې رحمت او شفقت کوي. په راتلونکې حديث کې هم دا مضمون بيان کړی شويدی. (مرقات ۹/۹۹)

---

(۱)اخرجه ابن ماجه في ۲/۱۳۸۱ رقم الحديث ۴۱۲۶

(۲)اخرجه أبوداود في السنن ۳/۷۳ رقم الحديث ۲۵۹۴والترمذي في السنن ۴/۱۷۹ رقم الحديث ۱۷۰۲.

## نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به فقیران مهاجرین د فتح ذریعه جوړوله

﴿۱۶﴾ وَعَنْ أُمَيَّةَ بْنِ خَالِدِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بن أسيد عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَنَّهُ كَانَ

او حضرت امیه بن خالد بن عبد الله بن اسید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

يَسْتَفْتِحُ بِصَعَالِيكِ الْمُهَاجِرِينَ. رَوَاهُ فِي « شَرْحِ السنة »[1]

به د فتح تر لاسه کولو لپاره درخواست کولو نو د فقراء مهاجرینو په ذریعه سره به یې دعاء غوختله. (شرح السنة)

**توضیح:** صعالیك: دا د صعلوک جمع ده. څنګه چې عصافیر د عصفور جمع ده. د دینه فقیر او مسکین او کمزوری او لاچاره خلک مراد دي. ملاعلی قاري فرمایي چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به کله د کافرانو سره د جنګ به موقع باندې د الله تعالی نه د نصرت او غلبې دعاء کوله نو دا فقیران او مهاجرین به واسطه کول او د دې دعاګاني به یې په دښمن باندې د غلبې ذریعه جوړوله. ابن مالک رحمه الله فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به داسې دعا کوله: اَللّٰهم انصرنا على الاعداء بعبادك الفقرآء المهاجرين. د دې حدیث نه ضعیفو مهاجرینو غټ فضیلت ثابتیږي. (مرقات ۹/۱۰۰)

## د یو کافر او فاجر په خوشحالۍ پسې مه پسخیږه

﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تَغْبِطَنَّ فَاجِرًا بِنِعْمَةٍ

او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: یو کافر په دنیاوي مالونو سره د ک لیدلو باندې

فَإِنَّكَ لَا تَدْرِي مَا هُوَ لَاقٍ بَعْدَ

ورته مه پسخیږه ځکه چې ته نه پوهیږې، د چا لپاره چې مرګ او فنا نشته دی چې د مرګ نه وروسته ده ته څه

مَوْتِهِ إِنَّ لَهُ عِنْدَ اللهِ قَاتِلًا لَا يَمُوتُ».

پیښیدونکي دي او د فاجر لپاره د خدای په نزد یو داسې قاتل دی چې هغه د په مرګ نه فنا کیږي او د دې قاتل

يَعْنِي النَّارَ. رَوَاهُ فِي «شَرْحِ السّنة»[2]

نه د نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مراد اور دی.

**توضیح:** قاتلاً: یعنې وژونکی او قتلونکی داسې عذاب به وي چې هغه عذاب به نه خپله مړ کیږي او نه به فنا کیږي. د دې نه دوزخ مراد دی. د حدیث تعلیم دا دی چې د آخرت نه غافله فاسق، فاجر مالداره آسوده حالت او شان و

---

(۱) أخرجه البغوي في شرح السنة ۱۴/۲۶۴ رقم الحديث ۴۰۶۲.

(۲) أخرجه البغوي في شرح السنة ۴/۲۹۴ رقم الحديث ۴۱۰۳.

شوکت ته مه ګوره او مه هغې ته پسخيږه ځکه چې د هغه لپاره راتلونکي حالات ډير سخت دي. (مرقات ۹/۱۰۱)

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الدُّنْيَا سِجْنُ الْمُؤْمِنِ |
| او حضرت عبد الله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: دا دنيا د مؤمن لپاره محبس |
| وَ سَنَتُهُ وَ إِذَا فَارَقَ الدُّنْيَا فَارَقَ السجنَ و السنةَ ». رَوَاهُ فِي « شرح السّنة»[1] |
| او وچکالي ده. کله چې هغه مؤمن د دنيا نه رخصت شي نو محبس (قيد خانه) او وچکالی (قحط) نه خلاصی بيامومي. |

**توضيح**: يعنې د دنيا سخته لاره په پوکلو پوکلو سره تګ کول د مؤمن لپاره د محبس په منزله باندې دی. خو کله چې د نيا نه مؤمن لاړ شي نو د محبس نه خلاصيدلو باندې آرام او راحت ته ورسيږي. چا څه ښه ويلي دي:

کون کہتا ہے کہ مؤمن مر گیا قید سے چھوٹا وہ اپنے گھر گیا

## الله تعالى خپل خوښ بنده ګان د دنيا نه ليرې ساتي

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَن قَتَادَة بن النُّعْمَان أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِذا أحب الله عبدا |
| او حضرت قتادة ابن نعمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: کله چې الله تعالى يو بنده دوست |
| حماه الدُّنْيَا كَمَا يَظَلُّ أَحَدُكُمْ يَحْمِي سَقِيمَهُ الْمَاءَ» . رَوَاهُ أَحْمد وَالتِّرْمِذِيّ[2] |
| ساتي نو هغه د دنيا نه ساتي. څنګه چې په تاسو کې څوک خپل مريض د اوبو نه ساتي. |
| ﴿۲۰﴾ وَعَن مَحْمُود بن لبيد أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " اثْنَتَانِ |
| او د حضرت محمود بن لبيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: دوه شيان داسې دي |
| يَكْرَهُهُمَا ابْنُ آدَمَ: يَكْرَهُ الْمَوْتَ وَالْمَوْتُ خَيْرٌ لِلْمُؤْمِنِ مِنَ الْفِتْنَةِ |
| چې هغه ابن آدم نه خوښوي. انسان خو يو مرګ نه خوښوي او حال دا دی چې د مؤمن لپاره مرګ د فتنې نه |
| وَ يَكْرَهُ قِلَّةَ الْمَالِ وَ قلة المَال أقل لِلحساب " . رَوَاهُ أَحْمد[3] |
| بهتر دی. دويم د مال او دولت کموالی، او حال دا دی چې د مال کموالی د حساب د کموالي سبب دی. |

[1] اخرجه أحمد في المسند ۲/۱۹۷.

[2] أخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۳۲ رقم الحديث ۲۰۳۶. وأحمد في المسند ۵/۴۲۷.

[3] أخرجه أحمد في المسند ۵/۴۲۷

۱۵ ربیع الثاني ۱٤۱۸ھ

## د عشق مصطفی ﷺ تقاضا

﴿۲۱﴾وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مُغَفَّلٍ قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ:
او حضرت عبدالله بن مغفل رضي الله عنه فرمایي چې یو سړی د نبي کریم ﷺ په خدمت کې حاضر یدلو سره وویل:
"إِنِّي أُحِبُّكَ. قَالَ: «انْظُرْ مَا تَقُولُ». فَقَالَ: وَاللهِ
چې زه ستا سره مینه لرم! نبي کریم ﷺ دا و فرمایل: وګوره څه وایې؟ هغه بیا وویل چې په خدا قسم
إِنِّي لَأُحِبُّكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ. قَالَ: «إِنْ كُنْتَ صَادِقًا فَأَعِدَّ لِلْفَقْرِ تِجْفَافًا
زه ستا سره مینه لرم. او درې ځل یې دا جمله ادا کړه. نبي کریم ﷺ و فرمایل: که ریښتونې یې نو بیا د
لَلْفَقْرُ أَسرعُ إِلى من يحبُّني
فقر لپاره زغره جوړه کړه. ځکه چې کوم سړی زما سره مینه لري نو هغه ته فقر او مفلسي د اوبو د بهیدلو نه
من السَّيْل إِلَى مُنْتَهَاهُ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ قَالَ : هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ[1]
ژر ور رسیږي. چې هغه خپلې انتها ته ځي. (روایت کړې دې ترمذي او وائي چه دا حدیث حسن دې)

**توضیح: تجفافا:** د تجفاف په تا باندې کسره ده او جیم ساکن دی او فا باندې فتحه ده. دښمن سره د جنګ په دوران کې اس ته وسله اغوستل کیږي چې په هغې سره اس د دښمن د وار نه محفوظ وي. څنګه چې زغره د انسان بدن محفوظ ساتي. دغه شان یوه زغره وي چې هغه د اس بدن د دښمن د زخم (تپ) نه ساتي، دې آلې ته اردو کې پاکهر (پښتو کې زغره) وایي. دلته د تجفاف نه په مصیبتونو باندې صبر کول او مصیبتونه برداشت کول مراد دي. چې د عشق مصطفی تقاضا دا ده چې د دین مصطفی د پرمختګ او ساتنې لپاره هر قسم قرباني باندې صبر کول پکار دي. په دې کې فقر او ولږه هم شامله ده او د دښمن سره مقابله هم شامله ده. یعنې د مینې دعوی کولو سره د مصیبتونو برداشت کولو ته ملا وتړه. ځکه چې د نبي ﷺ سره د مینې ریښتونې دعوٰی کولو باندې هغه سړي اړخ ته مصیبتونه داسې په منډه راځي لکه څنګه زمکې ته چې تیز سیلاب راځي. د دې حدیث په رڼا کې چې کله مونږ بریلیانو حضراتو ته ګورو نو د هغوې د کتنې ژوند وایي چې هغوې د عشق مصطفی په دعوی کې دروغژن دي ځکه چې د ریښتونې عاشق چیغه خو دا وي: (مرقات ۹/۱۰۴)

سکھایا ہے ہمیں اے دوست طیبہ کے والی نے — کہ بوجھلوں سے ٹکرا کر اُبھرنا عین ایماں ہے
جہاں باطل مقابل ہو وہاں نوک سناں سے بھی — برائے دین اسلام رقص کرنا عین ایماں ہے

---

(1) أخرجه الترمذي في السنن ۴۹۸/۲ رقم الحديث ۲۳۵۰

## د الله په لاره کې نبي کریم ﷺ د ټولو نه ډېر تنګ کړی شویدی

﴿۲۲﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَقَدْ أُخِفْتُ فِي الله

او حضرت انس رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله ﷺ فرمایل: خدای په لاره کې چې زه څومره په ویره او خطرو

وَمَا يُخَافُ أَحَدٌ وَلَقَدْ أُوذِيتُ

کې اخته کړی شوم، دغه شان بل څوک په ویره او خطره کې ندی اخته کړی شوی. او د خدای په لاره کې څومره

فِي الله وَمَا يُؤْذَى أَحَدٌ وَلَقَدْ أَتَتْ عَلَيَّ

تکلیفونه ماته رارسولی شویدي. دغه شان تکلیفونه بل چاته ندي وررسولی شوي. بیشکه ما باندې پر له پسې

ثَلَاثُونَ مِنْ بَيْنِ لَيْلَةٍ وَيَوْمٍ وَمَا لِي وَلِبِلَالٍ طَعَامٌ

دېرش شپې او دېرش ورځې داسې تېرې شویدي چې په هغې کې زما او د بلال (رضی الله عنه) لپاره د خوراک

يَأْكُلُهُ ذُو كَبِدٍ إِلَّا شَيْءٌ

څکاک داسې څه سامان نه ؤ چې هغه کوم د زړه والا خوړلی وی. د هغه معمولي څیز نه غیره چې هغه به بلال په

يُوَارِيهِ إِبْطُ بِلَالٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ قَالَ: وَمَعْنَى هَذَا الْحَدِيثِ:

خپل بغل (ترخ) کې پټ ساتلی ؤ. ترمذي دا روایت نقل کړیدی او ویلي یې دي چې په دې حدیث کې

حِينَ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَارِبًا مِنْ مَكَّةَ

نبي ﷺ کوم صورت حال بیان کړیدی، ددې تعلق د هغه وخت سره دی کله چې نبي کریم ﷺ د مکې نه

وَمَعَهُ بِلَالٌ إِنَّمَا كَانَ مَعَ بِلَالٍ

په وتلو باندې مجبوره شو. او دغه وخت د نبي ﷺ سره حضرت بلال رضي الله عنه. دغه شان د

مِنَ الطَّعَامِ مَا يَحْمِلُ تحت إبطه.[1]

حضرت بلال رضي الله عنه سره د خوراک په شیانو کې فقط دومره ؤ چې هغه به ده په خپل بغل کې کلک نیولي ؤ.

**توضیح: هاربًا من مكة:** دا مکې نه د مدینې اړخ ته د هجرت واقعه نده، نه د طائف د سفر واقعه ده. بله کومه واقعه ده چې په هغې کې حضرت بلال رضي الله عنه ورسره ؤ. (مرقات ۹/۱۰۶)

---

[1] اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۵۶ رقم الحديث ۲۴۷۲ وابن ماجه في السنن ۱/۵۴ رقم الحديث ۱۵۱.

## نبي اکرم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خېټه پسې دوه کاڼي وتړل

﴿۲۳﴾ وَعَنْ أَبِي طَلْحَةَ قَالَ: شَكَوْنَا إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْجُوعَ فَرَفَعْنَا

او حضرت ابو طلحه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي چې مونږ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د ولږې شکایت وکړو او په خېټه

عَنْ بُطُونِنَا عَنْ حَجَرٍ حَجَرٍ فَرَفَعَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَطْنِهِ

خېټه پسې تړلی کاڼي مو ورته وښودلو. نبی کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپله خېټه رابرسیرته کړه نو په هغې

عَن حجرين. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَقَالَ: حَدِيث غَرِيب[1]

پسې دوه کاڼي تړلي ؤ. (روایت کړې دي ترمذی)

﴿۲۴﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّهُ أَصَابَهُمْ جُوعٌ فَأَعْطَاهُمْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ روایت دي چې کله فقیران صحابه د ولږې سختی پریشانه کړل نو نبی کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

تَمْرَةً تَمْرَةً. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[2]

هغوي ته یوه یوه کهجوره ورکړه.

## صابر او شاکر څوک دي؟

﴿۲۵﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "خَصْلَتَانِ

او حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه نه نقل کوي چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: دوه خصلتونه

مَنْ كَانَتَا فِيهِ كَتَبَهُ اللهُ شاكراً:

داسې دي چې هغه په کوم سړي کې وموندل شي. هغه الله تعالی صابر او شاکر کرځوي. یو دا چې کله دا سړی په

مَنْ نَظَرَ فِي دِينِهِ إِلَى مَنْ هُوَ فَوْقَهُ فَاقْتَدَى بِهِ

دیني معامله کې یو داسې سړی ویني چې هغه د ده نه غوره وي نو د هغه اقتداء وکړي. او دویم دا چې کله د

وَنَظَرَ فِي دُنْيَاهُ إِلَى مَنْ هُوَ دُونَهُ فَحَمِدَ اللهَ

خپلې دنیا په معامله کې هغه سړی ویني چې هغه د ده نه کم وي نو د الله تعالی حمد او ثناء وکړي او د هغه شکر

---

([1]) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۰۶ رقم الحديث ۲۳۷۱.

([2]) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۵۷ رقم الحديث ۲۴۷۴ وأخرجه ابن ماجه ۲/۱۳۹۲ رقم الحديث ۴۱۵۷.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عَلَى | مَا | فَضَّلَهُ | الله | عَلَيْهِ | كَتَبَهُ | الله | شَاكِرًا | صَابِرًا. |

ادا كړي چې هغه ده لره په دې سړي باندې فضيلت او غوره والي ورکړی دی. نو الله تعالی دا سړی صابر او شاکر

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَنْ | نَظَرَ | فِي | دِينِهِ | إِلَى | مَنْ | هُوَ |

گرځوي. او کوم سړی چې داسې، شو چې هغه کله یو داسې سړی ووینې چې هغه د ده د دین په اعتبار سره د ده نه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| دُونَهُ | وَنَظَرَ | فِي | دُنْيَاهُ | إِلَى |

کم وي (نو د ده ځان په عجب او تکبر کې اخته شي) او کله چې یو داسې سړی ووینې چې هغه د ده د دنیا

| | | | |
|---|---|---|---|
| مَنْ | هُوَ | فَوْقَهُ | فَأَسِفَ |

(يعنې جاه او مال) په اعتبار سره د ده نه ښه وي نو (نو د ده په ځان په پسخیدلو، او حسد او حرص او

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| عَلَى | مَا | فَاتَهُ | مِنْهُ | لَمْ | يَكْتُبْهُ | الله |

خواهش کې اخته شي) په هغه څه باندې غم او خفګان وکړي د کوم نه چې دا محرومه دی نو داسې

شَاكِرًا وَلَا صَابِرًا ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَذَكَرَ حَدِيثَ أَبِي سَعِيدٍ: «أَبْشِرُوا يَا مَعْشَرَ صَعَالِيكِ

سړی نه الله تعالی شاکر ګرځوي او نه صابر. (روایت کړې دې ترمذی او «أبشروا يا معشر صعاليك

الْمُهَاجِرِينَ» فِي بَابٍ بَعْدَ فَضَائِلِ الْقُرْآنِ[1]

المهاجرين» په هغه باب کې نقل شوې دې چه د فضائل قرآن نه پس دې

١٧ ربيع الثاني ١٤١٨هـ

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ

### فقر او ولږه باندې صبر کول غټ ثواب دی

﴿٢٦﴾ عَنْ أَبِي عبد الرَّحْمَن الحُبُلِيِّ قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ الله بْنَ عَمْرٍو وَسَأَلَهُ رَجُلٌ

حضرت ابو عبدالرحمن حبلی فرمایې چې ما د حضرت عبدالله بن عمرو بن عاص نه اوریدلي دي. چې یو سړي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قَالَ: | أَلَسْنَا | مِنْ | فُقَرَاءِ | الْمُهَاجِرِينَ؟ |

د هغه نه پوښتنه وکړه او وې ویل چې مونږ په هغه فقیرانو مهاجرینو کې نه یو د چا په اړه چې د ابشارت ورکړی

---

(1) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۷۴ رقم الحديث ۲۵۱۲ وابن ماجه في السنن ۱۳۸۷ رقم الحديث ۴۱۴۲.

فَقَالَ لَهُ عَبْدُ اللهِ

شویدی چې هغوی به د مالدارو نه مخکې جنت ته ځي؟ حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه سړي نه پوښتنه

أَلَكَ امْرَأَةٌ تَأْوِي إِلَيْهَا؟ قَالَ: نَعَمْ.

وکړه چې آیا ته د ښځې والا يې چې د هغې خوا ته تا ته سکون او قرار در رسیږي؟ هغه وویل: هو! بيا

قَالَ: أَلَكَ مَسْكَنٌ تَسْكُنُهُ؟ قَالَ: نَعَمْ.

حضرت عبد الله رضى الله عنه پوښتنه وکړه: آیا ستا کور شته چې په ته هغې کې استوګنه وکړي؟ هغه وویل: هو! کور هم

قَالَ: فَأَنْتَ مِنَ الْأَغْنِيَاءِ. قَالَ: فَإِنَّ لِي خَادِمًا.

شته دی. حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل: بیا ته په مالدارو کې يې. هغه سړي وویل: زما سره یو خادم هم دی.

قَالَ: فَأَنْتَ مِنَ الْمُلُوكِ. قَالَ: عَبْدُ الرَّحْمَنِ:

حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل: بیا خو ته باچاهانو کې يې. حضرت ابو عبد الرحمن (راوی) دا هم بیان کړل چې

وَجَاءَ ثَلَاثَةُ نَفَرٍ إِلَى عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو وَأَنَا عِنْدَهُ.

حضرت عبد الله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خوا ته درې کسان راغلل. دغه وخت زه هم د هغه سره حاضر وم. دغه درې وارو وویل:

فَقَالُوا: يَا أَبَا مُحَمَّدٍ إِنَّا وَاللهِ مَا نَقْدِرُ عَلَى شَيْءٍ لَا نَفَقَةَ وَلَا دَابَّةَ وَلَا مَتَاعَ.

ابو محمّد! په خدای قسم مونږ د هیڅ هم وس نلرو. نه د څه خرچ کولو او نه د څه ځاروي او نه د نور څه سامان.

فَقَالَ لَهُمْ: مَا شِئْتُمْ إِنْ شِئْتُمْ

حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې تاسو څه غواړئ؟ که ستاسو (دا) خواهش وي چې زه ستاسو سره مرسته

رَجَعْتُمْ إِلَيْنَا فَأَعْطَيْنَاكُمْ

وکړم او تاسو ته د خپل اړخ نه څه درکړم نو تاسو بل کوم وخت راشئ زه به تاسو ته هغه څه درکړم د کوم چې

مَا يَسَّرَ اللهُ لَكُمْ وَإِنْ شِئْتُمْ ذَكَرْنَا أَمْرَكُمْ لِلسُّلْطَانِ

خدای تاسو لپاره انتظام وکړي. او که تاسو غواړئ نو زه به ستاسو حالت باچا (امیر معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) ته بیان کړم

وَإِنْ شِئْتُمْ صَبَرْتُمْ فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «إِنَّ فُقَرَاءَ الْمُهَاجِرِينَ

او که تاسو غواړئ نو صبر وکړئ. ځکه چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوریدلي دي فقیران مهاجرین به د قیامت په ورځ

| يَسْبِقُونَ الْأَغْنِيَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَى الْجَنَّةِ بِأَرْبَعِينَ خَرِيفًا» . قَالُوا: فَإِنَّا نَصْبِرُ |
|---|
| ښنت ته د مالدارانو نه څلويښت کاله مخکې ځي. دې درې وارو وويل چې بيشکه مونږ صبر او د استقامت لاره |
| لَا نَسْأَلُ شَيْئًا". رَوَاهُ مُسْلِم[1] |
| خپلوؤ. او س هيڅ هم نه غواړو. |

## د فقيرانو مهاجرينو فضيلت

| ﴿۲۷﴾ وَ عَنْ عبد الله بن عَمْرو قَالَ : بَيْنَمَا أَنَا قَاعِدٌ فِي الْمَسْجِدِ وَ حَلْقَةٌ مِنْ فُقَرَاءِ |
|---|
| او حضرت عبدالله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايې چې مونږ په مسجد (نبوي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) کې ناست وُ. او د فقيرانو |
| الْمُهَاجِرِينَ قُعُودٌ إِذْ دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَعَدَ إِلَيْهِمْ |
| مهاجرينو ډله راغونډه شوې وه. چې ناڅاپه نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ راغلو او فقيرانو اړخ ته يې مخ کړو او کيناستلو. |
| فَقُمْتُ إِلَيْهِمْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لِيُبْشِرْ فُقَرَاءُ |
| زه هم د خپل ځاې نه پاڅيدلم او فقيرانو سره نژدې ناسته باندې هغه ته متوجې شوم. نو نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: فقيرانو |
| الْمُهَاجِرِينَ بِمَا يَسُرُّ وُجُوهَهُمْ فَإِنَّهُمْ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ قَبْلَ الْأَغْنِيَاءِ |
| مهاجرينو ته هغه زيرې وررسول ضرورې دي چې هغه دوې خوشحاله کړي. نو فقيران مهاجرين به د مالدارو نه جنت ته |
| بِأَرْبَعِينَ عَامًا» قَالَ: فَلَقَدْ رَأَيْتُ أَلْوَانَهُمْ أَسْفَرَتْ. |
| څلويښت کاله مخکې ځي. حضرت عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايې چې په خدا قسم ما وکتل چې د فقيران رنګ روښانه |
| قَالَ عَبْدُ الله بْنُ عَمْرٍو: حَتَّى تَمَنَّيْتُ أَنْ أَكُونَ |
| او تازه شو. بيا حضرت عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ و فرمايل چې زما په زړه کې آرمان پيدا شو چې کاش! زه هم د دوې په |
| مَعَهُمْ أَوْ مِنْهُم. رَوَاهُ الدَّارِمِي[2] |
| شان وی يا دا چې په دوې کې وی. |

---

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۲۲۸۵ رقم الحديث (۲۹۷۹-۳۷)

[2] اخرجه الدارمي في السنن ۲/۴۳۷ رقم الحديث ۲۸۴۴.

## ابوذر غفاري رضي الله عنه ته د نبي کريم صلى الله عليه وسلم اووه نصيحتونه

| |
|---|
| ﴿۲۸﴾ وَعَن أَبِي ذَرٍّ قَالَ: أَمَرَنِي خَلِيلِي بِسَبْعٍ: |
| او حضرت ابو ذر رضي الله عنه فرمايي چې زما دوست (نبي کريم صلى الله عليه وسلم) ما ته د اووه خبرو حکم کړی دی. |
| أَمَرَنِي بِحُبِّ الْمَسَاكِينِ وَالدُّنُوِّ مِنْهُمْ |
| نو يو حکم خو يې دا ته کړی دی چې زه د فقيرانو او مسکينانو سره مينه وساتم. او د هغوی سره نزديکت ولرم. |
| وَأَمَرَنِي أَنْ أَنْظُرَ إِلَى مَنْ هُوَ دُونِي وَلَا أَنْظُرَ إِلَى |
| دويم حکم دا دی چې زه هغه سړي ته وګورم چې هغه زمانه په کمه درجه دی. او هغه سړي ته ونګورم چې هغه (مال او منصب |
| مَنْ هُوَ فَوْقِي وَأَمَرَنِي أَنْ أَصِلَ الرَّحِمَ |
| کې) زمانه وچت دی. دريم حکم دا دی چې زه د خپلوانو سره خپلولي وپالم. اګر که کوم (خپلوان) خپلولي ختموي |
| وَإِنْ أَدْبَرَتْ وَأَمَرَنِي أَنْ لَا أَسْأَلَ أَحَدًا شَيْئًا] وَأَمَرَنِي أَنْ أَقُولَ بِالْحَقِّ |
| څلورم حکم دا دی چې زه د چا نه څه شی ونه غواړم. پنځم حکم دا دی چې زه حقه خبره وکړم اګر که هغه ترخه |
| وَإِنْ كَانَ مُرًّا وَأَمَرَنِي أَنْ لَا أَخَافَ فِي الله |
| خفه کونکې معلوميږي. شپږم حکم دا دی چې زه د خدای د دين په معامله کې او امر بالمعروف او نهی عن المنکر |
| لومة لائم وَأَمَرَنِي أَنْ أُكْثِرَ مِنْ قَوْلِ: لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِالله |
| په لړ کې د ملامت کونکي د ملامتيا نه ونه يريږم. او اوم حکم دا دی چې زه په کثرت سره لاحول ولا قوة الا بالله |
| فَإِنَّهُنَّ مِنْ كَنْزٍ تَحت الْعَرْش. رَوَاهُ أَحمد[1] |
| وظيفه وکړم (ويايې وفرمايل) دا اووه واړه خبرې او عادتونه په هغه خزانه کې دي چې هغه د عرش د لاندې ده. |

## د نبي کريم صلى الله عليه وسلم خوښ درې شيان

| |
|---|
| ﴿۲۹﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْجِبُهُ مِنَ الدُّنْيَا |
| او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې د دنيا په شيانو کې درې شيان د نبي عليه السلام په نظر کې خوښ ؤ يو خوراک (چې د هغې په |
| ثَلَاثَةٌ الطَّعَامُ وَالنِّسَاءُ |
| ذريعه سره بدن ديني خدمتونو باندې قدرت او طاقت) تر لاسه کيدلی شي. او دويم ښځې (چې د هغې په ذريعه سره نفس د بدو خيالاتو نه |

(1) اخرجه احمد في مسند ۵/۱۵۹.

وَ الطِّيبُ فَأَصَابَ اثْنَيْنِ

محفوظ وساتلی شي) او دريم خوشبويي (چې دهغې په ذريعه سره ماغزو ته خوشحالي او تقويت ترلاسه شي ځکه چې د حکماؤ د قول

وَلَمْ يُصِبْ وَاحِدًا

مطابق د عقل او فراست جمع کونکی ماغه دي) نو په دې درې شيانو کې دوه شيان خو نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ترلاسه شول، او يو شی

أَصَابَ النِّسَاءَ وَالطِّيبَ

ترلاسه نشو. يعنې يو خو ښځې نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ډيرې ورکړی شوي او دويم خوشبويي

وَ لَمْ يُصِبِ الطَّعَامَ. رَوَاهُ أَحْمد[1]

نبی صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ډيره ورکړی ورکړی شوه ليکن دريم خوراک، نبی صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته (ډير) ورنکړی شو.

﴿۳۰﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «حُبِّبَ إِلَيَّ الطِّيبُ وَالنِّسَاءُ

او حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: خوشبويي او ښځې زما لپاره خوښ

وَجُعِلَتْ قُرَّةُ عَيْنِي فِي الصَّلَاةِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالنَّسَائِيُّ. وَزَادَ ابْنُ الْجَوْزِيِّ بَعْدَ قَوْلِهِ: «حُبِّبَ إِلَيَّ» مِنَ الدُّنْيَا"[2]

جوړ کړی شويدي او زما د زړه سکون او خوشحالي په لمونځ کې کيخودل شويده. (احمد، نسائی)

## تن آسانې د الله والاؤ د شان منافي ده

﴿۳۱﴾ وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا بَعَثَ بِهِ إِلَى الْيَمَنِ

او حضرت معاذ ابن جبل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې کله هغه رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (قاضي جوړ ولو باندې) يمن ته وليږلو نو هغه

قَالَ: « إِيَّاكَ وَ التَّنَعُّمَ فَإِنَّ عِبَادَ اللهِ

ته يې دا نصيحت وکړو چې «خپل ځان د راحت غوښتونې او تن آسانۍ نه وساته ځکه چې د الله تعالی خاص

لَيْسُوا بِالْمتنعمين». رَوَاهُ أَحْمد[3]

بنديګان د خاص ارام او سکون ژوند نه تيروي»

---

[1] أخرجه أحمد في المسند ۶/۷۲

[2] أخرجه النسائي في السنن ۷/۶۱ رقم الحديث ۳۹۳۹، وأحمد في المسند ۳/۱۲۸.

[3] أخرجه أحمد في المسند ۵/۲۴۳

## که مال ډیر وي نو عبادت به هم ډیر کول غواړي

﴿۲۲﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ رَضِيَ مِنَ اللهِ بِالْيَسِيرِ مِنَ الرِّزْقِ رَضِيَ اللهُ مِنْهُ بِالْقَلِيلِ من الْعَمَلِ»[1]

او حضرت علی کرم الله وجهه فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: کوم سړی چې په لږ رزق باندې د الله تعالی نه راضي کیږي. نو الله تعالی د هغه نه په لږ عمل باندې راضي کیږي.

## د فقر او ولږې د پټولو فضیلت

﴿۲۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ جَاعَ أَوِ احْتَاجَ فَكَتَمَهُ النَّاسَ كَانَ حَقًّا عَلَى اللهِ عَزَّ وَجَلَّ أَنْ يَرْزُقَهُ رِزْقَ سَنَةٍ مِنْ حلالٍ». رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيّ فِي «شعب الإِيمَان»[2]

او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: کوم سړی چې وږی وي یا (د څه شي) محتاج وي او خپله دغه ولږه او محتاجي د خلکو نه پټه وساته نو د الله تعالیٰ دا یقیني وعده ده چې دغه سړي ته به الله تعالی به دغه سړي ته د یو کال رزق وروسوي.

## غریب عیالداره الله تعالی ته خوښ دی

﴿۲۴﴾ وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ اللهَ يُحِبُّ عَبْدَهُ الْمُؤْمِنَ الْفَقِيرَ الْمُتَعَفِّفَ أَبَا الْعِيَالِ». رَوَاهُ ابْن مَاجَه[3]

او حضرت عمران بن حصین رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: الله تعالی هغه مسلمان خوښوي غریب نه سوال کونکی او عیالداره وي. (ابن ماجه)

## د حضرت عمر رضی الله عنه کمال تقوی

﴿۲۵﴾ وَعَن زيدِ بنِ أَسلمَ قَالَ: اسْتَسْقَى يَوْمًا عُمَرُ فَجِيءَ بِمَاءٍ قَدْ شيبَ بعسلٍ فَقَالَ:

او حضرت زید بن اسلم (تابعي) فرمایي چې یوه ورځ امیر المؤمنین حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څکلو لپاره اوبه وغوختلې نو هغه ته چې کومې اوبه پیش کړی شوې، په هغې کې شهد یو ځای کړی شوی ؤ، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ و فرمایل:

---

([1]) أخرجه رواه البيهقي في شعب الايمان ۲/۱۳۹ رقم الحديث ۴۵۸۵.

([2]) أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۷/۲۱۵ رقم الحديث ۱۰۰۵۴.

([3]) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۳۸۰ رقم الحديث ۴۱۲۱.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّه | لطيّبٌ | لكني | أَسْمَعُ | اللهَ | عَزَّ | وَجَلَّ | |

يقينًا دا او به پاکي، حلالي او ډيري خوږې دي خو زه دا نه څکم. ځکه چې زه د الله تعالى په اړه اورم او پوهيږم

نَعَى عَلَى قَوْمٍ شَهَوَاتِهِمْ فَقَالَ (أَذْهَبْتُمْ طَيِّبَاتِكُمْ فِي حَيَاتِكُمُ الدُّنْيَا

چې هغه يو قوم د نفس د خواهش په اتباع باندې مجرم وګرځول او وې فرمايل چې تاسو په دې دنياوي

وَ اسْتَمْتَعْتُمْ بِهَا ) فَأَخَافُ أَنْ

ژوندي کې خپل خوندونه او نعمتونه ترلاسه کړل او د هغې نه مو پورا پورا فائده ترلاسه کړه. لهذا زه ويريږم چې

تَكُونَ حَسَنَاتُنَا عُجِّلَتْ لَنَا

هسې نه زمونږ نيکۍ هم د غه شان وي، چې د هغې اجر او ثواب ژر مونږ ته راکړې شي. نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

فَلَمْ يشربه. رَوَاهُ رزين[1]

د شهدو سره يو ځاې شوې اوبه و نه څکلي.

## د اسلام په ابتداء کې د فقر يوه نقشه

﴿۳۶﴾ وَ عَنِ ابنِ عمَرَ قَالَ : مَا شبعنا

او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې مونږ د خپل فقر او غريبۍ د وجې نه د نبى کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره په

من تمر حَتَّى فتحنا

کهجورو باندې کله هم خيټه نده ډکه کړې، تردې چې مونږ خيبر فتح کړو ، بيا مونږ ته په مړه خيټه باندې

خَيْبَرَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[2]

کهجورې ترلاسه شوې.



---

([1]) أخرجه رواه رزين .

([2])اخرجه البخاري في صحيحه رقم الحديث ۴۲۴۳.

۲۲ ربیع الثاني ۱٤۱۸هـ

# بَاب الأمل والحرص

## امید او د حرص بیان

قال الله تعالی: ﴿ذَرْهُمْ يَأْكُلُوْا وَيَتَمَتَّعُوْا وَيُلْهِهِمُ الْاَمَلُ فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ﴾ (الحجر: ۳)

**الأمل**: اوږدو اوږدو امیدونو تړلو او د اوږدو امیدونو قطار جوړول او دهغې لپاره منصوبې جوړول ته نوم امل دی. د امل تعلق د دنیاوي ژوند سره دی. دلته د امل نه مراد دنیاوي کارونه، خوشحاله ژوند او مخصوص دنیاوي عیش او عشرت او د مستقبل پر مختګ او کامیابۍ اوږده امیدونه مراد دي. چې انسان دي خیالي منصوبو د فراختیا په خوښۍ کې داسې غافله شي چې مرګ یاد او د آخرت د ژوند تیارۍ نه ییخي جدا پاتې شي او د دې مصرعې مصداق جوړ شي:

*تمنا مختصر سی ہے مگر تمہید طولانی*

د دې حقیقت واضحه کولو لپاره الله تعالی ارشاد وفرمایل: ﴿ذَرْهُمْ يَأْكُلُوْا وَيَتَمَتَّعُوْا وَيُلْهِهِمُ الْاَمَلُ فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ﴾ (الحجرات: ۳) یعنې دا کافر او غافل ته پرېږده چې دوې خوراک وکړي. فائده واخلي. اوږده امیدونه وتړي. بیا به ډېر ژر پوهه شي. هو که یو سړی د دین په زده کړه او ښودنه او دهغې پرمختګ او کامیابۍ لپاره اوږده امیدونه او ارزوګاني کوي نو دا جائز بلکې د ستاینې وړ ده.

**الحرص**: د اوږدو ارادو د ترلاسه کولو او د دهغې لالچ ته حرص وایې. د حرص تعلق د نیکۍ او بدۍ دواړو سره کیدلی شي. په نېکړه کې حرص کول، د ښه اردو آرزو کول دا بد ندي. ارشاد باري تعالی دي: (مرقات ۹/۱۱۹) ﴿اِنْ تَحْرِصْ عَلٰى هُدٰىهُمْ﴾ ﴿حَرِيْصٌ عَلَيْكُمْ بِالْمُؤْمِنِيْنَ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ﴾ خو نفساني خواهشات پورا کول، د دنیا د هر څه ډېروالي حرص کول، د جائز حدودو نه تېریدلو باندې په ناجائزه طریقو سره مقصدونه ترلاسه کول، دا حرص او لالچ او مذموم او بد شی دی. شریعت هم دا حرص مکروه ګرځولی دی. نو د دې باب احادیث د دې حرص په بدې بیانولو کې راغلي دي. قاموس کې لیکلي دي چې بدترین حرص هغه دی چې سړی خپله برخه ترلاسه کړي او بیا د بل د برخې طمع او لالچ کې اخته وي. خلاصه دا چې نیک کارونه لکه علم او عمل حصول او د دین سرلوړې کې حرص کول، او دهغې د پرمختګ لپاره ارزو کول بنه شی دی. د دینه علاوه کارونو کې حرص بد شی دی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّل

### انسان د ارزوګانو او دهغه د مرګ عملي نقشه

| ﴿۱﴾ عَنْ عبد الله قَالَ: خَطَّ النَّبِيُّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي چې (یوه ورځ) رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زمونږ د پوهې لپاره څلور خطونه مربع |

خَطًّا مُرَبَّعًا وَخَطَّ خَطًّا فِي الْوَسَطِ خَارِجًا مِنْهُ

جوړ کړل. بیا یې د دې مربع په مینځ کې یو بله کرخه وویستله چې هغه د مربع نه بیرون وتلې وه. د دینه وروسته

وَ خَطَّ خُطُطًا صِغَارًا إِلَى هَذَا الَّذِي فِي الْوَسَطِ مِنْ جَانِبِهِ الَّذِي فِي الْوَسَطِ

نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه مینځنې خط هغه برخې اړخ ته چې (د مربع) خطونو مینځ کې وه، واړه واړه خطونه راښکل.

فقال: «هَذَا الْإِنْسَانُ

او بیا یې وفرمایل چې ښه پوهه شئ! د مینځنې خط دا برخه چې د مربع د خطونو مینځ کې ده، ګواکې انسان دی. او دا

وَ هَذَا أَجَلُهُ مُحِيطٌ بِهِ وَ هَذَا الَّذِي هُوَ خَارِجٌ أَمَلُهُ

خط د انسان مرګ دی، او د مینځنې خط دا برخه کومه چې د مربع نه بیرون وتلې ده، د دې انسان ارزو او امیدونه

وَهَذِهِ الْخُطُوطُ الصِّغَارُ الْأَعْرَاضُ فَإِنْ

دي او د مینځنې خط په دننه برخه باندې چې کوم دا واړه واړه خطونه دي، دا عوارض دي. نو که هغه د یوې

أَخْطَأَهُ هَذَا نَهَسَهُ هَذَا

حادثې او عارضې نه بچ شي نو دویمه حادثه او عارضه هغه راګیروي. که د دې حادثې او عارضې نه هم بچ شي

وَإِنْ أَخْطَأَهُ هَذَا نهسه هَذَا» . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1]

نو بیا دریمه حادثه او عارضه یې راګیروي.

**توضیح:** خط النبي: انسان او د هغه مرګ او هغه د آرزوګانو نقشه خپله نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپل لاس مبارک سره خاورو باندې جوړه کړه. او انسان یې ښه بوهه کړو. د حدیث شارحینو د دې حدیث په مطابق باندې دا نقشه داسې جوړه کړیده. ملا علی قاری رحمه الله دننه واړه خطونه اوه اوه جوړ کړي دي او وې فرمایل چې د انسان غټ اندامونه اوه دي. لهذا دا نقشه راجحه ده. نقشه دا ده:




([1])أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۲۳۵ رقم الحديث ۶۴۱۷ .والترمذي في السنن ۴/۵۴۸ رقم الحديث ۲۴۵۴.

د دې حديث حاصل او مطلب دا دی چې انسان په قِسما قِسم ارزوګانو کې اخته وي او هر وخت په دې فکر کې لګيا وي چې فلانکې آرزو پوره شي، فلانکی پوره شي، خو خپله دا انسان د مرګ په مربع خط کې راګير پروت دی. د څلور اړخ نه دا عاجز د مرګ په ګيره کې دی. د دې باوجود د تعجب خبره دا ده چې د ده ځيني اميدونه او آرزوګاني داسې دي چې هغه د مرګ د مربع خط نه بيرون دي. وس که دا انسان خپل مربع ارزوګاني پوره کول غواړي نو اول خو د ده د بدن سره ډير حوادثات او عوارضات پيوسته شويدي. نو دا انسان د ولږې، غريبی او مصيبتونو په چپو کې کې دننه دننه غوپې وهي. هره يوه حادثه داسې ده چې د مرګ نه کمه نده. او هغه مسلسل په ده باندې حملې کوي. که دا انسان د دې عوارضاتو نه په بچ کيدلو سره کامياب هم ووځي او خپلې ارزو اړخ ته په منډه سره ورځي نو بيا هم خپله ارزو نشي ترلاسه کولی ځکه چې د هغه د ارزو او د هغه ترمينځ د مرګ يو داسې ديوال ولاړ دی چې هغه دا مخکې نه پريږدي او مرګ نژدې راتلو سره هغه لاندې کړي. (مرقات ۹/۱۲۰)

**خط اقرب:** نه مراد مرګ دی. د راتلونکي حديث نمبر ۲ مضمون او توضيح هم پدې توګه ده.

| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: خَطَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُطُوطًا فَقَالَ: «هَذَا |
|---|
| او حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څو خطونه راکښل. بيايې وفرمايل چې د مينځنی خط دا برخه |
| الْأَمَلُ وَهَذَا أَجَلُهُ فَبَيْنَمَا هُوَ كَذَلِكَ إِذْ جَاءَهُ الْخَطُّ |
| د انسان ارمان دی او دا خط د هغه مرګ دی. نو انسان په دې حالت کې وسيږي چې ناڅاپه د مرګ خط هغه |
| الْأَقْرَبُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1] |
| راګير کړي، چې هغه ده ته ډير نژدې دی. |

## د بوډا انسان زلمي حرص

| ﴿۳﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " يَهْرَمُ ابْنُ آدَمَ وَيَشِبُّ مِنْهُ اثْنَانِ |
|---|
| او حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې نبی کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: انسان خپله خو بوډا کيږي خو په هغه کې دوه شيان |
| الْحِرْصُ عَلَى الْمَالِ وَالْحِرْصُ عَلَى الْعُمُرِ ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[2] |
| ځوان او قوي کيږي. يو خو د مال حرص او دويم د اوږد عمر ارمان. |

---

([1])أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۲۳۶ رقم الحديث ۶۴۱۸ وابن ماجه في السنن ۲/۱۴۱۴ رقم الحديث ۴۲۳۱.

([2])أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۲۳۹ رقم الحديث ۶۴۲۱ ومسلم في صحيحه ۲/۷۲۴ رقم الحديث (۱۰۴۷-۱۱۵).

**توضیح**: **یهرم**: هرم بوډا والې ته وایې. او یشب: ځوان کیدلو ته وایې. د حدیث مطلب دا دی چې انسان څومره بوډا کیږي، هغومره په هغه کې دوه شیان ځوانان کیږي. اول د مال حرص، دویم د اوږد عمر حرص یعنې د عقل تقاضا خو دا وه چې د بوډا والې دو جې نه د نیا په شیانو باندې د انسان نیوکه کمزوري شي خو کیږي دا چې بدنې ټول قوتونه کمزورې کیدلو باوجود په انسانې طبیعیت کې دوه خصلتونه ځوانان کیږي. یو مالې رص، دویم د عمر حرص. په دې کې د دې بوډا انسان نیوکه د کمزورې کیدلو په ځاې باندې نوره مضبوطه شي. ګویا انسان بوډا حرص یې زلمی. یو شاعر په خپله ژبه کې په خپل خوند باندې ویلي دي:

د عمر ونه مې زنده شوه — د حرص ونه مې لا اوس سپرې ګلونه

یعنې ژما د ژوند ونه خو بوډې شوه خو د حرص ونه د سپرلې په مستۍ کې خپلو ګلانو بنایست بنایي.

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " لَا يَزَالُ قَلْبُ الْكَبِيرِ |
| او حضرت ابو هریره رضي الله عنه نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي چې نبی صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د بوډا زړه |
| شَابًّا فِي اثْنَيْنِ: فِي حُبِّ الدُّنْيَا وَطول الأمل". مُتَّفق عَلَيْهِ [1] |
| همیشه په دوه خبرو باندې زلمی وي. یو د دنیا مینه کې او بل د امیدونو اوږدوالی. (بخاري ومسلم) |

## د شپیتو کالو بوډا که توبه ونه کړي نو څه به وي؟

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَعْذَرَ اللهُ إِلَى امْرِئٍ أَخَّرَ |
| او حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمایې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: الله تعالی د هغه سړي د عذر لپاره |
| أَجَلَهُ حَتَّى بَلَّغَهُ سِتِّينَ سَنَةً». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ [2] |
| هیڅ موقع نده پریخې چې هغه یې دومره وروسته کړو چې د هغه عمر یې د شپیته کالو عمر ته ورسولو. |

**توضیح**: اعذر الله: یعنې الله تعالی چې کله یو چا ته د شپیته کالو عمر ورکړو او د غه سړي په دې اوږد عمر کې هم توبه ونکړه نو وس د الله تعالی په نزد باندې د د غه سړي هیڅ عذر پاتې ندی. د ټولو عذرونه او بهانې ختمې شوې. وس د سزا نه غیره هغه ته څه ورکړیدی شي. ځکه چې دومره اوږد عمر ورکولو نه وروسته هم هغه د ګناهونو نه منع نشو. سر او ږیرې سپین ایختانو یې د خطرې ټلې ووهله. خو هغه په هوش کې رانغلو. نو وس د الله تعالی په نزد باندې د هغه هیڅ عذر پاتې ندی. ځکه چې ځوان خو د بنه کیدلو لپاره د بوډا والې انتظار کولی شي خو یو بوډا چې د هغه په سر باندې مرګ تاوېږي، هغه آخر د څه انتظار کوي. (مرقات ۹/۱۲۳)

---

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۲۳۹ رقم الحديث ۶۴۲۰ ومسلم في صحيحه ۲/۷۲۴ رقم الحديث (۱۰۴۶-۱۱۴).

[2] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۲۳۸ رقم الحديث ۶۴۱۹.

اعذرالله: کې همزه د سلب مأخذ لپاره ده. یعني الله تعالی دهغه ټول عذرونه او بهانې ختمي کړیدي. دا حدیث د دې آیت تفسیر جوړیدلی شي. ﴿أَوَلَمْ نُعَمِّرْكُم مَّا يَتَذَكَّرُ فِيهِ مَن تَذَكَّرَ وَجَاءَكُمُ النَّذِيرُ﴾(فاطر: ۴۰)

## د انسان خیټه د قبر خاورې ډکولی شي

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت ابن عباس رضي الله عنه نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي چې نبی صلی الله علیه وسلم وفرمایل: |
| «لَوْ كَانَ لِابْنِ آدَمَ وَادِيَانِ مِنْ مَالٍ لَابْتَغَى ثَالِثًا |
| که د انسان سره د مال و دولت نه ډکې دوه کندې وي نو بیا به هغه د دریمې کندې د ډکولو په لټون کې وي. |
| وَلَا يَمْلَأُ جَوْفَ ابْنِ آدَمَ إِلَّا التُّرَابُ |
| او د انسان خیټه د خاورو نه غیره هیڅ شی نشي ډکولی. او کوم سړی چې د حرص نه توبه کوي، او |
| وَيَتُوبُ اللهُ عَلَى مَنْ تَابَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1] |
| الله تعالی د هغه توبه قبلوي. (بخاری و مسلم) |

**توضیح**: الاالتراب: یعنې د انسان په طبیعیت او دهغه په ضمیر کې د دنیا حرص او لالچ داسې پیوسته دی چې که هغه ته دوه غرونو مینځ کې دوه کندې مال کړی شي نو دا انسان د دریمې په لټون کې سرګردانه ګرځي. په دنیا کې د هغه د مړیدلو هیڅ صورت نشته دی. تر ننه پورې نه کوم مالدار څه حد متعین کړیدی چې دغه حد ته په رسیدلو سره انسان ته کفایت او قناعت ترلاسه کیږي. لهذا د انبیاء کرام علیهم السلام د تعلیماتو په رڼا کې دا خبره سل فیصده صحیح ده چې د انسان خیټه فقط خاورې ډکولی شي. په دې حدیث کې ډیر مال د آسوده ژوند ذریعه نه بللی شوي بلکې لږه دنیا او قناعت یې د ژوند آسود ګرې بللې ده. لهذا د قناعت د تورې نه او د سخاوت د تیره اړخ باندې د بخل دیوال ګوزارول پکار دي. (مرقات ۹/۱۲۴)

## دنیا کې فقط مسافر نه بلکې روان مسافر جوړ شه

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: أَخَذَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِبَعْضِ جَسَدِي فَقَالَ: |
| او حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمایې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم زما د بدن یوه برخه ونیوله او وې وفرمایل: |
| «كُنْ فِي الدُّنْيَا كَأَنَّكَ غَرِيبٌ أَوْ عَابِرُ سَبِيلٍ وعُدَّ نفسَكَ |
| ته په دنیا کې داسې وسیږه ګویا ته مسافر یې یا په لاره تلونکی یې او ته خپل شمیر په هغه خلکو کې وکړه |

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۲۵۳ رقم الحديث ۶۴۳۶. ومسلم في صحيحه ۲/۷۲۵ رقم الحديث (۱۰۴۹-۱۱۸)

| فِي أَهلِ الْقُبُور». رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[1] |
| --- |
| چې هغه په خپلو قبرونو کې په آرام اوده دي. |

**توضيح**: **غريب**: عربي ژبه کې غريب ناشنا او مسافر ته وايي. غريب داسې مسافر وي چې دهغه ټوله توجو خپل سفر ته وي. يعنې په دنيا کې داسې گمنام وسيږه چې ستا د خپل کار سره مطلب وي او فقط په آخرت باندې نظر ساته . او دهغې تياری کوه. او عابر سبيل: دا «او» لفظ د بل په معنی دی. چې د پرمختګ لپاره دی . يعنې مسافر په دوه قسمه دي.يو هغه مسافر دی چې هغه يو ځای ته په راتلو سره د سفرژوند تيروي. او هغه ځای کې قيام خپل کړي. دويم هغه مسافر دی چې هغه لاروی او تلونکی مسافر دی. هغه يو ځای کې هم قيام نکوي. بلکې منصزل مقصود ته هر وخت روان دی. په دې حديث کې دې ديم قسم اړخ ته توجو راړولی شويده چې د آخرت تياری او خپل مقصو: کې مشغوله کيدلو باندې فقط مسافر نه بلکې تلونکی مسافر جوړ شه. او دنياوې اړيکې ماتولو باندې خپل مقصود پسې ولګيږه. لکه چا ويلي دي چې:

اپنے من ڈوب کر پاجا سراغ زندگی　　　　تُو اگر میرا نہیں بنتا نہ بن اپنا تو بن

**عد نفسك في اهل لقبور**: يعنې خپل ځان په مړو کې شمير کړه. او خلکو ته ووايه چې بس ما مړی وګڼی، لهذا زما نه د دنيا کارونه او دخلکو په جګړو کې د ننوتلو اميد مه لری. بهرحال څنګه چې په حقيقې مرګ سر د نيا کارونه نيمګړې په نيمګړې پاتې شي، دغه شان هر مسلمان لپاره پکار دي چې د دنيا هيڅ شي سره دهغه تعلق پاتې نشي. او خپله په مکمله توګه باندې د آخرت اړخ ته متوجې شي. او خپل نفس اماره داسې ووژني چې د دنيا هيڅ شي سره د هغه تعلق پاتې نوي. هم دا مضمون په يو حديث کې داسې بيان کړی شويدی : **موتو قبل ان تموتوا**: يعنې مرګ راتلو نه مخکې خپل ځان مړ وګڼه. په دې حديث کې د **وعدّ نفسك** نه تر آخره پورې چې کوم الفاظ دي ، دا په بخارې کې نشته دی، فقط د حديث ابتدايي کلمات دي. لذا د دې رواه البخاری اړخ ته منسوب کول صحيح ندي. بلکې رواه الترمذی ويل صحيح ؤ. (مرقات ۹/۱۲۶)

# الْفَصْلُ الثَّانِي

## کور داخيږولو نه مرګ ژر راتلی شي

| ﴿۸﴾ عَن عبد الله بن عَمْرو قَالَ: مَرَّ بِنَا رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا وَأُمِّي نُطَيِّنُ شَيْئًا |
| --- |
| حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنه فرمايي چې ما او زما مور په خټه باندې باندې يو څه اخيږول چې رسول الله صلی الله عليه وسلم |

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۲۳۳ رقم الحديث ۶۴۱۶ والترمذي في السنن ۴/۴۹۰ رقم الحديث ۲۳۳۳.

| فَقَالَ: «مَا هَذَا يَا عَبْدَ اللهِ؟» قُلْتُ شَيْءٌ |
|---|
| تيريدل زمونږ په اړخ باندې وشول. نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: عبد الله دا څه دي؟ ما وويل: چې دا شي (يعني |
| نُصْلِحُهُ. قَالَ: «الْأَمْرُ أَسْرَعُ مِنْ ذَلِكَ» . رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[1] |
| ديوالونه يا چهت) جوړوؤ. نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: امر يعنې اجل (نيتهه) ددينه هم ژر راتلونکې ده. |

**توضيح:** حضرت عبد الله بن عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شايد ضرورت ګڼلو. باندې د کور اخير وکړو چې کور يا ديوال راګوزار نشي. نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شايد دا ضرورت نه ډير وګڼل. نو ځکه يې هغه ته اختار وکړو چې اخير په کولو سره کور خو به مضبوط شي خو د دې کور د راګوزاريدلو او دخرابيدلو نه مخکې مرګ راتللی شي. لهذا د خپل آخرت اصلاح مخکې کول پکار دي. د کور په جوړولو کې وخت ولې خرابوي. يو شاعر په خپل خوند ويلي دي:

آخر دې تګ د بل وطن دی      دلته کې څه ته جوړوي دنګ محلونه

يعنې کله چې ته ژر د بلې دنيا سفر کوي نو په دې دنيا کې وچتې مانۍ ولې جوړوي.

مانۍ څه ته جوړوي آخر به لاړ شي      دومره بس دی چې په تا څڅيږي نه

يعنې د ماڼو په جوړولو کې وخت ولې خرابوي، کور دومره کافي دی چې د اوبو د څڅيدلو نه دې وساتي. ځينو عارفينو ويلي دي چې دصحابه کرامو کورنه کچه ؤ. ايمان مضبوط ؤ. او زمونږ ايمانونه کچه دي او کورنه مضبوط دي.

| ﴿۹﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ |
|---|
| او د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د تش او دس ماتې نه وروسته |
| يُهْرِيقُ الْمَاءَ فَيَتَيَمَّمُ بِالتُّرَابِ فَأَقُولُ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ الْمَاءَ مِنْكَ قَرِيبٌ |
| (او د اودس کولو نه مخکې) په خاورو باندې تيمم کولو. ما به ويل چې يا رسول الله! اوبه خو تا ته ډيرې نږدې دي؟ |
| يَقُولُ: «مَا يُدْرِينِي لَعَلِّي لَا أَبْلُغُهُ» . رَوَاهُ فِي «شَرْحِ السُّنَّةِ» وَابْنُ الْجَوْزِيِّ فِي كِتَابِ «الْوَفَاءِ»[2] |
| نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به فرمايل چې ما ته څه معلومه ده چې زه به دې اوبو ته ورسيږم او که نه؟ |

---

[1] اخرجه ابوداود في السنن ۵/۴۰۱ رقم الحديث ۵۲۳۶ والترمذي في السنن ۴/۴۹۱ رقم الحديث ۲۳۳۵.

[2] اخرجه البغوي في شرح السنة ۱۴/۲۳۲ رقم الحديث ۴۰۳۱، واحمد في المسند ۱/۲۸۸.

## د انسان ارمان لرې او مرګ نژدې دی

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «هَذَا ابْنُ آدَمَ وَهَذَا أَجَلُهُ» |
| او د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: دا خو ابن آدم دی او دا د هغه مرګ دی. |
| وَوَضَعَ يَدَهُ عِنْدَ قَفَاهُ ثُمَّ بَسَطَ فَقَالَ: |
| دې ویلو سره نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل لاس شا ارخ ته وساتلو، د دېنه وروسته یې خپل لاس راخپور کړو او وې فرمایل |
| «وَثَمَّ أمله». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1] |
| چې دې ځای کې د انسان آرزو ده. |

**توضیح:** وهذا اجله: یعنې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل لاس خپل څټ سره بیخې پیوسته کیخودلو او وې فرمایل چې د انسان مرګ دومره نژدې دی. بیا نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل لاس د څټ نه لیرې کړو او وې فرمایل چې دغه د انسان امید دی. یعنې مرګ بیخې رانیژدې شوی دی. او آرمان ډیر لیرې تللی دی. (مرقات ۹/۱۲۸)

## د انسان ناکامه کوشش

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَرَزَ عُودًا بَيْنَ يَدَيْهِ |
| او حضرت ابو سعید خدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپلې مخې ته یو لرګی نال کړو |
| وَآخَرَ إِلَى جَنْبِهِ وَآخَرَ أَبْعَدَ مِنْهُ. |
| او بیا یې بل لرګی د اولنې لرګي سره نژدې نال کړو او بیا یې د دېنه وروسته یو دریم لرګی په کافي فاصله باندې نصب کړو. |
| فَقَالَ: «أَتَدْرُونَ مَا هَذَا؟» قَالُوا: اللهُ وَرَسُولُهُ |
| او بیا یې وفرمایل: پوهېږئ دا څه دي؟ یعنې د دې لرګو نه څه مراد دي؟ صحابؤ وفرمایل چې الله او د هغه رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| أَعْلَمُ. قَالَ: «هَذَا الْإِنْسَانُ وَهَذَا الْأَجَلُ» أُرَاهُ |
| ښه پوهیږي. نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: دا (اولنی لرګی ګویا) انسان دی او دا (دویم) لرګی د دې انسان مرګ دی. |
| قَالَ: «وَهَذَا الْأَمَلُ |
| حضرت ابو سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې زما ګمان دی چې د دېنه وروسته نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا وفرمایل او دا (دریم) لرګی د ده ارزو |

---

(1) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۹۱ رقم الحديث ۲۳۳۴ وابن ماجه في السنن ۲/۱۴۱۴ رقم الحديث ۴۲۳۲.

| فَيَتَعَاطَى | الْأَمَلَ | فَلَحِقَهُ |
|---|---|---|
| ده. انسان د خپل امید او ارمان د پورا په لټون کې اخته وي چې د هغه مرګ د هغه ارمان پورا کیدلو نه | | |
| الْأَجَلُ دُونَ الْأَمَلِ». رَوَاهُ فِي «شَرْحِ السّنة»[1] | | |
| مخکې راتګ سره هغه لاندې کړي. (شرح السنة) | | |

## د دې امت د خلکو عمرونه

| «۱۲» وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «عُمُرُ أُمَّتِي |
|---|
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کوي چې هغه وفرمایل: زما د امت عمر |
| مِنْ سِتِّينَ سَنَةً إِلَى سَبْعِينَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[2] |
| د شپیته کالو نه تر اویا کالو پورې دی. (روایت کړې دې ترمذی، او ترمذی وائی چه دا حدیث غریب دې) |

**توضيح**: الى سبعين: يعنې شپیته کالو نه تر اویا کالو پورې د دې امت د خلکو عمرونه دي. دا حکم اکثري دی. ګنې څه خلک خو شپیته کالو ته نه رسیږي. او څه د اویا کالو نه هم اوړیږي. خو هغوې ډیر کم وي. د دې امت د خلکو طبعي عمر ۶۳ کاله دی، او د دې نه اخوا اضافي عمر دی. خلاصه دا چې د انسان دعمر خو پنځلس کاله د بلوغ نه مخکې ضائع شي، پاتې پنځلسو کې څه د زده کولو او ویلو تیاری کوي. نیم عمر خو دلته لاړو. پاتې دیرش کاله عمر که ورکړی شو نو هغه څهوکي، چې د هغې لپاره دا انسان د زمکې او آسمان یو ځای کولو کوي او د وهلو راوهلو سره حلال او حرام فرق کولو نه بغیر ګټي. او د خپل آخرت دائمي ژوند خرابوي. هائی افسوس! (مرقات ۹/۱۳۰)

جگہ جی لگانے کی دنیا نہیں ہے — یہ عبرت کی جا ہے تماشا نہیں ہے

| «۱۳» وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَعْمَارُ أُمَّتِي مَا بَيْنَ | | | |
|---|---|---|---|
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایې چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: زما د امت د اکثرو خلکو عمر | | | |
| السِّتِّينَ | إِلَى | السَّبْعِينَ وَأَقَلُّهُمْ | مَنْ يَجُوزُ ذَلِكَ». |
| شپیته او اویا کالو په مینځ کې به وي. او زما په امت کې د داسې خلکو شمیره ډیره کمه د چې هغه د دې نه واوړیږي. | | | |

[1] أخرجه البغوي في شرح السنة ۱۴/۲۸۶ رقم الحديث ۴۰۹۳ وابن ماجه ۲/۱۴۱۴ رقم الحديث ۴۲۳۶.

[2] أخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۸۹ رقم الحديث ۲۳۳۱.

| |
|---|
| رَوَاهُ التِّرمِذِيُّ وَابنُ مَاجَهْ وَذَكَرَ حَدِيثُ عَبْدِ الله بنِ الشِّخيرِ فِي «بَابِ عِيَادَةِ المَرِيضِ»[1] |
| (روایت کړې دي ترمذی او ابن ماجه) او ذکر کړې دي عبد الله بن شخیر په «بَابِ عِيَادَةِ المَرِيضِ» کې. |

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## يقين او زهد خپل کړه، بخل او ارزو نه ځان وساته

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه نه نقل کوي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: |
| «أَوَّلُ صَلَاحِ هَذِهِ الْأُمَّةِ الْيَقِينُ وَالزُّهْدُ وَأَوَّلُ فَسَادِهَا الْبُخْلُ |
| د دې امت اوله نیکي یقین کول او زهد خپلول دي. او د دې امت اول فساد بخل او دنیا کې د پاتې |
| وَالْأَمَلُ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي «شعب الإِيمَان»[2] |
| کیدلو ارمان کول دي. (روایت کړې دي بیهقي په شعب الایمان کې) |

**توضیح: الیقین:** یقین نه مراد په دې خبره باندې کامله عقیده ده چې رازق د الله تعالیٰ ذات دی. هغه الله جل جلاله رزق ورکوي. او هغه الله جل جلاله ضامن او کفیل دی. دا یقین چې کله راشي نو بیا بخل او رحرص او لالچ به نه وي. او دا یره به نوي چې که نن یې خرچ کړم نو سبا به څه خورم.؟ دا د بې یقینۍ حالت دی. شیخ عبد الوهاب متقي په خپل کتاب الحبل المتین فی تحصیل الیقین کې لیکلي دي چې یقین د هغه اعتقاد جازم (پوخ) نوم دی چې هغه په دلائلو سره دومره مضبوط شي چې د سړې لپاره د حق خبره کول آسانه شي. دا د حکماؤ اصطلاح ده. خو د صوفیاؤ په نزد باندې یقین د هغه کیفیت نوم دی چې هغه د شریعت د کارونو کولو باندې سړی راوپاروي او د شریعت د منع کړی شوې شیانو نه سړی وساتي. دا یقین په بنیادي توګه باندې په څلور شیانو باندې مشتمل دی!

(۱) د الله تعالی په توحید باندې یقین ساتل چې الله تعالی وحده لاشریک دی. او هغه یک یواځې د دې عالم مدبر او واکمن دی.

(۲) توکل یعنې دا عقیده ساتل چې رازق د الله تعالی ذات او هغه د رزق ضامن دی.

(۳) د جزاء او سزا داسې عقیده وي چې د هر ښه او بد بدله به په قیامت کې ورکولی کیږي.

---

[1] اخرجه الترمذي في السنن ۵/۵۱۷ رقم الحديث ۲۵۵۰ وابن ماجه ۲/۱۴۱۵ رقم الحديث ۴۲۳۶.

[2] رواه البيهقي في شعب الايمان ۷/۴۳۸ رقم الحديث ۱۰۸۴۴.

(۴) دا عقیده چې الله تعالی هر وخت د خپلو بنده ګانو د ټولو حالاتو نه هر وخت خبر دی.

## د حقیقي زهد پیژندنه څه ده؟

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ قَالَ: لَيْسَ الزُّهْدُ فِي الدُّنْيَا بِلُبْسِ |
| او حضرت سفیان ثوری رحمه الله نه منقول دي چې هغه وفرمایل: په دنیا کې زهد د دې نوم ندی چې غټې او |
| الْغَلِيظِ وَالْخَشِنِ وَأَكْلِ الْجَشِبِ إِنَّمَا الزُّهْدُ فِي الدُّنْيَا |
| وړې او سختې جامې واغوستلې شي. او وچه کلکه او بې خونده ډوډۍ وخوړلې شي. بلکې د دنیا نه زهد اختیارول |
| قِصَرُ الْأَمَلِ. رَوَاهُ فِي «شرح السنة»[1] |
| په حقیقت کې آرزوګانو او امیدونو کې د کمې نوم دی. |

**توضیح:** **الغلیظ**: د وړې پیړې جامې مراد دي. لکه خمتا او داسې نور.

**الخشن**: زګه او سخته جامه مراد ده.

**الجشب**: وچه کلکه ډوډۍ، وچه او بې خونده خوراک ته جشب وایې.

**قصر الامل**: قصر بمعنې د لنډوالي او مختصر ارمان مراد دي. یعنې اصل زهد دا ندی چې زګه جامه وي، بې خونده خوراک وي، بلکې اصل زهد د ارزوګانو مختصر کولو نوم دی. چې د دنیا نه داسې بې رغبتې وي چې د دې په جوړولو کې بیخې دزړه خوښتیا نوي. نه اوړدې منصوبې وي. او نه یې څه رغبت وي. بلکې د دنیا نه بیزاره او د اخرت اړخ ته راغب وي.

د دې حدیث خلاصه دا راووتله چې کوم سالک او زاهد جسمانې توګه باندې خو دنیا نه ځان ساتي خو په زړه کې د دنیا سره مینه ساتي او دهغه زړه د دنیا د مینې نه ډک دی نو دا هلاکونکې ناروغي ده. او تباه کونکی صورت حال دی. د دې په عکس باندې که جسمانې توګه باندې یو سړی د دنیا مباح خوندونو نه فائده اخلي خو دهغه زړه د دنیا د مینې نه بیخې خالي دی. بلکې د اخرت اړخ ته متوجې دی. دا غوره صورت حال دی. ګویا چې د دنیا مال یې په لاس کې دی او د آخرت ایمان یې په زړه کې دی.

د دې مثال داسې دی چې یوه کشتۍ په اوبو کې روان ده. په هغې کې خلک سپاره دي. که د سمند اوبه د کشتۍ نه بیرون دي نو دا کشتۍ لپاره ډیره ضروري ده. ځکه چې د اوبو نه بغیر کشتۍ نشې ګرځیدلی. خو که دغه اوبه په کشتۍ کې دکي شي نو کشتۍ به هم غرقه شي او خلک به هم ډوب

---

[1] اخرجه البغوي في شرح السنة ۱۴/۲۸۶.

شي. بیخي دغه شان د دنیا مال دی. چې هغه د ظاهري بدن لپاره ضروري دی. خو که د دنیا دغه مال د انسان په زړه کې ننوتلو باندې په هغې قبضه وکړي نو په دې سره به ایمان برباد شي. او بیا به د ا سړی هلاک شي. هم دا مضمون او دا راتلونکی د امام مالک رحمه الله روایت او د اثر دی.

لنډه دا چې د دې دواړو روایتونو مطلب په دې مثال سره هم ښه پوه کې راتلی شي چې د انسان بدن د سپرلی په شان دی. که سپرلی باندې خوراک څکاک وکړي او ښه چاق او تازه یې وساتي نو هغه به ستا د سپرلی کولو لپاره ښه په کار راشي خو که دا دې کمزوری کړو نو هغه به هلاک شي او د سپرلی قابل به نه وي. دغه شان که بدن دې ډیر کمزوری کړو نو دا بدن به بیا د عبادت په کار رانه شي. (مرقات ۹/۱۳۳)

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنْ زَيْدِ بْنِ الْحُسَيْنِ قَالَ: سَمِعْتُ مَالِكًا وَسُئِلَ |
| او حضرت زید بن حصین فرمایي چې ما د حضرت امام مالک رحمه الله نه دا اوریدلي دي کله چې د هغه نه پوښتنه |
| أَيُّ شَيْءٍ الزُّهْدُ فِي الدُّنْيَا؟ قَالَ: طِيبُ الْكَسْبِ وَقِصَرُ الْأَمَلِ. رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي «شعب الإيمان»[1] |
| وشوه چې د دنیا نه زهد اختیارول د څه شي نوم دی؟ هغه وفرمایل: حلاله ګټه او د ارزوګانو کموالي نوم زهد دی. |



[1] رواه البيهقي في شعب الايمان ۷/۴۰۶۲ رقم الحديث ۱۰۷۷۹.

## بَابُ اسْتِحْبَابِ الْمَالِ وَالْعُمُرِ لِلطَّاعَةِ ٢٣ ربيع الثاني ١٤١٨هـ

# عبادت لپاره د مال او عمر خوښ ساتلو بيان

المال ما يميل اليه القلب كما قال الشاعر:

رئيت النـاس قد مـالوا الى من عنـده مال ومن لا عنده مـال فعنه الناس قد مالوا

رئيت الناس قد قد ذهبوا الى من عنده ذهب ومن لا عنده ذهب فعنه الناس قد ذهبوا

په دې باب کې به هغه احاديث بيانيږي چې دهغې نه به معلوميږي چې د الله تعالی عبادت او طاعت په خاطر او د دين د خدمت په غرض سره او د آخرت د ښيګړي او کاميابۍ کارونو د کولو لپاره مال دولت طلب کول او د هغې غوختنه جائز ده.

کما قيل المال هو الحجاب الاکبر اما للنار واما للجنة ونعم المال الصالح للرجل الصالح ولولا هذه الدنانير لتمندل بنا هؤلاء الملوك.

اسلام خو د انساني ژوند لپاره کامل او مکمل د ژوند قانون دی او د زياتې کمې نه پاک د الله تعالی قانون دی. ځکه په دې کې چې چيرته د مال د خرابوالې بدې بيان کړی شويده. هلته د ښيګړي والا مال ستاينه هم شويده. لهذا مطلقًا مال ته بد نشي ويل کيدلی. او نه مطلقًا ديته ښه ويل کيدلی شي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### الله تعالی کمنام مالداره خوښ ساتي

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ سَعْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ اللهَ يُحِبُّ الْعَبْدَ التَّقِيَّ الْغَنِيَّ |
| حضرت سعد رضي الله عنه فرمايي چې نبی صلی الله عليه وسلم وفرمايل: يقينًا الله تعالی هغه بنده خوښوي چې هغه متقي او غنی |
| الْخَفِيَّ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ وَذُكِرَ حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ: «لَا حَسَدَ إِلَّا فِي اثْنَيْنِ» فِي «بَابِ فَضَائِلِ الْقُرْآنِ»[1] |
| ګوټ کې ناست وي. (روايت کړی دی مسلم، او ذکر کړی شوی په حديث د ابن عمر رضي الله عنه «لَا حَسَدَ إِلَّا فِي اثْنَيْنِ» |

**توضيح**: التقی: صاحب تقوی سړي ته تقی ويلی شويدي. دلته د تقي نه مراد هغه سړی دی چې هغه په خپل مال کې بې ځايه اسراف نه کوي. الغنی صاحب مال ته وايي. د دېنه مراد حقوق الله او حقوق العباد ادا کولو والا شکر ګذار سړی دی.

---

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۷۷ رقم الحديث (۲۹۶۵-۱۱) واحمد في المسند ۱/۱۷۷.

**الخفي:** ورک نومی، په کوټ کې ناست سړې ته الخفي ويلی شويدي. د دينه مراد هغه مالداره سړی دی چې هغه د ډير مالداره کيدلو باوجود هم عاجز، مسکين او ګمنام وسيږي. مال د ډيروالې د وجې نه تکبر کوي او نه په نور باندې سرکشې او تجاوز کوي. بلکې د چيټياژوند تيروي او په چپه سره خپل دا حلال مال د ښيګړو په لارو کې خرچ کوي. دا سړی ځکه الله تعالی ته خوښ دی چې په ده کې ډير ښه ښويونه جمع شويدي. او حال دا دی چې مالداره خلک د تکبر سره سره ظلم هم شروع کړي. او د فساد ټولې اډې چلوي. (مرقات ۹/۱۳۴)

# الْفَصْلُ الثَّانِي

﴿۲﴾ عَنْ أَبِي بكرةَ أَنَّ رَجُلًا قَالَ: يَا رَسُولَ الله أَيُّ النَّاسِ خيرٌ؟

حضرت ابوبکر رضي الله عنه روايت دی چې يو سړي پوښتنه وکړه چې يارسول الله صلی الله عليه وسلم! کوم سړی غوره دی؟

قَالَ: «مَن طَالَ عمُرُه وحسُنَ عَمَلُهُ». قَالَ:

نبی صلی الله عليه وسلم وفرمايل: هغه سړی چې د هغه عمر ډير وي او اعمال يې ښه وي. بيا هغه سړي پوښتنه وکړه

فَأَيُّ النَّاسِ شَرٌّ؟ قَالَ: «مَنْ طَالَ عُمُرُهُ وَسَاءَ عَمَلُهُ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ والدارمي[1]

او کوم سړی بد دی؟ نبی صلی الله عليه وسلم وفرمايل: د چا عمر چې ډير وي او اعمال يې بد وي.

## د ښه عمل والا سړی د شهيد د درجې نه ځنګه مخکې شو؟

﴿۳﴾ وَعَن عبيد بن خَالِد أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آخَى بَيْنَ رَجُلَيْنِ

او حضرت عبيد ابن خالد رضي الله عنه فرمايي چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم د دوه کسانو ترمينځ ورولې جوړه کړې وه.

فَقُتِلَ أَحَدُهُمَا ثُمَّ مَاتَ الْآخَرُ بَعْدَهُ بِجُمُعَةٍ أَوْ نَحْوِهَا

پدوې کې يو سړی د خدای په لاره کې ووژلی شو. او د هغه د شهادت نه يوه اونۍ (هفته) يا يوې اونۍ ته نژدې دا سړی هم وفات

فَصَلَّوْا عَلَيْهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا قُلْتُمْ؟»

شو. صحابؤ د هغه سړي د جنازې لمونځ وکړو. نبی کريم صلی الله عليه وسلم حاضرينو نه پوښتنه وکړه چې تاسو د مړي کومه جنازه

قَالُوا : دَعَوْنَا الله

وکړه، په هغې کې تاسو څه ولوستل او څه مو وويله؟ صحابؤ عرض وکړو چې مونږ د الله تعالی نه دا دعاء وکړه

---

[1] أخرجه الدارمي في السنن ۲/۳۹۸ رقم الحديث ۲۷۴۲، و الترمذي في السنن ۴/۴۸۹ رقم الحديث ۲۳۳۱.

| |
|---|
| أَنْ يَغْفِرَ لَهُ وَيَرْحَمَهُ وَيُلْحِقَهُ بِصَاحِبِهِ. |
| چې د ده ګناهونه وبخښه.په ده باندې رحمت راولېږه. او دا دهغه (شهيد شوي) ملګرې خواته ورسوه. |
| فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «فَأَيْنَ صَلَاتُهُ بَعْدَ صَلَاتِهِ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ (دې اوريدلو باندې) وفرمايل: نو بيا د ده هغه لمونځونه چېرته لاړل چې هغه ده د خپل ملګرې نه وروسته کړې ؤ |
| وَ عَمَلُهُ بَعْدَ عَمَلِهِ ؟ » أَوْ قَالَ : |
| او هغې د اعمالو ثواب چېرته لاړو چې هغه ده د خپل ملګرې د اعمالو نه وروسته کړې ؤ، يا يې دا وفرمايل چې |
| « صِيَامُهُ بَعْدَ صِيَامِهِ |
| د ده د هغه روژو ثواب چېرته لاړو چې هغه ده د خپل ملګرې د روژو نه وروسته نيولې وې. بيشکه په |
| لِمَا بَيْنَهُمَا أَبْعَدُ |
| جنت کې د دنه او د الله ته په نزديکت کې د دې دوه کسانو ترمينځ چې کومه فاصله ده. هغه د دې فاصلې |
| مِمَّا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ» . رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ[1] |
| نه هم ډېره ده کومه چې د زمکې او آسمان ترمينځ ده . |

**توضيح: آخی** : نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپل مبارک دور کې په خپلو صحابؤ کې دوه کسانو ورونه ورونه کړل.(مرقات ۹/۱۳۶)

**فقتل احدهما**: يعني په دوې کې يو د الله په لاره کې شهيد شو او بل يوه اونۍ(هفته) وروسته پخپل طبعي مرګ باندې مړ شو.(مرقات ۹/۱۳۶)**ماقلتم**: نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جنازې لمونځ کولو نه وروسته د صحابؤ نه پوښتنه وکړه چې تاسو د جنازې په لمونځ کې د دې مړې لپاره څه دعاء وغوختله. يا تاسو د دې دواړو دوستانو په اړه باندې څه وايې؟ صحابؤ جواب ورکړو چې دا دواړه په دنيا کې يوځاې ؤ، مونږ دا دعاء وغوختله چې الله تعالی دا مړی د ده د ملګرې سره په يوه درجه کې وساتي. دې لپاره چې په آخرت کې هم يوځاې وي. هغه اګرکه شهيد شو خو الله تعالی دې دا مړی هم د هغه درجې ته ورسوي. زمونږ دعاء هم دا ده .او زمونږ خپل مينځې خبرې هم دا وې.په دې باندې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې نا ! بلکې د دې دواړو ترمينځ په مرتبه کې ډير فرق دی. ځکه چې د يوې اونۍ لمونځونه او روژې د دې مړې د دې شهيد نه ډير دي.(مرقات ۹/۱۳۶)

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۳/۳۵ رقم الحديث ۲۵۲۴ والنسائي ۴/۷۴ رقم الحديث ۱۹۸۵.

څنګه چې ټول صحابه مجاهدين ؤ. د شهادت دې جذبې دا د شهيد مرتبې ته ورسولو، او د يوې اونی عبادت يې ورباندې ډير ؤ. څکه مخکې شو. دريم جواب دا دی چې دا څه خصوصي معامله ده او الله تعالی کله کله په مفضول عمل باندې ثواب ورکوي. لکه د ذِكرُ الله په احاديثو کې ذکر دی.

## صدقه کولو باندې مال کله هم نه کميږي

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَن أبي كبشةَ الأنماريّ أنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او د حضرت ابو کبشه انماری رضی الله عنه روايت دی چې هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا درې خبرې اوريدلي دي |
| يَقُولُ: «ثَلاثٌ أُقسِمُ عَلَيْهِنَّ وَأُحَدِّثُكُمْ حَدِيثًا فَاحْفَظُوهُ |
| چې د هغې حقانيت او صداقت باندې زه قسم خورلی شم او زه تاسو ته يوه خبره کوم، تاسو هغه ياد ساتئ. |
| فَأَمَّا الَّذِي أُقسِمُ عَلَيْهِنَّ فَإِنَّهُ مَا نَقَصَ مَالُ عَبْدٍ |
| نو هغه درې خبرې چې د هغې په حقانيت او صداقت باندې زه قسم خورلی شم، دا دي چې د بنده مال د خدای په لاره کې په |
| مِنْ صَدَقَةٍ وَلَا ظُلِمَ عَبْدٌ مَظْلِمَةً |
| خرچ کولو سره نه کميږي. په کوم بنده باندې چې ظلم وشي او د هغه مال ناحقه واخستلی شي. او هغه بنده په دغه |
| صَبَرَ عَلَيْهَا إِلَّا زَادَهُ اللهُ بِهَا عِزًّا وَلَا فَتَحَ عَبْدٌ بَابَ مَسْأَلَةٍ |
| ظلم او زياتې باندې صبر وکړي نو الله تعالی د هغه عزت ډيروي. او کوم سړی چې په نفس باندې د سوال کولو دروازه |
| إِلَّا فَتَحَ اللهُ عَلَيْهِ بَابَ فَقْرٍ |
| برسيرته کړه، الله تعالی به د هغه لپاره د فقر او مفلسۍ دروازه برسيرته کړي. او پاتې شوه د هغه حديث خبره کوم چې |
| وَأَمَّا الَّذِي أُحَدِّثُكُمْ فَاحْفَظُوهُ» فَقَالَ: |
| ما تاسو د اورولو لپاره ويلې ؤ. نو وس زه هغه بيانوم. دا ياد ولرئ، د دېنه وروسته يې وفرمايل: په دې کې هيڅ شک |
| "إِنَّمَا الدُّنْيَا لِأَرْبَعَةِ نفرٍ: عبدٌ رزقه الله مَالا |
| نشته چې دا دنيا بس د څلور کسانو لپاره ده. يو خو هغه بنده چې هغه ته الله تعالی مال دولت هم ورکړيدی |
| وعلماً فهوَ يَتَّقِي فِيهِ رَبَّهُ |
| او د علم د دولت يې ورکړيدی نو هغه بنده د خپل مال دولت په اړه باندې د الله تعالی نه يريږي. د دې په ذريعه |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَيَصِلُ | رَحِمَهُ | وَيَعْمَلُ | لِلهِ | فِيهِ |

سره د خپلو خپلوانو او عزيزانو سره ښه ښويې او احسان کوي. او په دغه مال دولت کې د هغې مطابق د الله تعالى

بِحَقِّهِ فَهٰذَا بِأَفْضَلِ الْمَنَازِلِ. وَعَبْدٍ رَزَقَهُ اللهُ عِلْمًا

لپاره خرچ کوي. نو دې بنده ډېره وچته کامل ترينه مرتبه ده. دويم هغه بنده چا ته چې الله تعالى علم ورکړيدى

وَلَمْ يَرْزُقْهُ مَالًا فَهُوَ صَادِقُ النِّيَّةِ وَيَقُولُ: لَوْ أَنَّ لِي مَالًا

خو هغه ته يې مال دولت ندى ورکړى نو هغه بنده وايي چې که زما زما مال او پيسه وى نو ما به په هغې سره ښه

لَعَمِلْتُ بِعَمَلِ فُلَانٍ

اعمال کړي وى. لکه فلانکى بنده چې د خپل مال دولت په اړه باندې د الله تعالى نه يريږي. نو د دواړو کسانو

فَأَجْرُهُمَا سَوَاءٌ. وعبدٌ رزَقه اللهُ مَالًا وَلم يَرْزُقْهُ عِلْمًا

ثواب برابر دى. دريم هغه بنده دى چا ته چې الله تعالى مال ورکړيدى خو علم يې ندى ورکړى نو هغه بنده د

فَهُوَ يَتَخَبَّطُ فِي مَالِهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ لَا يَتَّقِي فِيهِ رَبَّهُ

بى علمه کيدلو په وجه باندې خپل مال کې خويږي. هغه د دې مال دولت په اړه باندې د خپل رب نه نه يريږي.

وَلَا يَصِلُ فِيهِ رَحِمَهُ وَلَا يَعْمَلُ فِيهِ

او د خپلو خپلوانو او عزيزانو سره مال احسان او ښه ښويې نکوي. او نه د دې حقونو پورا کوي. کوم چې د ده

بِحَقٍّ فَهٰذَا بِأَخبثِ المنازلِ وعبدٌ

د مال دولت سره متعلق دي. نو دا بنده د بدترينې مرتبې والا دى. او څلورم بنده هغه دى چا ته چې نه خو الله تعالى

لم يرزُقه اللهُ مَالًا وَلَا عِلْمًا فَهُوَ يَقُولُ: لَوْ أَنَّ لِي مَالًا

مال ورکړى دى او نه يې علم ورکړى دى. نو هغه بنده وايي چې که زما سره مال او پيسه وى نو ما به هم د هغه هغه فلانکي

لَعَمِلْتُ فِيهِ بِعَمَلِ فُلَانٍ

سړي په شان (بدو کارونو) کې خرچ کولې. نو دا سړى د خپل نيت په وجه باندې مغضوب دى. او د ده ګناه د هغه (دريم سړي) د ګناه سره

فَهُوَ بِنِيَّتِهِ وَ وِزْرُهُمَا

برابر ده. او دا (څلورم) سړى د نه مالدار کيدلو په وجه باندې بدو کارونو کې خرچ کونکى نوى. خو په بدو کارونو کې د خرچ کولو نيت

| سَوَاءٌ ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ قَالَ : هٰذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ .[1] |
| --- |
| لري، پهدې سبب سره دهٔ ته هم هغه ګناه ورکولی کیږي، کوم چې په بدو کارونو کې په واقعي توګه سره خرچ کونکي ته ورکړې کیږي. |

**توضیح**: اقسم علیهن: یعني نبی کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فرمایې چې درې شیان داسې یقیني او پاخه دي چې په دې باندې زه قسم خوړلی شم: (۱) یو دا چې په صدقې او خیرات سره کله هم مال نه کمیږي. اګرکه په ظاهره باندې خلک دا ګڼي چې د مال په ورکولو باندې مال کمیږي. (۲) په ظلم باندې د مظلوم صبر کولو سره د هغه عزت نه کمیږي. خلک دا ګڼي چې عزت کمیږي. ځکه چې هغه بدله وانخستله. (۳) په سوال کولو سره فقر او فاقه رائحي ، اګرکه سوال کونکی (سائل) دا ګڼي چې په دې سره به فقر او فاقه ختمه شي.

احدثکم: یعني ما چې څه ویلې ؤ چې تاسو ته به یو حدیث بیانوم نو هغه واؤرئ. چې دنیا او د مال په اعتبار سره خلک په څلور قسمه دي:

(۱)یو هغه سړی دی چاته چې الله تعالی علم او مال دواړه ورکړل ، دا ډیر ښه سړی دی. که د مال او علم حق ادا کړي. (۲) دویم هغه سړی دی چې هغه ته الله تعالی علم ورکړو او مال یې ورنکړو کله چې دا په خپل علم باندې عمل کوي نو دا هم ډیر ښه سړی دی . دا د ریښتونې نیت والا دی. که مال راغلی نو په نیکو کارونو کې به یې خرچ کړم. لهذا دا هم د اولنې سړې په شان دی.

(۳)دریم هغه سړی دی چاته چې الله تعالی ښه مال ورکړی دی. او علم یې هیڅ ندی ورکړی. هغه د جهالت سره په مال کې ناجائز تصرفات کوي. دا بدترین سړی دی.

(۴)څلورم هغه سړی دی چې نه خو د هغه سره مال شته او نه ورسره علم شته دی لیکن هغه دا ارمان کوي که زما سره مال وی نو ما به د فلانکې سړې په شان په غلطو کارونو کې خرچ کړی وی.نو دا سړی هم د دریم نمبر سړې په شان دی.د ګناه په ارمان کولو باندې دا ګناهګار شو .لهذا دا هم د هغه په شان شو.

وزرهما سواء: یعني مفلس جاهل دی.او تمنا کوي که زما سره مال راغلی نو د فلانکې فاسق فاجر مالداره په شان ژوند به کوم. رنډۍ به نځوم (ګډوم) شراب به څکم، حق به غصب کوم. نو د ده ګناه او د مالداره فاسق د ګناه بوج به برابر وي. ګویا په ښه نیت سره ښه ثواب ورکول کیږي او په بد نیت سره بده بدله ورکول کیږي.

**سوال**: دا چې د معصیت کولو نه مخکې خو په نیت کولو سره نیو که نه کیږي ، دلته ولې وشوه؟

**جواب**: د نیت پنځه درجې دي. چې هغه شاعر داسې بیان کړیدي:

---

(۱)اخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۸۷رقم الحدیث ۲۳۲۵وابن ماجه ۲/۱۴۱۳ رقم الحدیث ۴۲۲۸.

مراتب القصد خمس هاجس ذکروا فخاطر فحدیث النفس فاستمعا
یلیه هم فعزم کلها رفعت الا الاخیرة ففیه الاخذ قد وقعا
(مرقات ۹/۱۴۰)

نو د عزم په درجه کې که نیت وي نو په دې باندې مواخذه (نیوکه) کیږي، دلته د دې سړي نیت د عزم په درجه کې دی. نو ځکه د مواخذه ذکر وکړی شو. عزم دا دی چې سړی ګناه ته سل فیصده تیار دی. فقط د موقع په لاس د ورتلو انتظار دی.

## د نیکۍ توفیق د ښایسته خاتمې نښه ده

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِنَّ اللهَ تَعَالَى إِذَا أَرَادَ بِعَبْدٍ |
| او حضرت انس رضي الله عنه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: الله تعالی چې کله د بنده د ښیګړې |
| خَيْرًا اسْتَعْمَلَهُ». فَقِيلَ: وَكَيْفَ |
| اراده وکړي نو په هغه باندې ښه کارونه کوي. پوښتنه وشوه چې یا رسول الله! په ده باندې الله تعالی د نیکۍ کارونه |
| يَسْتَعْمِلُهُ يَا رَسُولَ اللهِ؟ قَالَ: «يُوَفِّقُهُ لِعَمَلٍ صَالِحٍ قَبْلَ الموتِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1] |
| څنګه کوي؟ وې فرمایل: د مرګ نه مخکې هغه ته د نیک کار توفیق ورکړل شي. |

## د عقلمند او بې عقله پیژندنه

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الْكَيِّسُ مَنْ |
| او حضرت شداد بن اوس رضي الله عنه فرمایې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: عقلمند او مړنی هغه سړی دی چې هغه |
| دَانَ نَفْسَهُ وَعَمِلَ لِمَا |
| خپل نفس راتیټ کړي. او مطیع او تابعداریې جوړ کړي. او د هغه اجر او ثواب لپاره (ښه) عمل وکړي چې هغه به |
| بَعْدَ الْمَوْتِ. وَالْعَاجِزُ مَنْ أَتْبَعَ نَفْسَهُ هَوَاهَا |
| د مرګ نه وروسته مومي. او احمق او نادان او بزدله هغه سړی دی چې هغه خپل نفس د خواهشاتو تابع کړي. او په ګناهونو |
| وَ تَمَنَّى عَلَى اللهِ ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ ابْنُ مَاجَهْ[2] |
| کې داخته کیدلو باوجود هم د الله تعالی نه د دې خبرې آرزو کوي (چې هغه د ده نه راضي شي) دا وبخښي او دا جنت ته داخل کړي. |

---

([1]) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۹۲ رقم الحديث ۲۱۴۲ واحمد في المسند ۳/۱۰۶.

([2]) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۵۰ رقم الحديث ۲۴۵۹ وابن ماجه في السنن ۲/۱۴۵۴ رقم الحديث ۴۲۶۰.

**توضيح**: **اَلْكَيِّسُ**: دا كيس د كياسة نه دى. عقلمند ، هوښيار په معنې دى په دې كې د مړانې مفهوم هم شته دى يعنې هوښيار مړنى عقلمند هغه سړى دى.

دان : د ټيټيدلو په معنى دى. يعنې نفس مطيع او تابعدار جوړ كړي.

العاجز: د عاجز نه مراد دلته احمق، بى همته، او بزدله سړى دى چې دهغه نفس دا داسې راګوزار كړو چې دا خپل نفس پسې شاته ولګيدلو. په ګناهونو كې ككړ ؤ.او فقط د آرزوګانو په آسرا كيناستلو .نه يې توبه وكړه، نه يې استغفار وكړل.په ګناهونو كې راګير دى.او ارمان يې دا دى چې الله تعالى غفور رحيم دى.ما به جنت ته داخل كړي.بيشكه الله تعالى غفور رحيم دى.خو قهار او جبار هم دى.دا خو يو ډول خندا ده چې يو ځوک خفه كوي هم او دهغه د رضا د حالت فيصله هم كوي. علامه كرخي رحمه الله فرمايلي دي چې د عمل صالح نه بغير د جنت طلب كول په ګناهونو كې يوه ګناه ده. حسن بصرى رحمه الله فرمايي: **من ظن انه يصل الى الله بعمل فهو متعن ومن ظن انه يصل الى الله بغير عمل فهو متمن.** يعنې كوم سړې چې دا خيال وكړو چې هغه به فقط د عمل په زور باندې الله ته ورسيږي نو هغه خپل ځان په مشقت كې اچونكى دى. او كوم سړى چې دا خيال وكړي چې هغه به د عمل نه بغير الله تعالى ته ورسيږي نو دا فقط ارزو كونكى دى. امام غزالى رحمه الله فرمايې چې اول خپل ځان د رحمت حقدار محسن جوړ كړه ، بيا د رحمت دعا وغواړه ځكه چې ﴿اِنَّ رَحْمَتَ اللهِ قَرِيْبٌ مِّنَ الْمُحْسِنِيْنَ﴾ د قرآن آيت دى. (اعراف : ۵۶)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## اهل تقوى لپاره مال او دولت بد څيز ندى

| |
|---|
| ﴿۷﴾ عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: كُنَّا فِي مَجْلِسٍ |
| نبى كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په صحابؤ كې يو سړى وايي چې مونږ په يو مجلس كې ناست ؤ چې |
| فَطَلَعَ عَلَيْنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَى رَأْسِهِ |
| رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ راغلى او زمونږ ترمينځ كيناستلو .دغه وخت د نبى كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په سر مبارک باندې (دغسل) د |
| أَثَرُ مَاءٍ فَقُلْنَا:يَا رَسُوْلَ اللهِ نَرَاكَ طَيِّبَ النَّفْسِ. |
| اوبو لوندوالى ؤ. مونږ عرض وكړو چې يارسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا وخت مونږ تا ډير په زړه خوشحاله وينو. |

| |
|---|
| قَالَ: أَجَلْ. قَالَ: ثُمَّ خَاضَ الْقَوْمُ فِي ذِكْرِ الْغِنَى |
| نبی کریم صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ وفرمایل: هو! راوي وايي چې د دېنه وروسته د مجلس خلک د دولتمندي په ذکر کې مشغول شول. |
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا بَأْسَ بِالْغِنَى لِمَنِ اتَّقَى اللهَ |
| رسول الله صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې د هغه سړي په مالدارۍ کې هیڅ باک نشته چې هغه د الله تعالی نه یریږي |
| عَزَّ وَجَلَّ وَالصِّحَّةُ لِمَنِ اتَّقَى خَيْرٌ مِنَ الْغِنَى وَطِيبُ النَّفس |
| او روغ صحت د خدا نه یرېدونکې لپاره د مالدارۍ نه غوره ده. د غه شان د زړه خوشحالي د الله تعالی |
| من النَّعيم» رَوَاهُ أَحْمد[1] |
| دا ړخ نه یو نعمت دی. (احمد) |

## مال او دولت د مؤمن ډهال دی

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ قَالَ كَانَ الْمَالُ فِيمَا مَضَى يُكْرَهُ فَأَمَّا الْيَوْمَ |
| او حضرت سفیان ثوری رحمه الله فرمایي چې په تیره زمانه کې به مال بد ګڼلی کیدلو خو ترکومه چې د نن زمانې |
| فَهُوَ تُرْسُ الْمُؤْمِنِ وَقَالَ |
| تعلق دی نو وس مال دولت د مسلمانانو لپاره ډهال دی. حضرت سفیان ثوری رحمه الله دا هم وفرمایل: |
| لَوْلَا هَذِهِ الدَّنَانِيرُ لَتَمَنْدَلَ بِنَا هَؤُلَاءِ الْمُلُوكُ |
| کهٔ دا درهم او دینار او روپۍ پیسې نه وی نو باچاهانو او امیرانو به مونږ نه لاس پاکی جوړولو باندې ذلیله او خوار جوړ کړی وی |
| وَقَالَ مَنْ كَانَ فِي يَدِهِ مِنْ هَذِهِ شَيْءٌ فَلْيُصْلِحْهُ |
| د غه شان هغه وفرمایل: کهٔ د یو سړي سره لږ ډیر مال وي نو هغه لپاره پکار دي چې هغه د دې اصلاح وکړي |
| فَإِنَّهُ زَمَانٌ إِنِ احْتَاجَ |
| ځکه چې زمونږ دا زمانه داسې ده که په دې کې څوک محتاج او غریب وي نو خپل دین د خپل لاس نه |
| كَانَ أَوَّلَ مَنْ يَبْذُلُ دِينَهُ وَقَالَ: الْحَلَالُ لايحتمل السَّرف. رَوَاهُ فِي شرح السّنة[2] |
| ورکونکی به اول د غه سړی وي. د حضرت سفیان ثوری یو قول دا هم دی چې حلال مال د اسراف بارونکی ندی |

---

(1) اخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۷۲۲ رقم ۲۱۴۱ واحمد في المسند ۵/۳۷۲.

(2) اخرجه البغوي في شرح السنة ۱۴/۲۹۰ رقم الحديث ۴۰۹۸.

**توضیح: فیما مضی یکره:** یعنې په تیره زمانه کې به مال دولت ناخوښ ګڼلی کیدلو. مؤمن او متقي بناغلو به مال او دولت مکروه ګڼلو. ځکه چې عام ماحول د زهد او تقوی ؤ. خلکو به غریب او فقیر ذلیل او سپک نه ګڼلو. مالي کمزورۍ په وجه به يې د هغه ایمان نه تباه کولو. دغه شان باچا او حکمرانان به هم ښه ؤ. چا چې به د غریب او فقیر پالنه کوله. نو ځکه به خلکو مال او دولت نه راغونډولو. او جمع کول به يې عیب ګڼلو. خو اوس معامله د هغې برعکس ده چې په معاشره کې غریب او فقیر سړی ذلیل او سپک ګڼلی کیږي. او د پیسې په بنیاد باندې د هغه ایمان اخستلی کیږي. دغه شان حکمرانان هم خیرخواه پاتې نشو. نو نتیجه به دا راوځي چې غریب سړی به د مالدارانو او حکمرانانو لاس پاکی جوړیږي. او دهغوی د لاس پاکولو او پلیتي پاکولو لپاره به دست پاک او دست مال جوړیږي. **فلیصلحه:** یعنې د کوم سړي سره چې د دې مال نه څه هم وي، هغه دې اصلاح وکړي. مطلب دا چې که لږه پیسه هم وي. نو هغه دې په څه کاروبار کې ولګوي. دا دهغې اصلاح او پرمختګ او ډیروالی دی. یا د اصلاح مطلب دا دی چې دا د قناعت سره خرچ کړي، اسراف دې نه کوي. **لایحمل السرف:** یعنې حلال مال اسراف لره نه برداشت کوي. ځکه چې هغه دومره ډیر خو نه وي چې په هغې کې د اسراف ګنجائش وي. په حلاله طریقه باندې ګټلی شوی مال دومره ډیر چیرته وي. چې په هغې کې سړی اسراف شروع کړي. اسراف خو په هغه مال کې کیږي چې هغه په ناجائز او حرام طریقه باندې ترلاسه شوی وي. نو کوم مال چې په دغه طریقه باندې په ډیر مقدار کې راځي، دغه شان د حرامو په لاره به ځي. (مرقات ۹/۱۴۴)

## شپیته کاله عمر غټ عمر دی

﴿۹﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يُنَادِي مُنَادٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ:

او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: اعلان کونکی به د قیامت په ورځ دا اعلان

أَيْنَ أَبْنَاءُ السِّتِّينَ؟ وَهُوَ الْعُمُرُ الَّذِي قَالَ اللهُ تَعَالَى

وکړي چې د شپیته کاله عمر والا خلک چیرته دي او دا عمر هغه عمر دی چې دهغې په اړه باندې الله تعالی

[أَوَلَمْ نُعَمِّرْكُمْ مَا يَتَذَكَّرُ فِيهِ

دا فرمایلي دي (ترجمه) آیا مونږ تاسو ته داسې عمر نه ؤ درکړی چې په هغې کې نصیحت ترلاسه کونکي

مَنْ تَذَكَّرَ وَجَاءَكُمُ النَّذِيرُ] رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيْمَانِ[1]

نصیحت ترلاسه کولی شو. او حال دا دی چې تاسو ته یرونکی هم راغلی.

---

(۱) رواه البیهقي في شعب الایمان ۷/۲۶۴ رقم الحدیث ۱۰۲۵۴

# د عمر د فراخیتا سره د شهادت ارمان کول دوچتوالی سبب دی

﴿۱۰﴾ وَعَن عبدِ الله بنِ شدّادٍ قَالَ إِنَّ نفرا من بني عذرة ثلاثة

او حضرت عبد الله بن شداد رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایي چې د بنی عذره د قبیلې څه خلک چې د هغوی شمیره درې وه.

أَتَوا النَّبِيَّ صَلَّى الله عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَأَسلَمُوا قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيهِ وَسَلَّمَ:

د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شول او اسلام یې قبول کړو. رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وفرمایل:

« مَنْ يَكْفِينِيهِمْ ؟ » قَالَ طَلحَةُ :

څوک دی چې هغه دې خلکو د خبر اخستنې په اړه باندې ما بې فکره کړي؟ حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل:

أَنَا. فَكَانُوا عِندَهُ فَبَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى الله عَلَيهِ وَسَلَّمَ

زه د دې ذمه واري اخلم. نو هغه درې واړه د حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنهُ سره ووسیدل. کله چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ

بَعثًا فَخَرَجَ فِيهِ أَحَدُهُمْ فَاستُشهِدَ ثُمَّ

یو اړخ ته لښکر ولیږلو. نو دهغې سره د دې درې واړو نه یو کس هم لاړو. او میدان جهاد کې شهید شو. د دې نه وروسته

بَعَثَ بَعثًا فَخَرَجَ فِيهِ الآخَرُ فَاستُشهِدَ ثُمَّ مَاتَ الثَّالِثُ عَلَى فِرَاشِهِ.

نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ یو بل لښکر ولیږلو. دهغې سره دویم کس لاړو. او هغه هم شهید شو. او بیا دریم کس په بستره باندې وفات شو.

قَالَ: قَالَ طَلحَةُ: فَرَأَيتُ هٰؤُلَاءِ الثَّلَاثَةَ فِي الجَنَّةِ

راوي وایي چې حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنهُ بیان کړل چې ما وکتل هغه درې واړه په جنت کې دي. دغه شان ما وکتل

وَرَأَيتُ المَيِّتَ عَلَى فِرَاشِهِ أَمَامَهُمْ وَالَّذِي

چې کوم سړی په بستره باندې وفات شوی ؤ. هغه خو د ټولو نه مخکې دی. او کوم سړی چې په دویم لښکر کې

استُشهِدَ آخِرًا يَلِيهِ وَأَوَّلَهُمْ

شهید شوی ؤ هغه وربسې روان او هغه ته ببخې نژدې دی. او د دې درې واړو هغه اولنی سړی چې هغه د اول

يَلِيهِ فَدَخَلَنِي مِنْ ذٰلِكَ فَذَكَرتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيهِ وَسلم

لښکر سره شهید شوی ؤ، د ټولو نه په آخر کې ؤ. نو زما په زړه کې څه خنډ پیدا شو. نو ما نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ ته خپل

فَقَالَ : « وَمَا أَنكَرتَ مِنْ ذٰلِكَ ؟

ذکر کړو. نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: نو بیا په دې کې ستا د شک او شبه او د انکار باعث کوم شی دی؟ ځکه چې د

| |
|---|
| لَيْسَ أَحَدٌ أَفْضَلَ عِنْدَ اللهِ مِنْ مُؤْمِنٍ يُعَمَّرُ فِي الْإِسْلَامِ |
| الله تعالى په نزد باندې هغه مسلمان نه افضل هيڅوک نشته چې هغه د اسلام په حالت کې ډير عمر ومونډلو |
| لِتَسْبِيحِهِ وَتَكْبِيرِهِ وَتَهْلِيلِهِ». (۱) |
| او د هغې په وجه باندې هغه ته د خدا د تسبيح او تکبير او تهليل ډيره موقع ورکړې شوه. |

**توضيح**: په دې حديث باندې هم هغه اعتراض او سوال دی چې هغه د دې باب په حديث نمبر: ۳ باندې شوی ؤ. هلته په تفصيل سره جواب ونه ليکلی شويدي. خلاصه دا چې وروسته پاتې کيدونکی څه د نن سبا تبليغي نه ؤ چې هغه سره د جهاد جذبه نه لرله. هغه صحابي ؤ. مرابط ؤ. مجاهد ؤ. د شهادت حکمي مرتبه خو هغه ته ورکړې شوې وه. دا زياتې اعمال د هغه د درجې په وچتولو کې ملاتړې ثابت شو. (مرقات ۹/۱۴۶)

## د قيامت په ورځ به ډير عبادت ګذار هم د نورو اعمالو ارمان کوي

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي عَمِيرَةَ وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: إِنَّ عَبْدًا |
| او حضرت محمد بن ابی عميره رضي الله عنه چې د نبی کريم صلى الله عليه وسلم په صحابؤ کې دی. فرمايي چې که يو بنده |
| لَوْ خَرَّ عَلَى وَجْهِهِ مِنْ يَوْمَ وُلِدَ إِلَى أَنْ يَمُوتَ هَرَمًا فِي طَاعَةِ اللهِ |
| د خپل پيدائښ د وخت نه بوډا والي کې تر مرګه پورې فقط د خدای په اطاعت او عبادت کې سر ټيټ وساتي. نو |
| لَحَقَّرَهُ فِي ذَلِكَ الْيَوْمِ وَلَوَدَّ أَنَّهُ رُدَّ إِلَى الدُّنْيَا |
| هغه به هم د (قيامت) په ورځ خپل دا طاعت او عبادت کم ګڼي، او دا ارمان به کوي چې کاش! زه د دې دنيا ته بيا وليږلی شم |
| كَيْمَا يَزْدَادَ مِنَ الْأَجْرِ وَالثَّوَابِ رَوَاهُمَا أَحْمَدُ (۲) |
| د دې لپاره چې د ده اجر او ثواب ډير شي. |

**توضيح**: ابوعميرة: عين باندې زبر دی. او ميم باندې زير دی. د هغه د ځوی نوم محمد دی. د محمد صحابي کيدل ډير مشهور نه ؤ. نو ځکه د هغه د نوم سره دا تعارف يو ځای کيږي چې هغه د نبی کريم صلى الله عليه وسلم صحابي ؤ. په دې حديث کې د اعمالو دير ترغيب دی. چې يو سړی د تصور نه هم ډير عبادت کړی دی خو د قيامت په ورځ به هغه هم ارمان کوي که ما لږ ډير عبادت کړی وی. نو څو مره به ښه وه.



---

(۱) أخرجه احمد في المسند ۱/۱۶۳

(۲) أخرجه احمد في المسند ۴/۱۵۸.

# بَابُ التَّوَكُّلِ وَالصَّبْرِ

قال الله تعالى: ﴿وَمَنْ يَتَوَكَّلْ عَلَى اللهِ فَهُوَ حَسْبُهُ﴾(طلاق:۳)﴿ إِنَّ اللهَ يُحِبُّ الْمُتَوَكِّلِيْنَ﴾(ال عمران:۱۵۹) وقال الله تعالى: ﴿وَاصْبِرْ وَمَا صَبْرُكَ إِلَّا بِاللهِ﴾ (نحل:۱۲۷)﴿إِنَّ اللهَ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ﴾

په لغت کې توکل سپارلو او اعتماد او بهروسې ته وايي. او په عامه اصطلاح کې د الله فیصلې ته د منلو غاړه کیخودلو نوم توکل دی. د صوفياء کرامو په اصطلاح کې څه لږ تفاوت دی. د سري سقطي رحمه الله د قول مطابق بغير د چون چرا نه بس او د بې وسۍ نه جدا کيدلو نوم توکل دی. (مرقات ۹/۱۴۷)

حضرت جنيد بغدادي رحمه الله د قول مطابق توکل دې ته وايي چې بنده داسې د الله شي ګويا د هغه خپل څه وجود نه وُ. نو الله تعالى به د بنده داسې شي لکه څنګه چې الله تعالى د هميش نه دی. بهرحال په شريعت کې توکل د اسبابو د بنديز نوم نه دی. بلکې د ټولو اسبابو استعمال د توکل د لاندې دی. ځومره چې د بنده نه کيدلی شي هغه دې وکړي، مخکې دې په الله تعالى باندې توکل وکړي. لکه په يو حديث کې دي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابي ته وُ فرمايل: **قيد وتوکل**. مولانا رومی رحمه الله فرمايلې دي: *توکل زانوائے اشتر بند* يعنې اوښ وتړه بيا توکل وکړه. بهرحال د اسبابو استعمال جائز دی. په اسبابو باندې اعتماد کول او تکيه کول جائز ندي. اسبابو د استعمال نه وروسته دې اسبابو ته د الله تعالى د اړخ نه مستقل حکم کيږي چې هغه اثر وکړي او که ونکړي. د دېنه معلومه شوه چې اسباب څه مستقل علت ندی. بلکې دا هم ذريعې دي. د دوې په لاس کې هيڅ نشته دی. هرڅه د الله تعالى د قدرت په قبضه کې دي. توکل يو عام لفظ دی. په ټولو کارونو او معاملاتو کې توکل جريان لري. خو د دې ډير استعمال د رزق او کسب او اکتساب په باب کې کيږي. او په دې کې ډير مشهور دی. (مرقات ۹/۱۴۸)

**والصبر**: د جزع فزع په مقابله نظم او ضبط او سنجيدګې او د وقار نوم صبر دی. په لغت کې صبر ايساريدلو او ايسارولو ته وايې. په شريعت کې صبر دېته وايي چې د حق او باطل د مقابلې په وخت کې د حق په جذبه باندې په کلکه سره ودريدلو سره په باطله جذبه باندې هغې لره ترجيح ورکړی شي. ملا علی قاری په مرقات کې د صبر تعريف داسې کړيدی: **الصبر هو حبس النفس علی مايقتضيه العقل والشرع**. پاس د پښتو تعريف ګويا د دې عربۍ د تعريف تشريح او تفصيل دی.

د صبر درې رکنه دي: (۱) **الصبر علی العبادة** (۲) **الصبر عن المعصية** (۳) **الصبر علی المصيبة**

**توکل او صبر** خو دواړه لازم او ملزوم دي نو ځکه دواړه په يو باب کې راجمع کړی شو خو بيا هم د توکل

ډیر استعمال د رزقونو په معامله کې کیږي او د صبر اکثر استعمال په مصیبتونو او سختو کې کیږي.

# الْفَصْل الأوّل

## د کامل صبر کونکو صفات

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مِنْ أُمَّتِي سَبْعُونَ أَلْفًا |
| حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل: زما د امت نه به اويا زره کسان |
| بِغَيْرِ حِسَابٍ هُمُ الَّذِينَ لَا يَسْتَرْقُونَ وَلَا يَتَطَيَّرُونَ وَعَلَى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ» مُتَّفق عَلَيْهِ[1] |
| بغير د حساب نه جنت ته ننوځي. چې هغوي دمونه نکوي، بدفالي نکوي، او فقط په خپل رب باندې اعتماد کوي |

**توضيح: لايسترقون:** سين او تاء د طلب لپاره دي. **رقيه** طلب کول مراد دي. **رقيه** دم وغيره ته وايي. وس رقيه او دم کول په دوه قِسمه دي. يو د جاهليت دمول دي. هغه اسلام مطلقًا منع کړيدي. که دلته د رقيه نه مراد د جاهليت دمونه وي نو دا د ادنیٰ مؤمن لپاره هم جائز ندي. شيخ عبدالحق رحمه الله په اشعة اللمعات کې ليکلي دي چې ډيره واضحه دا ده چې په دې حديث کې د دم کوم ذکر شويدی، دهغې نه د جاهليت د زمانې ټوټکې او مشرکانه دمونه مراد دي. چې دهغې د قرآن او حديث سره هيڅ تعلق نشته دی. او د **لايتطيرون** جمله په دې باندې واضحه دلالت کوي. ځکه چې د تطير عمل د جاهليت په بدفالۍ کې دی. چې هغه په اسلام کې منع دی. او د تطيير عمل هم منع دی. د رقيه او دم دويم قِسم دم درود او علاج کول دي. که په د حديث کې مطلقًا د دم درود او علاج کولو د پريخودلو ذکر وي نو د دې نه د خواصو تکل مراد دی. او دا به د خواص الناس او عارفينو او مخلصينو د توکل د درجې ذکر وي. اې دهغوې شان دا وې چې کله هغوې ته ووېلی شي چې: أَدْعُ لَكَ الطَّبِيبُ؟ آيا د علاج لپاره طبيب راوغوختلی شي؟ نو په جواب کې وايي: **والطبيب امرضنی.** يعنې طبيب خو زه په ناروغۍ کې اخته کړی يم. نو علاج ولې وشي. يعنې دا ټوله معامله خو د الله په لاس کې ده.

خلاصه دا راووتله چې د جاهليت منترې جنترې خو مطلقًا منع کړی شويدی. او که په جائز دم درود باندې علاج مراد وينو د دې پريخودل هم جائز دي. چې هغه د کاملو مخلصينو صفت دی. ګويا په حديث کې دې حقيقت ته اشاره ده. چې علاج کول هم جائز دي او پريخودل يې هم جائز دي. اوله درجه د عوام الناس ده. دويمه درجه د کاملو مخلصانو ده. او د دې نه وروسته دريمه درجه د انبياء کرام، او د صديقينو ده چې د دنيا د اسبابو وجود او عدم (نه شتون) د هغوې په نظر کې برابر

---

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۳۰۵ رقم الحديث ۶۴۷۲ ومسلم في صحيحه ۱/۱۹۸ رقم الحديث (۲۱۸-۳۷۲)

وي.دې درجې ته فنا فی الله او باقی بالله درجه وايې. نور علاج کول افضل دي. نه کول افضل دي.
دا ټول بحث په کتاب الطب والرقی کې ليکلی شويدی.(مرقات ۹/۱۴۹)

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْهُ قَالَ خَرَجَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا فَقَالَ: " عُرِضَتْ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بيرون راووتلو او وې فرمايل چې ماته |
| عَلَيَّ الْأُمَمُ فَجَعَلَ يَمُرُّ النَّبِيُّ وَمَعَهُ الرَّجُلُ |
| امتونه پيش کړی شو.کله چې دې انبياؤ د خپلو امتونو سره تيريدل شروع کړل نو (ماوکتل) چې د يو نبی سره فقط يو سړی ؤ.او |
| وَالنَّبِيُّ وَمَعَهُ الرَّجُلَانِ وَالنَّبِيُّ وَمَعَهُ الرَّهْطُ وَالنَّبِيُّ وَلَيْسَ مَعَهُ أَحَدٌ |
| يو نبی داسې ؤ چې د هغه سره دوه کسان ؤ.او يو نبی داسې تير شو چې د هغه سره هيڅوک هم نه ؤ، د دينه وروسته ما |
| فَرَأَيْتُ سَوَادًا كَثِيرًا سَدَّ الْأُفُقَ فَرَجَوْتُ أَنْ يَكُونَ أُمَّتِي |
| يو لويه ډله وليدله چې هغه د آسمانونو ترغاړو پورې خپره شوې وه.زما دا اميد راغلو چې دا به زما امت وي.خو |
| فَقِيلَ هَذَا مُوسَى فِي قَوْمِهِ ثُمَّ قِيلَ لِي انْظُرْ |
| ماته وويلی شو چې دا حضرت موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ او د هغه د امت خلک دي.بيا ماته وويلی شو چې ته خو لږ راپورته کړه |
| فَرَأَيْتُ سَوَادًا كَثِيرًا سَدَّ الْأُفُقَ فَقِيلَ لِي انْظُرْ هَكَذَا |
| او وګوره.ما وکتل چې يو ډيره لويه ډله ده.چې هغه د اسمان ترغاړو پورې خپره ده.بيا ماته وويلی شو چې لږ اخوا |
| وَهَكَذَا فَرَأَيْتُ سَوَادًا كَثِيرًا سَدَّ الْأُفُقَ |
| ديخوا يعنې ښې او ګس اړخ ته نظر وکړه نو ما وکتل نو ډيره لويه ډله وه.چې هغه د اسمان ترغاړو پورې خپره وه |
| فَقِيلَ: هَؤُلَاءِ أُمَّتُكَ وَمَعَ هَؤُلَاءِ سَبْعُونَ أَلْفًا |
| د دېنه وروسته (ماته) وويلی شو چې دا ټول ستا د امت خلک دي.او د هغوی نه علاوه د هغوی اويا زره کسان |
| قُدَّامَهُمْ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ بِغَيْرِ حِسَابٍ هُمُ الَّذِينَ لَا يَتَطَيَّرُونَ ولايسترقون |
| داسې دي چې هغوی به جنت ته بغير د حساب نه ځي.او دا هغه خلک دي چې نه خو بدفالي کوي.نه دمونه |
| وَلَا يَكْتَوُونَ وَعَلَى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ فَقَامَ عُكَّاشَةُ |
| ابْنُ مِحْصَنٍ فَقَالَ: ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ. |
| ابن محصن ودريدلو او وې ويل چې د الله تعالی نه دعا وکړه چې هغه ما په دغه خلکو کې شامل کړي. |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | «اللّٰهمَّ | اجْعَلْهُ | مِنْهُمْ». | ثُمَّ | قَامَ | رجل | فَقَالَ |
| نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دعا وکړه: یاالله عکاشه په دغه خلکو کې شامل کړه. بیا یو بل سړی پاڅیدلو او هغه هم دغه عرض | | | | | | | |
| ادْعُ | اللهَ | أَنْ | يَجْعَلَنِي | مِنْهُمْ. | فَقَالَ | | |
| وکړو. چې د الله تعالی نه دعاء وکړه چې الله تعالی ما په دغه خلکو کې شامل کړي. نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: | | | | | | | |
| سَبَقَكَ بِهَا عُكَّاشَةُ. مُتَّفق عَلَيْهِ[1] | | | | | | | |
| د دې دعاء په سلسله کې عکاشه په تا باندې مخکې والی وړی دی. | | | | | | | |

**توضیح: مع هٰؤلاء سبعون الفًا**: د دې جملې یو مطلب دا دی چې د دې غټ جماعت نه غیره اویا زره (۷۰۰۰۰) کسان داسې دي چې هغه به بغیر د حساب نه جنت ته ځي. دویم مطلب دا دی چې په دوی کې اویا زره کسان داسې دي چې هغوی به بغیر د حساب کتاب نه جنت ته ننوځي. په یو روایت کې دي چې په دوی کې د هر یو سره به اویا زره کسان جنت ته ننوځي. دا شمیره ډیره زیاته ده.

**لایکتوون**: دا د اکتوا نه دی، د داغ ورکولو په معنی دی. دا مسائل د دېنه مخکې په کتاب الطب کې په تفصیل سره لیکل شویدي.

**سبقك بها عکاشه**: یعنې د الله تعالی په نزد باندې دا درجه فقط د یو سړي لپاره وه، هغه عکاشه مخکې یوړه، ته خو یې اوس غواړې خو هغه ستا نه مخکې عکاشه یوړه. حضرت عکاشه رضی الله په جنګ یمامه کې شهید شوی ؤ. (مرقات ۹/۱۵۱)

## دمؤمن عجیبه شان

| | | |
|---|---|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ صُهَيْبٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسلم «عجباً لأمر الْمُؤمن | | |
| او حضرت صهیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: د مؤمن هم عجیبه شان دی چې د هغه هر | | |
| كُله | خَيْرٌ | وَلَيْسَ |
| یو حالت د هغه لپاره خیر او ښیګړه ده. او دا خبره فقط د مؤمن لپاره خاص کړی شویده. هیڅوک د هغه سره په | | |
| ذَلِكَ | لِأَحَدٍ | إِلَّا |
| دې صفت کې شریک نشته. که هغه ته (رزق، فراختیا، وسعت، راحت، آرام، صحت او تندرستیا، نعمت او خوندونه | | |

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۲۰۵ رقم الحديث ۶۵۴۱ ومسلم في صحيحه ۱۹۹ رقم الحديث (۲۲۰-۳۷۴)

| فَكَانَ | شَكَرَ | سَرَّاءُ | أَصَابَتْهُ | إِنْ | لِلْمُؤْمِنِ |
|---|---|---|---|---|---|
| او طاعت او د عبادت د توفیق په صورت کې) خوشحالي ترلاسه کیږي نو هغه د خدای شکر گذاروي. نو دا | | | | | |
| صَبَرَ | ضَرَّاءُ | أَصَابَتْهُ | وَإِنْ | لَهُ | خَيْرًا |
| شکر د هغه لپاره خیر او ښیگړې سبب دی. او که هغه ته مصیبت رسیږي نو هغه په دې باندې صبر کوي. نو دا | | | | | |
| فَكَانَ خَيْرًا لَهُ» رَوَاهُ مُسلم [1] | | | | | |
| صبر هم د هغه لپاره خیر او د ښیگړې سبب دی. | | | | | |

**توضیح: صهیب**: حضرت صیب بن سنان رضي الله عنه موصل وسیدونکی ؤ. موصل په عراق کې مشهور ښار دی. رومیانو ډاکه وکړه او هغه یې بوتللو. او بیا یې غلام جوړ کړو. حضرت صهیب رضي الله عنه لته زلمی شو. بیا بنو کلیب هغه واخستلو او دهغه ځای نه یې راوستلو او په مکه کې یې په عبدالله بن جدعان باندې خرڅ کړو. هغه د اخستلو نه وروسته دا آزاد کړو. په مکه مکرمه کې دا مسلمان شو. په ضعفاء مسلمین کې ؤ ۸۰ هجرۍ کې په مدینه کې وفات شو. او په جنت البقیع کې د ن کړی شو. یاده دې وي چې صهیب رومي ندی، اصلًا دا عراقي موصلې دی. ده ته رومي دې وجې نه وایي چې دا دهغوې په کورنۍ کې زلمی شوی ؤ. خلک د ناپوهتیا د وجې نه ورته رومي وایې. لکه شاعر ویلي دي:

حسن بصره بلال از حبش صهیب از روم ‌ ‌ ‌ زخاک مکه ابوجهل این چه بوالعجبی ست

د حدیث مطلب دا دی چې د مؤمن عجیبه شان دی. هر حالت دهغه د آخرت لپاره فائده مند دی. که مصیبت راځي نو په صبر کولو باندې ثواب ورکړل کیږي. او که راحت راځي نو په شکر کولو باندې ورته ثواب ورکړل کیږي.

## طاقتور مسلمان د ضعیف مسلمان نه غوره دی

| ﴿۴﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الْمُؤْمِنُ الْقَوِيُّ |
|---|
| او حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: قوي مسلمان د ضعیف مسلمان |
| خَيْرٌ وَ أَحَبُّ إِلَى اللهِ مِنَ الْمُؤْمِنِ الضَّعِيفِ وَ فِي كُلٍّ خَيْرٌ |
| نه غوره او د خدای په نزد ډیر خوښ دی. او هر مسلمان په خپل ځان کې نیکي او ښیگړه لري. کوم څیز چې تا ته |
| احْرِصْ عَلَى مَا يَنْفَعُكَ و استعن بِالله ولا تعجز |
| فائده در کونکې وي د هغې حرص وکړه. او د الله تعالی نه مدد او توفیق وغواړه او د دې نه مه عاجزه کیږه. د غه شان که |

---
[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۹۵ رقم الحديث (۲۹۹۹-۶۴) واخرجه الدارمي ۲/۴۰۹ رقم الحديث ۲۷۷۷

| وَإِنْ | أَصَابَكَ | شَيْءٌ | فَلَا | تَقُلْ | لَوْ | أَنِّي | فَعَلْتُ | كَانَ | كَذَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| تاته (دین او دنیا) کې څه مصیبت او تکلیف دررسیږي نو داسې مه وایه که ما داسې کړي وی نو داسې به شوي ؤ. بلکې | | | | | | | | | |
| وَكَذَا | | وَلَكِنْ | | قُلْ | | قَدَّرَ | | الله | |
| داسې وایه چې الله تعالی هم دا تا کلې وه (لهٰذا هر څه چې درپیښ شوي دي، د الله د فیصلې مطابق درپیښه شویده) | | | | | | | | | |
| وَمَا | شَاءَ | فَعَلَ | فَإِنَّ | لَوْ | تَفْتَحُ | عمل | الشَّيْطَانِ » . | رَوَاهُ | مُسلم [1] |
| او الله تعالی چې څه غواړي هغه کوي. او دا ځکه چې د «که» لفظ د شیطان د عمل کړنې لپاره برسیرته کوي. | | | | | | | | | |

**توضیح: المؤمن القوی:** یعنې قوت والا قوی مسلمان د کمزورې مسلمان نه غوره دی. د قوي مسلمان نه څوک مراد دی؟ نو د هرې طبقې خلکو دا حدیث په خپل مطلب کې استعمال کړو. تردې چې په پنجاب کې ځینې پهلوانانو په خپل پهلوانۍ ځای باندې دا حدیث لیکلی دی. ملا علی قاری یو قول دا نقل کړیدی چې قوی مسلمان هغه دی چې د خلکو سره تګ راتګ لري، هغوې ته لاربنود نه کوي، او په دې لاره کې د خلکو تکلیفونه برداشت کوي. دا د کناره کش مسلمان نه غوره دی. دویم قول یې دا نقل کړیدی چې قوی مسلمان هغه دی چې هغه د اسبابو په ځای مسبب الاسباب ته ګوري. د هغه ایمان دومره مضبوط وي چې هلته د اسبابو امکان نه وي، د هغې په مقابله کې ضعیف مسلمان اسبابو باندې نظر ساتي. د هغه یقین کمزوری وي. دریم قول دا دی چې دلته د مؤمن د ایمان هغه نه خوزیدونکې حوصله او عزم مراد دی. چې د هغې په وجه باندې دا مؤمن په تهوپ سره د جهاد میدان ته کوزیږي. او ښه جنګ کوي. او د هغه جذبه په نیکۍ باندې د حکم کولو او د بدو نه په منع کولو کې ډیره مضبوطه وي. او په دې لاره کې په هر مصیبت باندې ښه صبر کوي. **فَانَّ لو:** لعنې د لو کلمه د شیطان د عمل دروازه برسیرته کوي. مطلب دا دی چې د الله فیصلې په مقابل کې د لو لفظ مه وایه. یعنې د تقدیر الهی مقابله شروع کیږي. او د شیطانې وسوسو لاره برسیرته کیږي. (مرقات ۱۵۳-۹/۱۵۴)

## الفصل الثاني

### په کامل توکل سره د رزق لارې برسیرته کیږي

| ﴿۵﴾ عَن عمر بن الخطاب قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: لَوْ أَنَّكُمْ |
|---|
| حضرت عمر بن الخطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوریدلي دي: حقیقت دا دی که تاسو په |

(1) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۵۲ رقم الحديث (۲۶۶۴-۳۴) وابن ماجه ۲/۱۳۹۵ رقم الحديث (۲۶۶۴-۳۴)

| لَرَزَقَكُمْ | تَوَكُّلِهِ | حَقَّ | الله | عَلَى | تَتَوَكَّلُونَ |
|---|---|---|---|---|---|
| الله تعالی باندې توکل او اعتماد وکړئ لکه څنګه چې د توکل حق دی. نو یقینًا هغه به تاسو ته داسې رزق درکړي | | | | | |
| كَمَا يَرْزُقُ الطَّيْرَ تَغْدُو خِمَاصًا وَتَرُوحُ بِطَانًا ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ[1] | | | | | |
| لکه څنګه چې مرغانو ته رزق ورکوي. سحر نهر راوځي او ماښام يې خېټه ډکه کړي وي (خپلو ژالوته) بېرته ځي | | | | | |

**توضیح**: **تغدو**: سحر وتلو او د زرق لټون ته تغدو ویلی شویدی. د دېنه معلومه شوه چې د رزق په لټون کې سحر وتلو یا ماښام وتل منع ندي. او نه د توکل په خلاف ده. دا سعې (کوښښ) ده. فیصله د الله تعالی په لاس کې ده. شاعر وايي:

نروح ونغدو لحاجاتنا وحاجة من عاش لاتنقضي

**خماصًا**: دا د خمیص جمع ده. تشې خیټې ته وايي. **بطانًا**: دا د بطن جمع ده. غټې او ډکې خیټې ته وايي. دلته ښه په مړه باندې ماښام بیرته راتګ مراد دی. (مرقات ۹/۱۵۶)

د دې حدیث نه معلومه شوه چې اصل رازق الله تعالی دی. بنده که کسب کوي. نو هغه د توکل سره منافي نده. د قرآن آیت ﴿وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ إِلَّا عَلَى اللهِ رِزْقُهَا﴾ (هود: ۶) د انسان د سعې او د کسب د لټون خلاف نده. ځکه چې د رزق وعده په دې آیت کې اجمالې ده. د دې تفصیل هم دا دی چې سړی دې په وتلو سره محنت وکړي. حرکت دې وکړي. تجارت دې وکړي. دا آیت انسان بندولو باندې نه کینوي بلکې تفصیلې موقعو کې د رزق د لټون لپاره انسان لره راپاڅوي.

**حکایت**: ملاعلی قاری د دې حدیث لاندې لیکلي دي چې کارغه خپل بچیان سپین لیدلو سره پرېږدي. نو الله تعالی مچې د غه بچیانو اړخ ته متوجې کړي. مچې د دې په مکوخه باندې زیږوالی کتلو سره د خپل رزق په لټون کې راشي. نو دا بچې هغه وخوري. تردې چې غټ شي، بیا کارغه راشي او هغه پالي.

ملاعلی قاری رحمه الله دویمه قصه لیکلې ده چې الله تعالی د عزرائیل نه پوښتنه وکړه چې د ساه (روح) اخستلو په وخت کې ستا په چا باندې خفګان راغلی دی؟ نو عزرائیل وویل چې په یو ماشوم باندې مې خفګان راغلی دی. یو ځل چې په دریاب کې کله کشتۍ ماته شوه نو یو پې خوړونکی ماشوم د مور سره پاتې شو، ستا حکم راغلی چې د دې د مور ساه واخله. ما یې ساه واخستله. او ماشوم په ژړا پاتې شو. په دې باندې ماته خفګان راغلی ؤ. الله تعالی وفرمایل چې مخکې واوره!

---

[1] اخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۹۵ رقم الحديث ۲۳۴۴ وابن ماجه في ۲/۱۳۹۴ رقم الحديث ۴۱۶۴.

ما هغه یوې ټاپو (جزیرې) ته ورسولو .او یو زمری مې هغه ته په پې، ورکولو باندې مقرر کړه. کله چې دا ماشوم لوی غټ شو ،نو د جناتو په ذریعه باندې مې هغه ته د انسانانو خبرې زده کړې. کله چې دا ماشوم ښه غټ شو نو دا آبادۍ ته راغلو. تردې چې هغه ته حکومت ورکړی شو ، کله چې مضبوط شو نو هغه د خدائې دعوی وکړه، دهغه نوم شداد ؤ. فتبارك الله من هو عالم بأسرار العباد. (مرقات ۹/۱۵۷)

## د معاش په حصول کې جائز طریقې خپلې کړه

| |
|---|
| ﴿۱﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَيُّهَا النَّاسُ لَيْسَ مِنْ شَيْءٍ |
| او حضرت ابن مسعود رضی الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: خلکو ! هیڅ یو داسې شی نشته چې هغه تاسو |
| يُقَرِّبُكُمْ إِلَى الْجَنَّةِ وَيُبَاعِدُكُمْ مِنَ النَّارِ إِلَّا قَدْ أَمَرْتُكُمْ بِهِ |
| جنت ته نژدې کړي او د دوزخ د اور نه لیرې کړي. د هغه څه نه علاوه چې دهغې ما تاسو ته حکم در کړیدی. |
| وَلَيْسَ شَيْءٌ يُقَرِّبُكُمْ مِنَ النَّارِ وَيُبَاعِدُكُمْ مِنَ الْجَنَّةِ إِلَّا |
| او هیڅ یو شی داسې نشته چې هغه تاسو د دوزخ اور ته نژدې کړي او د جنت نه لیرې کړي ، دهغه څه نه علاوه |
| قَدْ نَهَيْتُكُمْ عَنْهُ وَإِنَّ الرُّوحَ الْأَمِينَ وَفِي رِوَايَةٍ: وَإِنْ رُوحَ الْقُدُسِ نَفَثَ فِي رُوعِي |
| چې ما تاسو دهغې نه منع کړې یاست او روح الامین او په یو روایت کې دي چې روح القدس زما په زړه کې دا |
| أَنَّ نَفْسًا لَنْ تَمُوتَ حَتَّى تَسْتَكْمِلَ رِزْقَهَا |
| خبره زما په زړه کې واچوله چې بیشکه هیڅوک تر هغه وخته پورې نه مړ کیږي ترڅو چې خپل رزق پورا نکړي |
| أَلَا فَاتَّقُوا اللهَ |
| ګورئ د خدای د نافرمانۍ نه ډیرېږئ او د معاش د حصول په سعې او کوښښ کې نیک ښویې او اعتدال خپل |
| وَأَجْمِلُوا فِي الطَّلَبِ |
| کړئ دې لپاره چې ستاسو رزق تاسو ته په جائز او حلال وسیلو او ذریعو او مشروع طریقو باندې دررسیږي |
| وَلَا يَحْمِلَنَّكُمْ اسْتِبْطَاءُ |
| دغه شان داسې دې کله هم نه وي چې د رزق په دررسیدلو کې وروستوالی تاسو دې خبرې ته راوپاروي چې |
| الرِّزْقِ أَنْ تَطْلُبُوهُ بِمَعَاصِي اللهِ فَإِنَّهُ لَا يُدْرَكُ مَا عِنْدَ اللهِ |
| تاسو د ګناهونو د کولو په ذریعه باندې د رزق تر لاسه کولو کوښښ وکړئ. حقیقت دا دی چې کوم څه د خدای |

| |
|---|
| إِلَّا بِطَاعَتِهِ». رَوَاهُ فِي» شرح السّنة «وَالْبَيْهَقِيُّ فِي» شعب الإيمان "إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ: «وَإِنَّ رُوحَ الْقُدُسِ»[1] |
| سره دي، هغه د هغه په اطاعت او خوشحالولو په ذريعه سره ترلاسه کولی شي. (شرح السنة،بيهقي) |

**توضيح:يقربکم** : يعنې کوم اعمال او افعال او اقوال چې جنت ته نژدې کونکې دي.او د دوزخ نه ليرې کونکې دي.ما تاسو ته د هغې حکم درکړيدی.او څه چې د هغې برعکس دي ما تاسو د هغې نه منع کړې ياست.

**نفث:** په سپکه طريقه باندې پوکې کولو ته نفث وايې. دلته وحې القاء کولو او د خبرې اچولو په معنی دی.

**روعي:** زړه او نفس ته روع وايې. مراد دا دی چې جبرائيل امين د وحې خفې په ذريعه باندې دا خبره رارسولې ده.

**اجملوا:** دا د جمال نه جوړ شويدې يعنې تاسو د رزق په حصول کې او د معاش په ګټلو کې د اعتدال لاره خپله کړئ يعنې داسې طريقه خپله کړئ چې په هغې کې د شرع حقوق او د بنديګانو د حقوقو پورا پورا لحاظ ساتلی شوی وي. په جائز طريقې سره که د رزق په رسيدلو کې تاخير وشي نو ناجائز طريقې مه خپلوئ ځکه چې د الله تعالی د اړخ نه د هغه پاک او خوښ رزق په اطاعت کولو سره وکولی کيږي . په ګناه کولو سره نه ورکول کيږي. (مرقات۹/۱۵۸)

## اصل زهد څه دی؟

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «الزَّهَادَةُ فِي الدُّنْيَا |
| او حضرت ابو ذر رضي الله عنه نبی کريم صلی الله عليه وسلم نه روايت کوی چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل: د دنيا نه زهد |
| لَيْسَتْ بِتَحْرِيمِ وَلَا إِضَاعَةِ الْمَالِ وَلَكِنَّ الزَّهَادَةَ فِي الدُّنْيَا |
| اختيارول دا ندي چې حلال شيان دې حرام کړی شي او مال او اسباب دې ضائع کړی شي بلکې د دنيا نه زهد اختيارول دا دي |
| أَنْ لَا تَكُونَ بِمَا فِي يَدَيْكَ أَوْثَقَ |
| چې مال او دولت او نور دنياوي اسبابو نه چې څه ستا په لاس کې دي، په دې باندې د هغه څه نه ډير اعتماد |
| بِمَا فِي يَدِ اللهِ وَأَنْ تَكُونَ فِي ثَوَابِ الْمُصِيبَةِ إِذَا أَنْتَ أُصِبْتَ فِيهَا لَوْ أَنَّهَا |
| مکوه څه چې د الله په لاس کې دي. دغه شان زهد دا دی چې ته په هغه وخت کې چې کله ته په يو مصيبت کې |

(۱) رواه البيهقي في شعب الايمان ۷/۲۹۹ رقم الحديث ۱۰۳۷۶ والبغوي في شرح السنة ۱۴/۳۰۳ رقم الحديث ۴۱۱۱

| أُبْقِيَتْ لَكَ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَعَمْرُو بْنُ وَاقِدٍ الرَّاوِي مُنكر الحَدِيث[1] |
| --- |
| اخته یې نو د ثواب د طلب لپاره هغه مصیبت اړخ ته که هغه ستا لپاره پاتې وي ، ډیره رغبت وساته. |

**توضیح: بتحریم الحلال**: یعنې زهد في الدنیا دا ندی چې سړی په خپل ځان باندې حلال شیان مثلا غوښه او میوه او داسې نور تازه شیان حرام کړي. لکه څنګه چې عیسایې پادریان او بعض وچ صوفیان داسې کوي ، دا خو **تحریم الحلال** دی. چې بیخې ناجائز دی. اصل زهد دا دی چې د انسان په خپل لاس کې چې کوم مال اسباب دي، په هغې باندې دومره اعتماد او بهروسه نوي څومره اعتماد چې یې د الله تعالی په غیبې خزانه باندې دی. زاهد انسان هغه دی چې هغه د الله تعالی د غیب په خزانه باندې ډیر اعتماد وکړي. په دې حدیث کې د زهد یو صورت دا بیان کړی شویدی . د دېنه وروسته د دزهد دویم صورت داسې بیان کړی شویدی.

**وان تکون** : دا د زهد دویم صورت دی. مطلب دا چې زهد دا هم دی چې له مصیبت راشي نو د هغې په بدله کې چې کوم ثواب ورکول کیږي، تا ته د دې ثواب رغبت د دې مصیبت د نه راتلو او ثواب د نه درکړل کیدلو نه ډیر وي یعنې یعنې د دې مصیبت موجودیدل(شتون) د دې د نه راتلو نه تا ته ډیر مرغوب او محبوب وي ځکه چې په دې باندې ثواب درکول کیږي.

په دې حدیث کې **ابقیت** چې کوم لفظ دی دا د **لم یصب** په معنې دی. یعنې د مصیبت نه راتګ او د دې په ایسارولو سره لیرې کول ابقاء ده. بهرحال د زهد دا دوه صورتونه په ذهن کې ښه کینول پکار دي. (مرقات ۹/۱۶۰)

## الله تعالی ونه غواړي نو تا له دنیا نفع او نقصان نشې رسولی

| ﴿۸﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: كُنْتُ خَلْفَ رَسُولِ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| --- |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایې چې یوه ورځ (په سفر کې) زه د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په سپرلی باندې |
| يَوْمًا فَقَالَ : « يَا غُلَامُ |
| د نبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وروسته ناست وم چې نبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (زه مخاطب کولو باندې) وفرمایل: هلکه! |
| احْفَظِ اللهَ يَحْفَظْكَ |
| د الله تعالی د ټولو احکاماتو خیال ساته. الله تعالی به ستا خیال وساتي. د غه شان ته به هر وخت او په هره معامله |

[1] اخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۹۳ رقم الحدیث ۲۳۴۰ وابن ماجه في ۲/۱۳۷۳ رقم الحدیث ۴۱۰۰.

| احْفَظِ | اللَّهَ | تَجِدْهُ |
|---|---|---|

كې دهغه د رضا طلبګاريې نو يقينًا الله به هم ستا خيال ساتي. په دغه توګه به تا په دنيا كې د هر قسم مصيبتونو او تكليفونو نه

| تُجَاهَكَ | وَإِذَا | سَأَلْتَ |
|---|---|---|

ساتي. او په آخرت كې به د هر قسم عذاب او سختۍ نه دې محفوظ وساتي. او كله چې ته د سوال اراده وكړې نو فقط

| فَاسْأَلِ | اللَّهَ | وَإِذَا | اسْتَعَنْتَ | فَاسْتَعِنْ | بِاللَّهِ | وَاعْلَمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|

الله تعالى ته خپل د سوال لاس ونه او بړده كړه. او كله چې ته مرسته غواړې نو فقط د الله تعالى نه مرسته غواړه او په دې پوهه

| أَنَّ | الْأُمَّةَ | لَوِ | اجْتَمَعَتْ | عَلَى | أَنْ | يَنْفَعُوكَ | بِشَيْءٍ | لَمْ | يَنْفَعُوكَ | إِلَّا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

پوهه شه كه ټول مخلوق په شريكه سره تا ته فائده دركول وغواړي نو هيڅكله يې نشي دررسولى، د هغه څه نه

| بِشَيْءٍ | قَدْ | كَتَبَهُ | اللَّهُ | لَكَ | وَلَوِ | اجْتَمَعُوا | عَلَى | أَنْ | يَضُرُّوكَ | بِشَيْءٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

غيره چې هغه الله تعالى ستا په مقدر كې ليكلې دي. او كه د دنيا ټول خلك په شريكه سره هم تا ته څه نقصان

| لَمْ | يَضُرُّوكَ | إِلَّا | بِشَيْءٍ |
|---|---|---|---|

او ضرر رسول وغواړي نو هغوې هيڅكله هم تا ته څه نقصان او ضرر نشي دررسولى، فقط د هغه څه نه غيره

قَدْ كَتَبَهُ اللَّهُ عَلَيْكَ رُفِعَتِ الْأَقْلَامُ وجفَّت الصُّحُف» رَوَاهُ أَحْمد وَالتِّرْمِذِيّ [1]

چې الله تعالى ستا لپاره په مقدر كې ليكلې دي. قلم پورته كولو سره كيخودل شويدي او صحيفې وچې شويدي.

## رضا بالقضاء د خوش بختۍ نښه ده

﴿۹﴾ وَعَنْ سَعْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مِنْ سَعَادَةِ ابْنِ آدَمَ

او حضرت سعد رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د ابن آدم نيك بختي دا ده چې الله تعالى د ده په مقدر

| رِضَاهُ | بِمَا | قَضَى | اللهُ | لَهُ | وَمِنْ | شَقَاوَةِ | ابْنِ | آدَمَ | تَرْكُهُ | اسْتِخَارَةِ | اللهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

كې څه ليكلي دي دا په هغې باندې راضي وي او د ابن آدم بدبختي دا ده چې هغه د الله تعالى نه خير او ښيګړه

| وَمِنْ | شَقَاوَةِ | ابْنِ | آدَمَ |
|---|---|---|---|

غوختل پريږدي. د غه شان د ابن آدم بدبختي دا هم ده چې الله تعالى چې څه د ده په مقدر كې ليكلي دي، دا په هغې

---

(1) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۷۵ رقم الحديث ۲۵۱۶ وأحمد في المسند ۱/۲۹۳.

| سُخْطُهُ بِمَا قَضَى اللهُ لَهُ» . رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[1] |
|---|
| باندې ناراضه او ناخوښه وي. (روایت کړې دې ترمذي او ترمذي وائي دا حدیث غریب دې) |

**توضیح**: استخارة الله: د دې جملې يو مطلب دا چې د انسان د خوش بختۍ يوه نښه دا ده چې دا په هغه څه باندې راضي او خوشحاله وي څه چې الله تعالى دده لپاره ټاکلي وي. د الله تعالى په فيصله باندې ناخوښه کيدل د بدبختۍ نښه ده لهذا ده لپاره پکار دي چې هر وخت د الله تعالى نه د خير غوختونکى وي. استخارة الله: د دې جملې دويم مطلب دا چې په دې کې سين او تا د طلب (غوښتنې) لپاره دي. يعنې خير او شر او نفع او ضرر دواړه د الله تعالى د تقدير فيصلې دي. خو انسان لپاره پکار دي چې هر وخت د الله تعالى نه خير او ښيګړه وغواړي. ښيګړه نه غوختل او د هغې سوال کول پريخودنه د انسان د بدبختۍ نښه ده. شارحينو د دې جملې دا آخرې مطلب بيان کړيدى. ما د دېنه مخکې يو بل مطلب اړخ ته هم اشاره وکړه . والله اعلم ! په دې جمله کې د استخاره راويستلو د ترغيب اړخ ته هم اشاره کيدلى شي. د استخارې راايستلو يوه طريقه خو مشهوره ده. کومه چې په کتابونو کې ليکلې ده. خو يوه مختصر طريقه دا هم ده چې سړى دا کلمات د استخارې په نيت سره وايي: اللهم خِرْلِيْ وَاخْتَرْلِيْ فَلَاتَكِلْنِيْ إِلٰى اِخْتِيَارِيْ.د استخارې په ترغيب کې يو عجيبه حديث دى. فرمايي: مَاخَابَ مَنِ اسْتَخَارَوَلَانَدِمَ مَنِ اسْتَشَارَ وَلَا عَالَ مَنِ اقْتَصَدَ ، استخاره کونکى ناکام نه پاتې کيږي مشوره کونکې پښيمانه نه وي. او درميانه حالى فقير نه وي. (مرقات ۹/۱۶۶)

## الفصل الثالث

### الله تعالى باندې د کامل اعتماد اثر

| ﴿۱۰﴾ عَنْ جَابِرٍ أَنَّهُ غَزَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قبل نجد |
|---|
| حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دى چې هغه د نبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره په هغه جهاد کې شريک ؤ چې هغه د نجد په |
| فَلَمَّا قَفَلَ مَعَهُ |
| اطرافو کې شوى ؤ. او کله چې نبى عَلَيْهِ السَّلَام د جهاد نه فارغه شونو جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم د نبى عَلَيْهِ السَّلَام سره بيرته راغلو. |
| فَأَدْرَكَتْهُمُ الْقَائِلَةُ فِي وَادٍ |
| (د دې په سفر په دوران کې يوه ورځ) صحابه د غرمې په وخت کې يو داسې ځنګل ته ورسيدل چې په هغې کې |

---

([1])أخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۹۶ رقم الحديث ۲۱۵۱ وأحمد في المسند ۱/۱۶۷.

كَثِيرِ الْعِضَاهِ فَنَزَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتَفَرَّقَ النَّاسُ يَسْتَظِلُّونَ بِالشَّجَرِ

کیکروني ډیرې وې.نو نبی کریم ﷺ هلته کوز شو.او ټول خلک د بوټو د سیورې په لټون کې یو خوا بل خوا خپاره

فَنَزَلَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحْتَ سَمُرَةٍ فَعَلَّقَ بِهَا

شول.نبی کریم ﷺ هم د کیکر د یوې غټې ونې لاندې ډېره ولګوله.او خپله توره یې د دغه بوټي په یو ښاخ پورې

سَيْفَهُ وَنِمْنَا نَوْمَةً فَإِذَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

زوړنده کړه.مونږ د لږ خوب په کولو په خاطر اوده شوي ؤ.ناڅاپه مونږ واوریدل چې نبی کریم ﷺ

يَدْعُونَا وَإِذَا عِنْدَهُ

مونږ ته آواز کوي نو مونږ د نبی کریم ﷺ خواته ورسیدلو نو څه ګورو چې (نبی کریم ﷺ پروت دی،

أَعْرَابِيٌّ فَقَالَ:" إِنَّ هَذَا اخْتَرَطَ عَلَيَّ

او هم هلته) د نبی کریم ﷺ خواته یو بانډچي کافر موجود دی.نبی کریمﷺ فرمایل:چې دا بانډچي په هغه وخت چې

سَيْفِي وَأَنَا نَائِمٌ فَاسْتَيْقَظْتُ وَهُوَ

زه اوده ؤم،ما باندې یې زما توره راخکلو سره ود ریدلو.او کله چې زما سترګې بر سیر ته شوي نو ما وکتل چې زما

فِي يَدِهِ صلتا.قَالَ: مَا يَمْنَعُكَ مِنِّي؟ فَقُلْتُ:

لغړه توره د ده په لاس کې ده.ده ما ته وویل چې وس به تا زما نه څوک خلاصوي؟ما سمد ستې جواب ورکړو چې

اللهُ ثَلَاثًا" وَلَمْ يُعَاقِبْهُ

زما خدای به ما ساتي.نبی کریم ﷺ دا خبره درې ځل وکړه.او دې بانډچي ته یې هیڅ سزا ورنکړه.بیا راپاڅیدلو

وَ جلس . ( مُتَّفق عَلَيْهِ ) [1] وَ فِي رِوَايَةِ أَبِي بَكْرٍ الْإِسْمَاعِيلِيِّ فِي « صَحِيحِهِ »

او کیناستلو.(بخاري او مسلم)او په هغه روایت کې چې هغه ابوبکر اسماعیلي په خپل صحیح کې نقل کړیدی،دا الفاظ

فَقَالَ: مَنْ يَمْنَعُكَ مِنِّي؟ قَالَ:

دي چې د بانډې دې وسیدونکي (بانډچي) وویل چې وس به تا زما نه څوک خلاصوي؟نو نبی کریم ﷺ وفرمایل

« اللهُ » فَسَقَطَ السيفُ من يَدِه فَأَخذ السَّيْفَ فَقَالَ :

چې الله به مې ساتي!د بانډچي د لاس نه توره ګوزار شوه.نبی کریم ﷺ توره راواخستله.او وې فرمایل

---

(1) أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۹۶ رقم الحديث ۲۹۱۰ ومسلم في صحيحه ۴/۱۷۸۷ رقم الحديث (۸۴۳-۱۴)

«مَنْ يَمْنَعُكَ مِنِّي؟» فَقَالَ: كُنْ خَيْرَ آخِذٍ.

چې وس به تا زمانه څوک خلاصوي؟ بانډچي جواب ورکړو چې ته خو په ښیګړه سره نیوکه کونکی یې.

فَقَالَ: «تَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ

نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې ښه دې خبرې ګواهي ورکړه چې د الله تعالی نه غیره څوک د عبادت لائق نشته دی. او یشکه

وَأَنِّي رَسُولُ اللهِ».

زه د الله تعالی رسول یم. ګویا نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه ته وفرمایل چې که ستا په ما باندې دومره اعتماد دی نو بیا یقینًا په دې خبره بهم

قَالَ: لَا وَلَكِنِّي أُعَاهِدُكَ

ښه پوهیږې زما د اسلام دعوت یخې په حقه او په صداقت باندې بناء دی. په دې صورت کې تا لپاره پکار دي چې کلمه ووایې او

عَلَى أَنْ لَا أُقَاتِلَكَ

مسلمان شې. بانډچي وویل: مسلمان کیدلی خو نشم، البته ستا سره به دا وعده ضرور وکړم چې نه به زه خپله ستا سره جنګیږم او نه

وَلَا أَكُونَ مَعَ قَوْمٍ يُقَاتِلُونَكَ

به د هغه خلکو ملګرتیا کوم چې هغه ستا سره جنګیږي. بهرحال نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه بانډچي پریخودلو.

فَخَلَّى سَبِيلَهُ فَأَتَى أَصْحَابَهُ فَقَالَ: جِئْتُكُمْ

او کله چې هغه بانډچي خپل قوم ته راغلو نو وې ویل چې ستاسو مینځ ته د یو داسې سړي د خوا نه راغلم

مِنْ عِنْدِ خَيْرِ النَّاسِ. هَكَذَا فِي كِتَابِ الْحميدِي وفي الرِّيَاض)[1]

چې هغه د ټولو نه غوره انسان دی.

**توضیح**: **نجد**: د زمکې وچتې برخې ته نجد وایې. د نجد علاقه په وچته زمکه باندې پرته ده. د دې مقابل تهامه ده. چې هغه ختکه زمکه باندې پرته ده. پخوانی زمانه کې نجد ډیره وړه علاقه وه. خو وس د جزیرة العرب ټولې وسطې علاقې ته نجد ویل کیږي. چې د هغې انتهایې طول تقریبًا اته سوه میله دی. او انتهایې عرض یې تقریبًا دوه نیم سوه میله دی. نن سبا د سعودي حکومت کې ریاض او د اطرافو ټولې علاقې په نجد کې راځي. او په سعودي باندې د دغه خلکو حکومت دی، کوم چې نجدي دي. (مرقات ۹/۱۶۷)

**القائلة**: قیلوله ته قائله ویلی شویده. **العضاة**: د کیکر ونې ته وایې. **اخترط**: وژلو لپاره توره راایستل

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۹۷ رقم الحديث ۲۹۱۳، ومسلم ۴/۱۷۸۷ رقم الحديث (۸۴۳-۱۴)

او راوخکلو ته اختراط وايي. صلتًا: د کاتې نه توره راایستلو باندې لغړه تورا خوزولو ته صلتًا وايي.

الله: لفظ الله سره نبی کریم ﷺ په دغه سړي باندې جلالي توجه واچوله. نو په هغه باندې رېبېدل شروع شو. او د لاس نه يې تورا ګوزار شوه. (مرقات ۹/۱۶۸)

## د رزق لپاره مجربه مراقبه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِنِّي لَأَعْلَمُ آيَةً | | | | |
| او حضرت ابوذر رضي الله عنه روايت دی چې رسول الله ﷺ و فرمايل: بيشکه زه يو داسې آيت پېژنم | | | | |
| لَو | أَخَذَ | النَّاسُ | بِهَا | لَكَفَتْهُمْ: |
| که خلک (فقط) په دغې باندې عمل وکړي نو هغوي په حق کې دغه يو آيت کافي دی. هغه آيت دا دی: ﴿وَمَنْ يَتَّقِ اللهَ | | | | |
| (وَمَنْ | يَتَّقِ | اللهَ | يَجْعَلْ | |
| يَجْعَلْ لَهُ مَخْرَجًا وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ﴾ يعني کوم سړی چې د خدای نه يرېږي نو خدای د هغه لپاره (دنيا | | | | |
| لَهُ مَخْرَجًا وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ) رَوَاهُ أَحمد وَابْن مَاجه والدارمي[1] | | | | |
| او د آخرت د غمونو نه) د نجات لاره پيدا کوي. او هغه ته د داسې ځای نه رزق ورکوي چې د هغه ځای نه د ده ګمان هم نوي. | | | | |

**توضیح**: يَتَّقِ اللهَ: يعني ظاهرًا او باطنًا خپله معامله د الله سره پاکه وساتي او د ژوند په يو اړخ کې هم د الله تعالی نافرماني ونه کړي نو الله تعالی به د هغه لپاره کافي شي. **کونوا ابناء الآخرة ولاتکونوا ابناء الدنيا.**

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: أَقْرَأَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (إِنِّي أَنَا الرَّزَّاقُ |
| او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې ما ته رسول الله ﷺ دا آيت وښودلو ﴿إِنِّي أَنَا الرَّزَّاقُ الخ﴾ يعني |
| ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِينُ) رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حسن صَحِيحٌ[2] |
| بيشکه خاص زه روزي ورکونکی يم (او) غالب طاقت والا يم. (ابوداؤد، ترمذی) |

**توضیح**: **اقرأني**: دا قرأت شاذ دی. مشهور قرأت په قرآن کې داسې دی: ﴿إِنَّ اللهَ هُوَ الرَّزَّاقُ ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِينُ﴾ په ابتداء کې آيت داسې ؤ. څنګه چې ابن مسعود رضی الله عنه ولوستلو. وروسته يا منسوخ

---

[1] اخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۴۱۱ رقم الحديث ۴۲۲۰ والدارمي في السنن ۲/۳۰۹۲ رقم الحديث ۲۷۲۵.

[2] اخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۷۶ رقم الحديث ۲۹۴۰.

شو یا شاذ شو .(مرقات ۹/۱۷۰)

## دیني طالب علم دو جې نه الله تعالی رزق ورکوي

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: كَانَ أَخَوَانِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَانَ أَحَدُهُمَا |
| او حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کې دوه ورونه ؤ. چې په هغوی کې به يو خود |
| يَأْتِي النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْآخَرُ يَحْتَرِفُ |
| نبی کریم صلی الله علیه وسلم په مجلس کې ؤ او بل به څه کار کولو (او دواړو به يو ځاي خوړله څکله) نو ګټه کونکي وروړ د خپل |
| فَشَكَا المحترف أَخَاهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: «لَعَلَّكَ |
| بل وروړ په اړه باندې نبی کريم صلی الله علیه وسلم ته شکايت وکړو. نبی کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل: دا خو هم کيدلی شي |
| تُرْزَقُ بِهِ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ[1] |
| چې تا ته د دې په وجه سره رزق درکولی کيږي. (ترمذی) |

**توضیح: فشکی المحترف: المحترف** احتراف نه دی .حرفه کار کولو او کاريګرۍ ته وايي. دا دوه ورونه به په مدينه منوره کې وسيدل. يو به کار کولو او د کور خرچه به يې برداشت کوله. او دويم د اصحاب صفه طالب علم ؤ .د نبی کريم صلی الله علیه وسلم په درس او د علم په مجلس کې به کيناستلو. ظاهره ده ، دهغه به ټول وخت د علم په حصول کې مصرف کيدلو. دې وروړ شکايت وکړو چې زما وروړ څه کار نکوي. زه يوائې يم. د کور خرچ ډير دی. که دا هم زما سره په ګټه کولو کې شروع وکړي نو زمونږ اقتصادي حالت به ښه شي. ته دا زما سره کړه دې لپاره چې دا هم ګټه وکړي. او مونږ ټول يې وخورو .د شکايت د لاندې دا ټول شيان راتللی شول. اګرکه په ژبه سره هغه فقط د شکايت په لهجه کې اشاره وکړه. عوام ډير هوښيار وي، د هغوی د اشارو شاه ه ته غټه منصوبه وي، خو دنيوې منصوبه وي. نن سبا د عام معاشرې دا خيال دی چې دا ديني مدرسو نظام بيکاره دی.د دې لوستونکي طالب علمان بيکار دي. فضول ناست دي. وخت ضائع کوي. او داسې نور.

**فقال:** يعنې نبی کريم صلی الله علیه وسلم د هغه سړي د ټولې منصوبې اندازه ولګوله،نو نبی کريم صلی الله علیه وسلم هغه ته اقتصادی او معاشې حوالې سره جواب ورکړو . مطلب دا دی چې ته ولې دا ګڼې چې کوم رزق تا ته درکولی کيږي، هغه ستا د محنت او ګټې په وجه باندې درکولی کيږي. ته داسې خيال ولې نکوي چې د دې طالب علم د خدمت کولو په برکت سره الله تعالی تا ته رزق درکوي. نو په دې صورت کې ستا د

---

[1] اخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۹۶ رقم الحديث ۲۳۴۵.

شکايت او احسان ضباطلو هيڅ وجه نشته دی.تالره خو د دې احسان منل پکار دي چې د دې په وجه باندې ستا په مال برکت راځي. د دې حديث نه معلومه شوه چې ديني علومو د حصول لپاره د دنيا نه ځان راخکل جائز دي. او دا هم معلومه شوه چې کمزور او ضرورت مند خلکو په کفالت سره په مال کې برکت راځي. په يو روايت کې دي: انما تأکلون بضعفائکم.(مرقات۹/۱۷۱)

## څوک چې مال پسې زغلي، هغه وژل کيږي

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ قَلْبَ ابْنِ آدَمَ |
| او حضرت عمرو بن عاص رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: بيشکه د انسان د زړه لپاره |
| بِكُلِّ وَادٍ شُعْبَةٌ فَمَنْ أَتْبَعَ قَلْبَهُ الشُّعَبَ كُلَّهَا |
| په هر ځنګل کې يو ښاخ او يوه خوشه وي. نو څوک چې دې ښاخونو او خوشو اړخ ته خپل زړه متوجې وساتلو. نو |
| لَمْ يُبَالِ اللهُ بِأَيِّ وَادٍ أَهْلَكَهُ وَمَنْ تَوَكَّلَ |
| د الله تعالى هيڅ پرواه نشته چې دا په يو ځنګل کې هلاک کړي. او چې په الله تعالى باندې توکل او اعتماد وکړي |
| عَلَى اللهِ كَفَاهُ الشُّعَبَ» . رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه[1] |
| نو الله تعالى د هغه د ټولو کارونو د سمولو لپاره کافي کيږي. |

**توضيح: شعبة :** يعني د انسان د زړه يو نا يو ښاخ او د هغه سوچ او خيال څه نا څه لاره د رزق په لټون کې په هره کنده او هره دشته کې خپور شوی وي. يعني هغه سره دا فکر وي چې څنګه او د کوم ځاې نه وګټم؟ بيا کله په عملې توګه باندې د آخرت نه غافل کيدلو سره وځي.او سرو هلې ګرځي. او ناڅاپه مړ شي نو د الله تعالى هيڅ پرواه نشته چې دا غافل او عاشق د دنيا په کومه علاقه کې مړ کيږي. خو که هم دا انسان خپل مقصود آخرت جوړ کړي. او د الله تعالى په عبادت کې اخته وي. نو د دې ټولو علاقو د منډو او ګرمۍ نه به محفوظ وي. او دهرې علاقې لپاره به الله تعالى ورلره کافي شي. (مرقات۹/۱۷۱)

## ټوله معاشره که تابعداره شوه نو هر مصيبت به لرې شي

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " قَالَ رَبُّكُمْ عَزَّ وَجَلَّ: |
| او د حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت دی چې نبی کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ستاسو رب عزتمند او لويې شان والا فرمايي |

---
[1] أخرجه ابن ماجه ۲/۱۳۹۵ رقم الحديث ۴۱۶۶

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَوْ أَنَّ عَبِيدِي أَطَاعُونِي لَأَسْقَيْتُهُمُ الْمَطَرَ بِاللَّيْلِ وَأَطْلَعْتُ عَلَيْهِمُ | | | | | | | | |
| که زما بندیکان زما تابعداري وکړي نو یقیناً زه به په دوي باندي د شپې باران وکړم او د ورځې به په هغوي باندي | | | | | | | | |
| الشَّمْسَ بِالنَّهَارِ وَلَمْ أُسْمِعْهُمْ صَوْتَ الرَّعْدِ". رَوَاهُ أَحْمد[1] | | | | | | | | |
| د لمر څادر راخپور کړم. او هغوي ته به د وریځې د ګړزید لو آواز وانوروم. | | | | | | | | |

**توضیح**: اطاعونی: د دې اطاعت نه عام اطاعت مراد دی خو د دې په ضمن کې توکل او صبر هم داخل دی. چې هغه دلته مقصود دی. د داسې تابعدارو په اړه باندې الله تعالی فرمایې که د دوې ټوله معاشره تابعداره شوه، نو د هغوې د ضرورت په مطابق به د شپې به باران وکړم. دې لپاره د پړق پړوق او ګړزارې په هغوې رانشي. او د ورځې به لمر راخيژي. دې لپاره چې د دوې په کاروبار کې بنديز رانشي. د شپې او ورځې موسم به د هغوې لپاره برابر وي. داسې معلومیږي چې دا فیصله د عمومې خلکو د ښه اعمالو تیجه ده. د شخصې ژوند به دا اثر نه وي. هو! کله کله د شخصې خلکو سره شخصې معامله کیدلی شي.

## د اعتماد او توکل یو حیرانونکې واقعه

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنْهُ قَالَ: دَخَلَ رَجُلٌ عَلَى أَهْلِهِ فَلَمَّا | | | | | | | | |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی چې یو سړی د خپل کور خلکو ته راغلو نو هغه د خپل کور په | | | | | | | | |
| رَأَى مَا بِهِمْ مِنَ الْحَاجَةِ | | | | | | | | |
| خلکو باندې د فقر او ولږې اثرات ولیدل، دې کتلو سره هغه د خپل خدای په دربار کې د حاجتونو وړاندې کولو | | | | | | | | |
| خَرَجَ إِلَى الْبَرِّيَّةِ فَلَمَّا رَأَتِ امْرَأَتُهُ قَامَتْ | | | | | | | | |
| په یواځیوالي کې فریاد کولو لپاره د ځنګل اړخ ته لاړو. د هغه ښځې چې کله وکتل نو هغه پاڅیدله | | | | | | | | |
| إِلَى الرَّحَى فَوَضَعَتْهَا وَإِلَى التَّنُّورِ فَسَجَرَتْهُ | | | | | | | | |
| او د میچنې خوا ته لاړه. میچنه هغې خپلې مخې ته کیخودله، بیا هغه د تنور خوا ته لاړه. او هغه یې تود کړو. د | | | | | | | | |
| ثُمَّ قَالَتْ: اللَّهُمَّ ارْزُقْنَا فَنَظَرَتْ فَإِذَا الْجَفْنَةُ قَدِ امْتَلَأَتْ. | | | | | | | | |
| دې نه وروسته یې د خدای نه دا دعاء وکړه: یا الله! مونږ ته رزق راکړه. بیا چې هغې وکتل نو څه ګوري چې | | | | | | | | |
| قَالَ: وَذَهَبَتْ إِلَى التَّنُّورِ فَوَجَدَتْهُ مُمْتَلِئًا. | | | | | | | | |
| د میچنې جرنده د وړو نه ډکه ده. روا وې وایې چې د دې نه وروسته هغې وړه اغږلو سره تنور ته لاړه. نو تنور یې د ډوډو | | | | | | | | |

[1] اخرجه احمد في المسند ۲/۳۵۹.

| قَالَ: | فَرَجَعَ | الزَّوْجُ | قَالَ: |
|---|---|---|---|

نه ډک وموندلو .راوي وايي چې څه ساعت وروسته يې خاوند كور ته راغلو، نو د ښځې نه يې پوښتنه وكړه

| أَصَبْتُمْ | بَعْدِي | شَيْئًا؟ | قَالَتِ | امْرَأَتُهُ: | نَعَمْ | مِنْ | رَبِّنَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

چې آيا زما د تللو نه وروسته تاته څه دركړې شول. ښځې ورته ووېل: هو! دا مونږ د خداى دا ړخ نه راكړې شول.

| وَقَامَ | إِلَى | الرَّحَى | فَذُكِرَ |
|---|---|---|---|

خاوند چې دا واوريدل نو ډير حيران شو او د ميچنې خواته لاړو. (او ميچنه يې راوچته كړه چې د ميچنې دا ناشنا كار

| ذَلِكَ | إِلَى | النَّبِيِّ | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فَقَالَ: | «أَمَا | إِنَّهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

وويني) بيا كله چې د دې واقعې ذكر د نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې ته وكړې شو نو نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: پوهشه! په دې

| لَوْ | لَمْ | يَرْفَعْهَا | لَمْ | تَزَلْ | تَدُور | إِلَى | يَوْمِ | الْقِيَامَةِ».رَوَاهُ | أَحْمد [1] |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

كې هيڅ شک نشته كه دغه سړې ميچنه نه وې راوچته كړې نو دا ميچنه به تر قيامته پورې ګرځيدلې. او د ښه به وړه راوتلې.

**توضيح:** البرية: ځنګل او دشتې ته بريه وايي. خاوند د كور نه دشتې اړخ ته د دې لپاره ووتلو چې په يوائيوالې كې دعا وغواړي. دغه شان د كورنى تكليف ليدلو باندې د څه وخت لپاره يې غائب كيدل يې خوښ كړي وي يا د څه رزق په لټون كې به وتلى وي.

**فقامت:** ښځې چې كله وكتل چې خاوند الله ته د فرياد كولو لپاره ووتلو. وس به دعاء قبليږي. نو هغې اسباب استعمالول شروع كړل. ځكه چې د دعاء سره سره د اسبابو استعمالول هم ضروري دي.

**فوضعتها:** يعنې د ميچنې يو كاڼى يې په بل كاڼي باندې كيخودلو .د دې لپاره چې د وړو عمل شروع شي.

**ثم قالت:** دا ښځه هم د الله وليه صحابيه وه. هغې هم په ژړا ژړا دعا وغوختله. او بيا د ميچنې خواته د كتلو لپاره لاړه نو وې كتل چې د ميچنې جرنده د وړو نه ډكه ده. او تنور د پخ شوؤ ډوډو نه ډک دى. د قدرت دا كرشمه د دې ښاغلو د صبر او توكل د وجې نه راښكاره شوه.

**وقام:** يعنې خاوند يې د ميچنې خواته لاړو او جرنده را اوچته كړه او وې كتله چې كرشمه وګوري. (مرقات ۹/۱۷۳)

---

([1]) اخرجه احمد في المسند ۲/۵۱۳.

## رزق د انسان په لټون کې وي

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ الرِّزْقَ |
| او حضرت ابو درداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: په دې کې هیڅ شک نشته چې رزق |
| لَيَطْلُبُ الْعَبْدَ كَمَا يَطْلُبُهُ أَجَلُهُ». رَوَاهُ أَبُو نُعَيْمٍ فِي «الْحِلْيَة»[1] |
| د بنده داسې لټون کوي لکه څنګه انسان لره د هغه مرګ لټوي. |

**توضیح**: اجله: يعنې رزق انسان پسې داسې وربسې وي لکه څنګه چې مرګ د هغه په لټون کې وي. ترڅو چې هغه ته مرګ نه وي راغلی هغه د دې په لټون کې وي. دغه شان ترڅو چې انسان خپل ټاکلی شوی رزق ټول نه وي خوړلی، رزق هغه لره نه پرېږدي. مطلب دا شو چې رزق مه لټوه، ګټې او که نه يې ګټې هغه خپله تالټوي. د مرګ راتلو نه مخکې رزق راځي، انسان هغه خوري، نو هله مرګ راځي.

د دې حديث تعلق د صبر او توکل سره دی. او د مقدرات الهيه او د تقدير د فيصلو سره متعلق دی. څنګه چې اسلام د تقدير حيثيت بيان کړيدی. دغه شان يې د اسبابو استعمال بيان کړيدی. نو د حديث دا مطلب اخستل صحيح نه دي چې د مال ګټل او دهغې لپاره يې محنت کول منع دي. بلکې مطلب دا دی چې په اسبابو باندې اتکال جائز نه دی. (مرقات ۹/۱۷۳)

## د يو نبي بې مثاله صبر

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى رَسُولِ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيان کړيدي چې ګويا زه دا وخت نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وينم چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| يَحْكِي نَبِيًّا مِنَ الْأَنْبِيَاءِ ضَرَبَهُ قَوْمُهُ فَأَدْمَوْهُ وَهُوَ |
| ديو داسې نبي قصه بيانوي چې د هغه قوم هغه لره وهلی دی او ټپي (زخمي) کړی يې دی. خو هغه نبي د خپل |
| يَمْسَحُ الدَّمَ عَنْ وَجْهِهِ وَيَقُولُ: «اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِقَوْمِي فَإِنَّهُمْ لَا يَعْلَمُونَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[2] |
| مخ نه وينه پاکوي او دا فرمايي چې ای الله! زما قوم ته وبخښي، دا خلک زما د حقيقت نه ناخبره دي. (بخاري و مسلم) |

**توضیح**: يحکی نبيا: يعنې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د يو نبي قصه بيانوله. (مرقات ۹/۱۷۳)

---

[1] أخرجه ابونعيم في حلية الأولياء ۶/۸۶.

[2] أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۵۱۴ رقم الحديث ۳۴۷۷ وابن ماجه في السنن ۲/۱۳۳۵ رقم الحديث ۴۰۲۵ وأحمد في المسند ۱/۴۴۱.

**اللّٰهم اغفر**: یعنې ای الله زما قوم وبخښه، دوی نه پوهیږي. دلته د مغفرت دعاء دغه قوم د ایمان او هدایت لپاره نبی وغوختله. چې الله تعالی دوی ته هدایت وکړي. دې لپاره چې ددوی ټول ګناهونه معاف شي. دا مطلب ندی چې د کفر او شرک سره مړه کیدلو باندې د مرګ نه وروسته د مغفرت دعا ورلره غوختلی کیږي.

پاتې شوه دا خبره چې د دې نبی نه څوک مراد دی نو ابن حجر رحمه الله فرمایي چې په یقین سره نشي ویل کیدلی چې دا نبی څوک ؤ. هو! په ځینو روایتونو کې دي چې د دې نه مراد حضرت نوح علیه السلام دی. دغه قوم به هغه دومره ووهلو چې هغه بیهوشه په زمکه باندې به راګوزار شو او په هوش کې راتګ باندې به یې بیا دعاء غوختله.

ځینې شارحین فرمایي چې د دې نبی نه مراد نبی آخر زمان محمد عربی صلی الله علیه وسلم ذات بابرکات دی. کله چې د احد په جنګ کې کافرو په نبی کریم صلی الله علیه وسلم باندې برید وکړو او نبی صلی الله علیه وسلم یې ټپي کړو. دغه وخت نبی کریم صلی الله علیه وسلم د خپل مخ نه وینې پاکولي او دا الفاظ یې فرمایل:

**اللّٰهم اغفر لقومی فانهم لایعلمون**، یعنې د دې وهلو په وجه باندې دې په هغوی باندې به دنیا کې سمدستې عذاب رانه شي. علماء لیکي چې دا راجحه ده چې د دې نه نبی کریم صلی الله علیه وسلم مراد واخستلی شي. (مرقات ۹/۱۷۴)



# بَاب الرِّيَاء والسمعة
# د شهرت او رياکارۍ بيان

قال الله تعالى: ﴿اَلَّذِيْنَ هُمْ يُرَآؤُنَ وَيَمْنَعُوْنَ الْمَاعُوْنَ﴾(الماعون:۶،۷)

الريا: رياء د رويت نه جوړ شويدی. ځان ښودنې په معنې دی. د لغتو کتاب صراح ليکلي دي چې د رياء معنى دا ده : خپل ځان د خلکو په نظر کې ښه ښودل. دېته په پښتو کې ځان ښودنه وايي. کتاب عين العلم کې يې ليکي دي: چې د ريا مطلب دا دی چې د خپل عبادت شهرت په خلکو کې کول او د عبادت او نيکۍ په ذريعه سره د خلکو په نظر کې خپل قدر او مرتبه پيدا کول.

د دې تفصيل نه معلومه شوه چې د رياکارۍ تعلق دعبادتونو او نيکو سره دی. يعنې په ښه کارونو کې رياکاري کيږي. کوم اعمال چې په ظاهره توګه باندې د عباداتو دقبيلې نه ندي. مثلاً: غښي ويشتل، لامبو وهل، منډې وهل، ذهانت، دمال ډيروالی، د ښايست ډيروالی، د کمال ډيروالی، دا شيان د رياکارۍ په زمره کې نه راځي. بلکې په دې باندې فخر او نمود کول د تکبر او افتخار په زمره کې راځي. دغه شان ځينې مرشدان خپلو مريدانو ته ترغيب ورکولو لپاره او د شوق ډيرولو په غرض سره ځينې اعمال ظاهروي. هغه هم په رياکارۍ کې نه راځي. ځکه ويلی شويدي چې :**رياء الصديقين خير من اخلاص المريدين.** دلته دا خبره هم په نظر کې ساتل پکار دي چې د رياکارۍ عمل هغه عمل جوړيدلی شي چې په چا کې هغه عمل موجود وي او په دغه کمال باندې هغه متصف وي. او دا ښه عمل دغه سړی په خلکو کې ځکه مشهوري، چې د دې په وجه باندې د هغه قدر او مرتبه په خلکو کې پيدا شي. خو که په دغه سړي کې د نيکۍ او عبادت څه کمال موجود نوي. او هغه دغه شان خپل ځان په خلکو کې مشهوروي. نو دا رياکاري نه ده بلکې دهوکه او فراډ او صريح دروغ دي. دا بل جرم دی.

**د رياکارۍ قسمونه** :عبادت کولو و د ثواب ترلاسه کولو د نيت په اعتبار سره د رياکارۍ څلور قسمونه دي. لاندې د هغې بيان کيدلی شي.

**د رياکارئ اول قسم** : د رياکارئ د ټولو نه بد او سخت قسم دا دی چې يو سړی عبادت او رياضت د الله د رضا او ثواب ترلاسه کولو په ځای باندې د خلکو د ښودنې او ځان لويې ښودلو لپاره کوي. مثلاً: په عامه غونډه کې اوږده اوږده لمونځونه کوي او کله چې يواځې شي نو اوږده خو پريږده چې بيخي لمونځ يې غائب شي. په عامه غونډه کې لږ خوراک کوي دې لپاره چې باچاهانو او د بااثر خلکو دا ګمان پيدا کړي چې دا ډير زاهد سړی دی. رياکارئ د دې قسم په اړه باندې د علماؤ دا خيال دی چې د دې سړي هيڅ عمل قبول ندی. بلکې د ده فرض هم نه ادا کيږي. دا سړی فقط د ځان ستړي والې او مشقت کې خپل ځان ساتي.

**حکایت**: په ګلستان کې سعدي بابا یوه قصه لیکلي ده چې یو نیک سړی د باچا سره په خوراک کې شریک شو، نو هغه باچا ته د ښودلو لپاره یې ډیر کم خوراک وکړو. او کله چې دلمونځ وخت شو نو ډیر اوږد لمونځ یې وکړو. باچا وویل چې دا خو ډیر عابد زاهد سړی دی. کله چې کور ته راغلو نو ځوي ته یې وویل چې خوراک راوړه چې وخورو. ځوي ورته وویل چې ته خو د باچا خواته دعوت لپاره تللی وې. هلته دې ونخوړله؟ هغه ورته وویل چې بچیه! ما هلته لږه وخوړله، دې لپاره چې د باچا سره مې مقام پیدا شي. ځوي ورته وویل: پلار جانه چې کله ته ډوډی په دویم خوري نو ته لمونځ هم په دویم ځل وکړه ځکه چې د ریاکارۍ په وجه باندې ستا لمونځ هم خراب شوی دی.

د ریاکارۍ په دې قسم کې عابد سړی د ثواب نیت نکوي. بلکې نیت یې د ځان ښودنې وي.

**د ریاکارۍ دویم قِسم**: د ریاکارۍ دویم قِسم دا دی چې ریاکار سړی عبادت هم کوي او د ثواب نیت هم کوي. خو ورسره ورسره ځان ښودنه هم کوي. خو د ځان ښودنې او ریاکارۍ اړخ ورباندې غالب وي. او دثواب د نیت اړخ یې مغلوب وي. که په یواځیوالي کې وي نو کیدی شي عبادت ونکړي، د دغه شان قِسم حکم هم د اول په شان دی. ځکه چې د ریاکار د نیکۍ چې کومه جذبه ده، د هغې علت او سبب ریاکارې ده.

**د ریاکارۍ دریم قِسم**: د ریاکارۍ دریم قِسم دا دی چې د ریاکارۍ او د ثواب ترلاسه کولو جذبه دواړه یو برابر وي. په دې قِسم کې په ظاهره باندې دا معلومیږي چې نفع او نقصان به دواړه وي، د احادیثو نه معلومیږي چې دا صورت هم نهایت مذموم او قبیح دی او دا عمل هم د قبلیدو قابل ندی.

**د ریاکارۍ څلورم قِسم**: د ریاکارۍ څلورم قِسم دا دی چې د ثواب ترلاسه کولو او د الله د رضا جذبه غالبه وي، خو که د معمولي ریاکارۍ ګډون وي نو په دې سره خو عمل نه باطلیږي خو که دا ریاکارې که د عمل په شروع کې راشي نو ډیره بده ده. او که په مینځ کې راشي نو څه لږه بده ده. د ریاکارۍ دا څلور قِسمونه دي چې بیان کړی شول. دلته د ریاکارۍ بیل بیل اعتبارات دي. مثلاً: یا خو به ریاکار د ریاکارۍ پخه اراده کړي وي، دا ډیر بد دی. یا به یې د ریاکارۍ پخه اراده نوي کړي بلکې د خیال ترحده به وي، دا کمتره درجه ده. بهر حال ریاکارې یو داسې بده بده او داسې د زړه ناروغې ده چې د هغې نه ځان ساتنه ډیره ګرانه ده. امام غزالي لیکلي دیچې ترڅو پورې خلک د جماداتو، کاڼو او بوټو په درجه کې ونه ګڼي، د ریاکارۍ نه ځان ساتنه مشکله ده. او ترڅو پورې چې خلک په نفع او نقصان کې معذوره ونه ګڼي نو د دې قلبي ناروغې نه وتل ګران دي. هو! که یو سړی په اخلاص سره عبادت کوي او بیا خو خلکو ته په څه توګه سره خبر وشي او په خلکو کې د دې سړي ښه شهرت خپور شي او په دې باندې دا سړی خوشحاله شي نو دا ریاکارې نده، بلکې دا دنیاوې زیرې یوه برخه ده. او د نیک اعمالو هغه بدله ده چې هغه الله تعالی په دنیا کې ورکوي، اګرکه بنده

دا پټوي. په عنوان کې د ریا نه وروسته د سمعة لفظ هم دی. د سمعه تعلق د سمع او غوږونو سره دی. نو د کومو اعمال حسنه د ښودنې تعلق چې د سترګو سره کیږي، او د کومو تعلق چې د غوږونو سره وي نو هغې ته سمعه وایې. یعني د خپل مقام پیدا کولو لپاره خلکو ته قسما قسم اعمال اورولو باندې مقام پیدا کوي، چې خلک ده ته ښه ووایې. پاکستان د حکومت ټول رفاهي او د خدمت ټول اعمال خراب او ضائع لاړشي. ځکه چې حکومت د ښودنې ټولې ذریعې استعمالولو کوښښ کوي. نیک کار په ټي وي، ریډیو او اخبارونو باندې ښایې. نو نیکي چیرته پاتې شوه؟

# الْفَصْلُ الأَوَّلُ

## الله تعالی د زړونو اخلاص ته ګوري

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ اللهَ لَا ينظر إِلَى صورِكُمْ |
| حضرت ابو هریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: الله تعالی ستا شکلونو او ستاسو |
| وَلَا أَموالِكم وَلَكِنْ يَنْظُرُ إِلَى قُلُوبِكُمْ وَأَعْمَالِكُمْ» . رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1] |
| مال او متاع ته نګوري بلکې هغه ستاسو زړونو او ستاسو اعمالو ته ګوري. |

**توضيح: لاینظر**: یعنې الله تعالی فقط ظاهرې شکل و صورت او د انسان رنګ روغن او جُبّې قُبّې ته نګوري او نه په دې ظاهرې شکل و صورت باندې د قبولیت او عدم قبولیت فیصله کوي. بلکې معامله د انسان د دننه کیفیتونو ده. لکه څنګه چې وس را روانه ده: صوفیاء کرام وایې:

آدمیت لحم و شحم و پوست نیست — آدمیت جز رضائے دوست نیست

علامه ابن اثیر رحمه الله په خپل کتاب نهایه کې لیکلي دي چې په دې حدیث کې **لاینظر** او **ینظر** الفاظ د خوښې او ناخوښې، رحمت او شفقت او خپلولو او نه خپلولو په معنیٰ دي. په دې مطلب سره ډیر اعتراضونه ختمیږي. خلک وایي: زړه پاک پکار دی. د ظاهرې شکل او صورت هیڅ اعتبار نشته دی، حالانکې حقیقت دا دی که دننه ښه وي نو بیرون هم ښه کیدل پکار دي. د بوټې تازه او شین کیدلو بناء په جړو باندې ده. که جړې خرابې شي نو پاڼې رژیږي، او بوټې وچیږي. (مرقات ۹/۱۷۵)

**ینظر الی قلوبکم**: یعنې الله تعالی د زړه نیت او د اخلاص جذبې او ریښتیا او پاکوالې ته ګوري. دغه شان د زړه حسد، کینه، بغض او نفاق او ریاکارۍ ته ګوري، دغه شان الله تعالی د زړه ښه او بد

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۹۸۷ رقم الحديث (۲۵۶۴-۳۴) وابن ماجه في ۲/۱۳۸۸ رقم الحديث ۴۱۴۳.

صفتونو او د هغې خيالونو او احساساتو او جذبو باندې فيصله کوي. (مرقات ۹/۱۷۵)

## رياکارې يو قسم شرک دی

﴿۲﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " قَالَ اللهُ تَعَالَى: أَنَا

او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: الله تعالى فرمايي: چې زه د

أَغْنَى الشُّرَكَاءِ عَنِ الشِّرْكِ مَنْ عَمِلَ عَمَلًا

شرک په وجه باندې د ټولو شريکانو نه ډير بې نيازه يم. کوم سړی چې يو داسې عمل وکړي چې هغه په ديکې

أَشْرَكَ فِيهِ مَعِي غَيْرِي تَرَكْتُهُ وَشِرْكَهُ" وَفِي رِوَايَةٍ:

زما سره بل څوک هم شريک کړي نو زه هغه سړی د ده د شرک سره سره رد کړم. او په يو روايت کې د ترکته وشرکه په ځاې باندې

فَأَنَا مِنْهُ بَرِيءٌ هُوَ

دا الفاظ دي: **فأنا منه برئ هو للذي عمله**. يعنې زه د هغه نه خپله بې نيازې او بيزارې ښکاره کوم د غه سړی

لِلَّذِي عَمِلَهُ ". رَوَاهُ مُسلم[1]

يا د ده د غه عمل د هغه چا لپاره دی، د چا لپاره چې ده هغه عمل کړيدی.

**توضيح: اغنی الشرکاء**: يعنې زه د شرک په معامله کې د ټولو شريکانو نه ډير بې نيازه يم. دلته شرکاء په معنې د مشارکت دی. چې په مصدرې معنی باندې دی. مطلب دا دی چې زه د شرک او مشارکت په معامله کې د ټولو شريکانو نه بيخې بې نيازه او بيزره يم. زه خالق او مالک يم، زما په ذات او صفاتو کې هيڅوک زما سره نشې شريکيدلی. کوم سړی چې د رياکارۍ په توګه باندې زما سره څوک شريک کړي. زه هغه سړی د دغه عمل سره ردوم، اوس نو رياکار سړی دې خپل ثواب د الله تعالى نه نه غواړي بلکې د چا لپاره چې هغه عمل کړيدی، خپل بدله دې د هغه نه وغواړي. کله چې دې رياکار دغه عمل د الله تعالى لپاره ندی کړی، نو وس الله تعالى به هغه ته څه ورکړي. او ولې يې ورکړي؟ (مرقات ۹/۱۷۵)

**وشرکه**: د واؤ حرف د **مع** په معنې دی . يعنې رياکار سړی او د هغه رياکارې چې دا شرک اصغر دی دواړه پرېږدم. دا عمل د هغه چا لپاره دی ، د چا لپاره چې ده دا عمل کړيدی. لهٰذا د هغه نه دې دا خپله بدله ترلاسه کړي. زه د دې عمل نه بيزاره يم. (مرقات ۹/۱۷۵)

---

[1] أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۸۹ رقم الحديث (۲۹۸۵-۴۶) وابن ماجه في السنن ۲/۱۴۰۵.

## اورولو او ښودنې په عمل باندې سخت وعيد

﴿۳﴾ وَعَنْ جُنْدُبٍ قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ سَمَّعَ

او حضرت جندب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: کوم سړی چې خلکو ته د اوریدنې

سَمَّعَ اللهُ بِهِ وَمَنْ يُرَائِي

او د شهرت ترلاسه کولو لپاره څه عمل وکړي، نو الله تعالی به دهغه حال خلکو ته واوروي، دغه شان کوم سړی چې د

يُرَائِي اللهُ بِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1]

خلکو د ښودنې لپاره څه عمل کوي نو الله تعالی به هغه ته د ریکارۍ سزا ورکوي.

**توضیح: سمع الله به :** يعنې کوم سړی چې خلکو ته د ښودنې او د شهرت ترلاسه کولو لپاره څه عمل وکړي، نو الله تعالی به د قيامت په ورځ باندې د هغه عيبونه ښکاره کړي، او د هغه پټ حالونه به خلکو ته واوروي.او هغه به رسوا کړي. دغه شان کوم سړی چې د خلکو د ښودنې په غرض سره څه عمل وکړي، الله تعالی به د قيامت په ورځ باندې دغه سړی د ټولو خلکو مخې ته راولي او وبه يې ښايې چې دې سړې دا عمل د فلانکې لپاره کړی ؤ، وس زما سره د ده هيڅ ثواب نشته دی. دا سړی دې خپل ثواب هغه سړی ته په ورتګ سره ترلاسه کړي. د چا لپاره چې ده دا عمل کړيدی. دا دناکامی او رسوایي ډير غټ صورت دی. (مرقات۹/۱۷۷)

﴿۴﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قِيلَ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَرَأَيْتَ

او حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسو الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه يو پوښتنه وکړی شوه، چې ماته د هغه سړي په

الرَّجُلَ يَعْمَلُ الْخَيْرِ وَيَحْمَدُهُ النَّاسُ عَلَيْهِ.

اړه باندې خبر راکړه چې هغه نيک کار کوي، او د هغې په وجه باندې خلک د هغه ستاينه او صفت کوي؟

وَفِي رِوَايَةٍ: يُحِبُّهُ النَّاسُ عَلَيْهِ قَالَ:

او په يو روايت کې دا هم دي چې او دغه خلک د هغه سره مينه کوي. نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې د خلکو د دې سړي

« تِلْكَ عَاجِلُ بُشْرَى الْمُؤْمِنِ » . رَوَاهُ مُسلم[2]

ستاينه او صفت کول او د ده محبوب ساتل په حقيقت کې د ده په حق کې د مؤمن په ذريعه سره ژر بشارت ورکړی کيدونکی دی.

---

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۳۳۵ رقم الحديث ۶۴۹۹ ومسلم في صحيحه ۴/۲۲۸۹ رقم الحديث (۲۹۸۷-۴۸)

[2] اخرجه مسلم في صحيحه ۲/۱۰۳۴ رقم الحديث (۲۶۴۲-۱۶۶) وابن ماجه في ۲/۱۴۱۲ رقم الحديث ۴۲۲۵.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### رياکارۍ دې خپل ثواب د هغه چانه واخلي د چا لپاره چې یې عمل کړیدی

﴿۵﴾ عَنْ أَبِي سعدِ بن أَبِي فَضَالَةَ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

حضرت ابو سعید بن ابی فضاله رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

"إِذَا جَمَعَ اللهُ النَّاسَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لِيَوْمٍ لَا رَيْبَ فِيهِ

کله چې الله تعالی د قیامت په ورځ باندې چې د هغې په راتلو کې هیڅ شک نشته دی، خلک راغونډ کړي،

نَادَى مُنَادٍ: مَنْ كَانَ أَشرَكَ فِي عملٍ عملَه لله

نو یو اعلان کونکې فرشته به دا اعلان وکړي چې کوم سړي په خپل هغه عمل کې چې هغه د خدای لپاره کړی وي،

أحدا فَلْيَطْلُبْ ثَوَابَهُ

د خدای نه غیره څوک بل څوک ورسره شریک کړی وي، نو هغه لپاره پکار دي چې هغه د خپل دې عمل ثواب

مِنْ عِنْدِ غَيْرِ اللهِ فَإِنَّ اللهَ أَغْنَى الشُّرَكَاءِ عَنِ الشِّرْكِ". رَوَاهُ أَحْمَدُ[1]

د هغه غیر الله نه وغواړي څوک چې هغه شریک کړی ؤ. (مسند احمد)

### رياکار به په قیامت کې ذلیله وي

﴿۶﴾ وَعَن عبد الله بن عَمْرو أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ:

او د حضرت عبد الله بن عمرو رضی الله عنه روایت دی چې هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا اوریدلي دي چې

«مَنْ سَمَّعَ النَّاسَ بِعَمَلِهِ سَمَّعَ اللهُ بِهِ

کوم سړی چې خپل عمل ته د خلکو په مینځ کې شهرت ورکړي نو الله تعالی به د هغه د رياکارۍ عمل د خپل

أَسَامِعَ خَلْقِهِ وَحَقَّرَهُ وَصَغَّرَهُ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيّ فِي «شعب الْإِيمَان»[2]

مخلوق غوږونو ته ورسوي، د غه شان هغه به رسوا کړي، او سپک او ذلیله به یې کړي.

**توضیح:** من سمّع: دا د باب تفعیل نه د ماضي صیغه ده. چې د اورولو په معنی دی. پاس په حدیث نمبر: ۳ کې د دې تشریح او توضیح تیره شویده. اسامع: دا جمع الجمع ده. چې د اَسْمَعٌ جمع ده. او اَسْمَعٌ د سَمْعٌ جمع ده. او

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۲۹۲ رقم الحديث ۳۱۵۴ وأحمد في المسند ۳/۴۶۶.

(۲) رواه البيهقي في شعب الايمان ۵/۳۳۱ رقم الحديث ۶۸۲۱ وأحمد في المسند ۲/۱۶۲.

سَنُغٌ د غوږ په معنی دی. لکه څنګه چې اکالب او اکلب او کلب دي. د دېنه مراد د خلکو غوږونه د اوریدلو طاقت مراد دی. مطلب دا دی چې الله تعالی به د خلکو غوږونو ته د دې سړي ریاکارۍ، مکارۍ او دهوکه دغاري او شطاري رسولو باندې واوروي. چې دهغې نتیجه به دا وي چې دا سړی به ذلیله او سپک پاتې شي. چې دهغې تفصیل د دې حدیث په آخري کلماتو کې بیان کړی شویدی چې حقّره وصغّره. (مرقات ۹/۱۸۰)

## آخرت مقدم ساتلو کامیاب به یې

﴿۷﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَنْ كَانَتْ نِيَّتُهُ طَلَبَ الْآخِرَةِ

او د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: د کوم سړي نیت چې خالص د آخرت طلب

جَعَلَ اللهُ غِنَاهُ فِي قَلْبِهِ وَجَمَعَ لَهُ شَمْلَهُ

وي. نو الله تعالی دهغه زړه غني کوي. او د هغه پریشانی راغونډولو باندې ورته اطمینان ورکوي. هغه ته دنیا

وَأَتَتْهُ الدُّنْيَا وَهِيَ رَاغِمَةٌ وَمَنْ كَانَتْ نِيَّتُهُ طَلَبَ الدُّنْيَا

راځي خو دهغه په نظر کې د دنیا څه وقعت نه وي. او د کوم سړي نیت او اصل مقصد چې د دنیا طلب وي

جَعَلَ اللهُ الْفَقْرَ بَيْنَ عَيْنَيْهِ وَشَتَّتَ

نو الله تعالی د هغه فقر او احتیاج د هغه د سترګو مخې ته کړي او هغه لره په هره معامله کې خپاره شوې

عَلَيْهِ أَمْرَهُ وَلَا يَأْتِيهِ مِنْهَا إِلَّا مَا

خاطري او د ذهني خپرتیا او د فکرونو خکار جوړ کړي. دغه شان دنیا هم هغه ته دومره ورکول کیږي

كُتِبَ لَهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1] وَرَوَاهُ أَحْمد وَالدَّارِمِيُّ عَنْ أَبَانٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ[2]

څومره چې خدای د هغه لپاره لیکلي وي. (ترمذی، مسند احمد، سنن دارمی)

## د نیکۍ په حالت باندې خوشحالیدل، ریا نه ده

﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ بَيْنَا أَنَا فِي بَيْتِي فِي مُصَلَّايَ

او حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې ما وویل: یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! زه په خپل کور کې په مصلی باندې

إِذْ دَخَلَ عَلَيَّ رَجُلٌ فَأَعْجَبَنِي الْحَالُ الَّتِي

وم چې دغه وخت زما خواته یو سړی راغلو. ما ته په دې خبره خوشحالي وشوه چې هغه زه د دې لمونځ کولو په

---

(١) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۵۲ رقم الحديث ۲۴۶۵ وابن ماجه في ۲/۱۳۷۵ رقم الحديث ۴۱۰۵.

(٢) أخرجه أحمد في المسند ۵/۱۸۳

| |
|---|
| رَآنِي عَلَيْهَا فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " رَحِمَكَ اللهُ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ |
| حالت کې ليدلی يم. رسول الله ﷺ وفرمايل: ابوهريره! په تا دې د الله تعالی رحمت نازل شي. |
| لَكَ أَجْرَانِ:أَجْرُ السِّرِّ وَأَجْرُ الْعَلَانِيَةِ ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيث غَرِيب[1] |
| ته د دوه ثوابونو حقدار وګرځيدلې. يو د پټولو او بل د ښکاره کولو. (روايت کړې دې ترمذی شريف) |

**توضيح**: فاعجنى الحال: يعنې زه په کور کې په پټه باندې لمونځ کوم. خو د دې نيکۍ په حالت کې چې ما څوک ويني نو زه خوشحاليږم آيا دا خو رياکارې نه ده؟نبی کريم ﷺ جواب کې وفرمايل چې دا رياکارې نده بلکې په دې باندې به دوه اجره درکول کيږي. يو اجر خو په پټه باندې د لمونځ کولو په وجه درکول کيږي. او دويم اجر به په دې درکول کيږي چې ته د خپل عبادت په حالت خوشحاله شوې. په عبادت باندې خوشحاليدل هم عبادت دی. په يو روايت کې دي : **اجرالسر واجرالعلانية** ، د دواړو مفهوم نژدې نژدې دی. (مرقات ۹/۱۸۱)

## د ديندار ه رياکار لپاره سخت وعيد

| |
|---|
| ﴿۹﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " يَخْرُجُ فِي آخِرِ الزَّمَانِ رِجَالٌ |
| او حضرت ابوهريره رضی الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل: په آخره زمانه کې به داسې خلک هم پيدا شي |
| يَخْتِلُونَ الدُّنْيَا بِالدِّينِ يَلْبَسُونَ لِلنَّاسِ جُلُودَ الضَّأْنِ مِنَ اللِّينِ |
| چې هغوی به د دين په نوم باندې د نيا طلبګاروي. د چاپلوسۍ او عاجزۍ ښکاره لپاره به د ګډو څرمنې اغوندي |
| أَلْسِنَتُهُمْ أَحْلَى مِنَ السُّكَّرِ وَقُلُوبُهُمْ قُلُوبُ الذِّئَابِ يَقُولُ اللهُ: |
| د دوې ژبې خو به د ګوړې نه ډيرې خوږې وي. خو د هغوی زړونه به د شرمخانو د زړونو په شان وي. الله تعالی فرمائی |
| «أَبِي يَغْتَرُّونَ أَمْ عَلَيَّ يجترؤون؟ فَبِي حَلَفْتُ |
| چې آيا دا خلک زما د اړخ نه د مهلت ورکيدلو او زما د وخت ورکولو په وجه باندې ما ته دهوکه راکوي |
| لَأَبْعَثَنَّ عَلَى أُولَئِكَ مِنْهُمْ فِتْنَةً |
| يا په ما باندې زړورتيا کوي. پس زه خپل ځان قسم خورم چې زه به يقينًا په دې خلکو باندې د دوې نه فتنه |

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۱۲ رقم الحديث ۲۳۸۴وابن ماجه في ۲/۱۴۱۲ رقم الحديث ۴۲۲۶.

| تدع الْحَلِيم فيهم حيران » . رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ [1] |
|---|
| او بلا مسلط کوم. او هغه آفتونه او مصیبتونه به غټ غټ هوښیاران او عقلمند خلک به هم عاجزاو حیران کړي. |

**توضيح: يختلون الدنيا:** دا صيغه د باب ضرب يضرب نه دی. د هو که ورکولو باندې يو څيز ترلاسه کولو ته **ختلٌ** وايي . مطلب دا دی چې دين د دنيا د حصول ذريعه جوړه کړه. او په دې کې هم د دهوکې نه کار واخستلو. چې د رياکارۍ پيړې جامې يې خپل کړو. بلکې د ګډو بيزو د څرمنو نه يې جامې جوړولو باندې واغوستلې. دې لپاره چې خلک وربانديې د زاهد او **تارک الدنيا** ګمان وکړي. ژبه يې د شهدو نه ډيره خوږه وساتله. دې لپاره چې خلک ګمان وکړي چې د زبردست اخلاقو والا دی. خوږو خبرو والا دی. او حال دا دی چې د هغه زړه د شرمخ د زړه په شان سخت دی.

**من اللين:** يعني د خود غرضۍ لپاره چاپلوسې او عاجزې او تواضع به کوي. هريو د مال او جاه خاوند مخې ته به تيريږي. **ابي يغترون:** مطلب دا دی چې زما مهلت او وخت ورکولو په وجه باندې دا خلک په دهوکه کې غورزيدلي دي. يا دا مطلب دی چې په ما باندې جرأت کوي او نه يريږي، نه توبه کوي او نه منع کيږي.

**فبي:** يعني د خپل ذات قسم خورم چې زه په په دوې باندې داسې فتنه راولم چې **الحليم**: عقلمند، هوښيار، صبر ناک به هم په دې حيران پاتې شي. يعني د ظالم حکمرانانو په صورت کې چې هغه به د دوې نه وي. په هغوې باندې به خپل داسې قهر او غضب نازل کړم چې دا رياکار خلک به د ځان خلاصون لپاره لاس خپې وهي خو د نجات لار به نه مومي. او ذليل او خوار به پاتې شي. (مرقات ۹/۱۸۳)

## خوږې ژبې او د سختو زړونو خلک

| ﴿۱۰﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِنَّ اللهَ تَبَارَكَ وَتَعَالَى |
|---|
| او د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کوي چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: الله تبارک وتعالی |
| قَالَ: لَقَدْ خَلَقْتُ خَلْقًا أَلْسِنَتُهُمْ أَحْلَى مِنَ السُّكَّرِ وَقُلُوبُهُمْ أَمَرُّ |
| فرمايي: چې ما داسې مخلوق پيدا کړيدی چې د هغوې ژبه د ګوړې نه ډيره خوږه ده. چې د هغوې زړونه |
| مِنَ الصَّبْرِ فَبِي حَلَفْتُ لَأُتِيحَنَّهُمْ فِتْنَةً |
| د صبر وني ډير ترخه دي. پس زه خپل قسم خوړلو سره وايم چې زه به د غه خلکو باندې داسې بلاګانې |

[1] أخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۲۲ رقم الحديث ۲۴۰۴.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| تَدَعُ | الْحَلِيمَ | فِيهِمْ | حَيْرَانَ | فَبِي | يغترون | أم | عليّ |

نازل کړم چې هغه به د غټ نا غټ عقلمند سړی هم حيران او عاجز کړي. نو آيا دغه خلک ما ته دهوکه

يجترؤونَ؟" رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حديثٌ غَرِيب[1]

راکوي يا ما باندې زړورتيا کوي. (روايت کړې دې ترمذی)

**توضيح**: احلی: يعنې دا خلک به منافقان او ملحدان وي. ژبه خو به يې ډيره خوږه وي. د انبياء کرامو خبري به کوي. خو د کردار او عمل په اعتبار سره به دهغوی زړونه د غلطو عقيدو او غلطو سوچونو نه ډک وي. اَمَرُّ: دا د مرارة نه دی. يعنې ډير بې خونده او ترخه به وي.

الصبر: يو بې خونده بوټی دی. دا که په شهدو يو ځای شي نو ټول شهد به خراب شي. دېته په پښتو کې صبر ونه او اردو کې ايلوا وايې. لَاُتِيْحَنَّ: اِتَاحة نه دی. مقرر کولو او مسلط کولو په معنی دی. الحليم: عقلمند، هوښيار او صبر کونکي سړې ته حليم وايې. مطلب دا دی چې دې رياکار او منافق، بدکرداره خلکو دهوکې، او مکارۍ، او بدکردارۍ کتلو باندې سنجيده او باوقاره خلک به هم ګوته په خله ورته حيران پاتې شي. د داسې خلکو لپاره په دې حديث کې او د دې نه مخکې حديث نمبر: ۹ کې سخت وعيد دی. (مرقات ۹/۱۸۴)

## دميانه روۍ فضيلت

﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ لِكُلِّ شَيْءٍ شِرَّةً

او حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمايې چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د هر شي لپاره حرص او زياتی وي.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلِكُلِّ | شِرَّةٍ | فَتْرَةٌ | فَإِنْ | صَاحِبُهَا | سَدَّدَ | وَقَارَبَ |

او د هر زياتې لپاره سستی وي. نو که عمل کونکي د ميانه روۍ نه کار واخستلو او اعتدال ته نژدې وُ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَارْجُوهُ | وَإِنْ | أُشِيرَ | إِلَيْهِ | بِالْأَصَابِعِ |

نو د ده په اړه باندې اميد ساتئ. او دهغه اړخ ته په ګوتو سره اشاره وکړی شوه نو تاسو هغه لره (عابد او صالح)

فَلَا تعدوه». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[2]

مه ګڼئ (ځکه چې په حقيقت کې هغه رياکار دي)

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۲۲ رقم الحديث ۲۴۰۴.

(۲) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۳۸ رقم الحديث ۲۴۵۳ وابن ماجه في ۲/۱۴۰۵ رقم الحديث ۴۲۰۱.

**توضیح: شرة:** شرة تيز والى، چستې او نشاط په معنې دى. **فترة:** دا دفتور نه دى. سستى ته وايې. مطلب دا دى چې كوم يو تحريک يا جماعت د ابتداء نه په وجود كې راشى نو ډير چستى او نشاط سره كار كوي. دغه شان انسان چې كله په ابتداء كې په عبادت كې شروع شي نو ډيره تيزې او چستى ښايې ، خو څه زمانه وروسته هم دغه خلک او دهغوې تحريكونه سست شي. ځكه چې د عروج نه وروسته زوال فطرې قانون دى. ګويا په ابتداء كې افراط وي، او په انتهاء كې تفريط

راځي. په دې جريان كې رياكارې ضرورې شامليږي. په دې حديث كې سدد او د قارب الفاظ سره نبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ميانه روى او اعتدال تعليم وركړيدى. (مرقات ۹/۱۸۴)

**فارجوه:** يعنې چا چې د افراط تفريط نه پاكه د اعتدال لاره خپله كړه نو د هغه د كاميابى اميد ساته.ځكه چې هغه د ځان ښودنې او رياكارى نه محفوظ پاتې شو.

**بالاصابع:** يعنې شهرت او د ځان ښودنې مقام ته ورسيدلو .او خلكو په ګوتو سره د هغه اړخ ته اشاره كول شروع كړل چې واه واه هغه روان دى. او فلانكى داسې دى ، او داسې دى.دا اشاري چې څنګه په ګوتو سره كيږي، دغه شان د ژبو په چيغو سره هم كيږي. دغه شان دا چيغې چې څنګه چې د دنيا د دولت او منصب په وجه باندې كيدلى شي، دغه شان دين او ديندارى په وجه باندې هم كيدلى شي. دا اشاري ځكه مذموم دي چې په دې سره انسان حب جاه، تكبر او رياكارى كې اخته كيږي.حضرت تهانوي رحمه الله فرمايلي چې څاروى د خلې په ذريعه سره خوراک كولو باندې څرب (چاقيدل) كيږي.او انسان د غوږونو په ذريعه سره خپله ستاينه اوريدلو باندې څربيږي. (مرقات ۹/۱۸۴)

**فلاتعدوه:** يعنې دا قِسم سړى د ديندارى او دنيادارى په هيڅ مرتبه كې مه ګڼى، دا كه تر آخر د انجام پورې په دغه حالت باندې برقرار پاتې شي نو دا تباه حال او برباد انسان دى. هو! كه توبه وكړي او د دې حالت ووځي نو هغه بيله خبره ده. راتلونكى حديث نمبر: ۱۲ كې د دې نور وضاحت دى. (مرقات ۹/۱۸۴)

## د شهرت ډک ژوند د خطرونه ډک دى

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل كوي چې نبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د انسان |
| «بِحَسب امريءٍ مِنَ الشَّرِّ أَنْ يُشَارَ إِلَيْهِ بِالْأَصَابِعِ فِي دِينٍ أَوْ دُنْيَا |
| د بدى لپاره دومره كافى ده چې د دين يا دنيا په اعتبار سره د هغه اړخ ته اشاره وكړى شي مګر هغه څوک |

| |
|---|
| إِلَّا مَنْ عَصَمَهُ اللهُ» . رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ»[1] |
| چې الله تعالی محفوظ وساتي. (بيهقي په شعب الايمان کې) |

# الْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د رياکارۍ بدي

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ عَن أَبِي تَمِيمَةَ قَالَ: شَهِدْتُ صَفْوَانَ وَأَصْحَابَهُ |
| حضرت ابی تميمه (تابعي) رحمه الله فرمايي چې زه د حضرت صفوان او د هغه د ملګرو په مجلس کې هغه وخت |
| وَجُنْدَبٌ يُوصِيهِمْ فَقَالُوا: |
| حاضر شوم چې کوم وخت حضرت جندب، حضرت صفوان او د هغه ملګرو ته نصيحت کولو. بيا يې حضرت صفوان او |
| هَلْ سَمِعْتَ مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا؟ |
| د هغه ملګرو ته وويل: آيا تا د رسول الله ﷺ نه څه اوريدلي دي؟ حضرت جندب رضي الله عنه دا |
| قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "مَنْ سَمَّعَ |
| حديث بيان کړو. ما د رسول الله ﷺ نه دا اوريدلي دي چې کوم سړي اورول کوي (يعني د خلکو اوروني او |
| سَمَّعَ اللهُ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَمَنْ |
| شهرت تر لاسه کولو لپاره څه نيک کار کوي) نو الله تعالی به د قيامت په ورځ باندې هغه رسوا کړي. او کوم |
| شَاقَّ شَقَّ اللهُ عَلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ |
| سړی چې مشقت راولي نو الله تعالی به د قيامت په ورځ باندې هغه په مشقت کې واچوي. (دې اوريدلو سره) |
| قَالُوا أَوْصِنَا فَقَالَ |
| هغه وويل چې مونږ ته (څه نور) نصيحت وکړه نو (نبی کريم ﷺ يا حضرت جندب رضي الله عنه) وفرمايل: |
| إِنَّ أَوَّلَ مَا يُنْتِنُ مِنَ الْإِنْسَانِ بَطْنُهُ فَمَن اسْتَطَاعَ |
| د انسان چې کوم شی د هر څه نه مخکې پليتيږي هغه د ده خيټه ده. نو کوم سړی چې د دې قدرت لري چې |
| أَنْ لَا يَأْكُلَ إِلَّا طَيِّبًا فَلْيَفْعَلْ |
| هغه څه نه غير نور څه په خپله خيټه کې وانه چوي چې هغه حلال او جائز دي. نو بيشکه دا سې کول پکار |

[1] بيهقي في شعب الايمان ۵/۳۶۷ رقم الحديث ۶۹۷۸.

| |
|---|
| وَمَنِ اسْتَطَاعَ أَنْ لَا يَحُولَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجَنَّةِ مِلْءُ كَفٍّ مِنْ دَمٍ |
| دي. او کوم سړی چې د دې قدرت لري چې د هغه او د جنت ترمينځ يو لپه تويدونکې وينه ناحقه او |
| أَهْرَاقَهُ فَلْيَفْعَلْ. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ. (۱) |
| ناجائز واقع وي نو ښيشکه داسې کول پکار دي (چې د يو چا يو لپه ناحقه وينه تويولو نه ځان وساتي) |

**توضيح:** شاق: يعنې بل يې په سخت مشقت کې واچولو.

ينتن: تتن بدبويه کيدلو ته وايي. مراد ترينه بويي ناک کيدل او شليدل دي. يعنې په قبر کې د ټولو نه مخکې خيټه بربادېږي. دغه شان په دنيا کې هم هرڅه نه مخکې خيټه خرابيږي. بيا نور اندامونه متأثره کيږي. لهٰذا انسان لپاره پکار دي چې هغه د حرام خوراک نه خيټه وساتي.

يحول: دا د حائل نه دی، پرده جوړيدلو په معنې دی. ملأ کف: يعنې يو ورغوې برابر وينه هم جنت ته په ننوتلو کې منع کونکې جوړه نشي. پاتې دا چې د سيرونو او منونو په حساب سره وينه وي. بيا خو به ننوتل ناممکن وي. د دې وينې نه ناجائز وينه تويول مراد دي. (مرقات ۹/۱۸۸)

## د اولياء الله عظيم شان

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَن عمر بن الخطاب أَنَّهُ خَرَجَ يَوْمًا إِلَى مَسْجِدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او امير المؤمنين حضرت عمر بن الخطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی چې هغه يوه ورځ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جومات ته لاړو |
| فَوَجَدَ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ قَاعِدًا عِنْدَ قَبْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَبْكِي فَقَالَ: |
| نو هغه حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قبر مبارک خواته په ژړا وليدلو، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |
| مَا يُبْكِيكَ؟ قَالَ: يُبْكِينِي شَيْءٌ |
| د هغه نه پوښتنه وکړه چې ولې ژاړې؟ حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جواب ورکړو، د يوې خبرې ياديدلو زه په ژړا کړم |
| سَمِعْتُهُ مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمِعْتُ يَقُولُ: «إِنَّ يَسِيرَ الرِّيَاءِ شِرْكٌ |
| چې هغه ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي وه. چې لږه ريا (هم) شرک دی. کوم سړی چې د خدای د |
| وَمَنْ عَادَى لِلهِ وَلِيًّا فَقَدْ بَارَزَ اللهَ بِالْمُحَارَبَةِ إِنَّ اللهَ يُحِبُّ الْأَبْرَارَ |
| دوست سره دښمني وکړه نو هغه ګويا د خدای سره مقابله وکړه. او د هغه سره يې جنګ وکړو. يقيناً الله تعالى پرهيزګاران، |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳/۱۲۸ رقم الحديث ۷۱۵۲.

| الْأَتْقِيَاءَ | الْأَخْفِيَاءَ | الَّذِينَ |
|---|---|---|
| او د مخفي حال والا خلک دوستان ساتي. او دا هغه خلک دي چې د هغوي عام حالت خو دومره کمزوری او د | | |
| إِذَا | غَابُوا لَمْ | يُتَفَقَّدُوا |
| عامو خلکو په نظر کې دومره د توجه وړ نوي چې کله هغه د نظرونو نه غائب وي نو د هغوي پوښتنه نشي کيدلی | | |
| وَإِنْ حَضَرُوا | لَمْ يُدْعَوْا | وَلَمْ يُقَرَّبُوا |
| او کله چې موجود وي نو هغه نه راغوختلی کیږي. او که هغه راوغوختلی هم شي نو خواته نه کینولی کیږي او دا | | |

قُلُوبُهُمْ مَصَابِيحُ الْهُدَى يَخْرُجُونَ مِنْ كُلِّ غَبْرَاءَ مُظْلِمَةٍ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ»[1]

د هغوي زړونه به د هدایت ډیوې وي. خلک د هر تورتم زمکې نه راوځي. (ابن ماجه، بیهقي شعب الايمان)

**توضیح**: ابرار: دا د بَرّ جمع ده. نیک عمله خلکو ته وایي.

الاتقياء: دا د تقي جمع ده. پرهیزګاره خلکو ته وایي.

الاخفياء: د پټ حالت او ګمنام خلکو ته وایي.

لم يتفقدوا: دا د تفقد نه د مجهولې صيغه ده. د لټولو په معنې دی. یعنې که دا خلک څه کار پسې غائب شي نو څوک به هم د دوې د لټون ضرورت محسوس نکړي.

لم يدعوا: یعنې که حاضر وي نو بیا هم څوک هغه خپل دعوت نه راغواړي.

لم يقربوا: یعنې که دعوت ته هم راوبللی شي یا خپله راشي نو څوک هغوي له خپلې خواته کینولو ته تیار نوي. بلکې د بیزار خواته په بیکاره ځای کې کینولی کیږي. د خلکو په نزد باندې خو به دا دومره کمزورې وي خو د الله تعالی په نزد بادنې دا روښانه ډیوې دي، د هغوي زړونه د هدایت په رڼا باندې روښانه دي. عبدالرحمان بابا رحمه الله د دغه شان خلکو په اړه باندې په خپله ژبه فرمایلې ؤ:

چې په یو قدم تر عرشه پورې رسي     ما لیدلی دی رفتار د درویشانو

غبراء مظلمة: غبراء د خضراء: په مقابله کې زمکې ته وایي. د دې جملې دوه مفهومه دي. یو مفهوم یې دا دی چې دا خلک د ایمانې رڼا په ذریعه سره د هر تور او تورتم مشکل نه په ډیره آسانۍ سره وځي. او کامیابیږي. دويم مفهوم دا دی: چې دا خلک به د دومره کمزورې حال والا وي چې تنګ او تورتم، کچه کورونو کې وسیږي. چې په هغې کې د ژوند سهولتونه نه وي، هغې ته ځي او د هغې نه راوځي.

[1] اخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۳۲۰ رقم الحديث ۳۹۸۹ والبيهقي في شعب الايمان ۵/۳۲۸ رقم الحديث ۶۸۱۲ وهو عن معاذ.

ګويا ګمنام او د کمزورۍ حال والا دي. دا مفهوم علامه طيبي بيان کړيدی چې ډير واضح دی.

**د ولي پيژندنه**: وس د دې حديث څه تفصيل په دې توګه دی چې حضرت معاذ رضي الله عنه ژړا وجه دا وه چې د شرک داسې باريکه ښاخونه دي، چې په کتلو سره د دې نه ځان ساتنه ډير مشکل دي. لکه چې ويلی شويدي: **فانه ادق من دبيب النملة السوداء على الصخرة الصماء فى الليلة الظلماء**. (مرقات) يعنې شرک د تورې ميږې په توره شپه باندې په يو مضبوط تور کاڼي باندې په قلار مزل د پټوالي نه هم ډير پټ کيدلی شي. بهرحال د دې حديث کې د الله تعالى د ولي ذکر راغلی دی. د ولي په پيژندنه (تعريف) کې د علماؤ بيلا بيل اقوال دي: يو تعريف يې داى: چې هغه په دليل محکم سره صحيح عقيده اخستلو باندې په ټول شريعت باندې تلونکی وي. د دې تعريف د لاندې علماء حق په اولياء الله کې داخليږي. ملا علی قاري فرمايې: چې ځينو اکابرو ويلي دي: **ان كان العلماء ليسوا باولياء الله فليس لله الولى** (مرقات)

دېته نژدې ملا علی قاری د ولي تعريف په دې توګه کړيدی: **ان الاولياء هم العلماء العاملون**. (مرقات) د ذکر شوي حديث د الفاظو او مفهوم سره نژدې نژدې دا روايت هم دی: چې دا حديث قدسي دی: **قال الله تعالى: اوليائى تحت قبائى لايعرفهم غيرى**. په يو بل حديث قدسی کې داسې راغلی دي: **من عادى لى وليا فقد آذنته بالحرب**. يو روايت کې داسې راغلي دي: **وانى لاغضب لاوليائى كما يغضب الليث للجرو**. (مرقات) الله تعالى دې هر مسلمان د اولياء الله د توهين او سپکاوي نه وساتي. (مرقات ۹/۱۸۹) چا څه ښه ويلې دي:

خاکساران جہاں را بحقارت منگر　　　تو چہ دانی کہ دریں گرد سوارے باشد

اس دور میں کچھ خاک نشینوں کے بدولت　　　باقی اسلام کی عظمت ہے

## د مخلص مسلمان ظاهر او باطن يو شان وي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا صَلَّى فِي | | | | | |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايې چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل: بنده چې کله په ښکاره توګه باندې | | | | | |
| الْعَلَانِيَةِ | فَأَحْسَنَ | وَصَلَّى | فِي | السِّرِّ | فَأَحْسَنَ |
| لمونځ کوي او ښايسته يې کوي او کله چې په پټه توګه باندې يې کوي (نو هغه وخت هم) په ښايست سره يې کوي. | | | | | |
| قَالَ اللهُ تَعَالَى: هَذَا عَبْدِي حَقًّا". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه[1] | | | | | |
| نو الله تعالى فرمايې چې زما دا بنده د صدق او رښتيا والا دی. | | | | | |

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۴۰۵ رقم الحديث ۴۲۰۰.

## د رياكارو خلكو نښه

﴿١٦﴾ وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «يَكُونُ فِي آخِرِ الزَّمَانِ أَقْوَامٌ

او حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه روايت دی چې نبی كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: په آخره زمانه كې به داسې قومونه

إِخْوَانُ الْعَلَانِيَةِ أَعْدَاءُ السَّرِيرَةِ». فَقِيلَ:

او ډلي هم پيدا شي چې هغه خو په ظاهره باندې به دوستان ښكاري خو په باطنه كې به دشمني كوي. عرض وكړې

يَا رَسُولَ اللهِ وَكَيْفَ يَكُونُ ذَلِكَ. قَالَ:

شو چې يا رسول الله صلى الله عليه وسلم! داسې به ولې او په څه وجه كيږي؟ نبی كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د دې

«ذَلِكَ بِرَغْبَةِ بَعْضِهِمْ إِلَى بَعْضٍ وَرَهْبَةِ بَعْضِهِمْ من بعض»[1]

وجې نه به كيږي چې په هغوې كې به ځينې د ځينو نه غرض او لالچ لري. او ځينې به د ځينو نه ويريږي.

**توضيح: اخوان العلانية**: يعنې يو بل سره به مخامخ كيږي نو د تصنع او بناوټ او ځان ښودنې په وجه به پاخه دوستان ښكاري. خو كه لږ ترينه يو خوا بل خوا غائب شي. نو بيا پاخه دښمنان شي. د يو بل په خپو باندې تبرونه وهي. قيامت ته به نژدې د خلكو دغه حالت وي. (مرقات ۹/۱۹۱)

**برغبة بعضهم**: يعنې د لالچ او طمع په وجې باندې به د يو بل خود غرضه دوستان وي. خو د يو بل نه به خوف او ويره او ضرر په وجه باندې ويريږي. ګويا غرضونو او مقصدونو او طمع او لالچ بنديګان به وي. (مرقات ۹/۱۹۱)

﴿١٧﴾ وَعَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم يَقُول: «مَن

او حضرت شداد بن اوس رضي الله عنه فرمايي چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دا اوريدلي دي: كوم سړي چې د

صَلَّى يُرَائِي فَقَدْ أَشْرَكَ وَمَنْ صَامَ يُرَائِي فَقَدْ أَشْرَكَ

ښودنې لپاره لمونځ وكړو، هغه شرك وكړو. كوم سړي چې د ښودنې لپاره روژه ونيوله هغه شرك وكړو.

وَمَنْ تَصَدَّقَ يُرَائِي فَقَدْ أَشْرَكَ» رَوَاهُمَا أَحْمد[2]

او كوم سړي چې د ښودنې لپاره صدقه او خيرات وكړو هغه شرك وكړو.

---

[1] اخرجه احمد في المسند ۵/۲۳۵

[2] اخرجه احمد في المسند ۴/۱۲۶.

﴿۱۸﴾ وَعَنْهُ أَنَّهُ بَكَى فَقِيلَ لَهُ:

او د حضرت شداد بن اوس رضي الله عنه په اړه باندې نقل شويدي چې (يو ځل هغه په ژړا شو) پوښتنه ترينه وشوه چې

مَا يُبْكِيكَ؟ قَالَ: شَيْءٌ سَمِعْتُ مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د ژړا سبب دې څه دی؟ هغه جواب ور کړو چې زه هغه خبرې وژړولم چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلې وه.

يَقُولُ فَذَكَرْتُهُ فَأَبْكَانِي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ:

دا وخت ماته هغه خبره را یاده شوه نو زه په ژړا شوم. او هغه خبره دا ده چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم به فرمایل:

«أَتَخَوَّفُ على أُمتي الشِّرْكَ وَالشَّهْوَةَ الْخَفِيَّةَ» قَالَ:

زه په خپل امت باندې د شرک او پټو خواهشاتو نه یریږم. حضرت شداد رضي الله عنه فرمايي چې (ما داوریدلو سره)

قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ أَتُشْرِكُ أُمَّتُكَ مِنْ بَعْدِكَ؟ قَالَ: «نَعَمْ أَمَا

وویل چې آیا ستا امت به ستا نه وروسته په شرک کې اخته شي؟ نبی کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل: هو! یاد ساته!

إِنَّهُمْ لَا يَعْبُدُونَ شَمْسًا وَلَا قَمَرًا وَلَا حَجَرًا وَلَا وَثَنًا وَلَكِنْ يُرَاؤُونَ

زما د امت خلک به د لمر عبادت نکوي. نه به د سپوږمۍ عبادت کوي، او په ښکاره به د بتانو عبادت نکوي.

بِأَعْمَالِهِمْ . وَ الشَّهْوَةُ الْخَفِيَّةُ أَنْ يُصْبِحَ أَحَدُهُمْ صَائِمًا

خو خلکو ته د ښودنې لپاره به نیک کارونه کوي. او پټ خواهش دادی چې یو کس د دوې نه به د روژې په حالت کې سبا کړي

فَتَعْرِضَ لَهُ شَهْوَةٌ مِنْ

او بیا په ده باندې په نفساني خواهشاتو کې یو خواهش غالبه شي او هغه د خواهش د غلبې د وجې نه خوراک کولو یا

شَهَوَاتِهِ فَيَتْرُكَ صَوْمَهُ» . رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي «شعب الْإِيمَان»[1]

کورو الی کولو باندې خپله روژه ماته کړي. (بیهقی فی شعب الایمان)

# ریاکارې د دجال د فتنې نه ډیره خطرناک ده

﴿۱۹﴾ وَعَن أَبِي سعيد الْخُدْرِيِّ قَالَ: خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ نَتَذَاكَرُ الْمَسِيحَ

او حضرت ابو سعید خدری رضي الله عنه روایت دی چې مونږ خپل مینځ کې د مسیح دجال د فتنو ذکر کولو کولو

(۱) أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۴۰۶ رقم الحديث ۴۲۰۵ وأحمدفي المسند ۴/۱۲۶ .

| الدَّجَّالَ | فَقَالَ: | «أَلَا | أُخْبِرُكُمْ |
|---|---|---|---|

چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ راغلو او زمونږ سره کیناستلو او بیا یې وفرمایل چې آیا زه تاسو ته د هغه څه په اړه باندې

بِمَا هُوَ أَخْوَفُ عَلَيْكُمْ عِنْدِي مِنَ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ؟» فَقُلْنَا: بَلَى

ونه وایم چې هغه زما په نزد باندې د مسیح الدجال د فتنې نه هم ډیر خوفناک دی. مونږ وویل چې هو!

يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ: «الشِّرْكُ الْخَفِيُّ أَنْ يَقُومَ الرَّجُلُ

یارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: هغه شی شرک خفي دی. مثلاً یو سړی لمونځ لپاره ودریږي او

فَيُصَلِّي فَيَزِيدَ صَلَاتَهُ لِمَا يَرَى مِنْ نَظَرِ رجلٍ ». رَوَاهُ ابْن مَاجَه"[1]

لمونځ کوي او په دې لمونځ کې غلو او زیاتی کوي فقط د دې لپاره چې څوک هغه له په لمونځ کولو باندې ویني.

**توضیح**: **أَخْوَفُ** : دجال فتنه خو به ظاهریږي ، ځکه د دې نه ځان ساتل په دومره ګران نه وي. خو د ریاکارۍ فتنه خو داسې پټه وي چې ښه ښه خلک د دې ښکار کیږي. نو ځکه دا د دجال د فتنې نه لویه بللی شویده. دغه شان دلته په حدیث کې دا نه دي بیان شوي چې دا فتنه د دجال د فتنې نه لویه فتنه ده . ممکنه ده چې دا تشبیه د مادیاتو او دنیاوې اعتبار سره وي چې د دجال په فتنې سره به سړې ته دنیاوې نقصان رسیږي. او حال دا دی چې د څوک به د دجال د پروګرام نه انکار کوي لیکن په ریاکارۍ سره د مسلمان د ایمان نقصان کیږي، ځکه دا ډیر خطرناک دی. (مرقات ۹/۱۹۳)

﴿۲۰﴾ وَعَنْ مَحْمُود بن لبيد أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِنَّ أَخْوَفَ

او حضرت محمود بن لبید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل (مسلمانانو!) ډیر زیات خوفناک شی

مَا أَخَافُ عَلَيْكُمُ الشِّرْكُ الْأَصْغَرُ» قالول: يَا رَسُولَ اللهِ وَمَا الشِّرْكُ الْأَصْغَرُ؟

چې د هغې نه زه تاسو یروم. شرک اصغر دی. صحابو عرض وکړو چې یارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! او هغه شرک اصغر څه

قَالَ: « الرِّيَاءُ » . رَوَاهُ أَحْمَدُ . وَ زَادَ الْبَيْهَقِيُّ فِي « شُعَبِ الْإِيمَانِ » :

دی؟ نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: ریا (احمد) او بیهقی په شعب الایمان کې دا الفاظ نقل کړیدي چې

" يَقُولُ اللهُ [illegible] يَوْمَ يُجَازِي الْعِبَادَ بِأَعْمَالِهِمْ :

الله تعالی به په هغه ورځ چې بند[illegible] نو ته به د هغوی [illegible] اعمالو بدله ورکول کیږي، ریاکارانو ته به وفرمایي

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اذْهَبُوا | إِلَى | الَّذِينَ | كُنْتُمْ | تُرَاؤُونَ | فِي | الدُّنْيَا | فَانْظُرُوا | هَلْ |
| چې تاسو د هغه خلکو خواته لاړ شئ چاته چې د ښودنې لپاره تاسو عمل کولو. او وګورئ چې تاسو ته | | | | | | | | |
| تَجِدُونَ عِنْدَهُمْ جَزَاءً وَخَيْرًا؟»[1] | | | | | | | | |
| دهغوئ د اړخ نه جزاء یا ښیګړه درکول کیږي او که نا؟ | | | | | | | | |

## ښه عمل خپله په خلکو باندې ظاهریږي

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَوْ أَنَّ رَجُلًا عَمِلَ | | | | | | | | | |
| او حضرت ابو سعید خدری رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: که یو سړی په یو داسې | | | | | | | | | |
| عَمَلًا | فِي | صَخْرَةٍ | لَا | بَابَ | لَهَا | وَلَا | كُوَّةَ | خَرَجَ | |
| غټ کاڼي کې هم نیک عمل وکړي چې نه خو په هغې کې څه دروازه وي او نه څه روشندان وي، نو دهغه دغه | | | | | | | | | |
| عَمَلُهُ إِلَى النَّاسِ كَائِنًا مَا كَانَ»[2] | | | | | | | | | |
| عمل به په خلکو کې مشهور شي. که هغه عمل هر څنګه وي. | | | | | | | | | |

**توضیح**: صخرة: مضبوط کاڼي او کلک ګټ ته صخرة وایي. کوة: په دیوال کې دننه ورکوټې د رڼا ځای ته کوة وایي. چې هغې ته طاقچه یا روشن دان هم ویلی شي. د دې حدیث یو مطلب دا دی چې که یو سړی په اخلاص سره په پورا پټوالي او رازدارۍ سره عمل کوي. او غواړي چې چاته د هغه خبر ونشي خو بیا به هم الله تعالی د ده دا عمل خلکو ته ښکاره کوي. دې لپاره چې دې سړې ته په دنیا کې د دې میوه ورکړی شي. لهذا د ریاکارۍ هیڅ ضرورت نشته دی. د دې حدیث دویم مطلب دا کیدلی شي چې یو مخلص بنده لپاره پکار دي چې هغه خپل نیک اعمال په هره توګه باندې د پټولو کوښښ وکړي ځکه چې د ریاکارۍ ډیره لویه خطره ده. ډیرځله یو سړی په پټه توګه باندې یو عمل کوي خو بیا هم هغه عمل د داسې ځایونو نه ښکاره کیږي، د کوم ځای نه چې خپله د دې سړي هم څه ګمان نه وي. لهذا پوره احتیاط کول په کار دي. دا مطلب ډیر واضحه نه دی ځکه چې د راتلونکې حدیث نه د اول مطلب تائید کیږي. (مرقات ۹/۱۹۵)

---

(۱) رواه البيهقي في شعب الايمان ۵/۳۳۳ رقم الحديث ۶۸۳۱.

(۲) رواه البيهقي في شعب الايمان ۵/۳۵۹ رقم الحديث ۶۹۴۰

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَن عُثْمَان بن عَفَّان قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ كَانَتْ لَهُ سَرِيرَةٌ |
| او حضرت عثمان بن عفان رضی الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: په کوم سړي کې چې يو |
| صَالِحَةٌ أَوْ سَيِّئَةٌ أَظْهَرَ الله |
| ښه يا بد خصلت پټ پروت وي. نو الله تعالى دغه عادت او خصلت ښکاره کونکې يو داسې شى پيدا کړي چې |
| مِنْهَا رِدَاءً يُعْرَفُ بِهِ ». [1] |
| د هغې په ذريعه باندې دغه سړى د دې خصلت او عادت سره وپيژندلى شي. |

**توضيح**: رداء: څادر ته رداء وايي. دلته د څادر نه علامت او پيژندل مراد دي. لکه د نارينؤ د ښنبو نه بيل قِسم څادرونه دي. دغه شان د ښځو د ښنبو نه هم بيل قِسم څادرونه دي. چې په هغې سره د دواړو بيله بيله پيژندنه کيږي. د حديث مطلب دا دى چې په کوم سړي کې ښه يا بد خصلت وي چې هغه د پټ ساتلو په وجه باندې د عامو خلکو په نظر کې نه راځي. ليکن الله تعالى په دغه سړي کې يو داسې صورت يا هئيت يا نښه راښکاره کړي چې د هغې نه په خلکو باندې ظاهره شي چې دا سړى د دې قبيلې سړى دى. (مرقات ۹/۱۹۵)

## دوه مخي پاليسي اسلام لپاره ډيره خطرناکه ده

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَعَن عمر بن الْخَطَّابِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه نبی کريم صلی الله علیه وسلم نه روايت کوي چې نبی کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل: |
| «إِنَّمَا أَخَافُ عَلَى هَذِهِ الْأُمَّةِ كُلَّ مُنَافِقٍ يَتَكَلَّمُ |
| زه د دې امت په اړه باندې چې د څه نه ډير يريږم هغه د هر منافق (يعنې رياکار او فاسق) شر دى. چې خبرې |
| بِالْحِكْمَةِ وَيَعْمَلُ بِالْجَوْرِ» رَوَى الْبَيْهَقِيُّ الْأَحَادِيثَ الثَّلَاثَةَ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ» [2] |
| خو هغه د علم او حکمت او د وعظ او نصيحت کوي خو کار د زياتې او نارواستى کوي. |

**توضيح**: بالحكمة: يعنې خلکو ته د ښودنې لپاره دا منافقان خلک علم او حکمت، او د وعظ او نصيحت ښې ښې خبرې به کوي خو خپله به هغوى په دې باندې عمل نه کوي. د هغوى هم دا غه دوه مخې پاليسې يو داسې شى دى چې په هغې سره اسلام او مسلمانانو ته ډيرزيات نقصان رسيږي.

---

(۱) رواه البيهقي في شعب الايمان ۵/۳۵۹ رقم الحديث ۶۹۲۲.

(۲) رواه البيهقي في شعب الايمان ۲/۲۸۴ رقم الحديث ۱۷۷۷.

چې دا نبی کريم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ د خپل امت لپاره خطرناکه ګرځولي ده. او هم دا منافقت دی. چې د اسلام او د مسلمانانو بنياد خوزوي. نن سبا د دې پالیسی پرمختګ دی. مسلمان بدنام دی. او امریکه و د هغه غلامان نیکان دي. د حدیث خلاصه دا ده چې دا منافقان خو خلک خو به خبرې ډیرې ښایسته ښایسته کوي. او عمل به خالص د ظلم په بنیاد باندې کوي. (مرقات ۹/۱۹۵)

| |
|---|
| ﴿۲۴﴾ وَعَنِ المهاجِرِ بنِ حبيبٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " قَالَ الله تَعَالَى: |
| او حضرت مهاجر بن حبيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: الله تعالى فرمايي چې |
| إِنِّي لَسْتُ كُلَّ كَلامِ الْحَكِيمِ أَتَقَبَّلُ وَلَكِنِّي أَتَقَبَّلُ هَمَّهُ وَهَوَاهُ فَإِنْ كَانَ هَمُّهُ وَهَوَاهُ |
| زه د عقلمند او هوښيار هره خبره نه قبلوم. بلکې زه د هغه قصد او نيت او اراده قبلوم. نو که د هغه نيت |
| فِي طَاعَتِي جَعَلْتُ صَمْتَهُ حَمْدًا لِي وَوَقَارًا |
| زما د تابعدارۍ لپاره وي نو زه د هغه چپتيا د خپلې ستاينې او ثناء او د هغې د حلم او وقار مرادف ګرځوم. |
| وإِنْ لَمْ يَتَكَلَّمْ " رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ[1] |
| اګر که هغه هيڅ خبره ونه کړي. |

**توضيح: كلام الحكيم:** د حکيم نه عالم او پروفيسر او هوښيار مراد دی. مطلب دا دی چې الله تعالى فرمايي چې زه د هر يو هوښيار او عالم او نکته دان خبره نه قبلوم. يعنې زما په نزد باندې د يوائې د خبرو د غازې (خبرلوڅ) هيڅ اعتبار نشته دی بلکې زمونږ په نزد باندې د کردار قيمت دی. کله چې اخلاص، د الله تعالى رضا، او حسن نيت، ښايسته او غوره وي او د کردار معيار يې اوچت وي، نو د خبرو سطح يې څومره ساده ولې نه وي، د الله تعالى په نزد باندې د هغې اعتبار دی. (مرقات ۹/۱۹۶)



[1] أخرجه الدارمي في السنن ۱/۹۱ رقم الحديث ۲۵۲.

۲۰ جمادی الاول ۱٤۱۸هـ

## بَابُ الْبكاء وَالْخَوْف

## دژړا او خدای نه دويري بيان

قال الله تعالیٰ: ﴿فَلْيَضْحَكُوا قَلِيلًا وَلْيَبْكُوا كَثِيرًا﴾ (التوبة:۸۲) وقال الله تعالیٰ: ﴿وَإِذَا سَمِعُوا مَآ أُنْزِلَ إِلَى الرَّسُولِ تَرَىٰٓ أَعْيُنَهُمْ تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ مِمَّا عَرَفُوا مِنَ الْحَقِّ﴾ (مائدة: ۸۳)

کله چې په ژړا کې د خلې نه آواز ووځي نو هغې ته بکاء وايي. او که د خلې نه د ژړا په وخت کې آواز نه وځي خو وښکي توېږي نو دې ژړا ته هم بکاء وايي. کله چې په آواز کې چيغه راشي نو دې ژړا ته عويل وايي. او که آواز ييخې خکته وي نو دې ژړا ته هم بکاء وايي. او وښکي جاري وي نو دې ته حنين وايي.

د کومو خلکو زړونه چې نرم وي، د تلاوت په وخت کې يا د ذکر الله په وخت يا تذکير او وعظ په وخت کې هغوی ژاړي، دا د الله تعالیٰ ډالۍ او احسان دی. د ځينو خلکو زړونه د کاڼي نه هم ډير کلک وي. شاعر وايي:

لا ينفع الوعظ قلبًا قاسيًا ابدًا وَهَلْ يلين بذكر الواعظ الحجر

قرآن کريم کې الله تعالیٰ د ژړا او د غوني د زيږېدلو ستاينه کړېده. په احاديثو کې د ژړلو فضيلت راغلی دی. که چاته د ذکر الله يا د قرآن د تلاوت په وخت کې ژړا نه ورځي نو هغه لپاره پکار دي چې د ژړا په شان صورت دې جوړ کړي ځکه چې په دې کې فضيلت او اجر دی. چې انسان د خدای د يرې يا د صحابؤ په ذکر يا د آخرت د تذکرې د وجې نه وژاړي. په دې باب کې ليکلې شوي ټول احاديثو تعلق د خدای د يرې او د آخرت د يرې په وجه باندې د ژړا سره دی. خلاصه دا ده چې د آخرت د عذاب او د الله تعالیٰ د عتاب او عقاب د يرې نه په فرياد سره ژړلو ته **البکاء والخوف** ويلی شويدي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّل

## آخرت ځان ته حاضرول د ژړلو سبب دی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱﴾عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ أَبُو الْقَاسِمِ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «وَالَّذِي نَفْسِي | | | | | |
| حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې ابو القاسم (محمّد) صلی الله عليه وسلم وفرمايل: قسم دی په هغه ذات باندې | | | | | |
| بِيَدِهِ | لَوْ | تَعْلَمُونَ | مَا | أَعْلَمُ | لَبَكَيْتُمْ |
| د چا په قبضه قدرت کې چې زما ځان دی، که تاسو هغه څه وپيژني، کوم چې زه پيژنم نو يقينًا ستاسو ژړا | | | | | |

| كَثِيرًا وَلَضَحِكْتُمْ قَلِيلا» . رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[1] |
|---|
| په ډیره او خندا به کمه شي.(بخاری) |

**توضیح**: لبيكتم: يعني د قيامت احوال او اهوال او ميد او معاد حقيقت او د الله تعالى عظمت او دهغه جلال او جبروت، دهغه قهر او غضب او د حساب د ورځې سختې او مصیبتونه ، حساب او کتاب سختی او د الله تعالی صفات جمالیه او جلالیه چې څومره زه پیژنم او دغه شان د خلکو د انجام سره متعلق کوم واقعات او شدائد چې څومره زه پیژنم که تاسو هغه وپیژنئ نو ډیر کم به وخندیږئ بلکې نه به مو خندلی او په ژړا کې به وخت تیرولی خو تاسو لپاره د هغه څه کتنه نشته، ځکه خاندئ او عیش او عشرت کې اخته یاستئ. (مرقات ۹/۱۹۷)

د دې روایت نه مونږ ته دا تعلیم راکړل کیږي چې د راتلونکو واقعاتو د وجې نه دې انسان لپاره هر وخت د دې واقعاتو د وجې نه په فکر کې وسیدل پکار دي. ګویا چې خوف خدا او عظمت او د الله جلال د مظاهرو مخې ته دا سړی لاس په نامه ولاړ دی. اګر که د الله تعالی مغفرت او عفو او درګذر باندې کلک نظر ساتل پکار دي.لیکن د الله تعالی نه بی خوفه او بی خطره ژوند تیرولو کې ډیر نقصانونه دي. او د خدای په یره کې ډیري فائدې دي.

## د دنیا د کارونو انجام فقط د الله تعالی په علم کې وي

| ﴿۲﴾وَعَنْ أُمِّ الْعَلَاءِ الْأَنْصَارِيَّةِ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «وَاللهِ لَا أَدْرِي | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| او حضرت ام العلاء الانصاریه رضی الله عنها فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: سره د دې نه چې | | | | | |
| وَاللهِ | لَا | أَدْرِي | وَأَنَا رَسُولُ | اللهِ | مَا |
| زه د الله رسول یم خو په خدای قسم زه په دې نه پوهیږم چې زما سره به څه معامله کیدلی شي او ستاسو | | | | | |
| يُفْعَلُ بِي وبكم» . رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[2] | | | | | |
| سره به څه معامله کیدلی شي | | | | | |

**توضیح**: ما يفعل بي : يعني د الله رسول كيدلو سره هم ما ته دا علم نشته دی چې د نیاوې اعتبار سره به ستاسو څه انجام جوړیږي. او زما به څه انجام جوړیږي.(مرقات ۹/۱۹۸)

**سوال**: په دې ځای کې یو مشهور سوال دی هغه دا چې نبي خو د نورو د هدایت لپاره د الله تعالی

---

([1])اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۳۱۹ رقم الحديث ۶۴۸۵ومسلم في صحيحه ۲/۶۱۸ رقم الحديث (۹۰۱۰۱)

([2])اخرجه البخاري في صحيحه ۱۲/۴۱۰ رقم الحديث ۷۰۱۸.

ړخ نه سفير راځي. کله چې نبی د خپل آخرت او عاقبت او په نجات کې متردد وي او د ناشنایې په حالت کې اخته وي نو هغه به د نورو لپاره څنګه لاربنود ونکی جوړ شي. دغه شان دا تردد او د بې یقینۍ حالت خود نبی د معصومیت سره منافي دی. نو نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ داسې جملې څنګه رشاد وفرمایلې؟په دې حدیث کې د قرآن کریم یو حدیث اړخ ته اشاره ده، د دې آیت تفسیر او مطلب باندې ځان پوهه کولو باندې دا حدیث هم په پوهه کې راځي. هغه آیت دا دی: ﴿قُلْ مَا كُنْتُ بِدْعًا مِنَ الرُّسُلِ وَمَا أَدْرِي مَا يُفْعَلُ بِي وَلَا بِكُمْ﴾(احقاف:۹)د دې آیت ترجمه شاه ولی الله رحمه الله په فارسۍ کې داسې کړیده:

*بگو من نیستم نو آمد از پیغمبران و نمی دانم که چه کرده شود باما و باشما در دنیا*

مطلب یې دا راووتلو چې د دې آیت او حدیث دواړو تعلق د هغه دنیاوې واقعاتو او معاملاتو سره دی چې هغه په مستقبل کې د راتلونکې چې زه به مخکې مړ کیږم او که تاسو به مړه کیږی. یا زه به په تاسو غالب کیږم یا تاسو به غالب کیږی. په دې جنګ کې به تاسو شکست خوری یا به مونږ خورو. د مستقبل د دغه شان واقعاتو تعلق خو د علیم غیب سره دی. او علم غیب خاصه د خدای ده. نو ځکه نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایله او دا څه دنیوې او اخروې کارونه هم ندي چې د هغې پیژندل پیغمبر لپاره ضروري وي. ددې دوېم جواب دا چې ماته خپل او ستاسو د انجام د تفصیلاتو علم نشته دی. په اجمالي توګه خو خپل نجات او کامیابې پیژنم خود تفصیلاتو تعلق د علیم غیب سره دی. لهذا ماسره د دې علم نشته دی ځکه چې زه یې د دښه نه یم خبر کړی. دریم جواب دا چې د حضرت عثمان بن مظعون رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په وفات باندې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د هغه لپاره دعاګانې وغوختلې .د ښولو نه مخکې یې په بقیع غرقد کې هغه لره خښ کړو. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د هغه د مخ یا تندې مچې کړو. په دې باندې یوې ښځې وویل چې عثمان ستا لپاره دې جنت مبارک وي. په دې خبره نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د خفګان اظهار وکړو چې زه د الله رسول کیدلو سره خپل ځان په اړه باندې دغه شان خبره نشم کولی . تا د صحابې په اړه باندې داسې حکم څنګه ولګولو؟ دا خو د مستقبل د غیب معامله ده. دا فیصله کول پکار نه دي. اولنې دوه جوابونه واضح او راجح دي. (مرقات ۹/۱۹۸)

## په دوزخ کې د عمرو بن لحی او د یوې ښځې حالت

| |
|---|
| ﴿۳﴾وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «عُرِضَتْ عَلَيَّ النَّارُ |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایې چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: زما مخې ته د دوزخ اور راوړلی شو نو |
| فَرَأَيْتُ فِيهَا امْرَأَةً مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ تُعَذَّبُ فِي هِرَّةٍ لَهَا |
| ما په هغې کې د بنی اسرائیلو یوه ښځه ولیدله چې هغې ته د یوې پیشو په معامله کې عذاب ورکړل کیدلو. |

| رَبَطَتْهَا | فَلَمْ | تُطْعِمْهَا | وَلَمْ | تَدَعْهَا |
|---|---|---|---|---|
| كومه چې دې تړلې وه. نه خو به يې هغې (پيشو) ته خوراک لپاره څه ورکول او نه به يې خوشې (ايله) كوله چې | | | | |
| تَأْكُلُ مِنْ خَشَاشِ الْأَرْضِ حَتَّى مَاتَتْ جُوعًا وَرَأَيْتُ عَمْرَو بْنَ عَامِرٍ الْخُزَاعِيَّ | | | | |
| هغه حشرات الارض وخوري. او آخر هغه پيشو د ولږې نه مړه شوه. د غه شان ما عمرو بن عامر خزاعى وليدلو | | | | |
| يَجُرُّ قُصْبَهُ فِي النَّارِ وَكَانَ أَوَّلَ مَنْ سَيَّبَ السَّوَائِبَ» . رَوَاهُ مُسلم [1] | | | | |
| چې هغه خپلې كولمې په دوزخ كې راكښلې. دا د ټولو نه اولنى سړى ؤ چې هغه د اوښې د پرېخودلو رسم جوړ كړى ؤ. | | | | |

**توضيح: عمرو بن عامر:** عمرو بن عامر په خپله زمانه كې مكې په غټانو كې ؤ. د حرم شريف نگران هم ؤ. د سړى كاهن هم ؤ. يو ځل ناروغه شو. هغه د چانه واوريدل چې په شام كې يو ځاى كې د اوبو چينه ده. كه ناروغ په هغې باندې غُسل وكړي نو روغيږي دا سړى شام ته لاړو هلته دې سړې وكتل چې خلک د بتانو عبادت كوي د ده هم شوق پيدا شو. او بيرته راتلو كې د هغه خلكو نه يو بُت غوختلو باندې د ځان سره راوړو. چې د هغې نو هُبل ؤ. دا سړى خو كاهن ؤ. نو ابليس ده ته وويل چې جدې ته لاړ شه اِ هلته په يو خوړ كې د نوح عَلَيْهِ السَّلَام زمانې پنځه بتان پراته دي، هغه هم راوړه. نو عمرو بن عامر لاړو او د غه خوړ كې نه يې پنځه بتان و، سواع يغوث، يعوق او نسر راوړل او په بيت الله كې يې ودرول. چې د هغې نه په قلار قلاره شرک او د بتانو د عبادت رسم په حجاز مقدّس كې خپور شو. بيا دې بدبخته د بتانو په نوم باندې سنډاګان پريخودل. (مرقات ۹/۱۹۹)

**سوائب:** دا د سائبة جمع ده. سائب هغه اوښې ته وايي چې هغه د بتانو به نوم باندې آزاده پريخودلى شي دې تفصيل دا دى چې كله به د يوې اوښې لس ماده اولاد پيدا شويا كوم مسافر به د سفر نه په خيريت سره بيرته كورته راتلو يا كوم ناروغه به د ناروغۍ نه جوړ شو نو دعربو رواج ؤ چې يوه اوښه به يې آزاد پريخودله، نه به يې د هغې پې لوشل، نه به يې وربانديې سپرلي كوله، نه به يې هغه د فصل نه منع كوله، بس دا به يو غويې په شان آزاده ګرځيدله. عربو به د خپلو بتانو د خوشحالولو لپاره دغه شان كول. په دې حديث كې دې تفصيل اړخ ته اشاره ده. په ځينو روايتونو كې د دې سړې د پلار نوم لُحَى دى. يعنى عمرو بن لحى دلته د ده نوم عمرو بن عامر ويلى شويدى. د دې جواب دا دى چې ممكنه ده چې د ده د نيكه نوم لُحَى وي نو كله پلار عامر اړخ ته يې نسبت كيږي او كله نيكه لُحَى اړخ ته يې نسبت كيږي. د دې حديث نه معلوم شوه چې جنت او دوزخ د وس نه شته دى، او څه خلک د وس نه په دوزخ كې اچولى شويدي. لكه څنګه چې په دې حديث كې ذكر شويدي. او دا هم ممكنه ده چې نبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د وحې په ذريعه باندې

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۵۱۵ رقم الحديث ۳۴۸۲ ومسلم في صحيحه ۲/۶۲۲ رقم الحديث (۹۰۴-۹)

دوزخ د مستقبل حالت ښودلی شوی وي. چې په راتلونکې وخت کې به د دې خلکو سره دغه شان معامله کيږي. او دا هم ممکنه ده چې په عالم برزخ کې د دوزخ ښاخ وي. نو هغه هم دوزخ دی. (مرقات ۹/۱۹۹)

**في هرة:** دا فيِ علت او سببیت لپاره دی. چې پیشو ناجائز تکلیف ورکولو او د وږلو په وجه باندې هغه ښځه دوزخ ته لاړه. (مرقات ۹/۱۹۹)

**قُصَبه:** دا د قصبة جمع ده. کولمو ته وايي. د عربو مشهوره مقوله ده: **رئیت القصاب ینقی الاقصاب.** ما قصاب ولیدلو چې هغه کولمې پاکولي. (مرقات ۹/۱۹۹)

## یاجوج ماجوج او د سکندري دیوال تفصیل

| |
|---|
| ﴿۴﴾وَعَن زینبَ بنتِ جحشٍ أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دخل |
| او حضرت زینب بنت جحش رضي الله عنها روایت دی چې یوه ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغې کور ته په داسې حالت |
| يَوْمًا فَزِعًا يَقُولُ: «لَا إِلَهَ إِلَّا الله |
| کې راغلو لکه چې ډیر زیات یریدلی وي. بیا یې وفرمایل چې د الله نه غیره څوک د عبادت لائق نشته دی. |
| وَيلٌ للعربِ مِنْ شَرٍّ قَدِ اقْتَرَبَ فُتِحَ الْيَوْمَ مِنْ رَدْمِ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ |
| افسوس صد افسوس! د عربو په هغه فتنه باندې چې هغه ډیره ژر نژدې رارسیدلې ده. نن د یاجوج ماجوج په |
| مِثْلُ هَذِهِ» وَحَلَّقَ بِإِصْبَعَيْهِ: الْإِبْهَامَ وَالَّتِي تَلِيهَا. |
| دیوال کې دومره سوری شویدی، دې ویلو سره نبی کریم صلی الله علیه وسلم مته ګوته او ورسره ګوتې نه کړه |
| قَالَتْ زَيْنَبُ: فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ الله |
| چوره کړه. حضرت زینب رضي الله عنها فرمایي چې ما وویل یا رسول الله صلی الله علیه وسلم! آیا مونږ به په دغه وخت کې هم |
| أَفَنُهْلَكُ وَ فِينَا الصَّالِحُونَ ؟ قَالَ : |
| هلاک کړی شو. او حال دا وي چې زمونږ په مینځ کې پاکباز او صالحه خلک شتون لري؟ نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: |
| «نَعَمْ إِذَا كَثُرَ الْخَبَثُ» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1] |
| هو! او حال به دا وي چې د فسق او فجور به ډیروالی وي. |

**توضیح: للعرب:** عرب یې ځکه په خاصه توګه باندې ذکر کړل چې هغه وخت عرب ډیر په اسلام کې

[1] اخرجه البخاري في صحیحه ۶/۳۸۱ رقم الحدیث ۳۳۴۶ ومسلم في صحیحه ۴/۲۲۰۸ رقم الحدیث (۲/۲۲۸).

داخل شوي ؤ.(مرقات۹/۲۰۰)

**شر قد اقترب**: یعني یو شر او فساد دی. چې هغه عربو ته بیخې نژدې راغلی دی. په دې شر سره هغه عامو فتنو اړخ ته هم اشاره ده. چې هغه د شهادت عثمان رضي الله عنه نه وروسته په دې امت کې شروع شوي وي. او تر ننه پورې مسلسل جاري دي. خو په دوی کې غټه فتنه او فساد یاجوج او ماجوج راوتل دي. چې هغه په دې حدیث کې بیان شویدي.

**من ردم یاجوج**: د نژدې شوي شر تفصیل او بیان په دې جمله کې شویدی. او د دېنه سلطان سکندر ذوالقرنین جوړ شوی دیوال اړخ ته اشاره ده. چې دهغې شاته یاجوج ماجوج بند ساتلی شویدي. یاجوج ماجوج د لوټولو اړخ ته د حفاظت په توګه باندې په دنیا کې څو دیوالونه جوړ شویدي. په دې کې مشهور څلور دیوالونه دي: (۱) د ټولو نه غټ دیوال د چین دیوال دی. دا فغفور باچا جوړ کړیدی. چې دا زر میله اوږد دیوال دی. (۲) دویم دیوال په وسط ایشیا کې بخارا او ترمذ په مینځ کې واقع دی. چې هغې ته دربندر وایي. دا دیوال مغل باچا ګوډ تیمور جوړ کړیدی. (۳) دریم دیوال د روسیې علاقه داغستان کې واقع دی. هغې ته هم دربند وایي. (۴) څلورم دیوال کاکیشیا کې دی. چې دا هم دغه داغستان کې واقع دی. چې د ډیر وچتو غرونو په مینځ کې دی. دې ځاې کې درّه داریال په نوم سره یو درّه مشهوره ده. په دې کې دا دیوال ولاړ دی. چې هغې ته سدّ کوه قاف وایي. هم دا سد سکندری (د سکندر جوړ شوی دیوال) دی. او د دې شاته یاجوج ماجوج بند دي. نن سبا د چیچنیا نوم ډیر مشهور دی. داغستان او کاکیشیا او دره داریال او کوه قاف د چیچنیا نه ګیر چاپیره علاقې دي. (مرقات۹/۲۰۰)

**یاجوج و ماجوج**: د زمکې د ټوله فراختیا د پنځه سوه کاله مسافت باندې ده. د درې سوه کاله په مسافت په علاقه باندې سمندر پروت دی. یو سل نوې کاله مسافت علاقه باندې یاجوج ماجوج آباد دی. او د لس کاله مسافت په رقبه باندې انسانان پراته دي. یاجوج ماجوج منګولیا یعنې تاتاریانو دهغه وحشي قبیلو نوم دی. چې هغې ته اروپا او روسي قومونو نوم دی چې هغوې ته د اروپا او روسي قومونو د ابتدایي نسل تاریخي ثبوت ترلاسه دی. یاجوج ماجوج ګاونډې کمزورې قبیلو دا دوه غټې قبیلې د موګ او یُوجی په نوم سره یادې کړي. د دېنه وروسته یونانیانو دوې ګاګ میګاګ وبلل. د دېنه وروسته عربې او عبراني لغت په دې کې تصرف وکړو او دا یې یاجوج ماجوج جوړ کړل. یاجوج ماجوج ترک، روس، چین او تاتاریانو د هغه وحشي قبیلیو نوم دی. چې هغه د سدّ سکندری د پردې شاته تللي دي. او دهغوې څه مهذب مثالونه د دې قومونو په صورت کې په دنیا کې مخې ته شتون لري. په کتاب الفتن کې د دې نور تفصیل راتللی شي . بهرحال په دې حدیث کې د کومې فتنې چې نژدې راتلو اړخ ته اشاره شویده، دا د تاتاریانو د چنګیز خان فتنه وه. چې هغه هم د دې علاقې نه راپورته شوي وه. او چا چې

اسلامي خلافت ټوټې ټوټې کړو. او بغداد يې لوټ کړو. دين او د اهل دين نښانونه يې وران کړل. او په لاکهونو انسانان يې د مرګ خله کې واچول. دا د ياجوج ماجوج يو مصنوعې شکل ؤ اصلا ياجوج ماجوج به وروسته راوځي. الله تعالی دې هغوی هلاک کړي.

## قيامت ته نژدې وخت کې يو څو عذابونه

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِي عَامِرٍ أَوْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ قَالَ: |
| او حضرت ابو عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يا حضرت ابو مالک اشعری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی چې هغه بيان کړل چې ما د |
| سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " لَيَكُونَنَّ مِنْ أُمَّتِي أَقْوَامٌ |
| رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوريدلي دي چې زما په امت کې به څه دا خلک او ډلې هم پيدا شي چې هغوی |
| يَسْتَحِلُّونَ الْخَزَّ وَالْحَرِيرَ وَالْخَمْرَ وَالْمَعَازِفَ وَلَيَنْزِلَنَّ أَقْوَامٌ |
| به د ريښمو جامې او شراب او باجې به حلال او جائز کړي. او په هغوی کې به څه خلک د وچتو غرونو په اړخونو کې قيام کوي. |
| إِلَى جَنْبِ عَلَمٍ يَرُوحُ عَلَيْهِمْ بِسَارِحَةٍ لَهُمْ |
| د شپې په وخت کې به د هغوی څاروي مره خيته راځي. او دا څاروي به د هغوی څرونکی د پيو نه ډک راولي. |
| يَأْتِيهِمْ رَجُلٌ لِحَاجَةٍ فَيَقُولُونَ: |
| خو کله چې يو سړی د دوی خواته د خپل ضرورت لپاره راشي نو هغوی به يې په دې وينا سره ستانه کړي چې |
| ارْجِعْ إِلَيْنَا غَدًا فَيُبَيِّتُهُمُ اللهُ |
| سبا زمونږ خواته راشه او بيا به د شپې الله تعالی په دې باندې خپل عذاب په دې توګه نازل کړي چې په |
| وَيَضَعُ الْعَلَمَ وَيَمْسَخُ آخَرِينَ قِرَدَةً |
| هغوی کې به خو په ځينو باندې د غرونو څوکې نسکورې کړي او په هغوی کې به د ځينو شکلونه مسخ کولو باندې شادوګان او |
| وَخَنَازِيرَ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. وَفِي بَعْضِ نُسَخِ « الْمَصَابِيحِ ": |
| خنزيران ترينه جوړ کړي. چې هغه به تر قيامته په دغه شکل کې وي. (بخاری) او د مصابيح په ځينو نسخو |
| «الْحَرَّ» بِالْحَاءِ وَالرَّاءِ الْمُهْمَلَتَيْنِ وَهُوَ تَصْحِيفٌ وَإِنَّمَا هُوَ بِالْخَاءِ وَالزَّايِ الْمُعْجَمَتَيْنِ نَصَّ عَلَيْهِ الْحُمَيْدِيُّ |
| کې (الخز) دی. حميدی او ابن اثير د دې حديث په سلسله کې د دې معنې تصريح کړيده. دغه شان د حميد |

| وَابْنُ الْأَثِيرِ فِي هٰذَا الْحَدِيثِ. وَفِي كِتَابِ «الْحُمَيْدِيِّ» عَنِ الْبُخَارِيِّ وَكَذَا فِي «شَرحه» للخطابي: |
|---|
| په کتاب کې دامام بخاري نه چې کوم هم دا روايت نقل شويدى او دغه شان خطابي په شرح بخاري کې نقل |
| « تروح سارحة لَهُم يَأْتِيهِم لحَاجَة ».[1] |
| کړيدى په دې دواړو کې (يروح عليهم بسارحة) په ځاى داسې دي: تروح عليهم سارحة لهم ياتيهم لحاجة |

**توضيح: الخز**: ريښمو ته خز او حرير وويل شو او الخمر شراب ته وايي. او المعازف دمعزف جمع ده. د لهو لعت آلاتو ، باجو او طبلو ته وايي. مطلب دا دى چې په آخره زمانه کې به داسې وخت راشي چې خلک به دا حرام کارونه حلال ګڼي. نو نن سبا هم دا کيږي. **عَلَم**: غرته عَلَم ويلى کيږي. يعنې دا خلک به د غر په لمن کې استوګنه شروع کړي.

**يروح**: د ماښام وخت کې راتللو ته وايي. بسارحة: په دې کې باء زائده ده. او سارحة فاعل دى. څريدونکې څاروُ ته سارحة ويلى شويدي. يعنې ماښام کې به څاروې مړه خيټه راځي. (مرقات ۹/۲۰۲)

**لحاجة**: يعنې يو ضرورت مند سړى به خپل ضرورت سره دوى ته پيش شى ، هغه خلک به ورته ووايې سبا راشه. **فيبيتهم الله** : يعنې د شپې به الله تعالى په دوى باندې عذاب راوستلو سره ټول هلاک کړي. (مرقات ۹/۲۰۲)

**فيضع العَلَم**: يعنې الله تعالى به په دې خلکو باندې دغه غر راګوزار کړي. د کوم په لمن کې چې دا خلک استوګنه کوي. دا به دلته هلاک شي. او کوم چې پاتې شي ، هغه به د شادوګانو او خنزيرانو په شکل کې مسخ کړي. (مرقات ۹/۲۰۲)

## د الله عذاب عام وي

| ﴿۶﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا أَنْزَلَ اللهُ بِقَوْمٍ |
|---|
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: کله چې الله تعالى په يو قوم باندې |
| عَذَابًا أَصَابَ الْعَذَابُ مَنْ كَانَ فِيهِمْ ثُمَّ |
| خپل عذاب نازلوي نو دغه عذاب هر هغه سړى راګيروي چې هغه د دې قوم نه وي. او بيا به خلک د هغوې |
| بُعِثُوا عَلَى أَعْمَالِهِمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[2] |
| د اعمالو سره پاڅول کيږي. (بخاري و مسلم) |

---

([1])اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۵۱ رقم الحديث ۵۵۹۰وابوداود في السنن ۴/۳۱۹ رقم الحديث ۴۰۳۹.

([2])اخرجه البخاري في صحيحه ۱۳/۶ رقم الحديث ۷۱۰۸ومسلم في صحيحه ۴/۲۲۰۶ رقم الحديث (۲۸۷۹-۸۴)

## اصل اعتبار د خاتمې وي

﴿۷﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يُبْعَثُ كُلُّ عَبْدٍ عَلَى مَا مَاتَ عَلَيْهِ». رَوَاهُ مُسلم[1]

او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د قيامت په ورځ باندې به هر بنده په هغه حال باندې وچت کړی شي، په کوم حال باندې چې هغه مړ دی.

## الْفَصْلُ الثَّانِي

### د جنت غوښتونکی او د شپې خوب؟

﴿۸﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا رَأَيْتُ مِثْلَ النَّارِ نَامَ هَارِبُهَا وَلَا مِثْلَ الْجَنَّةِ نَامَ طَالِبُهَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[2]

حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: ما د دوزخ د اور په شان يو شی داسې نه دی ليدلی چې د هغې نه تختيدونکې دې اوده وي. او د خوشحالۍ په اعتبار سره ما داسې هيڅ شی نه دی ليدلی چې د هغې طلب کونکی اوده وي.

﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنِّي أَرَى مَا لَا تَرَوْنَ وَأَسْمَعُ مَا لَا تَسْمَعُونَ أَطَّتِ السَّمَاءُ وَحُقَّ لَهَا أَنْ تَئِطَّ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ مَا فِيهَا مَوْضِعُ أَرْبَعَةِ أَصَابِعَ إِلَّا وملكٌ وَاضع جبهتَه ساجدٌ لله وَاللهِ لَوْ تَعْلَمُونَ مَا أَعْلَمُ

او حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: څه چې زه وينم هغه تاسو نه وينئ او څه چې زه اورم هغه تاسو نه اورئ. د آسمان نه آواز راځي او د دې نه اواز راوتل ورله مناسب دي. قسم په هغه ذات باندې د چا په لاس کې چې زما ځان دی، په آسمان کې د څلور ګوتو په برابر هم داسې ځای نشته چيرته چې فرښتې خپل سر خدای په سجده کړی نه وي. په خدای قسم که تاسو هغه څه وپيژنئ چې زه يې پيژنم نو

---

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۰۶ رقم الحديث (۲۸۷۸-۸۳) واحمد في المسند ۳/۳۳۱.

[2] اخرجه الترمذي في السنن ۴/۶۱۶ رقم الحديث ۲۶۰۱.

| لَضَحِكْتُمْ قَلِيلًا وَلَبَكَيْتُمْ كَثِيرًا وَمَا تَلَذَّذْتُمْ بِالنِّسَاءِ عَلَى الْفُرُشَاتِ |
|---|
| یقینًا تاسو به ډیر کم وخاندی. او ډیر به وژاړی. او په بستره باندې به د خپلو ښځو نه خوند اخستل پریږدی. |
| وَلَخَرَجْتُمْ إِلَى الصُّعُدَاتِ تَجْأَرُونَ إِلَى اللهِ» . قَالَ أَبُو ذَرٍّ: |
| او یقینًا تاسو به الله ته ژړا فریاد کولو لپاره ځنګلو ارخ ته ووځی. حضرت ابو ذر رضي الله عنه وفرمایل: چې |
| يَا لَيْتَنِي كُنْتُ شَجَرَةً تعضد. رَوَاهُ أَحْمد وَالتِّرْمِذِيّ وَابْن مَاجَه [1] |
| کاش زه بوټی وی چې غوځ کړی شوی وی. (احمد، ترمذی، ابن ماجه) |

**توضیح: مالاترون**: یعني کومې فتنې او فسادونه او واقعات چې زه وینم او اورم، نه تاسو هغه لیدلی شی، نه یې اوریدلی شی. **اطت السماء**: دا د اطیط نه دی. د کټ یا داسې نور څه د لرګې نه چې د چغارې آواز راوځي. هغې ته اطیط ته وایي. مراد اواز راوتل دي. یعني آسمان د ډیرو ملائکو او ذات باري تعالی د جلال د وجې نه د چغارې آوازونه ترې راوځي. د حدیث په راتلونکې برخه کې د دې چغارې وجه او سبب بیان کړی شویدی. **ساجدًا**: یعني فرښتې د الله تعالی په تابعدارۍ کې اخته دي. د تابعدارۍ مطلب دا دی چې څوک په سجده کې دی، ن څوک په قیام یا رکوع کې دی. او څوک په بل عبادت کې دی. ټول په سجده کې نه دي. لهذا د ساجدًا نه تابعدارې مراد اخستل شویده. دې لپاره چې عام شي. **الصعدات**: دشتې او ځنګل ته وایي. (مرقات ۹/۲۰۸)

**تجأرون**: یعني د الله تعالی مخې ته په چیغو چیغو وژاړی. دې سختو حالاتو اوریدلو باندې ابوذر رضی الله نه وفرمایل: ای کاش! چې زه بوټی وی، دې لپاره چې په غوځیدلو مې قصه ختمه شوی وی. او د دې واقعاتو او دردونو سره نه مخ کیدلی. (مرقات ۹/۲۰۸)

## د حکمت نه ډک یو نصیحت

| ﴿١٠﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: « مَنْ خَافَ |
|---|
| او حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کوم سړی چې یریږي نو هغه د شپې |
| أَدْلَجَ وَمَنْ أَدْلَجَ بَلَغَ |
| په اوله برخه کې د خپل ځان د ساتنې لاره خپله کړي. او کوم سړی چې د شپې په اوله برخه کې تیښته شروع |

---

([1]) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۸۲ رقم الحديث ۲۳۱۳ وابن ماجه في السنن ۲/۱۴۰۲ رقم الحديث ۴۱۹۰.

الْمَنْزِلَ. أَلَا إِنَّ سِلْعَةَ اللهِ غَالِيَةٌ أَلَا إِنَّ سِلْعَةَ اللهِ الْجَنَّةُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1]

کړي، هغه منزل ته رسيږي. پوهه شئ، د خداى مال ډير قيمتي دى. او ياد ساتئ! د خداى مال جنت دى.

**توضيح**: ادلج: ادلاج د شپې په اوله برخه کې تللو ته وايي، د دينه ووسته تاويب دى. د دينه وروسته تعريس دى. شاعر ساحر وايي:

فالحمد قبلُ لها والحمد بعد لها ولِلقنا ولا دلاجى وتأويبى

## سره د نيک کيدلو نه د الله تعالى نه يريدل پکار دي

﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "يَقُولُ اللهُ جَلَّ ذِكْرُهُ:

او د حضرت انس رضي الله عنه روايت دى چې نبى کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: الله د چا ذکر چې ډير د عظمت والا دى

أَخْرِجُوا مِنَ النَّارِ مَنْ ذَكَرَنِي يَوْمًا أَوْ

د قيامت په ورځ به وفرمايي چې هغه سړى د دوزخ نه راوباسئ چا چې زه يو ورځ هم ياد کړى يم. يا په

خَافَنِي فِي مَقَامٍ «رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي» كِتَابِ الْبَعْثِ والنشور "[2]

کومه موقع باندې زما نه يريدلى دى. (روايت کړې دې ترمذى او بيهقى)

﴿۱۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ هَذِهِ الْآيَةِ:

او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه د دې آيت په اړه باندې پوښتنه وکړه

( وَ الَّذِينَ يُؤْتُونَ مَا آتوا

﴿وَالَّذِينَ يُؤْتُونَ مَا آتوا الخ﴾ (ترجمه) هغه خلک چې هغوى ورکوي او څه چې ورکوي يعنې د زکوة او صدقاتو نه

و قُلوبُهم وَجِلَةٌ ) أَهُمُ الَّذِينَ يَشْرَبُونَ الْخَمْرَ

د هغوى حالت دا دى چې د هغوى زړونه يريدونکي دي، چې آيا دا هغه خلک دي چې شراب څکي او

وَ يَسْرِقُونَ ؟ قَالَ: « لَا يَا بِنْتَ الصِّدِّيقِ

غلا کوي؟ نبى کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د صديق (رضى الله عنه) لورې! نا! دا هغه خلک ندي چې شراب

---

[1] اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۴۶ رقم الحديث ۲۴۵۰.

[2] اخرجه الترمذي في السنن ۴/۶۱۳ رقم الحديث ۲۵۹۴.

| وَلٰكِنَّهُمُ | الَّذِينَ | يَصُومُونَ | وَيُصَلُّونَ | وَيَتَصَدَّقُونَ | وَهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| ځکې، غلا کوي. بلکې دا هغه خلک دي چې روژې نيسي، لمونځ کوي، او زکوة ورکوي او سره د دې | | | | | |

يَخَافُونَ أَنْ لَا يُقْبَلَ مِنْهُمْ أُولٰئِكَ الَّذِينَ يُسَارِعُونَ فِي الْخَيْرَاتِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه[1]

هغه نه يريږي چې د هغوی اعمال (کيدی شي) قبول نشي. دغه کسان په نيکو کې تلوار کونکې دي.

**توضيح:** حضرت عائشه رضي الله عنها د نبی کريم صلی الله عليه وسلم نه پوښتنه ځکه وکړه چې کوم ژاړي او يريږي نو کيدی شي هغوی به غټ غټ گناهونه کړي وي، ځکه به ژاړي. نبی کريم صلی الله عليه وسلم حضرت عائشه رضي الله عنها ته په جواب کې وفرمايل چې داسې نه ده، دا ژړيدونکې به گناهگار نوي، بلکې نيک عمله خلک به وي. البته ويره به د دې خبرې وي چې هغوی کوم اعمال کړيدي، هغه د الله تعالی په دربار کې نامقبوله نشي.

﴿۱۲﴾ وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا ذَهَبَ ثُلُثَا اللَّيْلِ قَامَ

او حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه بيان کوي چې کله دوه برخې شپه به تيره شوه نو نبی کريم صلی الله عليه وسلم به راپاڅيدلو

| فَقَالَ: «يَا | أَيُّهَا | النَّاسُ | اذْكُرُوا | اللهَ | جَاءَتِ | الرَّاجِفَةُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او فرمايل به يې: خلکو! الله تعالی ياد کړئ، هغه زلزله راځي، د هغې شاته شاته هغه هم راروان دی. | | | | | | |

| تَتْبَعُهَا | الرَّادِفَةُ | جَاءَ | الْمَوْتُ | بِمَا | فِيهِ |
|---|---|---|---|---|---|
| څوک چې شا ته راتلونکې دی، مرگ د ځان سره ترلې ټول حالتونو سره راځي. مرگ د ځان سره ترلې | | | | | |

جَاءَ الْمَوْتُ بِمَا فِيهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[2]

ټولو حالتونو سره راتگ کوي.

## مرگ او قبر هر وخت ياد ساته

﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِصَلَاةٍ

او حضرت ابوسعيد خدری رضي الله عنه فرمايي چې (يوه ورځ) نبی کريم صلی الله عليه وسلم لمونځ لپاره راغلو

| فَرَأَى | النَّاسَ | كَأَنَّهُمْ | يَكْتَشِرُونَ | قَالَ: " | أَمَا | إِنَّكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نو نبی صلی الله عليه وسلم وکتل چې گويا خلک خاندي. نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل: خبردار! بيشکه تاسو | | | | | | |

---

[1] أخرجه الترمذي في السنن ۵/۳۰۶ رقم الحديث ۳۱۷۵ وابن ماجه في السنن ۲/۱۴۰۴ رقم الحديث ۴۱۹۸.

[2] أخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۴۹ رقم الحديث ۲۴۵۷ وأحمد في المسند ۵/۱۳۶.

لَوْ أَكْثَرْتُمْ ذِكْرَ هَادِمِ اللَّذَّاتِ لَشَغَلَكُمْ عَمَّا أَرَى الْمَوْتُ

خوندونه ختمونکې څیز ذکر ډېر کوئ نو هغه به تاسو د دې څیز نه منع کړي. کوم چې زه وینم او هغه مرګ دی.

فَأَكْثِرُوا ذكر هَادِمِ اللَّذَّات الْمَوْت فَإِنَّهُ لَا يَأْتِ على الْقَبْر يومٌ

نو تاسو خوندونه ختمونکې څیز یعنې مرګ ډېر یادوئ. حقیقت دا دی چې په قبر باندې یوه ورځ داسې نه تیریږي

إِلَّا تَكَلَّمَ فَيَقُولُ: أَنَا بَيْتُ الْغُرْبَةِ وَأَنَا بَيْتُ الْوَحْدَةِ وَأَنَا بَيْتُ التُّرَابِ وَأَنَا بَيْتُ الدُّودِ

چې هغه دا نه وايي چې زه د غریبۍ کور یم. زه د یواځیوالي کور یم. زه د خاورو کور یم. او زه د چینجو کور یم.

وَإِذَا دُفِنَ الْعَبْدُ الْمُؤْمِنُ قَالَ لَهُ الْقَبْرُ: مَرْحَبًا وَأَهْلًا

او کله چې یو مؤمن بنده خښ کړی شي نو قبر هغه ته وايي چې پخیر راغلې دې وي! ته یو فراخه او د آرام ځای او

أَمَا إِنْ كُنْتَ لَأَحَبُّ مَنْ يَمْشِي

خپل کور ته راغلې. تا ته دې معلومه وي چې ته زما په نزد باندې د هغه خلکو نه ډېر خوښ وې چې هغه په ما باندې

عَلَى ظَهْرِي إِلَيَّ فَإِذْ وُلِّيتُكَ الْيَوْمَ

ګرځیدل، نو نن چې زه په تا باندې حاکم او قادر جوړ شوی یم، او ته ما مجبور او مقهور شوی یې. نو ژر دې

وَصِرْتَ إِلَيَّ فَسَتَرَى صَنِيعِي بِكَ". قَالَ:

چې ته به زما هغه نیک سلوک ووینې چې زه یې ستا سره کوم. نبی کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: د دې نه وروسته قبر د هغه

" فَيَتَّسِعُ لَهُ مَدَّ بَصَرِهِ

بنده لپاره دومره فراخه شي او هغه فراخوالی هغه ته د خپل نظر تر حده پورې معلومیږي. او بیا د هغه لپاره د

وَيُفْتَحُ لَهُ بَابٌ إِلَى الْجَنَّةِ وَإِذَا دُفِنَ الْعَبْدُ الْفَاجِرُ أَوِ الْكَافِرُ قَالَ لَهُ الْقَبْرُ:

جنت اړخ ته یوه دروازه برسیره شي. او کله چې یو فاسق یا کافر بنده خښ کړی شي، قبر هغه لره ورته، او

لَا مَرْحَبًا وَلَا أَهْلًا أَمَا

ورته وايي چې نه خو ستا راتګ دې مبارک وي او نه خو ته ښه، فراخه، د آرام ځای او خپل کور ته راغلی یې.

إِنْ كُنْتَ لَأَبْغَضَ مَنْ يَمْشِي عَلَى ظَهْرِي إِلَيَّ

تا ته دې معلومه وي چې ته زما په نزد د هغه خلکو نه ډېر بدي شوي چې هغه په ما باندې ګرځیدل. نو نن

| |
|---|
| فَإِذْ وُلِّيتُكَ الْيَوْمَ وَصِرْتَ إِلَيَّ فَسَتَرَى |
| زه په تا باندې حاکم او قادر جوړ شوی یم. او ته زما مجبور او مقهور يې. نو ژر به يې وويني چې زه ستا سره |
| صَنِيعِي بِكَ " قَالَ: «فَيَلْتَئِمُ عَلَيْهِ حَتَّى يَخْتَلِفَ أَضْلَاعُهُ». |
| څنګه بد سلوک کوم. نبي کريم ﷺ وفرمايل: او بيا قبر هغه باندې زور کړي، تردې چې پښتې يې د يو ځای نه |
| قَالَ: وَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَصَابِعِهِ. |
| بل ځای ته شي. ابو سعيد رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ خپلې ګوتې په يو بل کې دننه کړې او |
| فَأَدْخَلَ بَعْضَهَا فِي جَوْفِ بَعْضٍ. |
| وې فرمايل چې داسې د قبر په زور کولو باندې به د دغه کافر پښتې په يو بل کې ننوځي. د دېنه وروسته يې |
| قَالَ: «وَيُقَيَّضُ لَهُ سَبْعُونَ تِنِّينًا لَوْ أَنَّ وَاحِدًا مِنْهَا نَفَخَ فِي الْأَرْضِ |
| وفرمايل چې په دې کافر باندې به اويا [۷۰] اژدهي مسلط کړې شي. که په دوې کې يوه اژدها په زمکه باندې |
| مَا أَنْبَتَتْ شَيْئًا مَا بَقِيَتِ الدُّنْيَا فَيَنْهَسْنَهُ |
| پوکې وکړي نو هغه زمکه ترڅو چې دنيا باقي وي، د شينکي راټوکولو قابله به نوي. دغه اژدهي دا کافر خوري |
| وَيَخْدِشْنَهُ حَتَّى يُفْضِي بِهِ إِلَى الْحِسَابِ» قَالَ: |
| او چيچي. ترڅو چې د دې بنده نه حساب وانخستلې شي. حضرت ابو سعيد رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ |
| وَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ: «إِنَّمَا الْقَبْرُ رَوْضَةٌ مِنْ رِيَاضِ الْجَنَّةِ أَوْ |
| دا هم وفرمايل: په دې کې هيڅ شک نشته چې قبر د جنت د باغيچو نه يوه باغيچه ده يا د جهنم د |
| حُفْرَةٌ مِنْ حُفَرِ النَّارِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1] |
| اور د کندو نه يوه کنده ده. (ترمذی) |

**توضیح**: يکتشرون: اکتشار د باب افتعال نه دی. د دې ماده کشر ده. چې د غاښونو برسيرته کيدلو ته وايي. دلته مراد خندا ده. (مرقات ۹/۲۱۲)

**هاذم**: ای قاطع اللذات: هاذم غوڅولو په معنی دی. مراد مرګ دی. ځکه چې مرګ هم ټول خوندونه غوڅوي. **عما ازی**: يعنې که تاسو مرګ ياد ولی نو ما به تاسو داسې په خندا نه وی ليدلې.

---

[1] اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۵۱ رقم الحديث ۲۴۶۰ والنسائي في السنن ۴/۴ رقم الحديث ۱۸۲۴.

**الموت**: دا مجروره دی چې د هاذم اللذات تفسير دی. يا د دهغې نه بدل دی او دا مرفوع هم كيدلی شي. الموت دغه شان منصوب هم كيدلی شي.

ای اعنی الموت. **وليتك**: يعنې زما په قبضه کې راغلي. زه په تاباندې مسلط کړې شوی يم. كتاب الجنائز کې دغه شان احاديث د تشريحاتو سره ذكر شويدي. (مرقات ۹/۲۱۴)

## د آخرت فكر نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بوډا كړو

﴿۱۵﴾ وَ عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ قَالَ: قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ قَدْ شِبْتَ

او حضرت ابو جحيفه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې كله صحابؤ عرض وکړو چې يارسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! ته خو بوډا شوي؟

قَالَ: «شَيَّبَتْنِي سُورَةُ هُودٍ وَ أَخَوَاتُهَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1]

نو نبی كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: سورت هود او دغه شان سورتونو زه بوډا كړم.

**توضيح**: يعنې سورت هود کې **فَاسْتَقِمْ كَمَا أُمِرْتَ** په الفاظو كېد استقامت تصور زه بوډا كړم. او سورة النبآء، سورة التكوير، سورة الواقعة په شان سورتونو زه بوډا كړم. ځكه چې په دې کې قيامت د حالاتو تفصيل دی.

﴿۱۶﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ أَبُو بَكْرٍ: يَا رَسُولَ اللهِ

او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت ابوبكر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې يارسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ!

قَدْ شِبْتَ. قَالَ: شَيَّبَتْنِي (هود) و (المرسلات) و (عَمَّ يتساءلون)

ته خو بوډا شوي؟ نبی كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: هو! سورة هود، سورة واقعة، سورة مرسلات، عم يتسآءلون

و (إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ) رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَذُكِرَ حَدِيثُ أَبِي هريرة: لَا يلج النَّار «فِي» كتاب الْجِهَاد[2]

او اذا الشمس كورت بوډا كړم. (ترمذی) او د حضرت ابوهريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حديث لايلج النار الخ په كتاب الجهاد کې نقل شويدی.

# الْفَصْلُ الثَّالِثُ

## هيڅ ګناه سپكه مه ګڼه

﴿۱۷﴾ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: إِنَّكُمْ لَتَعْمَلُونَ أَعْمَالًا هِيَ أَدَقُّ فِي أَعْيُنِكُمْ مِنَ الشَّعْرِ كُنَّا

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: تاسو داسې كارونه كوی چې هغه ستاسو په نظر کې د ايخته نه ډير باريكه دي.

---

[1] أخرجه الترمذي في السنن ۵/۳۷۵ رقم الحديث ۳۲۹۷.

[2] أخرجه الترمذي في السنن ۵/۳۷۵ رقم الحديث ۳۲۹۷

نَعُدُّهَا عَلَى عَهْدِ رَسُولِ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ من الموبقات. يَعْنِي المهلكات. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1]

خو مونږ به دغه کارونه د نبی کریم ﷺ په زمانه کې په موبقات یعنې هلاکونکې کارونو کې شمارلو.

﴿۱۸﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «يَا عَائِشَةُ إِيَّاكِ

او د حضرت عائشه رضي الله عنها نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: عائشه! ته خپل ځان د هغه ګناهونو

وَمُحَقَّرَاتِ الذُّنُوبِ فَإِنَّ لَهَا مِنَ الله

نه هم لیرې وساته چې هغه معمولي او سپک ګڼلی کیږي. ځکه چې د دغه ګناهونو لپاره د الله تعالی په

طَالِبًا» . رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ»[2]

نزد باندې یو مطالبه کونکی هم شته دی. (ابن ماجه، دارمی، بیهقی فی شعب الایمان)

## د حضرت عمر رضي الله عنه او حضرت ابوموسی رضي الله عنه خپل مینځې خبرې

﴿۱۹﴾ وَ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ بْنِ أَبِي مُوسَى رَضِيَ الله عَنْهُ قَالَ:

او حضرت ابوبرده بن ابی موسی اشعری رضي الله عنه چې هغه د وچتې درجې تابعینو نه دی، فرمایي چې

قَالَ لِي عَبْدُ الله بْنُ عُمَرَ: هَلْ تَدْرِي مَا قَالَ أَبِي لِأَبِيكَ؟

حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما ماته وویل: چې تاته معلوم ده: زما پلار ستا پلار ته څه ویلي وُ؟ حضرت ابوبرده رضي الله عنه

قَالَ: قُلْتُ: لَا. قَالَ: فَإِنَّ أَبِي

فرمایي چې ما جواب ورکړو چې زه نه پوهیږم. حضرت عبد الله رضي الله عنه جواب راکړو: زما پلار ستا پلار

قَالَ لِأَبِيكَ يَا أَبَا مُوسَى هَلْ يَسُرُّكَ أَنَّ إِسْلَامَنَا مَعَ رَسُولِ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ته ویلي وُ چې ابوموسی! آیا دا خبره ستا لپاره خوشحالونکې ده چې زمونږ اسلام کوم چې د رسول الله ﷺ سره وُ

وَهِجْرَتَنَا مَعَهُ وَجِهَادَنَا مَعَهُ وَعَمَلَنَا

زمونږ هجرت کوم چې د هغه سره وُ، زمونږ جهاد کوم چې د هغه سره وُ، او زمونږ اعمال کوم چې د هغه سره وُ

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۳۲۹ رقم الحديث ۶۴۹۲، والدارمي في السنن ۲/۴۰۷ رقم الحديث ۲۷۶۸.

[2] اخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۲۱۷ رقم الحديث ۴۲۴۳، والدارمي في السنن ۲/۳۹۲ ۲۷۲۶.

كُلُّهُ مَعَهُ بَرَدَ لَنَا؟ وَأَنَّ كُلَّ عَمَلٍ عَمِلْنَاهُ بَعْدَهُ

هغه ټول دې زمونږ لپاره ثابت او برقرار پاتې شي. او مونږ چې کوم اعمال د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وروسته کړيدي،

نَجَوْنَا مِنْهُ كَفَافًا رَأْسًا بِرَأْسٍ؟ فَقَالَ أَبُوكَ لِأَبِي: لَا

که هغه زمونږ سره سربر هم وي نو مونږ به خلاص شو نو زمونږ لپاره کافي دي، زما پلار زما پلار ته وويل: چې نا!

وَاللهِ قَدْ جَاهَدْنَا بَعْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَصَلَّيْنَا

په خدای قسم چې داسې نده. چې مونږ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وروسته جهاد وکړو، لمونځونه وکړل،

وَصُمْنَا وَعَمِلْنَا خَيْرًا كَثِيرًا. وَأَسْلَمَ عَلَى أَيْدِينَا بَشَرٌ كَثِيرٌ

روژې مو ونیولې، او نور ډیر نیک اعمال وکړل. او ډیر خلک زمونږ په لاس باندې مسلمانان شول. او یقینًا

وَإِنَّا لَنَرْجُو ذَلِكَ. قَالَ أَبِي: وَلَكِنِّي أَنَا وَالَّذِي

مونږ (د ذکر شوؤ شیانو) اجر او ثواب امید لرو. زما پلار وویل چې (ستا خبره صحیح ده) لیکن زه قسم خورم

نَفْسُ عُمَرَ بِيَدِهِ لَوَدِدْتُ أَنَّ ذَلِكَ بَرَدَ لَنَا

په هغه ذات باندې، د چا قدرت په قبضه کې چې زما ځان دی، زه دا خبره خوښوم چې مونږ کوم اعمال د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

وَأَنَّ كُلَّ شَيْءٍ عَمِلْنَاهُ بَعْدَهُ

سره کړیدي، هغه ثابت او په خپل حال دي. او کوم اعمال چې مونږ د نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وروسته کړیدي،

نَجَوْنَا مِنْهُ كَفَافًا رَأْسًا بِرَأْسٍ. فَقُلْتُ:

د هغې نه که سربره وي نو مونږ خلاص شو حضرت ابوبرده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل

إِنَّ أَبَاكَ وَاللهِ كَانَ خيرا من أَبِي. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1]

چې ستا پلار قسم په خدای چې زما د پلار نه غوره ؤ.

**توضيح**: بردلنا: ـ د، د ثبت په معنی دی. مطلب دا دی چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د زمانې د ښه اعمالو ذکر وکړو. او بیا یې وفرمایل چې که هغه اعمال زمونږ په اعمال نامه کې پاتې شي او په هغې باندې مونږ ته ثواب راکړل شي او د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وروسته چې مونږ کوم اعمال کړیدي، د ښه مونږ ته ثواب رانکړی شي. او نه عذاب راکړی شي یعنې سربر فیصله وشي نو دا به ډیره خبره وي! ستا هم دا

(1) اخرجه البخاري في صحيحه ۷/۲۵۴ رقم الحديث ۳۹۱۵.

خو ښه ده او که نا؟ حضرت ابوموسى اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې داسې نده حضرت! مونږ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وروسته دير ښه ښه اعمال کړيدي. چې په هغې باندې مونږ د ثواب اميد لرو. په حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې په خوف او رجاء کې خوف غالب ؤ. ځکه يې وفرمايل او حضرت ابوموسى اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې د رجاء کيفيت غالب ؤ. نو ځکه په هغه باندې دويم رنګ غالبه ؤ. خوف او رجاء کې به حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې که د قيامت په ورځ باندې اعلان وشي چې فقط يو سړی به دوزخ ته ځي، نو رتهول به جنت ته ځي. نو زه به وايم چې هسې نه هغه سړی خو زه نه يم. او که اعلان وشي چې فقط يو سړی به جنت ته ځي نو زه به وايم چې هغه به زه يم. بهرحال موسىٰ اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ځوې حضرت ابوبرده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما ته وفرمايل چې ستا قدرمند پلار زما د قدرمند پلار نه په دې رايه کې غوره ؤ.

## نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د نهو خبرو حکم

﴿۲۰﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَمَرَنِي رَبِّي بِتِسْعٍ:

حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: زما رب ما ته د نهه[۹] خبرو حکم کړے

خَشْيَةِ اللهِ فِي السِّرِّ وَالْعَلَانِيَةِ وَكَلِمَةِ الْعَدْلِ

يو خو دا چې په ښکاره او په پټه باندې د يو الله نه دې يره وکړی شي. دويمه خبره دا چې رښتيا دې ووېلی شي.

فِي الْغَضَبِ وَالرِّضَى وَالْقَصْدِ

که د غصې حالت وي او که د رضامندۍ حالت وي. دريم خبره دا چې فقر او غربت او مالدارۍ دواړو حالتونو

فِي الْفَقْرِ وَالْغِنَى وَأَنْ أَصِلَ مَنْ قَطَعَنِي

درميانه والى پکار دى. څلورم خبره دا چې زه د هغه سړي سره خپلولي وساتم چې هغه زما سره تعلق ختموي.

وَ أُعْطِي مَنْ حَرَمَنِي وَ أَعْفُو

پنځمه خبره دا چې زه هغه سړي ته (هم) څه ورکړم چې هغه ما محرومه ساتي. شپږمه خبره دا چې زه د انتقام

عَمَّنْ ظَلَمَنِي وَأَنْ يَكُونَ صَمْتِي

اخستلو طاقت لرلو سره هم هغه سړی معاف کړم چې هغه په ما باندې ظلم وکړي. اوومه خبره دا چې زما چپ

فِكْرًا وَنُطْقِي ذِكْرًا

کيناستل دې هم د عبادت ذريعه وي. اتمه خبره دا چې زما وينا دې د الله د يادونې ښکارونکې وي. او نهمه

| وَنَظَرِي | عِبْرَةً | وَآمُرُ | بِالْعُرْفِ |
|---|---|---|---|
| خبره دا چې زما نظر دې د عبرت اخستلو لپاره وي. او زما رب ماته دا حکم هم کړیدی چې زه د نیکۍ حکم | | | |
| «وَقِيلَ» بِالْمَعْرُوفِ " رَوَاهُ رزين[1] | | | |
| وکړم او په یو روایت کې د بالمعروف لفظ دی. | | | |

## د الله تعالی د ویرې نه د ژړا فضیلت

﴿۲۱﴾ وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا مِنْ عَبْدٍ

او حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: هر هغه مؤمن

مُؤْمِنٍ يَخْرُجُ مِنْ عَيْنَيْهِ دُمُوعٌ وَإِنْ كَانَ مِثْلَ رَأْسِ الذُّبَابِ مِنْ خَشْيَةِ اللهِ ثُمَّ

بنده چې د هغه د سترګو نه د خدای د ویرې وښکې وځي. اګر که هغه وښکې د مچ د سر په برابر ولې نه وي، او بیا

يُصِيبُ شَيْئًا مِنْ حَرِّ وَجْهِهِ إِلَّا حَرَّمَهُ اللهُ عَلَى النَّارِ» . رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه[2]

هغه وښکې را تویدلو باندې هغه ښکاره مخ ته را ورسیږي نو الله تعالی به په هغه باندې د دوزخ اور حرام کړي.

**توضیح: حروجهه:** د مخ برسیره چې کومه برخه ده. هغې ته **حرالوجه** وایي. یعنې د خدای د ویرې نه د چا د سترګو نه کم ازکم درې اوښکې راوتلو باندې په مخ پریوځي، نو الله تعالی په هغه مخ باندې د جهنم اور حراموي. اګر که هغه اوښکې د مچ د سر په برابر وړې ولې نه وي. (مرقات ۹/۲۲۳)



(۱) رواه رزین.

(۲) اخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۴۰۴ رقم الحدیث ۴۱۹۷.

۲۲ جمادی الاول ۱٤۱۸هـ

# بَاب تغير النَّاس

## په خلکو کې د بدلون بيان

يعنې په خلکو کې تغير او بدلون يا د زمانې په حالاتو کې بدلون. د دې باب په څه روايتونو کې د خلکو د بدلون ذکر دی. خو په اکثرو احاديثو کې د د زمانې د حالاتو د بدلون بحث دی. دواړه مطلبونه صحيح دي چې په خلکو کې به هم او په زمانه کې به هم بدلون راشي. دا بدلون د نبي اکرم ﷺ حيات طيبه سره متعلق دی. د حيات طيبه دور بل ؤ ، د نبي کريم ﷺ د وفات نه وروسته دور بل ؤ. او څومره چې وروستوالی راتلو . تغير او بدلون ډيريدلو او نن مونږ په مکمل توګه باندې بدل شوي يو. خلکو به د نبی کريم ﷺ په زمانه کې په اخلاص سره په سختۍ باندې په دين عمل کولو. د الله تعالی احکام او سنت نبوی به يې په په سر سترګو سره قبلول او په شوق باندې په هغې ولاړ ؤ. د دنيا نه خلک بې رغبته او د آخرت اړخ ته متوجې ؤ. خو د نبي کريم ﷺ د وفات نه وروسته په قلار قلار د خلکو حالاتو کې تغير او بدلون راتللو، تردې چې قيامت ته نژدې به خلک بيخې بدل شي. او د ښه صفتونو په ځاې به بد صفتونه خپل کړي. نيکۍ ته به په بد نظر سره ګوري. او بدۍ ته به په ښه نظر سره ګوري. ګويا په عقل کې به مکمل فتور(نقصان) راشي. کبيرا نومې يو شاعر دا بدلون په يو شعر کې په دې توګه ذکر کړيدی:

رنگی کو نارنگی کہا دودھ کھڑے کو کھویا      چلتی کا نام گاڑی رکھا یو کبیرا اردیا

# اَلْفَصْلُ الأَوَّل

## قحط الرجال په زمانه کې به په سلو کې يو کس د کار په لاس راځي

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « إِنَّمَا النَّاسُ |
| حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمايې چې رسول الله ﷺ وفرمايل: خلک اختلاف او د صفاتو د بدلون |
| كَالْإِبِلِ الْمِائَةِ لَا تَكَادُ تَجِدُ فِيهَا رَاحِلَةً » . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ .[۱] |
| په اعتبار سره د هغه سلو اوښانو په شان دي چې په هغې کې به ته د سپرلۍ قابل يو موندلی شي. (بخاری ومسلم) |

**توضيح**: راحلة: راحلة هغه اوښ ته وايي چې هغه د سپرلۍ وړ وي. تندرسته وي، صحيح وي، روغ وي، او د بار وړلو ښه قابل وي. د حديث مطلب دا دی چې څنګه په سلو اوښانو کې په مشکله

---

(۱)اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۳۳۳ رقم الحديث ٦٤٩٨ ومسلم في صحيحه ٤/۱۹۷۳ رقم الحديث (۲۵٤۷-۲۳۲)

سره یو ... د سپړلې قابل راوځي، دغه شان په انسانانو کې هم د کار سړي په ګرانه سره ترلاسه کیږي. ... عارفین وایي چې وس د قحط الرجال زمانه ده . د سلو عدد د تکثیر لپاره ... حد او تعیین ... نه دی. دغه شان دا کیفیت د خیرالقرون نه وروسته د هرې زمانې لپاره دی. وس د دې جدید ... په اړه باندې په ځای ویلی کیدلی شي.(مرقات ۹/۲۲۳)
لکه څنګه چې شاعر ویلې دي:

واذا صفالك من زمانك واحد فهو المراد واين ذا الواحد

(مرقات ۹/۲۲۳)

یعنې که ستا په زمانه کې تاته یو مخلص دوست په لاس درغلو نو دغه هم غنیمت دی، خو هغه یو چیرته دی؟

## مسلمان به د یهودو او نصاراؤ تقلید و کړي

| |
|---|
| ﴿۲﴾وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « لَتَتَّبِعُنَّ سُنَنَ مَنْ قبلكُمْ |
| او حضرت ابو سعید رضي الله عنه فرمایې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل: یقینًا تاسو به په ولیشت |
| شِبْرًا بشبرٍ و ذراعاً بذراعٍ |
| ولیشت برابر او د لاس لاس برابر د هغه خلو طور طریقې خپلې کړې، چې هغه ستاسو نه مخکې تیر شویدي. |
| حَتَّى لَوْ دَخَلُوا جُحْرَ ضَبٍّ تَبِعْتُمُوهُمْ» . قِيلَ: |
| تردې چې که هغوې د ګونګټ په سورې کې کیني نو تاسو به هم هغوې پسې ځې. صحابۀ عرض وکړو |
| يَا رَسُولَ الله اليَهُودَ وَالنَّصَارَى؟ |
| یارسول الله! هغه خلک مخکې تیر شویدي او د چا طور طریقې چې به مونږ خپلوؤ، آیا هغه یهود او نصاری دي؟ |
| قَالَ : « فَمَنْ » . مُتَّفق عَلَيْهِ [1] |
| نبی کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل: که هغه یهود او نصاری ندي نو نور څوک دي؟ |

**توضیح**: شبرا بشبر: یعنې ولیشت په ولیشت او لاس په لاس به د یهود او نصاراؤ په نقش قدم باندې رانده مزل کوی.

**حجر**: سورې ته وایي. او **ضب**: سمسارې ته وایي. یعنې بی فائدې تقلید به کوی. بس د یهودو او

(۱)اخرجه البخاري في صحيحه ۲۹۵ ، رقم الحديث ۳۴۵۶،ومسلم في صحيحه ۴/۲۰۵۴ رقم الحديث (۶/۲۶۶۹)

نصاراؤ تقلید به خپله د مسلمانانو لپاره د زړه خوږنې سبب جوړ شي. که فائده ورېکې وي او که نه وي، لږ و گوری! د سمساري سورې ته ننوتلو کې څه فائده ده؟

**فَمَنْ؟**: یعني یهود او نصاری به یې. د دې نه غیره به نور څوک وي؟ نن سبا مونږ گورو چې په هره معامله کې کلم گو مسلمانان د غیرمسلمو په نقش قدم باندې روان شویدي. که هغه افعالو کې وي او که اقوالو کې وي. یا بدعات او تحریفات کې وي.هر میدان کې دهغوې تقلید شروع دی. (مرقات ۹/۲۲۵)

## ښه خلک به مړه شي، خزلې به پاتې شي

| |
|---|
| ﴿۳﴾وَعَن مرداس الْأَسْلَمِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: « يَذْهَبُ الصَّالِحُونَ |
| او حضرت مرداس اسلمی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایې چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: نیک بخته او نیکان خلک به |
| الْأَوَّلُ فَالْأَوَّلُ وَتَبْقَى حُفَالَةٌ كَحُفَالَةِ الشَّعِيرِ أَوِ التَّمْرِ |
| یو بل پسې د دې نه ځي. او بدکاره، ناکاره خلک د وربشو یا کهجورو د بوسو په شان به پاتې شي. د |
| لَا يُبَالِيهِمُ اللهُ بَالَةً». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1] |
| چا چې الله تعالی هیڅ پرواه نکوي. |

**توضیح: حفالة**: غنم، کهجوري او وربشو بوسو ته خفالة وایي. یعنې بدکاره، بدکرداره، زناکار خلک به پاتې شي. ښه خلک به یو بل پسې واغستلی شي. چا څه ښه ویلې دي:

گل گئے گلشن گئے پھولوں کے پتے رہ گئے — جو لوگ تھے وہ مر گئے الّو کے پٹھے رہ گئے

آدمیاں گم شدند ملک خدا خر گرفت — شامت اعمال ما صورت نادر گرفت

اسپ تازی شده مجروح بزیر پالان — طوق زریں ہمہ رو گردن خری بینم

# الْفَصْلُ الثَّانِي

## یوه پیشنگوئي

| |
|---|
| ﴿٤﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: « إِذَا مَشَتْ أُمَّتِي الْمُطَيْطَاء |
| حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایې چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: کله چې زما امت په تکبر سره گرځیدل |

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۲۵۱ رقم الحديث ۶۴۳۴.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَخَدَمَتْهُمْ | أَبْنَاءُ | الْمُلُوكِ | أَبْنَاءُ | فَارِسَ | وَالرُّومِ |

شروع کړي او د باچاهانو ځامن چې هغه به د روم او فارس شهزادګان به وي، د هغوی خدمت به کوي. نو په دې

سَلَّطَ اللهُ شِرَارَهَا عَلَى خِيَارِهَا» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[1]

صورت کې به الله تعالی بد خلک په نیکانو خلکو باندې (یعني ظالمان په مظلومانو باندې) مسلط کړي.

**توضیح: المطیطاء**: په لویې باندې ګرځیدلو او د ګډا په انداز باندې حرکاتو او سکناتو او په ناز او فخر سره د تکبر مزل کولو ته المطیطاء ویلی شویده. دا د تمطی نه دی. په تکبر مزل کولو ته وایي. مراد تکبر دی. (مرقات ۹/۲۲۶) نن سبا په عربو کې دا شی ډیر شویدی.

**ابناء فارس**: یعني د اسلامي فتوحاتو نه وروسته چې کله روم او فارس د باچاهانو اولاد په غنیمت کې راشي او د مسلمانانو خدمت کوي . نو دا مت حالت به خراب شي. د بنو امیه د شهزادګانو په دور کې شهزادګانو په تکبر سره مزل کول شروع کړو. عثمان بن عفان رضی الله عنه شهید شو ، بیا علي مرتضی رضی الله عنه شهید شو. او حجاج بن یوسف په شان خلکو په صحابه کرامو حکومت کول شروع کړل. بد خلک په ښه خلکو باندې مسلط شو. ټول نظام بدل شو. د بنو امیه آزاده خیاله خلک په بنو هاشم باندې مسلط شو. نو حالت نو هم خراب شو. او د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم وړاندوینه بیخي ثابته شوه. (مرقات ۹/۲۲۶)

## کله چې شریان خلک حکمرانان شو نو قیامت به راځي

﴿۵﴾ وَعَنْ حُذَيْفَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: « لَاتَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى

او حضرت حذیفه رضی الله عنه روایت دی چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمال: کله چې تاسو (مسلمانان)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تَقْتُلُوا | إِمَامَكُمْ | وَتَجْتَلِدُوا | بأسيافكم | ويرث | دنياكم |

خپل (خلیفه) ووژنی. ستاسو توري به خپل مینځ کې د یو بل ختمونه و الوزوي، او تر دې چې ستاسو د دنیا وارثان

شرارُكم ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[2]

او والیان به مکار خلک شي نو هغه وخت به قیامت راځي.

﴿۶﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى

او حضرت حذیفه رضی الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: قیامت به تر هغه وخته پورې نه راځي

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۵۶ رقم الحديث ۲۲۶۱.

(۲) اخرجه الترمذي في ۴/۴۰۷ رقم الحديث ۲۱۷۰ وابن ماجه في السنن ۲/۱۳۴۲ رقم الحديث ۴۰۴۳.

| يَكُونَ | أَسْعَدَ | النَّاسِ | بِالدُّنْيَا |
|---|---|---|---|

ترڅو چې په دنیا کې د مال وزر ډیروالي او اقتدار او حکمراني په اعتبار سره د ټولو نه ډیر نصیب والا هغه سړی

لُكَعُ بْنُ لُكَعٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَالْبَيْهَقِيّ فِي «دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ»[1]

چور نشي چې هغه بیوقوفه وي، او د بیوقوفه ځوی وي.

**توضیح**: لکع: ذلیل، سپک او بیوقوفه او غلام او بی نسبه سړي ته لکع وایي. ورکوټي ماشوم ته هم لکع وایي. ځکه چې هغه ورکوټی وي. لکه حسن رضی الله عنه اړه باندې نبی کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل: اثم لکع. ذکر شوي حدیث کې بی اصله او بی نسبه سړی مراد دی. د چا چې اخلاق خراب وي. او خلک هغه ته خوش قسمته وایي. لکه د نن سبا د دنیا حکمرانان بی نسبه او د سپکې کورنۍ خلک دي. خو د منصب د وجې نه خلک د هغوې مخې ته ټیټیږي. (مرقات ۹/۲۲۷)

## د عیش او د راحت ژوند نه د قناعت ژوند ښه دی

﴿۷﴾ وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ كَعْبٍ الْقُرَظِيِّ قَالَ: حَدَّثَنِي مَنْ سَمِعَ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ

حضرت محمد بن کعب القرظی فرمایي چې ماته هغه سړي حدیث بیان کړو چې هغه د حضرت علی رضی الله عنه

قَالَ: إِنَّا لَجُلُوسٌ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ فَاطَّلَعَ عَلَيْنَا

نه دا اوریدلی ؤ. حضرت علی رضی الله عنه و فرمایل: مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره په جومات کې ناست ؤ

مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ مَا عَلَيْهِ إِلَّا بُرْدَةٌ لَهُ مَرْقُوعَةٌ

چې مصعب ابن عمیر رضی الله عنهم هلته راغلو. د غه وخت د هغه په بدن باندې فقط یو څادر ؤ. او په دې څادر کې هم د

بِفَرْوٍ فَلَمَّا رَآهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَكَى لِلَّذِي كَانَ فِيهِ مِنَ النِّعْمَةِ وَالَّذِي هُوَ فِيهِ الْيَوْمَ ثُمَّ قَالَ

څرمنې پیوندونه ؤ. رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه ته و کتل نو په ژړا شو. بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل:

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «كَيْفَ بِكُمْ إِذَا غَدَا أَحَدُكُمْ فِي حُلَّةٍ

چې هغه وخت به ستاسو څه حال وي چې کله یو سړی په تاسو کې سحر یو جوړا اغوستلي راوځي او

وَرَاحَ فِي حُلَّةٍ؟ وَوُضِعَتْ بَيْنَ يَدَيْهِ صَحْفَةٌ وَرُفِعَتْ أُخْرَى

مابنام بله جوړا اغوستلي راوځي. ستاسو مخې ته به د خوراک یوه غټه پیاله کیخودلی کیږي او بله به پورته کولی کیږي،

---

[1] اخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۲۷ رقم الحديث ۲۲۰۹ واحمد في المسند ۵/۳۸۹ .

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَسَتَرْتُمْ | بُيُوتَكُمْ | كَمَا | تُسْتَرُ | الْكَعْبَةُ؟». |
| او تاسو به په خپلو کورونو باندې داسې پردې راځوړندوی لکه په کعبه باندې چې راځوړندولی کیږي. | | | | |

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالُوا: يَا | رَسُولَ | اللهِ | نَحْنُ | يَوْمَئِذٍ | خَيْرٌ | مِنَّا | الْيَوْمَ | |
| ځینو صحابؤ وویل چې یا رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! مونږ به په هغه ورځ د نن ورځې نه په غوره حال باندې یو. | | | | | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| نَتَفَرَّغُ | لِلْعِبَادَةِ | وَنُكْفَى | الْمُؤْنَةَ. |
| ځکه چې هغه وخت به مونږ د عبادت لپاره آزاد او فارغه یو. او مونږ لپاره د محنت کولو څه ضرورت نوي. | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قَالَ: | «لَا | أَنْتُمْ | الْيَوْمَ | خَيْرٌ | مِنْكُمْ |
| نبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: داسې نده بلکې حقیقت دا دی چې تاسو به د هغې ورځې په نسبت سره | | | | | |
| يَوْمَئِذٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1] | | | | | |
| نن ورځې ډیر غوره یی. | | | | | |

**توضیح**: في المسجد: د دېنه یا مسجد نبوې مراد دی. یا مسجد قباء مراد دی.

مرقوعة: دا د رقعه نه دی. د پیوند په معنی دی.

بفرو: فرو څرمنې ته وایي. یعنې دا پیوندونه د څرمنې ؤ.

بکی: یعني نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کله د مصعب بن عمیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فقر او غریبي وکتله نو نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ژړا شو، د دې وجه دا وه چې حضرت مصعب بن عمیر په مکه کې د اسلام نه مخکې په ډیر ناز او نعمت کې ژوند تیرولو. او نن یې دا حالت ؤ چې یو څادر او په هغې کې هم پیوندونه او پیوندونه هم د څرمنې د ټوټو نه. د نبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ژړا د شفقت او رحمت د وجې نه وه. ګنې د اسلام تعلیم خو داسې ؤ چې دنیا مه جوړوی، لکه څنګه چې په دې حدیث کې دي: که دنیا جوړوی نو د دنیا به پاتې شی. نبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپله هم د دینه ډیر مشقت برداشت کړیدی. حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ چې ورلره توجه کړ چې ته د دنیا د فراختیا دعاء وکړه نو نبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خفه شو. (مرقات ۹/۲۲۹)

---

([1]) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۵۸ رقم الحديث ۲۴۷۶.

## په آخره زمانه کې په دين باندې قائم پاتې کيدل داور سره د لوبې کولو مترادف به وي

﴿۸﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: « يَأْتِي عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: خلکو باندې به يوه داسې زمانه راشي

الصَّابِرُ فِيهِمْ عَلَى دِينِهِ كَالْقَابِضِ

چې هغه وخت په د خلکو په مينځ کې په خپل دين باندې صبر کونکی د هغه سړي په شان وي چې هغه په خپل

عَلَى الْجَمْرِ » رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ إِسْنَادًا[1]

موټې کې سرکوټې نيولې دي. (روايت کړې دې ترمذی)

## کله چې حالات خراب وي نو د ژوند نه مرګ ښه دی

﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: « إِذَا كَانَ أُمَرَاؤُكُمْ

او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: کله چې ستاسو مشران هغه خلک وي

خِيَارَكُمْ وَأَغْنِيَاؤُكُمْ سُمَحَاءَكُمْ وَأُمُورُكُمْ شُورَى بَيْنَكُمْ

چې هغه ستاسو غوره خلک وي، او ستاسو دولت مند خلک سخيان وي، او ستاسو معاملات په خپل مينځې مشورو

فَظَهْرُ الْأَرْضِ خَيْرٌ لَكُمْ مِنْ بَطْنِهَا. وَإِذَا كَانَ أمراؤكم

باندې حل کيږي نو د غه وخت زمکې شاه ستاسو لپاره د زمکې د خيټې نه غوره ده. او کله چې ستاسو مشران

شِرَارَكُمْ و أغنياؤكم بخلاؤكم وَ أُمُورُكُمْ

هغه خلک وي چې هغه په تاسو کې بد ترينه خلک وي. او ستاسو دولت مند بخيلان وي. او ستاسو د معاملاتو

إِلَى نِسَائِكُمْ فَبَطْنُ الْأَرْضِ خَيْرٌ لَكُمْ من ظهرها» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حديثٌ غَرِيبٌ[2]

اختيار د ښځو په لاس کې وي. نو د غه وخت ستاسو لپاره د زمکې خيټه د زمکې د شاه به غوره وي.

**توضيح: امراءکم**: کله چې حکمران طبقه ښه ديندار وي، نو د هغې ښه اثر به په عوامو باندې پريوځي. نو عام حالات به ښه وي.

**سمحاءکم**: يعني مالدراه طبقه فياض او سخي او خواخوږي وي، نو د غريبانو عوامو سره به مالي

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۵۶ رقم الحديث ۲۲۶۰ واحمد في المسند ۳/۳۹۰.

(۲) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۵۹ رقم الحديث ۲۲۶۶.

مرسته جارې وي. نو تول به خوشحاله وي، دین به هم په پرمختګ وي او دنیا به هم پرمختګ کوي.

**شوری بینکم**: یعني ملکي حالات او د ملک خارجه پالیسي د عقلمند خیرخواه نارینؤ په لاس کې وي، نو فیصلې به ښې وي.

**فظهر الارض**: یعني د زمکې پاسنۍ برخه د هغې د دننه نه ستاسو لپاره به غوره وي. یعني د مرګ نه به ژوند ښه وي. ځکه چې د حاکمانو د وجې نه دین او دنیا به محفوظ وي. خواخوږو مالدارانو د وجې نه به دغریبو عوامو خواخوږي کیږي. او هیواد به د مشورې په نظام باندې ولاړ وي. نو په دې کې به خپلواکي او استحکام وي. نو په ژوندې وسیدلو کې به خیر غالب وي. نو ژوندې پاتې کیدل به د مرګ نه غوره وي. که دا درې ستنې ګوزار شي نو بیا د ژوندې پاتې کیدلو نه مرګ غوره دی. ځکه چې غلط حاکمان عوام ګمراه کوي. څنګه چې نن سبا کیږي. (مرقات ۹/۲۳۲)

چا څه ښه ویلې دي:

وهل افسد الدين الا الملوك　　　　واحبار سوء ورهبانها

(شاه ولی الله محدث دهلوی)

*گربه میر و سگ وزیر و موش را دیوان کند　　　　این چنین ارکان دولت ملک را ویران کند*

**الی نساءکم**: او د ناقصات العقل ښځو په اشارو باندې تګ د خطرو نه خالي نه دی. ځکه ملا علی قاری رحمه الله یو روایت نقل کړیدی چې **شاوروهن وخالفوهن** یعني د ښځو مشوره اوره، خو هغې باندې عمل مکوه. بهرحال په دې صورت کې به شر غالب وي، نو ژوندې پاتې کیدلو نه به مرګ ښه وي. (مرقات ۹/۲۳۲)

## د جهاد پریخودل او د دنیا مینه د ذلت سبب دی

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۱۰﴾ وَ عَنْ ثَوْبَانَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : « يُوشِكُ الْأُمَمُ | | | |
| او حضرت ثوبان رضی الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل: ډیر ژر داسې وخت راتلونکی دی چې | | | |
| أَنْ | تَدَاعَى | عَلَيْكُمْ | كَمَا |
| د کفر او ضلالت نه ډکو خلکو ډله به خپل مینځ کې ستاسو سره جنګ کولو او ستاسو شان شوکت ورکولو لپاره به یو | | | |
| تَدَاعَى | الْأَكَلَةُ | إِلَى | قَصْعَتِهَا». |
| بل را وبلي. لکه د خوراک په دسترخوان په راغونډیدونکي خلک خپل مینځ کې یو بل لره د خوراک لوخې ته | | | |

فَقَالَ قَائِلٌ: وَمِنْ قِلَّةٍ نَحْنُ يَوْمَئِذٍ؟

متوجې کوي. يو صحابي وويل چې آيا دا په دې وجه وي چې هغه وخت به مونږ په شميره کې لږ يو؟

قَالَ: « بَلْ أَنْتُمْ يَوْمَئِذٍ كَثِيرٌ

نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: نا! داسې به د دې وجې نه نوي، چې تاسو به په شميره کې کم ياستئ. بلکې هغه

وَ لَكِنْ غُثَاءٌ كَغُثَاءِ السَّيْلِ

وخت خو به ستاسو شميره ډيره وي، خو ستاسو حيثيت به داوبو د ږګ د خس و خاشاکو په شان وي، چې هغه د سيندونو

وَ لَيَنْزِعَنَّ اللهُ مِنْ

يا ولو په غاړو باندې موندل کيږي. (يعنې په تاسو کې جرأت او شجاعت ورک شوی وي) په دې کې هيڅ شک نشته چې

صُدُورِ عَدُوِّكُمُ الْمَهَابَةَ مِنْكُمْ وَلَيَقْذِفَنَّ فِي قُلُوبِكُمُ الْوَهْنَ» .

الله تعالى به ستاسو د دښمن د زړه نه ستاسو هيبت او ويره وباسي. او ستاسو په زړه کې به سستي او ضعف پيدا

قَالَ قَائِلٌ: يَا رَسُولَ اللهِ وَمَا الْوَهْنُ؟

کړي. چا وويل: چې يا رسول الله! زمونږ په زړه کې به د ضعف او سستې پيدا کيدلو سبب څه وي؟

قَالَ: «حُبُّ الدُّنْيَا وَكَرَاهِيَةُ الْمَوْتِ» . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ»[1]

نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د دنيا مينه او د مرګ نه بيزاري. (ابوداود، بيهقی شعب الايمان)

**توضيح**: يوشك: د افعال مقاربه نه دی. د نژدې په معنی دی.

تداعی: اصل کې تتداعی دی. يعنې يو بل به د نيا کافر رابلي. او وايي به چې راځئ! مسلمانان وخورئ، هغوی تباه وبرباد کړئ، د هغوی هيوادونه او د هغوی وسائل د هغوی نه په زور واخلئ. نن سبا د ټولې دنيا کافر د مسلمانانو په خلاف يو شويدي. او دا چيغه وهي چې مسلمانان ختم کړئ دا ترهګر دي. د مسلمانانو حکمرانان او عوام د غه شان خس او خاشاک دي څنګه چې په دې حديث کې وړاندوينه ده. د دنيا په مينه کې ټول اخته دي، او جهاد يې پريخودلی دی. بلکې انکار کوي. ۵۵ هيوادونه دي. خو د مځ د وزر په برابر هم نه دي. د غه غټو وسائلو مالکان دي. خو د مرګ نه يريږي. د کافرو رعب د دوی په زړونو کې ناست دی. هو! يو څو مجاهدين دي چې نن سبا د امت مرحومه د سرلوړی نښان دی. خو د هغوی خپل هم دښمنان دي او دښمن خو دی دښمن. (مرقات ۹/۲۳۳)

---

(۱) اخرجه ابوداود في السنن ۴/۴۸۳ رقم الحديث ۴۲۹۷ واحمد في المسند ۵/۲۷۸.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِث

## د معاشرې د یو څو معتدې ګناهونو وبال

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : « مَا ظَهَرَ الْغُلُولُ فِي قَوْمٍ |
| روایت دی چې حضرت ابن عباس رضی الله عنهو فرمایل: کله چې یو قوم په مال غنیمت کې خیانت شروع کړي |
| إِلَّا أُلْقِيَ اللهُ فِي قُلُوبِهِمُ الرُّعْبَ وَلَا فَشَا الزِّنَا فِي قَوْمٍ |
| نو الله تعالی د هغې په زړه کې د ښمن رعب او یره پیدا کړي. او په کوم قوم چې زنا کول خپره شي، په هغوې |
| إِلَّا كَثُرَ فِيهِمُ الْمَوْتُ وَلَا نَقَصَ قَوْمٌ الْمِكْيَالَ وَالْمِيزَانَ إِلَّا قَطَعَ عَنْهُمُ الرِّزْقَ |
| کې مرګونه ډیر شي، کوم قوم چې په ناپ تول کې کمی کوي، نو هغوې رزق واخستلی شي، او کوم قوم چې |
| وَلَا حَكَمَ قَوْمٌ بِغَيْرِ حَقٍّ إِلَّا فَشَا فِيهِمُ الدَّمُ وَلَا خَتَرَ قَوْمٌ بالعهد |
| بې انصافه او ناحقه احکامات جارې کړې نو په هغوې کې وینه تویدل خپره شي، او کوم قوم چې خپله وعده |
| إِلَّا سُلِّطَ عَلَيْهِمِ عدوهم » . رَوَاهُ مَالِكٌ[1] |
| وعده ماته کړي، نو الله تعالی په هغې باندې د هغې د ښمن مسلط کړي. |

**توضیح:** غلول: مال غنیمت کې خیانت کولو ته غلول وایي. دلته عام خیانت هم مراد کیدلی شي. د دې وبال دا دی چې د قوم په زړونو کې په اجتماعې توګه باندې د ښمن یره واچولی شي. او قوم یریدونکی شي او څوک ویریدلو نو هغه مړ شو. (مرقات ۹/۲۳۴)

**فشا الزنا:** کله چې زنا عامه شي نو د دې وبال دا دی چې په قوم کې وبائې مرضونه پیدا شي، مثلا طاعون، هیضه او داسې نورې لاعلاجه ناروغۍ عامې شي. نو مرګونه عام شي. ناپ تول کې کمې وبال دا دی چې رزق حلال او د هغې برکت وچت کړی شي. او شریعت پریخودلو باندې خپل ځانې قوانینو مطابق فیصلو وبال دا دی چې وینه تویدل عام کیږي. (مرقات ۹/۲۳۴)

**ولاختر:** وعده کې دهوکه او غدارۍ ته ختر وایي. د ښه ختَّارِ کفور دی. د دې وبال دا دی چې هغه د ښمن په دې باندې مسلط کړی شي. د کوم د ښمن سره چې دې وعده خلافې کولو باندې وعده ماته کړې وه. (مرقات ۹/۲۳۴)

---

[1] اخرجه مالک في الموطاء ۲/۴۱۰ رقم الحدیث ۲۶ من کتاب الجهاد.

۲۴ جمادی الاول ۱٤۱۸ھ

## بَابٌ فِي الإِنْذَارِ وَالتحذير

## د نصیحت او ویرولو بیان

د مشکوة شریف په عامو نسخو کې دلته فقط باب دی چې په هغې سره اشاره ورکول کیږي چې دا باب د مخکښې باب سره د ملحقاتو نه دی. خو ابن مالک رحمه الله دلته هم هغه عنوان تړلی دی کوم چې مونږ پاس ذکر کړیدی. انذار د یرولو په معنی دی. او تحذیر د نصحیت په معنی دی.

## الْفَصْلُ الأَوَّلُ

### په اصل کې خلک ښه ؤ، شیطان برباد کړل

﴿۱﴾ عَنْ عِيَاضِ بن حمَارٍ الْمُجَاشِعِي أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ذَاتَ يَوْمٍ

حضرت عیاش بن حمار مجاشعي رضي الله عنه روایت کوي چې یوه ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم خپله

فِي خُطْبَتِهِ: " أَلَا إِنَّ رَبِّي أَمَرَنِي أَنْ أُعَلِّمَكُمْ مَا جَهِلْتُمْ مِمَّا عَلَّمَنِي يَوْمِي هَذَا:

خطبه کې وفرمایل: واورئ! زما رب ما ته حکم کړیدی چې زه تاسو ته هغه خبرې وکړم چې هغه تاسو نه پیژنئ.

كُلُّ مَالٍ نَحَلْتُهُ عَبْدًا حلالٌ و إِنِّي خلقت عبَادي

الله تعالی فرمایي چې کوم مال خپل بنده ته ور کړیدی هغه حلال دی. الله تعالی دا وفرمایل چې ما خو خپل ټول بندیګان د

حنفاء كلهم وَ إِنَّهُ أَتَتْهُمُ الشَّيَاطِينُ

باطل په خلاف د حق اړخ ته مائل پیدا کړل. خو دا شیطانانؤ چې د دوي خواته راغلل او هغوي یې د خپل

فَاجْتَالَتْهُمْ عَنْ دِينِهِمْ وَحَرَّمَتْ عَلَيْهِمْ مَا أَحْلَلْتُ

دین اړولو باندې بې لارې کړل. او په دوي باندې یې هغه شیان حرام کړل، کوم چې ما د دوي لپاره حلال

لَهُمْ وَأَمَرَتْهُمْ أَنْ يُشْرِكُوا بِي مَا

کړي ؤ. او هم دې شیطانانو دوي ته حکم وکړو چې دوي هغه څه زما سره شریک کړي، په کوم باندې چې

لَمْ أُنْزِلْ بِهِ سُلْطَانًا وَإِنَّ اللَّهَ نظرَ إِلَى أَهْلِ

څه دلیل نه دی رالیږلی. او دا یې وفرمایل: چې الله تعالی د زمکې خلکو ته نظر وکړو (نو دوي یې په کفر او

الْأَرْضِ فَمَقَتَهُمْ عَرَبَهُمْ

شرک باندې اتفاق کونکې وا او په ګمراهی او ضلالت کې ننوتي وموندل) نو الله تعالی دا ټول خپل مبغوض

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَعَجَمَهُمْ | إِلَّا | بَقَايَا | مِنْ | أَهْلِ الْكِتَابِ |

او ناخوښه وګرځول. که هغه د عربو وي او که د عجمو نه، علاوه د اهل کتابو د هغه جماعت (چې هغه مشرک

وَقَالَ: إِنَّمَا بَعَثْتُكَ

شوي نوه) او الله تعالى وفرمايل چې ما ته پيغمبر جوړولو باندې دنيا ته ځکه وليږلې، دې لپاره چې زه ستا

لِأَبْتَلِيَكَ وَأَبْتَلِيَ بِكَ وَأَنْزَلْتُ عَلَيْكَ كِتَابًا

ازميښت وکړم او ستا سره ستا د قوم ازميښت هم وکړم. او ما په تا باندې يو داسې کتاب نازل کړيدى. چې

لَا يَغْسِلُهُ الْمَاءُ تَقْرَؤُهُ نَائِمًا وَيَقْظَانَ وَإِنَّ اللهَ أَمرنِي

هغه اوبه اينځلى او ورانولى نشي. ته دا کتاب په ايخه او په اودو وايې. او الله تعالى ما ته دا حکم کړيدى چې

أَن أحرقَ قُرَيْشًا فَقلت: يَا رَبِّ إِذًا يَثْلَغُوا رَأْسِي فَيَدَعُوهُ خُبْزَةً قَالَ:

زه قريش وسوزوم. ما عرض وکړو چې زما پروردګاره! دوې به زما سره د ډوډۍ په شان وچقوي. الله تعالى

اسْتَخْرِجْهُمْ كَمَا أَخْرَجُوكَ

وفرمايل: ته دوې د دوې د وطن نه وباسه. لکه څنګه چې يې ته د وطن نه ايستلى وې. او د دوې سره جهاد

وَاغْزُهُمْ نُغْزِكَ وَأَنْفِقْ

وکړه. مونږ به ستا د جهاد د سامان انتظام وکړو. ته د خپل لښکر په خلکو باندې مال او اسباب خرچ کړه.

فَسَنُنْفِقُ عَلَيْكَ وَابْعَثْ

که ستا سره مال او اساب نوي نو مونږ به يې درکړو. او د هغې انتظام به وکړو. ته د دوې په خلاف باندې

جَيْشًا نَبْعَثْ خَمْسَةً مِثْلَهُ

لښکر وليږه، مونږ به د دښمن د لښکر نه په پنځه چونده ډير طاقت سره ستا مرسته وکړو. او کومو خلکو چې

وَقَاتِلْ بِمن أطاعك

په تا باندې ايمان راوړو او ستا تابعدار دي، هغوی د ځان سره کړه او د هغو په خلاف جنګ وکړه چا چې ستا

من عصاك". رَوَاهُ مُسلم[1]

نافرمانې او ستا نه سرکشي کړيده، او کافر دي.

---

([1])أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۱۹۷ رقم الحديث ۶۳/۲۸۶۵ وأحمد في المسند ۴/۲۶۶.

**توضيح: في خطبة**: يا د جمعې او اخترونو په خطبه کې يا د بل کوم وعظ په خطبه کې نبی کريم ﷺ عام ارشاد وفرمايلو چې ما ته نن خپل څه چې ويلې دي، هغه څه چې تاسو يې نه پيژنی. زه هغې باندې تاسو پوهوم. اوله خبره يې دا وفرمايله چې ما کوم مال درکړيدی او بنده په جائز طريقه باندې ګټلی دی. حلال دی. دېته حرام مه وايی، لکه چې مشرکانو به کول.

نحلته: د ورکړې په معنی دی. دويم خبره **انی خلقت عبادي** ده. **اجتالتهم** د اجتيال نه دی. مطلب دا چې شيطان په دوې باندې ګشت وکړو او ټول يې بې لارې کړل. او حلال شيان يې په دوې باندې حرام وګرځول. څنګه چې مشرکانو په څاروؤ کې کړي ؤ ﴿هٰذَا حَلَالٌ وَهٰذَا حَرَامٌ﴾ **وان الله نظر**: دا دريمه خبره ده.

**مقت**: غصه کول، مبغوض ګڼل، **بقايا من اهل الکتاب**: د دېنه مراد هغه يهود او نصاریٰ دي چا ته چې د نبی کريم ﷺ دعوت نه ؤ رسيدلی. او کله چې ورسيدلو نو هغوې سمدستې اسلام قبول کړو، او د دېنه مخکې د دې يهودو ته د نصاراؤ دعوت نه وي رسيدلی او نصاراؤ د موسی عليه السلام نه انکار نوی کړی، لنډه دا چې اول دا خلک په دين قائم وي او بيا د نبی کريم ﷺ دعوت قبول کړي. نو دوې ته به دوه اجرونه ورکول کيږي. لکه څنګه چې په کتاب الايمان کې يو حديث دی. **وقال**: دا څلورمه خبره ده.

**لايغسله الماء**: يعني داسې کتاب دی چې فقط د په پاڼو باندې ندی، چې په اينځلو سره يې سياهې ليرې شي، بکې دا په سينو کې محفوظ دی. او هر قِسم تحريف او تغير او بدلون نه پاک دی. **تقرئه**: يعني په ايخه او په اودو باندې به ته دا کتاب وايې.

**وان الله امرني**: دا پنځمه خبره ده چې د قريشو کوم خلک په کفر باندې قائم او هميشوالی کوي. ما ته حکم دی چې زه هغوې داسې ختم کړم لکه څنګه چې يو څيز سوزولو باندې ايره کولی شي.

**يثلغوا**: دا د ثلغ نه دی. په درووند کاڼې باندې د سر چقولو ته وايي. يعنې کله چې زما سر وچقوي، نو سر به داسې خپور شي لکه څنګه چې ډوډی خپريږي. ځکه چې زما وسائل خو نشته دی، الله تعالی وفرمايل: ته دوې د مکې نه وباسه. لکه څنګه چې يې ته د مکې نه ايستلی وی. او د دوې سره جنګ وکړه. مونږ به د اسبابو او نصرت او مرستې به حوالې سره ستا مرسته وکړو. او تا به د قِسم مقابلې لپاره تيار کړو. او ته په خپل لښکر باندې خرچه وکړه. که ستا سره نوي نو مونږ به انتظام وکړو. او خرچ به در کړو. ته خپل لښکر وليږه. مونږ به ستا د لښکر مرسته وکړو. او د کافرو د لښکر نه پنځه چنده به ډير لښکر درکړو. او هغه مسلمان د ځان سره کړه چې هغه ستا تابعدار دي. او د دوې په ذريعه سره هغه کافر وو هغه کوم چې ستا نافرمانه دي. **حنفاء**: پيدا کړل. يعنې په ابتداء کې ټول خلک د اسلام په فطرت باندې پيدا کيږي. بيا هغوې لره ماحول خرابوي.

**تقرأه نائما ويقظان**: په اودو او په ويخه يې وايې يعنې ويخ وي ژبه او زړه دواړو باندې جارې وي او د اودو په حالت کې فقط په زړه باندې جارې وي. ځکه چې د نبي ﷺ سترګې اودې کيږي. زړه يې بيدار وي.

## دصفا په غر باندې قريشو ته دعوت

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: لَمَّا نَزَلَتْ (وَأَنْذِرْ عَشِيرَتَكَ |
| او حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايي چې کله دا آيت نازل شو ﴿وَأَنْذِرْ عَشِيرَتَكَ﴾ (يعني خپله نژدې کورنۍ |
| الْأَقْرَبِين) صَعِدَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصَّفَا فَجَعَلَ يُنَادِي: «يَا بَنِي فِهْرٍ |
| ويروه) نو نبي کريم ﷺ کوه صفا ته لاړو. او دهغه ځای نه رابلل شروع کړل. ای بنی فهر! |
| يَا بَنِي عَدِيٍّ » لِبُطُونِ قُرَيْشٍ حَتَّى اجْتَمَعُوا |
| ای بنی عدی يعنې د قريش ټولې قبيلې يې (نوم په نوم) رابلل شروع کړل. کله چې (د قريشو د ټولو قبيلو) خلک راغونډ شو. |
| فَقَالَ : « أَرَأَيْتَكُمْ لَوْ أَخْبَرْتُكُمْ |
| نو نبي کريم ﷺ وفرمايل: تاسو ما ته اول دا ووايي که زه تاسو ته دا خبر درکړم چې په ځنګل کې يو لښکر کوز |
| أَنَّ خَيْلًا بِالْوَادِي تُرِيدُ أَنْ تُغِيرَ عَلَيْكُمْ أَكُنْتُمْ مُصَدِّقِيَّ؟ قَالُوا: نَعَمْ |
| شويدی او تاسو تباه کول غواړي. نو آيا تاسو به ما رښتونې وګڼئ. نو ټولو وويل چې بيشکه، ځکه چې زمونږ |
| مَا جَرَّبْنَا عَلَيْكَ إِلَّا صِدْقًا. |
| د هميش تجربه دا ده چې تا کله خبره کړيده نو رښتيا دې ويلې دي. ستا د ژبې نه مونږ د رښتياؤ نه غيره نور |
| قَالَ: «فَإِنِّي نَذِيرٌ لَكُمْ بَيْنَ يَدَيْ عَذَابٍ |
| څه ندي اوريدلي. نبي کريم ﷺ وفرمايل: زه تاسو لپاره د خدای د اړخ نه د هغه د ډير سخت |
| شَدِيدٍ». فَقَالَ أَبُو لَهَبٍ: تَبًّا لَكَ سَائِرَ الْيَوْمِ أَلِهَذَا |
| عذاب نه يرولو باندې مامور شوی يم. ابولهب وويل: ټوله ورځ دې ستا تباهي وشي، آيا د دې لپاره دې |
| جَمَعْتَنَا ؟ فَنَزَلَتْ : ( تَبَّتْ يَدَا |
| مونږ راغونډ کړي وُ؟ په دې باندې دا سورت نازل شو ﴿تَبَّتْ يَدَآ أَبِي لَهَبٍ وَتَبَّ﴾ يعني د ابولهب دواړه لاسونه دې |
| أَبِي لَهَبٍ وَ تَبَّ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| مات شي. او هغه دې برباد شي. او حقيقت دا دی چې هغه د نبي عليه السلام بې ادبۍ کولو په وجه باندې تباه برباد شو. |

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَ | فِي | رِوَايَةٍ | نَادَى : |

او په يو روايت کې داسې بيان شويدي چې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او از ورکولو باندې قريش راغوند کړل،

«يَا بَنِي عَبْدِ مَنَافٍ إِنَّمَا مَثَلِي وَمَثَلُكُمْ كَمَثَلِ رَجُلٍ

او وې فرمايل ای د عبد مناف ځامنو ! زما او ستاسو د حالت مثال د هغه سړي په شان دی، چې هغه

رَأَى الْعَدُوَّ فَانْطَلَقَ يَرْبَأُ أَهْلَهُ فَخَشِيَ

دښمن وليدلو نو د خپل قوم د ساتلو لپاره روان شو. خو د ې يرې نه چې هسې نه دښمن لښکر د هغه د رسيدلو نه مخکې د

أَنْ يسبقوه فجعل يَهْتِف يَا صَبَاحَاه» .[1]

هغه قوم ته ونه رسيږي نو هغه د هغه ځاې نه په چيغه چيغه باندې وينا شروع کړه :هاى هاى د سحر تباهي

**توضيح : يربأ**: حفاظت او نګراني په معنى دی. **اهله :اى قومه . ان يسبقوه**: يعني دې نګران او محافظ سره خطره پيدا شوه که خپله ځم او قوم راپيدا روم نو دښمن به مخکې رسيدلو سره هغوې هلاک کړې. لهذا هغه د هغه ځاې نه وچت آواز سره چيغه کړه چې **ياصباحاه**: ای زما قومه دښمن د سحر په وخت کې بريد (حمله) کونکی دی.تاسو خپل ځانونه وساتی. نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو ځل د قريشو غټان دوه ځل ته راغوختل. خو د دين خبره ونشوه. بيا يې ورباندې دعوت وخوړلو. او خبره يې ښکاره کړه. خو خپلوان وتختيدل. دريم ځل باندې په عام اعلان سره يې خلک کوه صفا ته راوغوختل. د عربو د عادت مطابق يا صباحاه په الفاظ سره يې ټول راوغوختل. ټول راغلل. که څوک خپله نشو تللی نو خپل نمائنده يې وليږلو.

نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اول خپل تير شوې ژوند او سيرت په اړه پوښتنه وکړه. ټولو وويل ته **صادق او امين** يې. بيا نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عام دعوت ورکړو. خلک وتختيدل.ابولهب په نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې د کاڼو ګوزارونه وکړل. نو سورة اللهب کې د هغې جواب راغلو.(مرقات ۹/۲۴۱)

﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : لَمَّا نَزَلَتْ ( وَ أَنْذِرْ عشيرتك الْأَقْرَبِين )

او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې کله دا آيت نازل شو ﴿وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ﴾(يعني خپله نژدې

دَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُرَيْشًا فَاجْتَمَعُوا

کورنۍ وېروه)نو نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قريش خلک راوبلل.کله چې هغوې راغونډ شو . نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

---

([1])اخرجه البخاري في صحيحه رقم الحديث ۴۷۷۰ ومسلم في صحيحه ۱/۱۹۳ رقم الحديث (۲۰۸-۳۵۵) .

فَعَمَّ وَخَصَّ فَقَالَ: «يَا بَنِي كَعْبِ بْنِ لُؤَيٍّ

په خطاب کې تعميم هم وکړو او تخصيص يې هم وکړو. نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ټولو ته خطاب وکړو: اې د کعب بن لوی ځامنو!

أَنْقِذُوا أَنْفُسَكُمْ مِنَ النَّارِ يَا بَنِي مُرَّةَ بْنِ كَعْبٍ أَنْقِذُوا أَنْفُسَكُمْ مِنَ النَّارِ.

خپل ځانونه د دوزخ د اور نه وساتئ. اې د مره بن کعب ځامنو! خپل ځانونه د دوزخ د اور نه وساتئ.

يَا بَنِي عَبْدِ شَمْسٍ أَنْقِذُوا أَنْفُسَكُمْ من النَّار يَا بني عبد مناف أَنْقِذُوا أنفسكم من النَّار

اې د عبد شمس ځامنو! خپل ځانونه د دوزخ د اور نه وساتئ. اې د مناف ځامنو! خپل ځانونه د دوزخ د اور نه

يا بَنِي هَاشِمٍ أَنْقِذُوا أَنْفُسَكُمْ مِنَ النَّارِ. يَا بني عبد الْمطلب أَنْقِذُوا أنفسكم

وساتئ. اې د هاشم ځامنو! خپل ځانونه د دوزخ د اور نه وساتئ. اې د عبد المطلب ځامنو! خپل ځانونه د

من النَّار. يَا فَاطِمَةُ أَنْقِذِي نَفْسَكِ مِنَ النَّارِ فَإِنِّي لَا أَمْلِكُ لَكُمْ مِنَ الله

دوزخ د اور نه وساتئ. اې فاطمه! خپل ځان د دوزخ د اور نه وساته. ځکه چې زه ستاسو په حق کې د خدای د

شَيْئًا غَيْرَ أَنَّ لَكُمْ رَحِمًا سَأَبُلُّهَا بِبَلَالِهَا».

اړخ نه د هيڅ قسم عذاب مالک نه يم. البته په ما باندې ستا د خپلولۍ حق دی. چې زه هغه د دې د لوند والي

رَوَاهُ مُسْلِمٌ وَفِي الْمُتَّفَقِ عَلَيْهِ

سره کوم. دا روايت مسلم نقل کړيدی او کوم روايت چې بخاري او مسلم دواړو نقل کړيدی. په هغې کې دا

قَالَ: «يَا مَعْشَرَ قُرَيْشٍ اشْتَرُوا أَنْفُسَكُمْ لَا أُغْنِي عَنْكُمْ مِنَ الله شَيْئًا

الفاظ دي چې اې د قريشو ډلې! خپل ځانونه واخلئ، زه ستاسو نه د خدای د عذاب نه هيڅ هم نشم ليرې

وَيَا بنى عَبْدَ مَنَافٍ لَاأُغْنِيْ عَنْكُمْ مِنَ اللهِ شَيْئًا يَاعَبَّاسَ بْنَ

کولی. اې د عبد مناف ځامنو! زه ستاسو نه د خدای د عذاب نه هيڅ هم نشم ليرې کولی. اې عباس بن

عَبْدَ الْمُطَّلِبْ لَاأُغْنِيْ عَنْكَ مِنَ اللهِ شَيْئًا وَيَا صَفِيَّةُ عَمَّةَ رَسُولِ الله

عبد المطلب! زه ستا نه د خدای د عذاب نه هيڅ هم نشم ليرې کولی. او اې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ترورې صفيه! زه

لَا أُغْنِي عَنْكِ مِنَ الله شَيْئًا. وَيَا فَاطِمَةُ بِنْتَ مُحَمَّدٍ

ستا نه د خدای د عذاب نه هيڅ هم نشم ليرې کولی. او په پلار ګرانې فاطمه! د محمّد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لورې!

| سَلِينِي مَا شِئْتِ مِنْ مَالِي لَا أُغْنِي عَنْكِ مِنَ اللهِ شَيْئًا »[1] |
|---|
| زما د مال نه چې ته څه غواړې، وغواړه، لیکن د خدای د کوم عذاب نه تا نشم ساتلی. |

**توضیح: فعم وخص**: یعنې نبی کریم ﷺ په د صفا په غر باندې په ودریدلو قریش راوبلل. نبی کریم ﷺ په شخصې توګه باندې په خصوصې نوم سره راغوختل. او عام قبیلې په نوم سره یې هم راغوختل. چې دهغې تفصیل **یا بنی کعب بن لوئ** دی. دا عام خطاب دی. او **یا بنی عبد المطلب** او **یا فاطمه** دا خاص خطاب دی. دېته یې عمَ وخصه ویلي دي. **رحمًا**: یعنې د صله رحمی حق دی. **سأبلها ببلاها**: یعنې زه به صله رحمې د هغې دلوندوالې سره ساتم. یعنې د خپلولۍ صله به قائم ساتم. بل او بلال لوندوالې ته وایي. اوعرب صله رحمې یو ځای کول په لوندوالې سره تعبیر کوي. څنګه چې یُبس او چوالې په الفاظو سره د صله رحمۍ ماتول مراد اخلي، د روایت په آخرې برخه کې دنورو خصوصې خطاباتو بیان موجود دي. (مرقات۹/۲۴۲)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## دامت محمّدیه فضیلت

| ﴿٤﴾عَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : " أُمَّتِي هَذِهِ أُمَّةٌ مَرْحُومَةٌ |
|---|
| حضرت ابو موسی رضي الله عنه فرمایې چې رسول الله ﷺ وفرمایل: زما دا امت، امت مرحومه دی. |
| لَيْسَ عَلَيْهَا عَذَابٌ فِي الْآخِرَةِ عَذَابُهَا فِي الدُّنْيَا : الْفِتَنُ وَ الزَّلَازِلُ وَالْقَتْلُ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[2] |
| په دې امت باندې به په آخرت کې عذاب نه وي، او دنیا کې د دې عذاب فتنې، زلزلې او ناحقه وژنه ده. |

**توضیح: لیس علیها عذاب**: دا جمله د هغه احادیثو او آیتونو معارضه ده چې په هغې کې د دې امت د کبیره ګناهونو په کولو باندې د عذاب ذکر دی. د دې یو جواب دا دی چې دا امت مرحومه دی. په دې باندې به په آخرت کې داسې عذاب نه راځي چې دا د همیش لپاره په عذاب کې د کافرانو په شان راګیر شي. بلکې د دې عذاب عارضې دی. چې په دنیا کې به په دوې باندې زلزلې راځي. قتل او فساد کولو فتنې به راځي. دا سزاګانې خوړولو نه وروسته به آخرت کې پاک او صاف جنت ته ځي. دویم جواب دا دی چې د دې جملې تعلق د صحابه کرامو رضی الله عنهم د جماعت سره دی. صحابه اګر که معصوم نه دي، خو د عذاب نه محفوظ دي.

---

(1) اخرجه البخاري في صحيحه ۵/۳۸۲ رقم الحديث ۲۷۵۳ ومسلم في صحيحه ۱،۱۹۲ رقم الحديث (۲۰۴-۳۴۸)

(2) اخرجه أبوداود في السنن ۴۶۸ ۲ رقم الحديث ۴۲۷۸، وابن ماجه ۲/۱۴۳۲ رقم الحديث ۴۲۹۲ واحمد في المسند ۴/۴۱۰.

دريم جواب دادی چې د دې نه هغه خلک مراد دي چې د هغوی ګناه نه وي. (مرقات ۹/۲۴۴)

## په مستقبل کې د امت محمّديه تاريخي حالت

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَ عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ وَمُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابو عبيده بن جراح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت |
| قَالَ : « إِنَّ هَذَا الْأَمْرَ بَدَأَ نُبُوَّةً وَ رَحْمَةً |
| کوي چې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: دا کار (يعنې دين اسلام) نبوت او رحمت سره ښکاره شويدی. |
| ثُمَّ يَكُونُ خِلَافَةً وَرَحْمَةً ثُمَّ |
| بيا د دېنه وروسته چې کومه زمانه راځي هغه به د خلافت او رحمت زمانه وي. بيا د دهغې نه وروسته |
| مُلْكًا عَضُوضًا ثُمَّ كَانَ جَبْرِيَّةً |
| چې کومه زمانه راځي، هغه په د غوڅونکې باچاهۍ زمانه وي. او بيا د دې (دين اسلام) چې کومه زمانه راځي، |
| وَعُتُوًّا وَفَسَادًا فِي الْأَرْضِ يَسْتَحِلُّونَ |
| هغه به د ظلم او زياتې او قهر او تکبر او او زمکه باندې د فتنې او فساد زمانه وي. هغه وخت به خلک |
| الْحَرِيرَ وَ الْفُرُوجَ وَ الْخُمُورَ |
| د ريښمو جامې جائز کړي. د ښځو شرمګاهونه او شراب به حلال وګرځوي. خو د دې شيانو سره به هم |
| يُرْزَقُونَ عَلَى ذَلِكَ وَيُنْصَرُونَ حَتَّى يَلْقَوُا اللهَ» رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي «شُعَبِ الْإِيمَانِ»[۱] |
| هغوی ته رزق ورکولی کيږي. او دهغوی مرسته به کيدلی شي. تر دې چې هغوی د الله سره مخامخ شي. |

**توضيح**: ان هٰذا الامر: يعنې دا دين اسلام او د دې دنياوې او اخروې احکام په ابتداء کې داسې ښکاره شول چې نبوت او رحمت او د شفقت په صورت کې ؤ. **خلافة**: يعنې د نبوت دور نه وروسته به د خلافت زمانه راځي. چې هغه به تر ديرشو کلونو پورې وي. او د حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دور باندې به ختميږي. **ملکا عضوضًا**: يعنې بيا به خلکو لره غوڅونکې باچاهې راشي. چې په هغې کې به ظالم حکمرانان په خلکو باندې ظلم کوي. اګرچې د دې نه به خاص خاص باچاهان مستثنی وي خو هغه په ډير لږ وي. لکه حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله او داسې عادلان باچاهان ؤ. **ثم کائن**

---

([۱])اخرجه الدارمي في السنن ۲/۱۵۵ رقم الحديث ۲۱۰۱ والبيهقي في شعب الايمان ۵/۱۶. رقم الحديث ۵۶۱۶.

**جبرية:** يعنې د ملک عضوض نه وروسته خو به داسې ظالم او سرکشه او مفسدان باچاهان راشي چې په استمرار او دوام سره به فسق او فجور او ظلم کې مشغول وي. په دوې کې به هيڅ عادل باچا نه وي. ملاعلی قاری رحمه الله ليکي چې زمونږ د زمانې باچاهان ظالمان دي.چې په هغوې کې يو باچا هم ښه سړی نشته دی. لهذا کوم سړې چې د دې زمانې کوم باچا ته عادل وويله نو هغه کافر شو . **قال بعض علمائنا من قال سلطان زماننا عادل فهو کافر** (مرقات: ج۹\۲۴۶)

د حديث په آخر کې دي چې داسې ظالمانو ته به هم الله تعالى رزق ورکوي ، او دهغوې په خاص خاص مقصدونو کې به دهغوې مرسته کوي، ځکه چې الله رب العلمين دی، يوائې رب الصالحين ندی.

## خپله نه بدليږي ، قرآن بدلوي

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ أَوَّلَ مَا |
| او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايې چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دا اوريدلي دي چې د ټولو نه مخکې کوم کار |
| يُكْفَأُ قَالَ زَيْدُ بْنُ يَحْيَى الرَّاوِيُّ: يَعْنِي الْإِسْلَامَ |
| نسکورولی شي. د حديث راوی حضرت زيد بن يحيی رحمه الله وضاحت وکړو چې اسلام کې (د ټولو نه |
| كَمَا يُكْفَأُ الْإِنَاءُ " يَعْنِي الْخَمْرَ. قِيلَ: فَكَيْفَ |
| مخکې نسکورولی شي) لکه لوخی چې نسکورولی شي. هغه به شراب وي. وويلی شو ، دا به ولې کيږي |
| يَا رَسُولَ اللهِ وَقَدْ بَيَّنَ اللهُ فِيهَا مَا بَيَّنَ؟ |
| يارسول الله صلى الله عليه وسلم! او يقينًا الله تعالى هغه احکامات بيان کړيدي کوم چې په ټولو باندې ښکاره شويدي. |
| قَالَ: « يُسَمُّونَهَا بِغَيْرِ |
| نبی کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: خلک به په حيلو او بهانو سره د دې ځکل شروع کړي. او دا طريقه به خپله کړي |
| اسْمِهَا فَيَسْتَحِلُّونَهَا » . رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ [1] |
| چې د دې نوم به بدل کړي او دا به حلال وګرځوي. |

**توضيح: يكفأ:** د نسکورولو په معنی دی. مطلب دا دی چې په اسلام کې د ټولو نه مخکې چې کوم شی نسکورولی شي هغه به شراب وي چې خلک به شراب ځکي او نوم به نبيذ يا مثلث يا د وربشو اوبه ورلره ايږدي.نو نن سبا هم دا کيږي لهذا يو حرام شی به په حلال بللو سره استعمالوي. قصدًا به

---

(۱) اخرجه الدارمي في السنن ۲/۱۵۵ رقم الحديث ۲۱۰۰.

حرام حلالوي.نو کافر به شي. او که تاویل کوي نو فاسقان به شي. بهرحال په دې حدیث کې تعلیم دا دی چې خلک خپله نه بدلیږي بلکې د خپل د بدلولو کوښښ به کوي.(مرقات ۹/۲۴۶)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د خلافتونو په باره کې پیشنګوئي

| |
|---|
| ﴿۷﴾ عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بشير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنْ حُذَيْفَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : |
| حضرت نعمان بن بشیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت کوي چې هغه و فرمایل چې |
| قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «تَكُونُ النُّبُوَّةُ فِيكُمْ |
| رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: په تاسو کې به د نبوت وجود او د هغې رڼا تر هغه وخته پورې پاتې وي، |
| مَا شَاءَ اللهُ أَنْ تَكُونَ ثُمَّ يَرْفَعُهَا اللهُ تَعَالَى ثُمَّ تَكُونُ خِلَافَةٌ عَلَى مِنْهَاجِ النُّبُوَّةِ |
| ترڅو چې یې الله غواړي. بیا به الله تعالی نبوت واخلي. بیا د دینه وروسته به د نبوت په طریقه باندې خلافت قائم شي. |
| مَا شَاءَ اللهُ أَنْ تَكُونَ ثُمَّ يَرْفَعُهَا اللهُ تَعَالَى |
| او هغه به تر هغه وخته پورې قائم وي. ترڅو چې یې الله غواړي (یعنې دیرش کالو پورې) بیا به الله تعالی خلافت هم |
| ثُمَّ تَكُونُ مُلْكًا عَاضًّا |
| واخلي. د دینه وروسته غوښونکې باچاهي حکومت به قائم شي. چې هغوې به خپل مینځ کې یو بل داسې |
| فَتَكُونُ مَا شَاءَ اللهُ |
| غوښوي څنګه چې سپې غوښول کوي. او هغه باچاهي به تر هغه وخته پورې قائم وي ترڅو چې الله |
| أَنْ تَكُونَ ثُمَّ يَرْفَعُهَا اللهُ تَعَالَى ثُمَّ تَكُونُ مُلْكًا جَبْرِيَّةً |
| وغواړي. بیا د دینه وروسته به باچاهي هم الله تعالی واخلي، د دینه وروسته به د قهر او تکبر او زور زبردستی |
| فَيَكُونُ مَا شَاءَ اللهُ أَنْ يَكُونَ ثُمَّ |
| والا باچاهي حکومت جوړ شي، او هغه به تر هغه وخته پورې قائم وي چې الله تعالی یې وغواړي. بیا به الله |
| يَرْفَعُهَا اللهُ تَعَالَى ثُمَّ تَكُونُ خِلَافَةً عَلَى مِنْهَاجِ نُبُوَّةٍ» |
| تعالی باچاهي هم واخلي. د دینه وروسته به بیا د نبوت په طریقه باندې (یعنې عدل او انصاف په پوره توګه باندې |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ثُمَّ | سَكَتَ | قَالَ | حَبِيبٌ: |

جاري کونکی) خلافت قائم شي، دومره فرمايلو نه وروسته چپ شو. حضرت حبيب بن سالم بيان کړل چې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَلَمَّا | قَامَ | عُمَرُ | بْنُ | عَبْدِ الْعَزِيزِ |

عمر بن عبدالعزيز رحمه الله خليفه مقرر شو (او هغه د نبوت په طريقه باندې حکومت وکړو) نو ما دې حديث

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| كَتَبْتُ | إِلَيْهِ | بِهَذَا | الْحَدِيثِ | أُذَكِّرُهُ | إِيَّاهُ | وَقُلْتُ: |

ارخ ته د هغه توجه راړولو لپاره هغه ته دا حديث ليکلی وليږلو او د خپل احساس اظهار مې وکړو چې زما دا

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَرْجُو | أَنْ | تَكُونَ | أَمِيرَ | الْمُؤْمِنِينَ | بَعْدَ الْمُلْكِ |

اميد دی چې ته امير المؤمنين يعنې خليفه يې. چې د هغې ذکر په دې حديث کې د غوڅونکې باچاهۍ او

| | | | |
|---|---|---|---|
| الْعَاضِّ | وَالْجَبْرِيَّةِ | فَسُرَّ | بِهِ |

قهر او تکبر او زور زبردستۍ والا باچاهۍ نه وروسته راغلی دی. هغه يعنې عمر بن عبدالعزيز رحمه الله

وَأَعْجَبَهُ يَعْنِي عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ. رَوَاهُ أَحْمد وَالْبَيْهَقِيّ فِي «دَلَائِل النُّبُوَّة»[1]

په دې خبره باندې ډير خوشحاله شو، او دې تشريح هغه ډيره خوشحاله کړو.

**توضيح: منهاج النبوة:** يعنې د ټولو نه مخکې خو به د نبوت او رحمت دوروي. بيا به خلافت على منهاج النبوة دوروي. حضرت شاه ولی الله رحمه الله فرمايلي دي چې: خلافت على منهاج النبوة په دوه قسمه دی: يو على منهاج النبوة بطريق خاصه دی او د دې مصداق صديق اکبر، او فاروق اعظم رضي الله عنه دي. او دويم خلافت على منهاج النبوة بطريق عام دی. په دې کې حضرت عثمان رضي الله عنه، حضرت علی رضي الله عنه، او حضرت معاويه رضي الله عنه او حضرت حسن رضي الله عنه داخل دي. بهرحال خلافت نه رووسته په دې حديث کې د ملک عضوض ذکر راغلی دی. بيا د دينه ورسوته د ظلم او زياتې او د جبر د دور ذکر دی. او د دينه وروسته بيا خلافت على منهاج النبوة ذکر دی. چې د دېنه اندازه کيږي چې په دې کې حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله دور خلافت ته اشاره ده. نو علماؤ دا په خلفاء راشدينو کې شمار کړيدی. (مرقات ۹/۲۴۸)

**قال حبيب:** يعنې حضرت حبيب بن سالم چې هغه د نعمان بن بشير آزاد کړی شوی غلام او د هغه معاون ؤ. فرمايي چې کله حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله خليفه شو نو ما دا زيری ليکلو باندې هغه ته وليږلو او توجه مې ورله راواړوله چې کيدی شي ته د دې حديث مصداق يې نو هغه ډير خوشحاله شو او هغه لپاره خوشحاليدل پکار ؤ. ځکه چې په دې کې د هغه ډير لوي شان ذکر ؤ. (مرقات ۹/۲۴۸)

---

(۱) اخرجه أحمد في المسند ۴/۲۷۳.

۲۵ جمادی الاول ۱٤۱۸هـ

# کتاب الفِتَن

## دقیامت نه مخکې د غټو غټو واقعاتو او فتنو بیان

قال الله تعالی: ﴿حَتَّىٰٓ إِذَا فُتِحَتۡ يَأۡجُوجُ وَمَأۡجُوجُ وَهُم مِّن كُلِّ حَدَبٖ يَنسِلُونَ﴾(انبیاء:۹۶)

**الفتن**: دفتنه جمع ده. او د فتنې ګنې معنې دي. مثلاً:ازمیښت، امتحان، ګناه،ابتلاء، عذاب، مال، اولاد، ناروغې او لیونتوب، بې لارې کیدل، او شرک او داسې نور، ټولو باندې وخت په وخت سره د فتنې اطلاق کیږي.خو د فتنې واضح مفهوم هغه آفت (مصیبت) دی چې هغه د قدرت د اړخ نه یو سرې باندې نازل شي. د افتونو قِسمونه هم ډیر دي خو دوه قِسمونه ډیر واضحه دي.یو قِسم هغه آسماني آفت دی چې د هغې علت او سبب او وجه معلومه نوي. سبب او علت یې بیخې مخفي وي.په ظاهره باندې هیڅ هم په نظر نه راځي. فقط مصیبت په نظر راځي فتنې او مصیبت دویم قِسم هغه دی چې دهغې علت او سبب تر یو حده پورې معلوم وي. اول قِسم فتنې ته فتنة عمیاء وایې، چې په هغې کې څوک دا بیلتون نشي کولی چې حق کوم اړخ ته دی او باطل کوم اړخ ته دی.بلکه بغیر د څه وجې نه وژنه، فساد کول، چې نه قاتل ته معلومه وي چې هغه ولې ووژلو و نه مقتول ته معلومه وي چې هغه ولې ووژلی شو.د فتنې دویم قِسم کې دغه شان ابهام نشته دی.بلکې د څه نا څه اسبابو خبر ورېکې کیږي.دا خبره هم د یاد ساتلو وړ ده چې د فتنو تعین او د هغې مصداق ویل ډیر ګران کار دی. د دې اصل وجه دا ده چې دفتنو یوه اوږده لړۍ ده. د نبی اکرم ﷺ یوه وړاندوینه(پیشن ګوئې) په یو خاص واقعه او حادثه باندې لګول او دهغې سره په خاصه توګه باندې یو ځای کول ډیر ګران وي. ځکه دا عین ممکنه ده چې د نبی کریم ﷺ د یوې وړاندوینې مصداق په بیلابیلو زمانو کې بیلا بیل واقعات وي. ګویا چې په خپل وخت کې بیلابیلې فتنې د نبی اکرم ﷺ د وړاندوینې مصداق شوي وي. نو ځکه یې تعیین ګران دی.

دلته د دې خبرې لحاظ هم کول پکار دي چې ډیرو ختونو کې به نبی کریم ﷺ په خپله یوه وړاندوینه کې یوې حادثې ته اشاره وکړه . په ظاهره باندې به هغه یوه معمولې خبره وه، خو کله چې هغه حادثه او فتنه ښکاره کیدلو باندې مخې ته راشي نو هغه ټوله معاشره په خپله غیږه کې راونیسي او په هر خاص او عام باندې د نصف النهار(غرمې) د لمر په شان واضحه شي.. نو هله معلومه شي چې علمې اعتبار سره دا خبره څومره وړه او پټه وه ، خو عملې توګه باندې څومره مشهوره او غټه ده .

**سوال**:دلته سوال دا دی چې صاحب مشکوة په عنوان کې کتاب الفتن عنوان ایخودلی دی.او د کتاب تر آخره پورې ټول عنوانات یې د دې عنوان لاندې لیکلي دي.او حال دا دی چې په دې عنواناتو کې د

ځينو تعلق د فتنو سره نشته دی.په خاصه توګه باندې مناقب، معجزات او فضيلتونو بابونه د کتاب الفتن د لاندې څنګه ليکلی شويدي؟

**جواب**:د دې سوال يو جواب دا دی چې صاحب مشکوة ترکوم ځاې پورې د فتنو بابونه کيخودلو باندې د فتنو بيان کړيدی، تر هغه ځاې پورې خو د فتنو بيان دی. خو د کوم ځاې نه چې د فتنو بابونه ختم شويدي، هلته کيدی شي صاحب مشکوة د کتاب عنوان څه بيل عنوان ليکلي وي خو دکاتبانو د غفلت د وجې نه هغه کتاب پاتې شو، لهذا د دې غفلت د وجې نه ټول بابونه د کتاب الفتن د لاندې راغلل.

**دويم جواب**: دا دی چې فتن او غير فتن ترمينځ د فرق لپاره دا ضروري نده چې د کتاب الفتن نه وروسته دې کتاب المناقب قائم کړی شي،دواړو مضمونو د بيلتون لپاره دباب په ذريعه سره هم فرق راځي. نو ترکوم ځاې پورې چې د فتنو بيان دی، تر هغه ځاې پورې د کتاب الفتن د ممتاز کولو احاطه ده .او د کوم ځاې نه چې د فتنو بابونه ختم شويدي، د هغه ځاې نه وروسته د بابونو په عنوان سره د نورو شيانو ذکر شويدی.چې هغه مناقب او داسې نور دي.بهرحال په مضمونو کې د فرق لپاره دکتاب د عنوان په شان د باب عنوان هم کافي اوشافي کيږي. د اعتراض ضرورت نشته دی. ځينو دا جواب کړيدی چې مونږ د دې پوښتنې جواب کولو نه عاجز يو.

# الْفَصْلُ الأَوَّلُ

## نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تر قيامته پورې دراتلونکو فتنو پيشنګوئي کړې ده

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَن حُذَيْفَةَ قَالَ: قَامَ فِينَا رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَقَامًا |
| حضرت حذيفه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې(يوه ورځ) رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زمونږ ترمينځ ودريدلو لکه چې(د وعظ او |
| مَا تَرَكَ شَيْئًا يَكُونُ فِي مقامه إِلَى قِيَامِ السَّاعَةِ إِلَّا حَدَّثَ |
| نصيحت لپاره)ودريږي، نو د فتنو د قسمونو نه ، دهغه وخت نه تر قيامته پورې راتلونکې وي، هغه ټول يې |
| بِهِ حَفِظَهُ مَنْ حَفِظَهُ |
| ذکر کړل. او په دې کې يې هيڅ شی پرې نه خودلو . دغه خبرې ياد لرونکو يادې کړې، او څوک چې |
| وَنَسِيَهُ مَنْ نَسِيَهُ قَدْ عَلِمَهُ أَصْحَابِي هَؤُلَاءِ |
| هيرونکې ؤ هغوې هيرې کړې.(حضرت حذيفه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دا هم وفرمايل چې ) زما ملګری د دې واقعې نه |

| الشَّيْءُ | مِنْهُ | لَيَكُونُ | وَإِنَّهُ |
|---|---|---|---|
| خبر دی. لیکن حقیقت دا دی چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کومو خبرو خبر ورکړی ؤ او کومې خبرې چې زمانه | | | |
| كَمَا | فَأَذْكُرُهُ | فَأَرَاهُ | نَسِيتُهُ | قَدْ |
| هیرې شویدي، که په هغې کې یو خبره هم پیښه شي نو هغې ته په کتلو سره زه حافظه را تازه کړم. لکه څنګه | | | | |
| يَذْكُرُ الرَّجُلُ وَجْهَ الرَّجُلِ إِذَا غَابَ عَنْهُ ثُمَّ إِذَا رَآهُ عرفه. مُتَّفق عَلَيْهِ [1] | | | | |
| چې د یو غائب سړي مخ په نظر راشي نو هغه مخ په کتلو سره هغه سړی وپیژندلی شي. (بخاری ومسلم) | | | | |

**توضیح: قد علمه اصحابي:** یعنې زما ملګرو ته ښه معلومه ده چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هر څه وفرمایل. هو! که په هغوې کې د ځینو ملګرو نه هیر شوي وي، هغه بیلا خبره ده. زه خپله هم د ډیر وخت تیریدلو او دزمانې اوږیدلو په وجه باندې ځینې شیان هیر کړم. خو کله چې هغه واقعه ظاهره شي نو ماته ټول حالت داسې رایاد شي، لکه یو سړی چې د یوې زمانې پورې د بل سړي سره د ملاقات کولو نه وروسته غائب وي. نو دا سړی هغه هیر کړي، خو کله چې ناڅاپه ملاقات وشي نو هغه لره په کتلو سره سمدستې وپیژني. چې دا خو هغه سړی دی چې هغه ما ډیر وخت مخکې لیدلی ؤ. او بیا رانه هیر شوی ؤ. (مرقات ۹/۲۵۰)

## د انسانانو په زړونو باندې د فتنو درانګ اثرات

| ﴿۲﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ : " تُعْرَضُ الْفِتَنُ | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او حضرت حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې ما رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوریدلي دي چې د خلکو په زړونو باندې به | | | | | | | |
| أُشْرِبَهَا | قَلْبٍ | فَأَيُّ | عُودًا | عُودًا | كَالْحَصِيرِ | الْقُلُوبِ | عَلَى |
| فتنې داسې واچولی شي لکه دانډیرې (پوزکې) ډکې وي. نو کوم زړه چې دا فتنې قبولې کړي. په هغې کې | | | | | | | |
| نَكْتَتْ فِيهِ نُكْتَةٌ سَوْدَاءَ وَأَيُّ قَلْبٍ أَنْكَرَهَا نُكِتَتْ فِيهِ نُكْتَةٌ بَيْضَاء | | | | | | | |
| به تور داغ وشي. او کوم زړه چې د دې فتنو د قبلولو نه انکار وکړي. په هغې کې به سپین داغ پیدا شي. | | | | | | | |
| الصَّفَا | بِمِثْلِ | أَبْيَضَ | قَلْبَيْنِ: | عَلَى | يَصِيرَ | حَتَّى | |
| نو انسانان به په دوه قسمه کې تقسیم شي. یو سپین په شان د سنګ مرمر، نو په د غه شان زړه باندې به هیڅ | | | | | | | |

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۴۹۴ رقم الحديث ۶۶۰۴ ومسلم في صحيحه ۴/۲۲۱۷ رقم الحديث (۲۸۹۱-۲۳)

| فَلَا تَضُرُّهُ فِتْنَةٌ مَا دَامَتِ السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ وَالْآخَرُ أَسْوَدُ |
|---|
| فتنه اثر کونکې او ضرر رسونکې نه وي. ترڅو چې زمکه او آسمان ولاړ دي، او دويم به د ايرو د رنګ په |
| مِرْبَادًّا كَالْكُوزِ مُجْخِيًا لَا يَعْرِفُ مَعْرُوفًا |
| شان توره وريځې، نسکور لوخې په شان وي. نو دغه شان زړه خو به نه نيک او ښه او مشروع کارونو ته |
| وَلَا يُنْكِرُ مُنْكَرًا إِلَّا مَا |
| ورسيږي او نه به بد کارونه بد ګڼي. هغه خو به بس د هغه څه سره مطلب ساتي چې هغه د خواهشاتو |
| أُشْرِبَ مِنْ هَوَاهُ" رَوَاهُ مُسلِم[1] |
| د قبيلې نه په هغه کې ننوتلې وي. او د کوم د مينې چې هغه قيدې جوړ شويدی. |

**توضيح: تعرض الفتن:** يعنې فتنې چې کله ډيرې شي نو په انساني زړونو کې په فتنې داسې اچولی کيږي لکه د انډيرې ډکې چې يو بل پسې يو ځاې کيږي. نو کوم زړه چې دغه فتنې قبولې کړي نو په هغې کې يو تور داغ ولګي ، او کوم زړه چې دغه فتنې قبولې نکړي ، په هغې کې سپين داغ ولګي، اوس د دې فتنو قبلولو او نه قبلولو په وجه باندې زړونه به په دوه قسم باندې تقسيم شي. يو زړه سنګ مرر په شان پاک شفاف او سپين به وي. چې هغې ته به هيڅ فتنه نقصان نشې رسولی. او بل به د ايرو په شان تور وی.

**مرباداً:** ميم باندې کسره ده. را ساکنه ده . **اى صار كلون الرماد** يعنې د ايرو په شان به تور شي. **كالكوز:** په عربې ژبه کې لوټې او کوزې ته **کوزه** وايي. يعنې دا زړه به د کوزې په شان وي. **مُجْخِيًا:** ميم باندې پيش دی. جيم باندې سکون دی. خاء باندې کسره ده. او يا باندې شد دی. نسکور لوخې ته وايي. دلته نسکوره کوزه مراد ده. دا لفظ حال واقع شويدی. مطلب دا دی چې وس دا انسان داسې لوټه جوړه شويده چې دا نيغه نشې ټينګيدلی. او نسکوريدلو سره په دې کې څه شی ايساريدلی نشي. وس د نسکورې لوټې په شان په دې کې د خير ښيګړې هيڅ خبره نشي راتللی. بلکې دا زړه وس د خواهشاتو داسې غلام جوړ شويدی. چې په دې کې د ښه او بد تميز کول ختم شويدي. وس د ښيګړې او بدۍ تميز(بيلتون) کولو نه بغير دا زړه خپلو خواهشاتو پسې شاته شاته منډې وهي او فتنه تيروي. (مرقات ۹/۲۵۲)

**ولايعرف معروفاً الخ :** د دې زړه د تورو الې تفصيل دی. (مرقات ۹/۲۵۳)

---

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۱۲۸ رقم الحديث (۱۴۴-۲۳۱) واحمد في المسند ۵/۴۰۵.

## په زړونو کې د امانت راتلل او بیا وتل

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْهُ قَالَ: حَدَّثَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدِيثَيْنِ |
| او حضرت حذيفه رضي الله عنه فرمايي چې (يوه ورځ) رسول الله صلى الله عليه وسلم مونږ ته دوه حديثونه بيان کړل. په دې کې |
| رَأَيْتُ أَحَدَهُمَا وَأَنَا أَنْتَظِرُ الْآخَرَ: حَدَّثَنَا: «إِنَّ الْأَمَانَةَ |
| يو خو ما ليدلى دى. او د دويم انتظار کوم. ررسول الله صلى الله عليه وسلم مونږ ته وفرمايل: چې امانت د خلکو د زړونو په |
| نَزَلَتْ فِي جَذْرِ قُلُوبِ الرِّجَالِ ثُمَّ عَلِمُوا مِنَ الْقُرْآنِ ثُمَّ |
| ويخ کې کوز کړى شو. بيا هغوى په قران پوهه شول او بيا هغوى په سنت پوهه شول، بيا د دې نه وروسته |
| عَلِمُوا مِنَ السُّنَّةِ» . وَحَدَّثَنَا عَنْ رَفْعِهَا قَالَ: " يَنَامُ الرَّجُلُ النَّوْمَةَ |
| نبى کريم صلى الله عليه وسلم د امانت د پورته کيدلو حديث بيان کړو. نو وې فرمايل: سړى به اوده شي، او |
| فَتُقْبَضُ الْأَمَانَةُ مِنْ قَلْبِهِ أَثَرُهَا مِثْلُ أَثَرِ الْوَكْتِ ثُمَّ |
| امانت به د هغه د زړه نه وويستلى شي نو د امانت اثر يعنې نښان د وکت د نښان په شان به شي. بيا به |
| يَنَامُ النَّوْمَةَ فتقبض فَيَبْقَى |
| په دويم ځل اوده شي نو د هغه د امانت هغه برخه به هم ناقصه کړى شي. او وبه ويستلى شي، کومه چې پاتې وه. چې |
| أَثَرُهَا مِثْلَ أَثَرِ الْمَجْلِ كَجَمْرٍ دَحْرَجْتَهُ |
| هغه په ظاهره باندې يو مجل يعنې د پولى په شان نښان به پاتې شي. لکه ته چې د اور سرکوټه په خپلو |
| عَلَى رِجْلِكَ فَنَفِطَ فَتَرَاهُ مُنْتَبِرًا وَلَيْسَ |
| خپو باندې واچوى. او د هغې نه پولى جوړه شي. چې هغه په ظاهره باندې پړسيدلې او وچته شوې ښکارى. |
| فِيهِ شَيْءٌ وَيُصْبِحُ النَّاسُ يَتَبَايَعُونَ |
| خو هغې کې به د ننه هيڅ نوې بيا کله چې خلک سحر پاخيږي نو د عادت مطابق به خپل مينځ کې اخستل خرڅول کوي |
| وَلَا يَكَادُ أَحَدٌ يُؤَدِّي الْأَمَانَةَ |
| او په هغوى کې به يو سړى هم داسې نوي چې هغه امانت ادا کړي. تردې چې (د امانت او ديانت د کمې راتللو په سبب به دا) |
| فَيُقَالُ : إِنَّ فِي بَنِي فُلَانٍ رَجُلًا أَمِينًا |
| ويلى کيږي چې په فلانکى. قبيله کې بس يو سړى دى چې امانت دار دى. يعنې کامل الايمان دى. او يو |

| |
|---|
| وَ يُقَالُ لِلرَّجُلِ : مَا أَعْقَلَهُ وَمَا أَظْرَفَهُ |
| سړي ته به دا وویل چې هغه څومر عقلمند او هوښیار دی (څومره ښایسته او هوښیار او د خوږې ژبې والا دی) |
| وَمَا أَجْلَدَهُ وَمَا فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ مِنْ إِيمَانٍ ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1] |
| او څومره چست چالاکه دی. او حال دا دی چې د هغه په زړه کې به د ګدن د دانې هومره هم ایمان نوي. |

**توضيح: الامانة نزلت:** د امانت نه دلته د حق د قبولیت هغه استعداد مراد دی چې هغه د پیدائښ په وخت کې د هر ماشوم په زړه کې اچول کیږي. د انسان په زړه کې دننه استعداد د حق دا تخم کرل د یو ډبوې په شان وه. چې هغه تروسه پورې نه وه بله شوي. نو د آسمان نه قرآن کریم راغلو او د نبی کریم صلی الله علیه وسلم سنت راغلل. دې دواړو شیانو دا ډیوه روښانه کړه. وس په دې زړه کې د هدایت رڼا بله شوه. چې دهغې نه اخوا دیخوا هدایت خپور شو. په دې حدیث کې د هدایت دا اوله مرحله بیان کړی شویده .(مرقات ۹/۲۵۱) **جذر:** جرړې او اصل ته وایي.

**عن رفعها:** یعنې د اهدایت او امانت راکوزیدلو او خپریدلو نه وروسته د دې د پورته کیدلو او د هدایت د ثمراتو د ختمیدلو ذکر یې وفرمایلو چې سړی به د عادت مطابق شي. په دې حالت کې به د هغه زړه نه د دې امانت ثمرات وچت کړی شي. اوس په زړه کې فقط یوه نښه پاتې شویده ، دغه نشان او اثر ته **الوکت** ویلی شویدي. واؤ باندې زبر دی ، او کاف ساکن دی . اثر او نښان ته وایي.

**ثم ينام:** حقیقي اوده کیدل هم مراد دي. او د غفلت ژوند هم مراد دی. یعنې اول ځل د دې امانت وچتیدلو نه وروسته کله چې دا سړی په دویم ځل اوه شي. د دې امانت پاتې برخه به هم د دې سړې د زړه نه وچته کړی شي. وس دا زړه د امانت او ایمان نه خالي پاتې شو . او په زړه باندې د پولی په شان نښې به پاتې شي.

**المجل:** میم باندې زبر دی. جیم ساکن دی. د لاس هغه اثر او نښان ته وایي چې په هغې کې د ډیر سخت کار د وجې نه څرمن سختیدلو سره توره شي یعنې په دویم ځل ایمان او امانت وچتولو سره به زړه د ایمان نه خالي شي. او سختو پولو په شکل کې به سخت نښانونه پاتې شي. چې هغې ته المجل یعنې **اثر العمل** سره یاد کړی شویدی. **کجمر:** جمرة د اور سکروټې ته وایي. دا د المجل د وضاحت په توګه باندې بیان شویدی. **ای کتأشیر الجمر** یعنې څنګه چې یو سړی په خپله خپه

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۳۳۳ رقم الحديث ۶۴۹۷ ومسلم في صحيحه ۱/۱۲۶ رقم الحديث (۱۴۳-۲۳۰).

باندې سکروټه ایږدلو سره ټوپونه وهي، چې په هغې سره ځاې سوزیدلو باندې پولۍ راشي، بیا هغه خپره شي او دننه مردارو اوبو نه ډک شي. نو څنګه چې دا پولۍ پړسیدلي وي او دننه هیڅ هم نوي، دغه شان د دې سړې زړه د ایمان او امانت نه به خالي پاتې شي. اګرکه سړی د بیرون نه ایماندار ښکاري، خو دننه به هیڅ نه وي.(مرقات۹/۲۵۴)

**نفط**:اور د سوزیدلو د وجې نه په جسم کې پولۍ جوړیدلو ته نفط وایي. **منتبرا**: یعنې د منبر په شان اوچت پړسیدلی به وي. دننه به هیڅ نه وي. **ویصبح الناس**: یعنې خلک به سحر پاڅیږي او اخستل خرڅول به کوي. منډې ترړې به وي. خو په دوې کې یو سړی به هم د امانت او دیانت والا نوي. تردې چې خلک به تذکره کوي چې په فلانکۍ قبیله کې یو دیانت دار سړی دی. بیا به د یو سړې په اړه باندې خلک په یوه ژبه سره وایي چې واه واه څومره عقلمند دی! څومره هوښیار دی! څومره چست دی! د دې ستاینو سره به هم په دغه سړې کې د ګدن د دانې په برابر ایمان نه وي. (مرقات۹/۲۵۶)

په دې حدیث کې د امانت د زوال درې مرحلې بیان شویدي. په اوله مرحله کې به څه امانت وي. او څه لږ اثر به پاتې وي. او په دویمه مرحله کې څه لږ ډیر امانت لاړو. او غټه اثر پاتې شو. او په دریمه مرحله کې خو هر څه لاړل. اول لږ تورتم خپور شو، بیا څه لږ ډیر تورتم خپور شو ، بیا مکمل تورتم شو. زړه تور شو. او د ښه او بد ترمینځ فرق کول ختم شو. او هم دا د جباریت مهر دی.

## دفتنو په زمانه کې په کوټ کې ناسته اختیار کړه

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْهُ قَالَ: كَانَ النَّاسُ يَسْأَلُوْنَ رَسُوْلَ اللهِ صلى الله عَلَيْهِ وَسلم عَنِ الْخَيْرِ | | | | | | | |
| او حضرت حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایي چې خلکو خو به د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د نیکۍ او ښیګړې په اړه پوښتنه | | | | | | | |
| وَكُنْتُ | أَسْأَلُهُ | عَنِ | الشَّرِّ | مَخَافَةَ | | | |
| کوله او ما به د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د شر او د بدۍ پوښتنه کوله. د دې یرې د وجې نه چې هسې نه زه په کومه | | | | | | | |
| أَنْ | يُدْرِكَنِي | قَالَ: | قُلْتُ: | يَا | رَسُوْلَ | اللهِ | |
| فتنه کې اخته نشم. حضرت حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنهُ بیان کړل چې ما وویل: یارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! مونږ (د اسلام نه) مخکې | | | | | | | |
| إِنَّا | كُنَّا | فِي | جَاهِلِيَّةٍ | وَشَرٍّ | فَجَاءَنَا | اللهُ | بِهَذَا الْخَيْرِ |
| په جاهلیت او بدۍ کې اخته ؤ. بیا الله تعالی مونږ ته دا هدایت او ښیګړه راکړه. چې د هغې د وجې نه د کفر | | | | | | | |
| فَهَلْ | بَعْدَ | هَذَا | الْخَيْرِ | | | | |
| ضلالت تورتمونه لیرې شول. او مونږ د بې لارۍ او بد و د جال نه بیرون را ووتلو، نو آیا د دې هدایت او ښیګړې | | | | | | | |

مِنْ شَرٍّ ؟ قَالَ : « نَعَمْ » قُلْتُ : وَ هَلْ بَعْدَ ذٰلِكَ الشَّرِّ

نه وروسته بله کومه بدي پیښیدونکې ده؟ نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: هو! ما وویل نو آیا د دې بدۍ نه وروسته

مِنْ خَيْرٍ ؟ قَالَ : « نَعَمْ

به بیا هدایت او ښیګړه رابنکاره کیږي؟ نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: هو! د دې بدۍ نه وروسته به بیا ښیګړه رابنکاره

وَ فِيهِ دَخَنٌ » . قُلْتُ :

کیږي. خو د دې بدۍ نه وروسته چې کومه ښیګړه راځي، په زړه کې به خنه وي. ما وویل چې د دې ښیګړې

وَمَا دَخَنُهُ ؟ قَالَ : « قَوْمٌ يَسْتَنُّونَ

خنه به څه وي؟ نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: دا خلک به پیدا شي چې هغوې به زما د طریقې او عمل په خلاف

بِغَيْرِ سُنَّتِي وَيَهْدُونَ بِغَيْرِ هَدْيِي

باندې طریقه او عمل خپل کړي. خلک به زما د ښودلی شوي لارې په خلاف لاره باندې روان کړي. ته به په

تَعْرِفُ مِنْهُمْ وَ تُنْكِرُ » . قُلْتُ : فَهَلْ بَعْدَ ذٰلِكَ الْخَيْرِ مِنْ شَرٍّ ؟

په دوې کې دیندار هم ویني. او بې دینه هم. ما وویل چې د دې ښیګړې نه وروسته بیا کومه بدې راتلونکې

قَالَ: «نَعَمْ دُعَاةٌ عَلَى أَبْوَابِ جَهَنَّمَ

ده؟ نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: هو! داسې خلک به وي چې هغوې به د دوزخ په دروازه باندې ودریدلو سره مخلوق

مَنْ أَجَابَهُمْ إِلَيْهَا

خپل اړخ ته رابلي. کوم سړی چې د هغوې بلنه قبلولو باندې دوزخ اړخ ته تلل وغواړي، هغه به دوزخ ته

قَذَفُوهُ فِيهَا » . قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ صِفْهُمْ لَنَا . قَالَ : «هُمْ مِنْ جِلْدَتِنَا

تیله (دیکه) کړي. ما وویل چې د هغوې په اړه باندې وضاحت وکړه. نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: هغه به زمونږ د

وَ يَتَكَلَّمُونَ بِأَلْسِنَتِنَا » . قُلْتُ : فَمَا تَأْمُرُنِي إِنْ أَدْرَكَنِي ذٰلِكَ ؟

قوم د خلکو نه وي. هغوې به زمونږ په ژبه خبرې کوي. ما وویل چې بیا زما په اړه باندې ستا څه حکم دی؟

قَالَ: «تَلْزَمُ جَمَاعَةَ الْمُسْلِمِينَ وَإِمَامَهُمْ» . قُلْتُ: فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُمْ

نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: د مسلمانانو جماعت لازم وپیژنه او د هغوې د امیر اطاعت کوه. ما وویل که د مسلمانانو

| |
|---|
| جَمَاعَةٌ وَلَا إِمَامٌ ؟ قَالَ : |
| هيڅ جماعت نوي، او نه د هغوئ څه امير او مقتدا وي؟ نبي کريم صَلَّىٰاللهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ وفرمايل: په داسې صورت کې تا لپاره د |
| «فَاعْتَزِلْ تِلْكَ الْفِرَقَ كُلَّهَا وَلَوْ أَنْ تَعَضَّ بِأَصْلِ شَجَرَةٍ |
| دې ټولو جماعتونو نه مخ اړولو باندې يو اځيوالي خپلول پکار دي. اګر که د دې يو اځيوالي لپاره د يو بوټي |
| حَتَّى يُدْرِكَكَ الْمَوْتُ وَأَنْتَ عَلَى ذَلِكَ». |
| لاندې پناه اخستل ولې نوي. تر دې چې د دې يو اځيوالي په حالت کې مرګ تا په خپله غيږه کې ونيسي. |
| مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: قَالَ: «يَكُونُ بَعْدِي أَئِمَّةٌ لَا يَهْتَدُونَ بِهُدَايَ |
| (بخاري او مسلم) زمانه وروسته به داسې باچاهان راشي چې هغوئ به زما په سيرت باندې عمل نکوي، |
| وَلَا يَسْتَنُّونَ بِسُنَّتِي وَسَيَقُومُ فِيهِمْ رِجَالٌ |
| او زما په طريقو باندې به عمل نکوي. په دوئ کې به داسې خلک رپاڅيږي چې د هغوئ شکلونه به د انسانانو |
| قُلُوبُهُمْ قُلُوبُ الشَّيَاطِينِ فِي جُثْمَانِ إِنْسٍ» . قَالَ حُذَيْفَةُ: قُلْتُ: كَيْفَ أَصْنَعُ يَا رَسُولَ اللهِ |
| په شان وي او زړونه به يې د شيطانانو وي. حضرت حذيفه رَضِيَاللهُعَنْهُ فرمايل: ما ووېل يا رسول الله صَلَّىٰاللهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ! |
| إِنْ أَدْرَكْتُ ذَلِكَ ؟ قَالَ : تَسْمَعُ وَ تُطِيعُ الْأَمِيرَ وَ إِنْ ضَرَبَ |
| که زه دوئ ېيا مومزم نو څه وکړم؟ نو (نبي کريم صَلَّىٰاللهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ) وفرمايل: اوري به او د امير به اطاعت کوي. اګر که ستا |
| ظهرك وَأخذ مَالك فاسمع و أطع ".[1] |
| شاه ووهلې شي او ستا مال واخستلې شي . نو اوره او اطاعت کوه. |

**توضيح: الخير**: په دې حديث کې د خير د لفظ نه اسلام، ايمان او اطاعت مراد اخستل شويدی. او د شر د لفظ نه کفر او فتنه مراد اخستل شويده. **من شر**: يعني اسلام او ايمان او نور او هدايت نه وروسته يارسول الله صَلَّىٰاللهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ! اوس په دې امت باندې څه فتنه راتللی شي؟ **نعم**: يعني هو! د اسلام د دې امن او هدايت نه وروسته فتنه او شر به راځي. شارحينو ليکلي دي چې د دې شر نه مراد نه د حضرت عثمان رَضِيَاللهُعَنْهُ زماني فتنه ده . چې په هغې کې عثمان رَضِيَاللهُعَنْهُ شهيد کړی شوی ؤ.

**من خير**: يعني د دې بدعت او ګمراهۍ او شر او فساد نه وروسته به څه خير راځي؟

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۶۱۵ رقم الحديث ۳۶۰۶ ومسلم في صحيحه ۳/۱۴۷۵ رقم الحديث (۱۸۴۷-۵۱)

**قال نعم:** علماء لیکي چې د دېنه مراد حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله د زمانې امن او عدل او انصاف مراد دی.

**وفیه دخن:** یعنې په دې خیر او ښیګړه کې به څه خلل ونه وي، یعنې ځینې خلک به د سنتو تابعدارې کوي او ځینې به په خپلو خواهشاتو پسې ځي او بدعاتو کې به اخته کیږي.(مرقات۹/۲۵۸)
ځینو شارحینو د دې حدیث ترتیب داسې ویلی دی چې د اسلام او سلامتی نه وروسته به د قتل عثمان رضي الله عنه شر راځي. د دې شر نه وروسته چې کوم خیر راځي دا د حضرت حسن رضي الله عنه او حضرت امیر معاویه رضي الله عنه صلح ته اشاره ده. دا صلح خو به کیږي خو زړونه به پوره توګه باندې پاک نه وي. څه فسادې خلک به په مینځ کې وي. لکه د خواجو وجود ؤ.او د عبدالله بن زیاد فساد ؤ، او د ځینو نورو بی کاره امیرانو وجود ؤ.(مرقات۹/۲۵۸)

**صفهم لنا:** یعنې دا راته ووایه چې دا خلک به زمونږ نه وي او که د نور چا نه به وي؟

**من جلدتنا:** یعنې زمونږ په خپلو کې به وي. د خپل خاندان نه به وي. زمونږ ژبه به وایي. خو فساد به کوي. صحابې پوښتنه وکړه چې بیا مونږ د دوې سره څه وکړو، جنګ وکړو او که پریږدو؟ نبی کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل: اهل حق سره وسیږه او د کور په ګوټ کې کینه. دا خوارج، روافض او د معتزلؤ فتنو ته اشاره ده.(مرقات۹/۲۵۸)

## فتنو د راتګ نه مخکې نیک اعمال وکړه

| |
|---|
| ﴿۵﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صلى الله عَلَيْهِ وَسلم: «بَادِرُوا بِالْأَعْمَالِ |
| حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل: په نیکو اعمالو کې تُندي وکړی، |
| فِتَناً كَقِطَعِ اللَّيْلِ الْمُظْلِمِ يُصْبِحُ الرَّجُلُ |
| مخکې د دېنه چې هغه فتنې ښکاره شي چې هغه به د تورو شپو د ټوټو په شان وي. سړی به سحر کې د |
| مُؤْمِنًا وَيُمْسِي كَافِرًا وَيُمْسِي مُؤْمِنًا وَيُصْبِحُ |
| ایمان په حالت کې پاڅیږي او ماښام به کافر جوړ شوی وي. او ماښام کې به مومن وي نو سحر به د |
| كَافِرًا يَبِيعُ دِينَهُ بِعرَض من الدُّنْيَا » . رَوَاهُ مُسلم [1] |
| کفر په حالت کې پاڅیږي دغه شان خپل دین او مذهب به د دنیا د لږ شان فائدې په بدله کې خرڅ کړي. |

---

([1])أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۱۱۰رقم الحديث (۱۱۸-۱۸۶) وأبوداود في السنن ۴/۴۵۷ رقم الحديث ۴۲۵۹

## په فتنو کې هيڅرې مه ننوځې، لرې او سيږه

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «سَتَكُونُ فِتَنٌ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: ژر دی چې فتنې به پيدا شي. |
| الْقَاعِدُ فِيهَا خَيْرٌ مِنَ الْقَائِمِ وَالْقَائِمُ فِيهَا خَيْرٌ من الْمَاشِي والماشي |
| په دې فتنو کې ناست به ودريدونکې نه غوره وي. او لاړ به د مزل کونکې نه غوره وي. او مزل کونکی به د کوښښ |
| فِيهِ خَيْرٌ مِنَ السَّاعِي مَنْ تَشَرَّفَ لَهَا تَسْتَشْرِفُهُ |
| کونکې نه غوره وي. او څوک چې د فتنو اړخ ته سر ورو چت کړي نو فتنې به هغه ځان ته راکاږي! نو کوم |
| فَمن وجد ملْجأً أَو معَاذًا |
| سړی چې د دې فتنو نه د ځان ساتنې لپاره کوم ځای يا پناه بيامومي نو هغه سړې لپاره پکار دي چې د هغې |
| فليَعُذْ بِهِ» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: قَالَ: |
| په ذريعه سر د پناه واخلي. (بخاری او مسلم) او د مسلم په يو روايت کې داسې دي چې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: |
| «تَكُونُ فِتْنَةٌ النَّائِمُ فِيهَا خَيْرٌ مِنَ الْيَقْظَانِ |
| (کله چې) څه فتنه راښکاره کيږي نو په دې فتنه کې خوب کونکی سړی به د بيدار سړې نه غوره وي. او |
| واليقظَانُ خَيْرٌ مِنَ الْقَائِمِ وَالْقَائِمُ فِيهَا خَيْرٌ |
| بيدار به د ولاړ سړې نه غوره وي. او په دې فتنه کې ودريدونکې سړی په دې فتنه کې سعې او کوښښ |
| مِنَ السَّاعِي فَمن وجد |
| کونکې سړی نه غوره وي. لهذا کوم سړی چې د دې فتنې نه د تختيد لو لاره يا د دې نه د پناه ځای بيامومي |
| ملْجأً أو معَاذًا فليستعذ بِهِ» . [1] |
| نو هغه لپاره پکار دي چې هلته لاړ شي او پناه ترلاسه کړي. |

**توضيح**: القاعد فيها: يعنې کوم سړی چې څو مره د دې فتنو نه ليرې وي، هغه به هغو مره ښه . د دې تفصيل داسې دي چې د دې فتنې نه ليرې ناست سړی د ولاړ سړې نه غوره دی. او کوم چې ولاړ دی هغه د مزل کونکې سړی نه غوره دی. او څوک چې روان دی نو هغه د منډې وهونکې سړی نه

غوره دی. دغه اړخ ته منډې وهونکې سړی خو د ټول نه ډیر فتنې ته نژدې دی، نو ځکه د ټولو نه ډیر بدتر دی. څوک چې څومره لیرې دی، هغه هغومره غوره دی.

**تشرف:** یعنې چا چې سر وروچتولو باندې دغه فتنې ته وکتل. (مرقات ۹/۲۶۲)

**تستشرفه:** یعنې فتنه به هغه خپل اړخ ته ښه رامائله کولو باندې راکاږي. مطلب دا دی چې کوم سړی په دې فتنو کې د معلوماتو کولو ترحده پورې هم مینه ولري، دا فتنې به هغه په خپله ګیره واخلي. (مرقات ۹/۲۶۲)

## خپل مینځې جنګ جګړو په وخت کې څه کول پکار دي؟

﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّهَا سَتَكُونُ

او حضرت ابوبکره رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: په دې کې هیڅ شک نشته چې ډیر ژر به

فِتَنٌ أَلَا ثُمَّ تَكُونُ فِتَنٌ أَلَا ثُمَّ تكونُ فتنةٌ

فتنې رابنکاره شي. یاد ساتئ! دلته به فتنې پیدا شي. یاد ساتئ! په دې فتنو کې به یوه ډیره غټه فتنه پیښیږي. په

الْقَاعِدُ خَيْرٌ مِنَ الْمَاشِي فِيهَا وَالْمَاشِي فِيهَا خَيْرٌ مِنَ السَّاعِي

دې فتنه کې به ناست سړی د روان سړې نه غوره وي. او روان سړی به دې فتنې اړخ ته منډې وهونکې

إِلَيْهَا أَلَا فَإِذَا وَقَعَتْ فَمَنْ كَانَ لَهُ إِبِلٌ

سړې نه غوره وي. نو خبر شئ! کله چې هغه فتنه پیښه شي نو د کوم سړې سره چې اوښان وي نو هغه دې

فَلْيَلْحَقْ بِإِبِلِهِ وَمَنْ كَانَ لَهُ غَنَمٌ فَلْيَلْحَقْ بغنمه

د خپلو اوښانو سره (ځنګل ته) لاړ شي. د کوم سړې سره چې بیزې وي نو هغه دې د بیزو خوا ته لاړ شي. او د

وَمن كَانَتْ لَهُ أَرْضٌ فَلْيَلْحَقْ بِأَرْضِهِ» فَقَالَ رَجُلٌ:

کوم سړې سره چې کور او زمکه وي نو هغه دې خپل هغه کور او زمکې اړخ ته لاړ شي. یو سړې وویل چې

يَا رَسُولَ اللهِ أَرَأَيْتَ مَنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ إِبِلٌ وَلَا غَنَمٌ وَلَا أَرْضٌ؟

یا رسول الله صلی الله علیه وسلم! ماته دا ووایه که د یو سړې سره نه اوښان وي او نه بیزې او نه زمکه او نه کور وي؟

قَالَ: «يَعْمِدُ إِلَى سَيْفِهِ فَيَدُقُّ

نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل هغه لپاره پکار دي چې هغه دې خپلې تورې اړخ ته متوجې شي او هغه دې په

عَلَى حَدِّهِ بِحَجَرٍ ثُمَّ لِيَنْجُ إِنِ اسْتَطَاعَ النَّجَاءَ

کاڼي باندې وهلو سره ماته کړي. او بیا هغه سړې لیاره پکار دي چې که هغه د فتنې د ځاې نه تختیدلی شي

اللّٰهُمَّ هَلْ بَلَّغْتُ؟»

نو ژر دې وتختي. (د دېنه وروسته نبی کریم ﷺ وفرمایل) ای الله! ما ستا احکامات ستا بندیګانو ته ورسول.

ثَلَاثًا فَقَالَ: رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللهِ أَرَأَيْتَ إِنْ أُكْرِهْتُ

دا الفاظ نبی کریم ﷺ درې ځل ولوستل. یو سړي وویل چې یارسول الله ﷺ! کم ما لره په مجبوره کولو باندې

حَتَّى يَنْطَلِقَ بِي إِلَى أَحدِ الصفين فَضَرَبَنِي رَجُلٌ بِسَيْفِهِ أَوْ يَجِيءُ سَهْمٌ

د دواړو ډلو نه د یوې ډلې صف ته بوتللی شو او هلته زه د چا د توري نه ووژلی شم یا د چا غشی په ما ولګي

فَيَقْتُلُنِي؟ قَالَ: «يَبُوءُ بِإِثْمِهِ وَإِثْمِكَ وَيَكُونُ

او ما ته مرګ راشي. نبی کریم ﷺ وفرمایل: ستا هغه قاتل به ستا او خپلې ګناه سره راګرځي او هغه به په

مِنْ أَصْحَابِ النَّارِ» رَوَاهُ مُسلم[1]

دوزخیانو کې شمارلی کیږي.

**توضیح: الا ثم تکون فتنٌ:** یعنې خبردار! دلته به فتنې وي. خبردار! ډیر ژر به فتنې رابنکاره شي.

**یعمد الی سیفه:** یعنې خپلې تورې ارخ ته په متوجې کیدلو سره دې هغه په خپل لاس کې واخلي او دهغې تیره ارخ دې په کاڼو باندې وهلو سره مات کړي. کله چې تورا ماته شي نو دا سړی به وس هیڅ فتنې ته نه ورځي. (مرقات ۹/۲۶۳)

**لینج:** لام باندې کسره ده. نون ساکن دی. او جیم باندې ضمه ده. په منډه باندې تیختې ته وايي.

**النجاء:** یعنې ښه په تیزه باندې منډه وهل پکار دي. مطلب دا دی چې که یو سړی د دې جنګ نه بیزاره دی او په ژر ژر بیلیدلو باندې تیخته کوي، خو چا مجبوره کولو باندې په زوره سره جنګ ته تیله کړو، او هغه ووژلی شو نو د دې څه حکم دی؟ نو نبی کریم ﷺ وفرمایل: وژونکی به دوزخي وي، او دا مجبورا به جنت ته ځي. (مرقات ۹/۲۶۴)

په دې حدیث کې د مسلمانانو خپل مینځې افتراق او د بیلتون اوږد حالت ارخ ته اشاره ده. د

---

([1])أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۱۲ رقم الحديث (۲۸۸۶-۱۲) وابن ماجه في السنن ۲/۱۳۰۸ رقم الحديث ۳۹۵۸.

مسلمانانو خپل مینځې جنګونو کې برخه اخستلو او نه اخستلو په اړه باندې درې برخې دي. (۱) د ځینو صحابه کرامو مسلک د دې ظاهرې حدیثونو په مطابق دی چې د دې جنګونو نه بیخې غاړې ته کیدل پکار دي. دا مسلک د ابوبکره رضی الله عنه او څه دنورو صحابؤ دی. د دې مسلک تائید د ټولو احادیثو نه کیږي. دویم مسلک د حضرت ابن عمر رضی الله عنه او دهغه د هم خیال صحابه کرامو رضی الله عنهم دی. که فتنه دروازې ته راورسیږي نو بیا د دفاع په توګه باندې جنګ کول او دفاع کول جائز دي. خپله ورتګ جائز ندي. د ځینو روایتونو نه د دې مسلک تائید کیږي.
دریم مسلک د جمهور صحابه کرامو رضی الله عنهم او د جمهورو علماؤ دی چې کوم صف د اهل حق دی، دهغې سره ملګرتیا کولو باندې د اهل باطل سره بنه جنګ کولو پکار دي. د قرآن کریم آیت دی:
﴿إِن طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا ۖ فَإِن بَغَتْ إِحْدَاهُمَا عَلَى الْأُخْرَىٰ فَقَاتِلُوا الَّتِي تَبْغِي حَتَّىٰ تَفِيءَ إِلَىٰ أَمْرِ اللَّهِ ۚ﴾(الحجرات:۹)دا آیت د دې بناغلو دلیل دی. د صحابه کرامو رضی الله عنهم خپل مینځې جنګونو کې د دې آیت په رڼا کې عامو صحابؤ رضی الله عنهم د حق سره ملګرتیا وکړه. د حضرت علی رضی الله عنه او د حضرت عائشه رضی الله عنها ترمینځ جنګ جمل وي او که د حضرت علی رضی الله عنه او د حضرت امیر معاویه رضی الله عنه ترمینځ جنګ صفین وي. چې په هغې کې په زرګونو انسانان وژلی شوي ؤ. صحابه کرامو د دې آیت او دې په شان احادیثو نه استدلال کړیدی.
د صحابه کرامو رضی الله عنهم ترمینځ چې کوم جنګونه شویدي. هغه د مشاجرات په نوم سره مشهور دي. دواړو اړخونو ته اجتهادې معامله وه. نیتونه پاک ؤ. جنګونه مقدر ؤ. د مشاجرات مطلب دا دی چې بوټي (ونه) یوه ده ، بناخونه یې بیل بیل تللي دي. جرړه یو اسلام دی. مونږ لپاره پکار دي چې کله الله تعالی زمونږ لاسونه د دې مقدّسو اینو نه ساتلي دي، نو مونږ خپلې ژبې هم وساتو. او خپله جج او قاضي جوړیدلو باندې صحابه کرام رضی الله عنهم د خپل عدالت په کچهرۍ کې ځان ونه دروؤ .لکه مودودې صیب چې په خلافت وملوکیت کې بې ځایه جج جوړیدلو کوښښ کړیدی. او صحابه کرام رضی الله عنهم یې خپل عدالت کې پیش کولو سره وربانديې قلم چلولی دی.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۸﴾وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يُوشِكُ أَنْ يَكُونَ خَيْرَ مَالِ الْمُسلِمِ | | | | | | | | |
| او حضرت ابو سعید رضی الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: قریبه ده چې د یو مسلمان لپاره | | | | | | | | |
| غَنَمٌ | يَتْبَعُ | بِهَا | شَغَفَ | الْجِبَالِ | وَ | مَوَاقِعَ | الْقَطْرِ | يَفِرُّ |
| به د هغه غوره مال د هغه بيزې وي. چې د هغې سره به هغه غرته یا د باران وریدلو ځای ته لاړ شي. او د فتنو نه په | | | | | | | | |

بِدِينِهِ مِنَ الْفِتَنِ» . رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[1]

تختيدلو سره به خپله لمنه وساتي.

**توضيح**: **يتبع**: شد او سکون دواړو سره لوستلی کيږي . تابع کيدلو او ورپسې کيدلو په معنی دی.

**شعف**: دا د شعفة جمع ده . د غر څوکې ته وايي. مراد غاړې ته کيدل دي. **مواقع القطر**: په غرونو باندې په عام توګه بارونه کيږي. يعنې د بارانونو د وريدلو ځای ، دا تعميم بعد تخصيص دی. په دې حديث کې هم د فتنو نه د ځان او ال د حفاظت هم دا صورت ښودلی شويدی چې د عامو خلکو نه ځان غاړې ته کړي.(مرقات ۹/۲۶۵)

## د فتنو پيشنګوئي

﴿۹﴾ وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ: أَشْرَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى أُطُمٍ مِنْ آطَامِ الْمَدِينَةِ

او حضرت اسامه بن زيد رضي الله عنه فرمايي چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم د مدينې يو وچت کور ته وختلو

فَقَالَ:" هَلْ تَرَوْنَ مَا أَرَى؟ قَالُوا: لَا. قَالَ:

او وې فرمايل چې آيا تاسو هغه څه وينئ چې زه وينم؟ صحابۇ جواب ورکړو چې نا. نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل:

«فَإِنِّي لأرى الْفِتَن خلال بُيُوتكُمْ كوقع الْمَطَر» . مُتَّفق عَلَيْهِ[2]

حقيقت دا دی چې زه هغه فتنې وينم چې هغه ستاسو په کورونو باندې داسې راوريږي لکه څنګه چې باران وريږي.

**توضيح**: اطم: همزه او طاء باندې پيش دی. دا مفرد دی. د دې جمع آطام ده. وچت غر او وچتې قلعه ته ويل کيږي. خو دلته دا لفظ د يو خاص عمارت لپاره ويلی شويدی. د عربو قبيلو رواج ؤ چې دا وس هم د صوبه سرحد (پختونخواه) د قبائلو رواج دی چې يو وچت کور جوړوي ، په هغې کې وړې وړې تاخچې وي، دا وچت کورونه د مورچو په توګه باندې استعماليږي. د ليرې نه دښمن په نظر راځي نو د تاخچو نه په هغوې باندې ډزې کوي. دېته په پښتو ژبه کې شنګرئ وايي. د دې پاسنې برخه د ټکې په شان وي. شيخ عبدالحق د دې عمارت پيژندګلو په اشعة اللمعات کې داسې کړيده: قصر بلند وهر حصن که بسنګ بابنا کرده باشد ، يعنې وچته ماڼۍ او د هر هغه قلعه چې هغه د کاڼو نه جوړه شوي وي، دمدينې منورې په اطرافو کې يهودو دغه شان کورونه جوړ کړي ؤ. نبی کريم صلی الله عليه وسلم يوه ورځ په دغه کورونو کې د يو کور چهت ته وختلو او ټوله مدينه يې وکتله.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱/۶۹ رقم الحديث ۱۹، وأخرجه ابوداود في السنن ۴/۴۶۱ رقم الحديث ۴۲۶۷.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۴/۹۴ رقم الحديث ۱۸۷۸ومسلم في صحيحه ۴/۲۲۱۱ رقم الحديث (۲۸۸۵-۹) .

**خلال**: يعنې د کورونو مينځ ته داسې فتنې راتلونکې وينم لکه ميده باران چې وريږي. يعنې ډيرې فتنې به راځي، نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته الله تعالى د معجزي په توګه بانډې ټولې فتنې خودلي وي. (مرقات ۹/۲۶۶)

## د يو څو هلاکونو دوچې نه به دا امت هلاک شي

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «هَلَكَةُ أُمَّتِي عَلَى يَدَيْ غِلْمَةٍ |
| حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی يوه ورځ رسو الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل زما د امت هلاکت به د |
| مِنْ قُرَيْشٍ». رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[1] |
| قريشو د څو ځلمو د لاسه وی |

**توضيح**: **هلكة**: يعنې د امت هلاکت. **غلمة**: داد غلام جمع ده ځوانانو هلکانو ته وايي. د دېنه مراد هغه واقعات دي چې هغه د صحابؤ په دور کې واقع شوي لهذا د امت نه مراد د صحابؤ کرامو جماعت دی. د دغه ناپوهه هلکانو د وجې نه حضرت عثمان او علی او حضرت حسن او حسين رضی الله عنهم شهيدان شو. حالانکې هغوې چې هغوې د دې امت په خپله زمانه کې د ټولو نه افضل خلک ؤ ، عبيدالله بن زياد ، سليمان بن عبدالملک، حجاج بن يوسف، وليد فاسق او دغه شان نور ناتجربه کار ځوانانو د دې امت غوره خلک ووژل. (مرقات ۹/۲۶۶)

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَتَقَارَبُ الزَّمَانُ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: زمانې به يو بل ته نژدې شي. |
| وَيُقْبَضُ الْعِلْمُ وَتَظْهَرُ الْفِتَنُ وَيُلْقَى الشُّحُّ وَيَكْثُرُ الْهَرْجُ» قَالُوا: |
| علم به وچت کړی شي. فتنې به راڅيري شي، بخل واچولی شي، او هرج به ډير شي. صحابؤ عرض وکړو |
| وَمَا الْهَرْجُ؟ قَالَ: «الْقَتْلُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[2] |
| چې هرج څه شی دی؟ نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: قتل. |

**توضيح**: **يتقارب الزمان**: ددې نزديکت نه د قيامت نژدې راتلل مراد کيديل شي. يا مراد دا چې په شرارت او فساد کې به خلک يو بل ته نژدې شي. ځينو ويلې دي چې د عمرونو لنډيدل مراد دي. چې

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۶۱۲ رقم الحديث ۳۶۰۵ ، واحمد في المسند ۲/۲۸۸.

(۲) اخرجه البخاري في صحيحه ۱/۱۸۲ رقم الحديث ۸۵ ومسلم في ۴/۲۰۵۷ رقم الحديث (۱۵۷-۱۱) .

كال به د مياشتې په ځاى او مياشتې به د اونو (هفتو) په ځاى، اونۍ به د ورځې ځاى ته راشي. او ورځ به يو ساعت جوړه شي. ځينو ويلې دي چې د جدت د وجې نه به مسافتونه كم شي، په دې وخت كې د جهاز په ذريعه سره د كال مزل په يو څو ساعتونو كې كيږي. ځينو لاسلكې او ټيليفون په ذريعه سره د دنيا مربوط كيدل او نژدې كيدل مراد اخستلي دي. بهرحال په دې لفظ سره جديد او قديم دواړه قسمه نژديكت مراد اخستلى كيدى شي. (مرقات ۹/۲۶۶)

## د فتنو د سختوالي انتهاء

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: قسم دى د هغه پاك ذات، د چا په لاس كې چې |
| لَا تَذْهَبُ الدُّنْيَا حَتَّى يَأْتِيَ يَوْمٌ |
| زما ساه ده. دنيا به تر هغه وخته پورې نه فناء كيږي، تر څو چې په خلكو باندې داسې ورځ رانشي، چې په هغې |
| لَا يَدْرِي الْقَاتِلُ فِيمَ قَتَلَ؟ وَلَا الْمَقْتُولُ فِيمَ قُتِلَ؟ |
| كې به نه قاتل ته دا معلومه وي چې هغه مقتول ولې ووژلو او نه به مقتول ته معلومه وي چې هغه ولې ووژلى |
| فَقِيلَ: كَيْفَ يَكُونُ ذَلِكَ؟ قَالَ: «الْهَرْجُ الْقَاتِلُ وَالْمَقْتُولُ |
| شو. پوښتنه وشوه چې دا به ولې وي؟ نبى كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: هرج به وجه، دغه شان قاتل او مقتول به دواړه |
| فِي النَّارِ». رَوَاهُ مُسْلِم[1] |
| به دواړه جهنم ته ځي. |

**توضيح**: **الهرج**: فتنه او فساد او قتل او وژني او ګډوډه وينه تويولو كې اخته كيدلو ته الهرج وايي. دلته د الهرج نه په خاصه توګه باندې هغه وينه تويول مراد دي چې هغه د مسلمانانو په خپل مينځ كې جداوالې او بيلتون په وجه خپره شي. بهرجال په احاديثو كې الهرج تفسير په كثرت قتل سره شويدى. (مرقات ۹/۲۶۷)

**القاتل والقتول**: قاتل خو به د وژنې د وجې نه جهنم ته ځي، خو مقتول به ولې دوزخ ته ځي؟ نو د دې وضاحت هم په احاديثو كې شته دى چې مقتول هم كلكه اراده وه چې زه قاتل ووژنم خو قاتل په وژلو كې مخكې والى وكړو، لهذا مقتول د خپل غلط عزم او ارادې د وجې نه به دوزخ ته ځي. (مرقات ۹/۲۶۷)

---

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۳۱ رقم الحديث (۸-۲۹۰۸-۵۶)

## د فتنو ډک ماحول کې د عبادت ثواب ډیر دی

﴿۱۳﴾ وَعَنْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الْعِبَادَةُ فِي الْهَرْجِ

او حضرت معقل بن یسار رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې د فتنو په زمانه کې عبادت

كَهِجْرَةٍ إِلَيَّ». رَوَاهُ مُسلم[1]

او نیکې کولو ثواب زما اړخ ته د هجرت کولو د ثواب په شان دی.

**توضیح**: العبادة: یعنې د فتنو په دور کې او د قتل او فساد په زمانه کې د قتل نه تختیدونکی او په عبادت کې مشغولیدونکی به دومره غټ ثواب ومومي لکه د مکې د فتح کیدلو نه مخکې د مکې نه مدینې اړخ ته په هجرت کولو کښې غټ ثواب ؤ. په دې حدیث کې د فتنو په زمانه کې د فتنو نه جدا کیدلو باندې خپل عبادت کې مشغولیدلو ترغیب ورکړی شویدی.(مرقات۹/۲۶۶)

## هر راتلونکی دور د مخکنی دور نه بدتروي

﴿۱۴﴾ وَعَنِ الزُّبَيْرِ بْنِ عَدِيٍّ قَالَ: أَتَيْنَا أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ

او حضرت زبیر بن عدی رحمه الله فرمايي چې مونږ د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه مجلس ته لاړو او د هغه

فَشَكَوْنَا إِلَيْهِ مَا نَلْقَى مِنَ الْحَجَّاجِ. فَقَالَ: «اصْبِرُوا

ته مونږ د حجاج بن یوسف او د هغه د ظلمونو شکایت وکړو. هغه وفرمایل چې صبر کوئ او د زغم او برداشت نه

فَإِنَّهُ لَا يَأْتِي عَلَيْكُمْ زَمَانٌ إِلَّا الَّذِي بعده أشرمنه حَتَّى

کار واخلئ ځکه چې وروسته هره زمانه راتلونکې ده هغه به د تیرې شوې زمانې نه بدتره وي. تردې چې تاسو

تَلْقَوْا رَبَّكُمْ». سَمِعْتُهُ مِنْ نَبِيِّكُمْ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[2]

د خپل رب سره ملاقات وکړئ. دا خبره ما ستاسو د پیغمبر صلی الله علیه وسلم نه اوریدلې ده.

**توضیح**: الحجاج: د دېنه حجاج بن یوسف ثقفي مراد دی. چې هغه د دې امت د ټولو نه غټ ظالم تیر شویدی. چې هغه یو لک شل زره انسانان بیګناه وژلي دي. په جنګونو کې وژلي شوي د دېنه علاوه دي. د پیدائښ په وخت به یې د مور شیدې نه څکلې، شیطان د هغه مور ته وویل چې په ده باندې د بیزې وینه وڅښه، مور یې دغه شان وکړل، نو د هغه وخت نه د وینې شوقي جوړ شو. ویل به یې چې خوراک هغه وخت خوند راکوي چې

---

(1) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۶۸ رقم الحديث ۲۹۴۸-۱۳۰) واخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۲۴ رقم الحديث ۲۲۰۱.

(2) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۳/۱۹ رقم الحديث ۷۰۶۸ واحمدفي المسند۳/۱۷۹.

د ډېنه مخکې څوک ووژنم. حجاج د عبدالملک بن مروان والي ؤ. وروسته خپله باچا شو. د بيت الله محاصره کولو باندې په هغې يې په منجيق سره کاڼي راوورول. د بيت الله پردې وسوزيدلې، بيا يې عبدالله بن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شهيد کړو، وروسته يې سعيد بن جبير شهيد کړو. بيا ناروغه شو، په خيټه کې يې چينجي وشو، خپله خيټه به يې وهله يا به يې اور ته نژدې کړه، دې لپاره چې د چينجو چکونه لګول بند شي يو سړې يې په جومات کې په وجه ووژلو چې دا په جومات کې ولې اوده دی.

د مرګ نه وروسته يې حسن بصری رحمه الله د جنازې لمونځ وکړو. وې فرمايل چې ده د مرګ په وخت کې د الله تعالی نه ډيره ښايسته بخښنه غوختلې ده. نژدې ده چې معاف شي. د ګڼو صحابه کرامو رضی الله عنهم قاتل دی. په دې حديث کې حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلکو په شکايت باندې هم دا فرمايي چې صبر کوی، ځکه چې هر راتلونکی باچا د مخکې باچا نه بدتر وي. ابو مسلم خراساني د دې نه ډير قتلونه کړيدي. خو حجاج شرخوښی ډيرؤ. په حديث کې ده ته مبير يعنې د هلاکونکې په نوم سره ياد کړې شويدی. (مرقات ۹/۲۶۸)

## الْفَصْلُ الثَّانِي

۲۶ جمادی الاول ۱٤۱۸هـ

### د قائد فتنې په باره کې پيشنګوئي

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ عَنْ حُذَيْفَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: وَاللهِ مَا أَدْرِي |
| حضرت حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې زه د خدای قسم خوړلو باندې وايم چې ماته معلومه نده چې زما دې ملګرو |
| أَنَسِيَ أَصْحَابِي أَمْ تَنَاسَوْا؟ |
| هيرکړيدی يا د هغوې نه هيره شوې نده خو د خپلو ځينو مصلحتونو په وجه باندې دغه شان ظاهروي، لکه چې |
| وَاللهِ مَا تَرَكَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ قَائِدِ فِتْنَةٍ |
| هغوې نه هير شويدي. په خدای قسم نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو هم داسې فتنه خپرونکی ندی پريخودلی، |
| إِلَى أَنْ تَنْقَضِيَ الدُّنْيَا يَبْلُغُ مَنْ مَعَهُ ثَلَاثَمِائَةٍ |
| چې هغه د دنيا ختمي لو پورې پيدا کونکی دی. او چې د هغه د تابعدارانو شميره تر درې سوه بورې يا د درې سوه نه به |
| فَصَاعِدًا إِلَّا قَدْ سَمَّاهُ لَنَا بِاسْمِهِ وَاسْمِ |
| ډيره وي. نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ ته د هر فتنه خپرونکي ذکر کولو په وخت کې د هغه او د هغه د پلار |

| أَبِيهِ واسمِ قبيلتِه. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
|---|
| او د هغه د قبيلې تر نومه پورې ويلي دي. |

**توضيح**: **ثلاث مائة** :يعنې قيامت به تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو چې غټې غټې فساديان او د فتنو مشران راښكاره نشي. نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تر قيامته پورې راتلونكو د فتنو د مشرانو ذكر وكړو، او بيا يې وفرمايل چې د فتنو د دې مشرانو د هريو سره به كم از كم درې سوه كسان وي. ځكه چې د دې درې سوه شميره غټې مقدار دى. چې په هغې سره به د فتنې د دې مشر فتنه په آسانۍ سره خپره شي. ځومره چې د درې سوه كسانو مشر وي. ځكه په حديث كې د دې درې سوه كسانو ذكر شوى دى. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نوم په نوم ويلي ؤ. خو د مصلحت په وجه باندې وروستنو نومونه وانخستل. ګمراهۍ او بدعاتو اړخ ته رابلونكې غټ غټ ليډران به كم از كم درې سوه وي. بيا د هغوې څه خاص تعين نشته دى . دا ليډران به علماء سوء او عوام الناس دواړو نه به وي. نو ځومره باطلې فرقې چې دا وخت دي د دوې يو بانې او مشر تير شويدى، بلكه قاديانې، پرويزې، ذكرى، آغاخانى، بريلوې، دهريه، او رافضې او داسې نور. (مرقات ۹/۲۷۰)

| ﴿۱۶﴾ وَعَنْ ثَوْبَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّمَا أَخَافُ عَلَى أُمَّتِي |
|---|
| او حضرت ثوبان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: حقيقت دا دى چې زه د خپل امت په حق |
| الْأَئِمَّةَ الْمُضِلِّينَ . وَإِذَا وُضِعَ السَّيْفُ فِي أُمَّتِي |
| كې د كومو خلكو نه ډير يريږم هغه ګمراه كونكې امامان دي. كله چې زما په امت كې تورا وچليدله نو دا به |
| لَمْ يُرْفَعْ عَنْهُمْ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ» . رَوَاهُ أَبُو دَاوُد والترمذيّ[2] |
| تر قيامته بورې نه ودريږي. (روايت كړې دي ابو داود او ترمذى) |

## د خلافت راشده د مدت په باره كې پيشنګوئي

| ﴿۱۷﴾ وَعَن سفينة قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ : « الْخِلَافَةُ ثَلَاثُونَ سَنَةً |
|---|
| او حضرت سفينه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوريدلى دي: د خلافت زمانه به ديرش كاله وي |

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۴/۴۲۳ رقم الحديث ۴۲۴۳.

[2] أخرجه أبوداود في السنن ۴/۲۵۱ رقم الحديث ۴۲۵۲ والترمذي في السنن ۴/۴۳۷ رقم الحديث ۲۲۲۹.

ثُمَّ تَكُونُ مُلْكًا». ثُمَّ يَقُولُ سَفِينَةُ: أَمْسِكْ:

د دېنه وروسته به دغه خلافت به باچاېي کې بدل شي. حضرت سفینه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې حساب کولو سره

خِلَافَةَ أَبِي بَكْرٍ سَنَتَيْنِ وَخِلَافَةَ عُمَرَ عَشْرَةً

وګوری چې د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خلافت زمانه دوه کاله، د حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خلافت زمانه لس کاله

وَ عُثْمَانَ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ وَ عَلِيٍّ سِتَّةً. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ [1]

او د حضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د خلافت زمانه دولس کاله او د حضرت علی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د خلافت زمانه شپږ کاله.

**توضیح** : د دې نه خلافت راشده علی منهاج النبوة مراد دی. لهذا وروسته خلفاء د دې ځاې بحث نه دی.

**امسك** : يعنې شمار وکړه او محفوظ وساته. حضرت سفینه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نبی اکریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غلام دی. هغه دلته په شمارلو سره د کلونو ذکر کړيدی. او د مياشتو ذکر يې ندی کړی. اصل حساب په دې توګه دی چې د صدیق اکبر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خلافت زمانه دوه کاله او څلور مياشتې ده. د حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خلافت زمانه لس کاله او شپږ مياشتې ده. د حضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خلافت زمانه څو ورځې کم دولس کاله ده . د حضرت علی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خلافت زمانه څلور کاله او نهه مياشتې ده. دغه شان د څلور واړو خلفاؤ د خلافت زمانه نهه ویشت کاله او اووه مياشتې ده. او پنځه مياشتې چې کومې پاتې شوي هغه د حضرت حسن رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خلافت زمانه ده .نو هغه هم د خلفاء راشدینو زمانه ده. او ټوله زمانه د خلافت دیرش کاله شوه. چې هغه په دې حدیث کې ذکر شویده. د دېنه وروسته په عمومې توګه باندې دملوکیت زمانه ده . اګر که په دې کې څه استثناء هم ده. لکه حضرت معاويه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او د حضرت عمر بن عبد العزيز رحمه الله خلافتونه دي.(مرقات ۹/۲۷۱)

## د راتلونکو واقعاتو په باره کې پيشنګوئي

﴿۱۸﴾وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ أَيَكُونُ بَعْدَ هَذَا الْخَيْرِ

او حضرت حذیفه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې ما وویل چې یا رسول الله (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) !آیا د دې خیر نه وروسته به د شر دور

شَرٌّ كَمَا كَانَ قَبْلَهُ شَرٌّ؟ قَالَ: «نَعَمْ» قُلْتُ: فَمَا الْعِصْمَةُ؟

راځي. لکه څنګه چې مخکې ؤ. نبی کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: هو! ما وویل: چې بیا دغه وخت به د بچ کیدلو څه لاره

---

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۵/۳۶ رقم الحديث ۴۶۴۶ والترمذي في السنن ۴/۴۳۶ رقم الحديث ۲۲۲۶.

| |
|---|
| قَالَ: «السَّيْفُ» قُلْتُ: وَهَلْ بَعْدَ السَّيْفِ بَقِيَّةٌ؟ |
| وي؟ نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: تورا! ما وویل چې بیا به د دې تورې نه وروسته اهل اسلام پاتې وي؟ |
| قَالَ: «نعمْ تكونُ إِمارةٌ على أَقْذَاءٍ وَهُدْنَةٌ عَلَى دَخَنٍ». |
| نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: پاتې به وي. او په فساد باندې به حکومت جوړ شي. او په کدورت سره به صلح وشي. خو |
| قُلْتُ: ثُمَّ مَاذَا؟ قَالَ: «ثُمَّ يَنْشَأُ دُعَاةُ الضَّلَالِ |
| ما وویل چې بیا به څه وي؟ نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: چې د دېنه وروسته به ګمراهی اړخ ته رابلونکي خلک پیدا شي. |
| فَإِنْ كَانَ لله فِي الْأَرْضِ خَلِيفَةٌ جَلَدَ ظَهْرَكَ وَأَخَذَ |
| که دغه وخت په زمکه کې څوک خلیفه وي. نو که هغه ستا شا وهلې ونه وهي او ستا مال ولې وانخلي خو ته |
| مَالَكَ فَأَطِعْهُ وَإِلَّا فَمُتْ |
| د هغه د اطاعت نه مخ مه اړوه، او که څوک خلیفه نوي نو تا لره په داسې حالت کې مرګ راتلل پکار دي |
| وَأَنْتَ عَاضٌّ عَلَى جِذْلِ شَجَرَةٍ» قُلْتُ: |
| چې ته د یوې ونې د جرړې لاندې پناه اخستونکې یې. ما عرض وکړو چې بیا به د دېنه وروسته څه وي؟ |
| ثُمَّ مَاذَا؟ قَالَ: «ثُمَّ |
| نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل: د دېنه وروسته به دنیا نورې ډېرې فتنې او جدا والې اړخ ته وړاندې کیږي. او مسلمانان به پراګنده شي |
| يَخْرُجُ الدَّجَّالُ بَعْدَ ذَلِكَ |
| او ملې توګه باندې او دنیاوې اعتبار سره به هم مخ په زوال وي. تر دې چې د حضرت مهدی په زمانه کې به دجال راښکاره شي چې |
| مَعَهُ نَهْرٌ وَنَارٌ فَمَنْ وَقَعَ فِي نَارِهِ وَجَبَ أَجْرُهُ وَحُطَّ وِزْرُهُ |
| د هغه سره به د اوبو نهر وي او اور به وي. نو کوم سړي چې د هغه اور ته ګوزار شو، د هغه اجر ثابت شو. او د هغه ګناه به لیرې شي. |
| وَ مَنْ وَقَعَ فِي نَهْرِهِ وَجَبَ وِزْرُهُ و حط أَجْرُهُ ». |
| او کوم سړی چې په نهر کې ګوزار شي، د هغه ګناه به د هغه لپاره بار وي، او د هغه اجر به ختمیږي، |
| قَالَ: قُلْتُ: ثُمَّ مَاذَا؟ قَالَ: |
| حضرت حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما وویل چې بیا د دېنه وروسته به څه وي؟ نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: |

«ثُمَّ يُنْتَجُ الْمُهْرُ فَلَا يُرْكَبُ حَتَّى تَقُومَ السَّاعَةُ» وَفِي رِوَايَةٍ: «هُدْنَةٌ عَلَى
اسپه به بچي راوړي او هغه به د سپرلۍ قابل شوی نوي چې قيامت به راشي. او په يو روايت کې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل:

دَخَنٍ وَجَمَاعَةٌ عَلَى أَقْذَاءٍ». قُلْتُ:
په زړه کې د غوښه ساتلو سره به صلح وشي او هغوی به د زړونو ناخوښۍ او خفگان سره راغونډ شي. ما وويل چې

يَا رَسُولَ اللهِ الْهُدْنَةُ عَلَى الدَّخَنِ مَا هِيَ؟ قَالَ:
يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! د زړه په خفگان سره د صلح کولو نه څه مراد دي؟ نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: د دې مطلب دا دی

«لَا ترجع قُلُوبُ أقوام كَمَا كَانَتْ عَلَيْهِ». قُلْتُ:
چې د خلکو زړونه به په هغه حالت باندې نوي په کوم باندې چې مخکې ؤ، ما وويل چې د دې ښيگړې نه وروسته چې د نفاق

بَعْدَ هَذَا الْخَيْرِ شَرٌّ؟
او د زړه په خفگان سره ذکر شوي خپل مينځې صلح او جوړې په صورت کې به ظاهره شي او هغه به اگر که

قَالَ: «فِتْنَةٌ عَمْيَاءُ
د بدۍ د خيرې نه پوراتو که باندې پاکه نوي، کومه بله بدي به نه ښکاره کيږي، نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل هو! د

صَمَّاءُ عَلَيْهَا دُعَاةٌ
دېنه وروسته به دې راښکاره کيږي. او هغه به ديو داسې غټې فتنې په صورت کې وي چې هغه به ړنده او کڼه وي. د دې فتنې اړخ ته

عَلَى أَبْوَابِ النَّارِ فَإِنْ مُتَّ
به رابلونکې خلک پيدا شي او د دې جماعت خلک به دا عمل داسې ښکاره کوي لکه دوي چې د دوزخ په دروازه باندې ولاړ دي او

يَا حُذَيْفَةُ وَأَنْتَ عَاضٌّ عَلَى جِذْلٍ خَيْرٌ لَكَ
خلک د هغې اړخ ته رابلي. نو ای حذيفه! په دغه وخت کې که ستا مرگ په داسې حالت کې راشي چې تا د يوې ونې

مِنْ أَنْ تتبع أحدا مِنْهُم». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد [1]
د جرړې لاندې پناه نيولې وي نو دا د دې نه غوره ده چې ته په اهل فتنه کې د چا تابعداري او اتباع وکړې.

**توضيح: السيف:** د دېنه معلومه شوه چې د فتنو د سر ماتونې لپاره د حق د بيرغ لاندې تورې سره راوتل

---

([1])أخرجه ابوداود في السنن ۴۰۲۴۴ رقم الحديث ۴۲۴۴ أخرجه ابن ماجه في ۲/۱۳۱۷ رقم الحديث ۳۹۸۱.

جائز دي. د جمهور صحابؤ هم دا مسلک ؤ. او م(۷) نمبر حدیث کې د دې تفصیل تیر شویدی. **بقية**: یعنې تورا راختسلو باندې د دې فسادګرو سره د جنګ کولو نه وروسته به آیا خلافت او امارت پاتې وي؟ نبی کریم صَلَّاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ و فرمایل: هو ! امارت به پاتې وي.خو **على اقذاء**: قذې په سترګې کې غورزیدونکې خځلې ته وایي. دلته خفګان او د زړه خیری مراد دی. په ظاهرې توګه باندې به خلک اطاعت کوي خو په زړونو کې به یې دښمنې پاتې وي. دغه مفهوم په **هدنة على دخن** سره ادا کړی شو چې صلح خو به وشي، خلافت به هم قائم شي خو دخن یعنې لوګی او د زړه خیری به پاتې وي.(مرقات ۹/۲۷۳)

**عاض**: یو شی په خلې کې په غاښونو سره کلک نیولو ته عاض وایي. **جذل**: وني تنې او جرړې ته جذل وایي. **ثم ماذا**: یعنې د دې فتنو نه به وروسته څه وي؟ نبی کریم صَلَّاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ اشاره وکړه چې بیا به د خروج دجال فتنه وي. یعنې اول به حضرت مهدی راځي . او ه کاله خلافت نه وروسته به د جاج خروج وي، بیا د حضرت عیسی عَلَيْهِالسَّلَامُ نزول (راکوزیدل) وي بیا به قیامت دومره نژدې راشي چې د اس بچی به د سپرلۍ قابل شوی نوي چې قیامت به راشي.(مرقات ۹/۲۷۳)

## خلافت راشده نه وروسته د سختو فتنو پیشنګوئي

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَ عَن أَبِي ذَر قَالَ : كُنْتُ رَدِيفًا خَلْفَ رَسُولِ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا على حمار |
| او حضرت ابوذر رَضِيَاللَّهُعَنْهُ فرمايي چې يوه ورځ زه په خر باندې رسول الله صَلَّاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ پسې شاته ناست وم، کله چې |
| فَلَمَّا جَاوَزْنَا بُيُوتَ الْمَدِينَةِ قَالَ: «كَيْفَ بِكَ يَا أَبَا ذَرٍ إِذَا كَانَ |
| مونږ د مدينې د كورونو نه وو تلونو نبی کریم صَلَّاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ و فرمايل: ابوذر! هغه وخت به ستا څه حال وي کله چې په |
| بِالْمَدِينَةِ جُوعٌ تَقُومُ عَنْ فِرَاشِكَ وَلَا تَبْلُغُ مَسْجِدَكَ |
| مدينه کې به ولږه وي. ته به د خپلې بسترې نه پاڅيدلو باندې تر جوماته تک کې هم مشکل محسوس وي. او د |
| حَتَّى يُجْهِدَكَ الْجُوعُ ؟ » قَالَ : قُلْتُ : |
| ولږې سخته به تا په سخته پريشانۍ او تکليف کې اخته کړي. حضرت ابوذر رَضِيَاللَّهُعَنْهُ فرمايي چې ما وويل: |
| الله وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. قَالَ: «تَعَفَّفْ يَا أَبَا ذَرٍ». |
| چې الله او د هغه رسول ښه پوهيږي. نبی کريم صَلَّاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ و فرمايل: ابوذر! پاکدامنې خپله کړه. بيا |
| قَالَ: «كَيْفَ بِكَ يَا أَبَا ذَرٍ إِذَا كَانَ بِالْمَدِينَةِ |
| نبی کريم صَلَّاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ و فرمايل: ابوذر! هغه وخت به ستا څه حال وي کله چې (قحط يا د بلې څه وباء د خپريدلو د وجې نه) په مدينه |

| | | | |
|---|---|---|---|
| مَوْتٌ | يَبْلُغُ | الْبَيْتَ | الْعَبْدُ |

كې د مرګونه ډير شي. او د كور (يعنې د قبر) نرخ به د غلام نرخ ته ورسيږي. ترديې چې د قبر ځاې به د غلام په

حَتَّى إِنَّهُ يُبَاعُ الْقَبْرُ بِالْعَبْدِ ؟ » . قَالَ : قُلْتُ اللهُ وَ رَسُولُهُ

قيمت (نرخ) باندې خرڅيږي. حضرت ابو ذر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما عرض وكړو چې الله او د هغه رسول

أَعْلَمُ. قَالَ: «تَصْبِرُ يَا أَبَا ذَرٍّ». قَالَ: «كَيْفَ بِكَ يَا أَبَا ذَرٍّ

ښه پوهيږي. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د صبر لمن هيچرې مه پريږده. او بيا يې وفرمايل: ابوذر! هغه وخت به

إِذَا كَانَ بِالْمَدِينَةِ قَتْلٌ تَغْمُرُ الدِّمَاءُ أَحْجَارَ الزَّيْتِ؟»

ستا څه حال وي كله چې به مدينه كې قتل عام وشي. او د دې وينه به احجار الزيت لره پټ كړي.

قَالَ: قُلْتُ: اللهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. قَالَ:

ابوذر رضی الله عنه فرمايي چې ما وويل چې الله او د هغه رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ښه پوهيږي. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل:

«تَأْتِي مَنْ أَنْتَ مِنْهُ» . قَالَ: قُلْتُ: وَأَلْبَسُ السِّلَاحَ؟

ته د هغه چا ته خواته لاړ شه، د چا سره چې ته تعلق ساتې. ما وويل چې آيا زه د غه وخت وسله وتړم. او د

قَالَ : « شَارَكْتَ الْقَوْمَ إِذًا ».

فتنې خپرونكې ډلې په خلاف باندې جنګ وكړم؟ نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د غه شان به ته هم د غه جماعت سره په

قُلْتُ : فَكَيْفَ أَصْنَعُ يَا رَسُولَ اللهِ؟

كار كې شريک شې. ما وويل چې : يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ما لپاره هغه وخت څه كول پكار دي؟

قَالَ : « إِنْ خَشِيتَ أَنْ يَبْهَرَكَ شُعَاعُ السَّيْفِ فَأَلْقِ نَاحِيَةَ ثَوْبِكَ

نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: كه ستا سره ويره وي چې د تورې پرق به په تا غالبه شي نو د غه وخت ته د خپلو جامو څنډه په

عَلَى وَجْهِكَ لِيَبُوءَ بِإِثْمِكَ وَإِثْمِهِ» . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[1]

خپل مخ باندې راوچوه ، دې لپاره چې هغه ستا او خپله ګناه سره بيرته ستون شي.

**توضيح**: جوع: يعنې په مدينه كې به عام قحط راشي يا فقط ته د ولږې سره مخامخ شې. دواړه مطلبونه

صحيح دي.

**يجهدك**: يعنې ولږه به تا کمزوری او دومره ډنګر کړي چې ته به خپل نژدې جومات ته تګ نه عاجزه شي.

**تعفف**: يعنې په داسې حالت کې هم د سوال نه ځان وساته او خپل عزت او عظمت د لاسه مه ورکوه.

**موت**: يعنې وبائي ناروغي. يا قحط نه يا د فتنو د وجې نه به مرګونه عام شي.

**البيت العبيد**: يعنې د مړي لپاره به قبر نه وي، قبر به دومره ګران شي چې يو غلام به ورکول وي. يعنې د قبر نرخ به د غلام نرخ ته ورسيږي.

**تغمبر**: د پټولو په معنی دی. يعنې دومره وينه به تويه شي چې کاڼي به پټ کړي.

**احجار الزيت**: مدينه منوره کې د يوې کوڅې نوم احجار الزيت دی. ځينې علماء وايي چې مغربې اړخ ته د يو ځای نوم دی. علامه توربشتي وايي چې احجار زيت د حره علاقه ده. په حره کې د يزيد په زمانه کې مشهور قتل عام شوی ؤ. درې ورځې په مدينه منوره کې چور چپاؤ عام ؤ. درې ورځې په مسجد نبوي کې اذان نه ؤ شوی. مدينه باندې تورتم خپور شوی ؤ، مسلم بن عقبه د يزيد د فوج مشرې کوله. په زرګونو مسلمانان شهيدان شول. او مدينې د تقدس خيال و نه ساتلی شو. په احجار زيت کې د وينې ولې وبهيدلې. دا واقعه د شهادت حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وروسته پيښه شوه. بيا د يزيد فوځ د مکې محاصره وکړه خو خپله يزيد مړ شو او قبضه ختمه شوه.

**تأتي من انت منه**: د دې يو مطلب دا دی چې د کوم کور نه ته راغلی يې نو هغه کور ته لاړ شه او په هغې کې کينه. يا يې مطلب دا دی چې په داسې حالت کې ته خپل هغه امير اړخ ته رجوع وکړه چې د چا چې ته اطاعت کوي، او ته د هغوې نه يې. دا دويم مطلب علامه طيبي بيان کړيدی. چې ډير واضحه دی. د حره واقعه په ۶۳ هـ کې وشوه. او حضرت ابوذر غفاری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفات په ۳۲ هـ کې شوی ؤ. حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا فرمان او پيشنګوئي د صحابؤ او تابعينو مخې ته بيان کړيده خو خپله يې واقعه نده ليدله. (مرقات ۹/۲۷۷)

**شارکت القوم**: يعنې که وسله اغوستلو باندې ميدان ته ووتلې نو د جنګ کونکو نه به ګڼلی کيږې.

**يبهرك**: يعنې د تورې پړق په تا باندې غالب راشي، ته دغه وخت په خپل مخ باندې جامه واچوه او هيڅ مکوه. وژونکی به د ګناه پورا بوج سره قيامت کې راشي. (مرقات ۹/۲۷۸)

## دفتنو ډک ماحول کې د خلاصون لار

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «كَيْفَ |
| او حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ته وفرمايل چې هغه وخت به ته |
| بِكَ إِذَا أُبْقِيتَ فِي حُثَالَةٍ مِنَ النَّاسِ مَرَجَتْ عُهُودُهُمْ |
| څه کوې کله چې ته خپل ځان د ناکاره خلکو په زمانه کې بيامومې. چې د هغوې لوظ او وعدې او دچا |
| وَأَمَانَاتُهُمْ وَاخْتَلَفُوا فَكَانُوا هَكَذَا؟ » |
| امانتونه چې به ګډوډ وي. او ځوک چې به خپل مينځ کې اختلاف ساتي. ګويا چې هغه خلک به داسې شي، |
| وَشَبَّكَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ. قَالَ: |
| دې وينا سره نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپلې ګوتې په يو بل کې دننه کړې. حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل: چې ته |
| فَبِمَ تَأْمُرُنِي؟ قَالَ: «عَلَيْكَ |
| ماته لارښود نه وکړه چې د غه وخت څه وکړم؟ نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: هغه وخت به په تا باندې لازم وي چې |
| بِمَا تَعْرِفُ وَدَعْ |
| هغه څه اختيار کړه او په هغه څه باندې عمل وکړه چې ته يې حق وګڼې. او د هغه څه نه کرکه او ځان ساته |
| مَا تُنْكِرُ وَعَلَيْكَ بِخَاصَّةِ نَفْسِكَ |
| وکړه چې ته يې ناحق او بد وګڼې. د غه شان فقط خپل کار او خپلې ښيګړې سره کار وساته. او خپل ځان |
| وَإِيَّاكَ وَعَوَامِّهِمْ». وَفِي رِوَايَةٍ: «الْزَمْ بَيْتَكَ وَأَمْلِكْ عَلَيْكَ لِسَانَكَ |
| عامو خلکو نه ليرې کړه. او په يو روايت کې داسې نقل شوي دي چې په خپل کور کې پاتې شه. او خپله ژبه |
| وَخُذْ مَا تَعْرِفُ وَدَعْ مَا تُنْكِرُ وَعَلَيْكَ |
| په قابو کې وساته. او کوم څه چې حق وګڼې، هغه خپل کړه او کوم څه چې بد وګڼې. هغه پرېږده، فقط خپل |
| بِأَمْرِ خَاصَّةِ نَفْسِكَ و دع أمر الْعَامَّة ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَصَحَّحَهُ[1] |
| کارونو او خپلې ښيګړې سره مطلب وساته. او د عامو خلکو د معاملاتو نه ځان ليرې وساته. |

**توضيح**: حثالة: د کهجورو پوستکې او بوس او خزلو ته حثاله وايي. د دېنه هغه خلک مراد دي چې چې هغه

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۲۵۱ رقم الحديث ۶۴۳۴ وابوداود في السنن ۴/۵۱۳ رقم الحديث ۴۳۴۲.

د انسانانيت نه غورزيدلي وي. بس خزلي وي. **مرجت:** يعنې د هغوې وعدې به كډې وډې او او په دهوكه باندې بنا وي. د وعدې به هيڅ اعتبار نوي. نه به د هغوې به ژبه باندې د چا اعتبار وي. د تېتې درجې خلك به وي. په داسې حالت كې ته عوام الناس پرېږده، فقط د خپل ځان د ساتنې فكر وكړه . په نورو روايتونو كې د حق ملاتړ او د توري راوچتولو ويلې شويدي، او حال دا دی چې دلته د لينديء ماتولو او ځان غاړې ته كولو حكم دی. نو دا د مخاطب د مزاج د وجې نه فرق راغلی دی. تفصيل مخكې تير شويدي. (مرقات ۹/۲۷۸)

## يو تفصيلي وړاندوينه

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَ عَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ : |
| او حضرت ابو موسی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نبی كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل كوي چې نبی كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: |
| «إِنَّ بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ فِتَنًا كَقِطَعِ اللَّيْلِ الْمُظْلِمِ |
| قيامت د راتگ نه مخكې به فتنې ښكاره شي. او د تورتم شپو د ټوټو په شان به وي. د دې فتنو په زمانه كې به |
| يُصْبِحُ الرَّجُلُ مُؤْمِنًا وَيُمْسِي كَافِرًا وَيُمْسِي مُؤْمِنًا وَيُصْبِحُ كَافِرًا |
| سړی خو سحر كې د ايمان په حالت كې به پاځيږي، او ماښام به كافر شي. ماښام كې به مؤمن وي نو سحر به د كفر په حالت كې |
| الْقَاعِدُ خير من الْقَائِمِ والماشي خَيْرٌ مِنَ السَّاعِي فَكَسِّرُوا فِيهَا قِسِيَّكُمْ |
| پاځيږي ناست به د ولاړ نه غوره وي. او مزل كونكی به د منډې وهونكي سړي نه غوره وي. نو خپلې ليندۍ ماتې |
| وَقَطِّعُوا فِيهَا أَوْتَارَكُمْ وَاضْرِبُوا سُيُوفَكُمْ بِالْحِجَارَةِ فَإِنْ دُخِلَ عَلَى أَحَدٍ |
| كړئ، د ليندۍ تارونه غوڅ كړئ، او خپلې توري په كاڼو باندې ووهئ، او كله چې په تاسو كې يو سړي د چا |
| مِنْكُمْ فَلْيَكُنْ كَخَيْرِ ابْنَيْ آدَمَ». |
| وژلو پسې راشي نو هغه لپاره پكار دي چې هغه د آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ په دوه ځامنو كې د غوره ځوی په شان شي. |
| رَوَاهُ أَبُو دَاوُد . وَ فِي رِوَايَةٍ لَهُ ( ضَعِيف ) « ذَكَرَ إِلَى قَوْلِهِ » خَيْرٌ مِنَ السَّاعِي " |
| او د ابوداؤد په يو بل روايت كې خير من الساعی (يعنې مزل كونكی به د منډې وهونكې سړي نه غوره وي) |
| ثُمَّ قَالُوا: فَمَا تَأْمُرُنَا؟ |
| د الفاظو نقل كولو نه وروسته داسې نقل كړی شويدي چې صحابؤ عرض وكړو چې ته مونږ ته څه حكم كوې؟ |

قَالَ: كُونُوا أَحْلَاسَ بُيُوتِكُمْ". وَفِي رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ:

نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: تاسو د خپل کور ټاټ جوړ شئ، دغه شان د ترمذي روایت دا سې دی چې

أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِي الْفِتْنَةِ: «كَسِّرُوا فِيهَا قِسِيَّكُمْ

نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د فتنې په اړه باندې دا لاربنودنه وکړه چې تاسو د فتنې په زمانه کې خپلې لیندۍ ماتې کړئ

وَقَطِّعُوا فِيهَا أَوْتَارَكُمْ وَالْزَمُوا فِيهَا أَجْوَافَ بُيُوتِكُمْ وَكُونُوا

او د هغې تارونه وشلوئ، دغه شان خپلو کورونو کې پریوتل لازم کړئ، او تاسو د آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ د ځوي

كَابْنِ آدَمَ» . وَقَالَ: هَذَا حدیثٌ صحیحٌ غریبٌ[1]

په شان جوړ یدل خوښ کړئ. (او ترمذي وائي دا حدیث غریب دې)

**توضیح: قسیکم:** دا د قوس جمع ده . او قوس کمان ته وایي. **او تارکم:** دا د وتر جمع ده. د لیندۍ هغه تار او مزي ته وایي چې په هغې کې تیر اړدلو سره ګوزارولی شي.

**احلاس:** دا د حلس جمع ده. ټاټ ته وایي. یعنې د کور د ټاټ په شان شئ ، د کور نه مه راوځئ ګنې په فتنه کې به اخته شئ. (مرقات ۹/۲۸۰)

**خیر ابن آدم:** یعنې آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ د دوه ځامنو هابیل او قابیل کې د ښه ځوي په شان شئ، یعنې د هابیل په شان صبر کونکې شئ ، دا احادیث د هغه ښاغلو دلائل دي چې هغوي د فتنو په زمانه کې بیخې جدا او سیږي. تفصیل په حدیث نمبر ۷ کې تیر شویدی.

﴿۲۲﴾ وَعَن أُمِّ مَالِكٍ البهزية قَالَتْ : ذَكَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِتْنَةً فَقَرَّبَهَا.

او حضرت مالک بهزیه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د فتنې ذکر وکړو او هغه ډیره نژدې کړه

قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ مَنْ خَيْرُ النَّاسِ فِيهَا؟

نو ما وویل چې یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! د دې فتنې په زمانه کې به د ټولو نه غوره سړی څوک وي؟

قَالَ: «رَجُلٌ فِي مَاشِيَتِهِ

نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: په دې زمانه کې به د ټولو نه غوره سړی هغه وي چې هغه په خپلو څاروُ (مصروفه) وي. د

---

[1] اخرجه أبوداود في السنن ۴/۴۵۷ رقم الحديث ۴۲۵۹،والترمذي في السنن ۴/۴۲۴ رقم الحديث ۲۲۰۲.

| يُؤَدِّي | حَقَّهَا | وَيَعْبُدُ | رَبَّهُ | وَرَجُلٌ |
|---|---|---|---|---|
| هغوي حق ادا کړي، او د خپل رب په بندګيرۍ کې مشغوله وي. او هغه سړی به هم د ټولو نه غوره وي | | | | |
| أَخَذَ برأسٍ فرأسه يخيف العدو و يخوفونه ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ(۱) | | | | |
| چې هغه د خپل اس سر ونيسي او د دين دښمنان ويروي او دښمن هغه لره يروي. | | | | |

## مشاجرات صحابه په بحث کې مه پرېوځه

| ﴿۲۳﴾ وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «سَتَكُونُ فِتْنَةٌ | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| او حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ډير ژر يوه غټه فتنه راښکاره کيدونکې | | | | | |
| تَسْتَنْظِفُ | الْعَرَبَ | قَتْلَاهَا | فِي | النَّارِ | |
| ده چې هغه به ټول عرب په خپله ګيره کې واخلي. په دې فتنه کې وژل شوي خلک به دوزخ کې وي، دغه شان | | | | | |
| اللِّسَانُ فِيهَا أَشَدُّ مِنْ وَقْعِ السَّيْفِ ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه(۲) | | | | | |
| په دې کې ژبه چلونکې د تورې وهونکې نه به ډير مضر وي. (ترمذی، ابن ماجه) | | | | | |

**توضيح: تستنظف العرب:** يو شی په مکمل توګه باندې هلاکولو لپاره د استنظف لفظ ويلی کيږي. يعنې په دې فتنې سره به د عربو بيخ کندې وشي. **في النار:** يعنې په دې کې وژل شوي به دوزخ ته ځي. ځکه چې په دې جنګ کې د هغوې مقصود به اعلاء کلمة الله نوي، نه د کوم حق ملاتړ وي، او نه به د کوم ظالم ظلم لره ليرې کول وي، بلکې اختلاف او بغاوت او د هيواد نيول او مال راغونډول به يې مقصود وي. (مرقات ۹/۲۸۲)

**اللسان:** دا فتنه به په تعصب او قوميت باندې بنا وي، نو ځکه د ژبې غوڅه به د تورې د غوڅې نه ډير اثر کونکې وي. په دې حديث کې چې د فتنې کوم ذکر شويدی، په دې کې شريک د دواړو ډلو لپاره سخت وعيد دی. او د دې مقتولين دوزخيان بللی شويدي. لهذا د دې مصداق دصحابۇ د دور مشاجرات ګرځول ممکن ندي. په حديث کې د چا نوم هم نشته دی. او نه د کومې ډلې تعين شته دی، د مطلق فتنې تذکره ده. په عربي نړۍ باندې د اولې ورځې نه بيلا بيلې فتنې راغلي دي، لهذا د دې فتنې مصداق داسې خلک کيدلی شي چې هغوې د کوم حق په ملاتړ يا د ظلم په ليرې کولو کې نه جنګيږي بلکې يوازې د دنياوي غرضونو او نفساني خواهشاتو لپاره جنګيږي، لکه څنګه چې د قاضی عياض کلام

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۲۱۰ رقم الحديث ۲۱۷۷ واحمد في المسند ۶/۴۱۹.

(۲) اخرجه أبوداود في السنن ۴/۴۶۱ رقم الحديث ۴۲۶۵ والترمذي في السنن ۴/۴۱۱ رقم الحديث ۲۱۷۸.

ملا علی قاری رحمه الله نقل کړیدی. قاضی عیاض دغه شان فرمایلې دي: دا قسمه احادیث د صحابه کرامو حضرت علي رضي الله عنه او حضرت معاویه عنهم خپل مینځې جنګونو باندې حمل کول پکار ندي. هغه د صحابؤ جماعت دی، د هغوې عزت کول په امت باندې واجب دي. د هغوې جنګونو ته مشاجرات وایې، چې په هغوې کې یو جماعت په حق باندې ولاړ ؤ نو دویم جماعت اجتادې خطایې کړې وه. چې په هغې کې دسزا په ځاې باندې ثواب ورکولی کیږي. دا مقدس جماعت الله تعالی په رضی الله عنهم ورضوا عنه سره یاد کړیدی. نبی اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایلې دي: اذا ذکر اصحابي فامسکوا ای عن الطعن فیهم (مرقات) نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلې: اذا رأیتم الذین یسبّون اصحابي فقولوا لعنة الله علی شرّکم. حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله د مشاجرات صحابؤ په اړه باندې وفرمایل: تلك دمآء طهر الله ایدینا منها فلا نلوث السنتنها بها. حضرت عبد الله بن مبارک رحمه الله نه پوښتنه وشوه چې معاویه رضي الله عنه افضل ؤ او که عمر بن عبدالعزیز رحمه الله؟ نو ده جواب ورکړو: لغبار انف فرس معاویة حین غزا فی رکاب رسول الله افضل من کذا وکذا من عمر بن عبدالعزیز. (مرقات۲۸۲-۹/۲۸۳)

بهرحال جمهورامت په دې باندې ولاړ دی چې حضرت علی رضي الله عنه په حقه باندې ؤ او حضرت معاویه رضي الله عنه په اجتهادي خطاء باندې ؤ. چې په هغې کې ثواب ورکیدلی شي. زمونږ لپاره د ټولو نه ښه لاره دا ده چې مونږ په مشاجرات صحابه کې بیخې سکوت خپل کړو. سکوت باندې مواخذه نشته. او په خبرو کولو او تحقیق کولو کې د مواخذې یره شته دی. (مرقات۹/۲۸۳)

نه هر جائے مرکب تواں تاختن ... که جاها سپر باید انداختن

## کله چې چاړې اوړنده فتنه وي

| |
|---|
| ﴿۲۴﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «سَتَكُونُ فِتْنَةٌ صَمَّاءُ بكماء |
| او حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ډیر ژر به چاړې، ګڼې او |
| عمیاءُ مَنْ أَشْرَفَ لَهَا |
| ړندې فتنې رابنکاره شي. کوم سړی چې دا فتنې ووینې او دېته نژدې ورشي هغه به دغه فتنې ووینې |
| اسْتَشْرَفَتْ لَهُ وَإِشْرَافُ اللِّسَانِ فِيهَا کوقوع السَّيْفِ» . رَوَاهُ أَبُو دَاوُد [1] |
| او ده ته به نژدې راشي، دغه شان د دې فتنو په وخت کې ژبه ورتیا به د تورې وهلو په شان وي. |

---

[1] اخرجه ابوداود في السنن ۴/۴۶۰ رقم الحدیث ۴۲۶۴ واحمد في المسند ۵/۴۰۶.

**توضیح:** صمّاء: یعنې ډیر ژر به چاړې، کڼې او ړندو فتنو ظهور وشي، د خلکو په اعتبار سره یې فتنو ته چاړې، ړندي او کڼې ویلی شویدي، مطلب دا دی چې د دې فتنې په وخت کې به خلک د حق او باطل په مینځ کې فرق نشي کولی. ښه خبره او ریدل به نه خوښوي. او نه به د امر بالمعروف او نهی عن المنکر خبره د ژبې نه راوباسي او نه به ښه کار ته د قبولیت په نظر ګوري. څوک چې په سر وروچتولو سره دې فتنو ته ګوري، دا فتنه به په منډه سره د هغه خواته راځي، د ژبې په ذریعه به دا فتنه دومره راوپاریږي چې د توري نه به تیزه وي. د حدیث مطلب دا دی چې د دې ړندي، کڼې او چاړې فتنو نه هر وخت د ځان ساتلو کوښښ کوه. (مرقات ۹/۲۸۴)

## د څو غټو فتنو بیان

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: كُنَّا قُعُوْدًا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه روایت دی چې مونږ د نبی کریم ﷺ په مجلس کې ناست وُ. چې |
| فَذَكَرَ الْفِتَنَ فَأَكْثَرَ فِي ذِكْرِهَا حَتَّى ذَكَرَ فِتْنَةَ الْأَحْلَاسِ |
| نبی کریم ﷺ د فتنو ذکر شروع کړو. او ډیرې فتنې یې بیان کړې. تر دې چې د فتنه احلاس ذکر یې وکړو. |
| فَقَالَ قَائِلٌ: وَمَا فِتْنَةُ الْأَحْلَاسِ. قَالَ:" هِيَ هَرَبٌ وَحَرَبٌ |
| یو سړي پوښتنه وکړه چې د احلاس فتنه څه ده؟ نبی کریم ﷺ وفرمایل: هغه تیخته او د مال په ناحقه باندې |
| ثُمَّ فِتْنَةُ السَّرَّاءِ دَخَنُهَا مِنْ تَحْتِ قَدَمَيْ رَجُلٍ |
| اخستل دي. او بیا د السراء فتنه ده. د دې فتنې [illegible] تم او تباهي به د هغه سړي د قدمونو د لاندې نه راوځي چې هغه به زما د |
| مِنْ أَهْلِ بَيْتِي يَزْعُمُ أَنَّهُ مِنِّي |
| اهل بیت نه وي. د هغه سړي ګمان خو به دا وي چې هغه زما د اهل بیت نه دی خو حقیقت دا دی چې هغه به |
| وَلَيْسَ مِنِّي إِنَّمَا أَوْلِيَائِي |
| زما د خپلو نه نوي. په دې کې هیڅ شک نشته چې زما دوست او زما خپل خو هغه خلک کیدلی شي چې هغه |
| الْمُتَّقُونَ ثُمَّ يَصْطَلِحُ النَّاسُ عَلَى رَجُلٍ |
| پرهیزګاره وي! بیا د دې فتنې نه وروسته به خلک د داسې سړي په لاس باندې بیعت وکړي چې هغه به د پوختې |
| كورك على ضلع ثُمَّ فِتْنَةُ الدهماء لَا تَدَعُ أَحَدًا مِنْ هَذِهِ الْأُمَّةِ |
| د پاسه وازکې په شان به وي. بیا به د وهیماء فتنه ظاهره شي او هغه فتنه به په دې امت کې داسې سړې پرې نږدي |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِلَّا | لَطْمَتُهُ | لَطْمَةً | فَإِذَا | قِيلَ: انْقَضَتْ |
| چې په هغې باندې د دې څپېړه، د څپېړې په توګه ونه لګي. او کله چې وویلی شي چې دا فتنه ختمه شوه نو | | | | |
| تَمَادَتْ | يُصْبِحُ | الرَّجُلُ | فِيهَا | مُؤْمِنًا وَيُمْسِي كَافِرًا |
| د دې موده به څه نوره ډېره شي، دغه وخت به سړی سحر کې د ایمان به حالت کې پاڅیږي او ماښام به کافر شي | | | | |
| حَتَّى | يَصِيرَ | النَّاسُ | إِلَى | فُسْطَاطَيْنِ: فُسْطَاطِ إِيمَانٍ |
| او دا صورت حال به جارې وي. تردې چې خلک به په دوه خیمو کې تقسیم شي. یوه خیمه به د ایمان وي | | | | |
| لَا نِفَاقَ فِيهِ وَفُسْطَاطِ نِفَاقٍ لَا إِيمَانَ فِيهِ. فَإِذَا كَانَ ذَلِكَ | | | | |
| چې په دې کې به نفاق نوي. او یوه خیمه به د نفاق وي چې په دې کې به ایمان نوي، کله چې دا خبره رابنکاره | | | | |
| فَانْتَظِرُوا الدَّجَّالَ مِنْ يَوْمِهِ أَوْ مِنْ غَدِهِ ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[۱] | | | | |
| شي نو بیا په دغه ورځ یا په بله ورځ د دجال د رښکاره کیدلو انتظار کوی. | | | | |

**توضیح**:فتنه احلاس : احلاس د حلس جمع ده . او حلس ټاټ ته وایي.دې فتنې ته حلس او ټاټ سره ځکه تشبیه ورکړی شویده چې ټاټ په یو ځای باندې پروت وي، د لیرې کیدلو نوم نه اخلي، دا فتنه چې هم کله کورونو ته ننوځي نو دهغوې سره دا ونخلي چې د ختمیدلو نوم به نه اخلي، څنګه چې ټاټ ونخلي یا په دې فتنه کې د اخته شوؤ خلکو تشبیه دټاټ سره ورکړی شویده چې خلک به د دې فتنې د وجې نه د کورونو سره دا ونخلي څنګه چې ټاټ وي. او هغوې لپاره دغه شان کول پکار دي.(مرقات ۹/۲۸۵)

هرب وحرب: دیو ښتنه کونکې په جواب کې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دفتنه احلاس وضاحت وکړو چې په دې کې به خلک دیو بل سره دښمنې او بغض او کینې د وجې نه تختي. دا هرب دی. او خلک به د یو بل نه مالونه په زور اخلي. دا حرب دی. حرب د محروب په معنې دی. مال په زوره اخستلو ته وایي. شاعر ساحر ویلي:

وما لكل اخيذ المال محروب

**دفتنه احلاس مصداق** :حضرت شاه ولی الله محدث دهلوی رحمه الله دفتنه احلاس مصداق دحضرت عبدالله بن زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شهادت او د حجاج بن یوسف فتنه یې ګرځولې ده. تفصیلي واقعه په دې توګه باندې پیښه شوه چې د حضرت مغیره بن شعبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مشوره باندې چې کله حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل ولي عهد وټاکلو نو د وصیت په توګه باندې یې هغه ته وویل چې ستا د حکومت به څلور کسان مخالفت کوي، یو عبدالرحمن بن ابی

(۱)اخرجه أبوداود في السنن ۴/۴۴۲ رقم الحديث ۴۲۴۲،وأحمد في المسند ۲/۱۳۳ .

بکر رضی الله عنه، دویم عبدالله بن عمر رضی الله عنه، دریم عبدالله بن زبیر رضی الله عنه او څلورم حسین بن علی رضی الله عنه. په دوئ کې اول ذکر شوؤ ته کیدئ شي د مقابلې کولو موقع په لاس ورنشي، دویم صوفي سړی دی، ځان به غاړې ته کړي، دریم عبدالله بن زبیر رضی الله عنه لو مبړې نه ډیر چالاکه دی، دهغه نه هوښیار ساته. او څلورم چې حسین رضی الله عنه دی، هغه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره نزدیکت دی، د هغه د خپلولۍ ډیر خیال ساته. د حضرت معاویه رضی الله عنه تجزیه روغه ثابته شوه، حضرت عبدالرحمن بن ابی بکر رضی الله عنه وفات شو، او حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه ځان غاړې ته کړو، او حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه یزید د بیعت نه تختیدلو باندې مکه مکرمه کې د خپل خلافت اعلان وکړو، کله چې حضرت حسین رضی الله عنه کربلا په میدان کې شهید کړی شو، شامي فوځیانو د مدینې محاصره وکړه، او غټ چور چپاؤ یې وکړو، دحره واقعه او داحجار الزیت په شان خونړۍ واقعې وشوي، کله چې د مدینې د تقدس لحاظ ونه ساتلی شو، نو د مسلم بن عقبه په مشرۍ کې یزید دغه لښکر مکې مکرمې اړخ ته روان کړو، دې لپاره چې عبدالله بن زبیر رضی الله عنه ته ماتې ورکړي، مسلم بن عقبه الله هلاک کړو، دهغه په ځاې حصین بن نمیر امیر جوړ کړی شو، هغه د مکې محاصره وکړه، او د عبدالله بن زبیر رضی الله عنه په خلاف باندې یې په حرم شریف کې جنګ شروع کړو. په بیت الله باندې کاڼې وورولی شو. د مکې خلکو ډیر مشقت برداشت کړو، چې په دې کې غیر متوقع توګه باندې حضرت یزید وفات شو. د دې وجې نه حصین بن نمیر محاصره ختمه کړه او بیرته لاړو. د دېنه وروسته د حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه خلافت فراخه شو. او مکه، مدینه او حجاز مقدس او مصر او د عراق په ټولو علاقو باندې دهغه حکومت قائم شو. د یزید ځوې چې دهغه نوم معاویه ؤ، دوه میاشتې حکومت یې وکړو او بیا هغه هم وفات شو. د هغه نه وروسته تقریبًا په ټوله اسلامي نړۍ باندې د حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه حکومت شو. خو شپږ او ه میاشتې وروسته مروان بن حکم په شام باندې قبضه وکړه، او په دمشق کې یې د خپل خلافت اعلان وکړو. او د حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه مقابلې ته ودریدلو. د شام نه وروسته عراق او مصر هم د عبدالله بن زبیر رضی الله عنه لاس نه ووتل. کله چې مروان بن حکم وفات شو نو دهغه ځوې عبدالملک بن مروان تخت باندې کیناستلو، هغه په خپل جنګي قوت او طاقت سره عبدالله بن زبیر رضی الله عنه لاس نه ټولې علاقې ازادې کړې. او په آخر کې حجاج بن یوسف یې د عبدالله بن زبیر رضی الله عنه مقابلې لپاره مکې اړخ ته ولیږلو. حجاج بن یوسف د مکې محاصره وکړه او جبل ابو قبیس باندې منجنیق نصب کولو سره یې په بیت الله باندې کاڼې ورول شروع کړل. حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه په بیت الله کې محاصره پاتې ؤ. په آخر کې هغه د جنګ لپاره میدان ته راووتلو. او په ډیره مړانه سره یې د حجاج مقابله وکړه. خو آخر کې په ۷۳ ھ کې د حجاج د لاسه شهید شو. د ده د خلافت زمانه شپږ کاله وه. په دې حدیث کې شاه ولی الله رحمه الله د قول مطابق د واقعه احلاس مصداق هم دا ټول تفصیل دی. چې اوړد دی. یعنې د ټاټ په شان نختونکې فتنه مراد ده.

**د فتنه السراء مصداق**: ثم فتنة السراء: سراء عیش او تنعم او ډیر مال او خوشحالۍ ته وایي. دا فتنه هم په دغه توګه د ډیرو مالونو او عیش او تنعم د وجې نه راغلې وه. ځکه د دې نوم سراء کیخودلی شو. ځینو شارحینو دا د

سرور نه ده اخستلي. بلکې د پټوالي نه یې اخستي ده. یعنې دا یو سازشي فتنه وه. چې په ظاهره باندې دسادات او اهل بیت د ملاتړ په نوم باندې وه. خو دننه د اسلام بیخ کنی باندې بنا وه. چې د مختار ثقفي په شکل کې وه. دا مطلب ډیر ښه دی. حضرت شاه ولی الله رحمه الله د دې فتنې مصداق مختار بن عبید ثقفي ګرځولی دی. دا سړی په شیعان علی کې ؤ. د کوفې خلکو چې کله د حضرت حسین رضي الله عنه سره بیوفایي وکړه او هغه په کربلا کې شهید کړی شو. نو دغه سړې د کربلا د واقعې نه فائده اخستلو په غرض سره د قاتلین حسین رضي الله عنه د انتقام اخستلو اعلان وکړو. مسلم بن عقیل به د دغه سړي کور ته تلو راتلو. دهغه نه یې هم تائید ترلاسه کړو. دغه شان د حضرت علی رضي الله عنه مشهور ځوې محمد بن حنفیه نه یې هم تائید ترلاسه کړو. دلته په کوفه کې د توابین په نوم یو جماعت جوړ شوی ؤ. چې د هغې مقصد دا ؤ چې مونږ د حضرت حسین رضي الله عنه سره بیوفایي وکړه، وس مونږ توبه وباسو. او د حسین رضي الله عنه قاتلانو نه به بدل اخلو. مختار بن عبید ثقفي په ډیره چالاکۍ سره د دغه خلکو نه هم تائید ترلاسه کړو. او پورا جماعت یې جوړ کړو. مختار ثقفي څو دروغژنې دعوې هم وکړې. چې په هغې باندې د کوفې والي هغه ونیول، او په محبس (جیل) کې یې واچولو. خو د حضرت ابن عمر رضي الله عنه په سفارش باندې د محبس نه ازاد شو. کله چې دا سړی د محبس نه راخلاص شو نو د ده قوت نور هم ډیر شو، توابینو د جماعت سره د ده رابطې وې. هغه یې منظم کړل، او خپل ځان یې سید او آل رسول وبللو. بلکې د نبوت دعوی یې هم وکړه. وس د علاقې د والي د قابو نه دا سړی ووتلو. او د کوفې والي د ده سره جنګ وکړو. او سرکاري فوځونو ته یې شکست ورکولو باندې په کوفه قبضه وکړه. د کوفې بیګناه خلک یې په بیدردۍ سره ووژل، چا چې هم مخالفت وکړو، هغه یې ووژلو. تردې چې حضرت عبدالله بن زبیر رضي الله عنه خپل وړور مصعب بن زبیر رضي الله عنه بصري والي وټاکلو او د مختار د ماتونې لپاره یې ولیږلو. هغه په راتګ سره مختار ثقفي ونیولو، دغه شان د ده فتنه ختمه شوه. په دې حدیث کې فتنه سراء نه د مختار ثقفي هم دا فتنه مراد ده.

**دخنها:** یعنې د دې فتنې راپارونکی او د دې راوچتونکی به یو داسې سړی وي چې هغه به خپل ځان ته سید او آل رسول ووایي، خو دهغه به زما سره هیڅ تعلق نوي. زما دوستان خو پرهزګار دي. ځینو علماؤ د فتنة السراء مصداق شریف مکه او انګریزان ګرځولي دي. چې په هغې کې د سازش د لاندې انګریزانو د ترکانو خلافت ختم کړو. انګریزانو به شریف حسین مکه ته هره میاشت پنځه لکه پونډه ورکول. او آل سعود عبدالعزیز رحمه الله ته به یې د میاشتې دوه لکه د برطانیه پونډونه ورکول. او دا دوه دواړه به یې د عربو په جزیره کې جنګولي. شریف مکه نه وروسته دهغه یو نالائقه ځوې په تخت کیناستلو، چې هغه په دې حدیث کې کضلع علی ورک په نوم سره یاد کړی شوی دی. ده نه هیڅ هم ونشو، او د ترکانو خلافت د برطانیې حکومت ګوزار کړو، او سازش یې مکمل شو. (مرقات ۹/۲۸۵)

**د مروان بن حکم خبره: ثم یصطلح الناس:** یعنې د دې فتنو نه وروسته به خلک د دیو داسې سړي

په لاس باندې صلاح وکړي چې هغه به خپله نابائيدار وي. بلکه د پوختې د پاسه چې پيږ ورون سپور کړی شوی وي. حضرت شاه ولی الله رحمه الله فرمايي چې د دې کمزورې سړې نه مراد مروان بن الحکم دی. اګرکه د مختار بن عبيد ثقفی د فتنې نه مخکې مروان مړ شوی ؤ. خو د دې سازشونو ابتداء هغه وخت شوې وه کله چې مروان بن الحکم د عبد الله بن زبير رضي الله عنه په مقابله کې په شام کې د خپل خلافت اعلان وکړو. نو د جملې معترضې په توګه باندې که د مروان بن الحکم تذکره د دې حديث نه څه مخکې يا وروسته راغلې ده نو په دې کې هيڅ مضائقه نشته دی. شاه صاحب د دې جملې نه مروان بن الحکم مراد اخستلی دی. دې سړې نه پخه رايه لرله، نه په ده کې څه تدبير ؤ، نه په ده کې د فيصلې قوت ؤ بلکې غير مستقل مزاج د کمزورې رايه مالک ؤ، د دې کمزورې تشبيه په دې حديث کې ورکړی شويده. چې ګويا مضبوط او څرب ورون په کمزورې پوختې باندې سپور کړی شويدی. ګويا چې د بيزې په خپو باندې ميخه ولاړه ده. د دې سړې ښې لاس او د ټولو فتنو جرړه عبيدالله بن زياد ؤ. خلکو په ده باندې صلح کولو سره د ده بيعت وکړو او ده د حضرت ابن زبير رضي الله عنه په خلاف محاذ برسيره کړو. دغه شان په دې امت کې د دې خلکو د وجې نه غټې غټې فتنې جوړې شوې.

**بغداد کې د تاتاريانو فتنه : ثم فتنة الدهيماء : دُهيماء د دَهيماء تصغير دی.** چې د بدې او سپکوالې لپاره راځي، ده تور ته وايي. **اى الفتنة العظماء والطامة العمياء** يعنې په تورو وريځو باندې مشتمله عظيم الشان فتنه **وقيل المراد بالدهيماء الداهية ومن السماء الداهية دُهيم.** (مرقات ۹/۲۸۶)

بهرحال د دې فتنې نه يو تور درون آسمانې مصيبت مراد دی. وس دا خبره چې د دې فتنې مصداق کومه واقعه ده. نو حضرت شاه ولی الله رحمه الله د دې په اړه فرمايي چې دا په بغداد باندې ذ تاتاريانو بريدونه عام خونړيتوب فتنه ده. په دې فتنې سره اسلامې هيواد بغداد او دهغې ښارونه تاتاريانو برباد کړل. او په تور طوفان باندې يې د مسلمانانو قتل عام وکړو. د دې تفصيل دا دی چې ۷۰۰ ه په مينځ کې د بنو عباس آخرې خليفه مستعصم بالله د بغداد خليفه شو. دا سړی غير مدبر هم ؤ او د هيواد امورو چلولو کې هم نالائقه شهزاده.. د ده يو وزير ؤ چې دهغه نوم علقمې ؤ. چې هغه سخت غالې متعصب علوی شيعه ؤ. هغه د مردارې عقيدې او باطنې خبثاثت د وجې نه وغوختل چې په بغداد باندې د عباسيانو د خلافت په ځاې باندې د علويانو حکومت راشي. د دې منصوبې لره کامياب جوړولو لپاره يې د ټولو نه مخکې د تاتارايانو سره اړيکه ونيوله او د چنګيز خان لمسي هلاکو خان ته يې بغداد باندې د بريد کولو دعوت ورکړو، هلاکو خان د بغداد د خلکو د

شجاعت او اسلامي خلافت نه يريدلو. خو وزير علقمي رافضي په ډيره چالاکۍ سره د بغداد نه اسلامي فوځونه يو خوا او بل خوا وليږل. او بغداد د عسکري قوت نه خالي شو. د دېنه وروسته ټول صورت حال ويلو باندې شيعه وزير علقمي يو ځل بيا تاتارايانو ته بغداد باندې د بريد کولو بلنه ورکړه. دلته د بغداد نه په سوؤنو شيعګانو هلاکو خان ته خطونه وليکل چې ته سمدستې بريد وکړه ځکه چې زمونږ په کتابونو کې يې ليکلي دي چې يو تاتاري باچا به په عراق باندې قبضه وکړي، زمونږ خيال دی چې هغه ته يې. لهذا ژر بريد وکړه. هلته د هلاکو خان په حلقه کې يو مشهور هيجړا (نربنځی) رافضي نصيرالدين طوسي ؤ، هغه هم هلاکو خان په بغداد باندې د بريد کولو لپاره راپارولو. دهغه او د علقمي خيال ؤ چې کله د بغداد نه اسلامي خلافت ختم شي نو دلته به زمونږ علوي رياست قائم شي. بهرحال هلاکو خان ته ډاډ په لاس ورغلو. او هغه په بغداد باندې د بريد کولو اراده وکړه. خو هغه مخکې خپله اولنۍ فوځې دسته وليږله او بغداد باندې يې بريد وکړو چې هغه کامياب شو. د دېنه وروسته هلاکو خان خپل غټ فوځ په بغداد باندې راوخيژولو. محاصره هم سخته وه او دهغوې مقابله هم سخته وه. شيعګانو دننه د بغداد نه مسلسل هلاکو خان ته خبرونه ورکول. يعنې هغوې دننه د جاسوسۍ محاذ مضبوط ساتلی ؤ. رافضي وزير علقمي ملعون عباسي خليفه مستعصم بالله ته وويل چې ته د هلاکو خان سره مذاکرات وکړه او د بغداد ښار نه بيرون د هلاکو خان سره ملاقات هم وکړه. دا ډيره ضروري ده هغه خلک ستا انتظار کوي. او ستا به اکرام وکړي. نو د مسلمانانو باچا چې کله د بغداد نه بيرون ووتلو او د هلاکو خان سره يې وکتل نو هغه وويل چې ته خو يوا ځې، دا اوږده مذاکرات دي. په دې کې د مشرانو علماؤ او د قوم سردارانو او د فوځ قومندانانو ګډون هم ضروري دی. ته هغه ټول راوغواړه. نو دې غير مدبر نادان باچا چې کله هغه ټول راغوختل نو هلاکو خان ټول د باچا په مخکې ووژل. او بيا يې خليفه ته وويل چې بغداد ښار ته پيغام وليږه چې هغوې ټول وسله کيږدي، او ښار په خالي کولو سره دې بيرون راووځي. نو دې محبوس نالائق خليفه دا هم وکړل، د ده په پيغام باندې لاکھونه خلک بيرون راوتل او تاتارايانو هغه وژل. د اينو د ډيروالي د وجې نه ولي وبهيدلي. او د دجله سيند اوبه د اينو په شان سرې وبهيدلي. د دېنه وروسته تاتارايان بغداد ښار ته بغير د څه مقابلې نه ننوتل. ښځو او بوډاګانو په سرونو باندې قرآنونه کيخودلو سره امان وغوختلو، خو تاتارايانو هيڅ ته ونه کتل بلکې ټول يې ووژل. نو تهه خانو او کوهيان (څاه) کې يو څو کسان بچ شول. باقي ټول مخلوق ووژلی شو.

په دويمه ورځ صفر ۶۵۶ ھ کې هلاکو خان د عباسي خليفه سره په بغداد کې عام دربار ولګولو او د باچا نه يې د خزانو ټولې کنجيانې غوختلو باندې ټولې خزانې لوټ کړې او بيا يې خليفه يو کال په کوټکۍ کې وړې تکې وساتلو. د دينه وروسته هلاکو خان ته محقق طوسي ابلس ... علقمي،

شیطان وویل چې د مسلمانانو د خلیفه په دې پلیته اینه باندې خپله تورا مه پلیتوه،بلکې په یوه بوجۍ کې یې بندولو باندې په لغتو وهلو سره مړ کړه.هلاکو خان وویل چې دا کار ته خپله وکړه. دا تا ته سپارلی دی. نو علقمی رافضی خپل محسن باچا مستعصم بالله په بورۍ کې بند کړو و په ستنه پسې یط وتړلو او په لغتو باندې یې ووژلو. او بیا یې د تاتارایانو د اسونو د خپو لاندې ګوزار کړو . اسونو هغه ذره ذره کړو.علقمی شیطان دا کتل او خوشحالیدلو . په دې سره د خلافت عباسیه دور ختم شو، او د بنو عباس آخري خلیفه ته ګور و کفن هم نصیب نشو.د دېنه وروسته هلاکو خان اسلامې کتاب خانو ته مخه وکړه او عظیم علمې دولت ته یې اور ولګولو. او کتابونه یې په دجله کې وبهول. وس د دجلې اوبه د سرې اینې په ځای باندې تور طوفان په شان بهیدلې. او ترڅو ورځو پورې دا مقدسې پانې د دجلې د چپو سره بهیدلې. په دې تباه کونکې حادثه بغداد او د دې چاپیریال تعداد یو کروړ شپږ لکه ویلی شویدی.د شیعه په شرارت باندې امریکې چې کله صدر صدام حسین ته پهانسې وکړه نو شیعګانو د خوشحالۍ نه بیرون په سرک باندې ګډاګانې کولې. متبهایان یې تقسیمول. های ارمان! چې دنیا ته د شیعه د خباثتونو اندازه وشي چې دا د باطن مردار چې څنګه پرون فسادیان ؤ، هغه شان نن هم دي.علماؤ لیکلي دي چې د مسلمانانو د اکثر خلافتونو سقوط د روافضو د لاسه شویدی.شاه انور شاه کاشمیر فیض الباری کې لیکي: **واکثر تخریب الخلافة الاسلامیة علی ایدی هؤلاء الروافض.** بهرحال علقمی ملعون چې د کوم مقصد لپاره دا لویې خیانت وکړو . هغه مقصد علوی ریاست جوړول ؤ ، خو هغه په دې کې کامیاب نشو. هغه هلاکو خان ته ډیر منت زارې وکړه خو هغه یوه وانه وریدله او په بغداد باندې یې خپل کسان ټاکلو باندې علقمی او طوسی ورټل.علقمی رافضې به د غلامانو په شان د تاتاریانو بوټان سمول.[۲] او بیا په دغه غم کې مردار شو .دا ده دهیماء د دهیماء د واقعې تفصیل چې د دې اړخ ته په حدیث کې اشاره شویده.

| ﴿۲۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «وَيْلٌ لِلْعَرَبِ مِنْ شَرٍّ |
| --- |
| او حضرت ابو هریره رضی الله عنه روایت دی چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: افسوس او بدنصیبی د عربو! |
| قَدِ اقْتَرَبَ أَفْلَحَ مَنْ كَفَّ يَدَهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[۱] |
| چې بدې نژدې راغلې ده.په دې فتنه کې به هغه سړی نجات او فلاح والا وي چا چې خپل لاسونه ایسار کړل. |

[۱] أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳/۱۱رقم الحدیث ۷۰۵۹ ومسلم في صحيحه ۴/۲۲۰۷ رقم الحدیث (۲۸۸۰-۱)

﴿۲۷﴾ وَعَنِ الْمِقْدَادِ بن الْأسود قَالَ : سَمِعْتُ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَقُولُ :
او حضرت مقداد بن اسود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوريدلي دي چې

« إِنَّ السَّعِيدَ لَمَنْ جُنِّبَ الْفِتَنَ إِنَّ السَّعِيدَ لَمَنْ
يقينًا نيک بخته هغه سړی دی چې هغه د فتنو نه محفوظ وساتلی شو ، او يقينًا نيک بخته هغه سړی دی

جُنِّبَ الْفِتَنَ إِنَّ السَّعِيدَ لَمَنْ جُنِّبَ
چې هغه د فتنو نه محفوظ وساتلی شو ، يقينًا نيک بخته هغه سړی دی چې هغه د فتنو نه محفوظ وساتلی شو ، او

الْفِتَنَ وَلَمَنِ ابْتُلِيَ
يقينًا نيک بخته هغه سړی هم دی چې په فتنه کې اخته کړی شو ليکن هغه صبر او زغم لمن ونيوله. مطلب دا دی

فَصَبَرَ فَوَاهًا » . رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]
چې د افسوس وړ هغه سړی دی چې نه خو هغه د فتنو نه محفوظ وساتلی شو او نه هغه صبر او زغم اختيار کړو .

﴿۲۸﴾ وَ عَنْ ثَوْبَانَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « إِذَا وُضِعَ السَّيْفُ فِي أُمَّتِي
او حضرت ثوبان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل : کله چې زما په امت کې تورا وچلولی

لَمْ يُرْفَعْ عَنْهَا إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَلَا تَقُومُ السَّاعَةُ
شي نو بيا به تر قيامته پورې د امت خلک د قتل او قتال نه منع نشي ، او تر هغه وخته پورې به قيامت نه راځي

حَتَّى تَلْحَقَ قَبَائِلُ مِنْ أُمَّتِي بِالْمُشْرِكِينَ وَحَتَّى
تر څو چې زما د امت ځينې قبيلې د مشرکانو سره يو ځای نشي ، او تر هغه وخته پورې به قيامت نه راځي چې

تَعْبُدَ قَبَائِلُ مِنْ أُمَّتِي الْأَوْثَانَ وَإِنَّهُ سَيَكُونُ فِي أُمَّتِي كَذَّابُونَ ثَلَاثُونَ
زما د امت ځينې قبيلې د بتانو عبادت ونکړي ، او حقيقت دا دی چې زما په امت کې به ديرش دروغژن

كُلُّهُمْ يَزْعُمُ أَنَّهُ نَبِيُّ الله
(يعنې د نبوت دعوی کونکي) بد ظاهر شي . په هغوی کې به هر يو دا ګمان کوي چې هغه دا خدای نبی دی .

وَأَنَا خَاتَمُ النَّبِيِّينَ لَا نَبِيَّ بَعْدِي وَلَا تَزَالُ طَائِفَةٌ مِنْ أُمَّتِي
او حال دا دی چې زه خاتم النبيين يم . زما نه وروسته به هيڅ نبی نوي . او زما د امت نه به يو جماعت هميشه

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۲/۴۶۰ رقم الحديث ۴۲۶۳.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| عَلَى | الْحَقِّ | ظَاهِرِينَ | لَا | يَضُرُّهُمْ | مَنْ | خَالَفَهُمْ |
| په حق باندې ثابت قدم ولاړ وي. د دې جماعت هيڅ مخالف او بد خواه به دې جماعت ته څه نقصان نشي رسولی. | | | | | | |
| حَتَّى يَأْتِيَ أَمْرُ اللهِ » رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[۱] | | | | | | |
| تردې چې د خدای حکم راشي. | | | | | | |

## د عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د شهادت واقعه، جنګ جمل او صفين

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۹﴾ وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: | | | | | | | | |
| او حضرت عبدالله بن مسعو د رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کوي چې نبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: | | | | | | | | |
| «تَدُورُ | رَحَى | الْإِسْلَامِ | لِخَمْسٍ | وَثَلَاثِينَ | أَوْ سِتٍّ | وَثَلَاثِينَ | أَوْ سَبْعٍ | وَثَلَاثِينَ |
| د اسلام ميچن به پنځه دیرش یا شپږ دیرش یا اووه دیرش کاله پورې ګرځي. بیا که خلک هلاکیږي نو په لاره باندې د | | | | | | | | |
| فَإِنْ | يَهْلِكُوا | فَسَبِيلُ | مَنْ | هَلَكَ | | | | |
| تګ د جې نه به هلاکیږي، چې په هغې باندې په مزل کولو سره مخکنې خلک هلاک شوي ؤ. او که د | | | | | | | | |
| وَ إِنْ | يَقُمْ | لَهُمْ | دِينُهُمْ | يَقُمْ | لَهُمْ | سَبْعِينَ | عَامًا » . | |
| دوې د دین نظام کامل پاتې ؤ نو د هغوې د دیني نظام تکمیل او پاتې کیدل به اویا کاله پورې وي. | | | | | | | | |
| قُلْتُ: | أَمِمَّا | بَقِيَ | أَوْ | مِمَّا | مَضَى؟ | | | |
| (حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې) ما پوښتنه وکړه چې دا اویا کاله به په پاتې کې وي یا د دې زمانې سره به وي | | | | | | | | |
| قَالَ: « مِمَّا مَضَى » . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[۲] | | | | | | | | |
| کومه چې تیره شوه؟ نبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: د اویا کاله زمانه د دې زمانې سره ده، کومه چې تیره شوه. | | | | | | | | |

**توضیح: تدور رحی الاسلام:** یعني د اسلام میچن به ۳۵ بلکې ۳۶ بلکې ۳۷ هجرې پورې په صحیح توګه باندې ګرځیږي. حضرت شاه ولی الله رحمه الله دا حدیث داسې ښودلی دی، فرمایي چې نبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: د هجرت د زمانې نه وروسته چې په اسلام کې کومه مضبوطتیا او استحکام راغلی دی، هغه به ۳۵ او ۳۶ او ۳۷ کالو پورې روان وي. بیا به د اسلام په کړی کې څه

---

([۱])اخرجه ابوداود في السنن ۴/۴۵۱ رقم الحديث ۴۲۵۲ والترمذي في السنن ۴/۴۲۴ رقم الحديث ۲۲۰۲.

([۲])اخرجه ابوداود في السنن ۴/۴۵۳ رقم الحديث ۴۲۵۴ واحمد في المسند ۱/۳۹۰.

اختلاف پیدا شي.
نو د دې اختلاف او خرابۍ ابتداء په ۳۵ھ کې وشوه. کله چې د حضرت عثمان رضي الله عنه شهادت واقعه پېښه شوه. بیا په ۳۶ ھ کې نور اختلاف پیدا شو. چې حضرت عائشه رضي الله عنها او حضرت علي رضي الله عنه ترمینځ جنګ وشو. چې هغې ته جنګ جمل وایي. بیا د دېنه وروسته د اسلام په استحکام کې نور خرابوالی پیدا شو. چې هغه بیخي بې قابو شو. او چې هغې اسلام ته ډېر غټ نقصان ورکړو. هغه ۳۷ ھ کې حضرت علي رضي الله عنه او د حضرت معاویه رضي الله عنه ترمینځ د جنګ صفین حادثه وه. بیا نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې د دې خرابوالې نه وروسته به خلک منع نشي او دغه شان د هلاکت په لاره روان شو.
خلافت مغلوب پاتې شو، او بغاوت غالب پاتې شو، نو دا خلک هم د نورو هلاک شوؤ قومونو په شان به هلاک شي. خو که د خلکو خلافت قائم شو او باغیانو ته د بغاوت موقع په لاس ورنغله نو د مسلمانانو ملي نظام تر راتلونکي زمانې پورې به په ډېره ښایسته طریقه باندې قائم وي. چې هغه به تر اویا کاله پورې جارې وي. (مرقات ۹/۲۹۱)
حضرت ابن مسعود رضي الله عنه پوښتنه وکړه چې د سر نه به اویا کاله شمارل کیږي یا پخوانې ۳۷ کالو سره به اویا کاله مراد وي؟ نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې ۳۷ کالو سره اویا کاله مراد دي.
**د حضرت عثمان رضي الله عنه شهادت**: په دې حدیث دې حدیث کې درې غټو حادثو ته اشاره شوې ده. په دې کې اوله حادثه د حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه شهادت ده. د حضرت عثمان رضي الله عنه خلافت اولنې شپږ کاله پورې په ډېره ښایسته طریقه باندې روان ؤ. خو د ده په طبیعت کې نرمي وه. ده خپلو څو خپلوانو ته سرکارې وظیفې (عهدې) ورکړې چې د شریعت د مخې جائز ؤ. ځکه چې یو تقوی ده او بله فتوی ده. شیخینو په تقوی باندې عمل وکړو او هیڅ خپلوان ته یې وظیفه ورنه کړه. او حضرت عثمان رضي الله عنه او حضرت علي رضي الله عنه په فتوی باندې عمل وکړو. او لائق خپلوانو ته یې وظیفې ورکړې. په دې باندې خلکو شور جوړ کړو. او په آخرې شپږ کالو کې څه اختلاف شروع شو.
د دې بنیادي وجه دا شوه چې د صنعاء یمن یو وسیدونکی عبدالله بن سبا یهودي ؤ، هغه وکتل چې اسلام په ټوله نړۍ باندې غلبه ترلاسه کوي، روان دی. نو د فساد او نفاق لپاره دا سړی مسلمان شو، او مدینې ته راغلو، دلته به یې د حضرت عثمان رضي الله عنه او د هغه د والیانو په خلاف بېکاره خبرې کولې. خو په مدینه کې هغه ته پرمختګ ترلاسه نشو. نو دا بصرې ته لاړو، دهغه ځاې نه د بصرې والي دا وزغلولو، نو دا کوفې ته راغلو. خپل ځان یې د اهل بیتو خیرخواه ثابت کړو. څه خلک د ده سره شول، خو هلته هم ناکامه شو، دهغه ځاې نه دا سړی دمشق ته لاړو، هلته هم ناکامه شو، بیا دهغه ځاې نه مصر ته لاړو. د مصر خلکو دهغه خبره ومنله او ډېر خلک دهغه نه ګیرچاپیره راغونډ شول.

نو د هغه خلیفه عثمان رضي الله عنه او اسلامي خلافت په خلاف سازشونه شروع کړل. د حضرت عثمان رضي الله عنه والیانو په خلاف به یې د دروغو شکایتونه (عارضي) جمع کولي او په عامو خلکو کې به یې خپرولي. خلاصه دا چې دې خلکو حضرت عثمان رضي الله عنه بدګمانه کړو او دهغه ځای نه ده د حضرت عثمان رضي الله عنه وژنې لپاره یوه ډله تیارولو باندې مدینې ته ولیږله. دا ې بلوایان مدینې ته په راتګ باندې په بې ادبۍ شروع شول. حضرت علي رضي الله عنه او داسې نورو صحابؤ نه یې هم د حضرت عثمان رضي الله عنه په خلاف باندې مرسته وغوختله خو هغوې انکار وکړو.

د دې فسادیانو یوه غوختنه وه چې د مصر والي په لیرې کولو سره دې محمد بن ابی بکر والي کړی شي. حضرت عثمان رضي الله عنه هغې لپاره فرمان ولیږلو. دا خلک لاړل. او معامله ختمه شوه. خو مروان بن حکم سمدستې د مصر د والي په نوم یو خط ولیکلو چې څنګه محمد بن ابی بکر راشي نو هغه ووژنه. خط باندې د حضرت عثمان رضي الله عنه ګوتمې مهر ؤ. اس هم حضرت عثمان رضي الله عنهٔ او غلام هم د حضرت عثمان رضي الله عنهٔ. دا سړی د مصر په اړخ باندې په منډه سره روان ؤ. د محمد بن ابی بکر شک شو او غلام یې ونیول او تلاشي یې ورله واخستله. خط راووتلو. محمد بن ابی بکر وویل چې یو اړخ ته عثمان رضي الله عنهما والي جوړوي او بل اړخ ته و وژلو حکم ورکوي. لهذا خط او غلام سره بلوایان بیا مدینې ته راغلل. او د حضرت عثمان رضي الله عنه نه یې پوښتنه وکړه چې دا غلام د چا دی. ده وفرمایل: زما دی. هغوې وویل: اس د چا دی؟ ده وویل: زما دی. هغوې وویل: مهر د چا دی؟ ده وویل: زما دی. هغوې وویل: خط د چا دی؟ ده وفرمایل: قسم په خدای خط زما نه دی. د خط نمونې چې وکتلی شوي نو معلومه شوه چې مروان بن الحکم خط لیکلی دی.

اوس دې بلوایانو وویل چې مروان مونږ ته وسپاره. عثمان رضي الله عنهٔ فرمایل: زه داسې نشم کولی، بلوایانو د عثمان رضي الله عنه کور محاصره کړو. د مدینې خلکو د مروان په خلاف باندې څه کتل غوختل خو حضرت عثمان رضي الله عنه وژلو هیڅوک قائل نه ؤ. اسلامي فوځونه په سرحدونو باندې ؤ. عام خلک حج ته تللي ؤ. مدینه د بلوایانو په قبضه کې وه. څلویښتو ورځو پورې یې محاصره کړې. او بیا حضرت عثمان رضي الله عنه شهید کړی شو. درې ورځو پورې یې جوسه خخه نکړی شوه. د ډېره وروسته د تدفین عمل وشو. بلوایان د حضرت علي رضي الله عنه په لاس باندې په بیعت کولو مجبور شول. او هغه یې خلیفه جوړ کړو. او دهغه په پناه کې کیناستل. دا واقعه په ۳۵ ه کې پیښنه شوه.

**د جنګ جمل واقعه**: د حضرت علي رضي الله عنه بیعت نه حضرت زبیر رضي الله عنهٔ او حضرت طلحه رضي الله عنه خفه شول. او د مدینې نه مکې ته لاړل. حضرت عائشه رضي الله عنها حج ته تللي وه. هغې چې کله وکتل چې په مدینه کې اختلاف دی. نو مدینې ته د راتګ په ځای باندې یې بصرې ته د تللو فیصله وکړه. حضرت طلحه او زبیر رضي الله عنه هم ورسره بصرې ته لاړل. او غیر ارادې توګه باندې هلته د مسلمانانو یوه لویه غونډه راجمع شوه.

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلافت مركز كوفه جوړه كړه. او د خلكو نه يې د بيعت مطالبه وكړه. خلكو د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د قاتلانو نه د بدل اخستلو غوختنه وكړه. حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې اول تاسو بيعت وكړئ ، زما لاسونه مضبوط كړئ، دې لپاره چې زه په دې بلوايانو باندې برلاسى شم. په دغه توګه باندې د عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او د حضرت على رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فوځونه يو بل ته مخامخ شول.

حضرت قعقاع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مينځ ته په راتګ باندې دواړه په صلح او جوړ جاړې باندې راضي كړل. او فيصله وشوه چې د سبا به د دواړو اړخونو نه دستخطونه كيږي. منافقانو ، مفسدانو او بلوايانو چې كله د صلح اثار وليدل نو د شپې يې د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په فوځونو باندې بريد وكړو. د دې اړخ نه هم د جوابې بريد وكړى شو. او د جنګ جمل په نوم سره يو خونړى جنګ وشو. چې په دې كې د دواړو اړخونو ديارلس زره كسان ووژل شول. په دوې كې عشره مبشره هم دوه صحابه ؤ. د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فوځونه غالبه شول او د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فوځونو ماتې وخوړله. دا واقعه په ۳۶ه كې پيښه شوه. حضرت عائشه په خپله اوښه باندې سپره وه، نو ځكه دا جنګ، د جنګ جمل په نوم سره مشهور شو. په دې جنګ باندې به حضرت على رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عائشه رضى الله عنها تول ژوند ژړل.

**د جنګ صفين واقعه**: د دې جنګ نه چې كله حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فارغه شو نو حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته يې پيغام وليږلو چې زما په لاس باندې بيعت كولو سره د اسلامې خلافت د لاندې راشه. حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د شام والي ؤ. هغه د بيعت لپاره دا شرط كيخودلو چې د عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قاتلانو نه قصاص واخله. مونږ د عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وارثان يو، قصاص زمونږ حق دى. حضرت على رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل: اول تاسو بيعت وكړئ. بيا د قصاص خبره كوو او واليت هم پريږده. حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دواړو خبرو نه انكار وكړو. حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كوفې نه د شام اړخ ته فوځونه روان كړل. يوې مياشتې پورې څه لږ لږ جنګ وشو، خو بيا جنګ ودريدلو، د صلح كوښښ وكړى شو، خو ناكامه شوه.

بيا په اول د صفر ۳۷ هـ كې د فرات سيند په غاړه باندې په مقام صفين كې باقاعده جنګ وشو، د مصالحت د وجې نه د تحكيم واقعه هم پيښه شوه. خو جنګ بند نشو، او يا زره (۷۰۰۰۰) كسان ووژل شو. او د علاقې اكثره برخې د حضرت على رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لاس نه وتلو باندې د حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لاس ته راغلې.

په دې حديث كې دې درې غټو واقعاتو ته اشاره كړى شويده. بهرحال ما چې څه ليكلي د حديث مفهوم ښودنې لپاره مې ليكلي دي، دا مشاجرات صحابه دي په دې كې چپ پاتې كيدل د جمهور علماؤ مسلک دى. دغه زما هم مسلک دى چې ډير غوره دى خو د دې حديث تاريخې اشارې ښودل ضرورې ؤ نو ځكه مې څه وليكل، الله تعالى دې زما د قلم حفاظت وكړي.

# الْفَصْلُ الثَّالِث

﴿۳۰﴾ عَنْ أَبِي واقِدٍ اللَّيْثِيِّ: أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا خَرَجَ إِلَى غَزْوَةِ حُنَيْنٍ

حضرت ابو واقد ليثي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې كله د غزوه حنين لپاره روان شو ،

مَرَّ بِشَجَرَةٍ لِلْمُشْرِكِينَ كَانُوا

نو د نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تيريدل د مشركانو په يوه ونه باندې وشو . چې هغې ته هغوې (مشركانو) خپله وسله زوړندوله.او د

يُعَلِّقُونَ عَلَيْهَا أَسْلِحَتَهُمْ

عبادت په توګه باندې به يې د هغې نه ګير چاپيره طوافونه كول. او د تعظيم لپاره دې ارخ ته به يې مخ كولو سره كيناستل

يُقَالُ لَهَا: ذَاتُ أَنْوَاطٍ.

د دې بوټي نوم ذات انواط ؤ .(په اسلام کې داخل شوؤ نوؤ مسلمانانو دې بوټي په کتلو باندې) نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

فَقَالُوا: يَا رَسُولَ الله اجْعَلْ لَنَا ذَاتَ أَنْوَاطٍ

ته وويل چې زمونږ لپاره هم يو داسې بوټي وټاکه چې مونږ هم هغې ته خپلې وسلې زوړندؤ او هغې ته ذات انواط

كَمَا لَهُمْ ذَاتُ أَنْوَاطٍ فَقَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

وايو .لكه مشركانو چې د ځان لپاره ذات انواط جوړ كړيدی، او دېته وسلې زوړندوي.نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې

«سُبْحَانَ الله هَذَا كَمَا قَالَ قَوْمُ مُوسَى

سبحان الله! تاسو دا خبره داسې كوئ لكه څنګه چې د موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ قوم كړې وه، چې زمونږ لپاره هم

(اجْعَل لنا إِلَهًا كَمَا لَهُم آلِهَةٌ)

يو داسې معبود جوړ كړه، (لكه څنګه چې د كافرانو معبودان دي) لكه څنګه چې هغه كافر د خپلو بتانو عبادت كوي د غه شان

وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَتَرْكَبُنَّ

مونږ به هم د خپل بت عبادت كوؤ .بيا نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خبردارۍ په توګه باندې وفرمايل: چې قسم دی په هغه ذات باندې چې

سُنَنَ مَنْ كَانَ قبلكُمْ » . رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ [1]

د چا په لاس کې زما ځان دی، تاسو به د هغه خلكو په لاره باندې تګ شروع كړئ، چې هغه ستاسو نه مخکې تير شويدي.

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه رقم الحديث ۷۳۱۹ وأخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۱۲ رقم الحديث ۲۱۸۰.

## د خپل مینځې جنګونو سپیره والې

| |
|---|
| ﴿۳۱﴾ وَ عَنِ ابْنِ الْمسيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : وَقَعَتِ الْفِتْنَةُ الْأُولَى |
| او حضرت ابن مسیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې هغه وفرمایل: کله چې اوله فتنه واقع شوه یعنې د |
| يَعْنِي مَقْتَلَ عُثْمَانَ فَلَمْ يَبْقَ مِنْ أَصْحَابِ بَدْرٍ |
| حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شهادت واقعه پیښه شوه نو په غزوه بدر کې شریک شوؤ صحابؤ کې هیڅوک هم پاتې نشو |
| أَحَدٌ ثُمَّ وَقَعَتِ الْفِتْنَةُ الثَّانِيَةُ يَعْنِي الْحَرَّةَ فَلَمْ يَبْقَ مِنْ أَصْحَابِ |
| بیا چې کله دویمه واقعه پیښه شوه، یعنې د غزوه حره واقعه پیښه شوه نو په هغه صحابؤ کې هیڅوک پاتې |
| الْحُدَيْبِيَةِ أَحَدٌ ثُمَّ وَقَعَتِ الْفِتْنَةُ الثَّالِثَةُ |
| نشو چې په صلح حدیبیه کې شریک شوي ؤ او بیا چې کله دریمه واقعه پیښه شوه نو دا په داسې حالت کې |
| فَلَمْ تَرْتَفِعْ وَ بِالنَّاسِ طَبَاخٌ . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ [1] |
| کې نه ؤ ختم شوی چې په خلکو کې قوت او طاقت پاتې وي. |

**توضیح: طباخ:** قوت او طاقت ، عقل او مضبوطتیا ته طباخ وایي. دلته عقلمنده ، هوښیاره طبقې ختمیدلو طرف ته اشاره ده. یعنې د دې دریمې فتنې نه وروسته په دنیا باندې یو صحابي هم پاتې نه ؤ. مطلب دا دی چې د خپل مینځې جنګونو سپیره والی وګورئ چې اوله فتنه د شهادت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پیښه شوه، نو په جنګ بدر کې شریک شوؤ صحابؤ کې هیڅوک پاتې نه شو، او کله چې د یزید په دور کې د حره واقعه وشوه نو د بیعت رضوان په مبارک صحابؤ کې هیڅوک پاتې نه شؤ. بیا چې کله دریمه فتنه د حجاج بن یوسف او حضرت عبدالله بن زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پیښه شوه نو په دنیا کې هیڅ صحابي پاتې نه شؤ. د نالائقه حکمرانانو د وجې نه اسلام ته ډیر غټ نقصان ورسیدلو. (مرقات ۹/۲۹۴)

وهل افسد الدین الا الملوك　　　واحبار سوء ورهبانها



---

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۷/۳۲۳ رقم الحديث ۴۰۲۴.

# باب الملاحم
## د سختو جنګونو بیان

قال الله تعالیٰ: ﴿وَاتَّقُوْا فِتْنَةً لَّا تُصِيْبَنَّ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْكُمْ خَآصَّةً﴾ (الانفال:۲۵)

ملاحم د ملحمة جمع ده. او ملحمه قلب او سخت جنګ ته وايي. چې په هغې کې د دواړو ډلو د کسانو غوښې د یو بل سره یو ځاې شي. دغه شان لحمه د ټوټې لاندې باندې ته هم وايي. ځکه چې په قلب جنګ کې خلک خپل مینځ کې سره ګډوډ شي. نو ځکه سخت جنګ او عظیمې حادثې ته ملحمه وايي. د نبي کریم ﷺ په نومونو کې یو الملاحم هم دی. یعنې د سختو جنګونو والا نبی. د کتاب الفتن نه کتاب الملاحم جدا ذکر کړی شویدی. د دې وجه دا ده چې په کتاب الفتن کې دفتنو بیان اجمالي او ابهامي توګه ؤو. خو په ملاحم کې باقاعده تعین دی. دقبیلو نومونه دی. د ځاې ذکر دی، لهذا دا د فتن نه جدا ذکر شویدی. (المرقات ۹/۲۹۴)

**د قیامت نښو ته تفصیلي کتنه**: دلته دا مناسبه معلومیږي چې ترقیامته پورې راتلونکې یو څو اهمو واقعاتو او علاماتو اړخ ته سرسري او اجمالي اشاره اوکړی شي. دې لپاره چې د احادیث و ټولې برخې او ټول اړخونه د لاوستونکو مخې ته راشي. د قیامت نښې په دوه قِسمه دي. (۱) علامات صغری (۲) علامات کبری. د امام مهدی تر ظهور پورې علامات صغری (وړې نښې) دي. د امام مهدی د ظهور نه وروسته نفخ صور پورې دقیامت علامات کبری (غټې نښې) دي. د دې باب په اول حدیث کې د علامات صغری څه بیان موجود دی. او په نورو احادیث و کې هم تفصیل دی. هلته دا هم موجود دي چې په دنیا کې باطلې نظریې به عامې شي. د عیسائیت په ډیرو هیوادونو باندې غلبه شي. بیا څه زمانه وروسته به د ابوسفیان په نوم باندې یو سړی پیدا شي، د ساداتو به قتل عام وکړي. بیا به مسلمان باچا د عیسایانو د یوې ډلې سره صلح وکړي. او د دویمې سره به جنګ کوي. دعیسایانو ډله به هم د مسلمانانو سره یو ځاې کیدلو باندې د عیسایانو سره سخت جنګ کوني. دې ټولو ته به فتح ترلاسه شي. د فتح نه وروسته به عیسایان چیغه ؤوهي چې د صلیب په برکت سره فتح ترلاسه شویده. او مسلمانان به چیغه کړي چې د اسلام او ایمان په برکت سره فتح ترلاسه شویده. نو په دې خبره باندې به خانه جنګې شروع شي، چې په هغې کې به د مسلمانانو باچا شهید شي، د عیسایانو دواړه ډلې به یو شي، او عیسایې حکومت به تر خیبره پورې خپور شي، دغه وخت به خلک د امام مهدی په لټونکې شي. حضرت مهدی به دغه وخت په مدینه کې وی. خو د ځان پټولو په غرض سره به د هغه ځاې نه مکې ته راشي. دې لپاره چې خلک هغه امیر او قائد جوړ نکړي. په دې دوران کې به څه خلک د مهدی کیدلو د دروغو وعدې وکړي. خو بیا به هم مکه مکرمه کې مقام ابراهیم او حجر اسود ترمینځه خلک به مهدی بیامومي. او یوه ډله به د امام مهدی په

لاس باندې بيعت وكړي. د آسمان نه به آواز راشي: **هٰذا خليفة الله المهدى فأستمعوا له واطيعوه.**
د شكل او شباهت په اعتبار سره به حضرت مهدی د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره مشابه وي. د دې نه وروسته به د شام، يمن او حجاز مقدس ابدال او اولياء الله د امام مهدی په لښكر كې ګډون وكړي. د كعبې د خوا نه به خزانې رااويستلى شي او په اسلامي فوځونو باندې به تقسيم كړى شي. تكړه لښكر به تيار كړى شي. د خروج مهدی اوريدلو باندې د خراسان نه به يو سړى د خپل لښكر سره د امام مهدی د مرستې لپاره مكې ته راشي.
د دې سړې نوم به منصور وي ، كله چې دا د خپل فوځ مشر جوړيدلو باندې مكي اړخ ته روان شي،نو په لاره كې به يې د عيسايانو سره جنګ شي ، دا سړى به د عيسايانو نه ځاې پاكولو باندې په مخكې ځي، اهل بيت او د ساداتو دښمن سړى سفيانې به يو غټ لښكر د امام مهدی د مقابلې لپاره وليږي. خو دا لښكر به د مكي او مدينې ترمينځ په زمكه كې خخ شي. فقط دوه كسان په ترېنه بچ شي، يو خو به سفيانې ته لاړ شي او خبر به وركړي، او دويم به حضرت مهدی ته خبر وركړي، حضرت مهدی سره د عربو او عجمو د راغونډيدلو په اوريدلو باندې به عيسايان هم شام او روم نه تكړه لښكر تيارولو باندې د حضرت مهدی د مقابلې لپاره په شام كې راغونډ شي،په رومې فوځ كې به دغه وخت به اتيا (۸۰) بيرغونه وي. او د هر بيرغ لاندې به دولس زره لښكر وي. د لښكر مجموعي شميره به نهه لكه شپيته زره وي. حضرت مهدی به د خپلو لښكرونو سره د مدينې په لاره باندې دمشق ته ورسيږي.او هلته د شام په زمكه باندې به د عيسايانو سره سخت جنګ شروع شي، اسلامي لښكر به په درې برخو باندې تقسيم شي، يوه برخه به ميدان پريخودلو باندې به وتختي، چې د هغوى توبه به نه قبليږي. دويمه برخه به شهيده شي، او دريمه برخه به څلور ورځې پرله پسې جنګ كولو نه وروسته په عيسايانو باندې به غالبه شي، دعيسايانو به قتل عام وشي، او حضرت مهدی به هغوييسې ښه تعاقب(شاته ورپسې كيدل) وكړي.جنګ ختميدلو نه وروسته به امام مهدی په ځپلو كسانو باندې مال غنيمت تقسيم كړي، خو هيڅوک به په مال غنيمت باندې خوشحاله نه وي، ځكه چې داسې به هيڅ كور نه وي چې په هغې كې به يو ګس نه وي شهيد شوي،د ټولې كورنۍ نه به يو سړى پاتې شوى وي، نو هغه به د مال غنيمت سره څه وكړي.حضرت مهدی ب داخلې نظم او ترتيب برابرولو باندې قسطنطنيې اړخ ته مخه وكړي. بحيره روم سره به اويا زره كسان مسلمانان كيدلو باندې اسلامې لښكر كې شريک شي، او بيا به په كشتو كې سپريدلو سره استنبول چې د دې پخوانې نوم قسطنطنيه دى، د ازادولو لپاره به روان شي.د ښار د مضبوط فصيل(ديوال) مخې ته به مسلمانان د تكبير چيغه اوچته كړي، چې د هغې د وجې نه به فصيل مات شي، او مسلمانان به د قسطنطنيه ښار ته ننوځي.د حضرت مهدی د خلافت به دغه وخته پورې اؤوه

کاله پورې شوي وي. چې په دې کې به خبر خپور شي چې دجال راوتلی دی. حضرت مهدی به ژر ژر د شام اړخ ته بیرته راشي. او نهه کسان به د دې خبر د پلټنې (تحقیق) لپاره ولیږي. دا خلک به غوره خلک وي. نبي کریم ﷺ و فرمایل چې زه دغه کسان پیژنم چې د کومې قبیلې خلک دي. او د هغوی د پلارانو نومونه څه دي. او د اسونو رنګونو یې څنګه دي. دا خلک به تحقیق وکړي خو معلومه به شي چې دا د دروغو خبر ؤو او د دجال په اړه باندې دا خبر غلط ؤو. خو څه ډیر وخت به نه وي تیر شوی چې ناڅاپه به د دجال خروج وشي. دجال به د مشرق د اړخ نه راوځي. او د ایران په ښار اصفهان کې به راښکاره کیږي. د اصفهان اویا زره (۷۰۰۰۰) یهود به د هغه سره یو ځای شي. س اول به هغه د نبوت دعوی وکړي . بیا اصفهان ته په راتګ سره به هغه د خدایې دعوی وکړي. د دجال په یو لاس کې به د هغه جنت او بل لاس کې به د هغه دوزخ وي. ټول دنیاوي اسبابو باندې به پورا وي. او د استدراج نه به ښه فائده واخلي. دهغه په ټنه دي باندې به ک ف ر لیکلی شوي وي. چې هغه به مسلمانان ولولي یعنې کافر به لیکلی شوی وي. دهغه سره به غټ استدراج وي. د مخالفینو اوبه ډوډۍ به بند کړي. د خروج دجال نه مخکې درې کلنو کې به قحط راغلی وي. خلک به محتاج وي . دجال به د دې حالت نه ښه فائده واخلي. دهغه سره به د زمکې ټولې خزانې رواني وي. داوستانو باندې به باران کوي او په نه منونکو باندې به هرڅه بند کړي. د دنیا په ډیرو هیوادونو باندې به وګرځي خو مکې او مدینې ته به نشي تللی ، د هغه ځای نه به یې ملائکې وزغلوي. دا به بیا د شام اړخ ته مخه وکړي. هلته به امام مهدی په جنګې تیاریانو کې مصروفه وي. د مازیګر اذان به شوی وي چې حضرت عیسی به د دوه ملائکو په اوږو باندې لاس ایخی د دد آسمان نه د دمشق د جامع مسجد په مینار باندې به راښکاره شي، او پوړۍ (اندرپایه) راغوښتلو باندې به راکوز شي. او بیا به د حضرت مهدی سره ملاقات وشي، حضرت مهدی به هغه ته د جماعت لمونځ کولو او فوځې مشري ورکولو وینا وکړي، خو هغه به انکار وکړي او وبه وایي چې امامت به د دې امت په لاس کې وي ، زه فقط د دجال د وژلو لپاره راغلی یم. د جمعې په ورځ د مازیګر لمونځ نه وروسته به حضرت عیسی په دجال باندې برید وکړي، او اسلامي لښکر به د دجال په لښکر باندې برید وکړي، د سخت جنګ نه وروسته به دجال شکست خوړولو باندې وتختي. حضرت عیسی به ورپسې شي، او په باب لُد کې به هغه په نیزه باندې وهلو سره مردار کړي. باب لُد کې نن سبا د اسرائیلو یو داسې هوایي میدان دی چې هغه فقط د دجال د بچ کولو لپاره جوړ کړی شویدی، هلته جهاز تیار ولاړ دی، دې لپاره چې د ضرورت په وخت کې دجال وتختي، خو هلته به دجال ؤوژلی شي، د دې نه وروسته به د یهودو قتل عام شروع شي، هیڅ کاڼی یا بوټی به یهودو ته پناه نه ورکوي، بلکې شکایت به کوي چې ای مسلمانه! راشه! دا زما شاه ته یهودی پټ ناست دی. دا ؤوژنه. فقط غرقد نومې بوټی به شکایت

نکوي، ځکه چې دا دیهودو وفاداره بوټی دی. نن سبا یهودو اسرائیل د دې بوټې نه ډک کړیدی. خو مسلمانان به ړانه ده نه وي، که غرقد بوټی شکایت هم اونکړي ، مسلمانانو ته به په سترګو باندې یهود په نظر راځي،او هغوی به وُوژني. په دنیا باندې به د دجال څلویښت ورځې حکومت وي، په هغې کې به یوه ورځ د یو کال برابر وي، دویمه به د یوې میاشتې برابر وي، دریمه به د یوې اونۍ (هفتې) برابر وي، او نورې ورځې به د عامو ورځو په شان وي. دجال به په یو خر باندې سپور په ټوله دنیا به وګرځي.کیدی شي حقیقې خر وي او کیدی شي د جدید دور څه جهاز وي، د ډېر مخکې مې تفصیل کړیدی.بهرحال کله چې د دجال فتنه ختمه شي نو حضرت عیسی او حضرت مهدی به په شریکه باندې په هغه ښارونو باندې وګرځي او مصیبت زده خلکو باندې به مالونه تقسیم کړي، په کومو ښارونوکې چې دجال فساد جوړ کړی ؤو.د امام مهدی په خلافت کې به عدل او انصاف وي. د امام مهدی حکومت به نهه کاله وي. تراؤوه کالو پورې به د عیسایانو سره جنګونه وي، او په اتم کال به د دجال فتنه وي، او په نهم کال به د حضرت عیسی سره یو ځاې د هیواد نظام صحیح کړي. او ۴۹ کاله عمر کې به وفات شي، او حضرت عیسی به یې د جنازې لمونځ وکړي. د دې نه وروسته به حضرت عیسی خلیفه شي،څه وخت وروسته به حضرت عیسی ته د الله تعالی د اړخ نه وحې وشي چې خپل ټول مسلمانان د ځان سره کړه او کوه طور کې پناه واخله، ځکه چې زه د خپل مخلوق نه یو طاقتور مخلوق راښکاره کونکی یم، چې د هغې مقابله هیڅوک نشي کولی.حضرت عیسی به د ټولو مسلمانانو سره هلته تګ باندې قلعه بند شي. او دلته په زمکه باندې به یاجوج او ماجوج راوځي. یاجوج ماجوج د یافث بن نوح د اولاد نه دي. او د راوس نه شاته کوه قاف سره خواکې کاکیشیا سره درایال درې په علاقو کې سدّ سکندری نه شاته بند دي.یاجوج ماجوج به زمکي ته راوځي او دا به وځتي.اوبه به ختمي شي. د زمکي زنه ده سر به وخوري او ختم به يي کړی. او بیا به آسمان اړخ ته کاڼي ګوزاروي او خوشحاله به شي چې اوسمونږ آسمان والا هم ختم کړل.حضرت عیسی او مسلمانانو باندې به ژوند دومره راتنګ شي چې د غوا یو کله به په سل دیناره باندې خرڅیږي، بیا به حضرت عیسی یاجوج ماجوج ته خیري (بددعاء) وکړي چې په هغې سره به دا ټول هلاک شي. په راتلونکې باب کې د یاجوج ماجوج تفصیل راروان دی. حضرت عیسی به په دنیا کې څلویښت کاله ژونه دی وي. بیا به د هغه سمدستې وفات وشي او مدینه منوره کې به د نبي کریم ﷺ سره په خوا کې خښ شي. د حضرت عیسی نه وروسته به د یمن یو اوسیدونکی د ده قائمقام شي، چې د هغه نوم به جهجاه وي. هغه به دنیا په عدل او انصاف ډکه کړي. او بیا به وفات شي. بیابه څه غلط باچاهان راشي. او دنیا به یو ځل بیا د کفر او جهالت نه ډکه شي. او د زمکي د منډلو واقعات به شروع شي. بیا به په دنیا باندې څلویښت ورځې لوګی خور وي. او بیا به یوه

اوږده شپه شي . خلک به پریشانه شي چې ولې نه سحر کیږيَ. په دې کې به لمر د مغرب (لویدیځ) اړخ نه راوخیژي. خلک به په دغه پریشانئ کې وي چې ناڅاپه به دآبة الارض راوځي. دآبة الارض به د کوه صفا نه راوځي. دا به د ناشنا خلقت ځناور په شکل کې وي.د مسلمان په تَندي باندې به م لیکي او د کافر په تَندې باندې به ک لیکي. مسلمان باندې به د موسیٰ د همسا نه سپینه رڼا پریوځي او په کافر باندې به د سلیمان د ګوتمې (ګوتئ) نه تور نښان جوړ شي. دآبة الارض د خروج نه د قیامت تر نفخ صور پورې به ۱۲۰ کاله زمانه وي. بیا به د جنوب د اړخ نه یو باد (هوا) راشي چې په هغې سره به اول نیکان خلک مړه شي او بیا به بدان خلک مړه شي.د مسلمانانو په مړه کیدلو باندې به د حبشو خلک غلبه ترلاسه کړي. او فتنه او فساد به شروع کړي. په دې دوران کې به هغوی کعبه ګوزار کړي، او د هغې د لاندې نه به خزانې لوټ (چُور) کړي.د دې نهوروسته به د جنوب اړخ نه یو تیز باد راشي او خلک به د شام اړخ ته زغلوي. دا به د قیامت آخرې غټه نښه وي. د دې نهوروسته به خلک درې څلور کالو پورې د آرام ژوند وکړي. او مکمل به غافل شي. الله الله ویونکی به په دنیا کې هیڅوک نه وي. بیا یوه ورځ دجمعې په ورځ په لس د محرّم به خلک په خپلو کارونو کې مشغول وي چې د تلئ اواز به شروع شي او دا آواز به ډیرېږي تردې چې د خلکو د غوږونو پردې به وشلیږي او بیا به یې زړونه وچوي. بیا به په زمکه کې زلزله شروع شي.او بیا به آسمانونه راماتیدلو سره راګوزار شي. غرونه به ذره ذره شي، او سمندر به راخوټکیدلو سره جوش وهي تردې چې دا شته دنیا به به ټوله فنا شي. او قیامت به قائم شي، د راتلونکو څو حدیثونو شرح او توضیح په دې تفصیل سره اوشوه . په دې باندې هر لاوستونکې لره شکر ادا کول پکار دي.

۳۰ جمادي الاول ۱۴۱۸هـ

## اَلْفَصْلُ الْأَول

## د قیامت دولس نښې

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم قَا لَ: " لَا تَقُومُ السَّاعَةُ |
| حضرت ابوهریره نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: قیامت به تر هغه وخته پورې نه قائمیږي |
| حَتَّى تَقْتَتِلَ فِئَتَانِ عَظِيمَتَانِ تَكُون بَيْنَهُمَا مَقْتَلَةٌ عَظِيمَةٌ |
| ترڅو چې دوه غټې ډلې خپل مینځ کې جنګ اا ونکړي. د دې دواړو ډلو ترمینځ به ښه غټ جنګ وي. او د |
| دَعْوَاهُمَا وَاحِدَةٌ وَحَتَّى يبْعَث دجالون كذابون |
| دواړو به یوه دعوی وي (او قیامت به تر هغه وخته بورې نه قائمیږي) ترڅو چې ښه زبردست مکار، فریبجن |

قريب مِنْ ثَلَاثِينَ كُلُّهُمْ

او فسادیان خلک پیدا نشي. چې هغوی به په خدای او رسول باندې دروغ وایي. د هغوی شمیره به دیرش

يَزْعُمُ أَنَّهُ رَسُولُ الله وَحَتَّى يُقْبَضَ الْعِلْمُ

کسه وي. او په هغو یکې به د هر یو دا دعوی وي چې هغه د خدای رسول دی. او ترڅو چې علم او چت نکړی

وَتَكْثُرَ الزَّلَازِلُ وَيَتَقَارَبَ الزَّمَانُ وَيظهر الْفِتَنُ وَيَكْثُرَ الْهَرْجُ

شي او ترڅو چې زلزلې ډیرې نشی او ترڅو چې زمانه نژدې نشي و فتنې رابنکاره نشي او هرج یعنې قتل او قتال

وَهُوَ الْقَتْلُ وَحَتَّى يَكْثُرَ فِيكُمُ الْمَالُ

او د چور چپاؤ و واقعاتو کې ډیروالی ونشي، او ترڅو چې ستاسو سره مال او دولت دومره ډیر نشي چې مالدار

فَيَفِيضَ حَتَّى يُهِمَّ رَبُّ الْمَالِ

سړی د خیرات اخستونکې د وجې نه په پریشانئ کې اخته شي تردې چې هغه مالداره د چا مخې ته دغه د

مَنْ يَقْبَلُ صَدَقَتَهُ وَحَتَّى يَعْرِضَهُ فَيَقُولُ الَّذِي يعرضه عَلَيْهِ: لَا أَرَبَ لِي بِهِ

صدقې او خیرات مال وړاندې کوي، هغه به دا وایي چې ما ته ستا د دې صدقې او خیرات ضرورت نشته دی

وَحَتَّى يَتَطَاوَلَ النَّاسُ فِي الْبُنْيَانِ وَحَتَّى يَمُرَّ الرَّجُلُ بِقَبْرِ الرَّجُلِ

او ترڅو چې خلک فراخه او اوږده عمارتونه جوړولو باندې فخر او نکړي. او ترڅو چې یو سړی د چا په قبر

فَيَقُولُ: يَا لَيْتَنِي مَكَانَهُ وَحَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا

باندې تیر شي، او دا ونه وایي چې کاش! زه د ده په ځای باندې وی. او ترڅو چې لمر د مغرب اړخ نه را ونه خیژي

فَإِذَا طَلَعَتْ وَرَآهَا النَّاسُ آمَنُوا أَجْمَعُون فَذَلِكَ حِينَ

کله چې لمر د مغرب اړخ نه را وخیژي نو ټول به ایمان راوړي. نو دا به هغه وخت وي چې هغه وخت به یو کس

(لَا يَنْفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِنْ قَبْلُ

ته د هغه ایمان راوړل فائده ورنکړي، چا چې د دغه ورځې نه مخکې ایمان نه وي قبول کړی او نه به

أَوْ كَسَبَتْ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا)

دغه وخت یو چا ته د خپل ایمان په حالت کې نیک کار فائده ورکړي که هغه د دغه ورځې نه مخکې څه نیک

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَتَقُومَنَّ | السَّاعَةُ | وَقَدْ | نَشَرَ | الرَّجُلَانِ | |
| کارنه وي کړې. او په دې کې شک نسته چې قیامت به داسې قائمیږي چې دوه کسانو به (خپله جامه د خرڅولو | | | | | |
| ثَوْبَهُمَا | بَيْنَهُمَا | فَلَا | يَتَبَايَعَانِهِ | وَلَا | يَطْوِيَانِهِ |
| لپاره) خپره کړې وي او نه به یې د هغې اخستل خرڅول کړي وي او نه به هغه راغونډې کړې شي چې په | | | | | |
| وَلَتَقُومَنَّ | السَّاعَةُ | وَقَدِ | انْصَرَفَ | الرَّجُلُ | بِلَبَنِ |
| دغه حالت کې به قیامت راشي. او بیشکه قیامت به داسې قائمیږي چې یو سړی به د خپلې اوښې د شیدو | | | | | |
| لِقْحَتِهِ | فَلَا | يَطْعَمُهُ | وَلَتَقُومَنَّ | السَّاعَةُ | |
| سره به بیرته راغلی وي و دغه شیدې به یې نه وي څکلي چې قیامت به راشي. او بیشکه قیامت به داسې قائمیږي | | | | | |
| وَهُوَ | يُلِيطُ | حَوْضَهُ | فَلَا | يَسْقِي | |
| چې یو سړی به د خپل حوض لیو کوي (یعنې د خپلو څاروو د اوبو لپاره به یې جوړ جوړوي یا به هغه صحیح | | | | | |
| فِيهِ | وَلَتَقُومَنَّ | السَّاعَةُ | وَقَدْ | | |
| کوي) او هغه به خپلو څارو ته د دې خپل حوض نه اوبه نه وي څکولي چې قیامت به راشي. او بیشکه قیامت | | | | | |
| رَفَعَ | أُكْلَتَهُ | إِلَى | فِيهِ | فَلَا | يَطْعَمُهَا ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1] |
| به داسې قائمیږي چې یو سړي به په خوله کې مړئ ایخي وي او هغه مړئ به یې نه وي خوړلې چې قیامت به راشي | | | | | |

**توضیح:** فئتان عظیمتان: یعنې د مسلمانانو دوه غټ جماعتونه به وجنګیږي. د دې نه حضرت علي او حضرت معاویه مراد دي. چې د صفین په مقام کې وجنګیدلي. چې ترڅو میاشتو پورې جارې ؤو. چې په هغې کې د دواړو اړخونو اویا زره (۷۰۰۰۰) یا نه وي زره (۹۰۰۰۰) کسان ؤوژلی شو. کتاب الفتن حدیث نمبر: ۲۹ د لاندې د دې ټول تفصیل لیکل شوېدی. (المرقات ۹/۲۹۵)

دعواهما واحدة: یعنې دواړه به د اسلام دعویدار وي، یا دا چې دواړه به خپل ځان په حق باندې ګڼړي. او برحق کیدلو دعوی به کوي. **دجالون:** دجال د مبالغې صیغه ده. ډیر غټ دهوکه ورکونکی، فراډې سړې ته وایي. **قریب من ثلاثین:** په نورو روایتونو کې د دیرشو عدد ذکر دی. نو په دې کې هیڅ تعارض نشته دی. اول وحې په ذریعه سره یو عدد اوویلی شو، بیا د وحې په ذریعه باندې

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳/۸۱ رقم الحديث ۷۱۲۱ وأخرجه مسلم ۱/۱۳۷ رقم الحديث (۱۵۷-۲۴۸)

وربکې ډیروالی وشو، څنګه چې وحې اوویلی ، نبي کریم ﷺ هغه شلن بیان کړل.د حضرت ابن عمرپه یو روایت کې د اویا(۷۰) عدد ذکر دی. نو دا به کثرت باندې حمل کولی شي. چې هیڅ تعیین نشته بلکې تکثیر (ډیروالې) ته اشاره ده . یا ډیر ښه جواب دا دی چې دیرش دجالان خو به هغه غټ فسادیان وي چې هغه به د نبوت باقاعده دعوی کوي، د هغوی نه غیره به نور واړه واړه وي ، د نبوت دعوٰی به نکوي.**يقبض العلم**: یعنې علم او علم شریعت به اوچت کړی شي.د دې صورت به دا وي چې غټ غټ علماء به د مرګ به ذریعه سره اوچت کړی شي.**يتقارب الزمان**:یعنې زمانه به قیامت ته نژدې شي. یو مطلب دا دی. دویم مطلب دا دیچې مزلونه به نژدې شي.دکال پیدل سفر به جهاز په هوا کې په دوه ساعته کې کوي.یا مطلب دا دی چې کال به د میاشتې ځاې ته راشي او میاشت به د هفتې ځای ته او هفتې به د ورځې ځاې ته او ورځ به د یوې سپرغئ ځاې ته راشي. په یو حدیث کې هم دا تفصیل دی.**يهم**: دا د باب افعال نه د اهتمام او سوچ او فکر او پریشانئ په معنی دی.مطلب دا دی چې صاحب مال به د صدقې کولو کوشش کوي خو قبلونکی به هیڅوک نه وي، په ظاهره باندې به دا د خوشحالئ زمانه حضرت مهدی او حضرت عیسی زمانه ده. کثرت او برکت د مالونو د وجې نه به دا د خوشحالئ زمانه وي. یا د حرص نشتوالی او مال سره د مینې نه لرلو په وجه به داسې وي. (المرقات ۹/۲۹۶)

**يتطاول**: یعنې خلک به بغیر د ضرورت نه ماڼئ او اوچت عمارتونو کې په یو بل باندې فخر او تکبر به کوي. خصوصًا هغه طبقه چې هغه د بیزو ځرونکېؤو.په هغویکې به دا مقابله وي چې د چا ماڼئ څومره اوچته ده جزيرة العرب او بیا سعودی عرب کې د دې ډیره نظاره کیدی شي (المرقات۹/۲۹۷)

**مکانه**: یعنې ژونه دی سړی به دا ارمان کوي چې کاش! به دې قبر کې د دې مړي په ځاې ځه وای.دا به د دین د پریشانئ د وجې نه نه وییلکې فقط د دنیا پریشانې به وي.او د ظاهرې مصیبتونو نه په تنګ راتلو سره به دا ارمان کوي. (المرقات ۹/۲۹۶)

**نشر الرجلان**:یعنې په دکان کې خرڅونکی او اخستونکې دواړو به ټوټه خپره کړي وي، چې ناڅاپه به قیامت راشي. **يليط** : **لاط يليط** : اخیړولو ته وایي. یعنې د کور مالک به په دې اخیړ کې اخته وي چې قیامت به راشي. (المرقات ۹/۲۹۸)

## د قیامت نه مخکې به د ترکانو سره جنګ کیږي

﴿۲﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تَقُومُ السَّاعَةُ

او د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: قیامت به تر هغه وخته پورې

| حَتَّى | تُقَاتِلُوا | قَوْمًا | نِعَالُهُمُ | الشَّعْرُ |
|---|---|---|---|---|
| نه قائمیږي تر څو چې تاسو د هغه قوم سره جنګ او نکړئ چې د چا پیزار چې به د ویختانو والا څرمني وي. | | | | |

| وَحَتَّى | تُقَاتِلُوا | التُّرْكَ | صِغَارَ | الْأَعْيُنِ | حُمْرَ | الْوُجُوهِ | ذُلْفَ | الْأُنُوفِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او تر څو چې تاسو د ترکانو سره جنګ و نه کړئ چې د هغوی سترګې به ووړې وړې، سره مخونه او پوزې به یې چیټې چیټې وي. | | | | | | | | |

**كَأَنَّ وجوهَهُم المجَانُّ المُطْرَقة. مُتَّفَق عَلَيْهِ**[1]

ګویا چې د هغوی څلي به د قط په قط ډهال په شان وي.

**توضیح:نعالهم الشعر**: یعنې د هغوی پیزار به د ویختانو والا د څرمنې نه جوړ وي. مطلب دا دی چې د کچه څرمنې جوړ پیزار به وي. (المرقات۹/۲۹۹)

**الترك**: یعنې خامخا به د ترکانو سره جنګ کیږي. د دې نه مراد د یافث بن نوح اولاد دی .د هغوی د مورث اعلی نوم ترک ؤو.ځکه دوې ته ترکان اوویلی شو. یا مطلب دا دی چې دا خلک د سدّسکندری نه باهرپریخودل شویدي او بیخې د هغوی یوه وحشې برخه یاجوج ماجوج په نوم باندې سدّسکندری کې دننه بندهکړی شویده.او کومه برخه چې باهرپاتې شویده، هغې ته ترک اوویلی شو . مراد هغه منګولین او تاتاریان دي. تفصیل یې تیر شویدی. (المرقات۹/۲۹۹)

**صغار الاعین**: د ترکانو سترګې وړې دي.او مخونه یې سره دي. **ذلف الانوف**: یعنې د هغوی پوځې به چیټې وي. ناستې شوي به وي.یا وچه پوزه چې هغه خکته او پلنه وي.په موجوده ترکانو کې اګرکه دا صفت کم دی، خو پکې شته دی.علماؤ دا اعتراض داسې دفع کړی دی چې د ترکانو څو قبیلي دي. یعنې ټولې ۲۲ قبیلي دي. ۲۱ قبیلو نه سدسکندری راتاؤودی.نو ډیره ممکنه ده چې څه قبیلې په دې صفت وي. د چین د خلکو د پوزو هم دا صفت دی. نو د چین خلک هم د هغه ځاې نه راتختیدلي دي. چې به اصل کې د ترک سره یو ځاې کیږي. (المرقات۹/۲۹۹)

**المجان**: د مجن جمع ده .میم باندې زیر دی. جیم باندې شدّ دی. ډهال ته وایي. یعنې د هغوی مخونه د ډهال په شان ګرد دي. د غوښې نه به ډک وي. (المرقات۹/۲۹۹)

**المطرقة**:طراق د ډهال ویخونو ته وایي. چې هغه لاندې باندې وي. او د یو بل سره نختي وي.او د څرمنې وي.میم باندې ضمه ده . طاء ساکنه ده، را باندې فتحه ده .ملا علی قاری د باب افعال نه د اسم مفعول صیغه ویلي ده.

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۱۰۴ رقم الحديث ۲۹۲۸ ومسلم في صحيحه ۴/۲۲۳۳ رقم الحديث (۱۱.۲۹۱۲)

مطلب دا دی چې د دې خلکو مخونه به د غوښې نه داسې ډک وي ګویا چې چا په څټکې باندې وهلو وهلو سره غوښه لاندې باندې ډکه کړې ده .لکه څنګه چې د ډهال لاندې باندې ویخونه وي. ګویا مخ نه دی پیړه ډوډۍ ده! ګردوالی ، پلنوالې او چاقوالې کې د ډهال سره تشبیه ورکړې شویده. دا صفت هم نن سبا د چین په خلکو کې موجود دی. د دې نه خو یا د چنګیز خان یا د هلاکو خان فتنې مراد دي. چې هغه تیرې شویدي. یا په راتلونکې وخت کې څه فتنې مراد دي، ګویا دا د انسانانو په شکل کې درندګان او څناور دي. ملاعلی قاری لیکي چې دا د هغه خلکو شر او فساد ارخ ته اشاره ده ګویا چې د خودغرضۍ مخونه دي. الله دې تر قیامته پورې مونږ ته دا مخونه ونه ښایي!! (آمین-مترجم) (المرقات۹/۲۹۹)

﴿۳﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تَقُومُ السَّاعَةُ

او د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: قیامت به تر هغه وخته پورې نه راځي

حَتَّى تُقَاتِلُوا خُوزًا وَكِرْمَانَ مِنَ الْأَعَاجِمِ حُمْرَ الْوُجُوهِ

ترڅو چې تاسو خوز او کرمان د خلکو سره چې د عجمو خلک دي، جنګ او نکړئ. د دې خلکو مخونه به

فُطْسَ الْأُنُوفِ صِغَارَ الْأَعْيُنِ وُجُوهُهُمُ الْمَجَانُّ الْمُطْرَقَةُ

سره، پوزې به یې ناستې وي او سترګې به یې وړې وړې وي. او مخونه به یې داسې وي لکه قط په قط د څرمني

نِعَالُهُمُ الشَّعْرِ . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1] وَفِي راوية لَهُ

ډهال وي. د دوې پیزار به د ویختانو والا څرمني وي. (بخاری) او د بخاری په یو بل روایت کې چې

وَ عَنْ عَمْرِو بن تغلب: عراض الْوُجُوه.[2]

د عمرو ابن تغلب نه نقل شویدی. دا الفاظ دي چې د دوې مخونه به څرب پلن وي.

**توضیح**:**خوزًا** : د دې نه خوزستان مراد دی. **کرمان**: ایران د مشهور ښار نوم کرمان دی.دلته د کرمان خلک مراد دي.قاضی عیاض لیکلي دي چې د دې عجمو نه د ترکانو خلک مراد دي. اګرکه دا مشهور نه وي ، وجه دا ده چې دا هغه صفات دي چې په ترکانو کښې موجود والي لري. د دوې سره یا جنګ شویدی یا په راتلونکې وخت کې به کیږي. (المرقات۹/۳۰۰)

**فطس الانوف**: پیټ پوزې خلک هم هغه دي چې هغه په ذلف الانوف سره یاد کړی شویدي. د دواړو یوه معنی ده. (المرقات۹/۳۰۰)

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۶۰۲ رقم الحديث ۳۵۹۰ وابن ماجه في السنن ۲/۱۳۷۲ رقم الحديث ۴۰۹۸

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۱۰۳ رقم الحديث ۲۹۲۷

## د عیسی علیه السلام د نزول په وخت کې به یو یو یهودي وژلی کیږي

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى |
| او حضرت ابو هریره رضی الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل: قیامت به تر هغه وخته پورې نه قائمیږي تر څو |
| يُقَاتِلَ الْمُسْلِمُون الْيَهُودَ فَيَقْتُلُهُمُ الْمُسْلِمُون حَتَّى يختبئ الْيَهُودِيُّ مِنْ وَرَاءِ الْحَجَرِ |
| پورې چې مسلمانان د یهودو سره جنګ و نه کړي. نو مسلمانان به ډیر یهود ؤوژني. تردې چې یهود به د کاڼي |
| وَالشَّجَرِ فَيَقُولُ الْحَجَرُ وَالشَّجَرُ: يَا مُسْلِمُ يَا عَبْدَ الله |
| یو تې شاه پټیږي او هغه کاڼي او بوټي به دا وایي چې ای مسلمان! ای د خدای بنده! دلته راشه! زما شاه ته |
| هَذَا يَهُودِيٌّ خَلْفِي فَتَعَالَ فَاقْتُلْهُ إِلَّا الْغَرْقَدَ فَإِنَّهُ من شجر الْيَهُود ". رَوَاهُ مُسلم[1] |
| یهودي پټ ناست دی. دا ؤوژنه ږ خو د غرقد بوټي (به داسې نه وایي) ځکه چې هغه د یهودو بوټي دی. |

**توضیح: هذا یهودي:** یعنې حجر او شجر به شکایت کوي چې زما شاه ته یهودي پټ شویدی. دا دې ؤوژلی شي. دنیا نه د یهودو دا پاکیدل به د حضرت عیسی په وخت کې کیږي ځکه چې هغه وخت به هیڅ کافر ذمي ساتل ختم شي. جزیه به ختمه شي. یا به اسلام وي یا به مرګ وي. یهودو او نصاراؤو ته دې ښکاره وي چې زمونږ نبي محمد ﷺ رحمة للعالمین دی. ګورئ ! دهغه په دور کې کافر خو برداشت کیدلی شي. د ذمیت او جزیې ادا کولو نه وروسته ژونه دی ساتلی شي. کله چې کافر دا رحمت سختې وبولي نو په دوې باندې به داسې وخت راشي چې دوې به منت کوي چې مونږ ذمیان اوساتئ. جزیه واخلئ او زمونږ ځان اوساتئ خو د الله تعالی حکم به وي چې اوس هیڅ یهودي او کافر ژونه دی نشي برداشت کیدلی. الله تعالی ته په ځناورو کې خنزیر ډیر مبغوض دی. او په انسانانو کې یهودیان ډیر مبغوض دي. یهودیانو په یوه یوه ورځ کې څومره انبیاء شهیدان کړل. دلته د دې حدیث په بیان کښاګوره چې یهود نابهودو عیسی پریخودلو . جضرت مهدی یې پریخودلو . او د هغوی به مقابله کې یې د دجال سره ملګرتیا اوکړه. چا چې د الوهیت دعوی هم اوکړه او فساد یې هم وکړو. لهذا څه حشر چې یهودو وشو ، ډیر ښه وشو . دا به د یهودو یو بل هولو کاسټ وي. د قدرت عجائب وګوره چې یهودو په حضرت عیسی باندې برید اوکړو او په کور کې یې بند کړو او په خپل خیال کې یې ؤوزلو. ګویا یهودو د عیسایانو د خدای د دوژلو کوشش وکړو. خو د مسلمانانو خدای هغه اوساتلو. او په آسمانونو کې یې محفوظ وساتلو. کله چې هغه زمکي

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۴/۱۰۳ رقم الحديث ومسلم في صحيحه ۴/۲۲۳۹ رقم الحديث (۲۹۲۲-۸۲)

ته راكوز شي نو هغه د يهودو خداى دجال ؤوژلو. تعجب دى چې اوس دا خلك خپل مينځ كې داوستان دي. خو د مسلمانانو دښمنان دي. (المرقات۹/۳۰۱)

## د يو قحطاني سړي په باره كې وړاندوينه

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تَقُومُ السَّاعَةُ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: قيامت به تر هغه وخته پورې نه راځي |
| حَتَّى يَخْرُجَ رَجُلٌ مِنْ قَحْطَانَ يَسُوقُ النَّاسَ بعصاه. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1] |
| ترڅو چې په قحطان كې يو سړى پيدا نشي چې هغه به خلك په خپله همسا سره شړي. |

**توضيح: قحطان:** د عربو دوه پخوانۍ غټې قبيلې دي. يو قحطان او بل عدنان ده. دا قبيلې خپلو مشرانو نيكونو ته منسوب دي. د يو نوم قحطان ؤو او د بل نوم عدنان ؤو. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مور پلار د اړخ نه عدناني هم دى او قحطانې هم دى. د يمن د غټې قبيلې نوم قحطان دى. دا قحطانې سړى به يو عادل مسلمان باچا وي. په راتلونكې حديث كې دا د جهجاه په نوم سره ياد شويدى. (المرقات۹/۳۰۱)

**يسوق الناس:** يعنې د هغه اقتدار به مضبوط او مستحكم وي. خلك به د هغه د فرمان تابع وي. دا سړى به د حضرت عيسى نه وروسته د مسلمانانو خليفه وي.

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَا تَذْهَبُ الْأَيَّامُ وَاللَّيَالِي |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دى چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: شپه او ورځ به تر هغه وخته پورې |
| حَتَّى يَمْلِكَ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ: |
| نه ختميږي ترڅو چې هغه سړى مالك نشي يعنې په خلكو باندې اقتدار او تسلط يې رانشي چې هغه ته به |
| الْجَهْجَاهُ ". وَفِي رِوَايَةٍ: " حَتَّى يَمْلِكَ رَجُلٌ مِنَ الْمَوَالِي |
| جهجاه ويلى كيږي او په يو روايت كې داسې دي چې ترڅو پورې په موالي كې يو سړى مالك نشي يعنې |
| يُقَالُ لَهُ: الجهجاه". رَوَاهُ مُسلم[2] |
| يعنې اقتدار او تسلط يې رانشي چې هغه ته به جهجاه ويلى كيږي. |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۶۵/۵۴۵ رقم الحديث ۳۵۱۷ ومسلم في صحيحه ۴/۲۲۳۲ رقم الحديث (۶۰.۲۹۰۱)

(۲) أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۳۱ رقم الحديث (۲۹۱۱-۶۱) والترمذي في السنن ۴/۴۳۷ رقم الحديث (۲۲۲۸)

## د کسری سپینه ماڼۍ به فتح شي

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: لَتَفْتَحَنَّ |
| او حضرت جابر ابن سمره رضي الله عنه فرمايي: ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چې بيشکه د مسلمانانو يو |
| عِصَابَةٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ كَنْزَ آلِ كِسْرَى الَّذِي فِي الْأَبْيَضِ. رَوَاهُ مُسْلِم[1] |
| جماعت به د آل کسری خزاني راوباسي چې هغه په سپينه ماڼۍ کې دي. |

**توضیح:عصابة من المسلمين:** دمسلمانانو ددې جماعت نه مراددحضرت سعدبن ابي وقاص لښکر دی. چا چې په عهد فاروقي کې عراق او مدائن فتح کړي ؤو. د قادسيه په تاريخي جنګ کې فتح موندلو نه وروسته دا لښکر د دجلې په سيند اوړيدلو سره د مدائن اړخ ته روان شو. او په مدائن کې يې د کسری په ماڼۍ باندې قبضه وکړه. او ماڼۍ يې په جامع مسجد کې بدله کړه. حضرت سعد بن ابی وقاص هلته درې ورځې قيام وکړو او د جمعې لمونځ يې وکړو. او بيرته راغلو. علامه بوصيری مصری قصيده برده کې فرمايي:

وبات ايوان کسری وهو منصدع  کشمل اصحاب کسری غير ملتئم

**آل کسری:** د آل لفظ زائد دی. کسری په فارس کې خسرو وي. عربۍ کې ورته کسری وايي. **في الابيض:** ايوان کسري ته هغه خلک سفيد کوشک وايي. پښتو کې ورته سپينه ماڼۍ وايي. په عربۍ کې ورته قصر ابيض وايي. او په انګريزۍ کې ورته وائټ هاوس وايي. لکه څنګه چې نن سبا په امريکه کې وائټ هاوس دی. الله تعالی مسلمانانو ته د فارس وائټ هاوس ورکړيؤو، د جهاد په برکت سره به الله تعالی د امريکې وائټ هاوس هم ورکړي. د ايوان کسری خزاني شبلي نعماني په الفاروق کې په ښايسته انداز سره ليکلي دي. ما په فتوحات مصر او فارس کې ډير تفصيل سره ليکلي دي. عقل حيرانونکې عجائبات دي. (المرقات ۹/۳۰۲)

## په جهاد سره به دوه سُپر طاقتونه ختم شي

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: هَلَكَ كِسْرَى فَلَا يَكُون |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: کسری هلاک شو، د دې کسری نه وروسته |
| كِسْرَى بَعْدَهُ وَقَيْصَرُ لَيَهْلِكَنَّ ثُمَّ لَا يَكُون قَيْصَرُ بَعْدَهُ |
| به بل کوم کسری نه وي. او يقيناً قيصر هم هلاک شو چې د هغې نه وروسته به بل څوک قيصر نه وي. دغه شان د دې |

[1] أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۳۷ رقم الحديث (۶۱.۲۹۱۹) وأحمد في المسند ۵/۱۰۰

| وَلَتُقْسَمَنَّ كُنُوزُهُمَا فِي سَبِيلِ اللهِ وَسَمَّى الْحَرْبُ خُدْعَةً . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1] |
| --- |
| دواړو باچاهانو خزاني به د خداى په لاره کې تقسيم کړى شي.نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د جنګ نوم دهوکه او فريب کيخودلو. |

**توضيح:هلك كسرى**: هلكَ د ماضى صيغه راوړى شويده. دا يقين اړخ ته اشاره ده. چې دا وګڼړه چې دغه شان شويده.دا په اصل کې د سيهلك په معنى دى. يعنې ددې د ختميدلو نه وروسته به د دې نوم او نښان پاتې نه وي. د فارس د خلکو د مازغو نه به كيسريت ؤوځي.دغه شان په شام کې به قيصريت ختم شي.نو د جهاد په برکت سره هم دغه شان اوشوه.او دواړه سُپر طاقتونه ټوټه ټوټه شو. (المرقات۳۰۳/۹)

**الحرب خدعة**:يعنې نبي کريم ﷺ د جنګ او جهاد نوم چل کول او حيله او تدبير کيخودلو.نو په جهاد کې د دې اجازت شته دى. اوس پوښتنه دا ده چې د دې جملې د مخکنۍ جملې سره څه ربط دى؟نو د دې جواب شارحينو کړيدى چې کله د فتوحاتو او غنيمت د تقسيمولو خبره اوشوه نو د جهاد د ميدان تصور مخې ته راغلو نو نبي کريم ﷺ د جهاد د ضرورتونو او آدابو نه يو ضرورت او آدب ذکر کړو. (المرقات۳۰۳/۹)

## كه جهادوي نو فتحه پسې به فتحه وي

| ﴿۹﴾ وَعَنْ نَافِعِ بْنِ عُتْبَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تَغْزُونَ جَزِيرَةَ الْعَرَبِ |
| --- |
| او حضرت نافع ابن عتبه فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل:تاسو به (زمانه وروسته) د جزيرة العرب |
| فَيَفْتَحُهَا اللهُ ثُمَّ فَارِسَ |
| سره جنګ کوئ او الله تعالى به هغه ستاسو په لاسونو باندې فتح کوي.بيا به تاسو د فارس د مملکت سره جنګ |
| فَيَفْتَحُهَا اللهُ ثُمَّ تَغْزُونَ الرُّومَ |
| کوئ او الله تعالى به هغه ستاسو په لاسونو باندې فتح کوي. بيا به تاسو د روم د مملکت سره جنګ کوئ او |
| فَيَفْتَحُهَا اللهُ ثُمَّ تَغْزُونَ الدَّجَّالَ |
| الله تعالى به هغه ستاسو په لاسونو باندې فتح کوي. او بيا به تاسو د دجال سره جنګ کوئ او الله تعالى به په |
| فيفتحه الله . رَوَاهُ مُسلم[2] |
| هغې باندې هم فتح درکوي. |

(1) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۵۷/۶ رقم الحديث ۳۰۲۷ ومسلم في صحيحه ۲۲۳۷/۴ رقم الحديث (۲۹۱۸-۷۶)

(2) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۲۲۵/۴ رقم الحديث (۲۹۰۰-۳۸) وابن ماجه ۱۳۷۰/۲ رقم الحديث ۴۰۹۱.

توضيح:الجزيرة: جغرافيه پوهانو د قول مطابق نجد، حجاز، يمامه، يمن، او عروض په دې پنځه غټو ځايونو باندې د جزيرة العرب اطلاق کيږي.حجاز کې مکه او مدينه هم داخل دي.د جزيرة العرب په جنوب کې بحر عرب پروت دی. په شمال کې دريائ فرات دی. مشرق کې خليج عرب او خليج عمان دی. او مغرب کې بحر احمر دی. بهرحال دا حديث وايي چې د جهاد مقدس په ذريعه باندې به په مسلمانانو د فتحې دروازې برسيرته شي او په راتلونکې وخت کې به هم برسيرته وي. نن سبا تبليغ والا وايي چې په جهاد سره د دين کار بنه ديږي. دا خلک غلطه وايي. (المرقات۹/۳۰۴)

## د قيامت شپږ نښې

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَن عَوف بن مَالك قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ |
| او حضرت عوف ابن مالک رضي الله عنه فرمايي چې د غزوه تبوک په وخت کې زه د نبي کريم صلی الله عليه وسلم خدمت کې حاضر |
| وَهُوَ فِي قُبَّةٍ مِنْ أَدَمٍ فَقَالَ: " |
| شوم، دغه وخت نبي عليه السلام د څرمنې په خيمه کې ناست ؤ. نبي عليه السلام وفرمايل: د قيامت راتلو نه مخکې |
| اعْدُدْ سِتًّا بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ: مَوْتِي ثُمَّ فَتْحُ بَيْتِ الْمَقْدِسِ ثُمَّ مُوتَانٌ يَأْخُذُ فِيكُمْ |
| شپږ شيان وشماره.يو خو زما مرګ، دويم د بيت المقدس فتح کيدل، دريم عامه وبا چې هغه به په تاسو کې د |
| كَقُعَاصِ الْغَنَمِ ثُمَّ اسْتِفَاضَةُ الْمَالِ حَتَّى يُعْطَى الرَّجُلُ مِائَةَ دِينَارٍ |
| بيزو په شان خپره شي. څلورم: د خلکو سره به مالونه دومره ډير شي که يو سړي ته سل ديناره ورکړيشي نو |
| فَيَظَلُّ سَاخِطًا ثُمَّ فِتْنَةٌ |
| هغه به يې کم او سپک ګڼړلو باندې په هغې ناراضه وي. پنځم: فتنې او خپل مينځې جنګونه او مخالفتونه |
| لَا يَبْقَى بَيْتٌ مِنَ الْعَرَبِ إِلَّا دَخَلَتْهُ ثُمَّ هُدْنَةٌ |
| به داسې راوپاريږي چې د عربو يو کور به هم داسې پاتې نشي چې هغې ته د دې فتنو اثر نه رسيږي. او شپږم |
| تَكُونُ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ بَنِي الْأَصْفَرِ فَيَغْدِرُونَ فَيَأْتُونَكُمْ تَحْتَ ثَمَانِينَ غَايَةً |
| صلح چې ستاسو او د روميانو ترمينځ به وشي. بيا به روميان وعده ماته کړي او ستاسو مقابلې لپاره به د اتيا (۸۰) |
| تَحْتَ كُلِّ غَايَةٍ اثْنَا عَشَرَ أَلْفًا". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1] |
| نښانو د لاندې راشي چې په هغې کې به د هر نښان د لاندې دولس زره کسان وي. |

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۲۷۷ رقم الحديث ۳۱۷۶ ومسلم في صحيحه ۱/۳۶۰ رقم الحديث (۳-۵۰۳)

**توضيح: موتي:** نبي كريم ﷺ وفرمايل چې زما وفات د قيامت د نښو نه يوه نښه ده. **فتح بيت المقدس:** د حضرت عمر فاروق په زمانه كې فتح شوى ؤو. (المرقات ۹/۳۰۵)

**موتان:** ميم باندې ضمه ده. يو قِسم وبايې ناروغي ده. دا وبايې ناروغي په اصل كې په بيزو كې راځي. چې هغه ټولې بيزې وژني. دې مرض ته **قعص** وايي. يعني د بيزو په شان به دا خاص وبايې ناروغي به په تاسو كې راشي، دا طاعون عمواس ته اشاره ده. چې د حضرت عمر فاروق په دور خلافت ۱۸ ه كې راغلي وه. عمواس په شام كې د بيت المقدس خواته د يو ځاې نوم دى. هغه وخت دا ځاې فوځې بهيس (چاؤوڼۍ) وه. د دې طاعون نه په درې ورځو كې اويا زره كسان مړه شول.

**استفاضة المال:** يعني مال به ډير شي، شايد دا د حضرت عثمان دور خلافت ته اشاره وي. (المرقات ۹/۳۰۵)

**ثم فتنة:** په دې سره د حضرت عثمان بن عفان شهادت اړخ ته اشاره ده. يا د حضرت علي او د حضرت معاويه جنګونو ته اشاره ده. **ثم هدنة:** هدنه صلح او مصالحت په معنى دى. يعني يو صلح او معاهده به وشي، ممكنه ده چې دا به هغه لوظنامه وي چې د مسلمانانو او د عيسايانو د يوې ډلې سره به وشي او د بلې ډلې سره به جنګ وي. بيا چې كله فتح ترلاسه شي نو مسلمانان به وايي چې اسلام غالب شو. عيسايان به وايط چې صليب غالب شو. بيا به د دوې خپل مينځ كې جنګ وي. ټول عيسايان به د مسلمانانو په خلاف شي. او په جنګ كولو كولو كې به د مسلمانانو باچا شهيد شي. په داسې وخت كې به د حضرت مهدى ظهور وشي او سمدستې جنګې تيارى به شروع كړي. په مقابله كې به روميان اتيا (۸۰) بيرغونو سره راشي. د هغوى ټوله شميره به نهه لاكهه شپيته زره وي. **بنى الاصفر:** د روميانو د مشر نيكه نوم روم بن عيص ؤو. دهغه رنګ زيړوالي ته مائل سپين ؤو. ځكه هغه ته اصفر اوويلى شو. نو دهغه اولاد ته بنى الاصفر اوويلى شو، تر ننه پورې فرنګيان په دغه رنګ كې دي. (المرقات ۹/۳۰۵)

## د دجال قتل، د ملحمة الكبرى واقع كيدل

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: قيامت به تر هغه وخته پورې نه قائميږي تر دې چې |
| يَنْزِلَ الرُّومُ بِالْأَعْمَاقِ أَوْ بِدَابِقَ فَيَخْرُجُ إِلَيْهِمْ جَيْشٌ مِنَ الْمَدِينَةِ مِنْ خِيَارِ أَهْلِ الْأَرْضِ |
| روميان اعماق يا دابق ته رانشي، او بيا به د مدينې يو لښكر د هغوى د مقابلې لپاره ؤوځي. چې په هغې كې به په دغه |

يَوْمَئِذٍ فَإِذَا تَصَافُّوا قَالَتِ الرُّومُ: خَلُّوا بَيْنَنَا

ورځ يعني د هغه وخت غوره خلک شامل وي. کله چې صفونه جوړ شي نو روميان به دا وايي چې زمونږ او د دې

وَبَيْنَ الَّذِينَ سَبَوْا مِنَّا نُقَاتِلْهُمْ

خلکو ترمينځ چې زمونږ خلک يې قيديان راوستلي دي، ځای ورته خالي کړئ، دې لپاره چې مونږ د دوی سره جنګ

فَيَقُولُ الْمُسْلِمُونَ: لَا وَاللهِ لَا نُخَلِّي بَيْنَكُمْ

وکړو. خو مسلمانان به دوی ته جواب ورکړي چې په خدای قسم داسې هيڅ کله نشي کيدلی. مونږ ستاسو او د

وَبَيْنَ إِخْوَانِنَا فَيُقَاتِلُونَهُمْ

خپلو مسلمانانو ورونو ترمينځ ځای نشو خالي کولی. نو ټول مسلمانان به د روميانو سره جنګ شروع کړي.

فَيَنْهَزِمُ ثُلُثٌ لَا يَتُوبُ اللهُ عَلَيْهِمْ أَبَدًا

او په دې مسلمانانو کې به دريمه برخه په شاه وتختي. چې هغوی به الله تعالی کله هم معاف نکړي. او يوه برخه

وَيُقْتَلُ ثُلُثُهُمْ أَفْضَلُ الشُّهَدَاءِ عِنْدَ اللهِ

مسلمانان به شهيدان شي چې هغوی به يقيناً د الله تعالی په نزد باندې غوره شهيدان وګرځي. او پاتې يو برخه

وَيَفْتَتِحُ الثُّلُثُ لَا يُفْتَنُونَ أَبَدًا فَيَفْتَتِحُونَ قسطنطينية

مسلمانان به غالبه شي. دغه مسلمانان به الله تعالی کله هم په فتنه کې نه اچوي. بيا به مسلمانان قسطنطنيه

فَبِينما يَقْتَسِمُونَ الْغَنَائِمَ

فتح کړي. او د دېنه وروسته هغه وخت کله چې هغه (مسلمانان) د غنيمت مال تقسيمولو کې مصروفه وي او خپلې

قَدْ عَلَّقُوا سُيُوفَهُمْ بِالزَّيْتُونِ إِذْ صَاحَ فِيهِمُ الشَّيْطَانُ:

توري به يې د زيتونو بوټو ته زوړندې کړي وي. ناڅاپه به شيطان د هغوی مينځ کې دا خبره خپره کړي چې ستاسو

إِنَّ الْمَسِيحَ قَدْ خَلَفَكُمْ فِي أَهْلِيكُمْ

په نشتوالي کې مسيح دجال ستاسو کورونو ته رسيدلی دی. (اسلامي لښکر دې اوريدلو سره به د قسطنطنيه نه)

فَيَخْرُجُونَ وَذَلِكَ بَاطِلٌ فَإِذَا جَاؤُوا الشَّامَ

روان شي. خو د شيطان دا خبر به سراسر دروغژن ثابت شي، البته کله چې مسلمانان شام ته ورسيږي نو بيا به دجال

خرجَ فَبينا هُمْ يُعِدُّون لِلْقِتَالِ يُسَوُّون الصُّفُوفَ

رانبكاره شي، مسلمانان به د هغه سره د جنګ کولو تياري کوي. او په صف جوړولو کې به مشغوله شي. چې د

إِذْ أُقِيمَتِ الصَّلَاة فَينزل عِيسَى بن مَرْيَمَ

لمونځ وخت به راشي. په دې کې به حضرت عيسى ابن مريم (د آسمان نه د دمشق د جامع مسجد په مناره

فَأَمَّهُمْ فَإِذَا رَآهُ عَدُوُّ الله

باندې) راکوز شي. (يا به بيت المقدس ته راشي) او د مسلمانانو امامت به کوي. بيا د خداى هغه دښمن يعنې

ذَابَ كَمَا يَذُوبُ الْمِلْحُ فِي الْمَاءِ

دجال (چې هغه به مسلمانان راګير کړي وي) کله چې حضرت عيسى اويني نو داسې به ايلي کيږي لکه په اوبو

فَلَوْ تَرَكَهُ لَانْذَابَ

کې چې مالګه ايلي کيږي. که عيسى هغه په دغه حالت کې پريږدي او قتل يې نکړي نو دا به ټول ايلي شي. او

حَتَّى يَهْلِكَ وَلَكِنْ يَقْتُلُهُ الله بِيَدِهِ

(حضرت عيسى د وژلو نه بغير به) خپله مړ شي. ليکن الله تعالى به دا د حضرت عيسى په لاس

فيريهم دَمه فِي حربته". رَوَاهُ مُسلم[1]

باندې اوژني. بيا به حضرت عيسى د دجال اينه د خپلې نيزې په ذريعه سره و ښايي. [مسلم]

**توضيح:** اعماق: اعماق او دابق دانطاکيه او حلب ترمينځ دوه ځايونو نومونه دي. او په دې حديث کې د مدينې نه مراد د حلب ښار دى. چې په شام کې واقع دى. په مدينه منوره باندې دا وړاندوينه نه صادقيږي او نه مدينه منوره مراد ده. مسلمانانو د دې لښکر نه د حضرت مهدى لښکر مراد دى. چې د شام د نصاراؤ سره به جنګيږي. (المرقات ۹/۳۰۴)

خلوا بيننا: يعنې کافر به اوايي چې د مسلمانانو کومې ډلې زمونږ خلک بنه ديان کړيدي، دغه ډله جدا اوساتئ، دې لپاره چې مونږ د وې نه بدله واخلو، مسلمانان به د دې بيلتون نه انکار وکړي. او جنګ به شروع کړي. خويوه ډله به وتختي. او يوه ډله به د خودکش بمبار لپاره تياره شي. درې ورځې به سخت جنګ وي. او مسلمانان به لږ شان پاتې شي. په څلورمه ورځ به الله تعالى فتح

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۲۱ رقم الحديث (۲۸۹۷-۳۴)

ورکړي. نو مسلمانان به نیغ لاړ شي او قسطنطنیه ته به ننوځي. لکه څنګه چې په تفصیلي روایت کې دي. (المرقات ۹/۳۰۶)

دلته دا خبره یاد ساتئ چې په قسطنطنیه باندې مختلف دورونه راغلي دي. یو ځل په ۳۳۰ء کې د هرقل ځوې قسطنطین دا قبضه کولو باندې آباد کړو. او د هغه نوم ته دا ښار منسوب دی. د دې نه وروسته صحابه کرامو رضی الله عنهم دا فتح کړه. بیا وروسته کافر په دې باندې غالبه شول. بیا د ترکی خلافت په زمانه کې عثمانی ترکانو دا فتح کړه. چې تر اوسه پورې د مسلمانانو په لاس کې ده. خو د دې حدیث نه معلومیږي چې دا ښار به یو ځل بیا د کافرو لاس ته ځي، او په آخر کې به حضرت مهدی دا فتح کوي.

**الشام** : د دې نه بیت المقدس مراد دي. **فامهم** : یعني حضرت عیسی به د مسلمانانو امامت وکړي. (المرقات ۹/۳۰۸)

**سوال** : دلته دا سوال پیدا کیږي چې په نورو روایتونو کې په واضحه توګه راغلي ده چې حضرت عیسی به امامت نکوي، بلکې حضرت مهدی به یې کوي. چې امام او خلیفه ته یې. لهذا لمونځ وکړه. او حال دا دی چې دلته د حضرت عیسی د امامت خبره ده.

**جواب**: د دې پوښتنې یو جواب دا دی چې **امهم** دعام لمونځونو په اړه دی او نفې فقط د هغه لمونځ ده چې به هغې کې به د ټولو نه مخکې حضرت عیسی د آسمان نه راکوز شوی ؤو. د جمعې په ورځ د مازیګر لمونځ ؤو. د کوم نه چې حضرت عیسی انکار کړی ؤو، دې لپاره چې خلکو ته ښکاره شي چې دهغوی خلیفه مهدی دی. دویم جواب دا دی چې د **امهم** حکم مجازًا دی. یعنې حضرت عیسی هغه ته د امامت حکم او کړ نو هغه امامت وکړي. **ای امره بالامامة**. (المرقات ۹/۳۰۸)

## په جهاد کې په کافرانو باندې د فدائي حملو ثبوت

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۲﴾وَعَنْ | عَبْدِ | الله | بْنِ | مَسْعُوْدٍ | قَالَ: | إِنَّ | الساعةَ | لَا تقومُ |
| او د حضرت عبد الله بن مسعود نه روایت دی چې یقینًا قیامت به تر هغه وخته پورې نه قائمیږي | | | | | | | | |
| حَتّٰى | لَا | يُقْسَمَ | ميراثٌ | وَلَا | يُفْرَحَ | بِغَنِيمَةٍ. | ثُمَّ | |
| ترڅو چې د میراث تقسیمیدل بند نشي. او په مال غنیمت سره به خوشحالیدل نه پریږدي. بیا ابن مسعود | | | | | | | | |
| قَالَ: | عَدُوٌّ | يَجْمَعُوْن | لِأَهْلِ | الشَّامِ | | | | |
| بیان کړل چې دښمن یعنې کافر به د اهل شام سره د جنګ کولو لپاره فوځ او طاقت جمع کړي. دلته مسلمانان | | | | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَ يَجْمَعُ | لَهُمْ | أَهْلُ | الْإِسْلَامِ | ( يَعْنِي الرُّومِ) | |

به هم د دې کافرو سره د مقابله کولو لپاره لښکر او طاقت جمع کوي. د دښمن نه مراد رومیان دي. نو

| | | | |
|---|---|---|---|
| فيتشرّط | الْمُسْلِمُون | شُرْطَةٌ | لِلْمَوْتِ |

مسلمانان به د خپل فوځ نه څه کسان تاکلو باندې مخکې ولیږي، دې لپاره چې جنګ وکړي او مړه شي. او که

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَا | تَرْجِعُ | إِلَّا | غَالِبَةً | فَيَقْتَتِلون |

هغوی بیرته راشي نو فاتح او غالب راشي. نو دواړو اړخونو لښکري به د یو بل مقابلې ته او دریږي تر دېچې د

| | | |
|---|---|---|
| حَتَّى | يُمْسُوا | فَيَفِيءُ | هَؤُلَاءِ |

دواړو لښکرو ترمینځ به شپه راشي. د غه شان دواړه ډلې به خپلو خپلو ځایونو ته راشي. او نه به په دوي کې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَ | هَؤُلَاءِ | كل | غير | غَالِب |

څوک غالب او فاتح وي. (او نه به څوک مغلوب او شکست خورده وي) البته د دواړو ډلو هغه خاص او تاکلی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| و | تفنى | الشرطة | ثُمَّ | يَتَشَرَّطُ |

شوي ډلې چې هغه د جنګ کولو لپاره مخکې تللي وي، فنا به شي. بیا (په دویمه ورځ) مسلمانان به یو بل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الْمُسْلِمُون | شُرْطَةً | لِلْمَوْتِ | لَا | تَرْجِعُ | إِلَّا غالبة |

لښکر تاکلو باندې مخکې ولیږي، دې لپاره چې هغوی جنګ وکړي، او مړه شي یا بیرته فاتح راشي، نو دواړو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فيقتتلون | حتى | يَحْجِزَ | بَيْنَهُمُ | اللَّيْلُ |

اړخونو لښکري به د یو بل سره په جنګ شي، تر دې چې د دواړو لښکرو ترمینځ به شپه راشي او د دواړو اړخونو

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَيَفِيءُ | هَؤُلَاءِ | وَ | هَؤُلَاءِ كُلٌّ |

فوځیان به خپلو خپلو ځایونو ته بیرته راشي. په دوې کې به هیڅوک غالب نه وي. (نه څوک مغلوب)

| | | | |
|---|---|---|---|
| غير | غَالِب | و | تفنى | الشرطة |

البته د دواړو ډلو هغه خاص او تاکلی شوي ډلې چې هغه د جنګ کولو لپاره مخکې تللي وي، فنا به شي.

| | | |
|---|---|---|
| ثُمَّ | يشْتَرط | الْمُسْلِمُون |

بیا (په دریمه ورځ) مسلمانان به یو بل لښکر تاکلو باندې مخکې ولیږي، دې لپاره چې هغوی جنګ وکړي،

| | | | |
|---|---|---|---|
| شُرْطَةٌ | لِلْمَوْتِ | لَا | تَرْجِعُ |

او مړه شي یا بیرته فاتح راشي، نو دواړو اړخونو لښکري به د یو بل سره په جنګ شي، تر دې چې د دواړو لښکرو

إِلَّا غَالِبَةٌ فيقتتلون حَتَّى يُنْسُوا فَيَفِيءُ هٰؤُلَاءِ وَ هٰؤُلَاءِ

ترمینځ به شپه راشي او دواړو اړخونو فوځیان به خپلو خپلو ځایونو ته بیرته راشي. په دوي کې به هیڅوک

كُلٌّ غَيْرُ غَالِبٍ وَتَفْنَى

غالب نه وي. (نه څوک مغلوب) البته د دواړو ډلو هغه خاص او ټاکلي شوي ډلي چې هغه د جنګ کولو لپاره

الشُّرْطَةُ فَإِذَا كَانَ يَوْمُ الرَّابِعِ نَهَدَ إِلَيهِم بقيةُ أَهْلِ الإِسلام

مخکې تللي وي، فنا به شي. او بیا چې کله څلورم ورځ وي نو د مسلمانانو پاتې ټول فوځ به د کافرو سره د

فيجعلُ الله الدَّبَرَةَ عَلَيْهِم

جنګ کولو لپاره ؤوځي او الله تعالی به د هغوی په لاس باندې کافرو ته شکست ورکړي. بهرحال مسلمانان

فيقتلون مَقْتَلَةً لَمْ يُرَ مِثْلُهَا حَتَّى

به ډیر سخت جنګ وکړي. او داسې به وجنګیږي چې داسې جنګ به کله هم نه وي لیدلی شوی، تردې که یوه

إِنَّ الطَّائِرَ ليمر بجنابتهم فَلَا يُخَلِّفُهُمْ

مرغۍ د لښکر په خلکو باندې د پاسه تیریدل او غواړي نو هغوی به شاه ته پرې نږدي. یعنې د هغوی نه به

حَتَّى يَخِرَّ مَيِّتًا فَيَتَعَادَّ بَنُو الأَبِ كَانُوا مِائَةً

مخکې نشي تیریدلی چې په زمکه به راوګوزار شي. بیا د یو پلار ځامن چې د هغوی شمیره به سل وي. خپل به

فَلَا يَجِدُونَهُ بَقِيَ مِنْهُمْ إِلَّا الرَّجُلُ الوَاحِدُ فَبِأَيِّ غَنِيمَةٍ

شمارل شروع کړي. نو په هغوی کې به فقط یو کس بیامومي. نو په داسې صورت کې به کوم مال غنیمت

يُفْرَحُ أَوْ أَيِّ مِيرَاثٍ يقسم ؟ فَبَينا هُمْ كَذَلِكَ

د خوشحالۍ سبب وي. او کوم میراث به تقسیم شي؟ بهرحال مسلمانان به دې حالت کوي چې ناڅاپه د یو

إِذْ سَمِعُوا بِبَأْسٍ هُوَ أَكْبَرُ مِنْ ذٰلِكَ فَجَاءَهُمُ الصَّرِيخُ :

سخت جنګ خبر به راشي. چې هغه د اول جنګ نه هم ډیر غټ او خطرناک به وي. بیا به مسلمانانو ته اوزاونه

أَنَّ الدَّجَّالَ قَدْ خَلَفَهُمْ فِي ذَرَارِيِّهِمْ فَيَرْفُضُونَ مَا فِي أَيْدِيهِمْ

واوري چې د دوي په نشتوالي کې دجال د هغوی اهل او عیال ته رسیدلی دی. هغه مسلمانان به د خپل لاس

وَ يُقْبِلُونَ فَيَبْعَثُونَ عَشْرَ فَوَارِسَ

شیان ګوزارولو باندې د جال ته مخه وکړي، او هغوی به خپل لس سپاره مخکې ولیږي دې لپاره چې د دښمن

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| طَلِيعَةً ". | قَالَ | رَسُولُ | الله | صَلَّى | الله عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: |

په اړه باندې باندې خبر ترلاسه کړي. رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي وُو چې مسلمانان به کوم سپاره مخکې ليږي يقيناً

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنِّي | لَأَعْرِفُ | أَسْمَاءَهُمْ | وَأَسْمَاءَ | آبَائِهِمْ | وَأَلْوَانَ | خُيُولِهِمْ |

زه د هغوى او د هغوى د پلارانو نومونه هم پيژنم او دا هم پيژنم چې د هغوى اسونه به په څه رنګ وي. دغه شان

هُمْ خَيْرُ فَوَارِسَ أَوْ مِنْ خَيْرِ فَوَارِسَ عَلَى ظَهْرِ الأَرْض يَوْمَئِذٍ . رَوَاهُ مُسلم[1]

هغوى به غوره سپاره وي. يا يې او فرمايل چې هغوى به دغه وخت په مخ د زمکه باندې غوره سپارونه وي.

**توضيح:** لايقسم: يعنې دهغوى ميراث به نشي تقسيمدلى . د دې وجه به دا وي چې ميراث اخستونکى به هيڅوک پاتې نه وي نو بيا به ميراث په چا باندې تقسيم شي؟ **ولايفرح:** يعنې په دې فتح کې چې کوم مال غنيمت لاس ته راشي، په هغې باندې به هيڅوک خوشحاله نه وي، ځکه چې ټولې کورنۍ به په دې جنګ کې شهيداني شوي وي. نو بيا به څوک خوشحاله وي؟ **شرطة للموت:** شرطه جماعت، طائفه او ډلې ته ويلى شويده. مطلب دا دى چې مسلمانان به د کافرو په مقابله کې يو جنګيالۍ ډله جوړه کړي او هغه ډله به په مرګ باندې لوظ وکړي. چې يا خو به غالب شو يا به مرګ ته غاړه ورکړو! په قاماوسکې يې د شرطه په اړه ليکلي دي: (المرقات ۹/۳۰۹)

**وهم كتبية تشهد الحرب وتهيأ للموت وقيل سموا بها لانهم يشترطون ان يتقدموا وبعدوا انفسهم للهلكة اى ان المسلمين يبعثون مقدمتهم على ان لاينهزموا بل يتوقفوا ويثبتوا الى ان يقتلوا او يغلبوا.** (المرقات ۹/۳۱۰)

د دې حديث د مجموعې مفهوم نه دا خبره ښکاره کيږي چې د کافرو په ډله باندې دروند بريد کول او هغوى تباه کول او په هغې کې خپل ځان په داؤ لګول منع نه دي. بلکې د دې حديث نه ثابت دي چې کله يو مجاهد په مرګ باندې لوظ او وعده کولو سره مخکې ځي او په خندا باندې مرګ ته غاړه ورکوي نو هغه ته که ته څه هم او ايي . په حقيقت کې هم دا خودکش بريد دى. چې دا په حقيقت کې د نورو د کش بريد دى. او فيقتلون او ويقتتلون سره برابر دي. نن سبا خلک شور کوي چې دا ناجائز دي. که د خپل ځان جنګول بند شي . د جهاد تصور ختم شي، خودکش بريد د جهاد په څو صورتونو کې يو انتهايې صورت دى. خلکو لپاره پکار دي چې په هغه اسبابو باندې سوچ وکړي چې د کومو اسبابو يو ديندار او هوښيار سړى په دې اقدام باندې مجبور کړيدى. بلکې نابالغ ماشومان دې

---

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۲۳ رقم الحديث (۲۸۹۹-۳۷)

حالاتو ليوني کېږدي ، خودکش بريد کونکی د چا نه مشوره نه اخلي، څه چې کوي په خپله ذمه وارئ او مجبورئ نه يې کوي. حکومت څوک ذمه وار ګرځوي ، بلکې په خپله پاليسئ باندې دې غور وکړي. **شرطة للموت**: يعنې بمبار او خودکش ډلې نوم دی. پاس چې ملا علی قاری چې کوم عربې عبارتونه د دې حديث په تشريح کې ذکر کړيدي. هغه هم په غور سره لاوستل غواړي. امام محمد په سير کبير کې د خود کش بريدونو د جواز فتوی ورکړې ده.

**لاترجع**: دا جمله **شرطة للموت** لپاره بيان او صفت کاشفه دی.

**يفئ**: رجوع او د ستنيدلو په معنی دی. يعنې د شپې د راتلو د وجې نه د واړو اړخونو خلک به د ميدان جنګ نه بيرته لاړشي.

**نهد**: **ای قام** يعنې په څلورمه ورځه د مسلمانانو وړه ډله د بريد لپاره پاڅيږي.

**الدبرة**: د ادبار نه دی. شکست ته وايي. يعنې کافر به شکست وکړي. (المرقات۹/۳۱۱)

**جنبات**: اطراف او غاړو ته وايي. (المرقات۹/۳۱۲)

**فلا يخلفهم**: د باب تفعيل نه شاه پريخودلو په معنی دی. يعنې هغه مرغې به د مقتولينو مړې شاه پرې نږدي. بلکې مخکې به مړه شي. ځکه چې مړي به ډير وي. او خاوسا شوي به وي. د دې بدبو د وجې نه به مرغئ مړه شي. مطلب دا دی چې دمړو ميدان به دومره فراخه وي چې مرغئ به په الوتنه کې مړه شي او د مړو نه به وانوړي. **فيعتاد بنو الاب**: يعنې د يو پلار اولاد بلکې ټوله کورنئ چې کله وشماري نو د خاندان سل کسانو کې به يو سړی بچ شوی وي. نو آيا غنيمت به تقسيم شي؟ او په دې باندې به څوک خوشحاله شي. او څه ميراث به وي او څه به د دې تقسيم وي؟(المرقات۹/۳۱۲)

## ميدان جهاد کې د تکبير نعره غټه وسله ده

| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : هَلْ سَمِعْتُمْ بِمَدِينَةٍ |
|---|
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه روايت دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم پوښتنه اوکړه چې آيا تاسو د کوم داسې ښار |
| جَانِبٌ مِنْهَا فِي الْبَرِّ وَ جَانِبٌ مِنْهَا فِي الْبَحْرِ ؟ قَالُوْا : نَعَمْ |
| په اړه باندې اوريدلي چې د هغې يو اړخ ته سمندر دی او يو اړخ ته ځنګل دی؟ صحابؤ عرض اوکړو چې هو |
| يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ : " لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتَّى |
| يارسول الله! نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: قيامت به تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو چې د حضرت اسحٰق |

| |
|---|
| يَغْزُوَهَا سَبْعُون أَلْفًا مِنْ بني إِسحاق |
| د اولاد نه اويا زره(۷۰۰۰۰) كسان د دې ښار د خلكو سره جنګ اا ونكړي. د حضرت اسحٰق د اولاد |
| فَإِذا جاؤوها نَزَلُوا فَلَمْ يُقَاتِلُوا بِسِلَاحٍ |
| نه به دغه خلک دې ښار ته راشي او دلته به ديره شي. خو دغه خلک به د ښار د خلكو سره په اوسلو باندې |
| وَلَمْ يَرْمُوا بِسَهْمٍ قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا الله وَالله أَكْبَرُ |
| جنګ نكوي او نه به د هغوى اړخ ته غشي ګوزاروي بلكې د لا الٰه الا الله والله اكبر چيغه به اوچته كړي |
| فَيَسْقُطُ أحدُ جانبيها. قالَ ثورُ بنُ يزيد الرَّاوِي: |
| او د ښار دواړو اوخ ته ديوالونو كې به يو ديوال ګوزار شي. د دې حديث راوي ثوربن يزيد ويلې دي چې زما |
| لَا أَعْلَمُهُ إِلَّا قَالَ : " الَّذِي فِي الْبَحْر |
| خيال دی چې حضرت ابو هريره دلته د سمندر اړخ ته ديوال ويلی ؤو. بيا به دغه خلک په دويم ځل |
| يَقُولُون الثَّانِيَةَ: لَا إِلَهَ إِلَّا الله وَالله أَكْبَرُ فَيَسْقُطُ جَانِبُهَا الْآخَرُ ثُمَّ |
| لااله الاالله والله اكبر اوايي او د ښار دويم اړخ ته ديوال به ګوزار شي. د دې نه وروسته به دغه خلک په |
| يَقُولون الثَّالِثَةَ: لَا إِلَهَ إِلَّا الله وَالله أَكْبَرُ فَيُفَرَّجُ لَهُم |
| دريم ځل باندې لاالٰه الاالله والله اكبر اوايي نو د دوې لپاره ښار ته د ننوتلو لارې فراخه شي او هغوى به ښار |
| فيدخلونها فيغنمون فَبينا هُمْ يَقْتَسِمُون الْمَغَانِمَ |
| ته ننوځي. بيا به هغوى مال غنيمت راغونډوي. او دا مال غنيمت به خپل مينځ كې تقسيموي چې ناڅاپه به |
| إِذْ جَاءَهُمُ الصَّرِيخُ فَقَالَ: إِنَّ الدَّجَّالَ قَدْ خَرَجَ فَيَتْرُكُون كُلَّ شَيْءٍ |
| آوازراشي چې څوک اوازكوي چې دجال راوتلی دی. (دې اواز اوريدلو سره به) هغوى هر څه پريخودلو سره |
| ويرجعون". رَوَاهُ مُسلم[1] |
| (دجال سره د جنګ كولو لپاره) راستانه شي. |

**توضيح:** مدينة: د دې نه ځينو شارحينو قسطنطنيه مراد اخستلي ده، خو ځيني نورو شارحينو ويلې

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۳۸ رقم الحديث ۲۹۲۰-۷۸)

دي چې دا کوم بل ښار دی. ځکه چې دلته د جنګ ذکر نشته دی. ځکه چې د قسطنطنيه په فتح کيدلو کې د جنګکېدل لازمي دي. خو حقيقت دا دی چې دا د قسطنطنيه ښار دی ، البته صحيح صورت حال دا دی چې د دې ښار نه ګير چاپيره به هغه وخت ديوال وي، چې ښار ته ننوتلو لپاره به لاره نه وي، نو مجاهدين به ژوره سره د تکبير چيغه اوچته کړي ، چې په هغې سره به د ښار ديوال ګوزار شي، تردې حده پورې خو به جنګ نه کيږي. البته د دې نه وروسته چې کله مجاهدين ښار ته ننه وي نو هلته به سخت جنګ وشي او ډير مال غنيمت به لاس ته راشي، بنو اسحاق اويا زره (۷۰۰۰۰) کسانو د سمندر په غاړه په اسلامي لښکر کې ګډون کول د دې خبرې دليل دی چې دا د قسطنطنيه ښار دی. او دا واقعه د قيامت په نښو کې غټه نښه ده . او ملحمة الکبرٰی نه وروسته د دې تفصيل دی. بنو اسحاق د بنو اسماعيل په مقابل کې اهل کتابو ته ويلي شويدي. دا به د شام مسلمانان وي، چې د اهل کتابو نه به وي. (المرقات ۳۱۳-۹/۳۱۴)

۱ جمادی الثاني ۱٤۱۸هـ

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## قيامت د نښو ترتيب

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۱٤﴾ عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: عُمْرَانُ بَيْتِ الْمَقْدِسِ | | | |
| حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل: د بيت المقدس په پورا توګه آباديدل | | | |
| وَخَرَابُ | يَثْرِبَ | خُرُوجُ | الْمَلْحَمَةِ |
| به د مدينې منورې د خرابئ سبب وي. او د مدينې منورې خرابي به د فتنو او د ټولو نه غټ جنګ د راتګ | | | |
| وَخُرُوجُ | الْمَلْحَمَةِ | فَتْحُ | قُسْطَنْطِينِيَّةَ |
| سبب وي. او د دې ټولو نه د غټ جنګ راتګ به د قسطنطنيه د فتح کيدلو سبب وي. او د قسطنطنيه | | | |
| وَفَتْحُ قُسْطَنْطِينِيَّةَ خُرُوجُ الدَّجَّالِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] | | | |
| فتح کيدل به د دجال د راښکاره کيدلو سبب او د دې نښه به وي. | | | |

**توضيح**: عمران بيت المقدس: يعنې کله چې بيت المقدس په آخري زمانه کې خرابئ او بربادئ نه وروسته په پورا توګه آباد شي نو دا به د دې خبرې نښه وي چې په دې باندې به د عيسايانو قبضه شي او په شام باندې به د عيسايانو غلبه د مدينې منورې لپاره د خرابئ سبب جوړيږي، ځکه چې د مدينې نه کله خلک د مقابلې لپاره لاړ شي، نو مدينه به خالي پاتې شي، او کمزورې به شي، هم دا

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۴/۴۸۲ رقم الحديث ۴۲۹۴ وابن ماجه في السنن ۲/۱۳۷۰ رقم الحديث ۴۰۹۲ .

خرابې ده . په دې علاماتو کې هر سابق د لاحق لپاره علامت دی . عمران بیت المقدس د یثرب د خرابئ نښه ده . که متصله وي او که فاصله وي . او خرابي مدینة الملحمة الکبری لپاره نښه ده . اګرکه فاصله وي.او ملحمة الکبری د قسطنطنطه د فتح نښه ده .او هغه د خروج دجال نښنه ده . که فاصله پکې وي اکه متصل وي . په مینځ کې د دجال د راوتلو دروغژن اعلان به هم وشي، ملحمة الکبریٰ به د مسلمانانو او عیسایانو ترمینځ د یو غټ جنګ نوم دی . کافر به نهه لاکهه شپیته زره وي، خو په آخر کې به شکست وخوري. (المرقات ۹/۳۱۵)

| ﴿۱۵﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسلم: الملحمة الْعُظْمَى وَفتح القسطنطينة |
|---|
| او حضرت معاذ بن جبل فرمایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل: د جنګ عظیم راتګ او د قسطنطنیه فتح |
| وَخُرُوجُ الدَّجَّالِ فِي سَبْعَةِ أَشْهُرٍ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد[1] |
| کېدل او د دجال راوتل دا ټول به په اؤوه میاشتو کې وي. |

پہ دې حدیث باندې یو اشکال دی، سوال او جواب وروستي ۱۶ حدیث کې راروان دی.

| ﴿۱۶﴾ وَعَن عبد الله بن بُسر أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: بَيْنَ الْمَلْحَمَةِ |
|---|
| او حضرت عبدالله بن بسرنه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: جنګ عظیم او ذکر شوی ښار |
| وَفَتْحِ الْمَدِينَةِ سِتُّ سِنِينَ وَيَخْرُجُ الدَّجَّالُ فِي السَّابِعَةِ . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَقَالَ: هَذَا أَصح[2] |
| یعنې قسطنطنیه د فتح کیدلو مینځنی وخت به شپږ کاله وي، او په اؤوم کال به دجال راوځي، |

**توضیح**: ست سنین: یعني **ملحمة الکبری** او قسطنطنیه د فتح ترمینځ زمانه به شپږ کاله وي. (المرقات ۹/۳۱۷)

**سوال**: پاس حدیث نمبر: ۱۵ کې ملحمة الکبری او فتح قسطنطنیه او خروج دجال یې په اؤوه میاشتو کې دننه ذکر کړیدي او حال دا دی چې دلته ملحمة الکبریٰ او فتح قسطنطنیه ترمینځ شپږ کاله زمانه ویلی شویده. او په اؤوم کال باندې خروج دجال ویلی شویدی. په دواړو حدیثونو کې دا واضحه **تعارض** دی. د دې جواب څه دی؟

**جواب**: علماؤ دا جواب کړی دی چې دا دویم حدیث نمبر: ۱۶ صحیح دی . او دا راجح دی. په اول روایت باندې اصحاب الجرح کلام کړیدی. شاید هلته د راوي نه خطاء شویده، چې هغه د اوه کاله په ځای باندې اوه میاشتې ویلي دي.

---

(۱) أخرجه ابوداود في السنن ۴/۴۸۳ رقم الحديث (۴۲۹۵) والترمذي في السنن ۴/۴۴۲ .

(۲) أخرجه ابوداود في السنن ۴/۴۸۳ رقم الحديث ۴۲۹۶ وابن ماجه في السنن ۲/۱۳۷۰ رقم الحديث ۴۰۹۳.

## د مديني منورې محاصره

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: يُوشِكُ الْمُسْلِمُون أَنْ يُحَاصَرُوا إِلَى الْمَدِينَةِ |
| او حضرت ابن عمر فرمايي چې هغه وخت راتلونکی دی چې مسلمانان به په مدينه کې محاصره شي |
| حَتَّى يَكُون أَبْعَدَ مَسَالِحِهِمْ سَلَاحُ وَسَلَاحُ: قَرِيبٌ مِنْ خَيْبَرَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| تردې چې دهغوی ډېر لېرې مورچه به سلاح وي، او سلاح د خيبر سره نژدې د يو ځای نوم دی. |

**توضيح**: المدينة: دلته د مدينې نه مراد مدينه منوره ده. چې دښمن به د دې محاصره وکړي. دا به د عيسائيت د خپريدلو زمانه وي، او دغه وخت به د حضرت مهدی ظهور وشي، د مدينې په دفاع کې به مسلمانان مسلح مورچې جوړې کړي، نو کومه مورچه چې د ټولو نه لېرې وي، هغه به د سلاح په مقام باندې وي. سلاح د خيبر سره نژدې د يو ځای نوم د ی. **مسالح**: دا د مسلح جمع ده. او مسلح هغه مورچې ته وايئ چې په هغې کښاوسلوا له څوکئ وي. دا پيشنګوئي د هغه وخت په اړه باندې ده کله چې عيسائيت مدينې ته رانژدې شي دغه وخت به د حضرت مهدی د ظهور وي (المرقات ۹/۳۱۷)

## د ظهور مهدی نه مخکې يو عظيم جنګ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ ذِي مِخْبَرٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " | | | | | |
| او حضرت ذی مخبر فرمايي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دي چې مسلمانانو! هغه وخت راتلونکې دی | | | | | |
| سَتُصَالِحُون | الرُّومَ | صُلْحًا | آمِنًا | | |
| چې تاسو به د روميانو سره داسې جوړه او کړئ چې هغه به د امن صلح وي. او بيا به تاسو او روميان خپل مينځ | | | | | |
| فَتَغْزُون | أَنْتُمْ | وَهُمْ | عَدُوًّا | مِنْ | وَرَائِكُمْ | فَتُنْصَرُون |
| کې د خپل ځان نه غيره د يو بل دښمن په خلاف به جنګ کوئ نو ستاسو به مرسته او ملاتړ وشي. تاسو به | | | | | |
| وَتَغْنَمُون | وَتَسْلَمُون | ثُمَّ | تَرْجِعُون | | |
| مال غنيمت ترلاسه کړئ، او تاسو به سلامت ياست، د دې نه وروسته چې کله تاسو بيرته راستانه شئ نو | | | | | |
| حَتَّى | تَنْزِلُوا | بِمَرْجٍ | ذِي | تُلُولٍ | |
| تاسو او روميان به په يو داسې ځای کېديره واچوئ چې هغه به شنه وي، او هلته به غونډئ وي، هلته به د | | | | | |

---

(۱) أخرجه أبو داود في السنن ۴/۴۴۹ رقم الحديث ۴۲۹۹ وأحمد في السنن ۲/۴۰۲ .

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَيَرْفَعُ | رَجُلٌ | مِنْ | أَهْلِ | النَّصْرَانِيَّةِ | الصَّلِيبَ | فَيَقُولُ: | غَلَبَ الصَّلِيبُ |

عیسایانو یو سړی صلیب او چتولو باندې او ایي چې د صلیب غلبه شویده، په دې خبره باندې به د مسلمانانو

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَيَغْضَبُ | رَجُلٌ | مِنَ | الْمُسْلِمِينَ | فَيَدُقُّهُ | فَعِنْدَ | ذَلِكَ | تَغْدِرُ الرُّومُ |

نه یا و سړی په غصه شي، نو هغه مسلمان به دغه صلیب مات کړي، او دغه وخت نه به یو اځې رومیان وعده

وَتَجْمَعُ لِلْمَلْحَمَةِ " وَزَادَ بَعْضُهُمْ:

ماته کړي او صلح به ختمه کړي بلکې د جنګ لپاره به خپل خلک راغونډ کړي. ځینو راویانو دا الفاظ نقل

فَيَثُورُ الْمُسْلِمُونَ إِلَى أَسْلِحَتِهِمْ فَيَقْتَتِلُون

کړيدي چې د دې نه وروسته به مسلمانان خپلو وسلو ته ورمنډه کړي او په هغې سره جنګ کوي. نو الله تعالی

فيكرم الله تِلْكَ الْعِصَابَةَ بِالشَّهَادَةِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

به د مسلمانانو دې جماعت ته د شهادت فضیلت او عظمت ورکړي.

## د حبشي يو سړی به په کعبه ګوزار کړي

﴿۱۹﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت عبد الله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل:

اتْرُكُوا الْحَبَشَةَ مَا تَرَكُوكُمْ

تاسو حبشو لره د هغوی په حال پریږدئ او د هغوی سره هیڅ قسم تعارض مکوئ، تر هغه وخته پورې چې هغوی خه و نه وایي او

فَإِنَّهُ لَا يَسْتَخْرِجُ كَنْزَ الْكَعْبَةِ إِلَّا

تاسو هغوی ته تعارض مکوئ او په دې کې هیڅ شک نشته چې د کعبې خزانه به یو حبشي راوباسي چې

ذُو السُّوَيْقَتَيْنِ مِنَ الْحَبَشَةِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2]

د هغه دواړه پونډۍ به وړې وړې وي [ابو داؤد]

**توضیح:** اتركوا الحبشة: یعنې په حبشو کې د شر او فساد کې دا سپرغۍ پرته ده. ترڅو چې هغوی برید کړ نشي. تاسو د هغوی د راپارولو کوشش مه کوئ، ځکه چې د هغوی په فساد باندې به د بیت الله بې عزتي وشي، خزانه به لوټ کړی شي، او بیت الله به ګوزار کړی شي. (المرقات ۹/۳۱۹)

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۴۸۱ ۲ رقم الحديث ۴۲۹۲ وابن ماجه في السنن ۱۳۶۹/۲ رقم الحديث ۴۰۸۹.

(۲) أخرجه أبوداود في السنن ۴۹۰/۴ رقم الحديث ۴۳۰۹ والنسائي في السنن ۴۴/۶ رقم الحديث ۳۱۷۷

**سويقتين:** دا د ساق تصغير دى. په دې کې دهغ سرى تذليل دى. د عامو حبشو خپې دغه شان دي. د دې سړي صفت افحج هم راځي. افحج څکه راځي، چې د خپو خپړي د مزل کولو په وخت کې يو بل سره نژدې نژدې وي. او د خپو غوزان يې د يو بل نه لرې وي. چې هغې ته پهدا وايي. دا افسوسناکه واقعه ده. د حضرت عيسى د زمانې نه وروسته ده. چې په دنيا کې به د الله الله کولو والا هيڅوک پاتې نه وي.

## حبش او ترکان مه تنګوئ

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: دَعُوا الْحَبَشَةَ |
| او د نبي کريم ﷺ په صحابو کې يو صحابي نه روايت دى چې نبي عليه السلام وفرمايل: تاسو حبش د |
| مَا وَدَعُوكُمْ وَاتْرُكُوا التُّرْكَ |
| هغوى په حال باندې پريږدئ ترڅو چې هغوى تاسو په خپل حال پريږدي او ترکان هم د هغوى په حال پريږدئ، |
| مَا تَرَكُوكُمْ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ[1] |
| ترڅو چې هغوى تاسو په خپل حال پريږدي. |

**توضيح:** يعني ترکان او حبشو ته ترهغه وخته پورې څه مه وايئ چې تاسو ته څه نه وايي.

**پوښتنه:** دلته اعتراض دا دى چې قرآن کريم کې ﴿قَاتِلُوا الْمُشْرِكِينَ كَافَّةً﴾ واضح اعلان شته دى. چې د ټولو کافرو سره جنګ او کړئ. بيا دلته حبش او ترکانو سره د جنګ نه کولو څه مطلب دى؟

**جواب:** د دې پوښتنې جواب دا دى چې د دې قومونو سره جنګ نه کول په هغه وخت باندې محمول دي کله چې جهاد د فرض کفايه په درجه کې وي. که جهاد فرض عين شي نو بيا دغه وخت د دې قومونو سره جنګ کول به فرض وي. عرب جند الاسلام ؤو او صحابه جند الله او جند الاسلام ؤو. د هغوى شميره دومره هم ډيره نه وه. د حبشو علاقه د هغوى نه لرې هم وه. سخت مزل والا هم وه. جهاد فرض کفايې هم ؤو. هغه وخته دغه قومونو سره د جنګ نه کولو حکم وشو، دې لپاره چې جند الاسلام په نورو اطرافو کې کار وکړي، خو که ضرورت پيدا شو نو بيا به د دوې سره هم جنګ کول وي، نو د ترکانو سره جنګ وشو او بيا به هم کيږي، کله چې هغوى په کفر باندې وي. (المرقات ۹/۳۲۰)

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ بُرَيْدَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَدِيثٍ |
| حضرت بريده اسلمى رضي الله عنه روايت دى چې هغه د نبي کريم ﷺ نه د دې حديث په اړه چې د هغې ابتداء |

---

[1] اخرجه أبوداود في السنن ۴/۴۵۸ رقم الحديث ۴۳۰۲ والنسائي في السنن ۶/۴۴ رقم الحديث ۳۱۷۷.

يُقَاتِلُكُمْ قَوْمٌ صِغَارُ الْأَعْيُنِ يَعْنِي التُّرْكَ.

داسې ده چې تاسو سره به د وړو سترګو والا قوم يعنې ترک قوم جنګ کوي. دا هم روايت کړل چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ

قَالَ: تسوقونهم ثَلَاثَ مَرَّاتٍ حَتَّى تلحقوهم بِجَزِيرَةِ الْعَرَبِ

وفرمايل: تاسو به دغه قوم خلک درې ځل په شاه وزغلوئ. تردې چې تاسو به دوی لره جزيره عرب پورې وشړئ

فَأَمَّا السِّيَاقَةِ الْأُولَى فَيَنْجُو مَنْ هَرَبَ مِنْهُمْ

کله چې تاسو هغوی ته په اول ځل باندې شکست ورکړئ نو تختيدونکې خلک به خپل ځانونه روغ وباسي.

وَأَمَّا فِي الثَّانِيَةِ فينجو بعض وَيهلك

کله چې په دويم ځل باندې شکست ورکړئ نو څه به په هغويکې وتختي او څه به ووژلی شي، او کله چې به

بعض وَأَما الثَّالِثَةِ فَيُصْطَلَمُونَ

دريم ځل باندې هغوی ته شکست ورکولو باندې وزغلوئ نو هغوی به د جرړې نه ختم شي يعنې دا دريم

أَوْ كَمَا قَالَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

ځل شکست به هغوی لره بيخي ختم کړي. يا يې د دې په شان وفرمايل.

**توضيح: يعنى الترك**: دا د کوم راوي د اړخ نه د صغار الاعين تفسير دی. **تسوقونهم**: يعنې تاسو به درې ځل هغوی ته شکست ورکړئ. تردې چې تاسو به هغوی جزيره عرب پورې وشړئ، حجاز، يمن، او يمامه ته جزيرة العرب وايي.

السياقة الاولى: دا د هغوی د دتختيدلو تفصيل دی، چې په اول ځل کله وتختي نو بچ به شي، په دويم ځل به څه بچ وساتل شي او په دريم ځل به ټول مړه شي. (المرقات ۹/۳۲۱)

## د بغداد په باره کې پيشنګوئي

﴿۲۲﴾ وَعَن أَبِي بكرَة أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " يَنْزِلُ أُنَاسٌ مِنْ أُمَّتِي

او حضرت ابو بکره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: زما د امت خلک به يوې ټيټې

بِغَائِطٍ يُسَمُّونَهُ الْبَصْرَةَ عِنْدَ نَهْرٍ

زمکې ته رسيدلو باندې هلته قيام وکړي. او د هغه ځای نوم به بصره کيږدي، هغه ځای به يو نهر ته نژدې

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۴/۴۸۷ رقم الحديث ۴۳۰۵ وأحمد في المسند ۵/۳۴۸

يُقَالُ لَهُ: دِجْلَةُ يَكُون عَلَيْهِ جِسْرٌ يَكْثُرُ أَهْلُهَا

وي. چې هغې ته به دجله ويلی کيږي. په دې نهر باندې به پُل وي، په بصره کې د اوسيدونکو آبادی به ډير

وَيَكُون مِنْ أَمْصَارِ الْمُسْلِمِينَ وَإِذَا كَانَ فِي آخِرِ الزَّمَانِ جَاءَ بَنُو قَنْطُورَاءَ

شي او د دې شميره به د مسلمانانو په (غټو) ښارونو کې کيږي، او بيا چې کله آخرې زمانه شي نو د قنطورا

عِرَاضُ الْوُجُوهِ صِغَارُ الْأَعْيُنِ

اولاد به د دې ښار د خلکو سره د جنګ کولو لپاره راشي، د هغوی څلې به پلنې او سترګې به يې وړې وړې وي

حَتَّى يَنْزِلُوا عَلَى شَطِّ النَّهْرِ فَيَتَفَرَّقُ أَهْلُهَا ثَلَاثَ فِرَقٍ

دغه خلک به د نهر په غاړه باندې ديره واچوي نو (دوې ته په کتلو باندې) د ښار خلک به په درې برخو کې

فِرْقَةٌ يَأْخُذُون فِي أَذْنَابِ الْبَقَرِ وَالْبَرِّيَّةِ وَهَلَكُوا

تقسيم شي. يوه برخه خو به د غواګانو لکئ او ځنګلو کې پناه واخلي. حالانکې دغه خلک به د مرګ او تباهې

وَ فِرْقَةٌ يَأْخُذُون لِأَنْفُسِهِمْ

سره مخامخ شي. او دويمه برخه به د قنطورا د اولاد نه د خپل ځانونو لپاره امان غواړي، خو دغه خلک به هم

وَ. هَلَكُوا وَفِرْقَةٌ يَجْعَلُون ذَرَارِيَّهُمْ خَلْفَ ظُهُورِهِمْ

مرګ او تباهې سره مخ شي، او دريمه برخه به هغه وي چې هغوی به خپل اولاد او خپلې ښځې شاه ته پريخودلو

وَ يُقَاتِلُونَهُمْ وَ هُمُ الشُّهَدَاءُ ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

باندې د دښمنانو سره به جنګ کوي. او په دوې کې به اکثرؤوژلی شي، چې هغوی به د شهادت مرتبې ته ورسيږي

**توضيح:** غائط: يعنې يو خکته او خور جنه زمکه باندې به کوز شي. چې هغې ته به دغه خلک بصره وايي. دلته د بصره نه مراد بغداد دی. ځکه چې د دجله د بغداد په خوا باندې تيريږي. د بصرې په خوا باندې نه تيريږي. ځکه چې په هغه زمانه کې ابادې خپره وه ، او د بصرې نه ګيرچاپيره ټولې علاقې آبادې وي. ګويا د بغداد نوم وروسته مشهور شو. مخکې دا ټولې علاقې په بصره او دهغې په چاپيريال کې شمارل کيدلې، ځينو شارحينو په دې حديث کې د بصرې نه مشهوره بصره مراد نه ده اخستلې کومه چې نن سبا مشهورده. بلکې بغداد کې دننه د يو ځای نوم بصره ؤو. چې هغې ته

[1] اخرجه ابوداود في السنن ۲/۴۸۷ رقم الحديث ۴۳۰۶ واحمد في المسند ۵/۴۵ .

به باب البصره ویلی کیدله. هغه هغه وخت په نوم سره هم مشهوره وه. بهرحال دلته په ... د
جلې د ذکر نه هم معلومیږي چې مراد بغداد دی. دغه شان ترکانو په بغداد باندې برید کړی ؤو.
بصره باندې کله هم برید نه دی شوی. مستعصم بالله په دورحکومت کې د تاتاریانو هلاکو خان
بغداد باندې برید کړی ؤو. دغه شان په دې حدیث کې دي چې هغه ښار به د مسلمانانو غټ ښار جوړیږي،
دا صفت هم د بغداد دی. **بنو قنطورا:** دا د ترکانو د مشر نیکه نوم دی. ځینو ویلي دي چې قنطورا د یوې
وینزې نوم ؤو چې د ابراهیم وینزه وه. د هغې د خیټې نه ترک پیدا شویدي. (المرقات ۹/۳۲۳)

**اذناب البقر:** یعنې یوه طبقه خو به دنیا پسې ولګیږي، دغویان لکئ به نیولو باندې قولبي کولو کې
شروع شي، جهاد به پریږدي، نو تباه به شي، دویمه طبقه به د بنو قنطورا نه امان او غواړي، دا به هم تباه
شي، دریمه طبقه به ښه جهاد وکړي، هغه به کامیابه شي، د هلاکو خان نه څه خلکو امان او غوختلو، هغه
ټول ؤوژل. د بغداد په تباهئ کې هلاکو خان یو کروړ شپږ لاکهه انسانان وژلي ؤو. بیا د هغوی د نسل نه د
نورالدین زنګي نه الله تعالی د دین خدمت واخستلو، چې د هغه د باقیات صالحات نه صلاح الدین ایوبی
ؤو. چا چې د هغه مشن پورا کړو. تفصیل تیر شویدی. (المرقات ۹/۳۲۳)

## د بصرې په باره کې پیشنګوئي

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "يَا أَنَسُ إِنَّ النَّاسَ يمصِّرون أُمصاراً |
| او حضرت انس نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: انس! خلک به څه نه وي ښارونه آباد کړي |
| وَإِن مِصْرًا مِنْهَا يُقَالُ لَهُ: الْبَصْرَةُ فَإِنْ أَنْتَ مَرَرْتَ بِهَا أَوْ دَخَلْتَهَا |
| او په دې ښارونو کې به یو ښار بصره وي، نو که ته د دې ښار خوا باندې تیریږې یا دې ښار ته دننه لاړ شې |
| فَإِيَّاكَ وَسِبَاخَهَا وَكَلَأَهَا |
| نو د دې هغه علاقې ته نژدې هم مه ورځه چیرته چې سخته زمکه ده. مه هغه ځایونو ته نژدې ورځه چې هغې ته |
| ونخيلها وَسُوقَهَا وَبَابَ |
| کلاء ویلی کیږي. دغه شان د هغه ځای د کهجورو باغونه او د هغه ځای بازار او د هغه ځای باچاهانو او سردارانو |
| أُمَرَائِهَا وَ عَلَيْكَ بِضَوَاحِيهَا فَإِنَّهُ |
| دروازو ته هم لېرې اوسېږه، فقط د دې ښار د غاړې برخه چې هغې ته ضواحي ویلی کیږي، پروت اوسېږه ځکه |
| يَكُون بِهَا خَسْفٌ و قذفٌ |
| چې هلته په زمکه ... ډونکي کاڼي وریدل او د سختو زلزلو عذاب به نازلیږي، دغه شان په دې علاقو کې |

| ورجُفٌ | وقومٌ | يبيتُون |
|---|---|---|
| به يو داسې قوم وي چې د هغې خلک به د شپې مزو او راحت کې اوده شي خو چې سحر پاڅيږي نو هغوی | | |
| ويصبحون قردة وَخَنَازِير "رَوَاهُ أَبُو دَاوُد"[1] | | |
| شکلونه به د شادو ګانو او خيزيرانو په شان وي. | | |

**توضیح: يمصرون**: يعنې خلک به نوې نوې ښارو آباد کړي، ويلی کيږي چې بصره د حضرت عمر فاروق په دور کې يو مشهور صحابی حضرت عتبه بن غزوان آباده کړې وه. په دې ښار کې کله هم د بتانو عبادت نه ديشوی. نن سبا امريکې په عراق باندې قبضه کړې ده. په بصره کې اکثره آبادې د شيعګانو ده. او په هغوی باندې د برطانيه فوځونه مقرر دي. (المرقات ۹/۳۲۴) **سباخها**: سبخة او سبخة سختې او خوره زمکې ته وايي. چې هغه للمه وي. **کلائها**: کلاء هم د يو ځاې نوم دی. دواړه ځايونه په بصره کې دي. **ضواحي**: د ضاحية جمع ده. د ښار غاړې ته وايي. او د بصرې د يو ښار نوم هم دی. کلاء څريداه ځائ ته وايي. (المرقات ۹/۳۲۴)

بهرحال نبي کريم ﷺ حضرت انس د بصرې اطرافو او باندو کې د اوسيدلو حکم اوکړو او په ښار کې د اوسيدلو نه يې منع کړو ځکه چې دا ورته ويلی شوي ؤو چې په بصره کې د ننه قدرهؤو جبره، معتزله او د خوارجو زور به شي او په دغه خلکو کې به څو خباثتونه وي، چې د هغې د وجې نه به هغوی باندې قذف، خسف او د مسخ عذابونه راځي، ځکه يې د هغوی نه غاړې ته د اوسيدلو حکم ورته وکړو.

## د بصرې د يو کلي د يو جومات فضيلت

| ﴿۲۴﴾وَعَن صَالِح بن دِرْهَم يَقُولُ: انْطَلَقْنَا حَاجِّينَ فَإِذَا رَجُلٌ |
|---|
| او حضرت صالح بن درهم (تابعی) فرمايي چې مونږ د حج لپاره (د بصرې نه مکې) ته لاړو. نو هلته مونږ يو سړی |
| فَقَالَ لَنَا: إِلَى جَنْبِكُمْ قَرْيَةٌ |
| ولاړ وليدلو. هغه زمونږ نه پوښتنه اوکړه چې آيا ستاسو د ښار په چاپيريال کې يو کلی شته چې هغې ته ابله |
| يُقَالُ لَهَا: الْأُبُلَّةُ؟ قُلْنَا: نَعَمْ. قَالَ: مَنْ يَضْمَنُ لِي مِنْكُمْ |
| ويلی کيږي، مونږ وويل هو شته! هغه وويل چې په تاسو کې کوم سړی د دې ذمه اخلي چې هغه به زما د اړخ |

---

[1] اخرجه ابوداود في السنن ۴/۴۸۸ رقم الحديث ۴۳۰۷.

| |
|---|
| أَنْ يُصَلِّيَ لِي فِي مَسْجِدِ الْعَشَّارِ رَكْعَتَيْنِ أَوْ أَرْبَعًا وَيَقُولُ هَذِهِ لِأَبِي هُرَيْرَةَ؟ |
| نه مسجد عشار کې دوه رکعته بلې څلور رکعته لمونځ وکړي، او دا اوایي چې د دې لمونځ ثواب دې ابوهریره رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ |
| سَمِعْتُ خَلِيلِي أَبَا الْقَاسِمِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ يَبْعَثُ مِنْ مَسْجِدِ الْعَشَّارِ |
| ته ورسيږي. ما د خپل صادق یار ابوالقاسم صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوریدلي دي چې یقیناً الله تعالی به د قیامت په ورځ د مسجد |
| يَوْمَ الْقِيَامَةِ شُهَدَاءَ لَا يَقُومُ مَعَ شُهَدَاءِ بَدْرٍ غَيْرُهُمْ . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. |
| عشار نه شهیدان راپاڅوي، او د بدر د شهداؤ سره به د دې شهیدانو نه غیره هیڅوک نه وي، دا روایت ابوداؤ نقل |
| وَقَالَ: هَذَا الْمَسْجِدُ مِمَّا يَلِي النَّهَرَ وَسَنَذْكُرُ |
| کړیدی او ویلې یې دي چې دا جومات د بصرې په چاپیریال اړخ کېدی چې هغه د فرات سیند اړخ ته دی. |
| حَدِيثَ أَبِي الدَّرْدَاءِ: إِنَّ فُسْطَاطَ الْمُسْلِمِينَ فِي بَابِ: ذِكْرِ الْيَمَنِ وَالشَّامِ . إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى[1] |
| او حضرت ابودرداء حدیث ان فسطاط المسلمین به مونږ انشاء الله د یمن او شام د ذکر په بیان کې نقل کړو |

**توضیح:** **ابن درهم:** دا یو تابعی دی. **رجل:** د دې نه مراد حضرت ابوهریره دی. **الی جنبکم:** دلته یوه همزه محذوفه ده، **أَإِلَى:** یعنې ستاسو اړخ ته یو کلی دی. چې د هغې نوم ابله دی. دا د یو مشهور ښار نوم دی. چې بصرې سره نژدې دی. **مسجد العشار:** دا د یو جومات نوم دی. چې په ابله کېدی. خلک دې جومات ته د برکت په غرض سره لمونځ کولو لپاره راځي. په مقدس ځایونو کې لمونځ کول په هیڅ چا پټ نه دي. د غه شان بل انسان ته وصیت کول چې زما لپاره د ثواب په توګه دا عبادت اوکړه او ایصال ثواب اوکړه ، دا جائز دي. د غه شان د چا لپاره د نفلي عبادت ایصال ثواب کول جائز دي. مسجد عشار د شهیدانو په اړه باندې معلومه نشوه چې آیا دا د سابقه امتونو خلک ؤو او که د دې امت شهیدان ؤو. په ظاهره باندې خو داسې ښکاري چې جومات خو پخوانی تاریخي جومات دی، البته شهیدان به د دې امت وي، چې د هغوی درجه د بدر او احد د شهیدانو برابر ده. زما یو شاګرد شیخ موسی چې دا وخت په کراچئ کېدی، هغه د بصرې اوسیدونکی ؤو، هغه وویل چې مسجد عشار زمونږ په محله کېدی. خلک یې د زیارت لپاره راځي. (المرقات ۹/۳۲۶)

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۴/۴۸۹ رقم الحديث ۴۳۰۸

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ذات د فتنو لپاره بند دیزؤو

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾ عَنْ شَقِيقٍ عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ: كُنَّا عِنْدَ عُمَرَ |
| حضرت شقیق (تابعی) د حضرت حذیفه نه روایت کوي چې هغه وفرمایل: مونږ د عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |
| فَقَالَ: أَيُّكُمْ يَحْفَظُ حَدِيثَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| په مجلس کې ناست ؤو. چې هغه زمونږ نه پوښتنه او کړه چې په تاسو کې کوم سړي ته د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه |
| فِي الْفِتْنَةِ؟ فَقُلْتُ: أَنَا أَحْفَظُ |
| حدیث یاد دی چې هغه نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د فتنې په اړه فرمایلی ؤو. ما وویل: ما ته یاد دی او بیخي هغه شان دی |
| كَمَا قَالَ: قَالَ: هَاتِ |
| څنګه چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلی ؤو. حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل: بنه هغه حدیث بیان کړه. ته د حدیث |
| إِنَّكَ لَجَرِيءٌ وَكَيْفَ؟ |
| په روایت کې ډیر زړه ور یې. څه چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي دي، هغه نقل کړه، او د هغې کیفیت بیان کړه. |
| قَالَ: قُلْتُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ |
| حضرت حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې ما بیان کړل چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوریدلي دي چې د سړي |
| فِتْنَةُ الرَّجُلِ فِي أَهْلِهِ وَمَالِهِ وَنَفْسِهِ وَوَلَدِهِ |
| فتنه د هغه په اهل او عیال کې ده. د هغه په مال کې ده. د هغه په نفس کې ده. د هغه په اولاد کې ده. او د هغه |
| وَجَارِهِ يُكَفِّرُهَا الصِّيَامُ وَالصَّلَاةُ وَالصَّدَقَةُ وَالْأَمْرُ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّهْيُ عَنِ الْمُنْكَرِ |
| په ګاونډ کې ده. د هغه دا فتنه روژې، لمونځ، صدقه، امر بالمعروف او نهی المنکر لرې کوي. |
| فَقَالَ عُمَرُ: لَيْسَ هَذَا أُرِيدُ إِنَّمَا أُرِيدُ الَّتِي |
| حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل: زما مدعا په دې فتنې سره نه وه، زه خو د هغه فتنې به اړه باندې اوریدل غواړم |
| تَمُوجُ كَمَوْجِ الْبَحْرِ. قَالَ: مَا لَكَ وَلَهَا يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ؟ إِنَّ بَيْنَكَ |
| چې هغه به د سمندر د چپو په شان چپې وهي! حضرت حذیفه فرمایي چې ما وویل: امیر المؤمنین! نو ستا د هغه فتنې |

وَبَيْنَهَا بَابًا مُغْلَقًا. قَالَ:

سره څه تعلق! ستا او د هغې ترمنيځ خو يوه بند دروازه واقع ده. حضرت عمرو فرمايل چې د غه دروازه

فَيُكْسَرُ الْبَابُ أويفتح؟ قَالَ: قُلْتُ:

به ماته کړی شي يا به برسيرته کړی شي؟ حضرت حذيفه وفرمايل: ما جواب ورکړو چې دروازه به برسيرته

لَا بَلْ يُكْسَرُ. قَالَ: ذَاكَ أَحْرَى

نشي بلکې ماته به کړی شي. حضرت عمرو فرمايل: د دې دروازې په اړه باندې ډيره نژدې ده حقيقت

أَنْ لَا يُغْلَقَ أَبَدًا. قَالَ: فَقُلْنَا لحذيفة:

خبره دا ده چې هغه دې کله بند هنشي. د حديث راوي شقيق فرمايي چې ما د حضرت حذيفه نه پوښتنه او کړه

هَل كَانَ عمر يعلم مَنِ الباب؟

چې آيا عمر د دې نه خبر ؤو چې د دغه دروازې نه څوک مراد دی؟ حضرت حذيفه وفرمايل: هو!

قَالَ: نَعَمْ كَمَا يَعْلَمُ

حضرت عمر د دې نه خبر ؤو. څنګه چې هغه د دې خبرې نه خبر ؤو، چې د سبا ورځې نه به مخکې شپه

أَنَّ دُون غَدٍ لَيْلَةٌ إِنِّي

راځي او په دې کې هيڅ شک نشته چې ما حضرت عمر ته هغه حديث بيان کړو چې په هغې کې خطاګانې

حَدَّثْتُهُ حَدِيثًا لَيْسَ بِالْأَغَالِيطِ قَالَ:

نشته دی. حضرت شقيق فرمايي چې زمونږ د حضرت حذيفه نه د دې پوښتنې همت ونشو چې د دروازې نه

فَهِبْنَا أَنْ نَسْأَلَ حُذَيْفَةَ

څوک مراد دي. البته مونږ حضرت مسروق ته وويل چې ته د حضرت حذيفه پوښتنه او کړه. نو هغه د

مَنِ الْبَابُ؟ فَقُلْنَا

حضرت حذيفه نه پوښتنه او کړه. نو حضرت حذيفه وفرمايل: چې د دروازې نه حضرت عمر رضي الله عنه

لِمَسْرُوقٍ: سَلْهُ. فَسَأَلَهُ

مراد دی. يعنې د حضرت عمر رضي الله عنه ذات د يو داسې دروازې په شان دی چې هغې د امت او اسلامې

فَقَالَ: عُمَرُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1]

مملکت کې فتنه او فساد د ننه راتګ نه ایسار کړي ، د هغه نه وروسته د فتنو دروازه برسيرته شوه .

**توضيح:** لجرى: حضرت عمر رضی الله عنه خواته به د ګواه نه بغير چا حديث نشو بيانولو. نو ځکه حضرت عمر رضی الله عنه حضرت حذيفه رَضِيَ الله عنه ته وويل چې ته ډير زړه ور يې. نبه اوس بيان وکړه. حضرت حذيفه رضی الله عنه په دوه قِسمه فتنو کې د يو قِسم بيان وکړو.
ياده دې وي چې فتنې په دوه قِسمه دي. يو فتنه خو اهل او عيال او مال ومتاع سره اړه لري. دويمه فتنه هغه ده چې دهغې تعلق د قتل او قتال او جدا والې او بيلتون سره وي . حضرت حذيفه رضی الله عنه دا وګڼړله چې حضرت عمر رضی الله عنه د اول قِسم د فتنې په اړه باندې پوښتنه کوي. نو هغه بيان شروع کړو. نو په دې سره حضرت عمر رضی الله عنه وفرمايل چې هغه دويم قِسم فتنه او وايه چې هغه د سمند د چپو په شان به چپې وهلاو سره راروانه وي. حضرت حذيفه رضی الله عنه وکړو. او وي فرمايل: چې ستا د هغې سره څه تعلق دی؟ ته خو دهغې نه ډير لرې يې. ستا او د هغه فتنو ترمينځ يوه بنده دروازه ده . حضرت عمر رضی الله نه پوښتنه وکړه چې هغه دروازه به برسيرته کړی شي او که ماته به کړی شي؟ حضرت حذيفه رضی الله عنه وفرمايل: ماته به کړی شي. حضرت عمر رضی الله عنه وفرمايل: چې بيا خو به دا بنده نه کړی شي. دلته د دروازې تشبيه د حضرت عمر رضی الله عنه د ذات سره ورکړيشويده. د دروازې برسيرته کېدل دا طبعي مرګ راتګ ته اشاره وه. او ماتيدل دهغه شهيد کيدلو ته اشاره وه . نو حضرت عمررضی الله عنه ابولؤلؤو مجاوسی شهيد کړو نو دا دروازه ماته شوه ، اوس نه شي بنديدلی. حضرت عمر رضی الله عنه ته د دې بيان نه بنه معلومه شوي وه چې د فتنو مخې ته بندهدروازه دهغې خپل ذات دی . کله چې حضرت عمر رضی الله عنه شهيد کړی شو، نو د فتنو دروازې برسيرته شوي. او حضرت عثمان رضی الله نه شهيد کړی شو.

﴿۲٦﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: فَتْحُ القسطنطينية مَعَ قِيَامِ السَّاعَةِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[2]

او حضرت انس نه روايت دی چې هغه وفرمايل: د قسطنطنيه فتح کېدل به قيامت ته نژدې وي.



[1] أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۱۸ رقم الحديث (۱۴۴-۲٦) والبخاري في صحيحه رقم الحديث ۷۰۹٦.
[2] أخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۴۲ رقم الحديث واحمد في المسند ۵/۲۳۲.

۲ جمادی الثاني ۱۴۱۸هـ

# بَاب أَشْرَاط السَّاعَة

## د قیامت د علاماتو بیان

قال الله تعالی ﴿فَهَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا السَّاعَةَ أَن تَأْتِيَهُم بَغْتَةً فَقَدْ جَاءَ أَشْرَاطُهَا﴾ (محمد:۱۸)

اشراط جمع ده ، د دې مفرد شرط دی، چې د نښانې او علامت په معنی دی .په دې باب کې به هغه علامات بیانیږي چې هغه د قیامت نزدیکت او د هغې واقع کیدل ظاهروي. **الساعة**: شپه او ورځ ټول په ۲۴ اجزاؤ باندې مشتمله ده .په دې اجزاؤ کې یو جز ته ساعت وایې. چې هغې ته یوه ګهړۍ او یوه ګهنټه هم وایې. دلته د ساعة نه دغه ګهړۍ مراد نده بلکې د ساعة اطلاق په غیر معلوم مختصراو لږ وخت باندې هم کیږي. دلته م دا مراد دی . ځکه چې د قیامت د واقع کیدلو وخت غیر معلوم هم دی او مختصر هم دی. علماؤ لیکلي دي چې د قیامت نه مخکې یو څو نښې داسې دي چې هغه وړې دي، د حضرت مهدی پورې چې څومره نښې دي ، دا وړې دي او بیا د ظهور د مهدی نه واخله تر قیامت د واقع کیدلو پورې غټې نښې دي . د دواړو نښې د علامات صغری او علامات کبری په نوم سره بللی کیږي.اوس دلته یو سوال دي : **سوال**: که د اشراط الساعة تعلق د علامات صغری سره دی، نو بیا په دې باب کې د حضرت مهدی ذکر بیا بیا ولې راغلی ، ظهور مهدی خو په علامات کبری کې دی؟ **جواب**:په وړو علاماتو کې خو د ځینو جنګونو ذکر هم دی،د دې جنګونو په حواله سره حضرت مهدی ذکر په دې باب کې ضمنې توګه باندې راغلی دی.ګنې ظهور مهدی په علامات کبری کې دی .بهرحال نن سبا چې مونږ په کوم دور باندې تیریږو ، په دې کې د قیامت وړې نښې مکمل توګه باندې ظاهره شویدي،بلکې په دې باندې متفرع نتیجې لکه زلزلې هم راغلي دي.

# اَلْفَصْلُ الأَول

## د قیامت یو څو نښې

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «إِنَّ مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ |
| او حضرت انس رضي الله عنه فرمایې چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا اوریدلي دي: بیشکه د قیامت په نښو کې دا ده |
| أَنْ يُرْفَعَ الْعِلْمُ وَيَكْثُرَ الْجَهْلُ وَيَكْثُرَ الزِّنا ويكثُرَ شُربُ الخمرِ ويقِلَّ الرِّجالُ وتكثُرَ النِّسَاءُ |
| چې علم به وچت کړی شي، جهالت به ډیر شي، زنا به ډیره کیږي، د نارینو شمیره به کمه شي، د ښځو شمیره |
| حَتَّى يَكُونَ لِخَمْسِينَ امْرَأَةً الْقَيِّمُ الْوَاحِدُ» . وَفِي رِوَايَةٍ: |
| به ډیره شي،تر دې چې د پنځوس ښځو پالونکی به یو سړی وي. او په یو روایت کې (**یرفع العلم ویکثر** |

| «يَقِلُّ الْعِلْمُ وَ يَظْهَرُ الْجَهْلُ » . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1] |
|---|
| الجهل) په ځاې داسې دي چې علم به کم شي او جهالت به خپور شي. |
| ﴿۲﴾ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «إِنَّ بَيْنَ يَدَيِ |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوريدلي دي: قيامت د راتگ نه مخکې |
| السَّاعَةِ كَذَّابِينَ فَاحْذَرُوهُمْ » . رَوَاهُ مُسْلِمٌ[2] |
| به د دروغژنو شميره ډيره شي، لهذا د هغوې نه ځان ساتئ. |

**توضيح:** كذابين: يعنې د قيامت نه مخکې به دروغژن خلک پيدا شي ، د دېنه هغه اهل هواء و بدعت او د باطلو نظريو خلک مراد دي چې هغوې د خپلو غلطو نظريو لپاره د دروغو حديثونه جوړوي، يا د دېنه مراد د دروغو د نبوت دعويدار دي.(مرقات۹/۳۳۲)

## نالائقه ته منصب ور کول د قيامت نښه ده

| ﴿۳﴾ وَعَن أَبِي هريرةَ قَالَ: بَيْنَمَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحَدِّثُ إِذْ جَاءَ أَعْرَابِيٌّ |
|---|
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د صحابؤ سره خبري کولې چې ناڅاپه يو بانډچي راغلو |
| فَقَالَ: مَتَى السَّاعَةُ؟ قَالَ: «إِذَا ضُيِّعَتِ الْأَمَانَةُ فَانْتَظِرِ السَّاعَةَ» . |
| او وې ويل چې قيامت به کله راځي؟ نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: کله چې امانت ضايع کړی شي، نو د قيامت انتظار |
| قَالَ : كَيْفَ إِضَاعَتُهَا ؟ قَالَ : « إِذَا |
| کوه. بانډچي پوښتنه وکړه چې امانت به ولې ضائع شي او دا نوبت به کله راځي؟ نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: کله |
| وُسِّدَ الْأَمْرُ إِلَى غَيْرِ أَهْلِهِ فَانْتَظِرِ السَّاعَةَ » . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[3] |
| چې د حکومت او سلطنت کار نااهلو خلکو ته وسپارلی شي نو د قيامت انتظار کوه. |

**توضيح:** الى اغير اهله: نالائقه او نااهله خلک هغه دي چې هغه د متعلقه کار او د حکومت او مشرۍ په شرطونو باندې پورا نوي، او د قائد او حاکم او د مشر جوړيدلو کوښښ کې اخته وي لکه .

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱/۱۷۸ رقم الحديث ۸۰ ومسلم في صحيحه ۴/۲۰۵۶ رقم الحديث ۹/۲۶۷۱ .

(۲) اخرجه مسلم في صحيحه ۱۴۵۴ رقم الحديث ۱۸۲۲/ ۱۰وابن ماجه في سننه ۲/۱۳۰۴ رقم الحديث ۳۹۵۲.

(۳) اخرجه البخاري في صحيحه رقم الحديث ۵۹.

ښځې، مأشومان، نالائقه، جاهل، فاسق، فاجر، بخیل، کنجوس، نامرد، بزدله او غیر قریشي النسل، داخلک شرعًا د حکومت او قیادت او مشرۍ اهل ندي. بیا دا نا اهله عام دي که د نیاوي معاملاتو کې نااهله وي او که دیني معاملاتو کې نااهله وي چې علم یې پوخ نه وي. او مدرس جوړ شویدی، عالم نه دی، او وعظ او بیان کې اخته دی، د پیرۍ مریدۍ صلاحیت پکې نشته او پیر جوړ شوې، د امانت نه د خلکو دنیاوي امانتونه هم مراد دي او دیني او شرعي امانتونه هم مراد دي. (مرقات ۹/۳۳۴)

## د عربو په زمکه کې چې کله شینکی وي نو قیامت به نژدې وي

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: «لَا تَقُومُ السَّاعَةُ |
| او حضرت ابوهریره رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل: قیامت به تر هغه وخته پورې نه راځي |
| حَتَّى يَكْثُرَ الْمَالُ وَيَفِيضَ حَتَّى يُخْرِجَ الرَّجُلُ زَكَاةَ مَالِهِ |
| ترڅو پورې چې مال ډیر شوی نوي. او ډیر والی به هم داسې وي چې یو سړی به د خپل مال زکوة وباسي خو |
| فَلَا يَجِدُ أَحَدًا يَقْبَلُهَا مِنْهُ وَحَتَّى تَعُودَ أَرْضُ الْعَرَبِ مُرُوجًا |
| هغه به هیڅوک نه بیا مومي چې هغه د ده د زکوة مال واخلي، او ترڅو چې د عربو زمکه شنه او باغونو او د |
| وَ أَنْهَارًا » رَوَاهُ مُسْلِمٌ . وَ فِي رِوَايَةٍ : قَالَ : « تبلغ المساكن إهَاب » [1] |
| نهرونو والا نشي. (مسلم) او د مسلم په یو روایت کې داسې دي چې د عمارتونو او د آبادۍ لړۍ به اهاب یا یهاب تهٔ ورسیږي |

**توضیح: مروجا:** یعنې د عربستان زمکه به څرځاې او شنه او د نهر والا شي، نن سبا دا عمل شروع شوی دی، د جدې نه مکې پورې زمکه شنه ده. **اهاب:** مدینې سره نژدې د ځاې نوم دی. په دې صورت کې لفظ د او شک لپاره دی. او که د تنویع لپاره شي نو بیا دا به دوه ځایونه وي یعنې تر دې ځایونو پورې چې د مدینې آبادي ورسیږي نو دا به د قیامت د نژدې والي نښانې وي، د مال ډیر والی به کیدی شي د امام مهدي په زمانه کې وي. (مرقات ۹/۳۳۵)

## د حضرت مهدي یو څو صفتونه

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَكُونُ فِي آخِرِ الزَّمَانِ خَلِيفَةٌ |
| او حضرت جابر رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل: په آخره زمانه کې به یو خلیفه پیدا شي. چې هغه |

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳/۸۱ رقم الحديث ۷۱۲۰ ومسلم في صحيحه ۲/۷۰۱ رقم الحديث ۲/۱۵۷.

| يُقَسِّمُ الْمَالَ وَلَا يَعُدُّهُ » . وَ فِي رِوَايَةٍ : |
|---|
| به محتاجو او حقدارو باندې ډیر مال تقسیم کړي، او هغه به نه شماري، او په یو روایت کې داسې دي چې |
| قَالَ: «يَكُونُ فِي آخِرِ أُمَّتِي خَلِيفَةٌ يَحْثِي الْمَالَ حَثْيًا |
| زما د امت په آخرې زمانه کې به یو خلیفه پیدا شي چې هغه به خلکو ته په موټې یا په لپه باندې مال |
| وَلَا يَعُدُّهُ عَدًّا» . رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1] |
| ورکوي او هغه به نه شماري. |

**توضيح**: خليفة: د دېنه مراد حضرت مهدی دی. د ده ظهور به د مقام ابراهیم او حجر اسود په مینځ کې کیږي. د دې ظهور نه په مخکښې کال به سپوږمۍ تندر نیولی وي. بیعت او د ظهور په وخت کې به د آسمان نه دا آواز راځي: هذا خليفة الله المهدی فاستمعوا له واطيعوه. ذ دېنه مخکې به دا دمدینې نه مکې ته راتختیدلی وي، دې لپاره چې دا څوک ونه پیژني، امام مهدی به سیّد وي، په ژبه کې به یې لکنت (تتوالی) وي، کله چې غصه شي نو په خپل ورون باندې به لاس وهي. د نبی کریم ﷺ همنامی به وي، د ده د پلار نوم به عبدالله او د مور نوم به آمنه وي، په عادتونو کې به بیخې د نبی کریم ﷺ په شان وي، خو په شکل او صورت کې به جدا وي.

**يقسم المال**: یعنې مال غنیمت به دومره ډیر وي او خپله دهغه به دومره سخاوت وي چې مال به تقسیم کړي او بی حسابه به یې وشیندي او شمارل به نکوي.(مرقات ۹/۳۳۶)

**يحثي**: یعنې لپې به ډکې ډکې ورکړي، نهه کاله به خلافت کوي، اووه کاله به خالص جهاد کې تیر کړي. په اتم کال به د دجال مقابله کوي، او په نهم کال به د حضرت عیسی علیه السلام سره د حکومت انتظام چلوي. او بیا به وفات شي. حضرت عیسی علیه السلام به د هغه جنازه کوي.(مرقات ۹/۳۳۶)

## فرات د سیند نه به خطرناکې خزانې راوځي

| ﴿۶﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يُوشِكُ الْفُرَاتُ |
|---|
| او حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل: ژر هغه زمانه راتلونکې ده چې د فرات سیند |
| أَنْ يَحْسِرَ عَنْ كَنْزٍ مِنْ ذَهَبٍ فَمَنْ حَضَرَ |
| به د سرو زرو خزانه راوباسي نو کوم سړی چې د غه وخت هلته موجود وي نو هغه لپاره پکار دي |

[1] أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۳۵ رقم الحديث (۲۹۱۴-۶۹)

فَلَا يَأْخُذْ مِنْهُ شَيْئًا» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1]

چې د دغه خزانې نه څه وانخلي.

**توضیح** :**یوشك الفرات**:یعني دفرات سیند به وچ شي. او د لاندې نه به یې د سرو زرو خزانه راوځي. د دې خزانې نه د څه اخستلو منع والی ځکه راغلی دی چې د دې د وجې نه به خپل مینځې جنګونه وي او فتنه او فساد به خپور شي. یا به په دې کې د حرمت او کراهت قوي احتمال وي. راتلونکې حدیث نمبر:۷ کې هم د دې خزانې ذکر دی، خو په هغې کې دومره اضافه ده چې د سرو زرو هغه خزانه به د غر هومره وي، هر سړی به راځي او وایي به چې شاید زه خزانه ترلاسه کولو باندې کامیاب شم خو داسې به نکیږي. نو ممکنه ده چې خپل مینځ کې په جنګ کولو کولو سره په سلو کې نهه نوي (۹۹) مړه شي. فقط یو به پاتې شي، هغه به هم په حرص او لالچ کې اخته شي. مذکوره حدیث کې چې کومې خزانې ارخ ته اشاره شوې ده ممکنه ده، دا د زرو کان (درنګه) وي، او ممکنه ده چې د عراق موجوده تیل وي، او د تیلو اصل کوهی د دریاب د ویخ نه راخوټ کیږي، نن سبا د ټولې دنیا کافر د امریکې په مشرۍ کې یو ځای شوي دي او د عراق تیل لوټ کوي، او د مجاهدینو د لاسه مرداریږي، پټرول او ګیس نه غیره جواهرات او مرمر، او سپین زر او سره زر، هر څه په دې علاقه کې ظاهریدلی شي، چې دا د قیامت په نښو کې ده. راتلونکی حدیث نمبر:۸ کې هم څه تفصیل دی. چې زمکه به خپل دننه شیان راګوزار کړي. (مرقات ۹/۳۳۷)

**افلاذ**: د **فلذة** جمع ده. د ځیګر ټوټو ته ویلی شویدی، د زمکې دننه معدنیات مراد دي، دا لفظ په راتلونکې حدیث نمبر:۹ کې ذکر دی.

﴿۷﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ : " لَا تَقُومُ السَّاعَةُ

او حضرت ابوهریره رضي الله عنه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: قیامت به تر هغه وخته پورې نه راځي

حَتَّى يَحْسِرَ الْفُرَاتُ عَنْ جَبَلٍ مِنْ ذَهَبٍ يَقْتَتِلُ النَّاسُ عَلَيْهِ

ترڅو چې د فرات سیند نه د خزانې غر راونه باسي، خلک به د دې وجې نه جنګ او قتال کوي. نو په دې

فَيُقْتَلُ مِنْ كُلِّ مِائَةٍ تِسْعَةٌ وَتِسْعُونَ وَيَقُولُ كُلُّ رَجُلٍ مِنْهُمْ:

خلکو کې به نهه نوي (۹۹) فیصده خلک ووژلی شي. او هر سړی به دا وایي چې کیدی شي زه (ژوند

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۳/۷۸ رقم الحديث ۷۱۱۹، ومسلم في صحيحه ۴/۲۲۱۹ رقم الحديث ( ۲۸۹۴-۳۰)

لَعَلِّي أَكُونُ أَنَا الَّذِي أَنْجُو ". رَوَاهُ مُسلم[۱]

پاتې شم) په مقصد کې کامياب شم

﴿۸﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " تَقِيءُ الْأَرْضُ أَفْلَاذَ كَبِدِهَا

او حضرت ابو هريره رضي الله عنه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: زمکه به د خپل ځيگر ټوټې بيرون

أَمْثَالَ الْأُسْطُوَانَةِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ فَيَجِيءُ الْقَاتِلُ

راوگوزار کړي، چې هغه به د سرو زرو د ستنو په شان وي. نو يو سړی چې هغه به فقط د مال تر لاسه کولو

فَيَقُولُ: فِي هَذَا قَتَلْتُ

لپاره د قتل جرم کړی وي، رابه شي او وايي به چې (آيا) د دې لپاره ما خلک ووژلي دي. او يو سړی چې هغه به

وَيَجِيءُ الْقَاطِعُ فَيَقُولُ: فِي هَذَا قَطَعْتُ رَحِمِي.

خپلولي ماته کړې وي، رابه شي او وايي به چې (آيا) د دې لپاره ما د خپلوانو سره خپلولي ماته کيده، او بيا

وَيَجِيءُ السَّارِقُ فَيَقُولُ: فِي هَذَا قُطِعت يَدِي ثُمَّ

به غل راشي او وايي به چې (آيا) د دې لپاره زما لاس غوڅ شويدی، نو دغه ټول خلک به دغه مال دولت

يَدعونه فَلَا يَأْخُذُونَ من شَيْئًا ". رَوَاهُ مُسلم[۲]

دغه شان پريږدي چې هيڅوک به هم ترې نه څه وانخلي.

## په آخره زمانه کې به هر سړی پريشانه شي

﴿۹﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ

او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: قسم دی په هغه ذات د چا په لاس کې

لَا تَذْهَبُ الدُّنْيَا حَتَّى يَمُرَّ الرَّجُلُ عَلَى الْقَبْرِ

چې زما ځان دی، دا دنيا به تر هغه وخته پورې نه ختميږي تر څو چې داسې زمانه رانشي چې سړی به د قبر

فَيَتَمَرَّغُ عَلَيْهِ ويقولُ: يَا لَيْتَنِي مَكَانَ صَاحِبِ هَذَا الْقَبْرِ

په خوا تيريږي او بيا به قبر باندې ورغړي (د غم نه به) وايي چې کاش! زه د دې قبر والا په ځای باندې وی

---

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۱۹ رقم الحديث (۲۸۹۴-۲۹) اخرجه احمد في المسند ۵/۱۴۰.

(۲) اخرجه مسلم في صحيحه ۲/۷۰۱ رقم الحديث (۱۰۱۳-۶۲) والترمذي في السنن ۴/۴۲۷ رقم الحديث ۲۲۰۸.

وَلَيْسَ بِهِ الدِّينُ إِلَّا الْبَلَاءُ ". رَوَاهُ مُسلم[۱]

او دا پریشاني به د دین د وجې نه نوي بلکې دنیاوې مصیبت به وي.

## د قیامت نه مخکې به د یو غټ اور ظهور کیږي

﴿۱۰﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تَقُومُ السَّاعَةُ

او حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: قیامت به تر هغه وخته پورې نه راځي

حَتَّى تَخْرُجَ نَارٌ مِنْ أَرْضِ الْحِجَازِ تُضِيءُ أَعناقَ الإِبلِ بِبُصْرى» . مُتَّفق عَلَيْهِ[۲]

ترڅو چې د حجاز نه یو اور لمبې ونکړي چې هغه به د بصرئ د اوښانو څټونه رڼا کړي

**توضیح: من ارض حجاز:** یعنې د حجاز د زمکې نه به یو غټ اور راښکاره شي، چې دهغې د وجې نه به بُصری کې د اوښانو څټونه ښکاره شي، حجاز د جزیرة العرب هغه علاقې ته ویلی کیږي چې په هغې کې مکه او مدینه داخل دي. او بُصری د شام په زمکه باندې د یو ښار نوم دی. چې هغه د دمشق نه د درې ورځو په مزل دی. علماؤ لیکلي دي چې په دې حدیث کې د کوم اور بیان راغلی دی دا اور۶۵۰ هـ کې ظاهر شوی ؤ، دا اور د حجاز د وسط نه د سمندر د چپو په شان وچتیدلو او غرونه، دشتي او ځنګلونه یې ایره کول. په دې کې د بجلې د کړس په شان اواز هم ؤ او په دې کې مختلف رنګونه هم ؤ. دغه اور په دغه طوفاني شکل کې مدینې منورې ته ورسیدلو، خو د مدینې په حدودو کې یخ شو، یعنې د مدینې د حدودو یو شی یې هم نه سیزلو. د دې اور نه د مدینې خلک یریدلي ؤ. هغوې په ژړا ژړا دعاګانې غوختلې، او صدقې یې ورکولې، داور د وجې نه پنځوس ورځې مدینه منوره روښانه وه. د مدینې د خلکو به د دې وجې نه د د شپې کارونه کول، د مکې خلکو ګواهي ورکړه چې د اور د رڼا د وجې نه مونږ بُصری او شام علاقې روښانه ولیدلې، دا اور د لمر نه ډیر روښانه ؤ. د ورځې به پته نه لګیدله چې لمر شته او که نشته. دې اور به کاڼې سیزل. خو بوټې به یې نه سیزل. دغه شان په مدینه کې به یې دننه د حرم په حدودو کې اثر نه کولو. نو که د کوم کاڼي نیمه برخه به په حرم کې وه او نیمه به بیرون وه نو دې اور به بیروني برخه سیزله، دننه برخه به یې پریخودله. روضه رسول صلی الله علیه وسلم سره خلک په ژړا کې مشغول ؤ چې الله تعالی کرم وکړو او د دې اور مخ یې آسمان اړخ ته کړو او خلک محفوظ شول. **اعناق الابل** نه مراد د بُصری علاقې

---

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۳۱ رقم الحديث (۱۵۷-۵۴) وابن ماجه في السنن ۲/۱۳۴۰ رقم الحديث ۴۰۳۷.

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳/۷۸ رقم الحديث ۷۱۱۸ ومسلم في صحيحه ۴/۲۲۷ رقم الحديث (۲۹۰۲-۴۲)

کاني دي،د دې اور د ختميدلو نه وروسته په بغداد باندې د تاتاريانو بريد وشو، چې په هغې سره بغداد تباه شو. دا اور ۳ جمادی الثانی ۶۵۰ھ کې راښکاره شوی ؤ.او ۲۷ رجب ۶۵۰ پورې ۳۵ ورځې مسلسل شروع ؤ.(مرقات۹/۳۴۰)

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَوَّلُ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ نَارٌ |
| او د حضرت انس رضي الله عنه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د قيامت د نښو نه به اوله نښه هغه اور |
| تَحْشُرُ النَّاسَ مِنَ الْمَشْرِقِ إِلَى الْمَغْرِبِ» . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1] |
| وي چې هغه به خلک د مشرق نه مغرب اړخ ته وشړي.(روايت کړې دې بخاری) |

# الْفَصْلُ الثَّانِي

## قيامت ته نژدې زمانه به بې بر کته شي

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تَقُومُ السَّاعَةُ |
| حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: قيامت به تر هغه وخته پورې نه راځي تر څو چې |
| حَتَّى يتقاربَ الزَّمانُ فتكونُ السَّنةُ كالشهرِ والشَّهرُ كالجمعةِ وتكونُ الجمعةُ كاليومِ وَيَكُونُ الْيَوْمُ |
| زمانه نژدې نشي، کال د مياشتې برابر، مياشت د اونۍ (هفته) برابر، اونۍ د يوې ورځې برابر او يوه ورځ د يو |
| كَالسَّاعَةِ وَ تَكُونُ السَّاعَةُ كَالضَّرَمَةِ بِالنَّارِ » . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[2] |
| ساعت برابر شي.او يو ساعت به دومره لنډ شي لکه د اور سپرغۍ (د ګياه په ډکې) باندې بل شي. |

**توضيح**: الضرمة على النار: لکه د ګياه او ډکو پنډوکی په اور باندې کيخودل شي او اور دې لره په سيزلو سره په بخرکو کې والوزي، د مزلونو دا نژدې والی د ډېر وړاندوينې د لاندې يقينې او بديهي دی، خو که د جديد دور ټيکنالوجي او ريډار لاسالکی نظام ته وکتلی شي نو د مزلونو لنډيدل به ډير په آسانه باندې په پوهه کې راشي.(مرقات۹/۳۴۲)

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَن عبدِ الله بنِ حوالةَ قَالَ: بعثَنا رَسُول الله صلى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت عبدالله بن حواله رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم مونږ د جهاد لپاره وليږلو دې لپاره چې |

---

(۱)اخرجه البخاري في صحيحه ۱۳/۷۸ تعليقا في الباب ۲۴ باب خروج النار . واحمد في المسند ۳/۱۰۸.

(۲)اخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۹۰ رقم الحديث ۲۳۳۲.

لِنَغْنَمَ عَلَى أَقْدَامِنَا

مونږ مال غنیمت تر لاسه کړی شو او د هغې په ذریعه باندې خپل ضرورتونه پورا کړی شو، زمونږ هغه سفر

فَرَجَعْنَا فَلَمْ نَغْنَمْ شَيْئًا

پیدلۀ او (کله چې) مونږ د دې جهاد نه بیرته راتلو نو زمونږ سره هیڅ هم مال غنیمت نهٔ. نبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

وَ عَرَفَ الْجَهْدَ فِي وجوهِنا فقامَ فِينَا

زمونږ په مخونو باندې خفګان او نا امیدې کتلو باندې مونږ ته داړ ګیرنه راکولو او د دعاء کولو زمونږ په مینځ

فَقَالَ : «اللَّهمَّ لَا تَكِلْهُمْ إِلَيَّ فَأَضْعُفَ عَنْهُمْ

کې ودریدلو او وې فرمایل چې پروردګار! دا خلک ما ته مه سپاره، داسې نه وي چې زهٔ د دوې د خبر اخستلو

وَلَا تَكِلْهُمْ إِلَى أَنْفُسِهِمْ فَيَعْجِزُوا عَنْهَا

طاقت ونلرم او مه هغوې خپل ځانونو ته سپاره ځکه چې دوې به د خپلو کارونو د پورا کولو نه عاجز شي،

وَلَا تَكِلْهُمْ إِلَى النَّاسِ فَيَسْتَأْثِرُوا عَلَيْهِمْ»

او مه دوې بل چا ته سپاره او مه یې د دنورو محتاج کوه. ځکه چې د دې خلکو په ضرورتونو او حاجتونو باندې

ثُمَّ وَضَعَ يَدَهُ عَلَى رَأْسِي ثُمَّ قَالَ:

به خپل حاجتونه مقدم ساتي. د دېنه وروسته نبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل لاس زما په سر باندې کیخودلو او وې فرمایل

«يَا ابْنَ حَوَالَةَ إِذَا رَأَيْتَ الْخِلَافَةَ

ای ابن حواله! (کله چې ته) ووینې چې خلافت ارض مقدس ته ورسیدلو (یعني د مسلمانانو دار الخلافه د مدینې

قَدْ نَزَلَتِ الْأَرْضَ الْمُقَدَّسَةَ فَقَدْ دَنَتِ الزَّلَازِلُ وَ الْبَلَابِلُ وَ الْأُمُورُ الْعِظَامُ

نه نقل کیدلو باندې د شام هیواد ته رسیدلی ده) نو پوهه شه چې زلزلې، مصیبتونه او هغه غټې حادثې (چې د هغې

وَ السَّاعَةُ يَوْمَئِذٍ أَقْرَبُ مِنَ النَّاسِ مِنْ يَدِي هَذِهِ

تعلق د قیامت سره دی) نژدې راغلې دي، او په هغه ورځ به قیامت خلکو ته دومره نژدې وي څومره چې زما

إِلَى رَأْسِكَ» . رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

لاس ستا سر ته نژدې دی.

---

([1])أخرجه أبوداود في السنن ۳/۴۱ رقم الحديث ۲۵۳۵.

**توضيح: فاضعف**: يعنې دوې ماته مه سپاره، زه به عاجز شم، او دوې خپل ځانونو ته هم مه سپاره، دوې به خپله عاجزه شي. **فيستأثروا**: يعنې دوې لره خلکو ته هم مه سپاره، خلک به په دوې باندې ترجيح ورکول شروع کړي. **الخلافة**: يعنې کله چې خلافت د مدينې نه بيت المقدس ته نقل شو، او خپور شو، نو بيا به زلزلې شروع شي، او آفتونه به راځي، بلابل د بلبلة جمع ده. آفت او مصيبت ته وايي. ممکنه ده چې دلته د خلافت نه د حضرت مهدی خلافت مراد وي. چې دهغه مرکز به شام وي، او بيا به د قيامت د نژديکت زلزلې شروع شي. (مرقات ۹/۳۴۴)

## کله چې پنځلس جرمونه کيږي نو زلزلې به راځي

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا اتُّخِذَ الْفَيْءُ دِوَلًا |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: کله چې مال غنيمت دولت وګڼلی شي او کله |
| وَالْأَمَانَةُ مَغْنَمًا وَالزَّكَاةُ مَغْرَمًا وَتُعُلِّمَ لِغَيْرِ الدِّينِ وَأَطَاعَ الرَّجُلُ |
| چې زکوة تاوان وګڼلی شي، او کله چې علم د دين نه غيره د بل څه لپاره زده کړی شي، او کله چې سړی د ښځې |
| امْرَأَتَهُ وَعَقَّ أُمَّهُ وَأَدْنَى صَدِيقَهُ وَأَقْصَى أَبَاهُ |
| تابعداري شروع کړي، او کله چې د مور نافرمانې شروع شي، او کله چې دوستان خو نژدې او پلار ليرې کولی |
| وَظَهَرَتِ الْأَصْوَاتُ فِي الْمَسَاجِدِ وَسَادَ الْقَبِيلَةَ |
| شي او کله چې په جومات کې شور جوړ کړی شي، او کله چې د قوم او جماعت مشرې دهغه قوم او جماعت |
| فَاسِقُهُمْ وَكَانَ زَعِيمُ الْقَوْمِ أَرْذَلَهُمْ |
| فاسق سړی کوي او کله چې د قوم او جماعت سربراه او مشر دهغه قوم او جماعت کميه او رذيل سړی کوي |
| وَأُكْرِمَ الرَّجُلُ مَخَافَةَ شَرِّهِ وَظَهَرَتِ الْقَيْنَاتُ |
| او کله چې د سړي عزت دهغه د شر او فتنې د يرې نه کيدلی شي، او کله چې په خلکو د ګانو وايونکو ښځو |
| وَالْمَعَازِفُ وشُربتِ الخمورُ وَلَعَنَ آخِرُ هَذِهِ الْأُمَّةِ |
| او ډول باجو رواج شي او کله چې شرابونه څکلی کيږي او کله چې د دې امت وروستنې خلک مخکنو خلکو |
| أَوَّلَهَا فَارْتَقِبُوا عِنْدَ ذَلِكَ رِيحًا حَمْرَاءَ |
| باندې لعنت وليږي نو ته دغه وخت د دې شيانو د ژر ظاهريدلو انتظار کوه، سور يعنې تُنده او تيز او ډير سخت |

| | | |
|---|---|---|
| وَزَلْزَلَةً | وَخَسْفًا | وَمَسْخًا |

طوفاني بادؤ او د زلزلې، او په زمکه کې منډل، او د شکلونو مسخ او بدليدل، او د کاڼو د وريدلو، دغه شان د

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَ | قَذْفًا | وَ | آيَاتٍ | تَتَابَعُ |

دې شيانو نه غيره د قيامت نورې تولې نښې او علامتونو انتظار کوه. چې هغه به داسې پرله پسې راځي لکه

كَنِظَامٍ قُطِعَ سِلْكُهُ فَتَتَابَعَ ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[1]

د د امبيل (هار) تار چې وشليږي او د هغې دانې پرله پسې ګوازريږي.

«۱۵» وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا فَعَلَتْ أُمَّتِي خَمْسَ عَشْرَةَ

حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: کله چې زما امت په دې پنځلس خبرو کې

| | | |
|---|---|---|
| خَصْلَةً | حَلَّ بِهَا | الْبَلَاءُ» |

(چې د هغې ذکر په پاسنې حديث کې وشو) اخته شي نو په دې باندې به افتونه او مصيبتونه نازليږي، بيا

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَعَدَّ | هَذِهِ | الْخِصَالَ | وَلَمْ | يَذْكُرْ |

نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دغه پنځلس خبرې وشمارلې، خو حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دې روايت کې دا خبر نقل نکړه

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| « | تُعُلِّمَ | لِغَيْرِ | الدِّينِ | » | قَالَ | : | « | وَ بَرَّ |

چې کله علم د دين لپاره زده کيدلی شي. حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا نقل کړل چې کله سړی د خپل دوست

| | | | |
|---|---|---|---|
| صَدِيقَهُ | وَجَفَا | أَبَاهُ | » |

سره احسان او مروت او د خپل پلار سره ظلم او جفا به کوي او هغه (کله چې شرابونه څکولی کيږي د جمع

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَ | قَالَ | : | « | وَ شُرِبَ | الْخَمْرُ |

په ځای) کله چې شراب څکل کيږي، مفرد نقل کړيدی. دغه شان (کله چې علم د دين نه غيره د بل څه

وَ لُبِسَ الْحَرِيرُ ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[2]

غرض لپاره زده کولی شي، په ځای) کله چې د ريښمو جامه واغوستلی شي، نقل کړيدي.

---

([1]) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۲۸ رقم الحديث ۲۲۱۱.

([2]) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۲۸ رقم الحديث ۲۲۱۰.

## د عدل او انصاف بیرغ او چتونکي مهدي ظهور به خامخا کیږي

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تَذْهَبُ الدُّنْيَا |
| او حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل: تر هغه وخته پورې به دنیا ختمه |
| حَتَّى يَمْلِكَ الْعَرَبَ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ بَيْتِي يُوَاطِئُ اسمه |
| نشي تر څو چې په عربو باندې یو داسې سړی قبضه ونکړي چې هغه به زما د کورنۍ وي، او د هغه نوم به زما |
| اسْمِي» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ. وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ: |
| په نامه وي، (ترمذی، ابوداؤد) او د ابوداؤد په یو روایت کې داسې دي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل: که د دنیا په |
| «لَوْ لَمْ يَبْقَ مِنَ الدُّنْيَا إِلَّا يَوْمٌ لَطَوَّلَ اللهُ ذَلِكَ الْيَوْمَ |
| ختمیدلو کې فقط یوه ورځ پاتې شي نو الله تعالی به د هغه ورځ اوږده او فراخه کړي، تر دې چې زما د نسل نه |
| حَتَّى يَبْعَثَ اللهُ فِيهِ رَجُلًا مِنِّي أَوْ مِنْ أَهْلِ بَيْتِي يُوَاطِئُ اسْمُهُ اسْمِي وَاسْمُ أَبِيهِ اسْمَ أَبِي |
| یا یې دا و فرمایل: زما د اهل بیت نه به یو سړی راولیږي چې د هغه نوم به زما په نامه او د هغه د پلار نوم به |
| يَمْلَأُ الْأَرْضَ قِسْطًا وَعَدْلًا كَمَا |
| زما د پلار په نامه وي. او هغه به ټول مځکه د عدل او انصاف نه ډک کړي، لکه څنګه چې د دې وخت |
| مُلِئَتْ ظُلْمًا وجورا»[1] |
| مځکې د ظلم او زیاتې نه ډک شوې وه. |
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «الْمَهْدِيُّ مِنْ عِتْرَتِي |
| حضرت ام سلمه رضي الله عنها فرمايي چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا اوریدلي دي چې مهدی زما په عترت کې |
| مِنْ أَوْلَادِ فَاطِمَةَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2] |
| دی او د فاطمه د اولاد نه به وي. |

---

([1])أخرجه أبوداود في السنن ۴/۴۷۳ رقم الحديث ۴۲۸۲ والترمذي في السنن ۴/۴۳۸ رقم الحديث ۲۲۳۰.

([2])أخرجه أبوداود في السنن ۴/۴۷۴ رقم الحديث ۴۲۸۴وابن ماجه في السنن ۲/۱۳۶۸ رقم الحديث ۴۰۸۶.

﴿۱۸﴾وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الْمَهْدِيُّ مِنِّي

او حضرت ابو سعید خدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: مهدی به زما په اولاد کې وي،

أجلى الْجَبْهَة وأقنى الْأَنْفِ يَمْلَأُ الْأَرْضَ قِسْطًا وَعَدْلًا كَمَا

روښانه او پلن تندی، او وچته پوزه به يې وي، هغه به مخ د زکې په عدل او انصاف سره ډک کړي، لکه څنګه

مُلِئَتْ ظُلْمًا وَ جَوْرًا يَمْلِكُ سَبْعَ سِنِينَ » . رَوَاهُ أَبُو دَاوُد [۱]

چې دا په ظلم او زياتې سره ډکه وه، هغه به اووه کاله پورې په مخ د زمکه باندې واکمن او قابض وي.

﴿۱۹﴾ وَ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي قِصَّةِ الْمَهْدِيِّ

او حضرت ابو سعيد خدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د مهدی د واقعې په لړ کې دا هم نقل کوي چې

قَالَ: " فَيَجِيءُ إِلَيْهِ الرَّجُلُ فَيَقُولُ: يَا مَهْدِيُّ أَعْطِنِي أَعْطِنِي.

نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا و فرمايل: د مهدی خواته به يو سړی راشي او وايې به چې ما ته څه راکړه، نو مهدی به هغه ته

قَالَ: فَيَحْثِي لَهُ فِي ثَوْبِهِ مَا اسْتَطَاعَ أَنْ يَحْمِلَهُ ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ [۲]

په دواړو ډکو لاسونو سره دومره ورکړي څومره چې هغه په خپله جامه کې ډک کړی شي او وچت يې کړی شي

## د حضرت مهدي ظهور او د ابدالو راتګ

﴿۲۰﴾ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت کوي چې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: (آخره زمانه کې)

«يَكُونُ اخْتِلَافٌ عِنْدَ مَوْتِ خَلِيفَةٍ فَيَخْرُجُ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْمَدِينَةِ

کله چې خليفه وفات شي، نو اختلاف او جګړې به پيدا شي، په دې دوران کې به د مدينې نه يو سړی په

هَارِبًا إِلَى مكة فيأتيه النَّاسُ من أهل مَكَّةَ فيخرجوه

تيخته مکې ته وتختي، د مکې خلک به د هغه خواته راشي او هغه به (د کور نه) راوباسي، هغه به اګر که دا

وَهُوَ كَارِهٌ فيبايعونه بَيْنَ الرُّكْن

منصب قبلول نه خوښوي خو خلک به هغه تيار کړي، او د هغه په لاس به بيعت وکړي، دا بيعت به د حجر

---

([۱])أخرجه أبوداود في السنن ۴/۴۷۴ رقم الحديث ۴۲۸۵ وأحمد في المسند ۳/۱۷.

([۲])أخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۳۹ رقم الحديث ۲۲۳۳ وابن ماجه في السنن ۲/۱۳۶۷ رقم الحديث ۴۰۸۳.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَالْمقَام | يبْعَث | إِلَيْهِ | بَعْثٌ | مِنَ | الشَّامِ |

اسود او مقام ابراهيم په مينځ كې وشي، دد بنه وروسته به دده د مقابلې لپاره د شام (د باچا) د اړخ نه يو لښكر

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَيُخْسَفُ | بِهِمْ | بِالْبَيْدَاءِ | بَيْنَ | مَكَّةَ | وَالْمَدِينَةِ |

راوليږلى شي خو هغه لښكر به د مكې او مدينې ترمينځ په مقام بيداء كې په زمكه كې ومنډل شي، او بيا كله

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَإِذَا | رَأَى | النَّاسُ | ذَلِكَ |

چې خلكو ته دا معلومه شي (چې د شام لښكر مكې ته د رارسيدلو نه مخكې په زمكه كې ښخ شو) نو د شام

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَتَاهُ | أَبْدَالُ | الشَّامِ | وَعَصَائِبُ | أَهْلِ | الْعِرَاقِ | فَيُبَايِعُونَهُ |

هيواد ابدال او د عراق عصائب به د دغه سړي خدمت ته راورسيږي او د هغه په لاس په بيعت وكړي. بيا به

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | يَنْشَأُ | رَجُلٌ | مِنْ | قُرَيْشٍ | أَخْوَالُهُ | كَلْبٌ |

د قريشو نه يو سړى راپاڅيږي چې د هغه ماماګان به د كلب قبيله كې وي، او هغه به هم د دغه سړي او د هغه

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَيَبْعَثُ | إِلَيْهِمْ | بَعْثًا | فَيَظْهَرُونَ | عَلَيْهِمْ | وَذَلِكَ | بَعْثُ | كلب |

تابعدارو په خلاف باندې يو لښكر راوليږي خو ددې سړي لښكر به په دغه كلبي لښكر باندې غالب راشي

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَيعْمل | النَّاسِ | بِسُنَّةِ | نَبِيِّهِمْ |

بيا به دغه سړى د خلكو په مينځ كې د هغوى د پيغمبر (محمد ﷺ) د عادت او دهغې د طريقې مطابق

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَيُلْقِي | الْإِسْلَامُ | بِجِرَانِهِ | فِي | الْأَرْضِ | فَيَلْبَثُ | سَبْعَ |

(دهيواد او ملت) نظام روانوي، او د مسلمانانو دين به خپل ښځ په زمكه باندې كيږدي. هغه سړى به اووه

سِنِينَ ثُمَّ يُتَوَفَّى وَيُصَلِّي عَلَيْهِ الْمُسْلِمُونَ » . رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

كاله قائم او پاتې وي. بيا به وفات شي او مسلمانان به دهغه د جنازې لمونځ وكړي.

**توضيح**: اختلاف: يعنې د يو خليفه د وفات نه وروسته به د دويم خليفه په ټاكلو كې اختلاف پيدا شي، نو حضرت مهدی به د مدينې نه مخكې ته د دې يرې د وجې نه وتخي چې خلك دا خليفه جوړ نه كړي، خو مكې ته په رسيدلو سره به خلك دا وپيژني او د طواف په وخت كې به د حجر اسود او مقام ابراهيم په مينځ كې د هغه په لاس د خلافت بيعت وكړي، بيا به د هغه په مقابله كې د سفيانې

---

(۱)أخرجه ابوداود في السنن ۴/۴۷۵ رقم الحديث ۴۲۸۶ واحمدفي المسند۶/۳۱۶.

لښکر د شام نه مکې په لورې روان شي، خو مقام بیداء کې چې هغه مکې ته نژدې دی، ټول به مردار شي، بیا د شام ابدال او د عراق عابدان به د بیعت لپاره راشي. (مرقات ۹/۳۵۲)

**ابدال الشام:** ابدال جمع ده. د دې مفرد بدل دی ، د اولیاء الله یوې ډلې ته ابدال وایې. دا په شام کې وي، لکه عصائب په عراق کې او نجباء په مصر کې وي. دنیا کې ابدال په هره زمانه او هر وخت کې وي، په دوې کې یو جماعت په ۳۱۳ کسانو باندې مشتمل وي. یو جماعت په څلویښتو کسانو باندې مشتمل وي، یو جماعت په اووه کسانو باندې مشتمل وي، اویو جماعت په درې کسانو باندې مشتمل وي. کله چې د درې کسانو د جماعت نه څوک مړ شي نو د اووه کسانو د جماعت مشر پرمختګ کولو باندې د درې کسانو جماعت ته راشي، دغه شان که د اووه کسانو د جماعت نه څوک مړ شي، نو د څلویښتو کسانو د جماعت نه یو سړی دلته راشي، کله چې د څلویښتو کسانو د جماعت نه څوک مړ شي نو د ۳۱۳ کسانو د جماعت نه یو سړی دلته راشي، او کله چې د ۳۱۳ کسانو د جماعت نه څوک مړ شي نو په معاشره کې چې څوک صالح او د ټولو نه ډیر نیک وي ، هغه په ۳۱۳ کسانو کې شامل شي، دې لپاره چې په شمیره کې کمی رانشي. په دوې کې څلویښتو کسانو د ابدالو مرکزي ځای په شام کې دی، نور افراد د دنیا په بیلابیلو ځایونو کې ټاکلی شویدي ، دې لپاره چې د هغه ښار خدمت وکړي، د دې خلکو یو مخفي نظام دی، د سترګو نه پناه دی. په کال کې یو ځل په حجاز مقدس کې د هغوې اجتماع کیږي، بهرحال دا څه چې مې لیکلي دا ترتیب څه منصوصې او لازمې ندی، د صوفیائ کرامو په نزد باندې د ابدالو په دغه توګه باندې یو مخفي نظام جوړ دی. ابدال په رجال الغیب کې دی، کوم حضرات چې د دوې د وجود اقرار کوي په دې کې څه مضائقه نشته خو د دوې په اړه داسې عقیده ساتل جائز ندي چې هغه د توحید سره ټکر خوري، څه چې دلته لیکلی شوی. دهغې نه ډیر ملا علی قاری رحمه الله په مرقات ج۹\۳۵۴ باندې لیکلي، امام غزالی رحمه الله په احیاء العلوم کې لیکلي چې کوم سړی هره ورځ دا دعاء وایي هغه به ابدالو درجه بیامومي ﴿**اللّٰهم اغفر لامة محمد اللّٰهم ارحم امة محمد، اللّٰهم تجاوز عن امة محمد ﷺ**﴾ **عصائب:** عراق کې داسې خلکو د عصائب په نوم سره یادول کیږي او په مصر کې ورته نجباء وایې. یعنې د ټولو نه ښه، غوره، او چونړ کړی شوي خلکو ته عصائب وایې. (مرقات ۹/۳۵۴) **بعث الشام:** د دېنه مراد هغه سفیانې سړی دی چې د هغه لښکر به په زمکه کې خښ شي. **رجل من قریش:** د دېنه مراد دبنو کلب خوریا (د خور ځوې) دی. دا سړی به د سفیانې نه مخکې خپل لښکر د مهدې د مقابلې لپاره ولیږي خو هغوې ته به شکست وشي. **جراله:** داوښ د څټ مخکنۍ برخې ته جران وایې. اوښ چې

کله ستړی شي نو د څټ هغه برخه په زمکه باندې خپره کړي چې په هغې سره ورته ډیر راحت رسیږي.
دلته د اسلام د استقرار او اطمینان او استحکام او ثبات اړخ ته اشاره کړی شویده. (مرقات ۹/۳۵۵)

## د عدل او انصاف او برکتونو والا مهدی به راځي

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: ذَكَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «بَلَاءً يُصِيبُ هَذِهِ الْأُمَّةَ |
| او حضرت ابو سعید خدری رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دی و آفت ذکر وکړو چې هغه به دا امت |
| حَتَّى لَا يَجِدَ الرَّجُلُ مَلْجَأً يَلْجَأُ |
| پخپله غیږه کې واخلي. تردې چې یو کس ته به هم داسې د پناه ځای په لاس نه ورځي چې هلته دا د ظلم او |
| إِلَيْهِ مِنَ الظُّلْمِ فَيَبْعَثُ اللهُ رَجُلًا |
| زیاتې نه پناه ترلاسه کړي، بیا کله چې د ظلم او ستم هغه (دور خپل حد ته واورسیږي نو) الله تعالی به زما |
| مِنْ عِتْرَتِي وَأَهْلِ بَيْتِي فَيَمْلَأُ بِهِ الْأَرْضَ قِسْطًا وَعَدْلًا |
| د اولاد او زما د اهل بیتو نه یو سړی راولیږي، هغه سړي به زمکه د عدل او انصاف نه داسې ډکه کړي لکه |
| كَمَا مُلِئَتْ ظُلْمًا وَجَوْرًا يَرْضَى عَنْهُ سَاكِنُ السَّمَاءِ وَسَاكِنُ الْأَرْضِ |
| څنګه چې هغه د ظلم او زیاتې نه ډکه وه. د ده نه به د آسمان والا هم خوشحاله وي، او په زمکه وسیدونکي |
| لَا تَدَعُ السَّمَاءُ مِنْ قَطْرِهَا شَيْئًا إِلَّا صَبَّتْهُ |
| به ترینه هم راضي او مطمئن وي. آسمان به د خپل باران نه څه څاڅکې پاتې کولو نه بغیر په کثرت سره |
| مِدْرَارًا وَلَا تَدَعُ الْأَرْضُ مِنْ نَبَاتِهَا شَيْئًا إِلَّا أَخْرَجَتْهُ حَتَّى يَتَمَنَّى الْأَحْيَاءُ الْأَمْوَاتَ |
| راوروي او زمکه په خپل زرغونه کې د څه ساتلو نه بغیر به هر څه راشنه کړي، تردې چې ژوندي به د مړو |
| يَعِيشُ فِي ذَلِكَ سَبْعَ سِنِينَ أَوْ ثَمَانَ سِنِينَ أَوْ تِسْعَ سِنِينَ» . رَوَاهُ [1] |
| ارمان وکړي، هغه سړی (مهدی) به د دې خوشحالۍ او کامیاب سره اوه کاله یا اته کاله یا نهه کاله ژوندی وي. |

## د منصور قومندان ظهور به خامخا کیږي

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَخْرُجُ رَجُلٌ مِنْ |
| او حضرت علی رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ما وراء النهر (په یو ښار کې) به |

[1] اخرجه احمد في المسند ۳/۳۷ والحاكم في المستدرك ۴/۲۶۵.

وَرَاءِ النَّهْرِ يُقَالُ لَهُ: الْحَارِثُ حَرَّاثٌ عَلَى مُقَدِّمَتِهِ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ:

يو سړی ظاهره شي چې دهغه نوم به حارث حراث وي. دهغه د لښکر په مخکنۍ برخه کې به يو سړی وي

مَنْصُورٌ يُوَطِّنُ أَوْ يُمَكِّنُ لِآلِ مُحَمَّدٍ

چې دهغه نوم به منصور وي، هغه سړی به د محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اولاد ته ځاي يا استوګنه ورکوي لکه

كَمَا مَكَّنَتْ قُرَيْشٌ لِرَسُولِ اللهِ وَجَبَ عَلَى كُلِّ مُؤْمِنٍ نَصْرُهُ

د الله رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د چې د قريش خلکو ځاي او استوګنه ورکړې وه (نو) هر مسلمان باندې به واجب وي

أَوْ قَالَ: إِجَابَتُهُ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[1]

چې دهغه سړې مرسته او ملاتړ وکړي، يا يې دا وفرمايل چې هغه سړی دې قبول کړي.

**توضيح**: وراء النهر: دريائ آمو ته وراء النهر ويلی شوی، او د دېنه چې شاته کومې علاقې دي دا علاقې بخارا او سمرقند او داسې نورو باندې مشتمل دي. د دې علاقو نه به يو سړی وي، چې د هغه نوم به حارث حراث وي، دهغه د لښکر په مقدمة الجيش باندې به يو قومندان مقرر وي، چې دهغه نوم به منصور وي، دا سړی به مهدی ته تول وسائل ور ور رسوي. او هر قسم ملاتړ به يې کوي لکه څنګه چې د قريشو ځينو خلکو د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مرسته او ملاتړ کړی ؤ. بهرحال حارث او منصور دواړه کسان به د حضرت مهدی بنه ملاتړ وکړي او جنګې ورتيا به په کار راولي. دا کسان به د خراسان نه لښکر راولي، د خراسان اطلاق په افغانستان باندې هم کيږي.

﴿۲۳﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «وَالَّذِي

او حضرت ابو سعيد خدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: په ذات قسم د چا په لاس کې چې

نَفْسِي بِيَدِهِ لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تُكَلِّمَ السِّبَاعُ الْإِنْسَ

زما ځان دی. قيامت به تر هغه وخته پورې نه راځي تر څو چې درندګاند انسانانو سره خبرې ونکړي، او

وَحَتَّى تُكَلِّمَ الرَّجُلَ عَذَبَةُ سَوْطِهِ وَشِرَاكُ نَعْلِهِ وَيُخْبِرَهُ فَخِذُهُ

تر څو چې د سړې د چابک موتی او د کيړی (بيزار) وندنی خبرې ونکړي، او د انسان پټون به هغه ته دا وايي

بِمَا أَحْدَثَ أَهْلُهُ بَعْدَهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[2]

چې د هغه په نه شتون کې د هغه اهل او عيال کوم نوی کار او نوې خبره کړېده.

---

([1]) أخرجه أبوداود في المسند ۴/۴۷۷ رقم الحديث ۴۲۹۰.

([2]) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۱۳ رقم الحديث ۲۱۸۱ وأحمد في المسند ۳/۸۴ .

# اَلْفَصْلُ الثَّالِث

## د دویمې صدۍ نه وروسته د قیامت نښې

| |
|---|
| ﴿۲۴﴾ عَنْ أَبِي قَتَادَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْآيَاتُ بَعْدَ |
| حضرت ابو قتادة رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: نښاني به دوه سوه کاله وروسته |
| الْمِائَتَيْنِ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه[1] |
| رابښکاره کیږي (ابن ماجه) |

**توضیح: بعدا لمأتین:** یعنې د قیامت نښاني به دوه سوه کاله وروسته شروع کیږي. په دې حدیث کې اوله خبره د زده کولو دا ده چې دا دوه سوه کاله به کله شروع کیږي؟ نو ځینو علماؤ لیکلي دي چې د نبی کریم صلى الله عليه وسلم د هجرت د وخت نه به شمارل کیږي، ځینو لیکلي دي چې کله اسلام ښه روښانه شوی ؤ. دهغه وخت نه به دا کلونه شمارل کیږي. ځینو لیکلي چې د نبي کریم صلى الله عليه وسلم د وفات نه وروسته به شمارل کیږي. دویمه خبره دا ده چې دوه سوه کاله وورسته د نښانو د ظهور مطلب څه دی؟ نو ځینې علماء فرمايي چې د قیامت وړې نښې په ډیرې شمیرې سره به دوه سوه کاله وروسته شروع کیږي، ګویا په دې حدیث کې مسلسل اوپرله پسې د علامتونو ښکاره کید وخبره ده اګرکه وړې نښې د نبی کریم صلى الله عليه وسلم د وخت نه څه نا څه شروع شوي وي. ځینوعلماؤ په المأتین کې الف لام عهدې اخستلي، مراد ترینه هغه دوه صدۍ دي چې هغه د زر (۱۰۰۰) کاله نه وروسته ده ګویا چې په دې حدیث کې ویلی کیږي چې تردولس سوه کاله پورې به د قیامت وړې وړې نښې پوره شي ددې نه وروسته به غټې غټې نښې ښکاره کیږي، اوس د غټو نښو انتظار دی. (مرقات ۹/۳۶۲)

## حضرت مهدی لپاره تور بیرغونه

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾ وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا رَأَيْتُمُ الرَّايَاتِ السُّودَ قَدْ جَاءَتْ |
| او حضرت ثوبان رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: کله چې تاسو د خراسان د اړخ نه دا ښنانونه |
| مِنْ قِبَلِ خُرَاسَانَ فَأْتُوهَا فَإِنَّ فِيهَا خَلِيفَةَ الله الْمَهْدِيَّ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي «دَلَائِل النبوّة»[2] |
| راتللي ووینې نو د هغې اړخ ته متوجي شی ځکه چې په هغوي کې به د خدای خلیفه مهدی وي. |

---

[1] أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۳۴۸ رقم الحدیث ۴۰۵۷.

[2] أخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۶۰ رقم الحدیث ۲۲۶۹وابن ماجه في السنن ۲/۱۳۶۷ رقم الحدیث ۴۰۸۴ .

**توضيح**:رايات السود: د تورو بيرغونو نه د حارث او منصور لښکر مراد دی.د دوې بيرغونه به تور وي.

**خراسان**:افغانستان او ايران باندې د خراسان اطلاق کيږي. دا خلک به موحد سنيان وي.مشرک شيعه به نه وي. **المهدی**: سوال دا دی چې د حضرت مهدی ظهور خو به حرمين شريفين کې وي، په خراسان کې د هغه څه کار؟ د دې يو جواب دا دی چې دلته به مجاز اخلي يعنې په دې لښکر کې به د مهدی مرسته او ملاتړ وي، دويم جواب دا دی چې د دې لښکر حرم مکه ته په رارسيدلو سره حضرت مهدی به د دوې د پخيرزاغلاست لپاره بيرون راوتلی وي. نو بيرته ستنيدلو کې به هغه په دې لښکر کې وي.دريم جواب دا دی چې د مهدی اطلاق په يو هدايت موندونکې مسلمان قومندان باندې شويدی، لغوې توګه باندې هدايت موندونکی مؤمن مهدی دی. نو ګويا منصور ته مهدی ويلی شويدی، مشهور مهدی مراد ندی. (مرقات ۹/۳۶۳)

## امام مهدي به د حضرت امام حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په اولاد کې وي

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾ وَعَن أَبِي إِسحاق قَالَ: قَالَ عَلِيٌّ وَنَظَرَ إِلَى ابْنِهِ الْحَسَنِ قَالَ: |
| او ابو اسحاق فرمايې چې حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل ځوې امام حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته په کتلو سره وويل |
| إِنَّ ابْنِي هَذَا سَيِّدٌ كَمَا سَمَّاهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسَيَخْرُجُ مِنْ صُلْبِهِ رَجُلٌ يُسَمَّى |
| چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ده په اړه فرمايلي دي: سردار دی، ډير ژر به د ده د ملا نه يو سړی پيدا شي چې د هغه نوم |
| بِاسْمِ نَبِيِّكُمْ يُشْبِهُهُ فِي الْخَلْقِ |
| به ستاسو د نبی په نامه وي. هغه باطني سيرت يعنې اخلاق او عادتونو کې به د نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره مشابه |
| ثُمَّ ذَكَرَ قِصَّةً يَمْلَأُ الْأَرْضَ عَدْلًا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَلَمْ يَذْكُرِ الْقِصَّةَ [1] |
| وی. دا روايت ابو داؤ نقل کړيدی خو هغه د زمکه د عدل او انصاف نه ډکولو والا خبره نده نقل کړي. |

**توضيح**: من صلبه: يعنې حضرت مهدی به حسني وي، حسينی به نوي، که چيرته حسينی نسبت دی نو هغه د فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د وجې نه دی.ګنې هغه به د حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په اولاد کې وي. لکه څنګه چې په دې روايت کې دی لهذا د شيعو هغه عقيده غلط ګرځي چې په هغې کې دوې وايي چې مهدی محمد بن حسن عسکری دی. چې هغه دا وخت په غار کې شته دی، او په خپل وخت به راښکاره کيږي. (مرقات ۹/۳۶۳)

---

(۱) أخرجه أبوداود في السنن ۴/۴۷۷ رقم الحديث ۴۲۹۰.

## په يوزر (۱۰۰۰) مخلوق کې د ملخانو مکمل ختميدل د قيامت نښه ده

| |
|---|
| ﴿٢٧﴾ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ الله قَالَ: فُقِدَ الْجَرَادُ فِي سَنَةٍ مِنْ سِنِي عُمَرَ الَّتِي تُوُفِّيَ فِيهَا |
| او حضرت جابر بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په کوم کال وفات شو |
| فَاهْتَمَّ بِذَلِكَ هَمًّا شَدِيدًا |
| د هغه کال ذکر دی چې ملخان کم شول. حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ملخانو په نه راتګ باندې سخت غمژن |
| فَبَعَثَ إِلَى الْيمن رَاكِبًا وراكبا إِلَى العرق وَرَاكِبًا إِلَى الشَّامِ |
| شو. بيا هغه يو سپور يمن ته، يو سپور عراق اړخ ته، او يو سپور شام اړخ ته وليږلو، دې لپاره چې هغوې د |
| يَسْأَلُ عَنِ الْجَرَادِ هَلْ أُرِيَ مِنْهُ شَيْئًا فَأَتَاهُ الرَّاكِبُ الَّذِي مِنْ قبل الْيمن |
| خلکو نه معلومه کړي چې ايا چا څه ملخان ليدلي دي او که نه؟ نو کوم سپور سړی چې يمن اړخ ته ليږلی |
| بقبضة فنثرها بين يَدَيْهِ |
| ؤ هغه د ځان سره يو موټی ملخان راختستي د حضرت عمر رضی الله نه خواته راغلو او د هغه مخې ته يې وشيندل |
| فَلَمَّا رَآهَا عُمَرُ كَبَّرَ |
| حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې کله ملخان وليدل نو (د خوشحالۍ نه يې) د الله اکبر چيغه وچته کړه او بيا يې |
| وَقَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ خَلَقَ أَلْفَ أُمَّةٍ |
| وفرمايل چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دي چې الله تعالى د ځناورو زر قسمونه پيدا کړيدي. په دې کې |
| سِتُّ مِائَةٍ مِنْهَا فِي الْبَحْرِ وَ أَرْبَعُ مِائَةٍ فِي الْبَرِّ فَإِنَّ أَوَّلَ |
| شپږ سوه په درياب کې دي او څلور سوه په ځنګل کې دي. او (کله چې قيامت راځي نو) په دوې کې به اول |
| هَلَاكِ هَذِهِ الْأُمَّةِ الْجَرَادُ فَإِذَا هَلَكَ الْجَرَادُ |
| ملخان هلاک شي. (نو کله چې ملخان هلاک شي نو بيا د ځناورو نورو قسمونه به هم) په دغه توګه پرله پسې |
| تَتَابَعَتِ الْأُمَمُ كَنِظَامِ السِّلْكِ . « رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي » شُعَبِ الْإِيمَانِ" [۱] |
| هلاکيدل شروع شي. لکه د ملغلرو تار چې وشليږي. او ملغلرې پرله پسې خپريدل شروع شي. |



(۱) رواه البيهقي في شعب الايمان ۷/۲۳۴ رقم الحديث ۱۰۱۳۲.

۳ جمادی الثاني ۱٤۱۸هـ

# بَابُ الْعَلَامَاتِ بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ وَذِكْرِ الدَّجَّالِ

## د قیامت د نښانو او د دجال د راوتلو بیان

قال الله تعالی: ﴿وَإِنَّهُ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ فَلَا تَمْتَرُنَّ بِهَا وَاتَّبِعُونِ هَٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ﴾ (زخرف:۶۱)

په دې باب کې د نښانو نه د قیامت هغه نښاني مراد دی چې هغه غټې نښې دي. په دې کې د دجال راوتل هم داخل دي. د دې جدا ذکر کولو ضرورت نه ؤ .خو دا د شهرت د وجې نه تخصیص بعدا لتعمیم په توګه باندې جدا ذکر شویدی. د ظهور مهدی ذکر دلته کول پکار ؤ ځکه چې هغه هم په علامات کبری کې دی.خو په علامات کبری کې څه داسې جنګونو ذکر ؤ چې د هغې تعلق د حضرت مهدی سره ؤ ، نو ځکه د مهدی تذکره هلته په علامات صغری کې وشوه.ګنې ظهور مهدی په علامات کبری کې دی.وس د دې غټو علاماتو د راتګ ترتیب داسې دی: (۱) ظهور مهدی (۲) خروج دجال (۳) نزول حضرت عیسی عَلَیْهِ السَّلَامُ (۴) خروج یاجوج وماجوج (۵) خروج دآبة الارض (۶) طلوع الشمس من المغرب. په ځینو روایتونو کې دا علامات په ترتیب سره ذکر دي خو په ځینو کې د ترتیب سره ذکر ندي. (مرقات۹/۳۶۵)

دجال د دجل نه دی. د مبالغې صیغه ده .چې دهوکه باز او فریب کونکې په معنی دی. دجال د دنیا په څه برخه کې محبوس او پټ دی. مودودي صاحب په رسائل مسائل کې لیکلي دي چې خلکو ټوله دنیا ولټوله ، کانې دجال چیرته دی؟ د دې جواب دی چې دا غلطه ده چې خلکو دنیا لټولې ده. د نیا داسې ځایونه وس هم شته دی، چیرته چې د خلکو خیال هم ندی تللی، دنیا پریږده! د پاکستان فوکر طیاره د راولپنډې نه ګلګت ته روانه شوه او په لاره کې راوګوزار شوه او تباه شوه ، ترننه پورې چاته معلومه نشوه چې د هغې ملبه چیرته پرته ده . ۴۵ کسانو باندې مشتمل ټوله طیاره تروسه پورې ورکه ده. دجال هم په یو پټ ځای کې په زنځیرونو کې تړلی شوی پروت دی. جزیره برمودا د پاسه جهاز نشي الوتلی. نه په سمندر کې جهاز تللی شي. که په دغه شان علاقو کې دجال محبوس وي . نو څه حرج دی؟ دجال سره د مسیح لفظ لګیدلی دی، بل اړخ ته د حضرت عیسی عَلَیْهِ السَّلَامُ د نوم سره هم مسیح لګیدلی دی، خو په دواړو کې فرق دی.دجال ته ممسوح العین کیدلو په وجه باندې مسیح وایي.یابه ټوله دنیا مسح کړي، ځکه ورته مسیح ویلې شویدی. او د حضرت عیسی عَلَیْهِ السَّلَامُ سره چې کوم د مسیح لفظ لګیدلی دی نو هغه د دې وجې نه دی چې هغه په ناروغانو باندې لاس راکاږو نو ناروغ به جوړیدلو ، ځکه ورته مسیح ویلی شویدی.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّل

## د قیامت نه مخکې د لسو علاماتو ښکاریدل

﴿۱﴾عَن حذيفةَ بن أُسيد الْغِفَارِيِّ قَالَ: اطَّلَعَ النَّبِيُّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْنَا

حضرت حذیفه بن اسید غفاری رضي الله عنه فرمایي مونږ خپل مینځ کې (د قیامت) ذکر کولو ، نبی کریم صلی الله علیه وسلم

وَنَحْنُ نَتَذَاكَرُ. فَقَالَ: «مَا تَذْكُرُونَ؟» قَالُوا:

زمونږ اړخ ته راووتلو ، او پوښتنه یې وکړه چې تاسو د څه شي ذکر کولو ؟ صحابؤ وویل چې مونږ د قیامت

نَذْكُرُ السَّاعَةَ. قَالَ: " إِنَّهَا لَنْ تَقُومَ حَتَّى

تذکره کوله. نو هله نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: قیامت به تر هغه وخته پورې نه راځي چې ترڅو پورې تاسو د هغې

تَرَوْا قَبْلَهَا عَشْرَ آيَاتٍ فَذَكَرَ الدُّخَانَ وَالدَّجَّالَ وَالدَّابَّةَ

نه مخکې لس نښانې ونه وینئ ، بیا نبی کریم صلی الله علیه وسلم ذکر کړل: (۱) لوګی (۲) دجال (۳) دابة الارض (۴) د لمر د

وَطُلُوعَ الشَّمْسِ مِنْ مَغْرِبِهَا وَنُزُولَ عِيسَى بْنِ مَرْيَمَ وَيَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ

مغرب اړخ نه راختل (۵) حضرت عیسی ابن مریم علیهما السلام راکوزیدل (۶) د یاجوج ماجوج ښکاره کیدل

وَثَلَاثَةَ خُسُوفٍ : خَسْفٌ

(او د ۹،۸،۷ نښې په توګه باندې) نبی کریم صلی الله علیه وسلم خسوف (یعنې په درې ځایونو کې په زمکه کې د ننوتلو) ذکر

بِالْمَشْرِقِ وَ خَسْفٌ بِالْمَغْرِبِ وَ خَسْفٌ بِجَزِيرَةِ الْعَرَبِ

وکړو. یو خو د مشرق په علاقه کې ، دویم د مغرب په علاقه کې ، او دریم د جزیره عرب په علاقه کې

وَآخِرُ ذَلِكَ نَارٌ تَخْرُجُ مِنَ الْيَمَنِ

او لسمه نښه چې هغه به د ټولو نه وروسته ظاهریږي ، هغه اور دی ، چې هغه به د یمن د اړخ نه را ښکاره شي

تَطْرُدُ النَّاسَ إِلَى مَحْشَرِهِمْ ". وَفِي رِوَايَةٍ:

او خلک به راګیرولو باندې شروع او د محشر زمکې اړخ ته به یې راولي . او په یو حدیث کې داسې دي چې

«نَارٌ تَخْرُجُ مِنْ قَعْرِ عَدَنَ

هغه به داسې اور وي چې هغه (د یمن د مشهور ښار) عدن د آخرې غاړې نه به را ښکاره کیږي . او خلک به

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| تَسُوقُ | النَّاسَ | إِلَى | الْمَحْشَرِ» | . وَفِي | رِوَايَةٍ | فِي | الْعَاشِرَةِ |

د محشر زمکې اړخ ته په شړلو بوځي. دغه شان په يو روايت کې د لسمې نښانې په توګه باندې د يمن د اړخ

«وَرِيحٌ تُلْقِي النَّاسَ

نه يا د عدنان د آخرې غاړې نه د اور راښکاره کيدلو په ځاې باندې د يو داسې باد (هوا) ذکر دی چې هغه به

فِي الْبَحْرِ» . رَوَاهُ مُسلم[1]

خلک سمندر ته ګوزار کړي.

**توضيح: الدخان:** د دې لوګې نه د حضرت حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنهُ د تفسير مطابق قيامت ته نژدې يو لوګې مراد دی. چې هغه به په آخره زمانه کې راځي. او د مشرق نه به مغرب پورې خپور شي، څلويښت ورځو پورې به وي. مسلمانانو ته به فقط د زکام کيفيت وي، خو کافر به د دې لوګې نه بيهوشه شي، په قرآن کريم کې د دې لوګې ذکر داسې دی ﴿يَوْمَ تَأْتِي السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِينٍ يَغْشَى النَّاسَ﴾(الدخان) د دې برعکس حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې دخان نه مراد د مکې په خلکو باندې د قحط د راتګ زمانه ده .بهرحال په حديث کې چې کوم دخان دی ، هغه خو قيامت ته نژدې راتلونکی لوګې دی. البته د آيت په تفسير کې د مکې د خلکو قحط اخستل بعيد ندي، بلکې ممکنه ده: **ثم دآبة:** ځينې علماؤ ليکلي دي چې خروج دآبة به په درې زمانو کې وی، د ظهور مهدی په زمانه کې به وي. يا د عيسى عَلَيهِ السَّلَام د نزول په وخت کې به وي. او يا به طلوع الشمس په وخت کې وي. **قعر:** ژورې کندې او ليرې برخې ته قعر وايي. او عدن په يمن کې د يو غټ ښار نوم دی. يعنې د عدن د ليرې برخې نه به دا اور راوځي. (مرقات ۹/۳۶۷)

**الى المحشر:** عام روايتونو کې دي چې د قيامت حساب او کتاب او د خلکو د يو ځاې کيدلو مقام محشر به د شام په زمکه کې وي. **المحشر** نه مراد د شام زمکه ده. (مرقات ۹/۳۶۷)

﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «بَادِرُوا بِالْأَعْمَالِ سِتًّا.

او حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د شپږو شيانو په بناء باندې تاسو اعمال

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| الدُّخَانَ | وَالدَّجَّالَ | وَدَابَّةَ | الْأَرْضِ | وَطُلُوعَ | الشَّمْسِ | مِنْ | مَغْرِبِهَا |

صالحه اړخ ته وړاندې والی وکړی، (او هغه شپږ شيان دا دي) لوګې، دجال، دابة الارض، د مغرب نه د لمر

---

[1] أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۲۵ رقم الحديث( ۲۹۰۱-۳۹) وابوداود في السنن ۴/۴۹۱ رقم الحديث ۴۳۱۱.

| وَأَمْرَ الْعَامَّةِ وَخُوَيْصَّةَ أَحَدِكُمْ» . رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1] |
|---|
| راختل، امر عامه، او خاص فتنه. (مسلم) |

**توضيح: امر العامة:** يعنې هغه عامه فتنه چې هغه به خلک په خپله غيره کې راونيسي. د دين د بيزاريدلو فتنه مراد ده. **خويصة:** يعنې هغه فتنه چې په ذاتې توګه باندې د چا سره خاص وي. د هر سړي خپله ذاتي فتنه او پريشانې وي، چې د هغې تعلق به د هغه د مال، اولاد او ګاونډ د معاملاتو سره وي. د دې حديث يو مطلب دا هم کيدلی شي، چې د عامو فتنو نه د قيامت راتګ مراد دی. او د خاص فتنې نه د هر سړي مرګ مراد دی. د دې حديث ښودنه دا ده چې د دې شپږو علاماتو د ظهور نه مخکې په نيک اعمالو کې تُندې وکړې، ځکه چې وروسته به د اعمالو موقع نوي يا به اعمال نه قبليږي. (مرقات ۹/۳۶۸)

## د قيامت اولنۍ نښه

| ﴿۳﴾وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
|---|
| او حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه روايت دی چې ما د رسول الله صلی الله عليه وسلم نه دا اوريدلي دي: د ظاهريدلو |
| «إِنَّ أَوَّلَ الْآيَاتِ خُرُوجًا طُلُوعُ الشَّمْسِ مِنْ مَغْرِبِهَا |
| په اعتبار سره د قيامت په نښانو کې د ټولو نه اوله نښه د لمر د مغرب اړخ نه راختل او د څاښتې په وخت کې |
| وَخُرُوجُ الدَّابَّةِ عَلَى النَّاسِ ضُحًى وَأَيُّهُمَا مَا كَانَتْ قَبْلَ صَاحِبَتِهَا |
| په خلکو باندې د دآبة الارض راوتل او د هغوې سره خبرې کول دي. په دې دواړو ذکر شوؤ نښو کې کومه |
| فَالْأُخْرَى عَلَى أَثَرِهَا قَرِيبًا» رَوَاهُ مُسْلِم[2] |
| نښه اول ښکاره شوه د هغې نه وروسته ژر بله نښه ښکاره شي. |

**توضيح: اول الأيات:** پوښتنه دا ده چې په دې حديث کې طلوع الشمس من المغرب د قيامت د ټولو نه اولنۍ نښه ګرځولی شويده حالانکې د طلوع الشمس نه مخکې ډيرې نښې دي، خروج دجال د دې نه مخکې ده، نو طلوع الشمس څنګه مخکې وګرځولی شو؟ د دې جواب دا دی چې د قيامت يو قِسم نښې هغه دي چې هغه د قيامت د نزديکت نښې دي او دويم قِسم نښې هغه دي هغه د قيامت د واقع کيدلو او قيامت د شروع کيدلو دي. نو طلوع الشمس من المغرب د قيامت د شروع کيدلو په

---

([1])اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۶۷ رقم الحديث (۲۹۴۷-۱۲۹) وابن ماجه في السنن ۲/۱۲۳۸)

([2])اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۶ رقم الحديث (۲۹۴۱-۱۱۸) واخرجه ابوداود في السنن ۴/۴۹۰ رقم الحديث ۴۳۱۰.

اعتبار سره اولنۍ نښه ده او خروج دجال قيامت ته د نزديکت نښه ده. اګرکه دواړه علامات کبرى دي.(مرقات۹/۳۶۹،الکاشف:۱۰/۱۱۰)

## د درې نښو د ښکاره کيدلو نه وروسته به نه ايمان معتبر وي، نه نيک عمل

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «ثَلَاثٌ إِذَا خَرَجْنَ |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل: درې خبرې چې کله را ښکاره شي، نو |
| (لَا يَنْفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِنْ قَبْلُ |
| بيا يو داسې سړي ايمان راوړل چې هغه د دې نه مخکې ايمان نوي قبول کړى، هيڅ فائده به نه ورکوي، او نه دهغه سړي |
| أَوْ كَسَبَتْ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا) |
| د خپل ايمان په حالت کې نيک عمل به فائده ورکړي، که هغه د دې نه مخکې دغه نيک عمل نوي کړى، |
| طُلُوعُ الشَّمْسِ مِنْ مَغْرِبِهَا وَالدَّجَّالُ وَدَابَّةُ الْأَرْضِ» . رَوَاهُ مُسلم [1] |
| او هغه درې خبرې دا دي: لمر د مغرب اړخ نه راختل، دجال او دآبة الارض راوتل. |

**توضيح**: د توبې دروازه بنديدلو لپاره اول شی **طلوع الشمس من المغرب** دی. دويم شی خروج دجال دی.او دريم شی د دآبة الارض خروج دی. دعالم آخرت څه شی کتلو نه وروسته په دې دنيا کې نه د ايمان اعتبار شته دی، نه د نيک عمل اعتبار شته دی.هم دا وجه ده چې د غرغرې په حالت کې چې کله د آخرت شيان وليدلی شي نو بيا توبه نه قبليږي.معتزله او خوارج د دې آيت نه د خپلې غلطې عقيدې ثابتولو کوښښ کوي، او وايې چې د آيت مطلب دا دی چې کوم سړې د مرګ نه مخکې ايمان قبول نکړو، د مرګ نه وروسته دهغه ايمان هيڅ فائده مند ندی. دغه شان کوم سړې چې دايمان په حالت کې د غرغرې نه مخکې څه نيک عمل نوي کړی نو هغه ته به هم د هغه ايمان هيڅ فائده ورنکړي . لهذا نو دغېو ګناهونو کونکی به هميشه په دوزخ کې وي. جمهور اهل السنت فرمايې: چې دآيت مطلب دا دی چې :**يَوْمَ يَأْتِي بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ لَا يَنْفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا وَلَا كَسْبَهَا الْعَمَلُ الصَّالِحُ فِي إِيمَانِهَا حِينَئِذٍ إِذَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِنْ قَبْلُ أَوْ كَسَبَ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا مِنْ قَبْلُ** يعنې د غيبو پرده ليرې کيدلو نه وروسته نه ايمان فائده ورکونکی دی، او نه عمل صالح فائده ورکونکی دی. ځکه چې د عمل او ايمان وخت وس ندی پاتې شوی، يعنې د غرغرې په حالت کې نه ايمان معتبر دی ، نه عمل صالح معتبر دی.(مرقات۹/۳۷۰)

---

(۱)اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۱۳۸رقم الحديث (۱۵۸-۲۴۹) وأبوداود في السنن ۴/۴۹۲ رقم الحديث ۴۳۱۲.

## لمر د عرش د لاندې د سجدې کولو مطلب

| |
|---|
| ﴿۵﴾وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ غربت الشَّمْس: |
| او حضرت ابو ذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې څه وخت لمر ډوبيدلو نو نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: پوهيږې! دا لمر چيرته |
| «أَيْن تذْهب؟» . قُلْتُ: الله وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. قَالَ: " فَإِنَّهَا تَذْهَبُ حَتَّى |
| روان دی؟ ما وويل چې الله او د هغه رسول ښه پوهيږي! نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: دا لمر ځي تردې چې د عرش د |
| تَسْجُدَ تَحْتَ الْعَرْشِ فَتَسْتَأْذِنُ فَيُؤْذَنُ لَهَا |
| لاندې رسيدلو سره سجده کوي، بيا د مشرق نه د راختلو اجازت غواړي، نو دېته اجازت ورکړی شي. او هغه |
| وَيُوشِكُ أَنْ تَسْجُدَ وَلَا يُقْبَلُ مِنْهَا وَتَسْتَأْذِنُ |
| وخت ژر راتلونکی دی، چې لمر به سجده وکړي، خو د دې سجده به قبوله نشي، او اجازت به غواړي ليکن دېته |
| فَلَا يُؤْذَنُ لَهَا وَيُقَالُ لَهَا: ارْجِعِي مِنْ حَيْثُ جِئْتِ |
| به اجازت نه کيږي، او دا حکم به ورکړی شي چې د کوم اړخ نه راغلې يې، هغې اړخ ته ستون شه، نو دا به د |
| فَتَطْلُعُ مِنْ مَغْرِبِهَا فَذَلِكَ قَوْلُهُ تَعَالَى " (والشمسُ تجْرِي |
| مغرب د اړخ نه راوخيژي، او هم دا مراد دی د الله تعالی د دې قول چې ﴿وَالشَّمْسُ تَجْرِي لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا﴾ يعنې |
| لمستقرّ لَهَا ) قَالَ : « مستقرها |
| لمر د خپل مستقر اړخ ته ځي) د غه شان نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د لمر مستقر يعنې د دې د ايساريدلو |
| تَحت الْعَرْش» . مُتَّفق عَلَيْهِ[1] |
| ځای د عرش د لاندې دی. |

**توضيح: تسجد تحت العرش**: د هر شي سجده د هغې د حال مطابق وي، نو د لمر به په روانه روانه سجده وي، دا څه گرانه نده. نباتات، جمادات سجده خو به د انسان په شان نوي. نو هغه به په دې باندې نشي قياس کولی. لمر اگرکه هر وخت په حرکت کې وي، خو د دې تحرک سره هم د سجدې کول څه مستبعد ندي. د غه شان دا د غيب يوه معامله ده ، مونږ تردې مکلف يو چې مونږ دا ومنو چې لمر سجده کوي، نو مخکې د تفصيلاتو په معلومولو باندې مونږ مکلف نه يو ، نه د دې په پلټنه

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۲۹۷ رقم الحديث ۳۱۹۹ مسلم في صحيحه ۱/۱۳۸ رقم (۱۵۹-۲۵۱)

(تحقيق) کې ځان اچول زمونږ ذمه واري ده . لمستقرلها: يعنې لمر خپل مستقر اړخ ته روان دی.

**سوال**: د دنيا لمر هر وخت طلوع وي، نو د دې په خپل مستقر کې ډوبيدل په پوهه کې نه راځي؟

**جواب**: د لمر يو مستقر زماني دی او بل مستقر مکاني دی، مونږ مستقر زماني مراد اخلو.چې دهغې مطلب دا دی چې د کومې زمانې نه لمر په خپل کار کې لګيدلی دی، دا په هغه کار کې اخته دی، تردې چې قيامت به راشي، نو تر قيامته پورې به لمر خپل مستقر اړخ ته روان وي. کله به هم نه ودريږي، د قرآن آيت إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى د دې رايې ملاتړ کوي. دويم جواب دا دی چې په آيت کې د مستقر نه مراد مستقر مکاني دی، او د مستقر مکاني مطلب دا دی چې په کومه ورځ الله تعالی لمر پيدا کړی ؤ او د کوم ځای نه يې لمر روان کړی ؤ، تر هغه ځای پورې به لمر روان وي، هم دا د دې مستقر دی.(مرقات۹/۳۷۰)

## د ټولو نه غټه فتنه د دجال ده

﴿۶﴾ وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «مَا بَيْنَ

او حضرت عمران بن حصين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوريدلي دي چې د

خَلْقِ آدَمَ إِلَى قِيَامِ السَّاعَةِ أَمْرٌ أَكبر من الدَّجَّال» . رَوَاهُ مُسلم[۱]

آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ د پيدائښت نه واخله تر قيامت د ورځې پورې د دجال د فتنې نه غټه فتنه نشته دی.(مسلم)

## په يوه ستر ګه به دجال کاڼی وي

﴿۷﴾وَعَن عَبْدُ اللهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ اللهَ لَا يَخْفَى عَلَيْكُمْ

او حضرت عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: يقينًا الله تعالی په تاسو باندې مخفي ندی

إِنَّ اللهَ تَعَالَى لَيْسَ بِأَعْوَرَ وَإِنَّ الْمَسِيحَ الدَّجَّالَ أَعْوَرُ عَيْنِ الْيُمْنَى كَأَنَّ

يښکه الله تعالی کاڼی ندی، او حال دا دی چې مسيح دجال په ښي ستر ګه باندې کاڼی دی.او دهغې دغه ستر ګه

عَيْنَهُ عنبة طافية» . مُتَّفق عَلَيْهِ[۲]

به داسې وي لکه هغه د انګور يوه پړسيدلې دانه ده.

**توضيح**:اعور:د دجال فتنه به په کائنات کې د ټولو نه غټه فتنه وي، ځکه چې دجال به د خدايي

---

([۱])اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۶۷ رقم حديث (۲۹۴۶-۱۲۶)

([۲])اخرجه البخاري في صحيحه ۹۰ ۱۳ رقم حديث ۷۱۲۳ ومسلم في صحيحه ۴/۲۲۳۷ رقم الحديث ۱۶۹-۱۰).

دعوی کوي، او د هغه سره د استدراج د شتون د وجې نه به د دهوکه کولو ډیر سامان موجود وي. نو ځکه نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دجال شکل په برسیره الفاظو کې بیان کړو، چې چا ته د دجال په اړه څه اشتباه پاتې نشي. دلته دا ویلی شویدي چې د دجال به ښې سترګه کاڼه وي. **عنبة طافية**: یعنې د انګور د دانې به شان به شنه(اسماني رنګې) راوتلي وي، چې دا انتهایې بدصورت دی. نو یوه سترګه خو یې بیخې ممسوحه، مطموسه او پوچه به وي. او دویمه به په بدترین شکل کې د انګور د دانې په شان راوتلې وي.

**سوال**: دلته په زیر بحث حدیث کې ویلی کیږي چې د دجال به ښې سترګه کاڼه وي، او په راتلونکې حدیث نمبر: ۱۱ کې ویلی شویدي چې د دجال به کیڼه (ګس\چَپ) اړخ سترګه کاڼه ده. دا واضحه تعارض دی. د دې جواب څه دی؟

**جواب**: مجموعې احادیثو په کتلو سره معلومیږي چې د دجال دواړه سترګې به عیبجنې وي. او په عیبجنه سترګه باندې د اعور اطلاق کیږي نو د دجال ښې سترګه به هم کاڼه وي او چپه به هم عیبجنه وي. په دې کې هیڅ تعارض نشته دی. چا چې کوم یو ذکر کړو، صحیح دی. اصل حقیقت ته که وکتلی شي نو دا حقیقت په واضحه توګه باندې مخې ته راځي چې د دجال ښې سترګه بیخې پاک او هوار میدان دی، نه سترګه شته او نه د سترګې کنده، نه راوتلې سترګه شته، نه څه نور څه، بیخې پاک دی. دا حقیقت په حدیث نمبر ۱۱ او حدیث: ۲۲ کې په واضحه توګه باندې بیان شویدی. چې په هغې کې **اعور العين اليسرٰى** الفاظ هم دي. او **مطموس العين ليست بناتية ولا حجراء** الفاظ هم راغلي دي. دا د دجال د چپې سترګې تفصیل دی. دلته زیر بحث حدیث نمبر: ۷ کې د دجال د ښې سترګې په اړه تفصیل دی. چې د انګور د دانې په شان به راوتلې وي. ګویا دا هغه سترګه ده چې په دې کې څه ناڅه ساه شته دی. څه نښان به وي. خو بدصورته قبیح شکل کې به وي. عیبجنه به وي، چې په هغې باندې به د کاڼې سترګې اطلاق د عیب د وجې نه کیدلی شي، لکه څنګه چې په دی حدیث کې د اعور اطلاق و رباندې شویدی. (مرقات ۹/۳۷۲)

## دروغژن دجال به کاڼه وي

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَا مِنْ نَبِيٍّ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: دا سې هیڅ نبی ندی تیر شوی چې هغه خپل امت |
| إِلَّا أَنْذَرَ أُمَّتَهُ الْأَعْوَرَ الْكَذَّابَ أَلَا إِنَّهُ أَعْوَرُ وَإِنَّ رَبَّكُمْ لَيْسَ بِأَعْوَرَ |
| د دروغژن کاڼه دجال نه نه وي یرولی. خبردار و سیږئ! دجال به کاڼا وي، او ستاسو پروردګار کاڼا ندی. د غه شان |

مَكْتُوبٌ بَيْنَ عَيْنَيْهِ: ك ف ر ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1]

د دې (دجال) دواړو سترګو په مينځ کې ک ف ر (يعنې کافر) لفظ به ليکلی شوی وي.

﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِلَا أُحدثكم حَدِيثًا عَنِ الدَّجَّالِ ماحدث بِهِ نبيٌّ قومَه؟ : إِنَّه أعورُ وإِنَّه يَجِيءُ مَعَهُ بِمِثْلِ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ فَالَّتِي يَقُولُ: إِنَّهَا الْجَنَّةُ هِيَ النَّارُ وَ إِنِّي أُنْذِرُكُمْ كَمَا أنذر بِهِ نوح قومه ". مُتَّفق عَلَيْهِ[2]

او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: خبردار وسيږئ! زه تاسو ته د دجال په اړه باندې داسې خبره کوم چې هغه کوم بل نبي خپل قوم ته نده کړې (او هغه خبره دا ده چې) دجال به کاڼا وي او هغه به د خپل ځان سره جنت او دوزخ په شان دوه شيان راوړي. نو هغه چې کوم شي ته جنت وايي. حقيقت کې به هغه اور وي. لهٰذا زه تاسو د دې (دجال) نه يروم لکه څنګه چې نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ خپل قوم يرولی ؤ.

﴿۱۰﴾ وَعَنْ حُذَيْفَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِنَّ الدَّجَّالَ يَخْرُجُ وَإِنَّ مَعَهُ مَاءً وَنَارًا فَأَمَّا الَّذِي يَرَاهُ النَّاسُ مَاءً فَنَارٌ تَحْرِقُ وَأَمَّا الَّذِي يَرَاهُ النَّاسُ نَارًا فَمَاءٌ بَارِدٌ عَذْبٌ فَمَنْ أَدْرَكَ ذَلِكَ مِنْكُمْ فَلْيَقَعْ فِي الَّذِي يَرَاهُ نَارًا

او حضرت حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: دجال به په داسې حالت کې حاضر شي چې د هغه سره به اوبه وي او اور به وي. خو بيا هم خلک چې به کوم شی اوبه ګڼي، هغه به په حقيقت کې سوزونکی وي، او کوم شی چې خلک اور ګڼي هغه به په حقيقت کې يخې او خوږې اوبه وي نو په تاسو کې چې کوم سړی هغه بيا مومي نو هغه لپاره پکار دي چې هغه په هغه څه کې ځان ګوزار ول خوښ کړي، کوم چې هغه د اور په شکل کې ويني. ځکه چې په حقيقت کې هغه اور ندی، بلکې ډيرې

---

(1) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳/۴۱۵ رقم الحديث ۷۴۳۱ ومسلم في صحيحه ۴/۲۲۴۸ رقم الحديث (۲۹۳۳-۱۰۱)

(2) أخرجه البخاريفي صحيحه ۶/۳۷۰ رقم الحديث ۳۳۳۷ ومسلم في صحيحه ۴/۲۲۵۰. رقم الحديث (۲۹۳۶-۱۰۹)

| |
|---|
| فَإِنَّهُ مَاءٌ عَذْبٌ طَيِّبٌ» . مُتَّفق عَلَيْهِ. وَزَاد مُسلم: |
| خوږي او خوښ کړی شوي اوبه به وي. (بخاري و مسلم) او مسلم په خپل روايت کې دا الفاظ ورسره زيات نقل |
| «إِن الدجالَ ممسوحُ العينِ عَلَيْهَا ظفرةٌ غليظةٌ مَكْتُوب بَين عَيْنَيْهِ |
| کړيدي چې دجال به ممسوح العين وي او په هغې باندې سخت نوک وي او د هغه د سترګو په مينځ کې |
| كَافِر يَقْرَؤُهُ كل مُؤمن كَاتبٌ وَغير كَاتب»[1] |
| به کافر لفظ ليکلی شوی وي، او دا لفظ به هر مؤمن لولي. که هغه ليکلو (او لوستلو) باندې پوهيږي او که نه پوهيږي. |

**توضیح**: يعنې کله غوښه چې هغه به د پوزې دا ړخ نه په سترګه ورختلي وي، لکه نوک چې تراشل شوی وي. دا صفت د دجال د چېپ سترګې دی چې هغه بيخې پاک ميدان دی، ورسره راتلونکې حديث کې د چپې سترګې تصريح شته د ښې سترګې تفصيل په تير شوې حديث نمبر: ۷ کې ذکر شوی. **جفال الشعر**: ای کثير الشعر، بدن باندې به يې ډير زيات ويختان وي. لکه د ځنګل ځناور چې دی. (مرقات ۹/۳۷۷)

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الدَّجَّالُ أَعْوَرُ الْعَيْنِ الْيُسْرَى |
| او حضرت حذيفه رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د دجال به چپه سترګه کانړې وي، په |
| جُفَالُ الشَّعَرِ مَعَهُ جَنَّتُهُ وَنَارُهُ |
| هغه باندې به ډير زيات ويختان وي. او د هغه سره به د هغه جنت وي او د هغه اور به وي، ليکن د هغه اور به |
| فَنَارُهُ جِنَّةٌ وَجَنَّتُهُ نَارٌ» . رَوَاهُ مُسلم[2] |
| په حقيقت کې جنت او د هغه جنت به په حقيقت کې اور وي. |

## د دجال جادوې کارونه او د ياجوج ماجوج خروج

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَن النوَّاس بن سمْعَان قَالَ: ذَكَرَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الدَّجَّالَ |
| او حضرت نواس بن سمعان رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د دجال (د راوتلو) دهغې د دهوکو او دهغې |
| فَقَالَ: «إِنْ يَخْرُجْ وَأَنَا فِيكُمْ |
| په فتنه کې د خلکو د اخته کيدلو ذکر وکړو. نبی کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: که دجال راووځي او زه په تاسو کې موجود |

---

([1])اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۴۹۴ رقم الحديث ۳۴۵۰ ومسلم في صحيحه ۴/۲۲۴۹ رقم الحديث (۲۹۳۴-۱۰۵)

([2])اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۵۰ رقم الحديث (۲۹۳۷-۱۱۰) وابوداود في السنن ۴/۴۹۶ رقم الحديث ۴۳۲۱.

| | | |
|---|---|---|
| فَأَنَا | حَجِيجُهُ | دُونَكُمْ |

یم نو زه به د هغې سره ستاسو په مخامخا جنګ وکړم او په دلیل سره به په هغه باندې غالبه کیږم. او که دجال

وَإِنْ يَخْرُجْ وَلَسْتُ فِيكُمْ فَامْرُؤٌ حَجِيجُ نَفْسِهِ

هغه وخت راووتلو چې زه به نه یم نو بیا په تاسو کې هر سړی به د خپل ځان د اړخ نه د هغه سره جنګ

وَاللهُ خَلِيفَتِي عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ إِنَّهُ شَابٌّ

کونکی وي. او زما وکیل او خلیفه د هر مسلمان لپاره الله تعالی دی. دجال به ځوان وي. د هغه ویختان به

قَطَطٌ عَيْنُهُ طَافِيَةٌ كَأَنِّي أُشَبِّهُهُ

کورګوتې وي. او د هغه سترګې به راپړسیدلي وي. ګویا د هغه د قطن د ځوي عبد العزی سره تشبیه ورکولی شم

بِعَبْدِ الْعُزَّى بْنِ قَطَنٍ فَمَنْ أَدْرَكَهُ مِنْكُمْ فَلْيَقْرَأْ عَلَيْهِ فَوَاتِحَ سُورَةِ الْكَهْفِ»

نو په تاسو کې چې کوم سړی هغه بیا مومي، هغه لپاره پکار دي چې هغه د هغه مخې ته سورة کهف اولنې

وَفِي رِوَايَةٍ «فَلْيَقْرَأْ عَلَيْهِ بِفَوَاتِحِ سُورَةِ الْكَهْفِ فَإِنَّهَا جوارُكم من فتنته إِنَّه خَارِج خلة

آیتونه ولولي. ځکه چې دغه آیتونه به تاسو د دجال د نه په امن کې وساتي. دجال به د لارې نه راښکاره

بَيْنَ الشَّامِ وَالْعِرَاقِ فَعَاثَ يَمِينًا وَعَاثَ شِمَالًا

کیږي، چې هغه د شام او عراق ترمینځ پرته ده. او ښي او چپ (کیڼ) اړخ ته به فساد خپروي. (پس) ای د الله

يَا عِبَادَ اللهِ فَاثْبُتُوا» . قُلْنَا: يَا رَسُولَ اللهِ

بندیګانو! تاسو ثابت قدم وسیږئ. راوي وایي چې مونږ د دې (اوریدلو) سره وویل چې یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! هغه

وَمَا لَبْثُهُ فِي الْأَرْضِ؟ قَالَ: «أَرْبَعُونَ يَوْمًا يَوْمٌ

به څو مره ورځې په زمکه باندې وسیږي؟ نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: څلویښت ورځې. یوه ورځ به یې دیو

كَسَنَةٍ وَيَوْمٌ كَشَهْرٍ وَيَوْمٌ كَجُمُعَةٍ

یو کال برابر وي، دویمه ورځ به یې د میاشتې برابر وي، او یوه ورځ به یې د اونۍ (هفتې) برابر وي، او پاتې

وَسَائِرُ أَيَّامِهِ كَأَيَّامِكُمْ» . قُلْنَا: يَا رَسُولَ اللهِ فَذَلِكَ الْيَوْمُ

ورځې به یې ستاسو د ورځو په شان وي. مونږ وویل چې یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! په دې ورځو کې چې کومه یوه ورځ

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| الَّذِي | كَسَنَةٍ | أَتَكْفِينَا | فِيهِ | صَلَاةُ | يَوْمٍ. | قَالَ: | «لَا |

دیو کال برابروي، آیا زمونږ به په دغه ورځ دیوې ورځې لمونځ وي؟ نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: نا! بلکې د لمونځ

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اقْدُرُوا | لَهُ | قَدْرَهُ» | . | قُلْنَا: | يَا رسولَ الله | وَمَا | إِسْرَاعُهُ |

کولو لپاره به د یوې ورځې حساب کول وي. مونږ وویل: یارسول الله! هغه به په زمکه باندې څومره تیز

| | | | |
|---|---|---|---|
| فِي | الْأَرْضِ؟ | قَالَ: | "كَالْغَيْثِ |

ګرځېږي؟ نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: هغه به د هغه وریځې د باران په شان په تیز مزل باندې ګرځي چې هغې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اسْتَدْبَرَتْهُ | الرِّيحُ | فَيَأْتِي | عَلَى الْقَوْمِ | فَيَدْعُوهُمْ |

پسې باد وي! هغه به د یو یو قوم خواته رسېږي او هغوې ته به خپل دعوت ورکوي. خلک به په هغه باندې

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَيُؤْمِنُونَ | بِهِ | فَيَأْمُرُ | السَّمَاءَ |

ایمان راوړي، یعنې د هغه په دهوکه کې په راتلو سره به د هغه اتباع کوي. بیا به هغه د وریځې نه باران

| | | |
|---|---|---|
| فَتُمْطِرُ | وَالْأَرْضَ | فَتُنْبِتُ |

راوریدلو حکم ورکړي نو باران به راوریږي، او زمکې ته به د شینکې رازغورنولو حکم وکړي نو هغه زمکه

| | | |
|---|---|---|
| فَتَرُوحُ | عَلَيْهِمْ | سَارِحَتُهُمْ |

به شینکی رازرغون کړي. نو بیا کله چې مابنام د دغه قوم څاروي راشي چې هغه د څریدلو لپاره سحر ځنګل

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَطْوَلَ | مَا | كَانَتْ | ذُرًى | وَأَسْبَغَهُ ضُرُوعًا | وَأَمَدَّهُ | خَوَاصِرَ | ثُمَّ | يَأْتِي | الْقَوْمَ |

ته تللي ؤ د هغوې کوفونه به غټ شي او د هغې تیونه به ډک وي. بیا د دېنه وروسته به دجال یو بل قوم ته لاړ

| | | |
|---|---|---|
| فَيَدْعُوهُمْ | فَيَرُدُّونَ | عَلَيْهِ |

شي او هغوې ته به خپل دعوت ورکړي لیکن دهغه قوم خلک به دغه دعوت رد کړي. او دا به د هغوې د

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قَوْله | فَيَنْصَرِف | عَنْهُم | فيصبحون | مملحين |

خوا نه لاړ شي. بیا د دغه قوم خلک به قحط او وچکالې او د سخت حالت ښکار شي. تر دې چې هغوې به د

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَيْسَ | بِأَيْدِيهِمْ | شَيْءٌ | مِنْ | أَمْوَالِهِمْ | وَيَمُرُّ |

مال و اسباب نه بیخې خالي لاس نه شي. د دې نه وروسته به دجال په غیر آباده ځاې باندې تیر شي، او هغې

| بِالْخَرِبَةِ | فَيَقُولُ | لَهَا: |
|---|---|---|

ته به حکم وکړي چې خپلې خزانې راوباسه. نو هغه غیر آباده ځاي به د دجال د حکم مطابق خپلې خزانې

| أَخْرِجِي | كُنُوزَكِ | فَتَتْبَعُهُ | كُنُوزُهَا | كَيَعَاسِيبِ | النَّحْلِ |
|---|---|---|---|---|---|

راوباسي، او دغه خزانې به داسې هغه پسې شاته راونې وي لکه څنګه چې د شهدو د مچو سرداروي، بیا به

| ثُمَّ | يَدْعُو | رَجُلًا | مُمْتَلِئًا | شَبَابًا |
|---|---|---|---|---|

دجال یو سړی چې هغه په پورا ځوانۍ کې وي، خپل اړخ ته به یې راوبلي، او په هغه باندې به د تورې داسې

| فَيَضْرِبُهُ | بِالسَّيْفِ | فَيَقْطَعُهُ | جَزْلَتَيْنِ | رَمْيَةَ | الْغَرَضِ |
|---|---|---|---|---|---|

وار وکړي چې هغه به دوه ټوټې شي. لکه څنګه چې د غشي نښنه ویشتلې کیږي. د دې نه وروسته به دجال دغه

| ثُمَّ | يَدْعُوهُ | فَيُقْبِلُ | وَيَتَهَلَّلُ |
|---|---|---|---|

زلمی راغواړي نو هغه به ژوندي کیدلو باندې د هغه ته متوجې شي. او دغه وخت به د هغه مخ ډیر تازه او

| وَجْهُهُ | يَضْحَكُ | فَبَيْنَمَا | هُوَ | كَذَلِكَ | إِذْ |
|---|---|---|---|---|---|

روښانه وي. لنډا دا چې دجال به دغه شان د دهوکې او فریبي کارونو کې مشغول وي. چې ناڅاپه به الله تعالی

| بَعَثَ | الله | الْمَسِيحَ | بْنَ | مَرْيَمَ | فَيَنْزِلُ | عِنْدَ | المنارة | الْبَيْضَاء | شرقي | دمشق |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

عیسی ابن مریم عَلَيۡهِالسَّلَامُ نازل کړي. چې هغه به د دمشق مشرقي اړخ ته په سپینه مینار را کوزیږي.

| بَين | مهروذتين | وَاضِعًا | كَفَّيْهِ |
|---|---|---|---|

دغه وخت به عیسی عَلَيۡهِالسَّلَامُ د زیړ رنګ جامې راغوستې وي. او خپل دواړه ورغوې به یې د فرشتو په

| عَلَى | أَجْنِحَةِ | مَلَكَيْنِ | إِذَا | طَأْطَأَ | رَأْسه | قطر |
|---|---|---|---|---|---|---|

وزرو باندې ایښي وي. هغه چې څه وخت خپل سر ټیټ کړي نو خوله به ترینه وڅڅیږي

| وَإِذَا | رَفعه | تحدر منه | مثل | جُمان | كَاللُّؤْلُؤِ |
|---|---|---|---|---|---|

او کله چې سر وچت کړي نو دهغه د سر نه به د سپینو زرو په شان څاڅکي ګوزاریږي. چې هغه به د ملغلرو

| فَلَا | يحل | لكافرٍ | يَجِدَ | مِنْ | رِيحِ | نَفَسِهِ | إِلَّا | مَاتَ | وَنَفَسُهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

وي. دا به ناممکنه وي چې کوم کافر ته د حضرت عیسی عَلَيۡهِالسَّلَامُ ساه ورسیږي او هغه مړ نشي. او دهغه

| يَنْتَهِي | حَيْثُ | يَنْتَهِي | طَرْفُهُ | فَيَطْلُبُهُ | حَتّٰى |
|---|---|---|---|---|---|

د ساه باد به د هغه د نظر تر حده پورې ځي. بیا به حضرت عیسی عَلَيۡهِ‌السَّلَام دجال لټوي، تردې چې هغه به

| يُدْرِكَهُ | بِبَابِ | لُدٍّ | فيقتله | ثُمَّ | يَأْتِي | عِيسَى |
|---|---|---|---|---|---|---|

په باب لُد کې بیاموميٰ او قتل به يې کړي. د دېنه وروسته به حضرت عیسی عَلَيۡهِ‌السَّلَام خواته هغه خلک

| إِلَى | قَوْمٌ | قَدْ | عَصَمَهُمْ | الله | مِنْهُ | فَيَمْسَحُ | عَنْ | وُجُوهِهِمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

راځي، څوک چې الله تعالی د دجال د مکر او فریب او فتنې نه ساتلي وي. حضرت عیسی عَلَيۡهِ‌السَّلَام به د

| وَيُحَدِّثُهُمْ | بِدَرَجَاتِهِمْ | فِي | الْجَنَّةِ |
|---|---|---|---|

خلکو د مخونو نه ګرد و غبار پاک کړي او هغوې ته به د هغوې د درجاتو او مرتبو زیری ورکړي. چې هغه به

| فَبَيْنَمَا | هُوَ | كَذٰلِكَ | إِذْ |
|---|---|---|---|

دوې په جنت کې بیاموميٰ. حضرت عیسی عَلَيۡهِ‌السَّلَام به په دغه حال کې وي، چې ناڅاپه به د الله تعالی د اړخ نه هغه

| أَوْحَى | الله | إِلَى | عِيسَى: | أَنِّي | قَدْ | أَخْرَجْتُ | عِبَادًا | لِي | لَا | يَدَانِ | لِأَحَدٍ | بِقِتَالِهِمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

وحې راشي چې ما خپل ډیر داسې بندیګان پیدا کړي دي چې د هغوې سره د جنګ کولو طاقت هیڅوک نلري

| فَحَرِّزْ | عِبَادِيَ | إِلَى | الطُّورِ |
|---|---|---|---|

لهذا ته زما بندیګان راغونډ کړه او کوه طور اړخ ته لاړ شه. او د هغوې ساتنه وکړه. بیا به الله تعالی

| وَ | يَبْعَثُ | الله | يَأْجُوجَ | وَ | مَأْجُوجَ | ( وَهُمْ | مِنْ | كُلِّ | حَدَبٍ | يَنْسِلُونَ) |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

یاجوج او ماجوج راښکاره کړي. چې هغوې به د هرې وچتې زمکې نه په تیوپ باندې اورې، او منډې به وهي

| فَيَمُرُّ | أَوَائِلُهُمْ | عَلَى | بُحَيْرَةِ | طَبَرِيَّةَ | فَيَشْرَبُونَ | مَا | فِيهَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

کله چې د هغوې د ټولو نه اوله ډله د طبریه په بحر باندې تیریږي نو د هغې ټولې اوبه به وڅکي، بیا د دېنه

| ويمر | آخرهم | وَيَقُولُ: | لَقَدْ | كَانَ | بِهٰذِهِ |
|---|---|---|---|---|---|

وروستنۍ ډله چې په هغه ځای باندې تیریږي نو طبریه بحر په خالي کتلو باندې به ووايي چې کله خو به دې

| مَرَّةً | مَاءٌ | ثُمَّ | يَسِيرُونَ | حَتّٰى | يَنْتَهُوا | إِلَى | جَبَلِ | الْخَمَرِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

کې اوبه وي. د دېنه وروسته به یاجوج ماجوج مخکې لاړ شي، تردې چې جبل خمر ته به ورسیږي، چې هغه د

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَهُوَ | جَبَلُ | بَيْتِ | الْمَقْدِسِ | فَيَقُولُونَ | لَقَدْ | قَتَلْنَا | مَنْ | فِي | الْأَرْضِ | هَلُمَّ |

بیت المقدس یو غر دی، نو وایي به چې مونږ د زمکې وسیدونکې ختم کړل، وس راځې چې د آسمان

فَلْنَقْتُلْ مَنْ فِي السَّمَاءِ فَيَرْمُونَ بِنُشَّابِهِمْ إِلَى السَّمَاءِ فَيَرُدُّ اللهُ عَلَيْهِمْ نُشَّابَهُمْ مَخْضُوبَةً دَمًا

وسیدونکې ختم کړو ، نو هغوي به د آسمان اړخ ته خپلې غشي وولي او الله تعالی به د هغوي غشي په وینو

وَيُحْصَرُ نَبِيُّ اللهِ وَأَصْحَابُهُ

باندې ککړ راستانه کړي، په دې زمانه کې به د خدای نبي او د هغه ملګرې یعنې حضرت عیسی عَلَیْہِ السَّلَامُ

حَتَّى يَكُونَ رَأْسُ الثَّوْرِ لِأَحَدِهِمْ

او د هغه وخت مؤمنان کوه طور کې به ایسار وساتلی شي، او د هغې خلکو لپاره به د غوي سر ستاسو د نن

خَيْرًا مِنْ مِائَةِ دِينَارٍ لِأَحَدِكُمُ الْيَوْمَ فَيَرْغَبُ نَبِيُّ اللهِ عِيسَى

د سلو دینارو نه غوره وي. د الله تعالی نبي حضرت عیسی عَلَیْہِ السَّلَامُ او د هغه ملګرې به د یاجوج او ماجوج

وَأَصْحَابُهُ فَيُرْسِلُ اللهُ عَلَيْهِمُ النَّغَفَ فِي رِقَابِهِمْ

د هلاکت لپاره دعاء او فریاد وکړي. نو الله تعالی به د هغوي په څټونو کې د نغف د چینجو لګیدلو ناروغې

فَيُصْبِحُونَ فَرْسَى كَمَوْتِ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ

پیدا کړي. چې د هغې په صورت کې به د خدای قهر په دوي باندې داسې نازل شي چې ټول به په یو وخت

ثُمَّ يَهْبِطُ نَبِيُّ اللهِ عِيسَى وَأَصْحَابُهُ إِلَى الْأَرْضِ

کې مړه شي. د الله تعالی نبي حضرت عیسی عَلَیْہِ السَّلَامُ او د هغه ملګرې به د غر نه زمکې ته راکوز شي. نو

فَلَا يَجِدُونَ فِي الْأَرْضِ مَوْضِعَ شِبْرٍ إِلَّا مَلَأَهُ زَهَمُهُمْ

هغوي ته به په زمکه باندې یو ولیشت زمکه هم داسې په لاس ورنشي چې هغه د یاجوج او ماجوج د وازګې

وَنَتْنُهُمْ فَيَرْغَبُ نَبِيُّ اللهِ عِيسَى وَأَصْحَابُهُ إِلَى اللهِ

او بدبوې نه خالي وي. حضرت عیسی عَلَیْہِ السَّلَامُ او هغه ملګرې به د الله تعالی نه دعاء وکړي نو هله به

فَيُرْسِلُ اللهُ طَيْرًا كَأَعْنَاقِ الْبُخْتِ

الله تعالی د بختي اوښانو د څټونو په شان اوږده اوږده څټونو والا مارغان راولیږي چې هغوي به د یاجوج ماجوج

| |
|---|
| فَتَحْمِلُهُمْ فَتَطْرَحُهُمْ حَيْثُ شَاءَ الله ». وَفِي رِوَايَةٍ« |
| به مړي به وچت کړي او چيرته چې د الله خوښه وي نو هلته به يې ګوزار کړي. او مسلمانان به د ياجوج |
| تَطْرَحُهُمْ بِالنَّهْبَلِ وَيَسْتَوْقِدُ الْمُسْلِمُونَ مِنْ قِسِيِّهِمْ وَنُشَّابِهِمْ وَجِعَابِهِمْ سَبْعَ سِنِينَ ثُمَّ |
| او ماجوج ليندۍ، غشي او د غشو کڅوړي به تر اووه کاله پورې سيزي، بيا به الله تعالى يو تيز |
| يُرْسِلُ الله مَطَرًا لَا يَكُنُّ مِنْهُ بَيْتُ مَدَرٍ وَلَا وَبَرٍ |
| باران راولي، چې د هغې نه به يو هم کور که هغه د خټو وي او که د وړي وي، نه بچ کيږي. |
| فَيَغْسِلُ الْأَرْضَ حَتَّى يَتْرُكَهَا كَالزَّلَفَةِ ثُمَّ يُقَالُ لِلْأَرْضِ: أَنْبِتِي ثَمَرَتَكِ |
| دغه باران به ځمکه په اينزلو سره د شيشې په شان پاکه کړي. بيا به ځمکې ته حکم وکړی شي چې خپله ميوه يعنې خپل پيداوار |
| وَرُدِّي بَرَكَتَكِ فَيَوْمَئِذٍ تَأْكُلُ الْعِصَابَةُ |
| راوباسه او خپل برکتونه بيرته راوړه (د ځمکې پيداوار به دومره برکتي وي چې) د لسو نه تر څلويښتو کسانو |
| مِنَ الرُّمَّانَةِ وَيَسْتَظِلُّونَ بِقِحْفِهَا وَيُبَارَكُ فِي الرِّسْلِ |
| پورې ډله به په يو انار باندې مړيږي، او د دې انار په پوستکې باندې به خپل سيوری کوي. دغه شان په پيو |
| حَتَّى إِنَّ اللِّقْحَةَ مِنَ الْإِبِلِ لَتَكْفِي الْفِئَامَ مِنَ النَّاسِ |
| (شيدو) کې به برکت وي تردې چې پيی ورکونکې يوه اوښه به د يو غټ جماعت لپاره کافي وي. او پيی |
| وَاللِّقْحَةَ مِنَ الْبَقَرِ لَتَكْفِي الْقَبِيلَةَ مِنَ النَّاسِ وَاللِّقْحَةَ مِنَ الْغَنَمِ لَتَكْفِي الْفَخْذَ مِنَ النَّاسِ |
| ورکونکې يوه غوا به د يوې قبيلې لپاره کافي وي. او پيی ورکونکې يوه بيزه به د سړو يو ورکوټي جماعت لپاره |
| فَبَيْنَا هُمْ كَذَلِكَ إِذْ بَعَثَ الله رِيحًا طَيِّبَةً |
| کافي وي. بهرحال دغه شان خوشحالي او امن او د راحت ژوندې به تيروي چې الله تعالى به يوه خوشبوداره |
| فَتَأْخُذُهُمْ تَحْتَ آبَاطِهِمْ |
| باد راوليږي چې هغه به د دوی د تخرګونو لاندينۍ برخه ونيسي او بيا به هغه باد د هر مؤمن او هر مسلمان |
| فَتَقْبِضُ رُوحَ كُلِّ مؤمنٍ وكلِّ مسلمٍ وَيَبْقَى شِرَارُ النَّاسِ يَتَهَارَجُونَ فِيهَا |
| روح قبض کړي. او فقط بدکار او شريان خلک به په دنيا کې پاتې شي، چې هغوی به خپل مينځ کې وحشې |

| |
|---|
| تَهَارُجَ الْحُمُرِ فَعَلَيْهِمْ تَقُومُ السَّاعَةُ " رَوَاهُ مُسْلِمٌ |
| خرو په شان ګډوډ شي. او په دغه خلکو به قيامت راځي. دا ټول روايت مسلم نقل کړيدی، د بل روايت د |
| إِلَّا الرِّوَايَةَ الثَّانِيَةَ وَهِيَ قَوْلُهُ: " تَطْرَحُهُمْ بِالنَّهْبَلِ إِلَى قَوْلِهِ: سبع سِنِين ". رَوَاهَا التِّرْمِذِيّ[1] |
| د دې الفاظو نه غيره **تطرحهم بالنهبل** نه تر **سبع سنين** پورې چې دا ترمذي نقل کړيدی. |

**توضيح**: **وانا فيكم**: يعنې که زما په شتون کې دجال خروج وکړي نو زه به دهغه سره مقابله کوم.

**حجيج نفسه**: يعنې که زه نه يم نو هر سړی به د خپل ايمان د اړخ نه خپله دفاع خپله کوي. مودوی صيب وايې چې نبی کريم ﷺ ته خپله د دجال په اړه باندې شک ؤ او د کانې دجال واقعات د دروغو قيصې(افساني) دي. د دې جواب دا دی چې مودودی صيب دا غلط ويلي دي . نبی کريم ﷺ د دجال بيلا بيل حالتونه بيان کړيدي . دا شک نه ؤ. بلکې د بيلا بيلو حالتو دا بيلا بيل تعبيرات دي.(مرقات ۹/۳۷۷)

په صحيح احاديثو او په اجماع د امت سره خروج د دوجال ثابت دی.نبی کريم ﷺ په تاکيد سره امت ته لارښود نه کړيده، لهذا د دجال نه به انکارځوک دجال کوي. **قطط**: يعنې د دجال ايختان به ګوړګوتې وي. **عينه طافيه**: يعنې يوه سترګه به يې راپړسيدلي وي.**خلة**: لارې ته **خلة**وايې. دجال د شام و عراق ترمينځ په کومه جزيره کې بند دی. چې هغې ته جزيره برمودا ويلی کيدی شي، دهغه ځاې نه په راوتلو سره به په دغه لاره راښکاره کيږي.**فعاث**: يعنې فساد خپرولو باندې به ښي او کيڼ اړخ ته ګرځي.**سارحتهم**: يعنې څاروي چې څريدونکې دي.**ذرى**:دا جمع ده د دې مفرد ذروۃدی.د کوف وچتې برخې ته وايې.**اسبغه**: د کامل او مکمل په معنی دی.**ضروعاً**:دا د ضرع جمع ده. تيانو ته وايې. د پيو ډيروالې ته اشاره ده . **خواصر**:د **خاصرة** جمع ده. تشي ته وايې. يعنې د ډير خوراک د وجې نه به يې غټې غټې تشي وي.**ممحلين**: اى داخلين فى الممحل وهو القحط يعنې دا قوم په په وچکالۍ کې اخته شي ګويا دجال به په دوې باندې اقتصادی پابندې ولګوي. **يعاسيب**: ديعسوب جمع ده. شهدو مچو باچا ته يعسوب وايې. **جزلتين**: د جزلة تثنيه ده. دوه ټوټې مراد دي. **رمية الغرض**: يعنې دا سړی به دوه ټوټې شي، او د ده د بدن دوه برخې به دومره ليرې

---

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۵۰ رقم الحديث (۲۹۳۷-۱۱۰) وابوداود في السنن ۴/۴۹۶ رقم الحديث ۴۳۲۱.

لاړي شي لكه څنګه چې د غشي هدف ليرې وي. په دې كې د دواړو ټوټو ليرې والى ښودلى شويدى. كيدى شي دا سړى حضرت خضر عَلَيْهِ السَّلَامُ وي. **مهزودتين** : دا لفظ دال او ذال په دواړو ويلى شويدى. دال سره ډير مشهور دى. يعنې حضرت عيسى به ورس او زعفرانو د رنګ په شان رنګ شوي زيرې او زعفرانې جامې وي. دغه به اغوستلي وي. **طأطأ**: يعنې كله چې سر ښكته كړي نو د مخ نه به يې د څاڅكو په صورت كې خوله څڅيږي او كله چې سر وچت كړي نو د سپينو زرو د دانو په شان به يې خوله بهيږي. چې هغه به د ملغلرو په شان وي. **بباب لد**: د حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ نظر چې تر كوم ځايه پورې كار كوي نو تر هغه ځايه پورې به يې ساه رسيږي. او تر كوم ځايه پورې چې يې ساه ځي ، كافر به خپله د دېنه مړ كيږي. خو الله تعالى به دجال ذليله كوي نو د حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ د لاسه به د برچهي وار خوړولو باندې د هغې نه مردار شي. دجال به د تختيدلو پوره كوښښ كوي، خو د باب لد مقام باندې به د حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ په لاس راشي.نن سبا چې چيرته اسرائيل پراته دي، هغه د فلسطين علاقه ده، په اسرائيل كې تل ابيب يوځاې دى. چې د اسرائيلي حكومت صدر مقام دى. تل ابيب سره **باب لد** يو ځاې دى. چې هلته اسرائيلو يو مضبوط هوايې ميدان (ائير پورټ) جوړ كړيدى. د عوامو د استعمال لپاره دا هوايې ميدان ندى. بلكې فقط دجال يې محفوظ ځاې ته د رسولو لپاره دا جوړ كړيدى. په دې ائير پورټ باندې يو جهاز ولاړ دى، چې هغه فقط د دجال د سپرلۍ لپاره كيخودلى شويدى په دې حديث كې وړاندوينه ده چې باب لد باندې به د جال ووژلى شي.د دې وجې نه اسرائيلي حكومت په باب لد كې د جال لپاره د ساتنې سامان جوړ كړيدى. دې لپاره چې خپل خداى د دې مشكل نه وباسي خو داسې به نكيږي، بلكې دجال به په باب لد كې ووژلى شي. او بيا به په يهودو باندې قتل عام زمانه راشي.

**لايدان**: يعنې د هغوې مقابله هيڅوك نشي كولى، ځكه چې ډير به هم وي، او شرير به وي.

**بُحَيْرَة**: په شان كې د يو نهر بلكې د يو سيند نوم دى.

**طبرية** :په شام كې د يو ځاې نوم دى.چيرته چې دا اوبه جمع دي. ترلس ميله مزل پورې د دې اوبو د سمندر اوږد والى دى.ياجوج ماجوج به د دې څكلو سره دا وچ كړي. بيا به وايې، مونږ اوريدلي دي چې دلته به كله اوبه هم وي. **نشاب**: غشي ته نشاب وايې.

**مخضوبة دمًا**:يعنې په اينو باندې ككړ او اينو باندې رنګ شوى بيرته راشي.

**رأس الثور**:يعنې د غوې سر به د سلو دينارو نه غوره وي.دا به د معيشت د تنګوالي د وجې نه به وي.

حَتّٰى يُفَرِّقَ بَيْنَ رِجْلَيْهِ» . قَالَ: " ثُمَّ يَمْشِي الدَّجَّالُ بَيْنَ الْقِطْعَتَيْنِ

شي، تردې چې د هغه د دواړو خپو ترمینځ به دوه ټوټې کړی شي. نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: دجال به د دې دواړو

ثُمَّ يَقُولُ لَهُ: أَتُؤْمِنُ بِي؟ فَيَقُولُ:

برخو ترمینځ گرځي او وايي به چې ودریږه. هغه مسلمان سړی به بیخي نیغ ودریږي. بیا به دجال هغه ته

مَا ازْدَدْتُ إِلَّا بَصِيرَةً ".

ووايي چې ته وس په ما باندې ایمان راوړې؟ هغه سړی به جواب ورکړي چې وس خو زما یقین پوخ شو، او

قَالَ: " ثُمَّ يَقُولُ:

زما بصیرت دیر شو. چې ته دروغژن یې. نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: د دینه وروسته به دغه مسلمان سړی ووايي

يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّهُ لَا يَفْعَلُ بَعْدِي بِأَحَدٍ مِنَ النَّاسِ ".

چې خلکو! خبر شئ! دې دجال چې څه زما سره وکړل، وس به یې د هیچا سره هم نشي کولی. نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

قَالَ: «فَيَأْخُذُهُ الدَّجَّالُ لِيَذْبَحَهُ فَيُجْعَلُ مَا بَيْنَ رَقَبَتِهِ

وفرمایل: بیا به دجال دا ونیسي او حلالول (ذبح کول) به یې وغواړي خو د مرۍ، ترهډوکي پورې د هغه مرۍ

إِلَى تَرْقُوَتِهِ نُحَاسًا

د تانبې جوړه شي، (شرح السنة کې د معمر دا قول دی چې ما ته رارسیدلی دی، په دې کې داسې دي چې

فَلَا يَسْتَطِيعُ إِلَيْهِ سَبِيلًا»

چې د دې سړي په څټ باندې به د تانبې تخته کیخودلی شي) چې د هغې د وجې نه به دا هغه نشي وژلی.

قَالَ: «فَيَأْخُذُهُ بِيَدَيْهِ وَرِجْلَيْهِ فَيَقْذِفُ بِهِ فَيَحْسِبُ النَّاسُ أَنَّمَا قَذَفَهُ إِلَى النَّارِ

د دینه وروسته به د دې سړي دواړه لاسونه او دواړه خپې نیولو باندې دا وچت کړی شي او گوزار به کړی شي.

وَإِنَّمَا أُلْقِيَ فِي الْجَنَّةِ»

د خلکو به دا خیال وي چې دا اور ته گوزار کړی شو. خو په حقیقت کې به هغه جنت ته گوزار کړی شي

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «هٰذَا أَعْظَمُ النَّاسِ

(دا بیان کولو نه وروسته) نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: دا سړی به د الله رب العلمین په نزد باندې د شهادت په

| شَهَادَةً عِنْدَ رَبِّ الْعَالَمِينَ» . رَوَاهُ مُسلم[1] |
|---|
| اعتبار باندې به د الله رب العلمین په نزد د ټولو نه غټې درجې والا وي. |

**توضیح: المسالح**: دا جمع ده، د دې مفرد مسلحة دی. محافظ او څوکیدار ته وایي. **تعمد**: یعنې ته چیرته ځې؟ پاتې شوه دا خبره چې دا سړی به څوک وي. نو په دې کې اختلاف دی. عام شارحین وایې چې دا خضر عَلَیْهِ السَّلَامُ وي. د دېنه معلومه شوه چې هغه تر وسه پورې ژوندی دی. د عام امت دا خیال دی. **فیشبح**: ستونې ستاق اچلو ته وایې. پرمخې اچلو ته هم وایې.

**شجوه** : یعني دهغه سر بنه ټپي (زخمې) کړی دا لفظ شبحوه هم نقل شویدی. چې ترجمه یې دا ده چې دا سړی پرمخې یا ستونې ستاق ګوزار کړی.

**فیوشع ظهره**: یعنې په وهلو وهلو سره ترینه چیلې کباب به جوړ کړی شي.

**فیوشر بمنشار**: یعنې د آرې په ذریعه سره د سر نه واخله ترخپو پورې به دا سړی دوه ټوټې کړي.

**ترقوته**: د مرۍ هډوکي ته ترقوت وایي. **نحاسًا**: نحاس تانبه (پیتلو) ته وایي. (مرقات ۹/۳۹۷)

**لایفعل**: یعنې دجال به د استدراج په توګه باندې چې ورته کوم مهلت ورکړی شوی وي، اوس هغه ختم شو . وس هغه هیڅ چل سره څوک وژلی یا ژوندې کولی نشي.

| ﴿۱۴﴾ وَعَن أُمِّ شريكٍ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَيَفِرَّنَّ النَّاسُ مِنَ الدَّجَّالِ |
|---|
| او حضرت ام شریک رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: خلک به د دجال نه په تیخته |
| حَتَّى يَلْحَقُوا بِالْجِبَالِ» قَالَتْ أُمُّ شَرِيكٍ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ |
| باندې په غرونو کې پټ شي. ام شریک رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایي چې ما ویل چې یارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! په دغه |
| فَأَيْنَ الْعَرَبُ يَوْمَئِذٍ؟ قَالَ: |
| ورځو کې به عرب چیرته وي؟ نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: عرب ډیر لږ وي. او د دجال سره به د جهاد |
| «هُمْ قَلِيلٌ» . رَوَاهُ مُسلم[2] |
| او مقابلې کولو طاقت او قدرت نلري. |

---

([1])اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۵۶ رقم الحديث (۲۹۳۸-۱۱۳)

([2])اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۶۶ رقم الحديث ۲۹۴۵-۱۲۵) والترمذي في السنن ۵/۶۸۱ رقم الحديث ۶/۴۶۲.

ثُمَّ تَصرِفُ . الْمَلَائِكَةُ وَجهَهُ قِبَلَ الشامِ

شي. بيا به فرښتي د هغه مخ د شام علاقې اړخ ته واړوي، دې لپاره چې د کوم ځاې نه راغلی دی، هلته لاړ شي

وهنالك يهلِكُ» . مُتَّفق عَلَيْهِ[1]

او دجال به هلته مردار شي.

﴿۱۸﴾وَعَن أَبِي بَكرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «لَا يَدخُلُ الْمَدِينَةَ

او حضرت ابوبكره رضي الله عنه نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه روايت كوي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د مديني خلک به

رُعبُ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ لَهَا يَومَئِذٍ

د دجال د رعب او ويرې نه محفوظ وي. په هغه ورځ چې كله دجال مديني ته د راننوتلو په اراده باندې راشي

سَبْعَةُ أَبْوَابٍ عَلَى كُلِّ بَابٍ مَلَكَانِ» رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[2]

د مديني به اووه دروازې وي، او په هره دروازه باندې به دوه فرښتي وي.

## حضرت تميم داري رضي الله عنه د ستر گو ليدلي حال د دجال بيانوي

﴿۱۹﴾وَعَن فَاطِمَة بنت قيس قَالَتْ: سَمِعْتُ مُنَادِي رَسُولِ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت فاطمه بنت قيس رضي الله عنها فرمايي چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم د مؤذن دا اواز الصلوٰة جامعة لمونځ

فَلَمَّا قَضَى صَلَاتَهُ

راجمع كونكى دى، او ريدلو باندې جومات ته ورسيدلم، او بيا ما د نبي كريم صلى الله عليه وسلم سره لمونځ وكړو،

جَلَسَ عَلَى الْمِنْبَرِ وَهُوَ يَضْحَكُ

نبي عليه السلام د لمونځ نه فارغيدلو باندې په منبر كيناستلو، دغه وخت د نبي عليه السلام په شونډو باندې خندا وه.

فَقَالَ: «لِيَلْزَمْ كُلُّ إِنْسَانٍ مُصَلَّاهُ» . ثُمَّ قَالَ: «هَلْ تَدرُونَ

نبي عليه السلام وفرمايل: كوم سړې چې چيرته لمونځ كړيدى، هلته دې كيني. بيا يې وفرمايل: آيا تاسو پوهيږئ چې ما تاسو

لِمَ جَمَعْتُكُمْ ؟ » . قَالُوا : الله وَ رَسُولُهُ أَعْلَمُ . قَالَ :

ولې راغونډ كړي ياست. صحابؤ عرض وكړو: الله او د هغه رسول به پوهيږي! نبي نبي عليه السلام وفرمايل: په

---

[1] أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۱۰۰۵ رقم الحديث (۱۳۸۰-۴۸۶) والترمذي في السنن ۴/۴۴۶ رقم الحديث ۲۲۴۳.

[2] أخرجه البخاري في صحيحه ۴/۹۵ رقم الحديث ۱۸۷۹.

" إِنِّي وَاللهِ مَا جَمَعْتُكُمْ لِرَغْبَةٍ وَلَا لِرَهْبَةٍ

خدای قسم ما خو نه تاسو نه كوم مينه كونكي شي لپاره راغونډ كړي ياست او نه د څه ويرونكي شي

وَلَكِنْ جَمَعْتُكُمْ لِأَنَّ تَمِيمًا الدَّارِيَّ كَانَ رَجُلًا نَصْرَانِيًّا فَجَاءَ فَبَايَعَ وَأَسْلَمَ

لپاره بلكي ما تاسو د دې لپاره راغونډ كړي ياست چې تميم داري چې دا يو نصراني ؤ ، او مسلمان شو ، او

وَحَدَّثَنِي حَدِيثًا وَافَقَ الَّذِي

هغه ما ته داسې واقعه واوروله چې هغه د مسيح دجال په اړه د هغه خبرو سره مطابق ده چې زه يې تاسو ته

كُنْتُ أُحَدِّثُكُمْ بِهِ

وايم. نو ما مناسب وګڼل چې د تميم داري واقعه تاسو ته هم واوروم. دې لپاره چې د دجال په اړه باندې ستاسو

عَنِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ حَدَّثَنِي

يقين نور هم پوخ شي. او زما ويلې شوي خبرې د مشاهدې سره برابرې شي. نو واورئ! ما ته تميم داري بيان

أَنَّهُ رَكِبَ فِي سَفِينَةٍ بَحْرِيَّةٍ مَعَ ثَلَاثِينَ رَجُلًا مِنْ لَخْمٍ وَجُذَامَ

كړل چې هغه يوه ورځ د لخم او جذام قبيلې د ديرشو كسانو سره په يو بحري كشتۍ كې سپور شو. نو د اوبو

فَلَعِبَ بِهِمُ الْمَوْجُ شَهْرًا فِي الْبَحْرِ فَأَرْفَؤُوا إِلَى

څپو يوې مياشت پورې د كشتۍ د سپرلو سره لوبې كولې. تردې چې دې څپو دا كشتۍ د لمر ډوبيدلو په وخت

جَزِيرَةٍ حِينَ تَغْرُبُ الشَّمْسُ فَجَلَسُوا فِي أَقرب سفينة

كې يو ټاپو (جزيره) ته نژدې ورسوله او ټول سپاره په هغه وړو كشتو كې كيناستل چې د دې غټې كشتۍ سره

فَدَخَلُوا الْجَزِيرَةَ فَلَقِيَتْهُمْ دَابَّةٌ أَهْلَبُ كَثِيرُ الشَّعَرِ

وي، د غه ټاپو ته ورسيدل. هلته مونږ داسې څاروی وليدلو چې د ډيرو ايختانو والا ؤ. او د ډيرو ايختانو د وجې

لَا يَدْرُونَ مَا قُبُلُهُ مِنْ دُبُرِهِ مِنْ كَثْرَةِ الشَّعَرِ

نه خلكو ته به د هغې مخكنی او وروسته برخه نه معلوميدله. يعنې د غه څاروي په بدن باندې دومره ايختان

قَالُوا: وَيْلَكِ مَا أَنْتِ؟

ؤ چې ټول بدن يې پكې پټ شوی ؤ. خلكو وويل: چې په تا دې افسوس وي! ته څوک يې او څه شی يې؟

قَالَ لَهُم: قد كانَ ذلكَ؟ قُلْنَا: نعم. قَالَ: أَمَا إِنَّ ذَلِكَ خَيْرٌ لَهُمْ أَنْ يُطِيعُوهُ وَإِنِّي

دجال ووېل: چې تاسو ته دې معلومه وي چې دغه خلکو لپاره د ده اطاعت کول غوره دي، او وس زه تاسو ته

مُخْبِرُكُمْ عَنِّي: إِنِّي أَنَا الْمَسِيحُ الدَّجَّالُ وَإِنِّي يُوشِكُ

د خپل ځان په اړه باندې وایم: زه په حقیقت کې مسیح یعنې دجال یم. هغه زمانه ډېر ژر راتلونکې ده چې

أَنْ يُؤْذَنَ لِي فِي الْخُرُوجِ فَأَخْرُجَ فَأَسِيرَ فِي الْأَرْضِ

ماته به د وتلو اجازت راکړی شي. هغه وخت به وځم، او ځلویښت ورځې به په زمکه باندې ګرځم، تردې

فَلَا أَدَعُ قَرْيَةً إِلَّا هَبَطْتُهَا فِي أَرْبَعِينَ لَيْلَةً غَيْرَ مَكَّةَ وَطَيْبَةَ

چې یوه آبادي به داسې نه پرېږدم چې هغې ته زه داخل نشم، د مکې او مدینې نه غیره، دا دواړه ښارونه په

هُمَا مُحَرَّمَتَانِ عَلَيَّ كِلْتَاهُمَا

ما باندې حرام ګرځولی شوېدي. یعنې دې دواړو ښارونو ته زما ننوتل به منع وي. کله چې زه په دې دواړو

كُلَّمَا أَرَدْتُ أَنْ أَدْخُلَ وَاحِدَةً أَوْ وَاحِدًا مِنْهُمَا استقبلني ملكٌ بيدهِ السيفُ صَلْتًا

ښارونو کې یو ښار ته ننوتل وغواړم نو زما مخې ته به یوه فرښته راشي چې د هغې په لاس کې به لوڅه توره وي

يَصُدُّنِي عَنْهَا وَإِنَّ عَلَى كُلِّ نَقْبٍ مِنْهَا

دغه فرښته به ما دغه ښار ته د ننوتلو نه ایسار کړي. حقیقت دا دی چې د دې نه د هر یو ښار په لارو باندې

مَلَائِكَةً يَحْرُسُونَهَا. " قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَطَعَنَ بِمِخْصَرَتِهِ

فرښتې مامور دي. چې هغه د دې ښارونو ساتنه کوي. راوي وایي چې رسول الله ﷺ خپله همسا مبارکه په

فِي الْمِنْبَرِ : «هَذِهِ طَيْبَةُ هَذِهِ طَيْبَةُ هَذِهِ طَيْبَةُ» يَعْنِي الْمَدِينَةَ

منبر باندې په وهلو سره (درې ځل) وفرمایل: چې دا طیبه ده، دا طیبه ده، دا طیبه ده یعنې مدینه (بیا یې وفرمایل)

«أَلَا هَلْ كُنْتُ حَدَّثْتُكُمْ؟» فَقَالَ النَّاسُ: نَعَمْ فَإِنَّهُ أَعْجَبَنِي حَدِيثُ تَمِيمٍ أَنَّهُ وَافَقَ

یاد ساتئ! آیا ما به تاسو ته هم دا خبره نه کوله؟ صحابوو ویل: هو اد دې نه وروسته نبي کریم ﷺ وفرمایل:

الَّذِي كُنْتُ أُحَدِّثُكُمْ عَنْهُ وَعَنِ الْمَدِينَةِ وَمَكَّةَ. أَلَا إِنَّهُ فِي بَحْرِ الشَّامِ أَوْ بَحْرِ الْيَمَنِ لَا بَلْ مِنْ قِبَلِ الْمَشْرِقِ

پوه شئ! دجال د شام په سمندر کې دی. یا د یمن په سمندر کې، نا! بلکې هغه به د مشرق د اړخ نه راوځي

| ماهو من قبل المشرق ماهو من قبل المشرق ماهو " وَأَوْمَأَ بِيَدِهِ إِلَى الْمشرق. رَوَاهُ مُسلم [1] |
|---|
| دې وينا سره نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په لاس مبارک سره د مشرق اړخ ته اشاره وکړه.(مسلم) |

**توضيح: فارفئو:** يعني خلکو کشتۍ تاپو ته نږدې کړه.

**اقرب:** قاف باندې سکون دی.او رآء باندې پيښ دی.دا د قارب جمع ده . وړې کشتۍ ته قارب وايي.

**اهلب:** ډيرو ايختانو والا ځناور ته اهلب وايي. كثير الشعر د دې تفسير دی.

**الجساسة:** جاسوسې ښځې ته جساسه وايي. د دېنه د دجال لپاره خبرونه راغونډې ښځه مراد ده. جساسې خپله نور پيژندګلو ونکړه. بلکې اصلي خبره چې هغه د دجال سره متعلق وه ، هغه يې وکړه.

**الدَّير:** د آتش پرستو عبادت خانې ته هم دَير وايي.او د د نصاراؤ مدرستې او عبادت خانې ته هم دَير وايي. او شراب خانې ته هم دَير ويلی کيږي. **ما انت:** يعني ته څه شي يې؟ تاته په کتلو سره يريږو.

**قدرتم:** يعني تاسو تردې ځايه راوسيدلی او زما په احوالو باندې قادر شوی؟ صحيح ده، زه به تاسو ته خپل حالات ووايم، خو اول تاسو ووايی.

**ما انتم:** تاسو څه شی ياست! دا جواب ترکی بزبان ترکی دی. څنګه چې هغوې د دجال يو شی جوړولو باندې پوښتنه کړې وه. دجال هم دغه شان وکړل.دواړو يو بل په تعجب او حقارت سره ياد کړل.

**نخل بيسان:** نخل بيسان په جزيره عرب کې دی.او په شام کې هم دی. خو دلته د جزيره عرب والا ځای مراد دی.

**عين زغر:** په شام کې د يو ځای نوم دی. دې ځای کې د اوبو ډيره غټه چينه ده چې هغې ته عين زغر وايي.

**نقب:** لارې ته نقب وايي. انقاب د دې جمع ده. **مخضرته:** همسا ته وايي. (مرقات۹/۴۰۸)

**لا بل من المشرق:** نبی كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا کلام د شک او تردد په انداز کې ځکه وفرمايلو چې دجال د قيامت د غټو نښو نه دی، نو څنګه چې قيامت پټ ساتلی شويدی نو دغه شان د دې علامت هم تر يو حده پورې پټ ساتلی شويدی. (مرقات۹/۴۰۸)

**ما هو:** کې کلمه ما زائده ده. نفې لپاره نده ، يا لفظ موصوله دی،د الذی په معنی دی.**ای الذی هو فيه.** (مرقات۹/۴۰۹)

---

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۶۱ رقم الحديث (۲۹۴۲-۱۱۹) وابوداود في السنن ۴/۵۰۰ رقم الحديث ۴۳۲۶.

قَالَ: مَا أَنْتِ؟ قَالَتْ: أَنَا

تمیم رضي الله عنه وویل چې ته څوک یې؟ هغې جواب ورکړو چې زه جاسوسې کونکې یم. (او دجال ته خبرونه رسوم)

الْجَسَّاسَةُ اذْهَبْ إِلَى ذَلِكَ الْقَصْرِ

ته دغه ماڼۍ اړخ ته لاړ شه! تمیم داري رضي الله عنه بیان دی چې زه دغه ماڼۍ ته راغلم. نو هلته څه ګورم چې یو

فَأَتَيْتُهُ فَإِذَا رَجُلٌ يَجُرُّ شَعَرَهُ مُسَلْسَلٌ فِي الْأَغْلَالِ يَنْزُو فِيمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ.

سړی دی چې خپل ایختان راکاږي. زنځیرونو کې تړلی شویدی او طوقونه پراته دي. او د زمکې او آسمان

فَقُلْتُ: مَنْ أَنْتَ؟ قَالَ: أَنَا الدَّجَّالُ ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُد [1]

ترمینځ خکته پورته توپونه وهي. ما پوښتنه وکړه چې ته څوک یې؟ نو هغه جواب راکړو چې زه دجال یم.

**توضیح**: ینزو : یعنې زمکې او آسمان ترمینځ خکته پورته توپونه وهي.

## د دجال نور وضاحت

﴿۲۲﴾ وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت عباده بن صامت رضي الله عنه رسول الله صلى الله عليه وسلم نه روایت کوي چې نبی کریم صلى الله عليه وسلم وفرمایل:

«إِنِّي حَدَّثْتُكُمْ عَنِ الدَّجَّالِ حَتَّى خَشِيتُ أَنْ لَا تَعْقِلُوا.

ما تاسو ته د دجال حال د دې اندیښنې نه (بیا بیا) بیان کړیدی چې هسې نه ستاسو په پوهه کې رانشي

إِنَّ الْمَسِيحَ الدَّجَّالَ قَصِيرٌ أَفْحَجُ جَعْدٌ أَعْوَرُ

(نو بنه پوهه شی چې) دجال د ټیټ قد والا دی، پلن دی، د خپو ګوتې یې جوختې دي. (یو سترګه باندې) کاڼی

مَطْمُوسُ الْعَيْنِ لَيْسَتْ بِنَاتِئَةٍ وَلَا حَجْرَاءَ فَإِنْ أُلْبِسَ عَلَيْكُمْ

دی. او (دویمه) سترګه بوقه یعنې بیخې ورکه ده. نه بیرون ته راوتلې ده او نه دننه ننوتلې ده. د دینه وروسته

فَاعْلَمُوا أَنَّ رَبَّكُمْ لَيْسَ بِأَعْوَرَ » . رَوَاهُ أَبُو دَاوُد [2]

که تاسو په شک کې پریوځی نو دومره خبره یاد ساتی چې ستاسو پروردګار کاڼی ندی. (ابوداود)

**توضیح**: قصیر: لنډ قد ته قصیر وایې. افحج: چې دهغه د خپو پنجې نږدې نږدې وي. او د خپو

---

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۴/۵۹۹ رقم الحديث ۴۳۲۵.

[2] أخرجه أبوداود في السنن ۴/۴۹۵ رقم الحديث ۴۳۲۰ وأحمد في المسند ۵/۳۲۴

ګیتګی لیرې لیرې وي. دغه افحج وي. اردو کې ورته پهدا وايي. اعور: دا د دجال د کیڼې (چپې) سترګې حالت دی. د دېنه مخکې حدیث نمبر ۷ کې تفصیل تیر شویدی.(مرقات ۹/۴۱۳)

**الا تعقلوا:** يعني زما سره يره شوه چې تاسو پوهه نشی یا به درنه هیر شي. لهذا دومره پوهه شی چې دجال کاڼی دی او ستاسو رب کاڼی ندی.(مرقات ۹/۴۱۴)

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾وَعَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ بْنِ الْجَرَّاحِ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «إِنَّهُ |
| او حضرت ابوعبیده بن جراح رضي الله عنه فرمايي چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دا اوریدلي دي: حقیقت دا دی چې |
| لَمْ يَكُنْ نَبِيٌّ بَعْدَ نُوحٍ إِلَّا قَدْ أَنْذَرَ الدجالَ قومَه وإِنِّي أُنذركموه» |
| د نوح عليه السلام نه وروسته دا نبی ندی تیر شوی چې هغه خپل قوم د دجال نه نه وي يرولی، او زه هم تاسو يروم |
| فوصفه لَنَا قَالَ: « لَعَلَّهُ |
| د دېنه وروسته نبی کریم صلى الله عليه وسلم زمونږ مخې ته د دجال (څه) حالات بیان کړل. او بیا یې وفرمایل: کیدی شي د |
| سَيُدْرِكُهُ بَعْضُ مَنْ رَآنِي أَوْ سَمِعَ كَلَامِي » . قَالُوا: |
| هغه خلکو نه چې هغوی زه لیدلی یم یا یې زما کلام اوریدلی دی څوک دا بیا مومي! صحابو رضي الله عنهم وویل: |
| يَا رَسُولَ اللهِ فَكَيْفَ قُلُوبُنَا يَوْمَئِذٍ؟ قَالَ: «مِثْلُهَا» يَعْنِي |
| چې یا رسول الله! هغه وخت به زمونږ د زړونو څه حالت وي! نبی کریم صلى الله عليه وسلم وفرمایل: یعنې دغه شان لکه څنګه |
| الْيَوْمَ «أوخير» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد[1] |
| چې نن ورځ دی یا د دینه به هم غوره وي. |

## په خراسان کې د دجال ظهور

| |
|---|
| ﴿۲۴﴾ وَ عَنْ عَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ عَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ قَالَ: |
| او حضرت عمرو بن حریث ، د سیدنا ابوبکر صدیق رضي الله عنه نه روایت کوي چې هغه بیان وکړو چې |
| حَدَّثَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " الدَّجَّالُ يَخْرُجُ مِنْ أَرْضٍ |
| رسول الله صلى الله عليه وسلم مونږ ته بیان وکړو او وې فرمایل چې دجال به مخ د زمکې نه دیو داسې ځای نه را وځي چې هغه |

---

(۱)أخرجه أبوداود في السنن ۵/۱۱۷ رقم الحديث ۴۷۵۶،والترمذي في السنن ۵/۴۴۰ رقم الحديث ۲۲۳۴.

| بِالْمَشْرِقِ يُقَالُ لَهَا: خُرَاسَانُ يَتْبَعُهُ أَقْوَامٌ كَأَنَّ وُجُوهَهُمُ |
|---|
| په مشرق کې دی. او چې هغې ته خراسان ویلی کیږي. دهغه سره به د خلکو څو مره ډلي وي، او د خلکو مخونه |
| المجانّ المطرقة". رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[1] |
| به قط په قط پلن شوي د ډهال په شان به وي. |

**توضيح:** خراسان: د ایران په غټو ښارونو کې د یو ښار نوم خراسان دی. چې په هغې کې ډیرې زلزلې راځي په مخکنۍ زمانه کې به د خراسان لفظ ټول ایران او ځینې افغانستان ته ویلی کیدلو. اوس افغانستان بیل دی. د خراسان د لاندې اصفهان دی. هلته به دجال راښکاره کیږي. نو خراسان هیواد دی. اصفهان ښار دی. دا په اصل کې اسپان ؤ. دا به د اسونو لپاره مجاهدینو استعالولو. د اسپان نه اصفهان شو.

**وجوههم:** د دې صفت خلک ازبک، او تاجک او ځینې وحشې ترکان دي. (مرقات ۹/۴۱۵)

## د دجال نه لرې اوسيږه

| ﴿۲۵﴾ وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ سَمِعَ بِالدجال |
|---|
| او حضرت عمران بن حصین رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل: کوم سړی چې د دجال د راوتلو |
| فلينأ مِنْهُ فو الله إِنَّ الرَّجُلَ لَيَأْتِيهِ |
| خبر واوري، هغه لپاره پکار دي چې هغه د دې نه لیرې شي. په خدای قسم! سړی به د دجال خوا ته راشي او د هغه به دا |
| وَهُوَ يَحْسِبُ أَنَّهُ مُؤْمِنٌ فَيَتَّبِعُهُ مِمَّا يَبْعَثُ بِهِ |
| ګمان وي چې زه مؤمن یم لیکن هغه به د هغه شیانو د وجې نه په شبهاتو کې پریوځي چې کوم څه دجال ته ورکړې |
| مِنَ الشُّبُهَاتِ ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2] |
| شوي دي. (لکه سحر او جادو کول او مړي ژوندي کول قدرت او داسې نور) د هغه اطاعت به قبول کړي او په هغه باندې به ایمان راوړي. |

## دجال به په دنيا کې څومره زمانه وي

| ﴿۲۶﴾ وَعَنْ أَسماء بنت يزيد بن السكن قَالَتْ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَمْكُثُ |
|---|
| او حضرت اسماء بنت یزید بن سکن رضي الله عنها فرمايي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل: په مخ د زمکه باندې به |

---

([1])أخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۲۱ رقم الحديث ۲۲۳۷ وابن ماجه في السنن ۲/۱۳۵۳ رقم الحديث ۲۲۳۷.

([2])أخرجه أبوداود في السنن ۴/۴۹۵ رقم الحديث ۴۳۱۹ ،وأحمدفي المسند ۴/۴۳۱.

| |
|---|
| الدَّجَّالُ فِي الْأَرْضِ أَرْبَعِينَ سَنَةً السَّنَةُ كَالشَّهْرِ وَالشَّهْرُ كَالْجُمُعَةِ وَالْجُمُعَةُ |
| دجال ځلويښت کاله پورې وي (هغه وخت به) کال د مياشت پرابر وي، مياشت به د اونۍ برابر او اونۍ به د |
| كَالْيَوْمِ وَالْيَوْمُ كَاضْطِرَامِ السَّعَفَةِ |
| يوې ورځې پرابر وي. او يوه ورځ به د دومره وخت وي په څومره وخت کې چې د کهجورې وچ ښاخ |
| فِي النَّارِ». رَوَاهُ فِي «شَرْحِ السُّنَّةِ»[1] |
| په اور کې سوزي. (شرح السنة) |

**توضیح**: اربعين سنة: د دېنه مخکې حديث نمبر ۱۲ کې د ځلويښتو ورځو ذکر ؤ دلته د ځلويښتو کالو دی چې دا واضح تعارض دی. د دې جواب دا دی چې هغه روايت راجح دی، دا مرجوح دی. يا مطلب دا دی چې ځلويښت ورځې په دنيا کې د ګرځيدلو دي. ټول حکومت يې ځلويښت کاله دی. خو دا راجح نه دی.

**سعفة**: د کهجورې وچ ښاخ مراد دی. **اضطرام** د سوزيدلو په معنی دی. (مرقات ۹/۴۱۵)

| |
|---|
| ﴿۲۷﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَتْبَعُ الدَّجَّالَ مِنْ |
| او حضرت ابو سعيد خدری رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: زما د امت نه به اويا زره |
| أُمَّتِي سَبْعُونَ أَلْفًا عَلَيْهِمُ السِّيجَانُ». رَوَاهُ فِي "شرح السنة"[2] |
| (۷۰۰۰۰) کسان چې دهغوی په سرونو باندې به سيجان پراته وي، د دجال تابعداري به وکړي. (شرح السنة) |

**توضیح**: سيجان: برزون تيجان، دا هم هغه طيلسان دی. شنه او تور څادرونه مراد دي. تفصيل مخکې تير شويدی.

## د خروج دجال ښې او د دجال جادو

| |
|---|
| ﴿۲۸﴾ وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَيْتِي |
| او حضرت اسماء بنت يزيد رضي الله عنها فرمايي چې نبی کريم صلى الله عليه وسلم زمونږ کور کې ؤ چې نبی کريم صلى الله عليه وسلم |
| فَذَكَرَ الدَّجَّالَ فَقَالَ: " إِنَّ بَيْنَ يَدَيْهِ ثَلَاثَ سِنِينَ سنة تمسك السَّمَاءُ فِيهَا ثُلُثَ |
| د دجال ذکر وکړو او وې فرمايل چې د دجال د راښکاره کيدلو نه درې کاله مخکې به داسې وي چې اول به اسمان |

---

[1] أخرجه البغوي في شرح السنة ۱۵/۶۲ رقم الحديث ۴۲۶۴ وأحمد في المسند ۶/۴۵۴

[2] أخرجه البغوي في شرح السنة ۱۵/۶۲ رقم الحديث ۴۲۶۵.

قَطْرِهَا وَالْأَرْضُ ثُلُثَ نَبَاتِهَا. وَالثَّانِيَةُ تُمْسِكُ السَّمَاءُ ثُلُثَيْ قَطْرِهَا وَالْأَرْضُ ثُلُثَيْ

يو برخه باران او زمكه به يو برخه پيداوار ايسار كړي. يا په دويم كال به دوه برخې باران او زمكه به دوه برخې پيداوار ايسار

نَبَاتِهَا. وَالثَّالِثَةُ تُمْسِكُ السَّمَاءُ قَطْرَهَا كُلَّهُ وَالْأَرْضُ نَبَاتَهَا كُلَّهُ.

كړي. تردې چې كوم وخت دجال ظاهره شي نو په ټوله زمكه باندې به قحط خپور شي. (نه يوائې دا چې

فَلَا يَبْقَى ذَاتُ ظِلْفٍ

انسان به ډير سخت معاشي او خوراكې كمي كې اخته شي بلكې څاروكې به هم كمي خپور شوې وي) نو نه خو په كوم د

وَلَا ذَاتُ ضِرْسٍ مِنَ الْبَهَائِمِ إِلَّا

خو په كوم د كورنى څناور پاتې وي او نه به وحشي څناوروكې كوم د غاښ والا بلكې ټول به هلاك شي او ددې په عكس باندې

هَلَكَ وَإِنَّ مِنْ

به هغه وخت خزاني او په زمكه كې خخ شيانو باندې به د دجال قبضه شي. او د خوراكې شيانو پوراوالى او آرام او خوشحالى نورى

أَشَدِّ فِتْنَتِهِ أَنَّهُ

ذريعې به د هغه سره وي. په دغه توګه په خلكو كې خپل خدايتوب كلكولو لپاره به او د ګمراهى بدترينه فتنه خپرولو لپاره

يَأْتِي الْأَعْرَابِيَّ فَيَقُولُ:

به هغه دا شيان استعمالوي. د هغه به ټولو نه سخته فتنه دا وي چې هغه به د علم او عقل نه ناخبره يو باڼه يچي ته راشي او هغه ته به

أَرَأَيْتَ إِنْ أَحْيَيْتُ لَكَ إِبِلَكَ أَلَسْتَ تَعْلَمُ

وايې چې ما ووايه: كه زه ستا اوښان ژوندي كړم (چې د قحط د وجې نه مړه شويدي) نو آيا ته به دا ومنې چې

أَنِّي رَبُّكَ؟ فَيَقُولُ بَلَى

زه ستا پروردګار يم؟ باڼه يچي به جواب وركړي چې هو! (زه به تا خپل پروردګار ومنم) نو شيطان به د دغه

فَيُمَثِّلُ لَهُ الشَّيْطَانَ نَحْوَ إِبِلِهِ كَأَحْسَنِ مَا يَكُونُ ضُرُوعًا وَأَعْظَمِهِ

باڼه يچي د اوښانو شكل و صورت جوړولو باندې راوستلى شي او د دغه اوښان به د تيانو په پلنو او كوفونو په

أَسْنِمَةً". قَالَ: "وَيَأْتِي الرَّجُلَ

وچتوالي په اعتبار سره د هغه اوښانو په شان معلوميږي. نبى كريم ﷺ و فرمايل: يا به هغه د يو سړي خواته

قَدْ مَاتَ أَخُوهُ وَمَاتَ أَبُوهُ فَيَقُولُ: أَرَأَيْتَ إِنْ أَحْيَيْتُ لَكَ أَبَاكَ

راشي چې د هغه پلار او ورور به مړه شوي وي. او هغه ته به وايي چې ما ته و وايه که زه ستا ورور او پلار

وَأَخَاكَ أَلَسْتَ تَعْلَمُ أَنِّي رَبُّكَ؟ فَيَقُولُ: بَلَى

ژوندي کړم نو آيا ته به دا ومنې چې زه ستا پروردګار يم؟ هغه سړی به جواب ورکړي چې هو! نو دجال به

فَيُمَثِّلُ لَهُ الشَّيَاطِينَ نَحْوَ أَبِيهِ وَنَحْوَ أَخِيهِ ". قَالَتْ:

شيطانان د هغه سړي د ورور او پلار په شکل او صورت کې پيش کړي. حضرت اسماء رضي الله عنها فرمايي

ثُمَّ خَرَجَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِحَاجَتِهِ ثُمَّ رَجَعَ

چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم دې فرمايلو سره د څه ضرورت لپاره بيرون ووتلو. او بيا د څه لږ وخت نه وروسته راغلو.

وَالْقَوْمُ فِي اهْتِمَامٍ وَغَمٍّ مِمَّا حَدَّثَهُمْ.

د غه وخت د حاضر مجلس خلک (د دجال دا حالات اوريدلو سره) فکر او غم په هغه حالت کې ناست ؤ.

قَالَتْ: فَأَخَذَ بِلَحْمَتَيِ الْبَابِ فَقَالَ:

حضرت اسماء رضي الله عنها فرمايي چې بيا نبی کريم صلی الله عليه وسلم د دروازي دواړه درشلي ونيلي او وې فرمايل: اسماء! په تا

«مَهْيَمْ أَسْمَاءُ؟» قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ لَقَدْ خَلَعْتَ أَفْئِدَتَنَا بِذِكْرِ الدَّجَّالِ. قَالَ:

څه شو؟ ما وويل: يارسول الله صلی الله عليه وسلم! تا خو زمونږ زړونه وويستل! نبی کريم صلی الله عليه وسلم و فرمايل: که زه ژوندی

«إِنْ يَخْرُجْ وَأَنَا حَيٌّ فَأَنَا حَجِيجُهُ وَإِلَّا

وم، نو په دلائلو سره به هغه دفع کړم. او که هغه دا سې وخت راووتلو چې زه په دنيا کې نه يم. نو يقيناً زما

فَإِنَّ رَبِّي خَلِيفَتِي عَلَى كُلِّ مُؤْمِنٍ» فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ وَاللهِ إِنَّا لَنَعْجِنُ

پروردګار د هر مؤمن لپاره زما وکيل دی. بيا ما وويل چې يارسول الله! د ولږې په وخت کې خو د انسان

عَجِينَنَا فَمَا نَخْبِزُهُ حَتَّى نَجُوعَ

د بې صبرۍ دا حالت وي چې مونږ وړه اغږو او د هغې ډوډۍ پخولو نه فارغه شوي هم نه يو چې د ولږې نه مونږ

فَكَيْفَ بِالْمُؤْمِنِينَ يَوْمَئِذٍ؟ قَالَ:

کمزوري شو. نو آخر په د غه ورځ به د مؤمنانو څه حالت وي؟ نبی کريم صلی الله عليه وسلم و فرمايل: د هغوي لپاره به هغه

| « يُجْزِئُهُمْ مَا يُجْزِئُ أَهْلَ السماءِ من التسبيحِ و التقديسِ » . رَوَاهُ أَحْمد[1] |
|---|
| څه کافي وي چې هغه د آسمان والاؤ يعني فرشتو لپاره کافي وي. يعني د الله تعالى تسبيح او تقدس. |

**توضيح: فيمثل له الشيطان**: معلومه شوه دجال چې کوم چلونه کوي، دهغې شاه ته تړل لاس به د شيطان وي. ابليس به د نارينۀ په شکل کې راشي نو دجال به ووايې چې واخله ما ستا پلار يا ورور ژوندی کړو. اوس ما خپل رب ومنه. ګوره ما ستا لپاره او بنان ژوندي کړل، ما رب جوړ کړه. (مرقات ۹/۴۱۸)

**انا لنعجعن**: يعني مونږ دومره صبر چيرته کولی شو، چې تر مياشتو پورې د دجال په فتنه کې د خوراک څکاک نه بغير ګذاره وکړو. مونږ وږو اغږلو نه وروسته د ډوډۍ پخيدلو پورې انتظار کولو پورې پريشانه يو. نو دورمه زمانه به څنګه صبر کوؤ؟ مونږ خو به په فتنه کې وغورزيږو. نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د الله ذکر او تسبيحات سره به وخت تيريږي.

**لحمتي الباب**: يعني د دروازې دواړه درشلې يې ونيولي.

**رواه**: د مشکوة په اصل نسخو کې دلته بياض دی. ځای خالي دی. وروسته په کې چا رواه احمد ليکلی دی. (مرقات ۹/۴۲۰)

# الْفَصْلُ الثَّالِث

## د ايمان خاوندان دې د دجال څخه نه ويريږي

| ﴿۲۹﴾عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ: مَا سَأَلَ أَحَدٌ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| حضرت مغيره بن شعبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د دجال په اړه باندې څومره ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه پوښتنه کړېده |
| عَنِ الدجالِ أَكْثَرَ مِمَّا سَأَلْتُهُ وَإِنَّهُ قَالَ لِي: «مَا يَضُرُّكَ؟» |
| دومره هيچا نده کړې. نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته وفرمايل چې دجال به تاته هيڅ نقصان نشي درکولی يعني په تا باندې |
| قُلْتُ: إِنَّهُمْ يَقُولُونَ: إِنَّ مَعَهُ |
| به د الله تعالى د رحمت سيوری وي، ځکه به دجال تا نشي بې لارې کولی. ما وويل چې خلک دا وايې چې دهغه |
| جَبَلَ خُبْزٍ وَنَهَرَ مَاءٍ. |
| سره به د ډوډو غروي، او د اوبو نهر به وي، هغه وخت چې خلک به د وچکالی ښکار وي. که يو سړی د ولږې |

[1] أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۳۵۹ رقم الحديث ۴۰۷۷ واحمد في المسند ۶/۴۵۵.

| قَالَ: | هُوَ | أَهْوَنُ | عَلَى | الله |
|---|---|---|---|---|
| او تندې نه د اضطرار حالت ته ورسيږي نو هغه څه وکړي؟ نبي کريم صَلَّاللهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ وفرمايل: د الله تعالى په نزد باندې | | | | |
| من ذٰلِك ". مُتَّفق عَلَيْهِ[1] | | | | |
| دجال د دېنه ډير ذليله دى. | | | | |

**توضيح: هو اهون:** يعنې دجال د دېنه ډير ذليله او سپک دى. چې د دې په ذريعه سره يو يوځ مؤمن گمراه شي، نو څکه ايمان کلک ساتل پکار دي. د دجال نه د يريدلو ضرورت نشته دى. هغه فريب كار او دهوکه کونکې دى. جادو او په چل دهوکه باندې خلک يروي. په حقيقې توگه باندې د هغه سره هيڅ نشته دى. (مرقات۹/۴۲۱)

## د دجال د سپرلۍ ناشنا خر

| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «يَخْرُجُ الدَّجَّالُ عَلَى حِمَارٍ أَقْمَرَ |
|---|
| او حضرت ابو هريره رَضِيَاللهُعَنْهُ روايت دى چې نبي كريم صَلَّاللهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ وفرمايل: دجال به په يو سپين خر باندې |
| مَا بَيْنَ أُذُنَيْهِ سَبْعُونَ بَاعًا» . رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي «كِتَابِ الْبَعْثِ وَالنُّشُورِ»[2] |
| سپور راوځي . او د دې خر د دواړو غوږونو ترمينځ به اويا باعه فاصله وي. |

**توضيح: اقمر:** سپين خر ته حمار اقمر وايې. د دجال خر خو به بنايسته سپين وي خو خپله دجال بدشكله كانې وي. **سبعون باعًا:** يعنې دا خر به دومره غټ وي چې د دواړو غوږوو ترمينځ فاصله به يې اويا باعه وي. دواړه لاسونه او متې چې كله مكمل خپرې كړې شي، نو دا ديو باع په اندازه دي. (مرقات۹/۴۲۱)

د حضرت ابن مسعود رَضِيَاللهُعَنْهُ يو روايت كې دى چې د دجال د خر د غوږونو مينځ كې به څلويښت گزه فاصله وي. او د هغه يو قدم به د درې ورځو په مزل باندې وي. چې دا تقريبًا دوه اتيا كلوميټره فى سيكنډ به وي. دا مزل به ۲۹۵۲۰۰ كلوميټر في گهنټه په حساب سره وي. گويا د باد نه تيز دى. الوتكې (هوايې جهاز) نه هم تيز دى. په ځينو روايتونو كې د خر راكوزيدلو تذكره هم شته دى. چې دهغې نه اندازه كيږي چې دا الوتونكى كوم خر دى. يا جهاز دى. ځينې علماء وايې چې د سپين خر نه مراد جهاز دى. دا خبره هم ډيره بعيده نده. يو مصرى عالم كمال هشام عبدالحميد په اقترب

---

([1])اخرجه البخاري في صحيحه ۱۳/۸۹ رقم الحديث ۷۱۲۲ومسلم في صحيحه ۴/۲۲۵۸ رقم الحديث (۲۹۳۹-۱۱۵)

([2])اخرجه مرقاة المفاتيح ۱۰/۱۲۸ رقم الحديث ۵۴۹۳.

**خروج المسیح الدجال** په نوم سره مفصل کتاب لیکلی دی. په دې کتاب کې هغه د دجال بیلا بیلې سپرلۍ ذکر کړیدي. په کې څه سپرلۍ د کشتۍ په شان دي. څه سپرلۍ د چهترۍ په شکل دي. څه د سپرلۍ د طشترۍ په شکل دي. څه سپرلۍ بیخې د الوتکې په شان دی. داسې معلومیږي چې د دجال به مختلفو ځایونو کې سپرلۍ بدلیږي. لهٰذا کله به خر وي، کله به خره وي. کله به جهاز وي، کله به کشتۍ وي، په حدیث کې د یو نوم اخستل شویدی. د نورو نفې نده شوې. د یهودو په اړه باندې په کتاب کې ډیر څه لیکل شویدي. د یهودو یو کتاب ایزاخیل کې د جال په اړه باندې لیکلي دي چې یهود وایې: ای د صیهون لورې! د خوشحالۍ چیغه وکړه! ای دیروشلم لورۍ! د مستۍ نه نعرې کړه! ګوره! ستاسو باچا(دجال) راروان دی. هغه عادل دی. او خر باندې سپور دی. قجر یا د خرې په بچې باندې به زه یوفریم نه ګاړی او دیروشلم نه به اسپه پیلوم. (بحواله دریم جنګ عظیم)اوس دلته د دجال د خروج په اړه بحث دی چې هغه به د کوم ځای نه راوځي؟ هشام کمال عبدالحمید په خپل کتاب کې د دجال مرکزې ځای جزیره برمودا ګرځولي ده . د برمودا تکون د امریکې سره نژدې پروت دی. یو اړخ ته شمالې امریکه ده او بل اړخ ته جنوبې امریکه ده. د دې په مینځ کې بحر اتلانتک دی. په دې کې مثلث برمودا دی. چې دا دی و تکون په کې دی.جزیره برمودا یا مثلث برمودا یا برمودا تکون یو نانشا پټ ځای دی. په دې ځای کې د جناتو(پیریانو) مرکزې ځای هم دی. او په دې ځای د ابلیس تخت هم دی. او په دې مقام کې د دجال محبس(قید خانه) هم ده. ګویا دجال او ابلیس او جنات خپل مینځ کې نژدې رابطې لري. په امریکه کې د ابلیس عبادت کونکې هم شته دی. د امریکې نائب صدر هم د ابلیس عبادت کونکو کې دی. د دجال پیغامات یهود او نصاراؤ ته د ابلیس په واسطه باندې رسیږي. د دجال حکم دی چې د دنیا نه مجاهدین ختم کړی ، بیا به زه راځم. د عیسایانو خیال دی چې کله په مسلمانانو باندې دنیا تنګه شي نو مهدی په راځي . د مهدی سره به دجال راشي، او د جال سره به زمونږ خدای مسیح موعود راشي. نو یهود او نصارا د خپل خدای د راتګ لپاره د مسلمانانو ختمول او دهغوې تنګولو باندې اخته دي. ځکه بش وایې چې د وسنې جنګ حکم ماته خدای کړیدی، اودا روحانې صلیبې جنګ دی. مسلمانان میده کیږي، او دغه خلک د خپل خپل خدای د راتګ انتظار کې ناست دي.د برمودا تکون ناشنا پت حالات دي. په سمندر کې چې کوم یو بحرې جهاز دغه اړخ ته تللی دی.هغه ترننه پورې داسې غائب دی چې دهغې هیڅ خبر ندی راغلی. که هوایې جهاز په دغه ځای باندې کله تللی دی نو داسې غائب شویدی چې ترننه پورې یې هیڅ پته نشته دی. په دغه علاقه باندې د شپې رڼا ځې راځي، او ښکاري دا ټوله ابلیسې څوکۍ ده . چې د دجال نه ګیر چاپیره لګیدلي ده. ۱۸۷۴ء کې په دې علاقه کې یو بحرې جهاز ورک شوی ؤ. دهغې درې سوه سپاره سره د کپتان ترننه پورې غائب دي. په فضا کې چې کله هم هوایې جهاز تللی دی، دې لپاره چې دا معلومه کړي نو هغه هم غائب شویدی. برمودا تکون یو پُراسرار علاقه ده. چې دهغې په سمندر کې اور دننه هم ځي او بیرون هم راوځي.چې دا په زرګونو خلکو لیدلی دی.

۹ جمادی الثاني ۱٤۱۸ھ

# باب قصه ابن الصیاد

## دابن صیاد د قصې بیان

په ډیرو نسخو کې صیاد بغیر د الف لام نه لیکل شویدی. ځینو نسخو کې د الف لام سره الصیاد دی. ځینو دا ابن صیاد هم لیکلی دی. د دې اصل نوم صاف ؤ. ځینو عبدالله ویلی دی. دده مور به د صاف په نوم سره بللو. ابن صیاد خپله د یو یهودې ځوې ؤ. چې د مدینې وسیدونکی ؤ. ابن صیاد د جادو او کهانت کلک ماهر ؤ. د دې وجې نه د ده شخصت یو پُراسرار شی جوړ شو. د صحابه کرامو رضی الله عنهم هم د ابن صیاد په اړه باندې بیلابیل خیالونه ؤ. حضرت عمر فاروق، ابن عمر، حضرت جابر رضی الله عنهم او نورو صحابؤ دا خیال ؤ چې ابن صیاد دجال ؤ. تردې چې ابن عمر او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به په قسم سره ویله چې ابن صیاد دجال دی. رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ابن صیاد شخصیت هم دغه مبهم پریخودلو لکه څنګه چې د هغه مبهم ؤ. په دې اړه باندې په نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څه داسې واضحه وحې نه وه راغلي چې په هغې کې د ابن صیاد د حیثیت تعیین شوی وي.

مشکوة کې په دې باب کې حدیث نمبر: ۷، حدیث نمبر: ۸، ۱۰ او حدیث نمبر ۱۱ نه په واضحه توګه باندې معلومیږي چې ابن صیاد دجال دی. لیکن د دې په عکس د اکثرو صحابؤ خیال ؤ چې ابن صیاد یوه فتنه وه. مسلمانانو د امتحان او آزمیښت لپاره الله تعالی هغه پیدا کړی ؤ. دا یهودې ؤ. دهوکه کونکی او جادو ګر ؤ. خو وروسته مسلمان شوی، حج یې هم وکړو. مکې او مدینې ته هم لاړو او بیا مړ شو. دا ښاغلې د هغه روایت نه استدلال کوي چې په هغې کې ابن صیاد او د ابو سعید خدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خبرې شویدي. په دې کې ابن صیاد د خپل ځان د دجال کیدلو نه ښه کلک انکار کړیدی. خو د دې روایت په آخر کې وایې که زه دجال جوړ شوم نو زهورباندې خوشحاله یم، بد به یې ونه ګڼم. (مرقات ۹/۴۲۲)

دغه شان تمیم داری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې کوم حدیث دی، په هغې کې تاویل کول ډیر ګران دي. ځکه چې د ابن صیاد په مدینه کې د شتون په وخت تمیم داری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سمندر په ټاپو کې دجال په زنځیرونو کې تړلی لیدلی ؤ. لیکن کومو ښاغلو چې ابن صیاد د مستقبل دجال ګرځولی دی، هغوې فرمایې چې ابن صیاد چې کله دجال نه ؤ جوړ شوی، دهغه وخت چې کوم احوال دي، د هغې اعتبار نشته دی، د دجال شکل خپلولو نه وروسته هغه نه مکې ته تللی شي او نه مدینې ته تللی شي. نه به د هغه اولاد کیږي او نه به هغه مسلمان وي. واقعه حره کې ابن صیاد ورک شوی ؤ. او ترننه پورې ورک دی. داسې ښکاري چې هم دې واقعه کې یې د دجال ښکل خپل کړیدی. او په هغه باندې د دجال حکمونه جاري شول. د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ واضح حدیث دی چې دجال د یوې غصې او غضب په

نتیجه کې به پیدا شي، اوس ظاهره ده، هیڅ ماشوم هم د مور په خیټه کې نه غصه کیږي. د غضب راتګ په دنیا کې د شتون لرلو سره لازم دي. نو د اول نه ابن صیاد موجود ؤ. بیا په واقعه حره کې د غصې: وجې نه او د دې واقعې د سپیره والې د وجې نه د دجال په شکل کې بدل شو. بهرحال تمیم داری رَضِیَ اللهُ عَنْهُ روایت په پریخودلو سره نورو روایتونو کې واضح احکامات دي. چې ابن صیاد دجال ؤ. اول ورکوټي دجال ؤ، او د واقعه حره نه وروسته ترینه غټ دجال جوړ شو. اکثر شارحین دې اړخ ته تللي دي چې ابن صیاد دجال نه ؤ لیکن د علامه طیبي د کلام نه معلومیږي چې ابن صیاد دجال کیدلی شي. **بنده راقم الحروف** هم دغه رایه ده چې ابن صیاد دجال ؤ. په دې سره به د ټولو احادیثو په پوهه کې د راتګ آسانې وشي. هو ! فقط تمیم داری رَضِیَ اللهُ عَنْهُ روایت بکې مانع دی. لیکن د هغې په اړه دا ویلی کیدی شي چې ډیره ممکنه ده چې تمیم داری رَضِیَ اللهُ عَنْهُ ته الله تعالی په ټاپو کې د مستقبل دجال په جسم مثالي او مستقبل د نقشې سره ښودلی وي. چې د نن ابن صیاد به د سبا په شکل کې وي. د دې نه د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وړاندوینې مشاهداتې تصدیق هم وشو. د دې وجې نه نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې د دجال سره متعلق ما چې څه تاسو ته ویلي ؤ، ګوری د هغې په سترګو لیدلی حال هم مخې ته راغلو. او تمیم دارې رَضِیَ اللهُ عَنْهُ دجال ولیدلو. ملا علی قاری رحمه الله د مستقبل د دجال دغه مثالي صورت په خپل عبارت کې بیانوي. تمیم داری رَضِیَ اللهُ عَنْهُ روایت جواب داسې کوي: **اقول ولا ينافي قصة تميم الداري اذ يمكن ان يكون له ابدان مختلفة فظاهره في عالم الحس والخيال دائر مع اختلاف الاحوال وباطنه في عالم المثال مقيد بالسلاسل والاغلال ولعل المانع من ظهور كماله في الفتنة وجود سلاسل النبوة واغلال الرسالة.** (مرقات ۹/۴۲۲)

**ترجمه:** ابن صیاد لره دجال ګرځول د تمیم داری رَضِیَ اللهُ عَنْهُ روایت سره منافي نه دی ځکه چې دا ممکنه ده چې د دجال ګڼ بدنونه او ګڼ وجودونه شي. نو د دې ظاهرې بدن په مشاهداتې دنیا کې د بیلابیلو حالتونو سره ګرځي. او د هغې باطنې بدن یعنې جسم مثالي په عالم مثالي کې په زنځیرونو کې تړلی پروت دی. او کیدی شي په نبوي دور کې ابن صیاد کامل دجال جوړیدلو باندې په ظاهریدلو سره د رحمة للعلمین د نبوت او رسالت د رحمت زنځیرونو بندیز وي.

## الفصل الأول

### د نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او د ابن صیاد ترمینځ خبري

﴿۱﴾ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّ عُمَرَ بن الخطاب انْطَلَقَ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت عبدالله بن عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ روایت دی چې حضرت عمر بن الخطاب رَضِیَ اللهُ عَنْهُ صحابه کرامو

فِي رَهْطٍ مِنْ أَصْحَابِهِ قِبَلَ ابْنِ الصياد حَتَّى وجدوهُ

د يو جماعت سره يو ځاې د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د ابن صياد خواته لاړل. او هغوي ده لره د بنو مغاله د محلت د

يلعبُ مَعَ الصبيانِ فِي أُطُمِ بَنِي مَغَالَةَ وَقَدْ قَارَبَ ابْنُ صَيَّادٍ يَوْمَئِذٍ الْحُلُمَ

ماشومانو سره په لوبو کولو کې بيا موندلو. د غه وخت هغه بلوغ ته نژدې شوی ؤ. ابن صياد د دې تولو د راتګ

فَلَمْ يَشْعُرْ حَتَّى ضَرَبَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ظَهْرَهُ بِيَدِهِ ثُمَّ قَالَ:

د خبر نه بې خبره ؤ. تردې چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه په شا باندې لاس کیخودلو او د هغه نه يې پوښتنه وکړه

«أتشهدُ أَنِّي رسولُ الله؟» فقَالَ: أَشْهَدُ

چې آيا ته د دې خبرې ګواهي ورکوي چې زه د الله رسول يم؟ ابن صياد نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته وکتل او وې ويل چې

أَنَّكَ رَسُولُ الأُمِّيِّينَ. ثُمَّ قَالَ ابْنُ صَيَّادٍ: أَتَشْهَدُ

زه ګواهي ورکوم چې ته د اميانو يعنې ناخوانده ګانو خلکو رسول يې. او بيا يې د نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه پوښتنه وکړه چې

أَنِّي رَسُولُ الله؟ فَرَصَّهُ النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

آيا ته د دې خبرې ګواهي ورکوي چې زه د خداې رسول يم؟ نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه لره (ونيولو) بنه زور يې ورکړو.

ثُمَّ قَالَ : « آمَنت بِالله و برسلِه » ثُمَّ

او وې فرمايل: ما په خداې باندې او د هغه په رسولانو باندې ايمان راوړی دی. د دېنه وروسته نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

قَالَ لِابْنِ صيَّاد: «مَاذَا تَرَى؟» قَالَ:

پوښتنه وکړه چې ته څه ويني يعنې د غيب د شيانو نه په تا باندې څه ښکاره کيږي؟ هغه جواب ورکړو: کله

يَأْتِينِي صَادِقٌ وَكَاذِبٌ.

ماته ريښتوني خبر راځي يعنې کله زما خواته فرښته راځي او کله دروغژن شيطان. رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه دا

قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «خُلِطَ عَلَيْكَ الأَمْرُ» . قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

جواب اوريدلو باندې وفرمايل: ستا معامله ټوله ګډه وډه ده. بيا نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل:

«إِنِّي خَبَأْتُ لَكَ خَبِيئًا» وَخَبَأَ لَه:

چې ما ستا لپاره په زړه کې يوه خبره پټه ساتلې ده. او کومه خبره چې نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ابن صياد لپاره پټه

(يومَ تَأْتِي السَّماءُ بدُخانٍ مُبِينٍ) فقَالَ: هُوَ الدُّخُ.

ساتلي وه هغه دا آيت (يومَ تَأْتِي السَّماءُ بدُخانٍ مُبِينٍ) ؤ. هغه جواب ورکړو چې هغه پټه خبره دخ دی.

فَقَالَ: «اخسَأْ فَلَنْ تَعْدُوَ قَدْرَكَ» . قَالَ عُمَرُ:

نبی کریم ﷺ و فرمایل: لیرې ورک شه! ته به د خپل حیثیت نه چرې هم مخکې نشې، حضرت عمر فاروق رضی الله عنه وویل

يَا رَسُولَ اللهِ أَتَأْذَنُ لِي فِي أَنْ أَضْرِبَ عُنُقَهُ؟ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

چې یا رسول الله! که ته ماته اجازت وکړې نو زه به د دهٔ غوټ غوڅ کړم؟ رسول الله ﷺ و فرمایل: ابن صیاد که هم

«إِنْ يَكُنْ هُوَ لَا تُسَلَّطُ عَلَيْهِ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ هُوَ

هغه دجال دی نو بیا ته به دې باندې نشې مسلط کیدلی او که دا هغه نوي نو بیا د ده په وژلو کې ستا هیڅ

فَلَا خير لَكَ فِي قَتْلِهِ» . قَالَ ابْنُ عُمَرَ: انْطَلَقَ بَعْدَ ذَلِكَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

بنیګړه نشته دی. حضرت ابن عمر رضی الله عنه فرمایې: چې د دې نه وروسته یوه ورځ نبی کریم ﷺ د کهجورو

وَأُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ الْأَنْصَارِيُّ

هغه بو تو خواته لاړو چیرته چې ابن صیاد ؤ. د غه وخت د نبی کریم ﷺ سره حضرت ابی بن کعب انصاری هم ؤ

يَؤُمَّانِ النَّخْلَ الَّتِي فِيهَا ابْنُ صَيَّادٍ فَطَفِقَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَّقِي بِجُذُوعِ النَّخْلِ

رسول الله ﷺ (هلته په رسیدلو باندې) کهجورو د بناخونو شاته پټ شو، چې ابن صیاد بی خبره وي. او د هغه

وَهُوَ يَخْتِلُ أَنْ يسمعَ مِنِ ابْنِ صَيَّادٍ

کتلو نه مخکې یې یو څو خبرې واورې. او د غه شان پټه باندې د نبی کریم ﷺ د ابن صیاد خبرې اوریدلو

شَيْئًا قَبْلَ أَنْ يَرَاهُ

مطلب دا ؤ چې خپله نبی کریم ﷺ او صحابه هم پوهه شې چې هغه آخر څه شی دی، آیا څه کاهن (ترویتی)

وَابْنُ صَيَّادٍ مُضْطَجِعٌ عَلَى فِرَاشِهِ فِي قَطِيفَةٍ لَهُ فِيهَا زَمْزَمَةٌ

دی یا جادوګر یا بل څه شی؟ د غه وخت ابن صیاد په یو څادر کې ځان نغختلی ؤ. او د غه څادر نه بڼ بڼ

فَرَأَتْ أُمُّ ابْنِ صَيَّادٍ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَتَّقِي بِجُذُوعِ النَّخْلِ.

او ازونه راتلل. په دې کې د ابن صیاد مور نبی کریم ﷺ د کهجورو د بناخونو شاه پټ ناست ولیدلو.

| |
|---|
| فَقَالَتْ: أَيْ صَافُ وَهُوَ اسْمُهُ هَذَا مُحَمَّدٌ. فَتَنَاهَى ابْنُ صَيَّادٍ. |
| او وې ویل ای صاف! دا د ابن صیاد نوم ؤ. (وګوره) محمّد (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ولاړ دی. ابن صیاد بن بن او از و نه بند کړل. |
| قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَوْ تَرَكَتْهُ بَيَّنَ» . |
| رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابوٌ ته وفرمایل: که د ابن صیاد مور دا نه وی بیدار کړی نو ده به خپل حقیقت ښکاره کړی |
| قَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ: قَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي النَّاسِ |
| وی. حضرت عبد الله (ابن عمر) رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې د دېنه وروسته کله نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خلکو مخې ته د خطبې |
| فَأَثْنَى عَلَى اللهِ بِمَا هُوَ أَهْلُهُ |
| کولو لپاره ودریدلو نو اول یې د الله تعالی حمد او ثناء بیان کړه. کومه چې د هغه سره لائقه ده. بیا یې دجال |
| ثُمَّ ذَكَرَ الدَّجَّالَ فَقَالَ: «إِنِّي أُنْذِرُكُمُوهُ وَمَا مِنْ نَبِيٍّ |
| ذکر کړو او وې فرمایل: زه تاسو د دجال نه یروم، او نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ نه وروسته هیڅ نبی داسې ندی تیر شوی |
| إِلَّا وَقَدْ أَنْذَرَ قَوْمَهُ لَقَدْ أَنْذَرَ نُوحٌ قَوْمَهُ وَلَكِنِّي |
| چې هغه خپل قوم د دجال نه نه وي یرولی، او نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ هم خپل قوم د ده نه یرولی دی. لیکن تاسو ته |
| سَأَقُولُ لَكُمْ فِيهِ قَوْلًا لَمْ يَقُلْهُ نَبِيٌّ لِقَوْمِهِ |
| د دجال په اړه باندې داسې خبره او یو داسې علامت وایم چې هغه کوم بل نبی خپل قوم ته ندی ویلی، نو تاسو |
| تَعْلَمُونَ أَنَّهُ أَعْوَرُ وَأَنَّ اللهَ لَيْسَ بِأَعْوَرَ» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1] |
| پوهه شئ چې دجال به کاڼی وي او یقینًا الله تعالی کاڼی ندی. |

**توضیح**: اطم: دا د آطام جمع ده . د ماڼۍ په شان وچت ځای ته وایې. **بنی مغاله**: دی وې قبیلې نوم دی. مطلب دا چې د بنی مغاله د وچتو عمارتونو خواکې ابن صیاد د ماشومانو سره لوبې کولې. **الامیین**: ابن صیاد د امیین نه عرب مراد کړیدي. ځکه چې یهود او نصارا عربو لره په دغه نوم یادوي. به دې جواب کې د ابن صیاد چالاکې او مکارې پټه ده . هغه دا ویل غوارې چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فقط د امیانو لپاره نبی دی. عام انسانانو لپاره ندی. **فرصه**: صاد باندې شد دی. یعنې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ونیولو او هغې یې نچوړې کړو . دا لفظ **فرفضه** هم دی. چې د ترک

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۱۷۱ رقم الحديث ۳۰۵۵ ومسلم في صحيحه ۴/۲۲۴۴ رقم الحديث (۲۹۳۰-۹۵) .

په معنی دی. یعنې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ابن صیاد لنډ دلیل او سوال او جواب پریخودلو. **صادق وکاذب:** یعنې کله ریښتونې راځي، کله دروغژن راځي، مطلب دا دی چې کله ریښتونې خبر راځي او کله دروغژن خبر راځي. هم دا د کاهنانو او جادګرو نښه ده. چې شیطانان د وریځو نه د فرښتو یوه ریښتونې خبره اوریدلو باندې دهغې سره سل دروغ یو ځای کولو باندې د کاهنانو غوږونو ته رسوي. راتلونکی روایت نمبر ۲ هم په دغه توګه دی چې کله دوه دروغژن او یو ریښتونې راځي. کله دوه ریښتونې او یو دروغژن راځي. ګویا ابن صیاد باندې خپله معامله ګډه وډه وه. **خبأت لك:** یعنې ما په زړه کې دننه یوه خبره پټه کړیده، ته ووایه چې هغه څه ده؟ نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قرآن آیت ﴿يوم تَأْتِي السَّمَآءُ بِدُخَانٍ الخ:﴾ آیت تصور په زړه کې ساتلی ؤ. ابن صیاد وویل: چې تا د دخ تصور ساتلی دی. په دې کې ابن صیاد ټولې خبرې ته رسیدل ترلاسه نکړی شو، بلکې د کاهنانو په شان یې یوې نیمې خبرې ته اشاره وکړه. **اخسأ:** سپی زغلولو لپاره دا لفظ استعمالیږي، یعنې ګرې سپیه. (مرقات ۹/۴۲۵) **فلن تعدو قدرك:** یعنې ته د خپل کهانت د دکړی نه مخکی لاړ نشې. بس شیطانانو او جناتو چې څومره درته ویلي ؤ، هغومره دې وویله. ستا حیثیت خو په پټو امورو کې د یو ناقص جملې نه مخکې نشي تللی بیا ته د نبوت دعوی څنګه کوې؟ (مرقات ۹/۴۲۵)

**وهو يختل:** یعنې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په تدبیر او حیله سره د ابن صیاد د حالت معلومولو کوښښ کولو. چې په بې خبری کې د هغه څه حالت معلوم کړي. **زمزمة:** ښیدلو او غنګارې اواز ته زمزمه او رمرمه وایي. یوه نسخه کې رمرمه دی. (مرقات ۹/۴۲۶)

﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: لَقِيَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبُو بَكْرٍ

او حضرت ابو سعید خدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او

وَعُمَرُ يَعْنِي ابْنَ صَيَّادٍ فِي بَعْضِ طُرُقِ الْمَدِينَةِ

د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دې ټولو ملاقات د ابن صیاد سره په مدینې په یوه لاره کې وشو. رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَتَشْهَدُ أَنِّي رَسُولُ اللهِ؟» فَقَالَ هُوَ:

هغه ته وفرمایل چې آیا ته ګواهي ورکوې چې زه د الله تعالی رسول یم؟ ابن صیاد په جواب کې ویل چې آیا ته

أَتَشْهَدُ أَنِّي رَسُولَ اللهِ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «آمَنْتُ بِاللهِ وَمَلَائِكَتِهِ

ګواهي ورکوې چې زه د الله رسول یم؟ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: ما په الله باندې، د هغه په فرښتو باندې، د هغه

وَ كُتُبِهِ وَ رُسُلِهِ مَاذَا
کتابونو باندې او د هغه په رسولانو باندې ایمان راوړي (د دېنه وروسته نبی کریم ﷺ د هغه نه پوښتنه وکړه
تَرَى؟» قَالَ: أَرَى عَرْشًا عَلَى الْمَاءِ. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:
چې بنه ته وو ایه) ته څه ګوري؟ هغه جواب ورکړو چې زه یو تخت په اوبو باندې وینم. نبی کریم ﷺ وفرمایل
«تَرَى عَرْشَ إِبْلِيسَ عَلَى الْبَحْرِ وَمَا تَرَى؟» قَالَ:
ته د ابلیس تخت په سمندر باندې وینې. بیا ئې وفرمایل: د دېنه غیره نور څه وینې؟ ابن صیاد وویل: چې دوه
أَرَى صَادِقَيْنِ وَكَاذِبًا أَوْ كَاذِبَيْنِ وَصَادِقًا.
ریښتونې وینم او یو دروغژن وینم. یا دوه دروغژن وینم او یو ریښتونی وینم. د دېنه وروسته نبی کریم ﷺ
فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لُبِسَ عَلَيْهِ فَدَعُوهُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ [1]
وفرمایل: د ده لپاره صورت حال ګډوډ کړی شویدی. دا پریږدی. (مسلم)
﴿۲﴾ وَعَنْهُ أَنَّ ابْنَ صَيَّادٍ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
او حضرت ابو سعید خدری رضی الله عنه روایت دی چې ابن صیاد د نبی کریم ﷺ نه پوښتنه وکړه چې د جنت
عَنْ تُرْبَةِ الْجَنَّةِ. فَقَالَ: «درمكة بيضاء ومسك خالص». رَوَاهُ مُسلم [2]
خاوره څنګه ده/نو نبی کریم ﷺ وفرمایل: هغه د میدې په شان سپینه او خالص مشکو په شان خوشبوداره ده

**توضیح**: درمکة: د جعفر په وزن ده. یعنې د سبینې میده په شان خاوره ده. لکه د سپینو میده وړه چې وي. او خالص مشکو په شان خوشبوداره ده.

## ابن صیاد به د یوې غصې په نتیجه کې دجال جوړ شي

﴿۳﴾ وَعَنْ نَافِعٍ قَالَ: لَقِيَ ابْنُ عُمَرَ ابْنَ صَيَّادٍ فِي بَعْضِ طُرُقِ الْمَدِينَةِ
او حضرت نافع رحمه الله فرمایې چې د ابن عمر رضی الله عنهما ملاقات د ابن صیاد سره د مدینې په یوه لاره کې وشو
فَقَالَ لَهُ قَوْلًا أَغْضَبَهُ فَانْتَفَخَ
نو هغه ده ته یوه داسې خبره وکړه چې په دې سره هغه د غصې نه ډک شو. او د قهر او غضب نه وپړسیدلو.

---

([1]) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۴۱ رقم الحديث ۲۹۲۵-۸۷) والترمذي في السنن ۴/۴۴۸ رقم الحديث ۲۲۴۷.

([2]) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۴۳ رقم الحديث (۲۹۲۸-۹۳) وأحمد في المسند ۳/۴.

حَتّٰى مَلأَ السِّكَّةَ. فَدَخَلَ ابْنُ عُمَرَ عَلَى حَفْصَةَ

تردې چې ټوله لاره يې ونيوله. د دېنه وروسته چې کله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ام المؤمنين حضرت حفصه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا

وَقَدْ بَلَغَهَا فَقَالَتْ لَهُ: رَحِمَكَ اللهُ

خواته لاړو چې هغې ته يې د دې واقعې خبر ورسولو، نو هغې وفرمايل: ابن عمر! خداى دې په تا خپل رحمت

مَا أَرَدْتَ مِنِ ابْنِ صياد؟ أما علمت أن رَسُول الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «

نازل کړي. تا د ابن صياد نه څه غوختل، آيا تا ته معلومه نده چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي ؤ: دجال به په يوه

إِنَّمَا يَخْرُجُ مِنْ غضبةٍ يغضبها» . رَوَاهُ مُسلم[1]

خبره باندې په قهر کيدلو سره راووځي. (مسلم)

**توضيح**: د دې روايت نه معلوميږي چې حضرت حفصه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، ابن صياد د مستقبل دجال ګڼلو. چې هغه به د څه قهر او غصې د وجې نه د دجال په شکل کې راښکاره شي. هم دغه ابن صياد په واقعه حره کې په غصه کيدلو باندې ورک شويدى. او ترننه پورې ورک دى. ډيره ممکنه ده چې هم دا ورک شوى ابن صياد وروسته د دجال په شکل کې ظاهره شي. (مرقات ۹/۴۳۰)

## ابن صياد به دجال جوړيدل نه ناخوښه ګول

﴿۵﴾وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: صَحِبْتُ ابْنَ صياد إِلَى مَكَّةَ

او حضرت ابو سعيد خدرى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې زه او ابن صياد د مکې په سفر کې يو ځاى شو. هغه ما ته

فَقَالَ: مَا لَقِيتُ مِنَ النَّاسِ؟ يَزْعُمُونَ أَنِّي الدَّجَّالُ

د خپل هغه تکليف حال بيان کړو کوم چې د خلکو نه هغه ته رسيدلى ؤ. هغه وويل: چې خلک ما دجال

أَلَسْتَ سَمِعْتُ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «إِنَّهُ لَا يُولَدُ لَهُ» . وَقَدْ

ګڼي يا وايي. ابو سعيد! آيا تا د نبى کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا ندې اوريدلي چې د دجال به اولاد نوي. او حال دا دى چې

وُلِدَ لِي أَلَيْسَ قَدْ قَالَ: «هُوَ كَافِرٌ» . وَأَنَا مُسلم

زما اولاد دى. نبى کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا نه ؤ فرمايلي چې دجال به کافر وي. او حال دا دى چې زه مسلمان يم. آيا د

أَو لَيْسَ قَدْ قَالَ: «لَا يَدْخُلُ الْمَدِينَةَ وَلَا مَكَّةَ» ؟ وَقَدْ أَقْبَلْتُ مِنَ الْمَدِينَةِ

نبى کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمان ندى چې دجال به مکې او مدينې ته نشي ننوتلى. او حال دا دى چې زه د مدينې نه راروان

(۱)أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۴۶ رقم الحديث (۲۹۳۲-۹۸) وأحمد في المسند ۶/۲۸۳.

وَأَنَا أُرِيدُ مَكَّةَ. ثُمَّ قَالَ لِي فِي آخِرِ قَوْلِهِ:
یم او مکې ته روان یم. ابو سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې ابن صیاد ماته آخري خبره دا وکړه چې یاد ساته!

أَمَا وَاللهِ إِنِّي لَأَعْلَمُ مَوْلِدَهُ وَمَكَانَهُ
په خدای قسم د دجال د پیدائښت پیژنم، او د هغه خای هم پیژنم. او په دې هم پوهیږم چې هغه چیرته دی؟

وَأَيْنَ هُوَ وَأَعْرِفُ أَبَاهُ وَأُمَّهُ قَالَ:
او د هغه مور پلار هم پیژنم. ابو سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې د ابن صیاد دا خبرې اوریدلو باندې زه په شک

فَلَبَسَنِي قَالَ: قُلْتُ لَهُ: تَبًّا لَكَ سَائِرَ الْيَوْمِ. قَالَ: وَقِيلَ لَهُ:
کې شوم. ما وویل: ته د همیشه لپاره هلاک شې! ابو سعید رضی الله عنه فرمایي: چې د غه وخت په موجود خلکو

أَيَسُرُّكَ أَنَّكَ ذَاكَ الرَّجُلُ؟ قَالَ:
کې چا ابن صیاد ته وویل چې آیا تا ته دا معلومه ده چې ته به خپله دجال شې. ابو سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې

فَقَالَ: لَوْ عُرِضَ
هغه جواب ورکړو چې هو! که د خلکو بې لارې کولو، په دهوکه کې اچولو او جادو وغیره هغه ټول شیان ماته راکړی شي،

عَلَيَّ مَا كَرِهْتُ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1]
چې په دجال کې دي، نو بد به یې نه ګڼم.

﴿٦﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: لَقِيتُهُ وَقَدْ
او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې، زما ملاقات د ابن صیاد سره وشو. د غه وخت د هغه سترګه پوچه

نَفَرَتْ عَيْنُهُ فَقُلْتُ: مَتَى فَعَلَتْ عَيْنُكَ مَا أَرَى؟ قَالَ:
شوې وه. ما پوښتنه وکړه: چې ستا په سترګه کې چې څه زه وینم، دا د کوم وخت نه دي؟ هغه جواب راکړو

لَا أَدْرِي. قُلْتُ: لَا تَدْرِي وَهِيَ فِي رَأْسِكَ؟
چې زه نه پوهیږم چې د کوم وخت نه دي. ما وویل: تا ته معلومه نه ده، حالانکې سترګه ستا په سر کې ده.

قَالَ: إِنْ شَاءَ اللهُ خَلَقَهَا فِي عَصَاكَ. قَالَ:
هغه وویل که خدای وغواړي نو سترګه به ستا په همسا کې پیدا کړي. ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې

---

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۴۲ رقم الحديث ۲۹۲۷-۸۹) واحمد في المسند ۳/۲۶)

فَنَخَرَ كَأَشَدِّ نَخِيرِ حِمَارٍ سَمِعْتَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1]

ابن صياد د خپلې پوزې نه د خر د ومره سخت اواز راوويستلو چې هغه کله هم نهٔ اوريدلی. (مسلم)

## د ابن صياد په دجال کيدلو باندې ابن جابر رضي الله عنه قسم خوري

﴿۷﴾ وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ قَالَ: رَأَيْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللهِ

او حضرت محمد بن المنکدر تابعي فرمايې چې ما حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه ليدلی: هغه به په

يَحْلِفُ بِاللهِ أَنَّ ابْنَ الصَّيَّادِ الدَّجَّالُ. قُلْتُ: تَحْلِفُ بِاللهِ؟ قَالَ:

قسم خوړلو سره ويل چې ابن صياد دجال دی. ما هغه ته وويل چې ته د الله قسم خوري! هغه وفرمايل چې

إِنِّي سَمِعْتُ عُمَرَ يَحْلِفُ عَلَى ذٰلِكَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ما د عمر فاروق رضي الله عنه نه اوريدلي دي، هغه به په دې خبره باندې د نبی کريم صلى الله عليه وسلم مخې ته قسم خوړلو

فَلَمْ يُنْكِرْهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[2]

چې ابن صياد دجال دی. او نبی کريم صلى الله عليه وسلم د هغې نه انکار نهٔ کړی.

# الْفَصْلُ الثَّانِي

## د حضرت ابن عمر رضي الله عنه په نزد باندې ابن صياد دجال وُ

﴿۸﴾ عَنْ نَافِعٍ قَالَ: كَانَ ابْنُ عُمَرَ يَقُولُ: وَاللهِ

حضرت نافع رحمه الله فرمايې چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه به فرمايل چې په خدای قسم زما به دې کې

مَا أَشُكُّ أَنَّ الْمَسِيحَ الدَّجَّالَ ابْنُ صَيَّادٍ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي «كِتَابِ الْبَعْثِ وَالنُّشُورِ»[3]

هيڅ شک نشته چې مسيح دجال ابن صياد دی. (روايت کړې دې ابو داود او بيهقي په کتاب البعث والنشور کې

## په واقعه حره کې ابن صياد ورک شو

﴿۹﴾ وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَدْ فَقَدْنَا ابْنَ صَيَّادٍ يَوْمَ الْحَرَّةِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[4]

او حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي چې مونږ د واقعه حره په ورځ باندې ابن صياد ورک کړی وُ. (ابوداؤد)

---

(1) أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۴۶ رقم الحديث (۲۹۳۲-۹۹)

(2) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳/۳۲۳ رقم الحديث ۷۳۵۵ ومسلم في صحيحه ۴/۲۲۴۳ رقم الحديث ۲۹۲۹-۹۴)

(3) أخرجه أبوداود في السنن ۴/۵۰۶ رقم الحديث ۴۳۳۰.

(4) أخرجه أبوداود في السنن ۴/۵۰۶ رقم الحديث ۴۳۳۲.

**توضیح**:**یوم الحرة**: واقعه کربلا کې شهادت حسین رضی الله عنه نه وروسته یزید شامې فوځیانو ته حکم وکړو چې مدینه منوره باندې برید وکړئ ځکه چې هغه خلک زما د بیعت نه انکار کوي. شامي فوځیانو سخت برید وکړو. د مدینې خلکو کلکه مقابله وکړه خو شامي فوځیان غالبه شول. او هغوې درې ورځې مدینه لوټ کړه او د ښځو بې عزتې یې وکړه. درې ورځو پورې مسجد نبوې کې آذان نه ؤ شوی. مدینه منوره باندې تورتم خپور شوی ؤ. لس زره انسانان وژلی شوي ؤ، یوم حره هم داده. به دې ورځ باندې ابن صیاد ورک شوی دی. (مرقات ۹/۴۳۴)

## د دجال ټول صفتونه په ابن صیاد کې ؤ

﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: «يَمْكُثُ أَبُو الدَّجَّالِ ثَلَاثِينَ عَامًا

او حضرت ابو بکره رضی الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د دجال مور پلار به دیرش کاله په دې حالت

لَا يُولَدُ لَهُمَا وَلَدٌ ثُمَّ يُولَدُ لَهُمَا غُلَامٌ أَعْوَرُ أَضْرَسُ

کې تیر کړي چې د هغوې به اولاد نه کیږي. بیا به د هغوې یو هلک وشي. چې د غټو غاښونو والا یعنې داړور

وَ أَقَلُّهُ مَنْفَعَةً تَنَامُ عَيْنَاهُ وَلَا يَنَامُ قَلْبُهُ » .

به وي. هغه به ډیر کم فائده ورکونکی وي. د هغه دواړه سترګې به اودې کیږي، خو د هغه زړه به نه اوده

ثُمَّ نَعَتَ لَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبَوَيْهِ فَقَالَ: «أَبُوهُ

کیږي. د دېنه وروسته نبی کریم صلی الله علیه وسلم مونږ ته د هغه د مور پلار حال بیان کړو او وې فرمایل: د هغه پلار به ډیر

طُوَالٌ ضَرْبُ اللَّحْمِ كَأَنَّ أَنْفَهُ مِنْقَارٌ

اوږد او د لږې غوښې والا یعنې خوار به وي. د هغه پوزه به د چرګ د مکوخې په شان وي. او د هغه مور به

وَأُمُّهُ امْرَأَةٌ فِرْضَاخِيَّةٌ طَوِيلَةُ الْيَدَيْنِ» . فَقَالَ أَبُو بَكْرَةَ: فَسَمِعْنَا

لنډې پلنه او د اوږدو لاسونو ښځه وي. ابو بکره رضی الله عنه فرمایي: چې مونږ په مدینه کې د یو یهودي

بِمَوْلُودٍ فِي الْيَهُودِ. فَذَهَبْتُ أَنَا وَالزُّبَيْرُ بْنُ الْعَوَّامِ

هلک د شتون واوریدل. نو زه او زبیر ابن العوام رضی الله عنه د هغه کتلو لپاره لاړو. کله چې مونږ د هغه د

حَتَّى دَخَلْنَا عَلَى أَبَوَيْهِ فَإِذَا نَعْتُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

مور پلار خواته ورسیدلو، نو څه ګورو چې دا ییخې هغه شان دی لکه څنګه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ ته د هغوې

فِيهِمَا فَقُلْنَا هَلْ لَكُمَا وَلَدٌ؟ فَقَالَا: مَكَثْنَا ثَلَاثِينَ

په اړه باندې بیان کړې ؤ. مونږ دواړو د هغه نه پوښتنه وکړه چې آیا ستا ځوې شته؟ هغه وویل: چې مونږ دیرش

عَامًا لَا يُولَدُ لَنَا وَلَدٌ ثُمَّ وُلِدَ لَنَا غُلَامٌ أَعْوَرُ أَضْرَسُ

کاله په دې حالت کې تیر کړل چې زمونږ ځوې نه ؤ. بیا زمونږ په کور کې یو هلک پیدا شو. چې د غتو غاښونو

وَأَقَلُّهُ مَنْفَعَةً تَنَامُ عَيْنَاهُ وَلَا يَنَامُ قَلْبُهُ قَالَ

والا او ډیره کمه فائده ورکونکی دی. د هغه سترګې اودې کیږي خو د هغه زړه نه اوده کیږي. ابوبکره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي

فَخَرَجْنَا مِنْ عِنْدِهِمَا فَإِذَا هُوَ مجندل فِي الشَّمْسِ

چې مونږ دواړه د هغه ځاې نه لاړو، او بیا ناڅاپه زمونږ نظر په هغه هلک باندې ولګیدلو. چې لمر

فِي قَطِيفَةٍ وَلَهُ هَمْهَمَةٌ

ته پروت په ځان یې څادر راخپور کړې ؤ. او د هغه نه د بنیدلو اواز و نه راتلل. چې په پوهه کې نه راتلل. هغه د

فَكَشَفَ عَنْ رَأْسِه فَقَالَ: مَا قلتما: وَهَلْ سَمِعْتَ مَا قُلْنَا؟

سر نه څادر وچتولو باندې زمونږ نه پوښتنه وکړه چې تاسو ویلې دي؟ مونږ وویل چې آیا تا زمونږ خبرې

قَالَ: نَعَمْ تَنَامُ عَيْنَايَ وَلَا ينام قلبي رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[1]

واوریدلې؟ هغه وویل: هو! زما سترګې اودې کیږي، لیکن زما زړه نه اوده کیږي.

**توضیح:** طُوال: د طویل مبالغه، واؤ باندې شد ډیر مشهور دی. بغیر د شد نه هم دی. طاء باندې ضمه دہ. ضرب: یعنې د خوار بدن سړی ؤ، بدن یې څرب نه ؤ. **فرضاخیة:** د کومې ښځې بدن چې ډیر څرب او سینې یې غټې او زوړندې وي، هغې ته امرأة فرضاخیة وایې. د دې حدیث نه په واضحه توګه باندې معلومیږي چې: د دجال ټول صفتونه په ابن صیاد کې ؤ. بیا هیڅ وجه نشته چې ابن صیاد دې د مستقبل د دجال نه وي. (مرقات ۹/۴۳۵)

## نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره به همیشه خطره وه چې چیرته ابن صیاد دجال نه یې

﴿۱۱﴾ وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ امْرَأَةً مِنَ الْيَهُودِ بِالْمَدِينَةِ وَلَدَتْ غُلَامًا

او د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې په مدینه کې د یوې یهودي ښځې یو ځوې پیدا شوې ؤ.

[1] اخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۴۹ رقم الحديث ۲۲۳۸ واحمد في المسند ۵/۴.

مَمْسُوحَةٌ عَيْنُهُ طَالِعَةٌ نَابُهُ فَأَشْفَقَ رَسُول الله صلى الله عَلَيْهِ وَسلم

چې د هغه ستر که ورانه شوي او هواره وه. او د هغه غاښونه بيرون راوتلي. رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ويريدلو چې هسې نه دا

إِن يَكُونَ الدَّجَّالَ فَوَجَدَهُ تَحْتَ قَطِيفَةٍ يُهَمْهِمُ.

دجال وي. نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ديو څادر لاندې پروت وموندلو. دغه وخت هغه څه په قلار قلار خبرې کولې.

فَآذَنَتْهُ أُمُّهُ فَقَالَتْ: يَا عَبْدَ الله هَذَا أَبُو الْقَاسِمِ

چې د هغې مطلب په پوهه کې نه راتللو. د هغه مور وويل: عبد الله (يعني ابن صياد) دا ابو القاسم (محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ)

فَخَرَجَ مِنَ الْقَطِيفَةِ فَقَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا لَهَا قَاتَلَهَا الله؟

ولاړ دی. هغه د څادر نه بيرون راوتلو. رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: دې ښځې څه وکړل: خدای دې دا هلاکه کړي

لَوْ تَرَكَتْهُ لَبَيَّنَ"

که هغې دا په خپل حال پريخی وی، نو يقيناً دجال به خپل حالت ښکاره کړی وی. د دې نه وروسته حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

فَذَكَرَ مِثْلَ مَعْنَى حَدِيثِ ابْنِ عُمَرَ

يا راوی د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د (د دې) حديث په مطابق بيان کړل چې هغه د باب په شروع کې بيان

فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ ائْذَنْ لِي يَا رَسُولَ الله فَأَقْتُلَهُ

شويدی. نو حضرت ابن عمر بن الخطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې يا رسول الله! ته اجازت راکړه نو زه به دا ووژنم.

فَقَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِن يكن هُوَ فَلَيْسَتْ صَاحِبَه

نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: که دا (ابن صياد) هغه دجال وي نو ته د دې قاتل نشې کيدلی، بلکې د

إِنَّمَا صَاحِبُهُ عِيسَى بْنُ مَرْيَمَ وَإِلَّا يكن هُوَ فَلَيْسَ لَك أَتقتل رَجُلًا

د دې قاتل به عيسى ابن مريم عَلَيْهِ السَّلَامُ وي. او که دا دجال نوي نو ستا ديو داسې سړې د وژلو حق نشته

مِنْ أَهْلِ الْعَهْدِ» . فَلَمْ يَزَلْ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُشْفِقًا

چې هغه په اهل ذمه کې دی. د دېنه وروسته رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د خپل امت په اړه هر وخت دا يره ساتله چې

أَنَّهُ هُوَ الدَّجَّالَ. رَوَاهُ فِي شرح السّنة وَهَذَا الْبَابُ خَالٍ عَنِ الْفَصْلِ الثَّالِثِ[1]

هسې نه ابن صياد دجال وي. (روايت کړی دی شرح السنة او دا باب د فصل ثالث نه خالی دی)

---

([1]) أخرجه البغوي في شرح السنة ۱۵/۷۸ رقم الحديث ۴۲۷۴. وأحمد في المسند ۳/۳۶۸.

# بَابُ نزُولِ عِيسَى عَلَيْهِ السَّلَام

## حضرت عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ د نزول بیان

قال الله تعالی: ﴿وَإِنَّهُ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ﴾(الزخرف:۶۱)

حضرت عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ د الله تعالی غوره پیغمبر ؤ یهود دهغه د ځان دښمنان شوي ؤ.حضرت جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَامُ به همیشه د حضرت عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ سره ؤ.یو ځل یهودو هغه وژل وغوختل . هغه په یو کور کې پټ شو. عیسایانو د هغه نه ساتنه ونکړه. بلکې څه عیسایانو د دیرش روپو په بدل کې د هغه جاسوسي وکړه. او یهودو ته یې دهغه ځاي وښودلو. یهودو د دغه کور نه تاؤ شول. او یو بدبخته یې دننه ولیږلو. دې لپاره چې حضرت عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ شهید کړي. حضرت جبرائي ل عَلَيْهِ السَّلَامُ الله تعالی په حکم باندې حضرت عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ د هغه کور په چهت باندې وویستلو. او پاس آسمانونو ته یې بوتللو. په کور کې د حضرت عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ صورت په دغه سړي باندې کیخودلی شو. کوم چې دننه ؤ. نو کله چې هغه بیرون راووتلو نو یهودو هغه عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ ګڼلو باندې ووژلو.وس د هغوې شک پیدا شو که دا مقتول عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ وي نو زمونږ سړی څه شو. او که دا زمونږ سړی وي نو عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ چیرته لاړو. عیسایان او یهود ترننه پورې د تذبذب خکار دي او هیڅ فیصله نشي کولی. د مسلمانانو اجماعي عقیده ده چې حضرت عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ الله تعالی اسمانانو ته بوتللی دی. او هلته ورکې د فرښتو صفات اچولی شویدي.لهذا هغه د بشریت د لوازماتو نه پاک دی. نه خوراک، نه څکاک، نه واړه بول، نه غټ بول، نه ګرمې، نه یخنې، بلکې هغه په دویم آسمان کې د فرښتو سره وسیږي. اود قیامت په رانژدې کیدو باندې به هغه د آسمان نه خکته راکوزیږي د دمشق د جامع مسجد د مینارې په مشرقي اړخ به راکوزیږي.اوس لاندې راکوزیدو لپاره الله تعالی اسباب پیدا کړیدي. دنیا دارالاسباب ده . ځکه به حضرت عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ پوړی(اندرپایه) راوغواړي او پوړی ایږدلو باندې به لاندې راکوز شي.د جمعې ورځ به وي، مازیګر لمونځ به تیار وي. حضرت مهدی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به په انتظار کې وي. ده ته به د لمونځ کولو ووایې . عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ به جواب ورکړي چې نه! لمونځ ته خپله ورکړه، ځکه چې ته د دې امت امام یې. زه د یو خاص کار یعنې د دجال وژنې لپاره راغلی یم.بهرحال حضرت عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ راکوزیدل د اسلام اساسي عقیده ده . د دې انکار کونکی ګمراه کیږي. ځینې کافر یعنې قادیانیان او ځینې نور روشن خیاله د نزول عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ نه انکار کوي.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## په خدای قسم حضرت عیسی عَلَیْهِ السَّلَامُ به خامخا راکوزیږي

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «وَالَّذِي |
| حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: قسم دی په هغه ذات باندې چې د چا په |
| نَفْسِي بِيَدِهِ لَيُوشِكَنَّ أَن يَنزِلَ فِيكُم ابْنُ مَرْيَمَ حَكَماً عَدْلًا |
| لاس کې زما ځان دی، یقینًا عیسی ابن مریم به ستاسو مینځ کې راکوزیږي چې هغه به یو عادل حاکم وي. |
| فَيَكْسِرُ الصَّلِيبَ وَيَقْتُلُ الْخِنْزِيرَ وَيَضَعُ الْجِزْيَةَ وَيَفِيضُ الْمَالُ |
| هغه به صلیب ماتوي. خنزیر به ووژني. جزیه به ختمه کړي. مال دولت به ډیر شي. تردې چې د یو څوک به |
| حَتَّى لَا يَقْبَلَهُ أَحَدٌ حَتَّى تكون السَّجْدَةُ الْوَاحِدَةُ خيرامن الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا». |
| د دې خوښونکی نه وي. او هغه وخت به یوه سجده د دنیا او د دنیا د ټولو شیانو نه غوره وي. حضرت |
| ثُمَّ يَقُولُ أَبُو هُرَيْرَةَ: فاقرؤا إِن شِئْتُم |
| ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به فرمایل که تاسو په دې خبره کې شک شبه ساتئ او دلیل ترلاسه کول غواړئ، نو دا آیت |
| ﴿وَإِن مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ |
| ولولئ ﴿وَإِن مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ﴾ یعني هیڅ اهل کتاب به داسې پاتې نشي چې هغه به د |
| إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ﴾ الآيَة. مُتَّفق عَلَيْهِ[1] |
| حضرت عیسی عَلَیْهِ السَّلَامُ د مرګ نه مخکې په هغه باندې ایمان رانه وړي. |

**توضیح: حکماً عدلًا: ای حاکماً عادلًا. فیکسر الصلیب،** صلیب په اصل کې د دوه مثلث لرګو نوم دی. د جمع په شکل وی. چې په هغې سره عیسایان دا ظاهروي چې حضرت عیسی عَلَیْهِ السَّلَامُ یهود په سولۍ زوړند کړی ؤ. بیا الله تعالی هغه ژوندی کړو او آسمان ته یې وچت کړو. د عیسایانو په نزد باندې صلیب انتهایي مقدس نښان دی، بلکې هغوی د دې عبادت کوي. په څینو ځایونو کې په دې کې د حضرت عیسی عَلَیْهِ السَّلَامُ تصویر هم لګیدلی ښکاري. دا د عیسایانو په نزد باندې د احترام وړ عمل دی. تعجب خو په دې دی چې په کوم صلیب باندې حضرت عیسی عَلَیْهِ السَّلَامُ په سولۍ کړی شو، عیسایانو د هغه سولۍ (یعني پهانسۍ ګهاټ) سره مینه کوي. او هغه مقدس ګڼي .دا خو د

---

([1])اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۴۹۰ رقم الحديث ۳۴۴۸ ومسلم في صحيحه ۱/۱۳۵ رقم الحديث ۱۵۵-۲۴۲.

کرکې (نفرت) ورې شی دی. بل خوا د عیسایانو لپاره د شرم نه ډکه خبره ده چې هغوې حضرت عیسی عَلَیْهِ السَّلَامُ بی مرستې پریخودلی ؤ. بلکې په جاسوسې کولو باندې یې په دیرش (۳۰) روپۍ خرڅ کړی ؤ. حضرت عیسی عَلَیْهِ السَّلَامُ به هم د دغه غلطې عقیدې د وجې نه صلیب مات کړي. مطلب دا چې هغه به عیسائیت لره باطل وګرځوي. او شریعت محمدي به واجب الاطاعت وګرځوي. د عیسائیت علامات او احکامات به ختم کړي. **الخنزیر**: یعنې خنزیر به ووژني، خنزیر هم د عیسایانو په نزد د هغوې محبوب حیوان دی. او محبوبه غذا یې ده. د دې په وژلو سره مقصود دا دی چې دا حرام دی، د دې ساتنه او د دې غوښه خوړل حرام دي. دا قابل احترام ځناور ندی. بلکې د نفرت وړ او واجب القتل ځناور دی.

**الجزیة**: په کتاب الجهاد کې د جزیه (ټیکس) تفصیل ذکر شویدی حضرت عیسی عَلَیْهِ السَّلَامُ به د مجدد په توګه باندې راځي. هغه به د دین اسلام هیڅ یو حکم نشي موقوف کولی. د جزیه د ختمولو مطلب دا دی چې د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حکم مطابق به هغه جزیه ختمه کړي. ګویا دا په انتهاء د حکم په وجه د انتهاء د علت وي. ځکه چې کله یو کافر ژوندی پریخودل او هغه ته امن ورکول په بند شي. فقط مسلمان به پاتې کیږي. هیڅوک به کافر نوي. څوک چې جزیه ادا کوینو جزیه به خپله ختمه شي. هغه وخت یا اسلام او یا د مرګ قاعده به جاري وي. بهرحال دا به د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د یو حکم نافذول وي. چې د حضرت عیسی عَلَیْهِ السَّلَامُ په لاس به کیږي. (مرقات۹/۴۳۸)

**القلاص**: ځوانې اوښې مراد دي. په عربۍ کې ځوانې اوښو ته قلاص وایې.

**فلا یسعٰی علیها**: یعنې خلک به داسې مستغنې او خوشحال وي چې د غه شان محبوب شي ته به هم توجه نکوي. (مرقات۹/۴۳۹)

**السجدة الواحدة**: یعنې داسې سکون او امن به وي، چې خلک به په طبعي توګه باندې د عبادتونو سره مینه ساتي په شوق او خوند باندې به عبادت کوي په سجدو او لمونځونو کې به دومره خوند وي چې د دنیا او مافیهانه به یوه سجده ډیره غوره ګڼلی کیږي. د دېنه وروسته حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا آیت د استدلال په توګه وویل: ﴿وَإِنْ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ﴾ (النساء:۱۵۹) د آیت مطلب دا دی په آخره زمانه کې کله د حضرت عیسی عَلَیْهِ السَّلَامُ نزول وشي نو د دنیا ټول انسانان به په یو مذهب اسلام باندې راغونډ شي، هیڅ کافر به په کفر باندې پاتې ونه ساتلی شي. نو هغه وخت به اهل کتاب یعنې یهود او نصاری ټول خلک په حضرت عیسی باندې ایمان راوړي. او هغه عقیده به خپله کړي کومه چې مسلمانانو ته اسلام ورکړیده. په دغه زمانه کې موجود څوک یهودي وي، یا نصرانې وي نو هغه به د حضرت عیسی عَلَیْهِ السَّلَامُ د وفات نه مخکې مخکې دین حق ته راځي. د

آیت د تفسیر مطابق **موته** کې ضمیر حضرت عیسی عَلَیْهِ السَّلَامُ ته به راګرځي. حضرت ابو هریره رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ ددې تفسیر د لاندې د آیت حواله ورکړیده. او د اهل کتاب نه مراد دهغه زمانې موجود اهل کتاب به وي. د آیت دویم تفسیر دا دی چې د **موته** ضمیر د حضرت عیسی عَلَیْهِ السَّلَامُ په ځای باندې د اهل کتابو هر فرد ته راجع شي مطلب به دا وي چې د اهل کتابو هر فرد به د خپل مرګ په وخت کې د نزع په حالت کې تکوینې توګه باندې په حضرت عیسی عَلَیْهِ السَّلَامُ باندې ایمان راوړي خو دغه وخت به د هغه د ایمان اعتبار نه وي، لهذا هغه به دوزخ ته ځي. ځکه چ د نزع په حالت کې چې کله د آخرت د یو شي مشاهده کیږي نو بیا د ایمان بالغیب زمانه ختمه شي، او داسې ایمان معتبر ندی. (مرقات ۹/۴۳۹)

## حضرت عیسی عَلَیْهِ السَّلَامُ د زمانې برکتونه

﴿۲﴾ وَعنهُ قال: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «وَالله لَيَنْزِلَنَّ ابْنُ مَرْيَمَ

او حضرت ابو هریره رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایې چې رسول الله صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: په خدای قسم حضرت عیسی بن مریم

حَكَمًا عَادِلًا فَلَيَكْسِرَنَّ الصَّلِيبَ وَلَيَقْتُلَنَّ الْخِنْزِيرَ

به په داسې حالت کې نازلیږي چې هغه به یو عادل حاکم وي، صلیب به ماتوي، سور (خنزیر) به وژني،

وَلَيَضَعَنَّ الْجِزْيَةَ وَلَيَتْرُكَنَّ الْقِلَاصَ فَلَا يُسْعَى عَلَيْهَا

جزیه به ختمه وي. او خوانې اوښې به پریخودلی شي چې د هغوی نه به د سپرلی او بار وړلو کار نه اخستلی

ولتذهبن الشحناء وَالتَّحَاسُدُ

کیږي. او یقینًا د خلکو د زړونو نه به کینه ؤ بغض او حسد ځي. او یقینًا حضرت عیسی عَلَیْهِ السَّلَامُ به خلک

وَلَيَدْعُوَنَّ إِلَى الْمَالِ فَلَا يَقْبَلُهُ أَحَدٌ» . رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

د مال دولت ورکولو لپاره راغواړي، لیکن هیڅوک به مال دولت اخستلو والا نوي (مسلم) او د بخاری او

وَفِي رِوَايَةٍ لَهُمَا قَالَ: «كَيْفَ أَنْتُمْ

مسلم په یو روایت کې دا دي چې نبی کریم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: هغه وخت به ستاسو څه حالت وي، چې

إِذَا نَزَلَ ابْنُ مَرْيَمَ فِيكُمْ وَ إِمَامُكُمْ مِنْكُم».[1]

حضرت حضرت عیسی ابن مریم عَلَیْهِ السَّلَامُ ستاسو په مینځ کې راکوز شي او ستاسو امام ستاسو نه وي.

---

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۴۹۱ رقم الحديث ۳۴۴۹ ومسلم في صحيحه ۱/۱۳۵ رقم الحديث ۲۴۳/۱۵۲.

**توضیح:** القلاص: ځواني اوښو ته قلاص وايي. دا د عربو خوښ مال دی.

**فلا یُسعٰی علیها:** یعنې دغه ځوانې اوښې به پریخودلی شي، په هغوې باندې به د سپرلی او بار وړلو کار پریخودلی شي، خلک به د اسې د مال نه مستغنې شي، چې دې محبوب مال ته به هم نګوري.

**الشحناء:** بغض او کینې ته شحناء وايي. یعنې د ددنیا مینه به ختمه شي، نو د دې نه پیدا شوې ناروغی مثلًا کینه او بغض او حسد او دښمنې به هم ختمه شي. (مرقات ۹/۴۳۹)

**وامامکم منکم:** یعنې خلیفه مهدی به وي ځکه چې عمومي امامت به د اول نه د هغه په لاس کې وي. دا به د دې امت د اعزاز په توګه باندې وي. حضرت مهدی نه به وروسته حضرت عیسی عَلَیۡہِ السَّلَامُ وي. (مرقات ۹/۴۴۰)

## جهاد به جاري وي

| |
|---|
| ﴿۲﴾وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تَزَالُ طَائِفَةٌ مِنْ أُمَّتِي |
| او حضرت جابر رضی الله عنه فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: زما د امت نه به همیشه یو جماعت |
| يُقَاتِلُونَ عَلَى الْحَقِّ ظَاهِرِينَ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ». قَالَ: |
| د حق لپاره جنګیږي. چې هغه به غالبه کیږي. ترقیامته پورې به دا لړی جاري وي. بیا نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: |
| "فَيَنزِل عِيسَى بن مَرْيَمَ فَيَقُولُ أَمِيرُهُمْ: |
| کله چې حضرت عیسی عَلَیۡہِ السَّلَامُ راکوز شي نو د امت امیر (یعنې امام مهدی) به حضرت عیسی عَلَیۡہِ السَّلَامُ ته و وايي چې |
| تَعَالَ صَلِّ لَنَا فَيَقُولُ: لَا إِنَّ بَعْضَكُمْ |
| راشه لمونځ ورکړه. لیکن حضرت عیسی عَلَیۡہِ السَّلَامُ به جواب ورکړي چې زه امامت نکوم او بیشکه په تاسو |
| عَلَى بَعْضٍ أُمَرَاءُ تَكْرِمَةَ اللهِ هَذِهِ الْأُمة ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ وَهَذَا الْبَابُ خَالٍ عَنِ الْفَصْلِ الثَّانِي[1] |
| کې ځینې خلک ځینو باندې امامان او امیران دي. په دې وجه چې الله تعالی دا امت محمدیه غوره ګرځولی دی |

## الْفَصْلُ الثَّالِث

### حضرت عیسی عَلَیۡہِ السَّلَامُ به د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ په خوا کې دفن کیږي

| |
|---|
| ﴿۳﴾عَن عبد الله بن عَمْرو قَال: قَال رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَنْزِلُ عِيسَى بن مَرْيَمَ |
| حضرت عبد الله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنۡهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: حضرت عیسی ابن مریم عَلَیۡہِ السَّلَامُ |

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۱۳۷ رقم الحديث (۱۵۶-۲۴۷) واخرجه ابوداود في السنن ۳/۱۱ رقم الحديث ۲۴۸۴.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِلَى | الْأَرْضِ | فَيَتَزَوَّجُ | وَيُولَدُ | لَهُ | وَيَمْكُثُ |
| به زمکې ته راکوزېږي نو دوه نکاحونه به کوي. او د هغوی اولاد به وي. د هغه د وخت تیرولو زمانه به | | | | | |

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| خَمْسًا | وَأَرْبَعِينَ | سَنَةً | ثُمَّ | يَمُوتُ | فَيُدْفَنُ | مَعِي | فِي | قَبْرِي |
| پنځه څلویښت (۴۵) کاله وي. بیا به هغه وفات شي. او هغه به زما قبر یعنې زما په مقبره کې به زما سره خوا | | | | | | | | |

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَأَقُومُ | أَنَا | وَعِيسَى | بن | مَرْيَمَ | فِي | قَبْرٍ | وَاحِدٍ | بَيْنَ | أَبِي | بَكْرٍ |
| کې خخ شي. (د قیامت په ورځ به) زه او حضرت او عیسی ابن مریم عَلَيْهِ السَّلَامُ د یوې مقبرې نه د ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ | | | | | | | | | | |

| |
|---|
| وَعُمَرَ». رَوَاهُ ابْنُ الْجَوْزِيِّ فِي كِتَابِ الْوَفَاءِ[1] |
| او عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مینځ کې راپاڅیږو. (کتاب الوفاء) |

**توضیح: سوال: خمسا واربعین:** دا روایت د هغه روایت سره معارض او مخالف دی چې په هغې کې ذکر دي چې حضرت عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ د ۳۳ کاله په عمر باندې آسمان ته وچت کړی شو. او د نزول نه وروسته به اووه کاله په زمکه باندې حکومت کوي. د دېنه د هغه ټول عمر څلویښت کاله معلومیږي، او په زیر بحث روایت کې د هغه ټول عمر ۴۵ کاله ویلی شویدی؟

**جواب:** ددې سوال جواب دا چې چیرته د ۴۰ کالو ذکر راغلی دی، هلته د پنځه کاله کسر پریخودلی شویدی دعمر اصل مدت پنځه څلویښت (۴۵) کاله دی عرب اکثرکسر نه ذکرکوي اولسیزي (دهائي) بیانوي. (مرقات ۹/۴۴۲)

**معی في قبری:** یعنې زما سره به زما په مقبره کې مدفون وي. د دې ځای نه مراد د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا هغه کور دی چې هلته نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، حضرت ابوبکرصدیق او حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دفن دي. حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا تواضعًا وصیت کړی وُچې ما په عام قبرستان کې دفن کړی، دا ځای پریږدی. بیا حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دغه ځای کې د خخیدلو کوښښ وکړوو خو په دې ځای کې دفن کیدو کې هغه کامیاب نه شو، لهذا دقبر داځای خالي دی او حضرت عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ به دا ډکوي. (مرقات ۹/۴۴۲)



[1] رواه ابن الجوزي في كتاب الوفاء.

# بَابُ قُرْبِ السَّاعَةِ وَأَنَّ مَنْ مَاتَ فَقَدْ قَامَتْ قِيَامَته

## د قرب قیامت بیان

**قال الله تعالی: ﴿اِقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ﴾ (القمر:۱)**

یو قیامت کبری دی ، هغه د دې دنیا مرګ دی چې زمکه ، آسمان، فرښتي، پیریان او انسانان او ځناور به ټول مړه شي. ﴿وَيَبْقٰى وَجْهُ رَبِّكَ ذُوالْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ﴾ دویم قیامت وسطی دی هغه دا دی چې په زمکه باندې د وسیدونکو موجوده انسانانو دا مخصوص دور به ختم شي. لکه د صحابه کرامو رضی الله عنهم دورختم شو، نو د برکاتو دور ختم شو. دا یو قسم قیامت دی چې د وسطیٰ وخت لپاره ؤ. دریم قیامت صغریٰ دی. هغه دا دی چې د هر سړي مرګ کله راشي نو دهغه قیامت قائم شو. دا ذاتي او شخصي قیامت دی. ګویا یو د عالم اکبر مرګ دی لکه زمکه ، آسمان، او غرونو نه به ساه ووځي. دا قیامت کبری دی. دویم د عالم صغری مرګ دی. دا د هر سړي خپل ذاتي او شخصی مرګ دی. لکه په حدیث کې دي چې: **من مات فقد قامت قیامته** .

په ذکرشوي باب کې قیامت کبری او قیامت صغری د دواړو بیان به وي. بلکې حدیث نمبر: ۴ کې د قیامت وسطیٰ بیان هم دی. لهذا په دې باب کې د دې درې واړو قسمونو قیامت بیان به وي. (مرقات ۹/۴۴۳)

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّل

## قیامت ډیر نژدې دی

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَن شعبةَ عَن قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| حضرت شعبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او هغه د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت کوي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| « بُعِثْتُ أَنَا وَ السَّاعَةُ كَهَاتَيْنِ ». قَالَ شُعْبَةُ : |
| وفرمایل: زه او قیامت د دې دوه ګوتو په شان رالیږلی شوي یو . حضرت شعبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایې چې ما د |
| وَ سَمِعْتُ قَتَادَةَ يَقُولُ فِي قَصَصِهِ كفصل إِحْدَاهُمَا |
| حضرت قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اوریدلي دي. هغه په خپل وعظ کې وویل چې لکه څنګه چې په دې دوه ګوتو کې یوه |
| عَلَى الْأُخْرَى فَلَا أَدْرِي |
| ګوته د بلې نه اوږده شویده، بهرحال (شعبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایې چې) ماته معلومه نده چې دا مراد حضرت قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |

| أَذْكَرَهُ عَنْ أَنس أَوْ قَالَه قَتَادَة ؟ مُتَّفق عَلَيْهِ [1] |
|---|
| خپله بيان کړو او که هغه د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اوريدلي ؤ. |

**توضيح**: کهاتين: يعنې د شهادت ګوته او مينځنۍ ګوته چې کله يو ځای کړی شي نو دواړه بر... شي، فقط د مينځنۍ ګوتې سر لږ وچت وي. ګويا زه د غه شان لږ مخکې راغلی يم او زما سره ... قيامت راتلونکی دی.

**سوال**: دلته يو اشکال اړخ ته ذهن ځي هغه دا چې مخکنو انبياؤ هم قيامت ډير نژدې ښودلی دی، خو په دې باندې په زرګونو کلونه تير شول، تر وسه پورې قيامت رانغلی، په آخر کې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم قيامت ډير نژدې ښودلی دی، خو يو ينم زر کاله تيريدونکې دي، قيامت رانغلی، آخر دا څنګه نژدې دی؟

**جواب**:دعلماؤ او عقلاؤ دا اتفاقي فيصله ده چې **کل ما هو آت فهو قريب** يعنې کوم شی چې راتلونکی وي، پوهه چې هغه نژدې دی. ځکه چې يوه ورځ به داسې هم راشي چې هغه شی به راغلی وي. بس قيامت هم د غه شان يو شی دی. دويم جواب دادی چې داد باچاهانو اطلاق دی. چې هغوې کوم شي ته نژدې ووايې، په هغې باندې هم څو کلونه لګيږي.(مرقات ۹/۴۴۴)

## يوه پيړۍ ختميدو باندې هم د قيامت اطلاق کيږي

| ﴿۲﴾ وَعَن جَابر قَا ل: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ قَبْلَ أَنْ يَمُوتَ بِشَهْرٍ: |
|---|
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما د نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د وفات کيدلو نه يوه مياشت مخکې دا واوريدل |
| «تَسْأَلُونِي عَنِ السَّاعَةِ؟ وَإِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ الله |
| چې تاسو به زما نه د قيامت په اړه باندې پوښتنه کوله نو حقيقت دا دی چې د دې متعين وخت فقط د الله |
| وَأُقْسِمُ بِالله مَا عَلَى الْأَرْضِ مِنْ نَفْسٍ مَنْفُوسَةٍ يَأْتِي عَلَيْهَا |
| تعالی په علم کې دی. او زه په قسم خورم چې په دا وخت په زمکه باندې داسې هيڅ يو څوک نشته دی چې هغه |
| مِائَةُ سَنَةٍ وَهِيَ حَيَّةٌ يَوْمَئِذٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ [2] |
| باندې سل کاله تير شي او هغه د دېنه وروسته هم ژوندی وي. |

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۳۴۷ رقم الحديث ۶۵۰۴ ومسلم في صحيحه ۲/۲۲۶۸ رقم الحديث (۲۹۵۱-۱۳۳)

[2] أخرجه مسلم ... ۲۱۸ ... وأحمد في المسند ۳/۳۲۲.

**توضيح**: نفس منفوسة: يعنې څوک ساه اخستونکی د نن نه واخله تر سلو کالو پورا کيدلو پورې به نه پاتې کيږي. نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کوم دا ارشاد فرمايلی ؤ، د هغې نه ورستو ته ترسلو کالو پورې يو صحابې هم ژوندی پاتې ندی. که دا ارشاد د صحابؤ د دور ختميدلو اړخ ته اشاره وي، نو داسې شويده. او دا د قيامت وسطی دزمانې قائميدل ؤ. او که د دنيا عام انسانان مراد واخستلی شي، نو دا کلام به د مغيباتو د قبيلې نه وي، چې به په دنيا کې هيڅ ساه اخستونکی انسان د نن نه وروسته ترسلو کالو پورې ژوندی نشي پاتې کيدلی. او دا يقينې خبره ده چې داسې به کيږي. وس پوښتنه دا ده چې د دې حديث د مخې حضرت خضر عَلَيْهِ السَّلَامُ مرګ به هم واقع شوی وي. حالانکې په دې کې اختلاف دی، يو لويه طبقه هغه وس ژوندی ګڼي، د دې جواب دا دی چې حضرت خضر عَلَيْهِ السَّلَامُ په رجال الغيب کې د تکوينياتو سړی دی. په هغه باندې د ظاهري شريعت احکامات نه نافذ کيږي، ځينو جواب کړيدی چې هغه دغه وخت په زمکه باندې نه ؤ، په سمندر باندې ؤ. او وړاندوينه په زمکه باندې د موجود خلکو لپاره وه. ملاعلی قاری رحمه الله ليکلي دي چې څلور انبياء دا وخت ژوندې دي. دوه زمکه باندې دي يعنې حضرت الياس عَلَيْهِ السَّلَامُ او حضرت خضر عَلَيْهِ السَّلَامُ او دوه په آسمانونو باندې دي يعنې حضرت عيسی عَلَيْهِ السَّلَامُ او حضرت ادريس عَلَيْهِ السَّلَامُ. (مرقات: ج ۹\۴۴۶)

بهرحال په دې حديث کې د يوې پيړۍ په ختميدلو باندې د قيامت اطلاق شويدی. دا قيامت وسطی دی. ملاعلی قاری رحمه الله چې د څلورو انبياؤ د ژوند کومه خبره کړيده، دا د ختم نبوت د قاعدې خلاف ده. ځکه چې دا د نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه مخکې انبياء جوړ شويدی.

﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او د حضرت ابو سيعد خدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی چې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: دا وخت چې کوم ژوندې دي

«لَا يَأْتِي مِائَةُ سَنَةٍ وَعَلَى الْأَرْضِ نَفْسٌ مَنْفُوسَةٌ الْيَوْمَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1]

په دوې کې به يو سړی هم سل کاله وروسته په مخ د زمکه باندې ژوندی نه وي.

﴿۴﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ رِجَالٌ مِنَ الْأَعْرَابِ يَأْتُونَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَسْأَلُونَهُ

او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې څه باندچيان خلک به نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راتلل او دا پوښتنه به يې کوله

عَنِ السَّاعَةِ فَكَانَ يَنْظُرُ إِلَى أَصْغرِهم

چې قيامت به کله راځي؟ نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به هغه ماشوم ته کتل، چې هغه به د دې پوښتنه کونکو سره ؤ.

---

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۹۶۶ رقم الحديث (۲۵۳۹-۲۱۹) والترمذي في السنن ۴/۴۵۰ رقم الحديث ۲۲۵۰.

فَيَقُولُ: «إِنْ يَعِشْ هٰذَا لَا يُدْرِكُهُ الْهَرَمُ حَتّٰى تَقُومَ عَلَيْكُمْ سَاعَتُكُمْ» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1]

او بيا به يې فرمايل: كه دا ماشوم ژوندى ؤ نو دا به د بوډاوالي عمر ته نه وي رسيدلى چې په تاسو به قيامت راشي

**توضيح**: ساعتكم: يعنې په ستاسو قيامت به قائم شي، كه د دې نه مراد قيامت صغرى وي نو د هر سړي خپل ذاتي مرګ ته اشاره ده. او كه د دينه قيامت وسطى مراد وي نو بيا د قرنِ صحابه [illegible] موجوده خلكو پيړۍ به مراد وي چې د دې خلكو دور به ختم شي. (مرقات ۹/۴۴۶)

# الْفَصْلُ الثَّانِي

﴿۵﴾ عَنِ الْمُسْتَوْرِد بن شَدَّاد عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «بُعِثْتُ فِي نَفَسِ السَّاعَةِ فَسَبَقْتُهَا كَمَا سَبَقَتْ هٰذِهِ هٰذِهِ»

حضرت مستورد بن شداد د نبي كريم ﷺ نه روايت كوي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل: زه د قيامت په ابتداء كې راليږلى شوى يم، او زه د قيامت نه فقط دومره مخكې راغلى يم څومره چې دا ګوته د دې بلې ګوتې نه مخكې ده.

و أَشَارَ بِأُصْبُعَيْهِ السَّبَّابَةِ وَ الْوُسْطَى . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[2]

دې وينا سره نبي كريم ﷺ خپلې دواړه ګوتې يعنې د شهادت ګوته او مينځنۍ ګوتې ارخ ته اشاره وكړه.

## په دنيا كې د امت محمديه د پاتې كيدو زمانه

﴿۶﴾ وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت سعد بن ابى وقاص رضي الله عنه نبي كريم ﷺ نه روايت كوي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل:

«إِنِّي لَأَرْجُو أَنْ لَا تَعْجِزَ أُمَّتِي عِنْدَ رَبِّهَا

زه اميد لرم چې زما امت د خپل رب په پروردګار په نظر كې دومره عاجزاو بې حقيقته نشي چې د هغوى پروردګار هغوى

أَنْ يُؤَخِّرَهُمْ نِصْفَ يَوْمٍ». قِيلَ لِسَعْدٍ: وَكَمْ نِصْفُ

ته د نيمې ورځې مهلت هم ورنكړي، حضرت سعد بن ابى وقاص رضي الله عنه پوښتنه وشوه، چې دا نيمه

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۳۶۱ رقم الحديث ۶۵۱۱ ومسلم في صحيحه ۴/۲۲۶۹ رقم الحديث (۲۹۵۲-۱۳۶)

[2] أخرجه الترمذي [illegible] ۴/۴۲۹ رقم الحديث ۲۲۱۳.

| |
|---|
| يَوْمٍ ؟ قَالَ : خَمْسُمِائَةِ سَنَةٍ . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[1] |
| ورځ به څومره وي؟ هغه وفرمايل: چې پنځه سوه كاله. |

**توضيح**: ان لاتعجزامتي: ددې مطلب دا دی چې دالله تعالی په نزد زما د امت به دومره ناقدرې نه كيږي اودا امت به دومره عاجزه نوي چې الله تعالی دوې لره پنځه سوه كاله پورې وروسته كولو باندې پنځه سوه كاله عمر هم ورنكړي، د نيمې ورځې نه د قيامت نيمه ورځ مراد ده . چې د پنځه سوه كلنو وي. قرآن كريم كې دي: ﴿وَإِنَّ يَوْمًا عِندَ رَبِّكَ كَأَلْفِ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّونَ﴾ (الحج:۴۷)
د دې حديث مطلب دا دی چې قيامت به تر پنځه سوه كاله پورې نه راځي . هو ! كه د دې نه وروسته الله تعالی قيامت څومره وروسته كول وغواړي نو د الله تعالی اختيار دی. د دېنه بحث نه دی. علامه جلال الدين سيوطي رحمه الله خپلو ځينو كتابونو كې ليكلي دي چې د دې پنځه سوه كالو نه هغه كلونه مراد دي چې هغه به د زر كالو نه وروسته وي. ګويا يو نيم زر كاله د دې امت عمر دی. حضرت عمر فاروق رضي الله عنه فرمايلي دي چې د ټولې دنيا عمر اووه زره كاله دی. ملاعلی قاري رحم الله فرمايي چې دا كوم د پنځه سوه كالو ذكر دی، دا د اووه زره كالو نه وروسته دی. حضرت عمر رضي الله عنه اووه زره كالو ذكر وكړو. او د پنځه سوه كالو كسريې پريخودلی دی. لكه څنګه چې عرب كوي. (مرقات: ج۹\۴۴۸)

# الْفَصْلُ الثَّالِث

## دنيا بيخې بوډۍ كيخودلو سره تار تار شويده

| |
|---|
| ﴿۷﴾ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَثَلُ هَذِهِ الدُّنْيَا مَثَلُ ثَوْبٍ |
| حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: د دې دنيا مثال د هغه ټوټې (جامه) به شان دی |
| شُقَّ مِنْ أَوَّلِهِ إِلَى آخِرِهِ فَبَقِيَ مُتَعَلِّقًا بِخَيْطٍ فِي آخِرِهِ |
| چې هغه د اول نه تر آخره پورې وشلولی شي، او د دې شليدلې برخې په آخره كې د يو تار سره اينختلي وي. |
| فَيُوشِكُ ذَلِكَ الْخَيْطُ أَنْ يَنْقَطِعَ » . رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي « شُعَبِ الْإِيمَانِ » .[2] |
| او هغه تار هم شليدلو ته نژدې وي. نو دنيا هم خپل ماتيدلو او ختميدلو ته د غومره نژدې شويده . |



[1] أخرجه أبوداود في السنن ۴/۵۱۷ رقم الحديث ۴۳۵۰، وأحمد في المسند ۱/۱۷۰ .

[2] رواه البيهقي في شعب الايمان ۷/۲۶۰ رقم الحديث ۱۰۲۳۸ .

# بَابُ لا تَقُومُ السَّاعَةُ إِلا عَلَى شِرَارِ النَّاس

## قيامت به په بدمعاشانو باندې قائميږي

د قيامت زلزله او د دې خوف ډير تريخ حقيقت دی. نو ځکه الله تعالی نيکان خلک د دې خوف نه ساتلو لپاره به اول مرګ ورکړي. او کله چې په دنيا فقط او فقط بدمعاشان، لوفران، لوچکان، غله، شرابيان، کبابيان، کافر او اشرار پاتې شي، نو په دوې باندې به قيامت راځي.

## الْفَصْلُ الأَول

### په خلکو کې چې ترڅو د الله نوم وي نو قيامت به نه راځي

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " لَا تَقُومُ السَّاعَةُ |
| حضرت انس رضي الله عنه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم و فرمايل: قيامت به تر هغه وخته پورې نه راځي |
| حَتَّى لَا يُقَالَ فِي الْأَرْضِ: اللهُ اللهُ". وَفِي رِوَايَةٍ: |
| ترڅو چې په مخ د زمکه باندې الله الله ويلو والا ختم نشي. او په يو روايت کې دي چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم و فرمايل: |
| " لَا تَقُومُ السَّاعَةُ عَلَى أَحَدٍ |
| قيامت به په هغه سړي باندې نه قائميږي چې الله الله وايي. (مسلم) ځينو شارحينو د الله الله نه لا اله الا الله کلمه |
| يَقُولُ: اللهُ اللهُ". رَوَاهُ مُسْلِم[1] |
| مراد اخستلي ده. ځينو علماؤ د الله الله الفاظو نه په اسم مفرد سره ذکر الله ثابت کړيدی. |
| ﴿۲﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تَقُومُ السَّاعَةُ |
| او حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم و فرمايل: قيامت به فقط په |
| إِلَّا عَلَى شِرَارِ الْخَلْقِ». رَوَاهُ مُسْلِم[2] |
| بدکارو خلکو باندې قائميږي (مسلم) |

---

(۱)اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۱۳۱ رقم الحديث (۱۴۸-۲۳۴) والترمذي ۴/۴۲۶ رقم الحديث ۲۲۰۷.

(۲)اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۶۸ رقم الحديث (۲۹۴۹-۱۳۱) وابن ماجه في السنن ۲/۱۳۴۰ رقم الحديث ۴۰۳۹.

## د قيامت په باره کې پيشنګوئي

﴿۳﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تَضْطَرِبَ أَلَيَاتُ نِسَاءِ دَوْسٍ حَوْلَ ذِي الْخَلَصَةِ» . وَذُو الْخَلَصَةِ: طَاغِيَةُ دَوْسٍ الَّتِي كَانُوا يَعْبُدُونَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1]

او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل: قيامت به تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو چې دَوس قبيلې ښځې د ذوالخلصه نه ګير چاپيره خپلې غوښې ونه خوزوي. ذوالخلصه د دَوس قبيلې د يو بت نوم دی. چې د جاهليت په زمانه کې به يې د هغې عبادت کولو.

**توضيح:** تضطرب : د اضطراب نه دی. د حرکت کولو په معنی دی. **اليات**: همزه او لام دواړو باندې فتحه دهدا د الية جمع ده . همزه باندې زبر دی. لام ساکن دی. چاق ورون او سرين او مقعد غوښې ته ويل کيږي، چې هغه ته کوناټې ويل کيږي. (مرقات ۹/۴۵۰)

ذوالخلصة: دا په يمن کې د يو بت نوم ؤ دېته به کعبه يمانيه هم ويل کيدله. په دې بت خانه کې يو غټ بت ؤ، چې دهغې نوم خلصه ؤ. د دې د وجې نه ټول بت خانې ته ذوالخلصه ويلې شو. د مکې مکرمې د فتح کيدلو نه وروسته نبی کريم صلى الله عليه وسلم حضرت جرير بن عبدالله رضي الله عنه دې د سيزلو او ګوزارولو لپاره وليږلو. هغه دا تباه کړو. د جاهليت په زمانه کې خثعم، بجيله او دوس قبيلو خلکو به د دې عبادت کولو. نبی کريم صلى الله عليه وسلم وړاندوينه وفرمايله چې يوه زمانه به په آخر کې بيا داسې راشي چې د دوس قبيلې خلک به په درنو کوناټو سره د دې نه ګيرچاپيره طوافونه کوي. دا به يوه جزئې واقعه وي. ګنې ترقيامته پورې په جزيره عرب کې په عمومې توګه باندې د بتانو عبادت نشي کيدلی. يا د هغه زمانې خبره به وي چې د اسلام نظام به ختم شي. قيامت به شروع شي، لکه وروستې روايت نمبر: ۴ کې د دې تصريح ده. بيا خو هيڅ اشکال نشته . (مرقات ۹/۴۵۱)

﴿۴﴾وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «لَا يَذْهَبُ اللَّيْلُ وَالنَّهَارُ حَتَّى يُعْبَدَ اللَّاتُ وَالْعُزَّى». فَقُلْتُ:

او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دا اوريدلي دي چې د شپې او ورځې لړۍ به تر هغه وخته پورې ختمه نشي ترڅو چې د لات او عزی عبادت شروع نشي. (حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې)

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۲/۷۶ رقم الحديث ۷۱۱۶ ومسلم في ...

| |
|---|
| يَا رَسُولَ اللهِ إِنْ كُنْتُ لَأَظُنُّ حِينَ أَنْزَلَ اللهُ: (هُوَ الَّذِي |
| ما د نبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ارشاد و اورېدلو نو ما وویل چې یا رسول الله! چې الله تعالی دا آیت نازل کړېدی ﴿هُوَ الَّذِي |
| أَرْسَلَ رَسُولَهُ بِالْهُدَى وَدِينِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُونَ) |
| أَرْسَلَ رَسُولَهُ بِالْهُدَى وَدِينِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُونَ﴾ نو زما خیال ؤ چې د بتانو عبادت |
| أَنَّ ذَلِكَ تَامًّا. قَالَ: «إِنَّهُ سَيَكُونُ مِنْ ذَلِكَ مَا شَاءَ اللهُ |
| ختمید و نکی دی. نبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: په حقیقت کې هم دغه شان به کیږي ترڅو چې الله |
| ثُمَّ يَبْعَثُ اللهُ رِيحًا طَيِّبَةً فَتَوَفَّى كُلَّ مَنْ |
| وغواړي. بیا به الله تعالی یوه بنایسته خوشبو والا باد (هوا) راولیږي چې د هغې په ذریعه سره به هر هغه سړی |
| كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ مِنْ إِيمَانٍ فَيَبْقَى مَنْ |
| مړ کیږي چې د هغه په زړه کې د ګدن د دانې هومره ایمان هم وي. او فقط هغه سړی به پاتې کیږي چې په |
| لَا خَيْرَ فِيهِ فَيَرْجِعُونَ إِلَى دِينِ آبَائِهِمْ» . رَوَاهُ مُسلم [1] |
| هغه کې څه نیکي نوي. نو ټول خلک به د خپل پلار نیکه دین یعنې کفر او شرک اړخ ته وګرځي. |

## دقیامت سره متعلق یو تفصیلي حدیث

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَخْرُجُ الدَّجَّالُ |
| او حضرت عبد الله بن عمرو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: دجال به راوځي. |
| فَيَمْكُثُ أَرْبَعِينَ» لَا أَدْرِي |
| او تر څلوېښتو پورې به وي. حضرت عبد الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې ماته معلومه نده چې د څلوېښتو نه مراد |
| أَرْبَعِينَ يَوْمًا أَوْ شَهْرًا أَوْ عَامًا «فَيَبْعَثُ اللهُ |
| د نبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څه ؤ؟ آیا څلوېښت ورځې، یا څلوېښت میاشتې یا څلوېښت کاله. نو الله تعالی به |
| عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ كَأَنَّهُ عُرْوَةُ بْنُ مَسْعُودٍ فَيَطْلُبُهُ |
| عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ راولیږي چې هغه به ګویا د عروه بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په شکل او صورت وي. هغه به دجال لټوي. |

---

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۳۱ رقم الحديث ۲۹۰۷-۵۲

فَيُهْلِكُهُ ثُمَّ يَمْكُثُ فِي النَّاسِ سَبْعَ سِنِينَ

او هغه به وژني، د دېنه وروسته به حضرت عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ د دنيا خلکو کې اووه کاله پورې وي، او په دې زمانه کې

لَيْسَ بَيْنَ اثْنَيْنِ عَدَاوَةٌ ثُمَّ يُرْسِلُ اللهُ رِيحًا بَارِدَةً

به د دوه کسانو ترمينځ به هم دښمنۍ او عداوت نوي. بيا به الله تعالى د شام د اړخ نه يو يخ باد (هوا) راوليږي. نو دغه

مِنْ قِبَلِ الشَّامِ فَلَا يَبْقَى عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ أَحَدٌ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ مِنْ خَيْرٍ

وخت به په مخ د زمکه باندې داسې يو سړی پاتې نشي چې د هغه په زړه کې د ګدن د دانې هومره هم نيکي

أَوْ إِيمَانٍ إِلَّا قَبَضَتْهُ حَتَّى لَوْ أَنَّ أَحَدَكُمْ دَخَلَ فِي كَبِدِ جَبَلٍ

يا ايمان وي. او هغه باد د هغه روح قبض نکړي. تردې که ستاسو نه يو کس غار ته هم ددننه شي نو هغه باد

لَدَخَلَتْهُ عَلَيْهِ حَتَّى تَقْبِضَهُ» قَالَ:

غار ته په ننوتلو سره هغه سړي پسې وي، او د هغه روح به قبض کړي. نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د دېنه وروسته

" فَيَبْقَى شِرَارُ النَّاسِ فِي خِفَّةِ الطَّيْرِ وَأَحْلَامِ السِّبَاعِ

فقط بدکار او شريان خلک پاتې وي، چې هغه به د مارغانو په شان په منډه او د درندګانو په شان بی عقله او

لَا يَعْرِفُونَ مَعْرُوفًا وَلَا يُنْكِرُونَ مُنْكَرًا

سخت زړي وي، هغوې خو به نه د نيکۍ او ښيګړې نه خبروي او نه به د بدۍ او بدکارۍ نه ځان ساتي. بيا

فَيَتَمَثَّلُ لَهُمُ الشَّيْطَانُ

به شيطان (د يو معزز او قابل تکريم) انسان په شکل او صورت خپلو لو باندې د هغوې خواته راشي، او ورته

فَيَقُولُ أَلَا تَسْتَجِيبُونَ ؟ فَيَقُولُونَ : فَمَا تَأْمُرُنَا ؟

به وايي چې آيا تاسو ته شرم او حياء نه راځي. هغوې خلک به شيطان ته وايي چې ته وايه مونږ څه وکړو

فَيَأْمُرُهُمْ بِعِبَادَةِ الْأَوْثَانِ

نو شيطان به هغوې ته د بتانو د عبادت کولو حکم وکړي، بهرحال هغه خلک به د شيطان د وينا مطابق د بتانو

وَ هُمْ فِي ذَلِكَ دَارٌّ

عبادت شروع کړي. د هغوې اعمال او اخلاق به نهايت د کمزورې شي، ليکن هغوې ته به د دوې د بدو

رِزْقُهُمْ حَسَنٌ عَيْشُهُمْ

اعمالو سره هم د هغوې په رزق کې فراختيا او ډيروالي وي. او هغوې به د عيش او مزو ژوند تيروي. بيا به

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | يُنْفَخُ | فِي | الصُّورِ | فَلَا | يَسْمَعُهُ | أَحَدٌ | إِلَّا | أَصْغَى | لِيتًا |

شپیلۍ ووهلی شي، او کوم سړی چې هم د دې آواز اوري هغه به خپل څټ د یو اړخ نه را کوږ کړي. او د بل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَرَفَعَ | لِيتًا" | قَالَ:" | وَأَوَّلُ | مَنْ | يَسْمَعُهُ |

اړخ نه به یې وچت کړي، د دې شپیلۍ اواز اوریدونکی به د ټولو نه مخکې هغه سړی وي چې هغه به د خپلې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| رَجُلٌ | يَلُوطُ | حَوْضَ | إِبِلِهِ | فَيَصْعَقُ |

اوښې حوض اخیر کوي، او هغه به د غه حالت کې مړ شي. او نور خلک به هم د غه شان په خپلو خپلو کارونو

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَيَصْعَقُ | النَّاسُ | ثُمَّ | يُرْسِلُ | اللهُ | مَطَرًا | كَأَنَّهُ | الطَّلُّ |

کې بوخت کیدلو په جریان کې مړه شي. د دېنه وروسته به الله تعالی باران را ولیږي چې هغه به د پرخې (شبنم)

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَيَنْبُتُ | مِنْهُ | أَجْسَادُ | النَّاسِ |

په شان وي. او د دې باران په ذریعه به د خلکو بدنونه را زرغون شي، یبا (ثلو یبنت کاله وروسته) به دویمه

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | يُنْفَخُ | فِيهِ | أُخْرَى | فَإِذَا | هُمْ | قِيَامٌ | يَنْظُرُونَ |

شپیلۍ ووهلی شي، چې د هغې په اوریدلو سره به ټول خلک په یو ځل را پا څیږي او د قیامت یرونکې منظرونه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | يُقَالُ: | يَا | أَيُّهَا | النَّاسُ | هَلُمَّ | إِلَى رَبِّكُم |

به ویني. بیا به هغوې ته وویلی شي چې خلکو! خپل رب اړخ ته راشئ، او فرښتو ته به حکم ورکړی شي

| | | |
|---|---|---|
| وقفوهُم | إِنَّهم | مسؤولونَ. |

چې دا ټول ایسار کړئ، د دوې د اعمالو په اړه به پوښتنه کیږي، او د دوې نه به حساب اخستلی کیږي، بیا د

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَيُقَالُ: | أَخْرِجُوا | بَعْثَ | النَّارِ. | فَيُقَالُ: | مِنْ | كَمْ؟ |

فرښتو د اړخ نه به د الله رب العزت په دربار کې عرض وشي چې د څومره خلکو نه په څومره مقدار په

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| كَمْ؟ | فَيُقَالُ: | مِنْ | كُلِّ | أَلْفٍ | تِسْعَمِائَةٍ | وَتِسْعَةً | وَتِسْعِينَ" |

حساب سره بیل کړی شي؟ فرښتو ته به وویلی شي په هر زرو (۱۰۰۰) کې نه سوه نهه نوي (۹۹۹) کسان دوزخ

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ: | «فَذَلِكَ | يَوْمَ | يَجْعَلُ | الْوِلْدَانَ | شِيبًا | وَذَلِكَ يَوْمَ |

ته لیږلو لپاره بیل کړئ! د دې وینا سره نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: دا هغه ورځ ده چې دا ماشومان

يُكْشَفُ عَنْ سَاقٍ» . رَوَاهُ مُسْلِمٌ وَذُكِرَ حَدِيثُ مُعَاوِيَةَ: «لَا تَنْقَطِعُ الْهِجْرَةُ» فِي «بَابِ التَّوْبَةِ»[1]

بوډاګان کوي.او دا هغه ورځ ده چې په دې کې امر عظیم به ظاهر کړی شي. (روایت کړې دې مسلم)

**توضیح**: اربعین: نبی کریم ﷺ د دجال قیام د څه مصلحت په بنا باندې پټ وساتلو، څکه مخکې راوي وایي چې ماته معلومه نشوه چې نبی کریم ﷺ څلویښت ورځې وفرمایلې او که څلویښت میاشتې او که څلویښت کاله یې وفرمایل. په نورو روایتونو کې راجح قول د څلویښتو ورځو دی. کبد جبل: کبد سینه او ځیګر ته وایي.یعنې هغه سړې ته ورسیږي که هغه په غار یا د ګټي په سینه کې دننه پټ ولې نشي. **خفة الطير**: یعنې نقل او حرکت او عدم استقلال کې به د مارغانو په طور خورشوې انداز کې غیر سنجیده کیدو سره پیزار ایستلې بی عزته به ګرځي. **واحلام السباع**: یعنې وحشت او ظلم، جهالت او بی رحمۍ کې به د درندګانو په شان بی عقله وي. **الاتستحیون**: آیا تاسو نه شرمیږۍ چې په فسق او فجور کې پراته یاست. او عبادت نکوۍ؟ دا خبره به ابلیس ځکه کوي دې لپاره چې هغوې ته دهوکه ورکولو باندې د بتانو په عبادت کې اخته کړي. **داررزقهم** :یعنې کفر او د بتانو عبادت او د فسق او فجور سره به هم الله تعالی دوې ته مسلسل رزق ورکوي او د دوې ظاهري ژوند به ښه وي. او جسماني صحت به وغیره به ورته ترلاسه وي. **اصغی لیتاً**: لام باندې کسره ده، څټ یو اړخ ته کړولو ته وایي. شارحین د دې جملې مطلب دا وایي چې د شپیلۍ د پوکې د وجې نه به د دوې زړونه وچوي. نو څټونه به یې زوړند شي، د دې نظام به معطل شي.نو یوه برخه به یې لاندې شي. دویمه برخه به یې پاس پاتې شي. د شارحینو خبره په خپل ځای باندې صحیح ده ، خو زما په ناقص ذهن کې راځي چې ډیر آواز راشي او د حالت د حقیقت اندازه وشي لکه څنګه چې عام عادت دی، چې په دغه صورت حال کې د څټ او د مخ یوه برخه لاندې باندې کیږي،په دې شش وپنج به کې به معامله ډیره سخته شي. **یلوط** :اخیږ کول، ختہ تپل مراد دي. **الطل**:پرخي (شبنم) ته وایي.سپکی باران مراد دی دا باران به د عرش د لاندې نه وریږي.

**یوم یکشف عن ساق**: یعنې هم دا د سختو او مصیبتونو وخت به وي. کشف ساق کنایه ده د داسې غم نه چې د زغملو نه بیرون وي. دا د عربو خاص محاوره ده. د عربو خلک دا په سخت حالت کې استعمالوي. یعنې کله چې د زغم نه زیات مصیبت په چا باندې راشي نو هغه سړی د خپلې پنډۍ نه جامه او پینڅه راکاږي او جنګ لپاره تیار شي. د دغه مصیبت په حالت کې د عربو دا محاوره په دې توګه استعمالیږي. **کشف فلان عن ساقه**. (مرقات ۹/۴۵۴)

[1] أخرجه مسلم في صحيحه ۲/۲۲۵۸ رقم الحديث (۲۹۴۰-۱۱۶)

۱۰ جمادى الثاني ۱٤۱۸هـ

## بَاب النفخ فِي الصُّور
## د شپيلۍ پوک وهلو بيان

قال الله تعالى: ﴿فَإِذَا نُقِرَ فِي النَّاقُوْرِ فَذَالِكَ يَوْمَئِذٍ يَّوْمٌ عَسِيْرٌ ۝ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ غَيْرُ يَسِيْرٍ﴾(سورة المدثر:۱۰۸)

نفخ د پوکې کولو په معنی دی. او صور په اصل کې نرسکا او خکر ته وايي.دا يو قدرتي خکر دی چې په هغې کې د الله تعالی په حکم باندې حضرت اسرافيل عَلَيْهِ السَّلَام به پوکی کوي. دا نفخ صور به دوه ځل کيږي. يو ځل د ټولو انسانانو وژلو لپاره او دويم ځل د ټولو لره ژوندې کولو لپاره بکې پوکی وشي.دې لپاره چې حشرنشر او حساب کتاب قائم شي. اوله شپيلۍ وهلو او دويمه شپيلۍ وهلو ترمينځ به څلويښت کاله فاصله وي. ميدان حشر به د شام په زمکه باندې جوړيږي، ټول انسانان به د نفخ صور ثانې په ذريعه سره دې ميدان اړخ ته داسې راوبللی شي :﴿ياعظام البالية ويا اجسام المفتتة هلموا الى الله الواحد القهار الجبار﴾(مرقات ۹/۴۵۷)

نفخ اولی سره به ټول زنده سر مړه شي، ابليس به هم په دې نفخه اولیٰ کې مردار شي. اخوا ديخوا به تختي، فرښتي په د اور ګرزونو باندې هغه راوګرځوي، بيا به د ټولو انسانانو د نزع حالت په ابليس باندې واچولی شي.نفخ اولی به مسلسل شپږ مياشتو پورې وي. په دې سره به ټول مخلوق ختم شي. فرښتي به هم ختمې شي، فقط اته شيان به د ختميدلو نه وساتل شي: (۱) عرش (۲) کرسی (۳)لوح محفوظ(۴) قلم (۵)جنت (۶) دوزخ (۷)صور (۸) راواح. ځينې علماؤ ليکلې دي چې دا اته شيان به هم د څه وخت لپاره فنا شي، او فقط رب ذوالجلال به پاتې شي، او اعلان به وکړي: ﴿لِمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ﴾درې ځل اعلان کولو نه به وروسته خپله جواب وکړي:﴿لِلّٰهِ الواحِدِ القهار﴾بيا به د ملا هډوکی چې هغې ته عجب الذَنب وايې، د دې نه به هر انسان پيدا کړی شي. ټول خلک به بې ګيرې . لوڅ (بربنډ) ناسونته(بې ختنې) به پاڅيږي. د هر چا نه مخکې به د زمکې نه نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ راپاڅيږي، ابوبکر صديق، عمرفاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عيسی عَلَيْهِ السَّلَام به ورسره وي. بيا به هر يو امت د خپل خپل پيغمبر خواته راغونډيږي. سخته ګرمې به وي، خلک به په خولو کې ډوب وي، الا ماشآءالله.

زر کاله پورې به خلک په د غه درد او سخته کې وي. بيا به خلک انبياء کرامو باندې شفاعت کوي. ټول انبيا. به عذر وکړي. فقط نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د شفاعت کبری لپاره د الله تعالی خواته مقام محمود ته لاړ شي. شفاعت کبری کې چې کله اجازت ورکړی شي نو نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د دې

سره د خپل امت لپاره هم شفاعت وکړي. تفصيل را روان دی.

# الْفَصْلُ الأَول

## . د ملا هډوکی کله هم نه ختمیږي

|  |
|---|
| ﴿۱﴾عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا بَيْنَ النَّفْخَتَيْنِ أَرْبَعُونَ» |
| حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: د دواړو نفخو ترمینځ فاصله به څلویښت وي |
| قَالُوا: يَا أَبَا هُرَيْرَةَ أَرْبَعُونَ يَوْمًا؟ قَالَ: |
| خلکو پوښتنه وکړه چې ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ! آیا څلویښت ورځې مراد دي؟ ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل: |
| أَبَيْتُ. قَالُوا: أَرْبَعُونَ شَهْرًا؟ قَالَ: |
| چې ما ته معلومه نده! نو بیا خلکو پوښتنه وکړه چې آیا څلویښت میاشتې مراد دي؟ ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل: |
| أَبَيْتُ. قَالُوا: أَرْبَعُونَ سَنَةً؟ قَالَ: |
| چې ماته نده معلومه! بیا خلکو پوښتنه وکړه چې آیا څلویښت کاله مراد دي؟ ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بیا هغه جواب ورکړي چې ماته نده |
| أَبَيْتُ. «ثُمَّ يُنْزِلُ الله |
| معلومه! د دېنه وروسته حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث د بیان لړۍ جاري ساتلو سره وفرمایل چې |
| مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَيَنْبُتُونَ |
| نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: بیا به الله تعالی د آسمانه اوبه راووروي او په دې اوبو سره خلک داسې راززغون شي |
| كَمَا يَنْبُتُ الْبَقْلُ» قَالَ: «وَلَيْسَ مِنَ الْإِنْسَانِ شَيْءٌ |
| لکه شینکي چې راززغون کیږي. دغه شان نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: انسان د بدن هیڅ یو شی |
| لَا يَبْلَى إِلَّا عَظْمًا وَاحِدًا وَهُوَ عَجْبُ الذَّنَبِ |
| داسې نشته چې هغه زوړ او نه پخوانی کیږي، د یو هډوکي نه غیره چې هغې ته عجب الذنب وايي او د |
| وَ مِنْهُ يُرَكَّبُ الْخَلْقُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ » . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| قیامت په ورځ به د هر زنده سر بدن د دې هډوکي نه د ده ټول بدن را یو ځای کیږي. (بخاري او مسلم) |
| وَ فِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ قَالَ : « كُلُّ ابْنِ آدَمَ يَأْكُلُهُ التُّرَابُ |
| او د مسلم په یو روایت کې داسې دي چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: چې د مرګ نه وروسته خاورې د انسان ټول |

| مِنْهُ | الذَّنَبِ | عَجْبَ | إِلَّا |
|---|---|---|---|
| بدن نه خوري خو عجب الذنب په پوره توګه نشي خوړلی او هم دا هغه هډوکی دی چې د دې نه د انسان په | | | |
| خُلِقَ وَفِيهِ يُرَكَّبُ»[1] | | | |
| اول ځل پيدائښ شويدی او د دې په ذريعه سره به بيا جوړ کړی شي. | | | |

**توضيح**: قال ابيت: د حضرت ابو هريره رضي الله عنه انکار په دې بنياد ؤ چې ده د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه په دغه شان په مجمله توګه باندې اوريدلی ؤ يا يې مفصل اوريدلی ؤ خو ترينه هير شوی ؤ. ځکه که مفصل روايت که وکتلی شي نو په دې کې د څلويښتو کالو تصريح شته دی. (مرقات ۹/۴۵۷)

عَجْبُ الذَّنَبِ: عجب جرړې ته وايي او ذنب لکۍ ته وايي. د دې هډوکې سره لکۍ يو ځاې شويده. بيا د ملا هډوکې ته عجب الذنب وايي. د ملا هډوکی خو يا د ټولو اندامونو نه وروسته ختميږي. يا مطلب دا دی چې چې د دې به څه نا څه ريزه پاتې کيږي چې د هغې سره د انسان د بدن نور اندامونه يو ځاې شي. هو! د انبياؤ او شهداؤ بدنونه محفوظ دي. (مرقات ۹/۴۵۸)

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " يَقْبِضُ اللهُ |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د قيامت په ورځ به الله تعالى په خپله |
| الْأَرْضَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَيَطْوِي السَّمَاءَ بِيَمِينِهِ ثُمَّ يَقُولُ: أَنَا الْمَلِكُ |
| قبضه (لاس) کې واخلي. او آسمان به په خپل ښي لاس کې راونغاړي او بيا به وفرمايي: زه باچا يم، چيرته دي |
| أَيْنَ مُلُوكُ الْأَرْضِ؟ ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[2] |
| هغه خلک چې هغوي به په زمکه باندې د خپلې باچايې دعوې کولې. |
| ﴿۳﴾ وَعَنْ عبد الله بن عَمْرو قَالَ: قا ل رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د قيامت |
| " يَطْوِي اللهُ السَّمَاوَاتِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ثُمَّ يَأْخُذُهُنَّ بِيَدِهِ الْيُمْنَى ثُمَّ يَقُولُ: أَنَا |
| په ورځ به الله تعالى آسمانونه راونغاړي او بيا به هغه په خپل ښي لاس کې نيولو سره وفرمايي: زه |

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۸/۶۸۹ رقم الحديث ۲۹۳۵ ومسلم في صحيحه ۴/۲۲۷۰ رقم الحديث (۲۹۵۵-۱۴۱)

[2] أخرجه البخاري في صحيحه ۸/۵۵۱ رقم الحديث ۴۸۱۲ ومسلم في صحيحه ۲۱۴۸ رقم الحديث (۲۷۸۷-۲۳)

| |
|---|
| الْمَلِكُ أَيْنَ الْجَبَّارُونَ؟ أَيْنَ الْمُتَكَبِّرُونَ؟ ثُمَّ يَطْوِي الْأَرَضِينَ - بِشِمَالِهِ |
| باچا يم! چيرته دي ظلم او جبر كونكي؟ چيرته دي تكبر كونكي؟ بيا به زمكه په خپل چپ لاس كې راونغاړي |
| وَ فِي رِوَايَةٍ : يَأْخُذُهُنَّ بِيَدِهِ الْأُخْرَى ثُمَّ يَقُولُ : أَنَا الْمَلِكُ |
| او په يو روايت كې داسې دي چې زمكې به په خپل بل لاس كې واخلي او وبه فرمايې: زه باچا يم. |
| أَيْنَ الجبَّارونَ أَيْنَ المتكبِّرونَ؟". رَوَاهُ مُسلم[1] |
| چيرته دي ظلم كونكي؟ چيرته دي تكبر كونكي |

**توضيح**: بيده اليمنٰى: آسمانونو ته شرف ترلاسه دی ځكه په ښې لاس كې د نيولو ذكر يې وكړو.

بشماله: الله تعالى لپاره جهت (اړخ) متعين كول حدوث لره لازمدی. او په ښې او چپ كې د جهت شائبه ده. دغه شان چپ لاس ته په عرف عامه كې هغه عظمت ترلاسه ندی كوم چې ښې لاس ته تر لاسه دی لهذا الله تعالى په لاس باندې د شمال اطلاق نشی كيدلی، هم دا وجه ده چې په دې روايت كې د شمال د اطلاق نه وروسته راوي وايي چې په يو روايت كې بيده الاخرٰى يعني د بل لاس اطلاق شويدی د شمال نه دی. په حديث كې د يطوي لفظ دی. چې دهغې معنی راونغختل خو د دېنه فنا كيدل مراد دي.

| |
|---|
| ﴿۲﴾وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: جَاءَ حَبْرٌ مِنَ الْيَهُودِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان كوي چې د نبی كريم صلى الله عليه وسلم مجلس ته د يهودو يو عالِم راغلی |
| فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ إِنَّ اللهَ يُمْسِكُ السَّمَاوَاتِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى أُصْبُعٍ |
| او وې ويل ای محمد (صلى الله عليه وسلم)! د قيامت په ورځ به الله تعالى آسمانونه په يوه گوته باندې، |
| وَالْأَرَضِينَ عَلَى أُصْبُعٍ وَالْجِبَالَ وَالشَّجَرَ عَلَى أُصْبُعٍ وَالْمَاءَ وَالثَّرَى عَلَى أُصْبُعٍ |
| زمكې په يوه گوته باندې، غرونه او بوټي په يوه گوته باندې، او به او د اوبو د لاندې لمده خاوره په يو گوته باندې، |
| وَسَائِرَ الْخَلْقِ على أصبع ثُمَّ يَهُزُّهُنَّ فَيَقُولُ: أَنَا الْمَلِكُ أَنَا اللهُ. |
| او پاتې ټول مخلوق به په يو گوته باندې كيږدي. او گوتې به خوزوي او فرمايې به: زه باچا يم، زه يم خدای. |

---

([1])أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۱۴۸ رقم الحديث (۲۷۸۸-۲۴) وأبوداود في السنن ۵/۱۰ رقم الحديث ۴۷۳۲.

فَضَحِكَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعَجُّبًا مِمَّا قَالَ الْحَبْرُ تَصْدِيقًا لَهُ.

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې یهود ي عالِم په ژبه دا خبرې اوریدلو سره په تعجب باندې مسکی شو او بیا

ثُمَّ قَرَأَ: (وَمَا قَدَرُوا اللهَ

نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا آیت تلاوت کړو ﴿وَمَا قَدَرُوا اللهَ الخ﴾ او افسوس دی چې دې خلکو یعنې مشرکانو د الله تعالی هیڅ عظمت

حَقَّ قَدْرِهِ وَالْأَرْضُ جَمِيعًا قَبْضَتُهُ

ونکړو څنګه عظمت چې کول پکار ؤ. حالانکې (د ده هغه شان دی چې) ټوله زمکه به د هغه په لاس

يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَالسَّمَاوَاتُ مَطْوِيَّاتٌ بِيَمِينِهِ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى

(موټي) کې وي د قیامت په ورځ او ټول آسمانونه به رانغختلي شوي وي د هغه په ښي لاس کې. هغه پ ک

عَمَّا يشركُونَ) مُتَّفق عَلَيْهِ[1]

او وچت دی د هغوې د شرک نه.

**توضیح**: حبر: د یهودو غټ عالِم ته حبر وایي. چې د هغې جمع احبار ده. دې یهود عالِم د میدان محشر او دقیامت د ټولې ورځې چې کومه نقشه بیان کړه، دا په اصل کې یو تمثیل او تفصیل ؤ. مراد په لاس سره وچتول ؤ. لکه څنګه چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بیان کړل. په دې باندې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضحک وفرمایلو، دا د انکار لپاره نه ؤ، بلکې د تعجب په توګه د اقرار لپاره ؤ. (مرقات ۹/۴۶۱)

## قیامت کې به د زمکې او آسمان د بدلون په وخت کې خلک چیرته وي؟

﴿۵﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قَوْلِهِ: (يَوْمَ تُبَدَّلُ

او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د دې آیت په ا ره پو ښتنه وک ړ: ﴿يَوْمَ تُبَدَّلُ

الْأَرْضُ غَيْرَ الْأَرْضِ وَالسَّمَاوَاتُ)

الأرْضُ غيرَ الأرْضِ والسَّمٰاوَاتُ﴾ یعنې په کومه ورځ چې زمکه په بله زمکه باندې بدله شي او اسمان هم.

فَأَيْنَ يَكُونُ النَّاسُ يَوْمَئِذٍ؟ قَالَ: «عَلَى الصِّرَاطِ». رَوَاهُ مُسلم[2]

نو په هغه ورځ به خلک چیرته وي؟ نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: پل صراط باندې

---

(1) أخرجه البخاري في صحيحه ۸/۵۵۱ رقم الحديث ۴۸۱۱ ومسلم في صحيحه ۴/۲۱۴۷ رقم الحديث (۲۷۸۶-۱۹)

(2) أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۱۵۰ رقم الحديث ۲۷۹۱-۲۹ وابن ماجه في السنن ۱۴۳۰ رقم الحديث ۴۲۷۹.

**توضیح**: تبدل الارض: زمکې د بدلون په اړه باندې ځينې علماء فرمايي چې دا به د دې د ذات بدلون وي، د موجوده ذات په ځای به بل ذات راشي. مثلاً نوې زمکه به د سپينو زرو وي، او نوی آسمان به د سرو زرو وي. ځينې علماؤ ويلې دي چې ذات نه بلکې د زمکې او آسمان په صفتونو کې به بدلون راشي مثلا: زمکه به سپينه ډوډۍ شي. خلک به په محشر کې هم دا خوري. اولنی قول واضح او راجح دی.

دلته دا اشکال دی چې زمکه او آسمان کله بدليږي نو په دې وخت کې به خلک چیرته وي. هم دا پوښتنه حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا کړې وه. چې د دې په جواب کې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې خلک به دغه وخت په پل صراط باندې وي. (مرقات ۹/۴۶۳)

| ﴿۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ |
|---|
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د قيامت په ورځ به لمر او سپوږمۍ |
| مُكَوَّرَانِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1] |
| راونغښتلی شي. (روايت کړې دې بخاری) |

**توضیح**: مکوران: يعنې سپوږمۍ او لمر دواړه به د قيامت په ورځ راونغښتلی شي، يعنې دواړه به بې نوره شي. او بيا به دواړه په اور کې واچولی شي، دا د دوی سزا نده بلکې د دوی د عبادت کونکو سزا ده چې د دوی د ځانه جوړ شوی خدای په اور کې پروت دی.

## الْفَصْلُ الثَّانِي

| ﴿۷﴾ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «كَيْفَ أَنْعَمُ |
|---|
| حضرت ابو سعيد خدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسو الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: زه په آرام او سکون باندې څنګه کېنم |
| وَصَاحِبُ الصُّورِ قَدِ الْتَقَمَهُ وَأَصْغَى سَمْعَهُ |
| او حال دا دی چې شپیلۍ وهونکی اسرافيل عَلَيْهِ السَّلَامُ شپیلۍ په خله کې نيولې ده. خپل غوږ ایښی دی. |
| وَحَنَى جَبْهَتَهُ يَنْتَظِرُ مَتَى يُؤْمَرُ بِالنَّفْخِ». فَقَالُوا: |
| او تندی يې راټیټ کړيدی. او په انتظار کې دی چې کله به د شپیلۍ وهلو حکم کيږي. صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ وفرمايل |

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۲۹۷ رقم الحديث ۳۲۰۰.

| يَا رَسُولَ اللهِ وَمَا تَأْمُرُنَا؟ قَالَ: " قُولُوا: حَسْبُنَا اللهُ وَنِعمَ الْوَكِيلُ ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1] |
|---|
| چې يا نبي (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) زمونږ لپاره څه حکم کوې؟ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: دا وايئ: ﴿حَسْبُنَا اللهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ﴾ |

**توضيح**: اِلتقمه: يعنې حضرت اسرافيل عَلَيْهِ السَّلَامُ شپيلۍ په خله کې مړی په شان ايخودلې ده. او د الله تعالى حکم ته يې غوږ ايخى دى. وحنى جبهته: يعنې تندى يې راټيټ کړيدى. ييخې د الله تعالى حکم ته تيار دى. بس د هغه اړخ نه حکم وشو او د دې ځای نه يې تعميل وشو. (مرقات ۹/۴۶۴)

## اسرافيل عليه السلام د شپيلۍ حقيقت څه دى؟

| ﴿۸﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
|---|
| او حضرت عبدالله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: |
| «الصُّورُ قَرْنٌ يُنْفَخُ فِيهِ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ[2] |
| شپيلۍ يو ښکر دى چې په هغې کې به پوک وهلى کيږي. |

**توضيح**: قرن: يعنې يو صور يو ښکر دى. د صور ترجمه ښکر هم ده او ښکره هم ده. حضرت اسرافيل عَلَيْهِ السَّلَامُ به دا شپيلۍ دوه ځل پوکيووهي . يو ځل د انسانانو د وژلو لپاره او دويم ځل د ټولو د ژوندې کولو لپارهه به يې ووهي. ويلى کيږي چې د دې شپيلۍ خله دومره غټه ده چې زمکه او آسمان وريکې د ننه ځايدلى شي. (مرقات ۹/۴۶۴)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِث

| ﴿۹﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ فِي قَوْلِهِ تَعَالَى (فَإِذَا نُقِرَ فِي النَّاقُورِ): | | |
|---|---|---|
| حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې هغه د الله تعالى دا ارشاد ﴿فَإِذَا نُقِرَ فِي النَّاقُورِ﴾ تفسير بيانولو | | |
| الصُّور | قَالَ: | و(الرجفة): |
| کې وفرمايل چې د ناقور نه مراد شپيلۍ ده. هغه د دې آيت ﴿يَوْمَ تَرْجُفُ الرَّاجِفَةُ تَتْبَعُهَا الرَّادِفَةُ﴾ په تفسير کې وفرمايل | | |

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۳۶ رقم الحديث ۲۴۳۱ واحمد في المسند ۳/۷۳ .

(۲) اخرجه أبوداود في السنن ۵/۱۰۷ رقم الحديث ۴۷۴۲ والترمذي في السنن ۵۳۶.

النَّفْخَةُ الْأُولَى وَ(الرَّادِفَةُ): الثَّانِيَةُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ فِي تَرْجَمَةِ بَابٍ[1]

چې: راجفة نه مراد اوله شپیلۍ کې پوک وهل دي او رادفة نه مراد دويمه شپيلۍ پوک وهل دي.

﴿۱۰﴾وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: ذَكَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَاحِبَ الصُّورِ

او حضرت ابو سعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی چې يوه ورځ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شپيلۍ پوک وهونکې يعنې حضرت اسرافيل عَلَيْهِ السَّلَام

وَ قَالَ: «عَنْ يَمِينِهِ جِبْرِيلُ

ذکر وکړو او وې فرمايل: چې د شپيلۍ پوک وهلو په وخت کې دهغه ښې اړخ ته حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَام او

وَعَنْ يَسَارِهِ مِيكَائِيلُ»[2]

چپ اړخ ته به يې حضرت ميکائيل عَلَيْهِ السَّلَام وي.

﴿۱۱﴾وَعَنْ أَبِي رزين الْعقيلِيِّ قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ كَيْفَ

او حضرت ابو رزين عقيلي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی چې ما وويل: يارسول الله! الله تعالى به مخلوق په دويم ځل

يُعِيدُ اللهُ الْخلق؟ مَا آيَةُ ذَلِكَ فِي خَلْقِهِ؟ قَالَ:

څنګه راژوندي کولو سره پاڅوي. او آيا دې لپاره په شته خلکو کې څه نښاني شته دی؟ نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل:

«أَمَا مَرَرْتَ بِوَادِي قَوْمِكَ

چې ته کله د قحط او وچکالۍ په زمانه کې د خپل قوم په ځنګل او پټو (فصلونو) باندې ګرځيدلی يې؟ هلته

جَدْبًا ثُمَّ مَرَرْتَ بِهِ

به د شينکې نوم هيڅ شی په نظر نه يې راغلی. بيا چې کله ته د باران نه وروسته په هغه ځای باندې تير شوی يې

يَهْتَزُّ خَضِرًا؟» قُلْتُ: نَعَمْ. قَالَ:

نو تا به په چپې وهونکې شينکی په نظر راغلی وي. ما وويل چې هو! داسې کيږي. نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل:

"فَتِلْكَ آيَةُ اللهِ فِي خلقه (كَذَلِك يحيي اللهُ الْمَوْتَى) رَوَاهُمَا رزين[3]

نو په مخلوقات کې د خدای تعالی هم دغه نښاني ده. او الله تعالی مړي په دغه توګه راژوندي کړي.

---

(1) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۳۶۷ تعليقا في الباب ۴۳ باب نفخ الصور

(2) أخرجه أحمد في المسند ۳/۱۰ وأبوداود في السنن ۴/۲۹۳ رقم الحديث ۳۹۹۹

(3) رواه رزين وأخرجه أحمد في المسند ۴/۱۱

# بَابُ الْحَشْرِ
# د حشر نشر بيان

**قال الله تعالیٰ:** ﴿لَقَدْ جِئْتُمُوْنَا كَمَا خَلَقْنٰكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍۭ﴾(سورة الكهف۴۸:)

د حشر اصل معنی راغونډول او يو ځاې كول دي. د قيامت ورځې ته يوم الحشر ځكه ويلی شو. ؛ چې په دغه ورځ به ټول انسانان راژوندې كولو باندې يو ميدان ارځ ته وشړلی شي. دغه ميدان ته ميدان محشر وايي. دلته د حشر نه مراد هم دغه معنی ده چې ټول خلك په ژوندې كولو سره به يو ځاې كړی شي. اګركه په دې باب كې دغه شان احاديث هم شته دی چې هغه د قيامت په علاماتو كې دي لكه حديث نمبر: ۳ كې د يو اور بيان دی. دا د قيامت د علاماتو نه دی. بهرحال د شام په زمكه باندې به د حشر ميدان جوړيږي.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| حضرت سهل بن سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د قيامت په ورځ به خلك په داسې |
| «يُحْشَرُ النَّاسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى أَرْضٍ بَيْضَاءَ عَفْرَاءَ كَقُرْصَةِ النَّقِيِّ |
| سور والې ته مائله سپينه زمكه باندې راغونډ كړی شي چې هغه به د غلبيل شوؤ وړو په شان وي. او په دې |
| لَيْسَ فِيهَا عَلَمٌ لأَحَدٍ» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1] |
| زمكه به د چا هيڅ نښان نوي. (بخاری مسلم) |

**توضيح:** عفراء: يعنې سره سپين والې ته مائله زمكه.

**كقرصة النقي:** قرصه چپاتی. ډوډۍ ته وايي. او النقي غلبيل شوؤ وړو ته وايي. ګويا دا زمكه په ګردوالې كې د ډوډۍ په شان ده او په محشر كې د خلكو د خوراك لپاره هم دغه انتظام دی چې د زمكې ټوټې به راغوځوي او خوري، د تركاری (پخكړې) هيڅ پته نشته دی. (مرقات۹/۴۶۷)

**علم لاحد:** يعنې هواره زمكه به وي. په دې باندې د چا د عمارت او داسې نور هيڅ نښان او علامت نه وي. (مرقات۹/۴۶۷)

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۳۷۲ رقم الحديث ۶۵۲۱ واخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۱۵۰ رقم الحديث (۲۷۹۰-۲۸)

## د جنتیانو اولنې خوراک

﴿۲﴾وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «تَكُونُ الْأَرْضُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

او حضرت ابو سعید خدری رضی الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د قیامت په ورځ به ټوله زمکه د

خُبْزَةً وَاحِدَةً يَتَكَفَّؤُهَا الْجَبَّارُ بِيَدِهِ كَمَا يَتَكَفَّأُ أَحَدُكُمْ

یوې ډوډۍ په شان وي، چې هغه جبار ذات په خپلو لاسونو باندې داسې اړوي راړوي لکه په تاسو کې یو څوک

خُبْزَتَهُ فِي السَّفَرِ نُزُلاً لِأَهْلِ الْجَنَّةِ».

د سفر په دوران کې په اړولو راړولو باندې ډوډۍ پخوي. او دا ډوډۍ به د جنتیانو میلمستیا وي. نبی کریم صلی الله علیه وسلم

فَأَتَى رَجُلٌ مِنَ الْيَهُودِ. فَقَالَ: بَارَكَ الرَّحْمَنُ عَلَيْكَ يَا أَبَا الْقَاسِمِ

د دې وینا نه وروسته یو یهودي راغلی او وې ویل چې ای ابو القاسم (صلی الله علیه وسلم) الله مهربان دې په تا باندې برکت نازل

أَلَا أُخْبِرُكَ بِنُزُلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟

کړي: آیا زه تاته ووایم چې د قیامت په ورځ به د میلمستیا په توګه د جنتیانو اولنی خوراک څه وي؟

قَالَ: «بَلَى». قَالَ: تَكُونُ الْأَرْضُ خُبْزَةً وَاحِدَةً

نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: هو! ووایه. هغه یهودي وویل چې ټوله زمکه به یوه ډوډۍ شي لکه

كَمَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَنَظَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيْنَا ثُمَّ ضَحِكَ حَتَّى

څنګه چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلې ؤ. نبی کریم صلی الله علیه وسلم مونږ ته وکتل او په خندا شو. تردې چې

بَدَتْ نَوَاجِذُهُ ثُمَّ قَالَ: أَلَا أُخْبِرُكَ

د نبی کریم صلی الله علیه وسلم غاښونه مبارک ښکاره شول، د دېنه وروسته هغه یهودي وویل: آیا زه تاته ووایم چې د

بِإِدَامِهِمْ؟ بَالَامٌ وَالنُّونُ. قَالُوا: وَمَا هَذَا؟ قَالَ: ثَوْرٌ وَنُونٌ

جنتیانو ترکارۍ به څه وي؟ هغه بالام او نون دی. صحابؤ وویل: دا بالام څه شی وي؟ وې ویل: چې غوایې او نون او د

يَأْكُلُ مِنْ زَائِدَةِ كَبِدِهِمَا سَبْعُونَ أَلْفًا. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ). [1]

دې واړو یعنې غوايې او ماهې د غوښې د غټوټې نه چې کم ځیګر زیاتې دی. اویا زره کسان به ورسره ډوډۍ خوري.

**توضیح: یتکفأ**: ډوډۍ پخولو په وخت کې ژر ژر د هغې اړولو راړولو ته یتکفأ وایي. **في السفر**: دا لفظ

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۳۷۲ رقم الحديث ۶۵۲۰ ومسلم في صحيحه ۴/۲۱۵۱ رقم الحديث (۲۷۹۲-۳۰)

کیدی د دې لپاره ډیر کړی شوي وي چې په سفر کې تُندې وي. نو ډوډۍ ژر ژر په لاس کې اړولی راړولی کیږي. **نزل**: میلمه لپاره چې کوم خوراک تیار کړی شي، هغې ته نزل وایي یعنې د جنتیانو میلمستیا. **قال**: یعنې یهود عالم وویل چې آیا د ترکارۍ ونه وایم. صحابؤ رضی الله عنهم وفرمایل: ووایه. نو هغه وویل: **بالام**. دا عبراني لفظ دی. عربۍ کې د دې ترجمه ثور دی چې غوایي ته ویل کیږي. که دا لفظ عربي وای نو صحابه به پوهه شوي وی. نون ماهې ته وایي. **زائدة کبدهما**: یعنې غوایي او ماهې د دواړو د ځیګر زیاتې برخې په ټوټو باندې به اویا زره جنتیانو میلمستیا وکړی شي. دا اویا زره به هغه وي چې هغه به د حساب او کتاب نه بغیر جنت کې داخل شوي وي. حیواناتو کې ماهې او مار دوه داسې ځناور دي چې د هغې په غټیدلو کې هیڅ حد بندې نشته دی. هغه د غټې نه هم غټیدلی شي. (مرقات۹/۴۶۹)

## میدان محشر کې دراغونډیدلو منظر

| |
|---|
| ﴿۳﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يُحْشَرُ النَّاسُ عَلَى ثَلَاثِ |
| او حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: حشر کې به خلک په درې قسمونو کې راغونډ |
| طَرَائِقَ: رَاغِبِينَ رَاهِبِينَ |
| کړی شي. یو قسم خلک خو هغه دي چې هغه د جنت مینه کونکې دي. دویم قسم هغه دي چې هغه د دوزخ نه یریدونکې دي. |
| وَاثْنَانِ عَلَى بَعِيرٍ وَثَلَاثَةٌ |
| او په دې دواړو قسمونو کې چې کوم خلک په سپرلۍ باندې وي، د هغوي صورت به دا وي چې په یو اوښ باندې به دوه سپاره وي. |
| عَلَى بَعِيرٍ وَأَرْبَعَةٌ عَلَى بَعِيرٍ وَعَشَرَةٌ عَلَى بَعِيرٍ |
| درې سپاره وي. څلور سپاره وي، لس به هم په یو اوښ سپاره وي. او دریم قسم کې پاتې ټول خلک وي چې |
| وَتَحْشُرُ بَقِيَّتَهُمُ النَّارُ، تَقِيلُ مَعَهُمْ |
| هغوي به لړه او ر راغونډوي او هغه اور به هر وخت د غه خلکو سره وي او هیڅ وخت به هم د دوي نه نه بیلیږي، تر دې چې کوم ځای د غه |
| حَيْثُ قَالُوا وَتَبِيتُ مَعَهُمْ |
| خلک قیلوله کوي، اور به هم هلته قیلوله کوي. چیرته چې هغه خلک شپه تیروي، اور به هم د هغوي سره شپه تیروي، چیرته چې هغه |
| حَيْثُ بَاتُوا وَتُصْبِحُ مَعَهُمْ حَيْثُ أَصْبَحُوا وَتُمْسِي مَعَهُمْ |
| خلک سبا کوي، هلته به اور هم د هغوي سره سبا کوي. او چیرته چې هغه خلک ماښام کوي، اور به هم |

| حَيْثُ يمسوا ". مُتَّفق عَلَيْهِ[۱] |
|---|
| د هغوی سره ماښام کوي. |

**توضیح**: طرائق: دا د طریقة جمع ده . مراد ترینه درې قسمه دي. یعنې خلک به د ژوندې کیدلو نه وروسته چې کله په میدان محشر کې راغونډ شي، نو هلته د راتګ به درې طریقې وي، او درې قسمه خلک به وي. یو قسم د جنت سره مینه کونکې به وي. دویم قسم به د دوزخ نه یریدونکې وي. **واثنان**: ای واثنان منهم یعنی ان راغبین او راهبین نه چې کوم خلک په سپرلۍ باندې وي. د هغوی کیفیت او صورت به په دې توګه وي چې دوه دوه ، درې درې ، څلور څلور تر دې چې لس لس به په یو اوښ باندې سپاره وي. خیلې خپلې مرتبې به وي. **وتحشر بقیتهم**: یعنې پاتې ټول خلک چې هغه به په دریم قسم کې وي، هغوی لره به یو اور محشر ته راغونډ کړي. **تقیل**: دا د قیلوله نه دی. مطلب دا دی چې دا اور به دې خلکو ته هر قسم سهولت ورکوي، کله سفر کله قیلوله ، کله شپه تیرول او کله سبا کول، خو تر میدان محشر به یې خامخا راولي. دا هغه اور دی چې هغه به د مرګ نه وروسته په دویم ځل ژوندي کیدلو باندې خلک میدان محشر ته راولي. میدان محشر ارخ ته راتګ لپاره ګڼ حشرونه کیدلی شي، کله سپرلۍ، کله به پیدل وي. کله به په خپو باندې ځي. کله به پړ مخې ځي. (مرقات ۹/۴۷۱)

## میدان محشر کې به خلک لوڅ لغړ وي

| ﴿۲﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
|---|
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کوي چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: |
| «إِنَّكُمْ مَحْشُورُونَ حُفَاةً عُرَاةً غُرْلًا» ثُمَّ قَرَأَ: |
| تاسو بېیدې حالت کې پاڅولی شی،چې تاسو به لوڅ بدن او ناسوته یاست. د دې نه وروسته نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا آیت تلاوت |
| (كَمَا بَدَأْنَا أَوَّلَ خَلْقٍ |
| کړو ﴿كَمَا بَدَأْنَا أَوَّلَ خَلْقٍ نُعِيدُهُ الخ﴾ یعنې څنګه چې مونږ دوي په ابتداء کې پیدا کړي ؤ، دغه شان به مونږ دوی لره |
| نُعِيدُهُ وَعْدًا عَلَيْنَا إِنَّا كُنَّا فاعلين) |
| بیا پیدا کړو. یعنې د قبرونو نه به یې راپاڅوؤ، دا وعده په مونږ باندې لازم ده. او یقینًا (کومه وعده |

وَأَوَّلُ مَنْ يُكْسَى يَوْمَ الْقِيَامَةِ

چې کړیده، د هغې پور) کونکې مونږیو. بیا نبی کریم ﷺ وفرمایل: د قیامت په ورځ چې به د ټولو خلکو نه

إِبْرَاهِيمُ وَإِنَّ نَاسًا مِنْ أُصْحَابِي يُؤْخَذُ بِهِمْ

مخکې کوم سړي ته جامه اغوستلی کیږیه هغه به حضرت ابراهیم علیه السلام وي، او زما څه صحابه به نیول شوي وي

ذَاتَ الشِّمَالِ فَأَقُولُ:

او چپ اړخ ته به (یعني دوزخ اړخ ته) به روان کړی شوي وي. نو زه به دا کتلو سره د حیرانتیا او استعجاب

أُصَيْحَابِي أُصَيْحَابِي فَيَقُولُ:

په توګه باندې هغوي ته د نجات ورکولو لپاره ووایم چې دا زما صحابه دي. دا زما صحابه دي. خدای تعالی به وفرمایي

إِنَّهُمْ لَنْ يَزَالُوا مرتدين على أَعْقَابهم مذ فَارَقْتهمْ.

چې د کوم وخت نه چې ته د دوي نه جدا شوی یې. دوې د هغه وخت نه د دین سرغړونه کوله. نو زه به هم

فَأَقُول كَمَا قَالَ الْعَبْدُ الصَّالِحُ: (وَكُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا مَا دمت فيهم)

هغه ووایم چې نیک بنده یعني حضرت عیسی علیه السلام ویلې ؤ چې ﴿وَكُنْتُ شَهِيدًا مَادُمْتُ فِيهِمْ...

إِلى قَوْله : ( الْعَزِيز الْحَكِيم ) . ( مُتَّفق عَلَيْهِ ). [1]

........العزیز الحکم﴾ یعني ترڅو چې زه د دوې په مینځ کې ژوندې وم، زه د دوې د حالتونو نه خبر ؤم. الخ

**توضیح: حفاة** : په خپو باندې لوڅ، **عراة**: یعني غیر مختون، ناسونته به وي. **واول من یکسٰی**: نمرود اور ته د ګوزارولو په وخت کې د ابراهیم علیه السلام نه جامې ایستلي وي، نو د هغې په بدله کې د اعزاز په توګه د قیامت په ورځ هغه ته د ټولو نه مخکې جامې واغوستلی شي. علماؤ لیکلي دي چې او لد جامو اغوستلو دا اعزاز چې کوم ابراهیم علیه السلام ته ورکړی کیږي ، دا اولیت حقیقي ندی بلکې اضافي اولیت دی. څکه چې نبی کریم ﷺ په بل روایت کې فرمایلې دي چې د ټولو نه مخکې به ماته جامې واغوستلی شي، یاممکنه ده ، حقیقي اولیت وي.(مرقات ۹/۴۷۳)

**اصیحابي اصیحابي** :دې خلکو خو به دنیا کې په نبی کریم ﷺ باندې ایمان راوړی وي، لهٰذا نبی کریم ﷺ به دوې د علاماتو نه وپیژني، او وبه فرمایې چې دا خو زما غریب او عاجز

---

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۳۸۶ رقم الحديث ۳۳۴۹ ومسلم في صحيحه ۴/۲۱۹۴ رقم الحديث (۲۸۶۰-۵۸)

ملګري دي. دوې چپ اړخ ته چیرته دوزخ ته بوځی؟ **مرتدین**: فرښتي به جواب ورکړي چې تاته معلومه نده چې دا خلک ستا نه وروسته د دین اسلام نه مرتد شوي ؤ، دا فتنه ارتداد ته اشاره ده. چې هغه د نبی کریم ﷺ نه وروسته په عهد صدیقي رضي الله عنه کې پیښه شوه. ځینو علماؤ لیکلي دي چې اصیحابی نه مراد د نبی کریم ﷺ صحابه ندي بلکې په نبی کریم ﷺ باندې ایمان راوړونکې د نبی کریم ﷺ ملګري یعنې امتیان مراد دي. چې ایمان یې راوړو او بیا مرتد شول. ارتداد هم عام دی چې اسلام یې پریخودلو یا دین کې یې نوې شیان داخل کړل لکه بدعتیان او اهل باطل. (مرقات۹/۴۷۴)

## محشر کې به نر ښځې ټول بربنډ وي

| |
|---|
| ﴿۵﴾وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «يُحْشَرُ النَّاسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ |
| او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایې چې ما د رسول الله ﷺ نه دا اوریدلي دي چې د قیامت په ورځ به خلک |
| حُفَاةً عُرَاةً غُرْلًا» . قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ الرِّجَالُ وَالنِّسَاءُ جَمِيعًا |
| لوڅې خپې او لوڅ بدن راغونډ کړی شي. ما وویل چې یا رسول الله! آیا د نر ښځو ټولو به دغه حال وي. او |
| يَنْظُرُ بَعْضُهُمْ إِلَى بَعْضٍ؟ فَقَالَ: «يَا عَائِشَةُ الْأَمْرُ أَشَدُّ |
| هغوی به لوڅ یو بل ته ګوري؟ نبی کریم ﷺ وفرمایل: د هغه ورځې معامله به د دې نه ډیره ویرونکې وي |
| مِنْ أَنْ يَنْظُرَ بَعْضُهُمْ إِلَى بَعْضٍ» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1] |
| چې څوک چا ته نظر پورته کولو سره وګوري. |

**توضیح**: الامر اشد: یعنې معامله به د دې نه ډیره سخته وي، چې څوک چاته وکتلی شي، هلته به د نفسی نفسی عالم وي، هیچا ته به هم معلومه نوي چې دا نر دی که ښځه ده، لوڅ دی که په پرده کې دی.

## دوزخیان به پر مخې محشر ته راځي

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَجُلًا قَالَ: يَا نَبِيَّ اللهِ كَيْفَ يُحْشَرُ الْكَافِرُ عَلَى وَجْهِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟ |
| او حضرت انس رضي الله عنه فرمایې چې یو سړي وویل: یا نبی الله! د قیامت په ورځ به کافر پر مخې څنګه محشر |
| قَالَ: «أَلَيْسَ الَّذِي أَمْشَاهُ عَلَى الرِّجْلَيْنِ فِي الدُّنْيَا |
| ته راځي؟ نبی کریم ﷺ وفرمایل: حقیقت دا دی چې کوم ذات په دنیا کې هغوی په خپو باندې ګرځولي دي، |

---

([1])اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۳۷۷ رقم الحديث ۶۵۲۷ ومسلم في صحيحه ۴/۲۱۹۴ رقم الحديث (۲۸۵۹-۵۶).

قَادِرًا عَلَى أَنْ يُمْشِيَهُ عَلَى وَجْهِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1]

هغه ذات به د قيامت په ورځ باندې هغوي پر مخې راوستلو باندې هم قادر دی.

## د حضرت ابراهيم عليه السلام د پلار حشر

﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت ابو هريره رضي الله عنه نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه روايت كوي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل:

" يَلْقَى إِبْرَاهِيمُ أَبَاهُ آزَرَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَعَلَى وَجْهِ آزَرَ قَتَرَةٌ

د قيامت په ورځ به د خپل پلار آزر سره په دې حال كې مخ كيږي چې د آزر مخ به (د غم او فكر په وجه) تور شوى وي. او ګردونو

وَغَبَرَةٌ فَيَقُولُ لَهُ إِبْرَاهِيمُ: أَلَمْ أَقُلْ لَكَ:

به وهلى وي. حضرت ابراهيم عليه السلام (دې كتلو سره به په افسوس) و وايي چې آيا ما به تا ته نه ويله چې زما

لَا تَعْصِنِي؟ فَيَقُولُ لَهُ أَبُوهُ: فَالْيَوْمَ لَا أَعْصِيكَ.

نافرماني مكوه؟ د هغه پلار آزر به هغه ته و وايي: چې زه به نن ورځې ستا نافرماني نكوم. ابراهيم عليه السلام

فَيَقُولُ إِبْرَاهِيمُ: يَا رَبِّ إِنَّكَ وَعَدْتَنِي أَلَّا تُخْزِيَنِي يَوْمَ يُبْعَثُونَ

به و وايي چې زما ربه! تا زما سره وعده كړې وه چې په هغه ورځ باندې چې بيا خلك راپاڅولى شي، ته به ما

فَأَيُّ خِزْيٍ أَخْزَى مِنْ أَبِي

نه ذليله كوې. نو د خپل پلار د ذلت او رسوايي نه لويه رسوايي او ذلت بل كوم كيدلى شي؟ چې هغه ستا د

الْأَبْعَدِ فَيَقُولُ اللهُ تَعَالَى: إِنِّي

رحمت نه دومره ليرې دى. الله تعالى به و فرمايي چې ابراهيم! نن ورځې ستا د پلار په حق كې ستا د مغفرت

حَرَّمْتُ الْجَنَّةَ عَلَى الْكَافِرِينَ ثُمَّ

او نجات دعاء نشي قبليدلى. ځكه چې هغه كافر دى. او ما جنت به كافرانو باندې حرام كړيدى. بيا به

يُقَالُ لِإِبْرَاهِيمَ: مَا تَحْتَ رِجْلَيْكَ؟

حضرت ابراهيم عليه السلام ته و ويلى شي چې لاندې و ګوره! ستا په خپو كې څه شى دى! حضرت ابراهيم عليه السلام

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۸/۴۹۲ رقم الحديث ۴۷۶۰ ومسلم في صحيحه ۴/۲۱۶۱ رقم الحديث (۸۰۶-۵۴)

| فَيَنْظُرُ | فَإِذَا | هُوَ | بِذِيخٍ | مُتَلَطِّخٍ |
|---|---|---|---|---|

به خپلو خپو ارخ ته وګوري، نو وبه ګوري چې آزر کفتار يعنې کوترې په کې کې خاورې او خاشنو کې

فَيُؤْخَذُ بقوائمه فَيُلْقَى فِي النَّارِ ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1]

لت پت ککړ پروت وي. بيا د ده (ازر) خپې به ونيي او اور ته به يې ګوزار کړی شي.

**توضيح: الابعد:** يعنې هغه پلار چې هغه ستا د رحمت نه ليرې کيدلو باندې هلاک شو.

**ذيخ:** يو ځناور ته ذيخ ويلی کيږي. چې دهغې نوم کفتار يا کوتره ده. **متلطخ:** يعنې په خپله ګندګۍ او خاورو کې به ککړ وي. (مرقات ۹/۴۷۷)

## ميدان محشر کې بهيدونکې خوله

﴿۸﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَعْرَقُ النَّاسُ

او حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: دقيامت په ورځ به په خلکو خوله راځي

يَوْمَ الْقِيَامَةِ حَتَّى يَذْهَبَ عَرَقُهُمْ فِي الْأَرْضِ سَبْعِينَ ذِرَاعًا وَيُلْجِمُهُمْ

او هغه خوله په دې توګه بهيږي چې په زمکه کې به او يا ګزه د ننه لاړه شي، او د دې خلکو لپاره به واګې جوړ

حَتَّى يَبْلُغَ آذَانَهُمْ» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[2]

شي تردې چې د دوې غوږونو ته به ورسيږي.

## ميدان محشر کې به لمر ډير نژدې وي

﴿۹﴾ وَعَنِ الْمِقْدَادِ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «تُدْنَى الشَّمْسُ

او حضرت مقداد رضي الله عنه فرمايي چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چې د قيامت په ورځ به لمر مخلوق

يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنَ الْخَلْقِ حَتَّى تَكُونَ مِنْهُمْ كَمِقْدَارِ مِيلٍ فَيَكُونُ النَّاسُ

ته نژدې کړی شي. تردې چې هغه به د دوې نه د يو ميل په فاصله باندې وي. نو ټول خلک به د خپلو اعمالو

عَلَى قَدْرِ أَعْمَالِهِمْ فِي الْعَرَقِ فَمِنْهُمْ مَنْ يَكُونُ إِلَى كَعْبَيْهِ

په اندازه باندې په خولو کې ډوب وي. نو په دوې کې به ځينې هغه خلک وي چې دهغوې ترګيټو پورې به

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۳۸۷ رقم الحديث ۳۳۵۰.

[2] أخرجه البخاري ۱۱/۳۹۲ رقم الحديث ۶۵۳۲ ومسلم في صحيحه ۴/۲۱۹۶ رقم الحديث (۲۸۶۳-۶۱).

وَمِنْهُمْ مَنْ يَكُونُ إِلَى رُكْبَتَيْهِ وَمِنْهُمْ مَنْ
خوله وي. ځيني به هغه خلک وي چې د هغوی ترزنګونانو پورې به خوله وي. ځيني به هغه وي چې د هغوی
يَكُونُ إِلَى حَقْوَيْهِ وَمِنْهُمْ مَنْ يُلْجِمُهُمُ الْعَرَقُ إِلْجَامًا»
ترملا (شاه) پورې به خوله وي. او ځيني به هغه وي چې د هغوی لپاره به د هغوی خوله واګي جوړ شي.
وَ أَشَارَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ إِلَى فِيهِ. رَوَاهُ مُسلم[1]
دې وينا سره نبی کريم ﷺ خپل لاس مبارک خپل سر مبارک اړخ ته اشاره وکړه.

**توضيح**: د ميل نه اته فرلانګه باندې مشتمل مشهور ميل مراد دی. رانجه لګولو ډکی مراد نه دی، لکه څنګه چې بعضو ويلي دي. (مرقات ۹/۴۷۷)

## په جنت کې به د امت محمديه خلک د ټولو نه ډيروي

﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " يَقُولُ اللهُ تَعَالَى:
او حضرت ابو سعيد خدری رضي الله عنه د نبی کريم ﷺ نه روايت کوي چې نبی کريم ﷺ وفرمايل: الله تعالی
يَا آدَمُ فَيَقُولُ: لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ
به آواز وکړي چې ای آدم! آدم عليه السلام به جواب ورکړي چې زه حاضر يم. ستا تابعداری لپاره تيار يم. ټولې
وَالْخَيْرُ كُلُّهُ فِي يَدَيْكَ. قَالَ: أَخْرِجْ بَعْثَ النَّارِ. قَالَ:
نيکړې ستا په لاسونو کې دي. الله تعالی به وفرمايي: د اور والا لښکر راوباسه. آدم عليه السلام به ووايي:
وَمَا بَعْثُ النَّارِ؟ قَالَ: مِنْ كُلِّ أَلْفٍ تِسْعَمِائَةٍ وَتِسْعَةً وَتِسْعِينَ
چې د دوزخيانو د لښکر شميره څومره ده؟ الله تعالی به وفرمايي چې د هر زرو نه نهه سوه نهه نوي (۹۹۹)
فَعِنْدَهُ يَشِيبُ الصَّغِيرُ (وَتَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمْلٍ حَمْلَهَا
(دوزخ لپاره او يو جنت لپاره) د خدای دا حکم اوريدلو سره به ماشوم بوډا شي. او هره حامله ښځه به خپل
وَتَرَى النَّاسَ سُكَارَى
حمل ضائع کړي. او هغه وخت به تاسو وويني. چې خلک ګويا په نشه کې مست دي. حالانکې هغوی به

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۱۹۶ رقم الحديث (۲۸۶۴-۶۲) والترمذي في السنن ۴/۵۳۱ رقم الحديث ۲۴۲۱.

وَمَا هُمْ بِسُكَارَى وَلَكِنَّ عَذَابَ اللهِ شَدِيدٌ)قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ وَأَيُّنَا ذَلِكَ الْوَاحِدُ؟

مست نوي. بلكې د عذاب الهی به ډير سخت وي. صحابؤ وويل: چې هغه بو به په مونږ كې څوک وي؟

قَالَ: «أَبْشِرُوا فَإِنَّ مِنْكُمْ رَجُلًا وَمِنْ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ أَلْفٌ»

نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: اطمينان لرئ، غم مه كوئ، يو سړی به ستاسو نه وي او زر كسان به د ياجوج ماجوج نه

ثُمَّ قَالَ: «وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ أَرْجُو

وي. بيا نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: په هغه ذات قسم د چا په لاس كې چې زما ساه ده، زما اميد دی چې تاسو د

أَنْ تَكُونُوا رُبُعَ أَهْلِ الْجَنَّةِ»

جنتيانو د ټولې شميرې څلورمه برخه به ياست. ابو سعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې دې اوريدلو سره مونږ

فَكَبَّرْنَا. فَقَالَ: «أَرْجُو أَنْ تَكُونُوا ثُلُثَ أَهْلِ الْجَنَّةِ» فَكَبَّرْنَا فَقَالَ: «أَرْجُو أَنْ تَكُونُوا

د تكبير نعره پورته كړه. نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې زه اميد لرم چې تاسو به د مجموعي جنتيانو د شميرې

نِصْفَ أَهْلِ الْجَنَّةِ» فَكَبَّرْنَا قَالَ: «مَا أَنْتُمْ فِي النَّاسِ

نيمه برخه ياست، مونږ بيا د تكبير نعره پورته كړه. بيا نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې په دې دنيا

إِلَّا كَالشَّعْرَةِ السَّوْدَاءِ فِي جِلْدِ ثَوْرٍ أَبْيَضَ

كې په خلكو كې ستاسو شميره دومره كمه ده بلكه د سپين غوايي په بدن باندې يو تور داغ يا يو تور

أَوْ كشعرة بَيْضَاءَ فِي جِلْدِ ثَوْرٍ أَسْوَدَ» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1]

غوايي به بدن باندې يو سپين ويخته. (بخاری مسلم)

**توضيح: بعث النار:** يعنې د دوزخ برخه بيلولو باندې وليږه. **فكبرنا:** معلومه شوه چې د خوشحالۍ په موقع باندې نعره تكبير كول جائز دي. دې ته بدعت ويل خپله بدعت دی. **كالشعرة السودا:** د دې جملې مطلب دا دی چې حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ نه واخله تر نبی آخر زمان صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پورې چې څومره انسانان دي كه د نبی اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د امت سره وكړی شي نو دا به ډير كم خلک پاتې شي. لكه د يو جزء برابر كيدلی. يا د غوايي په بدن كې عام رنګ نه غيره چې كوم توريا سپين رنګ وي، د غه شان د داغ بنځ برابر كيدلی شي. دا لږ حيثيت به ستاسو وي. خو د دې قلت سره هم چې كله په جنت كې ستاسو حيثيت وكتلی شي نو تاسو به د جنتيانو د نيمې برابر ياست. صحابې فرمايي چې مونږ د خوشحالۍ نه د تكبير چيغه پورته كړه، د دېنه معلومه شوه چې د

---

(۱)اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۳۸۲ رقم الحديث ۳۳۴۸ ومسلم في صحيحه ۱/۲۰۱ رقم الحديث (۲۲۲-۲۷۹)

خوشحالۍ د ښکاره کولو لپاره نعره تکبیر او چتول منع نه دي. (مرقات ۹/۴۸۱)

## د رياكار عبادت قبول نه دی

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْهُ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «يَكْشِفُ رَبُّنَا |
| او حضرت ابو سعید خدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دي چې زمونږ رب به خپله |
| عَنْ سَاقِهِ فَيَسْجُدُ لَهُ كُلُّ مُؤْمِنٍ وَمُؤْمِنَةٍ وَيَبْقَى |
| پونډۍ برسيره کړي، نو ټول مؤمنان نارينه او ښځې به هغې ته سجده وکړي ليکن هغه سړی به سجده نکوي |
| مَنْ كَانَ يَسْجُدُ فِي الدُّنْيَا رِيَاءً وَسُمْعَةً فَيَذْهَبُ لِيَسْجُدَ |
| چې هغه په دنيا کې د ځان ښودنې او اورونې لپاره سجده کوله. هغه به سجده کول غواړي، خو د هغه ملا به د |
| فَيَعُودُ ظَهْرُهُ طَبَقًا وَاحِدًا » . ( مُتَّفق عَلَيْهِ ) .[۱] |
| يو بې پيونده (نيغ) هډوکې به شان جوړه شي، چې د هغې د وجې نه به دا په سجده کولو باندې قادر نوي. |
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَيَأْتِي الرَّجُلُ الْعَظِيمُ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د قيامت په ورځ به يو غټ او |
| السَّمِينُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَا يَزِنُ عِنْدَ اللهِ جَنَاحَ بعوضة». |
| څرب سړی راشي ليکن د الله تعالى په نزد به هغه د مچ د وزر هومره حيثيت او هيڅ قدر منزلت به نه لري. |
| وَ قَالَ : " اقرؤوا : ( فَلَا نُقِيمُ لَهُم يومَ القيامةِ وَزْناً ) . ( مُتَّفق عَلَيْهِ).[۲] |
| او تاسو دا آيت وايی: ﴿فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا﴾ د قيامت په ورځ به مونږ دوی لره هيڅ قدر او منزلت نه ورکوو. |

**توضيح**: د خالص کافر لپاره د اعمالو د وزن ضرورت نشته دی. هغه به نيغ جهنم ته ځي. لکه په قرآن کې دی: ﴿فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا﴾ او لکه څنګه چې په حديث کې دي خو دلته پوښتنه دا ده چې قران کې ايت ﴿وَالْوَزْنُ يَوْمَئِذٍ الْحَقُّ لِلرَّحْمٰنِ﴾ پاک وايي چې د اعمالو وزن به کيږي. دا تعارض دی. نو د دې جواب دا دی چې د قيامت احوال مختلف دي، په ځينو احوالو کې به وزن کيږي او په ځينو کې به نکيږي. د غه شان په حديث کې چې چې راغلي دي، د هغې مطلب د حديث د سياق سباق نه دا معلوميږي چې د عمل خو به وزن کيږي خو په وزن کې به وزن نوي. بلکې عمل به بې وزنه وي، خلاصه دا چې هيڅ تعارض نشته دی.

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۸/۶۶۳ رقم الحديث ۴۹۱۹ ومسلم في صحيحه ۱/۱۶۸ رقم الحديث ۱۸۳-۳۰۲)

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۸/۶۶۳ رقم الحديث ۴۹۱۹ ومسلم فيصحيحه ۱/۱۶۸ رقم الحديث ۱۸۳-۳۰۲)

(مرقات۴۸۴/۹)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## د قیامت په ورځ به زمکه خپله د هر سړي په عمل باندې ګواه جوړه شي

﴿۱۳﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَرَأَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذِهِ الْآيَةَ: (يَوْمَئِذٍ تُحَدِّثُ أَخْبَارَهَا)

حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دا آیت تلاوت کړو (په کومه ورځ چې زمکه خپل خبرونه اوروي)

قَالَ: أَتَدْرُونَ مَا أَخْبَارُهَا؟ " قَالُوا: اللهُ وَرَسُولُهُ

او وې فرمایل چې تاسو پوهیږئ چې د زمکې خبرونه به څه وي؟ صحابؤ عرض وکړو چې الله او د هغه رسول

أَعْلَمُ. قَالَ: " فَإِنَّ أَخْبَارَهَا أَنْ تَشْهَدَ

ښه پوهیږي. نبی کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل: د زمکې خبرونه به دا وي چې هغه به هر نارینه او ښځې د

عَلَى كُلِّ عَبْدٍ وَأَمَةٍ بِمَا عَمِلَ عَلَى ظَهْرِهَا أَنْ تَقُولَ:

هغه عمل ګواهي ورکوي چې د هغې په شا باندې شوي وي. (یعنې) هغه به په دې توګه وایي چې زما

عَمِلَ عَلَيَّ كَذَا وَكَذَا يومَ كَذَا وَكَذَا ". قَالَ:

په ملا باندې فلانکي ورځ باندې دا کړیدي او هغه کړیدي. بیا نبی کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل:

«فَهَذِهِ أَخْبَارُهَا» . رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ[1]

بس هم دا د زمکې خبري دي. (مسند احمد، ترمذی او ترمذی وائی دا حدیث حسن غریب دې)

﴿۱۴﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا مِنْ أَحَدٍ يَمُوتُ

او حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل: داسې هیڅ سړی نشته چې هغه مړ شي

إِلَّا نَدِمَ» . قَالُوا: وَمَا نَدَامَتُهُ يَا رَسُولَ اللهِ؟ قَالَ:

او پښیمانه نوي. صحابؤ عرض وکړو چې یا رسول الله! د پښیمانتیا سبب څه وي؟ نبی کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل:

«إِنْ كَانَ مُحْسِنًا نَدِمَ أَنْ لَا يَكُونَ ازْدَادَ وَإِنْ كَانَ مُسِيئًا

که هغه نیک عمله وي نو ځکه پښیمانه وي چې د دې نه یې ډیرې نیکۍ ولې ندي کړي. او که هغه بد کاره

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۵۳۵/۴ رقم الحدیث ۲۴۲۹ واحمد في المسند ۳۷۴/۲.

نَدِمَ أَنْ لَا يَكُونَ لزع ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[1]

وي نو ځکه پښيمانه وي چې هغه خپل ځان د بدۍ نه ولې نه ايسارولو.

﴿۱۵﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " يُحْشَرُ النَّاسُ

او حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د قيامت په ورځ د حشر په ميدان کې

يَوْمَ الْقِيَامَةِ ثَلَاثَةَ أَصْنَافٍ: صِنْفًا مُشَاةً

خلک به په دې قسمه باندې راوستلی شي، يو قِسم خلک به خو به هغه وي چې پيدل به راروان وي. يو قسم

وَصِنْفًا رُكْبَانًا وَ صِنْفًا عَلَى وُجُوهِهِمْ " قِيلَ:

به هغه خلک وي چې په سپاره به راځي. او يو قِسم به هغه خلک وي چې پړمخې به راځي، عرض وکړی شو چې

يَا رَسُولَ اللهِ وَكَيْفَ يَمْشُونَ عَلَى وُجُوهِهِمْ؟ قَالَ: «إِنَّ الَّذِي أَمْشَاهُمْ عَلَى أَقْدَامِهِمْ

چې پړمخې به څنګه راروان وي؟ نبی کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: حقيقت دا دی چې کوم ذات هغوی په خپو باندې

قَادِرٌ عَلَى أَنْ يُمْشِيَهُمْ عَلَى وُجُوهِهِمْ أَمَا إِنَّهُمْ

ګرځولي دي، هغه دوی لره پړمخې ګرځولو باندې قادر دی. او پوهه شئ چې دغه خلک به پړمخې مزل کې

يَتَّقُونَ بِوُجُوهِهِمْ كُلَّ حَدَبٍ وَشَوْكٍ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[2]

مخونه او خُلې د وچتوالې او غنو نه ساتي. (ترمذی)

**توضيح: مشاة:** دا به ګناهګار مسلمانان وي. **ركبانًا:** دا به انبياء عليهم السلام وي. **على وجههم:** دا نسکور، پړمخې مزل کونکې به کافر وي. بهرحال ميدان حشر ته راتلونکو به دغه درې طريقې وي. د دېنه مخکښې حديث نمبر: ۳ کې هم تفصيل تير شويدی. او راتلونکې حديث نمبر: ۱۷ کې هم دغه مضمون دی. (مرقات ۹/۴۸۵)

﴿۱۶﴾ وَعَنِابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ

او حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: کوم سړی چې د قيامت ورځ داسې کتل

كَأَنَّهُ رَأْيُ عَيْنٍ فَلْيَقْرَأْ: ﴿إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ﴾

خوښوي لکه څنګه چې هغه په سترګو باندې ويني، نو هغه لره پکار دي چې سورة إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ.

---

(1) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۲۲ رقم الحديث ۲۴۰۳ والنسائي في السنن ۴/۲ رقم الحديث ۱۸۱۸.

(2) اخرجه الترمذي في السنن ۵/۲۸۵ رقم الحديث ۳۱۴۲ واحمد في المسند ۲/۳۵۴.

| و (إِذَا السَّمَاءُ انفطرَتْ) و (إِذَا السَّمَاءُ انشقَّتْ) رَوَاهُ أَحْمد وَالتِّرْمِذِيّ[1] |
|---|
| سورة إِذَا السَّمَاءُ انفطرَتْ او سورة إِذَا السَّمَاءُ انشقَّتْ ووايي. (ترمذى) |

# الْفَصْلُ الثَّالِث

| (۱۷) عَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: إِنَّ الصَّادِقَ الْمَصْدُوقَ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَنِي: " أَنَّ النَّاسَ |
|---|
| حضرت ابوذر رضي الله عنه فرمايي چې صادق او مصدوق صلى الله عليه وسلم ماته بيان کړل چې چې خلک به په |
| يُحْشَرُونَ ثَلَاثَةَ أَفْوَاجٍ: فَوْجًا رَاكِبِينَ طَاعِمِينَ كَاسِينَ |
| درې ډلو کې ميدان محشر ته راوستلی شي، يوه ډله خو به په سپرلو باندې وي، او د لارې د توخې او اساتياوې به ور سره راځي |
| وفوجا تسحبنهم الْمَلَائِكَةُ عَلَى وُجُوهِهِمْ وَتَحْشُرُهُمُ النَّارُ |
| يوه ډله به هغه وي چې هغه به فرښتې پر مخې په راخکلو راولي. او په شړلو به يې دوزخ اړخ ته بوځي. يوه ډله |
| وَفَوْجًا يَمْشُونَ وَيَسْعَوْنَ وَيُلْقِي الله الْآفَةَ عَلَى الظَّهْرِ |
| به هغه وي چې هغه به په منډه باندې راځي. او الله تعالى به (د سپرلۍ د ځناورو) په شاګانو باندې مصيبت |
| فَلَا يَبْقَى حَتَّى إِنَّ الرَّجُلَ لَتَكُونُ لَهُ الْحَدِيقَةُ يُعْطِيهَا |
| او هلاکت مسلط کړي. چې د هغې د وجې نه به ځناور ختم شي. تردې چې که يو سړي سره باغ وي نو هغه |
| بِذَاتِ الْقَتَبِ لَا يَقْدِرُ عَلَيْهَا ". رَوَاهُ النَّسَائِيّ[2] |
| به باغ ورکولو باندې او ښ اخستل غواړي ليکن هغه به او ښ نشي ترلاسه کولی. |

**توضيح**: **طاعمين كاسين**: يعنې په خوراک څکاک او ښايسته جامې اغوستي په سپرلو باندې به سپاره راځي. دا به انبياء کرام وي. **يسحبهم الملائكة**: دا به کافر وي. فرښتې به هغوی پر مخې په راخکلو باندې بوځي. **يمشون**: دا به عام مسلمانان وي. (مرقات ۹/۴۸۷)

**على الظهر**: ظهر د ملا (شاه) په معنى دی. سپرلۍ مراد ده. يعنې الله تعالى به په فرښتو باندې آفت نازل کړي. تردې چې يو سړی به ورباندې خپل باغ ورکوي خو سپرلۍ به نه ورکولی کيږي. (مرقات ۹/۴۸۷)

---

(۱) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۴۰۳ رقم الحديث ۳۳۳۳ وأحمد في المسند ۲/۱۰۰.

(۲) أخرجه النسائي في السنن ۴/۱۱۶ رقم الحديث ۲۰۸۶.

١١ جمادى الثاني ١٤١٨هـ

# باب الحساب والقصاص والميزان

## دحساب کتاب بيان

قال الله تعالى: ﴿فَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَٰبَهُۥ بِيَمِينِهِۦ ۝ فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَسِيرًا ۝ وَيَنقَلِبُ إِلَىٰٓ أَهْلِهِۦ مَسْرُورًا ۝ وَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَٰبَهُۥ وَرَآءَ ظَهْرِهِۦ ۝ فَسَوْفَ يَدْعُوا۟ ثُبُورًا ۝ وَيَصْلَىٰ سَعِيرًا ۝﴾ (سورة الانشقاق ۱۲)

**الحساب:** په دې عنوان کې د حساب نه مراد د قيامت په ورځ باندې د بنديګانو اعمال شميرل او د هغې حساب کول. دا خبره بيخي واضحه او ښکاره ده. چې د انسانانو د اعمالو او کردار پورا پورا علم د الله تعالى سره دی. ليکن په قيامت کې به د انسانانو د اعمالو حساب کتاب ځکه کيږي، دې لپاره چې ظاهرې او قانونې عدالت د لاندې ټولو خلکو باندې واضحه شي، چې په دنيا کې چا څه وکړل. او څوک د کومې درجې د ښويې حقدار دی؟ په قيامت کې دا حساب کتاب کول د قرآن او حديث نه ثابت دي. او د هر مسلمان د عقيدې برخه ده.

**القصاص:** قصاص، برابروالې او مساوات په معنى دی. د دې نه مراد دا دی چې چا په دنيا کې څه کړيدي يا د چا سره يې څه ناروا ښويې کړيدی. په قيامت کې به د هغې بدله اخستلی کيږي. مثلاً قتل يې وکړو، يا يې څوک ټپي (زخمې) کړل، يا يې په چا باندې ظلم وکړو، يا يې چا ته څه تکليف رسولی دی. نو د ده نه به بدله اخستلی کيږي. او حق به حقدار ته ورکولی کيږي. دا قصاص دی.

**الميزان:** ميزان نه مراد دا دی چې ميدان محشر کې به يوه غټه تله وي. چې د هغې به دوه پلې وي، د هغې په ذريعه به د انسانانو عملونه تللی کيږي. که هغه ښه عملونه وي او که بد. بيا به د هغې په مطابق باندې د ثواب او عذاب قانون ورته متوجې کيږي. په دې باب کې به د دې درې واړو عنواناتو متعلق احاديث وي.

# الفصل الأول

## آسان حساب او سخت حساب

﴿۱﴾ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «لَيْسَ أَحَدٌ يُحَاسَبُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

حضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت دی چې نبی کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د قيامت په ورځ باندې چې د چا نه حساب

إِلَّا هَلَكَ». قلتُ: أَوَ لَيْسَ يقولُ الله:

واخستلی شو، هغه به تباه شي. حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې وويل: الله تعالى د حساب په اړه باندې

(فسوفَ يُحاسبُ حساباً يَسِيرا)

ندې فرمايلې چې (فَسَوۡفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَسِيرًا) يعنې د کوم سړې اعمال نامه چې په ښي لاس کې ورکړې

فَقَالَ: «إِنَّمَا ذَلِكَ الْعَرْضُ

شوه نو نژدې ده چې د هغه حساب آسان وي. نبی کريم ﷺ و فرمايل: دا آسان حساب فقط وړاندې

وَ لَكِنْ مَنْ نُوقِشَ فِي الْحِساب يهلكُ » . مُتَّفق عَلَيْه [۱]

کول او بيان محض دی. ليکن د چا سره چې په حساب کې مناقشه وشوه ، هغه به يقيناً تباه وي.

**توضيح: انماذٰلك العرض:** په دې حديث کې دي چې د کوم سړې نه د قيامت په ورځ باندې حساب واخستلی شو ، هغه هلاک شو ، دې حديث اوريدلو سره حضرت عائشه رضي الله عنها و فرمايل : يارسول الله ﷺ الله تعالی خو په قرآن مجيد کې فرمايې : (فَسَوۡفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَسِيرًا) چې په قيامت کې به حساب آسان وي او ته فرمايې چې د چا نه حساب واخستلی شو ، هغه هلاک شو. د دې په جواب کې نبی کريم ﷺ په حساب کې فرق وښودلو چې يو حساب د عرض په درجه کې دی. او يو حساب د مناقشې په درجه کې دی.

عرض دا دی چې مثلاً : سړی د حساب دفتر ته حاضر شو او هغه د حساب کتاب نه بغير رخصت کړی شو. فقط ظاهرې توګه باندې ورته وښودلی شو. پوښتنه ترينه ونشوه. او مناقشه دا ده چې د يو شي په اړه باندې فرښتې پوښتني شروع کړي چې دا کار دې ولې کړی دی ؟ څنګه دې کړيدی؟ کله دې کړيدی؟ په دې مناقشه کې د هلاکت نه هيڅوک نشي بچ کيدلی. په راتلونکې حديث: ۱۳ کې هم دا مضمون دی. (مرقات۹/۴۸۹)

{۲} وَعَن عديِّ بن حاتِمٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسلم: «مَا مِنكُم أَحَدٍ

او حضرت عدی ابن حاتم رضي الله عنه فرمايې چې رسول الله ﷺ و فرمايل: د قيامت په ورځ به په تاسو کې هيڅوک

إِلَّا سَيُكَلِّمُهُ رَبُّهُ لَيْسَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُ تَرْجُمَانٌ

دا سې نوي. د چا سره چې د هغه رب خبرې نوي کړي. هغه وخت به د هغه او د هغه د رب ترمينځ هيڅوک

وَلَا حِجَابٌ يَحْجُبُهُ فَيَنْظُرُ أَيْمَنَ مِنْهُ

ترجمان نوي او نه به څه حجاب (پرده) وي. کله چې بنده خپل ښي اړخ ته نظر وکړي نو هغه ته به هغه څه

---

[۱] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۲۰۰ رقم الحديث ۶۵۳۶ ومسلم في صحيحه ۴/۲۲۰۴ رقم الحديث (۲۸۷۶-۷۹)

| |
|---|
| فَلَا يَرَى إِلَّا مَا قَدَّمَ مِنْ عَمَلِهِ وَيَنْظُرُ أَشْأَمَ مِنْهُ فَلَا يَرَى إِلَّا |
| په نظر راځي، او کله چې بنده خپل چپ اړخ ته نظر وکړي نو ده ته به هغه څه په نظر راځي چې ده مخکې |
| مَا قَدَّمَ وَيَنْظُرُ بَيْنَ يَدَيْهِ فَلَا يَرَى إِلَّا النَّارَ |
| لیږلي وي. او کله چې هغه خپلې مخې ته وګوري نو هغه به خپلې مخې ته اور په نظر راځي. نو تاسو ځان |
| تِلْقَاءَ وَجْهِهِ فَاتَّقُوا النَّارَ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1] |
| د دې نه وساتئ، اګر که د کهجورې په یوې ټوټې سره ولې نوي. |

**توضيح: ايمن:** جانب ايمن: ښي اړخ ته وايي. **اشأم:** جانب شمال ته اشأم وايي. چپ اړخ. (مرقات ۹/۴۹۰)

| |
|---|
| ﴿۲﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: " إِن الله يدني الْمُؤمن |
| او حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: الله تعالى به مؤمن خپل ځان ته رانژدې |
| فَيَضَع على كَنَفَهُ وَيَسْتُرُهُ |
| کړي او هغه به د خپل رحمت په سیورې کې پټ کړي. د دې لپاره چې هغه د محشر خلکو ته د خپلو ګناهونو |
| فَيَقُولُ: أَتَعْرِفُ ذَنْبَ كَذَا؟ |
| او بدعملو په وجه باندې شرمنده او رسوا نشي، او بیا به الله تعالى هغه ته ووايي چې آیا ته دا ګناه پیژني، ته دا ګناه |
| أَتَعْرِفُ ذَنْبَ كَذَا؟ فَيَقُول: نعم يَا رب |
| پیژني. هغه مؤمن به ووايي چې هو! ای ربه! ما ته خپله هغه ګناه یاده ده. او زه د خپلې بدعملۍ اقرار کوم لنډه |
| حَتَّى قَرَّرَهُ ذنُوبه وَرَأَى نَفْسِهِ أَنَّهُ قَدْ هَلَكَ. |
| دا چې الله تعالى ته به هغه د خپلو ټولو ګناهونو اقرار وکړي. او خپل زړه کې به وايي چې زه وس هلاک شوم |
| قَالَ: سَتَرْتُهَا عَلَيْكَ فِي الدُّنْيَا |
| لیکن الله تعالى به وفرمايي چې ما په دنیا کې ستا دغه ګناهونو او عیبونو باندې پرده اچولې وه او نن هم ستا |
| وَأَنَا أَغْفِرُهَا لَكَ الْيَوْمَ فَيُعْطَى كِتَابَ حَسَنَاتِهِ . وَأَمَّا الْكُفَّارُ |
| دغه ګناهونه معاف کوم. نو هغه ته به د ده د نیکیو اعمال نامه ورکړی شي. او تر کوم ځای بورې چې د کافرانو |

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۴۰۰ رقم الحديث ۶۵۳۹ ومسلم في صحيحه ۴/۷۰۳ رقم الحديث (۲۸۷۶-۷۹)

وَالْمُنَافِقُونَ فَيُنَادَى بِهِمْ على رؤوسِ الْخَلَائِقِ:

او منافقانو خلکو تعلق دی. نو هغه به د ټول مخلوق مخې ته راوغوختلی شي، او په چيغه به ورته وويلی شي

(هَؤُلَاءِ الَّذِينَ كَذَبُوا عَلَى رَبِّهِمْ أَلَا لعنةُ الله على الظالمينَ)مُتَّفق عَلَيْهِ[1]

چې دا هغه خلک دي چې دوي په خپل رب باندې دروغ تړلي ؤ. پوه شی! په ظالمانو باندې د خدای لعنت دی

## د هر انسان په جنت او دوزخ کې د ناستې ځای وي

﴿۴﴾وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ

او حضرت ابو موسى رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: کله چې د قيامت ورځ راشي نو هغه وخت

دَفَعَ الله إِلَى كُلِّ مُسْلِمٍ يَهُودِيًا أَوْ نَصْرَانِيًا

به الله تعالى هر مسلمان ته يو يهودي او يو نصراني وسپاري او وبه فرمايي چې دا سړی د دوزخ نه ستا خلاصون

فَيَقُولُ: هَذَا فِكَاكُكَ مِنَ النَّارِ "رَوَاهُ مُسلم"[2]

دی. يعنې د دوزخ نه ستا د خلاصون سبب دی.

**توضيح: هٰذا فكاكك: فكاك**: خلاصون ته وايي. اصولي توګه باندې په دې پوهيدل پکار دي چې د هر انسان لپاره په جنت او دوزخ کې يو يو د ناستې ځای د اول نه ټاکلی شويدی. وس نو کوم سړې چې د ناستې کوم ځای وکټلو نو دويم د ناستې ځای به پاتې شي. کوم چې پاتې شو هغه به بل سړې ته ورکړی شي. مثلًا: يو سړی مسلمان دی. او نيک دی. هغه د جنت چوکۍ (ناستې ځای) وګټلو نو د هغه د دوزخ چوکۍ به بل چاته ورکړی شي. يامثلًا يو سړی کافر دی، هندو، عيسايي يهودي دی، هغه د دوزخ چوکۍ وګټله نو د هغه د جنت چوکۍ به بل کوم مسلمان ته ورکړی شي. د قرآن آيت﴿تِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِيْ أُورِثْتُمُوْهَا﴾ کې چې د کوم ميراث اخ ته مفسرينو اشاره کړيده ، دهغې په مصداق کې د چوکو د بدلون دا ذکر هم دی. په زير بحث حديث کې د نبی کريم صلى الله عليه وسلم د فرمان دا مطلب شو چې هر مسلمان ته به يو يهودي يا عيسايي ورکړی شي. او مسلمان ته به وويلی شي چې د دوزخ د چوکۍ نه ستا د خلاصون ذريعه او سبب او بدله دا کافر دی. وس ته جنت ته د دې يللی شوې چوکۍ ته لاړ شه. او دا به دوزخ ته ستا يللی شوې چوکۍ ته لاړ شي، لهذا ته په خپل ځاې باندې دا دوزخ ته وليږه. دا سړی د دوزخ د اور په وجه باندې ستا د خلاصون سبب دی . ملا علی قاری رحمه الله په

---

([1])أخرجه البخاري في صحيحه ۵/۹۶ رقم الحديث ۲۴۴۱ ومسلم في صحيحه ۴/۲۱۲۰ رقم الحديث (۲۷۶۷-۵۲)

([2])أخرجه مسلم في صحيحه ۲۱۱۹ رقم الحديث (۲۷۶۷-۴۹) وابن ماجه في السنن ۲/۱۴۳۲ رقم الحديث ۴۲۸۵.

مرقات کې ليکلي دي چې: ﴿قال القاضی رحمه الله لما کان لکل مکلف مقعد من الجنة ومقعد من النار فمن امن حق الایمان بدل مقعده من النار بمقعده من الجنة ومن لم یؤمن فبالعکس کانت الکفرة کالخلف للمؤمنین فی مقاعدهم من النار والنائب منابهم وایضا لما سبق القسم الالٰهی بملء جهنم کان ملئها من الکفار خلاصا للمؤمنین ونجاة لهم من النار فهم فی ذلك کالفداء والفکاك﴾ (مرقات: ج۹\۴۹۲)

بهرحال د دې حديث هيچرې هم دا مطلب ندی چې د مسلمانانو په بدله کې يهود او نصارا به دوزخ ته واچولی شي، ځکه چې په قرآن کې واضح حکم دی چې ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرٰى﴾ چې د چا بوج به په بل باندې نه اچولی کيږي. دا خو د روافضو عقيده ده چې د هغوی ګناهونه به د قيامت په ورځ په سنيانو باندې اچولی کيږي. او د يهودو دا عقيده ده چې هغوی به يو څو ورځو لپاره دوزخ ته ځي بيا به د هغوی په ځای باندې مسلمانان دوزخ کې واچولی شي. او دا خو د عيسايانو غلطه عقيده ده چې ټول ګناهونه د مخکې نه معاف شويدي. ځکه چې د هغوی کفاره حضرت عيسی عَلَيْهِ السَّلَامُ ادا کړيده. او په سولی شويدی.

دلته دا خبره په ذهن کې ساتل پکار دي چې يهود او نصاری تذکره د نمونې اوشهرت په توګه باندې ده. ګنې دا معامله به د ټولو کافرو سره پيښيږي.

## دا اعتدال لار خپلولو په وجه به امت محمديه په قوم نوح باندې ګواه جوړيږي

| ﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " يُجَاءُ بِنُوحٍ |
|---|
| او حضرت ابوسعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: د قيامت په ورځ به حضرت نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيُقَالُ لَهُ: هَلْ بَلَّغْتَ؟ فَيَقُولُ: نَعَمْ |
| راوستلی شي، او د هغه نه به پوښتنه وشي چې آيا تا (خپل امت ته د خدای احکامات) رسولي ؤ. هغه به ووايي چې |
| يَا رَبِّ فَتُسْأَلُ أُمَّتُهُ: هَلْ بَلَّغَكُمْ؟ |
| بيشکه ای زما ربه (ما رسولي ؤ) بيا به د حضرت نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ د امت نه پوښتنه وشي چې آيا تاسو ته نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| فَيَقُولُونَ: مَا جَاءَنَا مِنْ نَذِيرٍ. |
| احکامات در رسولي ؤ. هغه خلک به انکار وکړي او وبه وايي چې مونږ ته خو هيڅوک يرونکی نه ؤ راغلی |
| فَيُقَالُ: مَنْ شُهُودُكَ؟ فَيَقُولُ: |
| او بيا به د نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ نه پوښتنه وشي چې ستا ګواه څوک دی؟ نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ به ووايي چې زما ګواه |

| |
|---|
| مُحَمَّدٌ وَأُمَّتُهُ ". فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| حضرت محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او دهغه د امت خلک دي. د دېنه وروسته نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: |
| «فيجاء بكم فتشهدون على أنّه قد بلّغ» |
| نو هله به تاسو پیش کړی شی او تاسو به ګواهي ورکړی چې حضرت نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ د خدای احکامات رسولي ؤ. بیا |
| ثُمَّ قَرَأَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (وَكَذَلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا |
| نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا آیت ولوستلو او دې وچې نمونږ (ای مسلمانانو) تاسو نیکان او عادل او افضل امت جوړ کړیدی. |
| لِتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ |
| دې لپاره چې تاسو په دې خلکو باندې (چې هغه ستاسو نه مخکې تیر شویدي او کفر او شرک باندې ولاړ ؤ) ګواهي ورکړی. |
| وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا) رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1] |
| او ستاسو ګواه به پیغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وي (بخاری) |

**توضیح**: د دې حدیث خلاصه دا ده چې د قیامت په ورځ به د حضرت نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ قوم ووایې چې نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ مونږ ته دعوت ندی راکړی. الله تعالی به د حضرت نوح نه پوښتنه وکړي نو حضرت نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ به ووایې چې ما ورته اوږد دعوت ورکړیدی. الله تعالی به وفرمایې: ستا ګواه څوک دی. هغه به وفرمایې: د محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امت زما ګواه دی. کله چې دا ګواهي ورکړي نو قوم د نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ به جرح وکړي چې دا خلک په زرګونو کلونه وروسته راغلي ؤ. دوی ته څه معلومه ده او دوی څنګه ګواهان جوړ شول. کله چې الله تعالی دوی نه پوښتنه وکړي نو امت مرحومه به جواب ورکړي چې مونږ قرآن لوستلی دی، کوم چې ریښتونې کتاب دی. په دې باندې به نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ راشي او د خپل امت تزکیه به وکړي. چې دوی ریښتیا وویله. نو دا امت په ټوله دنیا باندې به ګواه وي. او محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په خپل امت باندې ګواه جوړیږي. بریلیان دې سوچ وکړي چې د ګواه جوړیدلو مطلب څه دی؟ آیا ګواه جوړیدونکی حاضر او ناظر په معنی دی؟ بیا خو ټول امت حاضر او ناظر شو، بلکې د خپل نبی نه هم ډیر حاضر او ناظر شو. (مرقات ۹/۴۹۲)

## د قیامت په ورځ به د خپل بدن اندامونه ګواهي ورکوي

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: كُنَّا عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَضَحِكَ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایې چې مونږ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ناست ؤ چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ ناڅاپه په خندا شو |

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۳۷۱ رقم الحديث ۳۳۳۹

فَقَالَ: هَلْ تَدْرُونَ مِمَّا أَضْحَكُ؟ ". قَالَ: قُلْنَا: اللهُ

او بیا یې وفرمایل: تاسو پوهیږئ چې زه ولې خاندم؟ حضرت انس رضي الله عنه فرمایي چې مونږ وویل: الله

وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. قَالَ: "مِنْ مُخَاطَبَةِ الْعَبْدِ رَبَّهُ

او دهغه رسول بنه پوهیږي. نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: زه د بنده او د خدای ترمینځ مخامخ (خبرې کیدلو خیال

يَقُولُ: يَا رَبِّ أَلَمْ تُجِرْنِي مِنَ الظُّلْمِ؟ "

کولو باندې) خاندم. (په هغه ورځ به) بنده ووایې چې ای ربه! آیا تا ماته د ظلم نه پناه نه وه راکړې؟

قَالَ: " يَقُولُ: بَلَى ". قَالَ: " فَيَقُولُ: فَإِنِّي لَا أُجِيزُ عَلَى نَفْسِي

نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: الله تعالی به وفرمایي: چې هو! هله به بنده ووایې چې زه د خپل ځان په اړه د دېنه غیره

إِلَّا شَاهِدًا مِنِّي". قَالَ: فَيَقُولُ:

هیڅ نه غواړم چې زما په اړه باندې ګواهي ورکونکې زمانه وي. نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: الله تعالی به وفرمایې:

كَفَى بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ شَهِيدًا وَبِالْكِرَامِ الْكَاتِبِينَ شُهُودًا ". قَالَ:"

چې نن ورځ به ستا په اړه خپله ستا ذات ګواهي ورکوي. نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: بیا به د بنده په خُله باندې

فَيُخْتَمُ عَلَى فِيهِ فَيُقَالُ لِأَرْكَانِهِ: انْطِقِي".

مهر ووهلی شي. او د دېنه وروسته به د هغه د بدن ټولو اندامونو ته حکم ورکړی شي، چې وایه. نو د ده د بدن

قَالَ: «فَتَنْطِقُ بِأَعْمَالِهِ ثُمَّ يُخَلَّى بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْكَلَامِ» .

اندامونه به د ده اعمال بیان کړي. چې هغه ده د دې اندامونو په ذریعه سره کړي ؤ. بیا به د دې بنده او د ده د

قَالَ: " . فَيَقُولُ: بُعْدًا لَكُنَّ

خبرو کولو د مینځ نه (پرده) لیرې کړی شي، نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: بنده به ووایې: چې لیرې شئ بدبختو او

وَسُحْقًا فعن كُنَّ كنتُ أُنَاضِلُ ". رَوَاهُ مُسْلِم [1]

هلاک شئ زه خو ستاسو د اړخ نه او ستاسو د نجات لپاره جنګیدلم.

**توضیح**: الم تجرنی: یعنې آیا تا زه د ظلم نه په دې وینا سره محفوظ او مامون کړی نه ؤم چې

﴿ولا یظلم ربك احدًا﴾ که په ما باندې ظلم نه کوي نو نن زما په حساب کتاب کې د مکمل ګواهۍ

---

[1] أخرجه مسلم في صحيحه ۲۲۸۰/۴ رقم الحديث (۲۹۶۹-۱۷)

ضرورت دی. دې لپاره چې به عدالت کې عدل وي. (مرقات ۹/۴۹۴)

**بلی**: یعني عدل او انصاف به وي، تاته یقینًا مونږ پناه در کړیوه. خو دا وواية چې ستا په حساب کتاب کې نقصان څه دی؟ هغه به ووايې چې ستافرښتو زما په خلاف لیکل کړیدي. د هغوی تیار کړی شوې دوسیه (راپور) باندې زما اعتماد نشته دی. څوک داسې ګواه پکار دی چې هغه زما د بدن نه راپاڅي او ګواهي ورکړي.

**یخلّی**: یعني کله چې اندامونه د ده په خلاف باندې ګواهي ورکړي نو بیا به دې بنده ته د دې اندامونو سره د خبرو کولو موقع ورکړی شي، او د دې سړي او د ده د کلام ترمینځ بندیز به ختم کړی شي. نو دا به شروع شي.

**اناضل**: یعني دا سړی به خپلو اندامونو ته ووايې چې په تاسو دې هلاکت او لعنت وي، دا ټولې منډې تړې خو ماستاسو د ساتنې لپاره کولې، او تاسو زما په خلاف ګواهي ورکړه، شرم وکړی، ورک شی. (مرقات ۹/۴۹۵)

## داندامونو د ګواهۍ یوه بله واقعه

﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ

او حضرت ابوهریره رضي الله عنه فرمايې چې صحابؤ عرض وکړو چې یارسول الله! دقیامت په ورځ به مونږ د خپل

هَلْ نَرَى رَبَّنَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟ قَالَ: «فَهَلْ تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ الشَّمْسِ

خدای دیدار کوؤ؟ نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: آیا د غرمې په وخت کې چې ورېځ نوي، تاسو د لمر په لیدلو کې څه

فِي الظَّهِيرَةِ لَيْسَتْ فِي سَحَابَةٍ؟» قَالُوا: لَا قَالَ: «فَهَلْ تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ

شک کوی؟ هغوی ووېل چې هیڅکله نه. نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: نو آیا د څوارلسمې سپوږمۍ چې کله ورېځ

لَيْسَ فِي سَحَابَةٍ؟» قَالُوا: لَا قَالَ:

نوي نو تاسو د سپوږمۍ په لیدلو کې څه شک کوی؟ هغوی ووېل: هیڅکله نه! نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

«فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ رَبِّكُمْ

نو قسم دی په هغه ذات باندې چې د هغه د په دست قدرت کې زما ځان دی. څنګه چې تاسو د لمر او سپوږمۍ په

إِلَّا كَمَا تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ أَحَدِهِمَا». قَالَ:

لیدلو کې څه شک او شبه نلری. د غه شان د خپل رب په لیدلو کې به هیڅ شک او شبه نلری. بیا نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| "فَيَلْقَى | الْعَبْدَ | فَيَقُولُ: | أَيْ | فُلْ: |

كله چې بنديګان خپل رب ووينې نو الله تعالى به يو بنده سره مخاطب شي چې اى بنده ! آيا ما تاته

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَلَمْ | أُكْرِمْكَ | وَأُسَوِّدْكَ | وَأُزَوِّجْكَ | وَأُسَخِّرْ | لَكَ | الْخَيْلَ | وَالْإِبِلَ |

فضيلت او شرف نهٔ دركړى؟ آيا ما تاته ستا ښځه نوه دركړي؟ آيا ما ستا لپاره اسونه او اوښان نهٔ تابع كړي؟

| | | |
|---|---|---|
| وَأُذَرْكَ | تَرْأَسُ | وَتَرْبَعُ؟ |

او آيا ما تا ته موقع نوه دركړي چې ته مې د خپل قوم مشر او سردار جوړ كړى وي؟ او څلورمه برخه مال

| | | |
|---|---|---|
| فَيَقُولُ | بَلَى | قَالَ: |

غنيمت به دې ترلاسه كولو؟ هغه بنده به ووايې چې زما ربه! يېشكه داسې شوې وه. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل:

| | | |
|---|---|---|
| "أَفَظَنَنْتَ | أَنَّكَ | مُلَاقِيَّ؟ |

د دېنه وروسته به پروردګار وفرمايې چې آيا ستا دا خيال هم راغلى ؤ چې ته به زما سره مخ كيږې؟ بنده به

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَيَقُولُ | لَا | فَيَقُولُ: | فَإِنِّي | قَدْ | أَنْسَاكَ |

ووايې چې نا! نو پروردګار به وفرمايې چې زه به هم تا هير كړم. لكه څنګه چې تا په دنيا كې زما اطاعت او

| | | | |
|---|---|---|---|
| كَمَا | نَسِيتَنِي | ثُمَّ | يَلْقَى |

يادول هير كړي ؤ. بيا به پروردګار د بل بنده سره ملاقات او خطاب وكړي. د دېنه وروسته نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د الله

| | | | |
|---|---|---|---|
| الثَّانِيَ | فَذَكَرَ | مِثْلَهُ | ثُمَّ |

او د هغه بنده ترمينځ هم د غه شان پوښتنې او جوابونه ذكر كړل چې هغه د اول بنده په اړه باندې منقول شو.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَلْقَى | الثَّالِثَ | فَيَقُولُ | لَهُ | مثل | ذَلِك |

بيا به پروردګار دريم بنده سره ملاقات او خطاب وكړي. او هغه ته به هغه څه وفرمايې چې اول بنده ته يې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَيَقُول | يارب | آمَنْتُ | بِكَ | وَبِكِتَابِكَ | وَبِرُسُلِكَ |

فرمايلي ؤ. او هغه (دريم بنده) به دا جواب وركړي چې زما ربه! ما په تا باندې، ستا په كتابونو او ستا په پيغمبرانو

| | | |
|---|---|---|
| وَصَلَّيْتُ | وَصُمْتُ | وَتَصَدَّقْتُ |

باندې مې ايمان راوړى ؤ. مالمونځونه كړي ؤ. روژې مې نيولي وي، او صدقه مې وركړي، او دغه شان څومره

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ويثني | بِخَيرٍ | مااستطاع | فَيَقُولُ: | هٰهُنَا | |
| چې كيدلى شي هغه به د خپل نيكيو په اړه تعريف او توصيف بيان كړي. الله تعالى به وفرمايي: ته هم دلته | | | | | |
| إذا. ثُمَّ يُقَال الآن تبعث شَاهِدًا عَلَيْكَ وَيَتَفَكَّرُ فِي نَفْسِهِ: | | | | | |
| ايسار شه. مونږ ستا په اړه باندې ګواه راپيدا كوؤ. بنده به خپل زړه كې سوچ كوي چې دې وخت كې به زما په | | | | | |
| مَنْ ذَا الَّذِي يَشْهَدُ عَلَيَّ ؟ فَيُخْتَمُ عَلَى فِيهِ وَ يُقَالُ لِفَخِذِهِ : | | | | | |
| په خلاف څوک ګواهې وركوي. خو څنګه چې د هغه په خُله باندې مهر ووهلى شي او د هغه پتون ته | | | | | |
| انْطِقِي فَتَنْطِقُ فَخِذُهُ وَلَحْمُهُ وَعِظَامُهُ بِعَمَلِهِ | | | | | |
| به وويلى شي چې وايه. نو د هغه ورون، د هغه غوښه او هډوكي، د هغه د اعمالو په اړه به بيان وركړي. | | | | | |
| وَذَلِكَ لِيُعْذِرَ مِنْ نَفْسِهِ | | | | | |
| او دا هرڅه به څنګه كيږي، دې لپاره چې د بنده بد عملونه ثابت شي. او هغه هيڅ عذر و نكړى شي. او | | | | | |
| وَذَلِكَ الْمُنَافِقُ وَذَلِكَ يسخطُ الله عَلَيْهِ" رَوَاهُ مُسلم | | | | | |
| دا دريم بنده به په حقيقت كې منافق وي. او دا هغه بنده دى چې د ده نه به الله تعالى غصه او | | | | | |
| و ذُكر حَدِيث أبِي : « يَدْخُلُ مِنْ أُمَّتِي الْجَنَّةَ » | | | | | |
| ناراضه وي. (مسلم) او حضرت ابوهريره رضي الله عنه په روايت كې « يدخل من امتي الجنة» | | | | | |
| فِي «بَابِ التَّوَكُّلِ» بِرِوَايَةِ ابْن عَبَّاس[1] | | | | | |
| د حضرت ابن عباس رضي الله عنه په روايت سره د توكل په باب كې ذكر شويدى. | | | | | |

**توضيح**: وَهَلْ تضارون: دا مضارات د باب مفاعله صيغه ده. چې د ضرر په معنى دى. يعنې سپوږمۍ او لمر په كتلو كې تاسو ته د يو بل نه څه تكليف در رسيږي؟ كه تكليف نه رسيږي نو بيا د الله تعالى په ديدار كولو كې به هم هيڅ تكليف نه رسيږي. په يو روايت كې تضامون الفاظ دي. هغه ازحام او رش ته وايي. مراد هم د غه ضرر او تكليف دى.

الا كما تضارون: يعنې ضرر به نوي. دا كلام اثبات براې نفې دى. لكه څنګه چې په دې شعر كې مدح په صورت د ذم كې ده: (مرقات ۹/۴۹۶)

---

(1) اخرجه البخاري في صحيحه ۲/۲۹۲ رقم الحديث ۸۰۶ ومسلم في صحيحه ۴/۲۲۷۹ رقم الحديث (۲۹۶۸-۱۶)

ولا عیب فیهم غیر ان سیوفهم بهن فلول من قراع الکتائب

**ای فل:** یعنې ای فلانکی سړیه.

**واذرك ترأس:** یعنې ما ته سردار جوړ کړې، تا سرداري کوله.

**وتربع:** او د خلکو نه به د محصول(ټیکس) په توګه څلورمه برخه اخستله دا د عرب سردارانو رواج ؤ.

**ههنا:** یعنې تا چې دومره نیک اعمال وشمارل، اوس لږ او دریږه، دې لپاره چې تا ته د خپلې دعوی پته ولږي.

**لیعذر:** د باب افعال نه دی. همزه د سلب مأخذ لپاره ده. **ای لیزیل الله عذره من قبل نفسه:** یعنې ټول ګناهونه د هغه اندامونو وشمارل. چې په هغې سره د ده عذر ختم شو. او هم دا الله تعالی غواړي ځکه چې دا سړی منافق کامل ؤ. (مرقات۹/۴۹۸)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## د امت محمدیه به بې حسابه خلک بغیر د حساب کتاب نه جنت ته ځي

| |
|---|
| ﴿۸﴾عَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «وَعَدَنِي رَبِّي |
| حضرت ابو امامه رضي الله عنه فرمایي چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا اوریدلي دي چې زما رب زما سره وعده کړېده |
| أَنْ يُدْخِلَ الْجَنَّةَ مِنْ أُمَّتِي سَبْعِينَ أَلْفًا لَا حِسَابَ عَلَيْهِمْ وَلَا عَذَابَ مَعَ كُلِّ أَلْفٍ |
| چې هغه به زما د امت نه اویا زره کسان حساب او عذاب نه بغیر جنت ته داخل کړي. او د هر زرو سره به |
| سَبْعُونَ أَلْفًا وَثَلَاثُ حَثَيَاتٍ مِنْ حَثَيَاتِ رَبِّي» . رَوَاهُ أَحْمدُ وَالتِّرْمِذِيّ وَابْنُ مَاجَه[1] |
| نور اویا زره کسان، او زما د پروردګار د لپو نه به درې ډکې لپې خلک جنت ته ځي. |

**توضیح: حثیات: حثیة:** لپه ډکول، یعنې الله تعالی به درې نورې لپې ډکې کړي. کله چې د یو شي وعده معلومول ګران شی نو هغه د لپو سره بیانولی کیږي. دلته غټه مبالغه ده. ځکه چې لپې به هم د الله تعالی وي، کما یلیق بشانه تعالی. (مرقات۹/۵۰۰)

---

([1])اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۴۰ رقم الحديث ۲۴۳۷وابن ماجه في السنن ۲/۱۴۳۳ رقم الحديث ۴۲۸۵.

## د قيامت په ورځ به د الله تعالى مخې ته درې کتنې کيږي

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنِ الحسنِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او حضرت حسن بصرى د حضرت ابو هريره رضي الله عنه روايت کوي چې هغه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل |
| "يُعْرَضُ النَّاسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ثَلَاثَ عَرَضَاتٍ: فَأَمَّا عَرْضَتَانِ فَجِدَالٌ وَمَعَاذِيرُ وَأَمَّا الْعَرْضَةُ الثَّالِثَةُ فَعِنْدَ ذٰلِكَ |
| د قيامت په ورځ به خلک درې ځل پيش کړی شي. دوه ځل خو به بحث او جرح او عذر وړاندې کول وي. او |
| تَطِيرُ الصُّحُفُ فِي الْأَيْدِي فَآخِذٌ بِيَمِينِهِ وَآخِذٌ بِشِمَالِهِ". رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ لَا يَصِحُّ هٰذَا الْحَدِيثُ |
| کله چې په دريم ځل پيش کړی شي، نو دغه وخت به اعمال نامې په رالوتلو سره د خلکو لاسونو ته راځي. نو په |
| مِنْ قِبَلِ أَنَّ الْحَسَنَ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ أَبِي هُرَيْرَةَ وَقَدْ رَوَاهُ بَعْضُهُمْ عَنِ الْحَسَنِ عَنْ أَبِي مُوسَى[1] |
| دوې کې به څه خلک په ښى لاس اعمال نامې اخلي او څه خلک به په خپل چپ لاس کې اعمال نامې اخلي |

**توضيح**: جدال: يعنې درې ځل به مخامخ کيږي. په دوؤ کې به خپل مينځ کې جګړه وي. چې مونږ ته کوم نبي دعوت ندى راکړى. او داسې نور عذرونه به وي. چې مونږ ګناه نده کړې. که کړى هم ده نو د فلانکي فلانکې سړي د وجې نه کړيده. دريم ځل مخامخ کيدلو کې به دټولو نتيجه تياريدلو باندې په رالوتلو سره راشي او ژر ژر به هر يو ته ورکړى شي. کامياب به کامياب شي او ناکام به ناکام شي. (مرقات ۹/۵۰۱)

## حديث بطاقة او د الله د نوم برکت

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْعَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ اللهَ |
| او حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د قيامت په ورځ به الله تعالى زما د |
| سيخلِّصُ رجلا من أُمّتي على رُؤُوس الْخَلَائِقِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيَنْشُرُ عَلَيْهِ تِسْعَةً وَتِسْعِينَ سِجِلًّا |
| امت نه يو سړى د ټول مخلوق مخې ته راوغواړي. او دهغه مخې ته به نهه نوي (۹۹) رجسترې برسيرته کړي. |
| كُلُّ سِجِلٍّ مِثْلَ مَدِّ الْبَصَرِ ثُمَّ يَقُولُ: |
| چې په هغې کې به هر يو رجستر د نظر تر حده پورې خپور ښکاري. بيا به هغه سړي ته وفرمايي: چې په دې |
| أَتُنْكِرُ مِنْ هٰذَا شَيْئًا ؟ |
| رجسترو کې چې څه ليکل شويدي، آيا ته په دې کې د څه نه انکار کوي. او آيا ته دا ګڼې چې زما ليکوالو |

(۱)

| أَظَلَمَكَ كَتَبَتِي الحافظون؟ فَيَقُولُ: لَا يَارب فَيَقُول: أَفَلَكَ عذر؟ |
|---|
| ستا څه زياتی کړيدی؟هغه سړی به ووايې چې زما ربه!نا !بيا به پروردګار وفرمايې چې آيا ته څه عذر لرې؟ |
| قَالَ لَا يَارب فَيَقُولُ بَلَى. إِنَّ لَكَ عِنْدَنَا حَسَنَةً |
| هغه بنده به ووايې چې نا !زما پروردګاره! هله به الله تعالی وفرمايې:چې زمونږ سره ستا يوه نيکي ده.او يقينًا |
| وَإِنَّهُ لَا ظُلْمَ عَلَيْكَ الْيَوْمَ فَتُخْرَجُ بِطَاقَةٌ فِيهَا |
| نن ورځې به په تا باندې ظلم نکيږي.بيا به يوه پرچه(چيټی\کاغذ)راوويستلی شي، چې به هغې کې به |
| أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا الله وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ |
| اشهد ان لا اله الا الله وان محمدا عبده ورسوله ليکلی شوی وي.د دېنه وروسته به الله تعالی دغه سړي ته |
| فَيَقُولُ احْضُرْ وَزْنَكَ. فَيَقُولُ: يَا رَبِّ مَا هَذِهِ الْبِطَاقَةُ |
| وفرمايې چې ځا، خپلو اعمالو خواته لاړ شه، هغه بنده به ووايط چې زما ربه آيا دومره ورکوټې کاغذ د دومره |
| مَعَ هَذِهِ السِّجِلَّاتِ؟ فَيَقُولُ: إِنَّكَ لَا تُظْلَمُ |
| غټو غټو او ومره ډيرو رجسترو سره څه مناسبت دی؟الله به وفرمايې چې يقينًا ستا سره به ظلم نشي کيدلی |
| قَالَ: فَتُوضَعُ السِّجِلَّاتُ فِي كِفَّةٍ وَالْبِطَاقَةُ فِي كِفَّةٍ |
| نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل:بيا د رجستری په تولې په يو پله د تله کې واچوي او دا کاغذ به په بله پلې کې واچوي |
| فَطَاشَتِ السِّجِلَّاتُ وَثَقُلَتِ الْبِطَاقَةُ فَلَا يَثْقُلُ |
| نو هغه رجستری به سپکې وخيژي، او هغه کاغذ به دروند شي. حاصل دا چې د الله تعالی د نوم نه ډير وزندار |
| مَعَ اسْمِ اللهِ شَيْءٌ ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَابْنُ مَاجَه[1] |
| به هيڅ شی نوي ځکه چې د الله نوم د هر څه ډير د روند دی. |

**توضيح**:دا حديث د حديث بطاقة په نوم سره مشهور دی. بطاقه هغه کاغذ ته وايې چې په هغې کې به کلمه شهادت ليکلی شوي وي. کومه چې به دې سړې ويلي وي. د ده د ګناهونو به ۹۹ بنډلي وي. چې د هغې به مقابله کې د اعمالو د وزن په تله کې دا کلمه درنده وي. او لوستونکی به يې جنت ته لاړ شي.

---

(۱)أخرجه أحمد في المسند ۴/۲۱۴

**سجلات:** غټو غټو رجسترو او بنډلو ته سجلات ویلی شویدي. یعنې د د وزن کولو نه بغیر به ظلم وشي نځذا وزن به خامخا کیږي. ځکه چې دا ظلم ندی.

**طاشت:** سپیکدلو باندې به پاس والوزي.

**ثقلت:** په کوم کاغذ باندې چې کلمه شهادت لیکلی شوی وي. یا خو به فقط کاغذ دروند وي یا د دې سره به نور اعمال هم وي. خو بنیادي حیثیت به د دې کاغذ وي. اولنی مفهوم ډیر واضح دی. د دې نه دا معلومیږي چې د قیامت په ورځ به اعمال متجسد نوي بلکې د دې لیکلی شوې رجسترې به په تللی کیږي. (مرقات۹/۵۰۴)

## د قیامت درې سختې مرحلې

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾وَعَنعائشَةَ أَنَّهَا ذَكَرَتِ النَّارَ فَبَكَتْ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او حضرت عائشه رضي الله عنها نه روایت دی چې هغه د دوزخ یادولو د وجې نه وژړل، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل |
| «مَا يُبْكِيكِ؟». قَالَتْ: ذَكَرْتُ النَّارَ فَبَكَيْتُ فَهَلْ تَذْكُرُونَ |
| چې دا په تا څه وشو، ولې ژاړې؟ هغې وفرمایل: ما ته د دوزخ د اور خیال راغلی ؤ، ځکه په ژړا شوم. نو آیا ته |
| أَهْلِيكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| به د قیامت په ورځ باندې خپل اهل او عیال هم یاد ساتې؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: چې صورت حال دا دی چې |
| "أَمَّا فِي ثَلَاثَةِ مَوَاطِنَ فَلَا يَذْكُرُ أَحَدٌ أَحَدًا: |
| په هغه ورځ به درې مرحلې داسې وي چې هلته به د چا، چا ته هیڅ خیال نوي. یو مرحله خو به هغه وي کله |
| عِنْدَ الْمِيزَانِ حَتَّى يَعْلَمَ: أَيَخِفُّ مِيزَانُهُ أَمْ يَثْقُلُ؟ |
| میزان (تله) مخامخ وي، تر دې چې دا معلومه نشي چې میزان دروند شو او که سپک. تر هغه وخته پورې به هر |
| وَعِنْدَ الْكِتَابِ حِينَ يُقَالُ (هَاؤُمُ اقْرَؤُوا كِتَابِيَه) حَتَّى يَعْلَمَ: |
| سړی په خپل فکر کې سرګردانه وي. دویمه مرحله هغه ده کله چې اعمال نامې سپارل کیږي، تر دې چې دا |
| أَيْنَ يَقَعُ كِتَابُهُ أَفِي يَمِينِهِ |
| ونه ویلی شي چې راشئ زما اعمال نامه ولولئ. او تر څو چې دا معلومه نشي چې تر شاه اعمال نامه په ښي |
| أَمْ فِي شِمَالِه؟ أَمْ مِنْ وَرَاءِ ظَهْرِهِ؟ |
| لاس ورکړی شویده او که په چپ لاس کې ورکړی شویده. او دریمه مرحله به هغه وي چې خلک به د |

| وَعِنْدَ الصِّرَاطِ: إِذَا وُضِعَ بَيْنَ ظَهْرَيْ جَهَنَّمَ ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
|---|
| پل صراط سره نژدې وي او حال دا دی چې پل صراط به د جهنم په شاه باندې وي. |

# الفصل الثالث

## لوي ور کوټي، مالک او غلام ترمينځ به هم حساب وي

| ﴿۱۲﴾ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: جَاءَ رَجُلٌ فَقَعَدَ بَيْنَ يَدَيْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم مجلس ته يو سړی راغلی او کيناستلو |
| فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ لِي مَمْلُوكِينَ يَكْذِبُونَنِي وَيَخُونُونَنِي |
| وې ويل چې يا رسول الله صلى الله عليه وسلم! زما سره غلامان دي، چې هغوې ماته دروغ وايي، زما په مال کې خيانت کوي |
| وَيَعْصُونَنِي وَأَشْتِمُهُمْ وَأَضْرِبُهُمْ |
| او زما نافرمانې کوي. نو که زه هغوې ته رد بد وايم نو د دوې د وجې نه به په قيامت کې زما سره څه بنوي |
| فَكَيْفَ أَنَا مِنْهُمْ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ |
| کيږي؟ نبی کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د قيامت ورځ به وي او دهر سړي ديو يو عمل او يو يو شي پوښتنه به کيږي. |
| يُحْسَبُ مَا خَانُوكَ وَعَصَوْكَ |
| نو دې غلامانو چې ستا په مال کې کوم خيانت کړيدی، ستا چې يې کومه نافرماني کړيده او تاته يې دروغ |
| وَكَذَّبُوكَ وَعِقَابُكَ إِيَّاهُمْ |
| ويلي دي. د دې ټولو به حساب کيږي. دغه شان تا چې دوې ته کومه سزا ورکړيده، دهغې به هم حساب |
| فَإِنْ كَانَ عِقَابُكَ إِيَّاهُمْ بِقَدْرِ ذُنُوبِهِمْ كَانَ كَفَافًا |
| کيږي. نو که ستا ورکړی شوې سزا د دوې د جرمونو په اندازه ثابته شوه نو ستاسو معامله به برابره شي. او که |
| لَا لَكَ وَلَا عَلَيْكَ وَإِنْ كَانَ عِقَابُكَ إِيَّاهُمْ دُونَ ذَنْبِهِمْ كَانَ فَضْلًا لَكَ |
| تا کومه سزا ورکړې وي او هغه د دې جرمونو نه کمه ثابته شوه نو هغوې به ستا زياتې حق درکوي، او که ستا |

[1] أخرجه الترمذي في السنن ۵/۲۵ رقم الحديث ۲۶۳۹ وابن ماجه ۲/۱۴۳۷ رقم الحديث ۴۳۰۰.

وَإِنْ كَانَ عِقَابُكَ إِيَّاهُمْ فَوْقَ ذُنُوبِهِمْ اقْتُصَّ لَهُمْ مِنْكَ الْفَضْلُ

ورکړې شوې سزا د دوی د جرمونو نه زیاته وي نو بیا به د هغوی لپاره ستا نه د دې زیاتې بدله اخستلی کیږي

فَتَنَحَّى الرَّجُلُ وَجَعَلَ يَهْتِفُ وَيَبْكِي فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَمَا تَقْرَأُ قَوْلَ اللهِ تَعَالَى:

هغه سړی خوا ته کېناستو او په ژړا شو. بیا رسول الله ﷺ وفرمایل: چې آیا ته د الله تعالی دا ارشاد نه دی

(وَنَضَعُ الْمَوَازِينَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيَامَةِ

لوستی چې ﴿وَنَضَعُ الْمَوَازِينَ بِالْقِسْطِ﴾ یعني الله تعالی فرمایي چې: او د قیامت په ورځ به مونږ د عدل او

فَلَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا وَإِنْ كَانَ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ

انصاف ترازو ږدو. نو په هیڅ چا ظلم نه کیږي. او که (د چا) عمل د اوړي د دانې برابر وي. نو مونږ به هغه

أَتَيْنَا بِهَا وَكَفَى بِنَا حَاسِبِينَ) فَقَالَ الرَّجُلُ: يَا رَسُولَ اللهِ

حاضر کړو. او مونږ حساب اخستونکي کافي یو. دغه سړي ووئیل چې یا رسول الله! زه خپل او د دې غلامانو

مَا أَجِدُ لِي وَلِهَؤُلَاءِ شَيْئًا خَيْرًا مِنْ مُفَارَقَتِهِمْ أُشْهِدُكَ أَنَّهُمْ كُلَّهُمْ أَحْرَارٌ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ"

حق کې د بېلتون نه غوره هیڅ خبره نه وینم. نو زه تا گواه کوم چې دغه ټول غلامان آزاد دي.

## د آسان حساب او سخت حساب مطلب

﴿۱۰﴾ وَعَنْهَا قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي بَعْضِ صَلَاتِهِ:

د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روایت دی چې ما د رسول الله ﷺ نه په ځینو لمونځونو کې دا دعا اورېدلې ده چې

اللَّهُمَّ حَاسِبْنِي حِسَابًا يَسِيرًا قُلْتُ: يَا نَبِيَّ اللهِ

﴿اللهم حاسبني حسابا يسيرا﴾ یا الله! زما د عملونو آسان حساب وکړې! ما ووئیل چې ای د خدای نبی! د آسان

مَا الْحِسَابُ الْيَسِيرُ؟ قَالَ:

حساب څه مطلب دی. او د دې صورت به څه وي؟ نبی کریم ﷺ وفرمایل: د آسان حساب صورت به دا وي

«أَنْ يَنْظُرَ فِي كِتَابِهِ فَيَتَجَاوَزَ عَنْهُ إِنَّهُ

چې بنده به خپلې اعمالنامې ته وګوري او بیا به الله تعالی د هغې نه درګذر وکړي. ای عائشه! حقیقت دا دی

(۱) اخرجه ابوداود في سننه ۱۱۶ [illegible] رقم الحديث ۳۷۵۵ [illegible] ۱۱۰.

| مَنْ نُوقِشَ الْحِسَابَ يَوْمَئِذٍ يَا عَائِشَةَ هلك ». رَوَاهُ أَحْمد [1] |
|---|
| چې په هغه ورځ د کوم سړي په حساب کې مناقشه يعنې جنجال وکړی شو نو (بس پوهه شه چې) هغه برباد شو |

## د قيامت ورځ به د مؤمن لپاره مختصروي

| «۱۲» وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّهُ أَتَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| او حضرت ابوسعيد خدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی چې هغه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت کې حاضر شو او وې ويل |
| فَقَالَ: أَخْبِرْنِي مَنْ يَقْوَى عَلَى الْقِيَامِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ الَّذِي قَالَ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ: |
| چې ماته خو ووايه! د قيامت په ورځ چې د هغې په اړه الله تعالى دا وفرمايې: ﴿يَوْمَ يَقُومُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ |
| (يَوْمَ يَقُومُ النَّاسُ لربِّ الْعَالمين)؟ |
| په کومه ورځ چې ټول خلک د دنيا به د پروردګار مخې ته ولاړ وي. څوک به د الله تعالى مخې ته د دريدلو |
| فَقَالَ: «يُخَفَّفُ عَلَى الْمُؤْمِنِ حَتَّى يَكُونَ |
| تاب لري؟ نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د قيامت ورځ به د مؤمن لپاره آسانه کړی شي، تردې چې هغه ورځ به د ده |
| عَلَيْهِ كَالصَّلَاةِ الْمَكْتُوبَةِ » [2] |
| لپاره د فرض لمونځ په اندازه باندې کړی شي. |

**توضيح: يخفف:** د قيامت د ورځې اږديدل او لنډيدل او دا تخفيف به د خلکو د بيلابيلو احوالو د وجې نه وي. ځينو خلکو خلکو باندې به دا تخفيف د ګم او ګيف دواړو اعتبار سره به وي. يعنې واقعةً به وختونه مختصر شي. او دا سړی به هغه هم مختصر محسوس کوي. د ځينو لباره به د دغه ورځې وختونه خو نه مختصر کيږي. ورځ به اږده وي. خو هغه سړی به دا مختصر محسوسوي. څنګه چې سړی کله په راحت کې وي نو وختونه مختصر خکاري، ګويا دا ورځ به په کيف کې مختصروي او په کم کې به مختصر نوي. او په ځينو باندې به په ګم کې مختصره وي، په کيف کې به اوږده وي. يعنې د عذاب د وجې نه به هغه اوږده محسوسوي. ګنې د اصل په اعتبار سره به دا ورځ د پنځوس زره کلونو وي. لکه په قرآن کې دي ﴿فِيْ يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهٗ خَمْسِيْنَ اَلْفَ سَنَةٍ﴾ (معارج: ۴) د زر کالو ذکر هم دی، بهرحال بيلابيل احوال او بيلابيل اعمالو په وجه به په دې ورځ کې اختلاف وي.

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۵/۳۰۰ رقم الحديث ۳۱۶۵ واحمد في المسند ۶/۲۸۰.

(۲) اخرجه احمد في المسند ۶/۴۸.

﴿۱۵﴾وَعَنْهُ قَالَ: سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
او حضرت ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د هغه ورځې په اړه باندې پوښتنه وشوه چې
عَنْ (يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِينَ أَلف سنةٍ)مَا طُولُ هَذَا الْيَوْمِ؟ فَقَالَ: «وَالَّذِي
هغه د پنځوس زره کالو برابر به وي چې د دې اوږده په څه وي؟ نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: په هغه ذات قسم چې
نَفْسِي بِيَدِهِ إِنَّهُ لَيُخَفَّفُ عَلَى الْمُؤْمِنِ حَتَّى يَكُونَ أَهْوَنَ
د هغه په لاس کې زما ساه ده، هغه ورځ به په کامل مسلمان باندې آسانه وي، تردې چې هغه ورځ به د هغه
عَلَيْهِ مِنَ الصَّلَاةِ الْمَكْتُوبَةِ يُصَلِّيهَا فِي الدُّنْيَا». رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِي كِتَابِ «الْبَعْثِ وَالنُّشُورِ»[1]
فرض لمونځ نه هم آسانه او سپکه شي چې هغه به ده په دنيا کې کولو. (بیهقی روایت کړې دې)

## د اعمالو د وزن بحث

﴿۱۶﴾ وَعَنْ أَسماءبنت يزيد عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "
او اسماء بنت یزید رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کوي چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل:
يُحْشَرُ النَّاسُ فِي صَعِيدٍ وَاحِدٍ يَوْمَ الْقِيَامَة فينادي منادٍ فَيَقُول:
د قیامت په ورځ به خلک په يو فراخه هوار میدان کې راغونډ کړی شي. بيا به يو اعلان کونکی اعلان وکړي
أَيْنَ الَّذِينَ كَانَتْ تَتَجَافَى جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ؟ فَيَقُومُونَ وَهُمْ قَلِيلٌ
چې چیرته دي هغه خلک چې د هغوی اړخونه به د بسترو او د خوب د ځایونو نه جدا ؤ؟ د محشر په خلکو کې به ډیر لږ
فَيَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ بِغَيْرِ حِسَابٍ ثُمَّ يُؤْمر لسَائِرِ النَّاسِ إِلَى الْحِسَابِ«. رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي» شُعَبِ الإِيمَانِ "[2]
خلک پاڅیږي او د حساب کتاب نه بغیر به جنت ته لاړ شي. د پاتې خلکو نه به د حساب اخستلو حکم وشي

**توضیح**: الی الحساب: د دې باب په تیر شوؤ احادیثو کې د حساب کتاب او اعمالو د وزن چې کوم بیان شویدی. د هغې د مخې مناسبه معلومیږي چې د اعمالو وزن ته په آخره کې څه اشاره وشي. د دې باب د احادیثو د مخې هر مسلمان باندې خو يو دا عقيده ساتل لازم دي چې په قیامت کې حساب کتاب شته. دویم دا منل لازم دي چې د جهنم په شا باندې يو پل دی. چې په هغې باندې به د ټولو انسانان تیریدل وي. دا پل د

---

(۱) رواه البيهقي في البعث والنشور. راجع الملاحظة في الحديث رقم ۵۴۹۳.

(۲) رواه البيهقي في شعب الايمان.

توري نه تیره، او د ایخته نه ډیر نری دی ږخو د مؤمن لپاره آسان دی.
دریمه دا عقیده ساتل لازم دي چې د محشر په میدان کې یوه تله ده، چې په هغې باندې به اعمال تللی کیږي.
معتزله او خوارج او مرجئۇ د دې تلي نه انکار کړیدیږ هغوې وایې چې اعمال، اعراض دي، او اعراض قائم بالغیر وي، د دوې بیل وجود نشته، لهذا د اعمالو بیکاره خبره ده. باقې د اعمالو د وزنه هلته عدل او انصاف مراد دی. تله مراد نه ده.
علماؤ جواب ورکړیدی چې په قرآن او حدیث کې د تلي (میزان) ذکر دی. د دې نه انکار کول گمراهې ده. باقې که اعمال اعراض دي نو الله تعالی دوې ته وجود ورکولی شي، هغه متجسد کولی شي. یا مراد دا دي چې اعمال کونکی به تللی کیږي، لکه په څینو احادیثو کې دي. یا د اعمالو رجستر به تللی کیږي. لکه په حدیث البطاقة کې دي. هسې دا د پخوانی زمانې جوابونه دي.
نن سبا د کمپیوټر په دور کې دا اعتراض نه راځي ځکه چې اوس خو اعراض تللی کیږي. نو د اعراضو د تللو هم یوه تلله ده. وګوری! تهرمامیټر په ذریعه سره تبه تللی کیږي. نن سبا نظر تللی کیږي. سماعت (اوریدنه) تللی کیږي. په بدن کې دننه شوګر تللی کیږي. ګرمې او یخنې تللی کیږي. که یو انسان دومره مخکې تګ کولی شي نو د الله تعالی لپاره څه ګرانه ده چې هغه اعراض وتلي. خوارج او معتزله بیکاره شان خلک تیر شوې دي. او مرجئه خو د عمل خلک نه دي، د دوی د میزان او اعمالو د وزن سره څه کار دی.



# بَاب الْحَوْضِ والشفاعة

## د حوض کوثر او د شفاعت بیان

﴿إِنَّآ أَعْطَيْنٰكَ الْكَوْثَرَ ۝١ فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ ۝٢ إِنَّ شَانِئَكَ هُوَ الْأَبْتَرُ ۝٣﴾ (الکوثر:۱-۳)

**الحوض:** الحوض نه دلته مراد حوض کوثر دی. د دې عجیبه صفت او عجیبه حقیقت د دې باب په احادیثو کې بیان کړی شویدي. په میدان محشر کې به د نورو انبیاؤ حوض کوثر هم وي. چې په هغې سره به هغه خپلو تابعدارو باندې اوبه څکوي. خو زمونږ پیغمبر حضرت محمد ﷺ ته چې الله تعالی کوم حوض ورکوي. هغه به د ټولو نه لویې هم وي، او په هغې باندې به ازدحام (رش) هم ډیر وي. د کوم نبی تابعدار چې ډیر وي. هغوي ته به حوض هم غټ ورکولی کیږي. د هر نبی په حوض باندې فقط د هغه تابعدار حاضریدلی شي. دقیامت په ورځ چې کله خلک د قبرونو نه پاڅیږي. او محشر ته راشي، هغه وخت به ډیر تږي شوي وي. د نبی کریم ﷺ امتیان به د هغه حوض ته راځي، او نبی کریم ﷺ به هغوې ته د حوض کوثر اوبه په خپل لاس باندې څکوي. ښي اړخ ته به حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ولاړ وي او چپ اړخ ته به حضرت عمر فاروق رضی الله عنه ولاړ وي. په منځ کې به نبي کریم ﷺ ولاړ وي. او اوبه به خلکو څکوي. دا حوض کوثر به میدان محشر کې وي. دویم حوض کوثر به نبی کریم ﷺ ته په جنت کې ورکولی کیږي، چې د هغې اوبه د نهر په صورت کې د جنتی په کور کې بهیږي. کافر او د خرابو عقیدې خلک به حوض کوثر ته نه راځي.

**الشفاعة:** شفاعت د سفارش په معنی دی. دلته د شفاعت مفهوم او مطلب دا دی چې د الله تعالی مخې ته د چا د ګناهونو د معافۍ سفارش کول، د ټولو نه اوله خبره خو دا دی چې د الله تعالی ته د هیڅ کافر سفارش نشي کیدلی، او نه به دا سفارش قبلیږي، دویمه خبره دا ده چې د سفارش لپاره د الله تعالی د اړخ نه اجازت ضروري دی. د اجازت نه بغیر هیڅوک د چا سفارش نشي کولی. د قریشو کافرو به د بتانو لپاره چې کوم سفارش ثابتول غوختل، هغه شفاعت قهریه او شفاعت غالبه ؤ. چې په سختۍ سره د هغې الله تعالی نفی کړیده. لیکن په دې سره د جائز شفاعت نفې نکیږي.

**د شفاعت قسمونه:** د شفاعت غټ دوه قسمونه دي. یو شفاعت کبری دی. او دویم شفاعت صغری دی. د شفاعت کبری تعلق د ټولو انسانانو سره دی. نبی کریم ﷺ به الله تعالی نبي کریم ﷺ به الله تعالی ته په مقام محمود کې سجده وکړي، او ناشنا محامد به بیان فرمایې چې په میدان محشر کې خلک تنګ شویدي. ددوې حساب او کتاب دې شروع کړی شي.

کړي. الله تعالی به اعلان وکړي چې د سجدې نه سر وچت کړه، وغواړه، درکولی کیږي به، شفاعت کوه، شفاعت به قبلولی شي. په دې باندې نبی کریم ﷺ به وفرمايې چې ای الله! حساب کتاب شروع کړه! الله تعالی به وفرمايې چې ته لاړشه، زه راروان یم. دغه شان د شفاعة کبری مرحله به پوره شي. د دې سره به بیا نبی کریم ﷺ د خپل امت په اړه باندې شفاعت صغری شروع کړي. د دې ډیر قسمونه دي. خو ټول به د شفاعت صغری په صورت کې وي. شفاعت صغری به نور انبیاء او فرښتي هم کوي. علماء او اولياء او شهداء به یې کوي. د شفاعت اهمیت، او د دې قدر او قیمت هغه وخت معلومیږي کله چې سړی په یو ګران کار تیریږي. او سفارش راشي، د مشکل نه سړی ووځي: مثلًا بین المللي کوم هوايي میدان کې څوک ونخلي او بد ونخلي خو د هیواد باچا یا د وزیر یا والي راشي او په تکلیف کې اخته سړی د لاسه ونیسي او د ځان سره یې کور ته بوځي او ووايي چې داد فلانکې سړی دی په دغه توګه کله چې په محشر کې به د نبي کریم ﷺ سفارش راشي، بیا به معلومه شي چې دا څومره لوي نعمت دی. **رزقنا الله شفاعة لنبینا الکریم.**

## د حوض کوثر احوال

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " بَيْنَا أَنَا أَسِيرُ فِي الجنَّةِ إِذا أَنَا |
| حضرت انس رضي الله عنه نه فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل: زه په جنت کې ګرځیدلم چې ناڅاپه زما تیرېدل |
| بنهر حافتاه الدُّرِّ الْمُجَوَّفِ قُلْتُ: مَا هَذَا يَا جِبْرِيلُ؟ |
| په یو نهر باندې وشو، چې د هغې دواړو اړخ ته د ملغلرو ګنبدي وي، ما پوښتنه وکړه چې جبرائیل دا څه دي |
| قَالَ: الْكَوْثَرُ الَّذِي أَعْطَاكَ رَبُّكَ فَإِذَا طِينُهُ |
| هغه وویل چې دا حوض کوثر دی؟ چې دا تا ته ستا پروردګار درکړیدی، بیا چې ما وکتل نو د هغې خټې د |
| مِسْكٌ أَذفر ". رَوَاهُ البُخَارِيّ[1] |
| مشکو په شان تیزه خوشبویي کوله. |

**توضیح**: حافتاه: ای جانباه وطرفاه: د نهر دواړه اړخونه او غاړې مراد دي.

**قباب**: دا جمع ده. د دې مفرد قبة دی. چې ګنبد ته ویلی کیږي. **الدر**: ملغلرې ته وايي.

**المجوف**: جوف خیټې ته وايي. دلته هغه ملغلرې ته ویل شویده چې چې هغه د دننه نه خالي وي. د خیمې په شان ګرد عمارت وي. یعنې حوض کوثر د نهر په غاړه باندې د ملغلرو داسې ګنبدونه به جوړ شوي وي چې په

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۴۶۴ رقم الحديث ۶۵۸۱ وأحمد في المسند ۳/۱۶۴.

هغې کې دننه د وسیدلو ټول د راحت اسباب به شتون لري. **مسك اذفر**: یعنې داسې د مشک او عنبر به وي چې د هغې خوشبو به ډیره زیاته وي. دا د هغې حوض د ختمې صفت بیان شویدی. (مرقات ۹/۵۱۰)

﴿۲﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «حَوْضِي

او حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: زما حوض یعنې حوض کوثر دیوې

مَسِيرَةُ شَهْرٍ وَزَوَايَاهُ سَوَاءٌ مَاؤُهُ أَبْيَضُ مِنَ اللَّبَنِ

میاشتې د مزل په انداز باندې اوږد دی. او د هغې څلور واړه غاړې برابر دي. د دې اوبه د شیدو (پیو) نه

وَرِيحُهُ أَطْيَبُ مِنَ الْمِسْكِ وَكِيزَانُهُ كَنُجُومِ السَّمَاءِ

ډیرې سپینې او د دې بویې د مشک نه ډیر خوشبودار دی او د دې ګلاسونه د آسمان د ستورو په شان دي. او

مَنْ يَشْرَبُ مِنْهَا فَلَا يَظْمَأُ أَبَدًا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1]

کوم سړی چې د دې اوبه وڅکي هغه ته به بیا تنده نه لګي.

﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ حَوْضِي

او حضرت ابو هریره رضي الله عنه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: زما د حوض د دواړ سرونو ترمینځ

أَبْعَدُ مِنْ أَيْلَةَ مِنْ عَدَنٍ لَهُوَ أَشَدُّ بَيَاضًا مِنَ الثَّلْجِ

فاصله ایلا او د عدن د مینځنۍ فاصلې نه هم ډیره ده. او بیشکه د دې حوض اوبه د واورې نه ډیرې سپین

وَأَحْلَى مِنَ الْعَسَلِ بِاللَّبَنِ وَلَآنِيَتُهُ

او شهدو نه ډیر خوږې دي. چې د هغې سره شیدې (پی) یوځای کړی شوي وي او د دې ګلاسونه به آسمان

أَكْثَرُ مِنْ عَدَدِ النُّجُومِ وَإِنِّي لَأَصُدُّ النَّاسَ عَنْهُ

د ستورو نه هم ډیر وي، او یقیناً زه به د نورو امتونو خلک د دې حوض نه داسې منع کوم او زغلوم به لکه یو

كَمَا يَصُدُّ الرَّجُلُ إِبِلَ النَّاسِ عَنْ حَوْضِهِ». قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ

سړی د نورو خلکو اوښان د خپل حوض نه ایساروي. صحابۀ عرض وکړو چې یارسول الله! آیا ته به مونږ

أَتَعْرِفُنَا يَوْمَئِذٍ؟ قَالَ: «نَعَمْ لَكُمْ سِيمَاءُ

پیژني؟ نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: هو! زه به تاسو وپیژنم. په اصل کې ستاسو به یو ونښه وي، چې د هغې نه به د نورو

---

(1) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۴۶۳ رقم الحديث ۶۵۷۹ ومسلم في صحيحه ۴/۱۷۹۳ رقم الحديث (۲۲۹۲-۲۷).

لَيْسَتْ لِأَحَدٍ مِنَ الْأُمَمِ تردون عليّ

امتونو خلک محروم وي. او هغه نښه به دا وي چې کله تاسو زما اړخ ته راځئ، نو هغه وخت ستاسو تندي او

غرّاً من أثر الوضوء » . رَوَاهُ مُسلم [۱] وَ فِي رِوَايَةٍ

لاسونه او خپې به د اودس د نورانيت په وجه باندې روښانه او پرقيدونکې وي. (مسلم) او د مسلم يو

لَهُ عَنْ أَنَسٍ قَالَ:

بل روايت کې چې د حضرت انس رضي الله عنه نقل شويدی، داسې دی چې نبی کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: په دې حوض

« تَرَى فِيهِ أَبَارِيقَ الذَّهَبِ وَ الْفِضَّةِ كَعَدَدِ نُجُومِ السَّمَاءِ» [۲]

کې به د سپينو او سرو زرو ګلاسونه وي، چې هغه به د تعداد په اعتبار سره د اسمان د ستورو په شان ښکاريږي

وَفِي أُخْرَى لَهُ عَنْ ثَوْبَانَ

او د مسلم په يو بل روايت کې چې د حضرت ثوبان رضي الله عنه روايت دی چې د نبی کريم صلى الله عليه وسلم نه د دې

قَالَ: سُئِلَ عَنْ شَرَابِهِ. فَقَالَ: " أَشَدُّ بَيَاضًا مِنَ اللَّبَنِ وَأَحْلَى مِنَ الْعَسَلِ

حوض په اړه باندې پوښتنه وشوه نو نبی کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې د دې او به د پيو نه ډيرې سپينې او د شهدو نه

يَغُتُّ فِيهِ مِيزَابَانِ يَمُدَّانِهِ مِنَ الْجَنَّةِ:

ډيرې خوږې دي. دا حوض ډک ساتلو لپاره دې ته تيز بهيدونکې پرنالې رابهيږي. چې هغه د جنت نه راځي

أَحَدُهُمَا مِنْ ذَهَبٍ وَالْآخَرُ مِنْ ورق "[۳]

په دې کې يوه پرناله د سرو زرو ده او دويمه د سپينو زرو ده.

**توضيح**: ايلة: د شام په هيواد کې د يو ښار نوم دی. چې هغه د سيند په غاړه پروت دی. او نن سبا د اسرائيلو په قبضه کې دی. چې د هغې نوی وران شوی نوم ايلات دی. بحر احمر يعني بحيره قلزم په شمالي سر باندې پروت دی.

الی عدن: عدن د بحر احمر جنوبي سر ته بروت دی. دا يو مشهور د جزيرې په شان د ښار نوم دی، چې هغه يو وخت کې د يمن بندرګاه وه.

---

(۱)أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۲۱۷ رقم الحديث (۲۴۷-۳۶) والترمذي في السنن ۴/۵۴۴ رقم الحديث ۳۴۴۵.

(۲)أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۴۶۳ رقم الحديث ۶۵۸۰ ومسلم في صحيحه ۴/۱۸۰۱ رقم الحديث (۲۳۰۳-۴۳)

(۳)أخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۷۹۹ رقم الحديث (۲۳۰۱-۳۷) وابن ماجه في السنن ۱۴۳۸ رقم الحديث ۴۳۰۳

**اصد** : ایسارولو په معنی دی. **النّاس**:نه مراد د نورو امتونو خلک دي.(مرقات۹/۵۱۰)

**غرًّا**: روښانه. **محجلين**: د څارؤ په خپو باندې چې کوم سپين نښانونه وي، ، هغې ته **تجهيل** وايي. دلته د اودس داند امونو روښانتيا او پرق مراد دی.

**يغت**: **فرّيفرّ** او **مدّيمدّ** دواړو وزنو باندې لوستلی کيږي. يعنې ښه تيزی سره به دې حوض ته دوه پرنالې د جنت نه راځي. او دا به مسلسل وي.

**من ذهب**: د سپينو زرو او سروزرو سره د اوبو ښايسته ته اشاره ده . يا کيدلی شي چې د پرنالو رنګ بيان کړی شوی وي، د شهدو پرناله د سرو زرو او پيو پرناله به سپينو زرو وي. (مرقات۹/۵۱۲)

## خرابې عقيدې مرتدان به دحوض کوثر نه ليرې ساتلی کيږي

﴿۴﴾ وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنِّي فَرَطُكُمْ عَلَى الْحَوْضِ

او حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل: زه به په حوض کوثر باندې ستاسو

مَنْ مَرَّ عَلَيَّ شَرِبَ وَمَنْ

پيش رويم. کوم سړی چې زما په خوا تيريږي هغه به د دې حوض کوثر اوبه څکي. او کوم سړی چې د دې اوبه

شَرِبَ لَمْ يَظْمَأْ أَبَدًا لَيَرِدَنَّ عَلَيَّ أَقْوَامٌ أَعْرِفُهُمْ

وڅکي هغه به کله هم تږی نشي. هلته به زما خواته څه خلک راشي چې هغه به زه وپيژنم. او هغوی به ما

وَيَعْرِفُونَنِي ثُمَّ يُحَالُ بَيْنِي وَبَيْنَهُمْ فَأَقُولُ: إِنَّهُمْ مِنِّي.

وپيژني ليکن زما او د هغوی په مينځ کې به يو څه حائل کړی شي، زه به ووايم چې دا خلک خو زما خپل دي؟

فَيُقَالُ: إِنَّكَ لَا تَدْرِي مَا

د دې په جواب کې به ماته وويلی شي چې تا ته معلومه نده چې دوی ستا نه وروسته څه نوې نوې خبرې

أَحْدَثُوا بَعْدَكَ؟ فَأَقُولُ: سُحْقًا سحقاً

پيدا کړي دي. زه به ووايم چې دا خلک دې ليرې وي، زما نه دې ليرې وي. دخدای د رحمت نه. چا چې زما

لمن غير بعدِي". مُتَّفق عَلَيْهِ[1]

د وفات نه وروسته دين او سنت کې بدلون کړيدی.

(۱)أخرجه البخاري في صحيحه۱۱/۴۶۴ رقم الحديث ۶۵۸۳ ومسلم في صحيحه ۴/۱۷۹۳ رقم الحديث (۲۹۰-۲۶)

**توضيح: فرط** : پيش رو ته وايي. يعنې هغه سړی چې هغه د فوځ (عسکرو) نه مخکې تګ باندې منزل صحيح کوي. **لم يظمأ ابدا**: يو اعتراض زړه ته راځي چې کله د حوض کوثر په اوبو باندې د هميشه لپاره تَنده ختمه شي نو بيا په جنت کې د اوبو نهر يا د شهدو يا د شيدو (پې) يا د شرابو د نهر ته څه اړتيا ده؟ د دې جواب دا دی چې د حوض کوثر په اوبو سره به تَنده ختمه شي. وروسته چې کومې اوبه وي هغه کيدلی شي فقط د خوند د حصول لپاره به وي. د خوند په توګه به يې جنتيان څکي.

**ما احدثوا**: يو احتمال دا دی چې دا به هغه خلک وي چې د نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې يې اسلام راوړی ؤ. بيا د نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وفات نه وروسته مرتد شول، دا به د حوض کوثر نه ايسار کړی شي. دويم احتمال دا دی چې د دېنه مراد هغه بدعتيان دي چې هغه بدعت مکفره کې اخته شوي ؤ. (مرقات ۹/۵۱۳)

**سحقًا**: تاکيد لپاره يې مکرر راوړيدی. يعنې هلاکت دې وي، د ده لپاره دې هلاکت وي. (مرقات ۹/۵۱۳)

## د شفاعت کبری تفصيلي بيان

﴿۵﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " يُحْبَسُ الْمُؤْمِنُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی چې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د قيامت په ورځ به مؤمنان د حشر په

حَتَّى يُهَمُّوا بِذَلِكَ

ميدان کې ايسار کړی شي. تردې چې ټول خلک په دې د وجې نه په فکر او تردد کې پريوځي. بيا به هغوې

فَيَقُولُونَ: لَوِ اسْتَشْفَعْنَا إِلَى رَبِّنَا

خپل مينځ کې تذکره کوي چې کاش! مونږ ته يو داسې څوک په لاس راشي چې هغه زمونږ پروردګار ته

فَيُرِيحُنَا مِنْ مَكَانِنَا فَيَأْتُونَ آدَمَ

زمونږ سفارش کړی وی. او مونږ يې د دې سختې او پريشانی نه خلاص کړی وی. نو هغوې د حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ

فَيَقُولُونَ: أَنْتَ آدَمُ أَبُو النَّاسِ خَلَقَكَ اللهُ بِيَدِهِ

خواته راشي او هغه ته وايي چې ای ادم! تهٔ د ټولو خلکو پلار يې. ته الله تعالی په خپلو لاسونو سره پيدا کړی

وَأَسْكَنَكَ جَنَّتَهُ وَأَسْجَدَ لَكَ مَلَائِكَتَهُ وَعَلَّمَكَ أَسْمَاءَ كُلِّ شَيْءٍ

يې. ته يې په جنت کې وسولی يې. خپلو فرښتو باندې يې تا ته سجده وکړه او تا ته يې د هر شي نوم وښودلو.

اشْفَعْ لَنَا عِنْدَ رَبِّكَ حَتّٰى يُرِيحَنَا

براد کړه! ته خپل پروردګر ته زمونږ سفارش وکړه چې هغه مونږ د دې ځای نه ایستلو باندې راحت او اطمینان

مِنْ مَكَانِنَا هٰذَا. فَيَقُولُ: لَسْتُ هُنَاكُمْ. وَيَذْكُرُ خَطِيئَتَهُ

راکړي. حضرت آدم علیه السلام به ووایي: زه د دې مرتبې حقدار نه یم. بیا به حضرت آدم علیه السلام د خپل لغزش

الَّتِي أَصَابَ: أَكْلَهُ مِنَ الشَّجَرَةِ وَقَدْ نُهِيَ عَنْهَا

ذکر وکړي. چې هغه یې د ونې د خوړلو په صورت کې کړیوه. په داسې حال کې چې دا هغې ته د نږدې ورتګ

وَلٰكِنِ ائْتُوا نُوحًا أَوَّلَ نَبِيٍّ بَعَثَهُ اللهُ إِلٰى أَهْلِ الْأَرْضِ فَيَأْتُونَ نُوحًا

نه هم منع کړی شوی ؤ. هغه خلک به د حضرت نوح علیه السلام خواته راشي. حضرت نوح علیه السلام به جواب

فَيَقُولُ: لَسْتُ هُنَاكُمْ وَيَذْكُرُ خَطِيئَتَهُ الَّتِي أَصَابَ:

ورکړي چې زه د دې مرتبې حقدار نه یم. او هغه به د خپل لغزش ذکر کړي. چې هغه ده بی نا خبرتیا کې د

سُؤَالَهُ رَبَّهُ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَلٰكِنِ ائْتُوا إِبْرَاهِيمَ

الله تعالی نه خپل ځوې د غرقیدلو نه د بچ کولو لپاره سوال کولو په صورت کې کړی ؤ. تاسو لره د ابراهیم علیه السلام

خَلِيلَ الرَّحْمٰنِ. قَالَ:

خواته چې هغه د الله خلیل دی، تګ پکار دی. نبی صلی الله علیه وسلم وفرمایل هغه خلک په ابراهیم خلیل الله ته

فَيَأْتُونَ إِبْرَاهِيمَ فَيَقُولُ: إِنِّي لَسْتُ هُنَاكُمْ

راشي. حضرت ابراهیم علیه السلام به جواب ورکړي چې زه د دې مرتبې حقدار نه یم، او هغه به په دنیا کې د خپل

وَيَذْكُرُ ثَلَاثَ كِذِبَاتٍ كَذَبَهُنَّ وَلٰكِنِ ائْتُوا مُوسٰى عَبْدًا

درې ځل دروغو ویلو ذکر وکړي، تاسو حضرت موسی علیه السلام ته لاړ شئ، چې هغه د خدای داسې بنده دی

آتَاهُ اللهُ التَّوْرَاةَ وَكَلَّمَهُ

چې هغه ته خدای تورات ورکړی ؤ او د بنی اسرائیلو ټول انبیاء یې د هغه تابع کړي ؤ او چا ته چې د خدای

وَقَرَّبَهُ نَجِيًّا. قَالَ:

نیغ په نیغه د ځان سره د خبرو کولو عزت ورکړیدی، او خپل کمال قرب یې ورکولو باندې یې خپل رازدار جوړ

| | | |
|---|---|---|
| فَيَأْتُونَ | مُوسٰى | فَيَقُولُ: |

کړو. نبی کریم ﷺ و فرمايل: دغه خلک به حضرت موسی علیه السلام ته راشي. موسی علیه السلام به جواب ورکړي

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنِّي | لَسْتُ | هُنَاكُمْ | وَيَذْكُرُ | خَطِيئَتَهُ | الَّتِي | أَصَابَ | قَتْلَهُ |

چې زه د دې مرتبې حقدار نه يم. او هغه به د خپل لغزش ذکر وکړي. چې هغه ديو قبطي د وژلو په صورت

| | | | |
|---|---|---|---|
| النَّفْسَ | وَلَكِنِ | ائْتُوا | عِيسٰى |

کې شوي وه. بيا به هغه مشوره ورکړي چې تاسو لپاره حضرت عيسى علیه السلام ته تګ پکار دی. چې هغه د

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عَبْدَ | الله | وَ | رَسُولَهُ | وَ | رُوحَ | الله | وَ | كَلِمَتَهُ " قَالَ : |

خدای بنده او رسول دی. هغه تول روحاني دی. او هغه د الله کلمه ده. نبی کریم ﷺ و فرمايل: دغه خلک به

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| " فَيَأْتُونَ | عِيسٰى | فَيَقُولُ | : | لَسْتُ | هُنَاكُمْ |

حضرت عيسى علیه السلام ته راشي حضرت عيسى علیه السلام به جواب ورکړي چې زه د دې مرتبې حقدار نه يم. البته

وَلَكِنِ ائْتُوا مُحَمَّدًا عبدا غفر الله لَهُ ماتقدم مِنْ ذَنْبِهِ وَمَا تَأَخَّرَ ".

تاسو حضرت محمد ﷺ ته لاړ شی. چې هغه د خدای داسې بنده ده چې د هغه مخکنې وروستنې تول ګناهونه

| | | | |
|---|---|---|---|
| قَالَ: | " | فَيَأْتُونِي | فَأَسْتَأْذِنُ |

الله تعالى معاف کړيدی. نبی کریم ﷺ و فرمايل: هله به خلک زما خوا ته راشي. او زه به د رب العزت دربار ته.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَلٰى | رَبِّي | فِي | دَارِهِ | فَيُؤْذَنُ | لِي | عَلَيْهِ |

په ورتګ سره د هغه په دربار کې د پيش کيدلو اجازت وغواړم. الله تعالى به ما ته خپله بارګاه کې د پيش

| | | |
|---|---|---|
| فَإِذَا | رَأَيْتُهُ | وَقَعْتُ |

کيدلو اجازت راکړي. زه چې کله د هغه دربار ته په رسيدلو سره هغه ته وګورم نو هغه د هيبت او يرې د وجې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| سَاجِدًا | فَيَدَعُنِي | مَا | شَاءَ | الله |

او د هغې د تعظيم کولو لپاره به زه په سجده پريوزم. او الله تعالى چې څومره زمانه وغواړي. هغومره وخت لپاره

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَنْ | يَدَعَنِي | فَيَقُولُ | : | ارْفَعْ | مُحَمَّدُ | وَ | قُلْ |

به ما په سجده کې پريږدي. بيا به الله تعالى و فرمايي: چې محمد! سر و چت کړه، څه چې ويل غواړې، و وايه

تُسْمَعْ وَاشْفَعْ . تُشَفَّعْ وَسَلْ تُعْطَهْ".

ستا خبره به اوریدلی کیږي. ته شفاعت وکړه، ستا سفارش به قبلیدلی شي. او څه چې غواړې وغواړه، زه به یې

قَالَ: " فَأَرْفَعُ رَأْسِي فَأُثْنِي عَلى رَبِّي بِثَنَاءٍ تَحْمِيدٍ

تا ته درکوم. نبی کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: زه به خپل سر را اوچت کړم. او د هغه حمد او ستاینې سره چې هغه به ما ته

يُعَلِّمُنِيهِ ثُمَّ أَشْفَعُ فَيَحُدُّ لِي

پروردګار وښايي. د هغه حمد او ثناء به بیان کړم. بیا به زه شفاعت کوم، او زما د شفاعت به یو حد مقرر کړی

حَدًّا فَأَخْرُجُ فَأُخْرِجُهُمْ مِنَ النَّارِ وَأُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ ثُمَّ

شي، د دېنه وروسته به زه بیرون را ووځم. او دا جماعت به د دوزخ نه را اویستلو باندې جنت ته بوځم. بیا به زه

أَعُودُ الثَّانِيَةَ فَأَسْتَأْذِنُ

په دویم ځل باندې د رب العزت په دربار کې د پیش کیدلو اجازت وغواړم، ما ته به د هغه په دربار کې د

عَلَى رَبِّي فِي دَارِهِ. فَيُؤْذَنُ لِي عَلَيْهِ فَإِذَا رَأَيْتُهُ

پیش کیدلو اجازت را کړی شي، او کله چې زه د هغې دربار ته په رسیدلو سره هغه ته وګورم نو په سجده به

وَقَعْتُ سَاجِدًا. فَيَدَعُنِي مَا شَاءَ اللهُ أَنْ يَدَعَنِي ثُمَّ يَقُولُ: ارْفَعْ مُحَمَّدُ

پریوزم. او الله تعالی چې تر کومه وغواړي، ما به په سجده کې پریږدي. بیا به فرمايي چې: محمد! خپل سر

وَقُلْ تُسْمَعْ وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ

وچت کړه. څه چې ویل غواړې وو ایه. ستا خبره به اوریدلی کیږي. شفاعت کوه، زه به ستا شفاعت قبلوم،

وَسَلْ تُعْطَهْ. قَالَ: " فَأَرْفَعُ رَأْسِي فَأُثْنِي عَلَى رَبِّي

او غواړه زه به درکوم. نبی کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: زه به سر را اوچت کړم. او د هغه حمد او ستاینې سره چې هغه به

بِثَنَاءٍ وَ تَحْمِيدٍ يُعَلِّمُنِيهِ ثُمَّ أَشْفَعُ فَيَحُدُّ لِي حَدًّا

ما ته پروردګار وښايي، د هغه حمد او ثناء به بیان کړم. بیا به زه شفاعت کوم، او زما لپاره به د شفاعت یو حد

فَأَخْرُجُ فَأُخْرِجُهُمْ مِنَ النَّارِ وَ أُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ

مقرر کړی شي، د دېنه وروسته به زه بیرون را وځم. او دا جماعت به د دوزخ نه را اویستلو باندې جنت ته ننباسم

ثُمَّ أَعُودُ الثَّالِثَةَ فَأَسْتَأْذِنُ عَلَى رَبِّي فِي دَارِه

او بیا به زه په دریم ځل باندې د رب العزت دربار کې د حاضریدلو باندې د هغې په خدمت کې د پیش کیدلو

فيؤذي لِي عَلَيْهِ فَإِذَا

اجازت وغواړم، ماته به د هغې په بارګاه کې د پیش کیدلو اجازت راکړې شي. او کله چې زه د پروردګار

رَأَيْتُهُ وَقَعْتُ سَاجِدًا فَيَدَعُنِي مَا شَاءَ اللهُ

دربار ته په رسیدلو سره وګورم نو په سجده به پریوزم. او الله تعالی چې ترکوم وخته پورې وغواړي ما به په

أَنْ يَدَعَنِي ثُمَّ يَقُولُ: ارْفَعْ مُحَمَّدُ وَقُلْ

سجده کې پریږدي. بیا به و فرمایې چې: محمد! خپل سر و چت کړه، څه چې ویل غواړې، و وایه، ستا خبره

تُسْمَعْ وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ وَسَلْ تُعْطَهُ ". قَالَ:

به اوریدلی کیږي. او شفاعت کوه، زه به شفاعت قبلوم، او وغوره، زه به یې درکوم. نبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: زه

«فَأَرْفَعُ رَأْسِي فَأُثْنِي عَلَى رَبِّي

به خپل سر را وچت کړم، او د هغه حمد او ثناء سره چې ماته به یې پروردګار و ښایې، د هغه حمد او ثناء به بیان

بثناء وتحميد يُعَلِّمُنِيهِ ثُمَّ أَشْفَعُ فَيَحُدُّ لِي حَدًّا فَأُخْرِجُ

کړم. بیا به زه شفاعت کوم، او زما لپاره به د شفاعت یو حد مقرر کړې شي. د دېنه وروسته به زه بیرون

فَأُخْرِجُهُمْ مِنَ النَّارِ وَأُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ حَتَّى

راوځم. او هغه جماعت به د دوزخ نه په را ایستلو باندې جنت ته د ننه کړم. تردې چې په دوزخ کې د هغوی نه

مَا يَبْقَى فِي النَّارِ إِلَّا مَنْ قَدْ حَبَسَهُ الْقُرْآنُ» أَيْ

غیره هیڅوک پاتې نشي چې هغه قران ایسار کړي وي. د دې مطلب دا دی چې بس هغه خلک به په دوزخ

وَجَبَ عَلَيْهِ الْخُلُودُ ثُمَّ

کې پاتې شي، چې هغه د همیشه همیشه لپاره د دوزخ د عذاب مستحق ګرځیدلی دي. بیا نبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا

تَلَا هَذِهِ الْآيَةَ (عَسَى أَنْ يَبْعَثَكَ اللهُ مَقَامًا مَحْمُودًا)

آیت تلاوت کړو ﴿عَسٰى اَنْ يَّبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُوْدًا﴾ نژدې ده چې ستا رب تا ته مقام محمود کې ځای درکړي

قَالَ : « وَ هَذَا الْمَقَامُ المحمود الَّذِي وعده نَبِيكُمْ » . مُتَّفق عَلَيْهِ[۱]

نبي ﷺ وفرمایل: چې هم دا هغه مقام محمود دی چې دهغې وعده خدای ستاسو د نبی سره کړېده.

**توضیح**: **لست هنا کم**: یعنې زه د مقام شفاعت نه لرې یم. تاسو چې څنګه ما د دې کار لپاره ګڼئ نو زه د دې مقام لپاره نه یم. دا زما نه غیره د بل چا کار دی. (مرقات ۹/۵۱۴)

**اول نبي**: دلته سوال دا دی چې د نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ نه مخکې ډېر انبیاء تیر شویدي. نو دا اول نبی څنګه وګرځیدلو؟ د دې جواب دا دی چې اولوالعزم نبی نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ نه مخکې یو هم نه ؤ. الوالعزم په اعتبار سره یې اول و فرمایلو. دویم جواب دا دی چې د کافرو قوم سره مقابلې او دعوت لپاره اول نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ ؤ. چې هغه الله تعالی رسول لیږلی ؤ. د نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ د زمانې نه مخکې کفر نه ؤ. کافر قوم ته راتلونکی اول دا نبی ؤ.

**ثلاث کذبات**: دا د توریه په توګه باندې کلام ؤ، دروغ نه ؤ، د عربو په محاوره کې توریه ته چا دروغ نه دې ویلي. البته په ظاهرې الفاظو کې داسې ښکارې چې دروغ دې. د دې ظاهر په اعتبار سره ورباندې د دروغو اطلاق شویدی. په دې کې **انی سقیم** ته اشاره ده. دویم **بل فعله کبیرهم** ته اشاره ده. او دریم **هٰذه اختی** ته اشاره ده. (مرقات ۹/۵۱۷)

**لست هنا کم**: یعنې حضرت عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ به وفرمایې چې دا زما کار ندی. ځکه ما لره خلکو د الله په مقابل کې ودرولی دی. او ماته یې ابن الله ویلې دي. وس ما سره ویره هم ده او حیاء هم راځي. ځکه د الله تعالی مخې ته نشم تللی. تاسو د محمد ﷺ خواته لاړ شئ ځکه چې د هغه مخکنې وروستنې ټول ګناهونه الله تعالی معاف کړیدی.

**فیحد لی حدا**: یعنې په شفاعت کې به تحدید او تعین وي. مثلا تحدید به دا وي چې د زناکارو شفاعت وکړه، د شرابیانو شفاعت وکړه، د فلانکې فلانکې شفاعت قبول دی. هغه ته وکړه. د دېنه غیره سفارش مه کوه. دا تحدید دی.

**حبسه القرآن**: یعنې قرآن هغه **مخلد في النار** ګرځولی وي. په دې حدیث کې **ثم اشفع** نه شفاعت صغری بیان راغلی. ځکه چې نبی کریم ﷺ ته د شفاعت اجازت ورکړی شو. او نبي کریم ﷺ شفاعت کبری هم وکړو، د دېنه وروسته یې د خپل امت په اړه باندې شفاعت صغری تذکره وکړه، الله تعالی هغه محدودلو باندې اجازت ورکړو. (مرقات ۹/۵۲۱)

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۴۱۷ رقم الحديث ۶۵۶۵ ومسلم في صحيحه ۱/۱۸۰ رقم الحديث (۱۹۳-۳۲۲)

﴿۶﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: کله چې د قيامت ورځ وي نو خلک به د يو

مَاجَ النَّاسُ بَعْضُهُمْ فِي بَعْضٍ فَيَأْتُونَ آدم فَيَقُولُونَ:

بل سره په يو ناشنا د اضطراب په حالت کې وي. نو هغوی به آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ ته راشي او هغه ته به ووايي چې ته زمونږ

اشفع لنا إِلَى رَبِّكَ فَيَقُولُ: لَسْتُ لَهَا وَلَكِنْ عَلَيْكُمْ

لپاره پروردګار نه شفاعت وکړه. حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ به جواب ورکړي چې زه د دې اهل نه يم. البته تاسو خلک

بِإِبْرَاهِيمَ فَإِنَّهُ خَلِيلُ الرَّحْمَنِ فَيَأْتُونَ إِبْرَاهِيمَ فَيَقُولُ

ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ ته لاړ شئ، هغه ته الله دوست دی، دغه خلک به ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ ته لاړ شي، حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ

لَسْتُ لَهَا وَ لَكِنْ عَلَيْكُمْ بِمُوسَى فَإِنَّهُ

به هم جواب ورکړي چې زه د شفاعت لپاره نه يم، البته تاسو حضرت موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ ته لاړ شئ، هغه د الله کليم

كَلِيمُ اللهِ فَيَأْتُونَ مُوسَى فَيَقُولُ لَسْتُ لَهَا

دی. دغه خلک به حضرت موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ ته راشي، او حضرت موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ به هم هغه جواب ورکړي چې زه د

وَلَكِنْ عَلَيْكُمْ بِعِيسَى فَإِنَّهُ رُوحُ اللهِ وَكَلِمَتُهُ فَيَأْتُونَ عِيسَى

شفاعت لپاره نه يم. البته تاسو خلک حضرت عيسی عَلَيْهِ السَّلَامُ ته لاړ شئ، دغه خلک به حضرت عيسی عَلَيْهِ السَّلَامُ ته

فَيَقُولُ لَسْتُ لَهَا وَلَكِنْ عَلَيْكُمْ بِمُحَمَّدٍ

راشي او حضرت عيسی عَلَيْهِ السَّلَامُ به هم دغه جواب ورکړي چې زه د شفاعت لپاره نه يم. او تاسو محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته

فَيَأْتُونِّي فَأَقُولُ أَنَا لَهَا

تګ پکار دی. نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: هله به خلک زما خواته راشي. او زه به هغوی ته ووايم چې هو يېشکه

فَأَسْتَأْذِنُ عَلَى رَبِّي

زه د شفاعت اهل يم. بيا به زه د الله دربار کې د پيش کيدلو اجازت وغواړم. ما ته به د پيش کيدلو اجازت

فَيُؤْذَنُ لِي وَ يُلْهِمُنِي مَحَامِدَ أَحْمَدُهُ بِهَا

راکړی شي. او الله تعالی به زما په زړه کې د حمد او ثناء الفاظ واچوي چې د هغې په ذريعه به زه د هغه حمد

لَا تَحْضُرُنِي الْآنَ فَأَحْمَدُهُ بِتِلْكَ الْمَحَامِدِ وَأَخِرُّ لَهُ سَاجِدًا

او ثناء کوم. او حمد او ثناء دا وخت ماته معلومه نده، بهرحال زه په سجده پریوزم. او دهغه به هم هغه حمد او

فَيُقَالُ يَا مُحَمَّدُ ارْفَعْ رَأْسَكَ وَقُلْ تُسْمَعْ

ثناء وکړم. بیا به ماته وویلی شي چې محمد! خپل سر وچت کړه. څه چې ویل غواړي ووایه، ستا خبره به

وَسَلْ تُعْطَهُ وَاشْفَعْ

اوریدلی کیږي. څه چې غوختل غواړي، وغواړه! زه به يې درکوم. او څه سفارش چې کول غواړي، وکړه، زه

تشفع فَأَقُول يارب أُمَّتِي أُمَّتِي فَيُقَالُ

به يې قبلوم. زه به ووایم چې زما ربه! زما امت وبخښه. زما په امت باندې رحم وکړه! ماته به وویلی شي چې

انْطَلِقْ فَأَخْرِجْ مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ شَعِيرَةٍ مِنْ إِيمَانٍ فَأَنْطَلِقُ

لاړ شه هر هغه سړی راوباسه چې دهغه په زړه کې د جوار د دانې هومره ایمان وي. نو زه به لاړ شم. او د رب

فأفعل ثُمَّ أَعُودُ

په حکم باندې به عمل وکړم. د دېنه وروسته به بیا د رب العزت په دربار کې د حاضریدلو اجازت وغواړم.

فأحمده بِتِلْكَ المحامد و أخر لَهُ سَاجِدًا فَيُقَالُ

او هم په هغه الفاظو کې به د الله حمد او ثناء کې په سجده شم. بیا به ماته وویلی شي بیا به ماته وویلی شي چې

يَا مُحَمَّدُ ارْفَعْ رَأْسَكَ وَقُلْ تُسْمَعْ وَسَلْ تُعْطَهُ وَاشْفَعْ

محمد! خپل سر وچت کړه. څه چې ویل غواړي ووایه، ستا خبره به اوریدلی کیږي. څه چې غوختل غواړي،

تَشَفَّعْ فَأَقُولُ يارب

وغواړه! زه به يې درکوم. او څه سفارش چې کول غواړي، وکړه، زه به يې قبلوم. زه به ووایم چې زما ربه! زما

أُمَّتِي أُمَّتِي فَيُقَالُ انْطَلِقْ فَأَخْرِجْ مَنْ

امت وبخښه. زما په امت باندې رحم وکړه! ماته به وویلی شي چې لاړ شه او د (دوزخ) هر هغه سړی راوباسه

كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ أَوْ خَرْدَلَةٍ مِنْ إِيمَانٍ فَأَنْطَلِقُ فَأَفْعَلُ

چې دهغه په زړه کې د ذرې یا د ګدن د دانې هومره ایمان ههم وي. نو زه به لاړ شم، او د رب په حکم به

ثُمَّ أَعُودُ فَأَحْمَدُهُ بِتِلْكَ المحامد

عمل وکړم. د دېنه وروسته به زه د رب العزت په دربار کې حاضر شم او په هغه الفاظو به د الله تعالی حمد

وأخر لَهُ سَاجِدًا فَيُقَالُ يَا مُحَمَّدُ ارْفَعْ رَأْسَكَ

او ثناء کې په سجده شم. بیا به ماته وویلی شي چې محمد! خپل سر وچت کړه. څه

وَقُلْ تُسْمَعْ وَسَلْ تُعْطَهْ

ویل غواړې ووایه، ستا خبره به اوریدلی کیږي. څه چې غوختل غواړې، وغواړه! زه به یې درکوم. او څه سفارش

وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ فَأَقُولُ يارب أُمَّتِي أُمَّتِي

چې کول غواړې، وکړه، زه به یې قبلوم. زه به ووایم چې زما ربه! زما امت وبخښه. زما په امت باندې رحم وکړه!

فَيُقَالُ انْطَلِقْ فَأَخْرِجْ مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ أَدْنَى أَدْنَى أَدْنَى مِثْقَالِ حَبَّةٍ من خَرْدَلَةٍ

ماته به وویلی شي چې لاړشه او د (دوزخ) هر هغه سړی راوباسه چې د هغه په زړه کې د ګدن د دانې هومره

مِنْ إِيمَانٍ فَأَخْرِجْهُ مِنَ النَّارِ فَأَنْطَلِقُ فأفعل ثُمَّ أَعُود الرَّابِعَة

ایمان هم وي. نو زه به لاړ شم، او د رب په حکم به عمل وکړم. د دېنه وروسته به زه په څلورم ځل د

فأحمده بِتِلْكَ المحامد وأخر لَهُ سَاجِدًا

رب العزت دربار کې حاضر شم. او په هغه الفاظو به د الله حمد و ثناء کولو کې په سجده پریوزم. بیا به ماته

فَيُقَالُ يَا مُحَمَّدُ ارْفَعْ رَأْسَكَ وَقُلْ تُسْمَعْ

وویلی شي بیا به ماته وویلی شی چې محمد! خپل سر وچت کړه. څه چې ویل غواړې ووایه، ستا خبره به اوریدلی

وَسَلْ تُعْطَهْ وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ

کیږي. څه چې غوختل غواړې، وغواړه! زه به یې درکوم. او څه سفارش چې کول غواړې، وکړه، زه به یې قبلوم.

فَأَقُولُ يارب ائْذَنْ لِي فِيمَنْ قَالَ لَا إِلَهَ إِلَّا الله

زه به ووایم چې زما ربه! زما امت وبخښه. زما په امت باندې رحم وکړه! چا چې لا اله الا الله ویلي وي. پروردګار

قَالَ لَيْسَ ذَلِكَ لَكَ وَلَكِنْ وَعِزَّتِي وَجَلَالِي وَكِبْرِيَائِي

به وفرمایي چې نا! د دې تعلق ستا سره نشته دی. بلکې د خپل عزت او جلال او د خپل ذاتي او صفاتي عظمت

| وَعَظَمَتِي لَأُخْرِجَنَّ مِنْهَا مَنْ قَالَ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[۱] |
|---|
| او لويۍ قسم چې هغه سړی به زه د دوزخ نه راوباسم چې لااله الاالله يې ويلی دي. |

**توضيح**: امتي امتي: دا دهغه شفاعت صغرى بيان دى. دشفاعت کبرٰی د قبوليت نه وروسته نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د فرصت نه فائده واخستله، او د خپل امت مرحومه لپاره يې شفاعت صغرٰی شروع کړو. د امتی الفاظ يې د تاکيد لپاره مکرر راوړي دي. يا د مخکنې وروستنې امتونو اراده کړې شويده. اى يارب ارحمهم واغفرلهم اولهم وأخرهم.

## د شفاعت د ټولو نه ډير مستحق سړی څوک دی

| ﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " |
|---|
| او حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت کوي چې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: |
| أَسْعَدُ النَّاسِ بِشَفَاعَتِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَنْ قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ خَالِصاً من قلبه |
| د قيامت په ورځ به زما لپاره د نصيب والا هغه سړی وي چا چې د زړه په اخلاص يا د د نفس په اخلاص |
| أو نفسه "رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[۲] |
| سره لا اله الاالله ويلي وي |

**توضيح**: خالصًا من قلبه: يعنې د زړه په اخلاص او د مکمل توحيد سره کلمه ويونکی سړی د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د شفاعت لپاره د ډير نصيب، اسعد او مستحق سړی وګرځولی شو. (مرقات۹/۵۲۵)

## د شفاعت تفصيل

| ﴿۸﴾ وَعَنْهُ قَالَ أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِلَحْمٍ فَرُفِعَ إِلَيْهِ الذِّرَاعُ |
|---|
| او حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيانوي چې د نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضور ته غوښه راوړی شوه. په دې کې د لاس |
| وَكَانَتْ تُعْجِبُهُ فَنَهَسَ مِنْهَا |
| غوښه (ليچی) نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته وړاندې کړی شوه. چې دا نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ډيره خوښه او مرغوب وه. |

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳/۴۷۳ رقم الحديث ۷۵۱۰ ومسلم في صحيحه ۱/۱۸۲ رقم الحديث (۱۹۳-۳۲۶)

(۲) أخرجه البخاري في صحيحه ۱/۱۹۳ رقم الحديث ۹۹ وأحمد في المسند ۲/۳۷۳.

نَهْسَةً ثُمَّ قَالَ: «أَنَا سَيِّدُ النَّاسِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَوْمَ يَقُومَ

نبي كريم صلى الله عليه وسلم هغه په غاښونو باندې راخكلو راخكلو سره وخوړه. او بيا يې وفرمايل: چې د قيامت په ورځ

النَّاسُ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ وتښانو

چې كله خلك د دوه جهانونو پروردګار خبرې دا وېدلو په انتظار كې به ولاړ وي. د ټولو خلكو سردار به يم. په ننه

الشَّمْس فَيبلغ مِنَ الْغَمِّ وَالْكَرْبِ مَا لَا يُطِيقُونَ

ورځ به لمر ډير نژدې وي. او د خلكو حالت پيدو مرره وارخطا او د غم او فكر نه به دومره شوي وي چې هغوى به هغه برداشت نشي كولى.

فَيَقُولُ النَّاس أَلا تَنْظُرُون

يعني په صبر او استقامت باندې به قادر نوي. او په ډيره حيرانتيا او پريشانى په حالت كې به يو بل ته وايي

من يشفع لكم إلى ربكم؟

چې آخر تاسو يو داسې څوک ولې نه لټوئ چې هغه ستاسو پروردګار ته ستاسو شفاعت وكړي. نو خلك به

فَيأتُونَ آدَمَ» وَذَكَرَ حَدِيث

حضرت آدم عليه السلام ته راشي. د دېنه وروسته حضرت ابو هريره رضى الله عنه د خپلنبى كريم صلى الله عليه وسلم د شفاعت په

الشَّفَاعَةِ وَقَالَ: «فَأَنْطَلِقُ

كې هغه اجزاء بيان كړل (چې هغه په مخكې حديث كې تير شوي دي) دې ذكر كولو نه وروسته نبى كريم صلى الله عليه وسلم

فَآتِي تَحْتَ الْعَرْشِ فَأَقَعُ سَاجِدًا لِرَبِّي

وفرمايل: نو زه به د خلكو د خوا نه روان شم، او د عرش د لاندې به راشم. او هته به خپل رب ته سجده وكړم

ثُمَّ يَفْتَحُ اللهُ عَلَيَّ مِنْ مَحَامِدِهِ وَحُسْنِ الثَّنَاءِ عَلَيْهِ شَيْئًا

بيا به الله تعالى په ما باندې د خپل حمد او بهترين ثناء هغه الفاظ او اداب ظاهر كړي هغه طريقې ما ته ته وكړي

لَمْ يَفْتَحْهُ عَلَى أَحَدٍ قَبْلِي

چې هغه زمانه مخكې به بل چا ته دي هغې القاء نه وي شوي. بلكې د هغه وخت نه مخكې به يې زما سره هم

ثُمَّ قَالَ يَا مُحَمَّدُ

څه علم نه وي. څنګه چې مخكې يو حديث كې دې ته اشاره شوې ده. بيا به پروردګار فرمايي چې: محمد!

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ارْفَعْ | رَأْسَكَ | وَسَلْ | تُعْطَهْ | وَاشْفَعْ |

خپل سر وچت کړه څه چې غواړې. وغواړه، زه به يې درکوم، او څه شفاعت چې کول غواړې، نو وکړه. زه به

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| تُشَفَّعْ | فَأَرْفَعُ | رَأْسِي | فَأَقُولُ | أُمَّتِي | يارب | أُمتِي | يارب | فَيُقَالُ |

يې قبلوم. زه به خپل سر وچت کړم. او عرض به وکړم چې زما ربه! زما امت وبخښې. هله به ماته وويلى شي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يَا | مُحَمَّدُ | أَدْخِلْ | مِنْ | أُمَّتِكَ | مَنْ | لَا | حِسَابَ | عَلَيْهِمْ |

چې اى محمد! د خپل امت نه هغه خلک چې دهغوې نه به حساب نه اخستلى کيږي، د جنت په ښي اړخ

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنَ | الْبَابِ | الْأَيْمَنِ | مِنْ | أَبْوَابِ | الْجَنَّةِ | وَهُمْ | شُرَكَاءُ | النَّاسِ |

دروازه باندې دننه کړه، او دغه خلک د دغه دروازې نه غيره د نورو دروازو په استعمال په حق کې هم د نورو

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فِيمَا | سِوَى | ذَلِكَ | مِنَ | الْأَبْوَابِ» | . ثُمَّ | قَالَ: | «وَالَّذِي | نَفْسِي | بِيَدِهِ |

خلکو سره شريک دي. د دېنه وروسته نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: قسم دى په هغه ذات چې د هغه د قدرت په لاس

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّ | مَا | بَيْنَ | الْمِصْرَاعَيْنِ | مِنْ | مَصَارِيعِ | الْجَنَّةِ | كَمَا | بَيْنَ | مَكَّةَ |

کې زما ساه ده، د جنت په دروازو کې د هريوې دروازې د درشلو ترمينځ فاصله هغومره ده څومره چې د مکې او

وَ هَجَرَ ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ [1]

هجر ترمينځ ده. (بخاري ومسلم)

**توضيح**: المصراعين: د دروازې دواړو غاړو او دورشل ته وايي. **هجر**: د بحرين د يو ښار نوم دى. چې هغې ته احساء وايي. (مرقات ۹/۵۲۷)

## صله رحمي او امانت به خپل حق په پل صراط باندې اخلي

﴿۹﴾ وَعَنْ حُذَيْفَةَ فِي حَدِيثِ الشَّفَاعَةِ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د شفاعت په لړ کې حديث نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل

«وَتُرْسَلُ الْأَمَانَةُ وَالرَّحِمُ فَتَقُومَانِ جَنَبَتَيِ الصِّرَاطِ يَمِينًا وَ شِمَالًا » رَوَاهُ مُسلم [2]

چې امانت او رحم يعنې خپلولې به ولېږلى شي او هغه دواړه به د پل صراط په ښي او چپ اړخ باندې ودرېږي

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۸/۳۹۵ رقم الحديث ۶۷۱۲، ومسلم في صحيحه ۱/۱۸۴ رقم الحديث (۱۹۴-۳۲۷)

[2] أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۱۸۴ رقم الحديث (۱۹۵-۱۲۹)

**توضیح:** **وترسل الامانة:** امانت او صله رحمې به ولیږلی شي، هغوې به پل صراط نه ګیر چاپیره ولاړ وي. دې لپاره چې د صله رحمې ماتونکو نه خپله بدله واخلي. او صله رحمې او امانت روغونکو باندې دوې ګواهې ورکړي چې دوې زمونږ حق ادا کړیدی. او صله رحمې او خیانت کونکو خلکو باندې دوې ګواهې ورکړي چې دوې زمونږ حق ندی ادا کړی. په دې حدیث سره دې صله ماتونکو او خیانت کونکو سترګې برسیرته شي چې میدان محشر د ټولو حسابونو نه فارغیدلو باندې په پل صراط باندې دیانت او امانت او قرابت او صله رحمې ته به حساب ورکول وي، که د هغه ځاې نه کامیاب شوي نو جنت ته به ځي ګنې دوزخ ته به ګوزار کړی شي. (مرقات ۹/۵۲۷)

## الله تعالی به د امت په باره کې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ راضي کړي

﴿۱۰﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَلَا قَوْلَ اللهِ تَعَالَى فِي إِبْرَاهِيمَ:

او حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایې چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ په اړه باندې

[رَبِّ إِنَّهُنَّ أَضْلَلْنَ كَثِيرًا

دا آیت تلاوت کړو ﴿رَبِّ إِنَّهُنَّ أَضْلَلْنَ كَثِيرًا مِنَ النَّاسِ فَمَنْ تَبِعَنِي فَإِنَّهُ مِنِّي﴾ ترجمه چې ای زما ربه! دا بتان د ډیرو خلکو

مِنَ النَّاسِ فَمَنْ

د ګمراهۍ سبب جوړ شویدي، نو د هغه خلکو نه چې زما تابعداري یې کړیده، یعنې توحید، اخلاص

تَبِعَنِي فَإِنَّهُ مِنِّي]

او توکل یې خپل کړیدی، هغه زما خپل او تابعدار دي (او چا چې زما نافرماني کړیده نو ته معاف کونکی رحیم یې)

وَقَالَ عِيسَى: [إِن تُعَذِّبْهُمْ

یا نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ په اړه باندې دا آیت تلاوت کړو: ﴿إِن تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ﴾ که ته

فَإِنَّهُم عِبَادُك] فَرَفَعَ يَدَيْهِ

دوې لره په عذاب کې اخته کوې نو بهر حال هغه ستا بندیګان دي. د د هنه وروسته نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاسونه پورته کړل

فَقَالَ «اللهمَّ أُمَّتِي أُمَّتِي» وَبَكَى

او دعا یې وکړه چې: ربه! زما امت وبخښه، زما امت باندې رحم وکړه! او نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ژړا شو، الله تعالی

فَقَالَ اللهُ تَعَالَى: «يَا جِبْرِيلُ اذْهَبْ إِلَى مُحَمَّدٍ وَرَبُّكَ أَعْلَمُ فَسَلْهُ مَا يُبْكِيهِ؟».

جبرائیل امین عَلَيْهِ السَّلَامُ نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته را ولیږلو او د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه یې د ژړا پوښتنه وکړه،

| فَأَتَاهُ جِبْرِيلُ فَسَأَلَهُ فَأَخْبَرَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَا قَالَ فَقَالَ اللهُ لِجِبْرِيلَ اذْهَبْ |
|---|
| نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپلو الفاظو کې هغه ته وویله بیا الله تعالی وفرمایل چې محمد ته لاړ شه او |
| إِلَى مُحَمَّدٍ فَقُلْ : إِنَّا سَنُرْضِيكَ فِي أُمَّتِكَ وَلَا نَسُوؤُكَ ". رَوَاهُ مُسْلِم[1] |
| ورته ووایه چې یقینًا مونږ به تا ستا د امت په اړه باندې راضي او خوشحاله کړو. او تا به هیڅري نه خفه کوؤ. |

**توضیح**: وقال عیسی: یعني نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قول ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَام ولوستلو او نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قول عیسی عَلَيْهِ السَّلَام هم ولوستلو. دلته **قال عیسی** په معنی د **قول عیسی** دی او **قال یقول قولا وقیلا وقالاً** مصادر راځي. نو دلته قال مصدری په معنی کې دی. چې هغه په معنی د قول دی. ای **تلا النبي قول ابراهیم** وتلا قول عیسی نو دا په قول ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَام باندې عطف دی. **سارضیك**: یعني مونږ به تا ستا د امت په اړه باندې راضي کړوو او تا به نه غمږن کوؤ. (مرقات ۹/۵۲۹)

## د قیامت او شفاعت په اړه اوږد حدیث

| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّ أُنَاسًا قَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ |
|---|
| او حضرت ابو سعید خدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی چې څه خلکو وویله یارسول الله! د قیامت په ورځ به |
| هَلْ نَرَى رَبَّنَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «نَعَمْ هَلْ تُضَارُّونَ |
| مونږ خپل رب وینو؟ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: چې هو! وبه وینئ. آیا تاسو د غرمې په وخت کې چې په آسمان |
| فِي رُؤْيَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ |
| باندې د وریځ هیڅ ټوټه هم نوي، د لمر په کتلو کې څه بندیز محسوسوئ. او آیا تاسو د څوارلسمې شپې چې په |
| صَحْوًا لَيْسَ فِيهَا سَحَابٌ؟» قَالُوا: |
| آسمان باندې د وریځ هیڅ ټوټه هم نوي، د سپوږمۍ په کتلو کې څه تکلیف محسوسوئ؟ خلکو وویل چې |
| لَا يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ: " مَا تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ اللهِ |
| هیڅکله هم نه. یارسول الله! وې فرمایل: نو بیا د قیامت په ورځ به تاسو د الله تعالی په کتلو کې هیڅ تکلیف |
| يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَّا كَمَا تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ أَحَدِهِمَا |
| نه محسوسوئ، خو بس هغومره چې تاسو د دې دواړو په کتلو کې څومره تکلیف محسوسوئ، کله چې د |

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۱۹۱ رقم الحديث (۲۰۲-۳۴۶)

إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ أَذَّنَ مُؤَذِّنٌ لِيَتَّبِعْ كُلُّ أُمَّةٍ

قیامت ورځ راشي نو یو اعلان کونکی به اعلان وکړي چې کومې ډلې (په دنیا) کې د چا عبادت کولو ، هغه دې هغې پسې

مَا كَانَتْ تَعْبُدُ فَلَا يَبْقَى أَحَدٌ كَانَ يعبد غيرالله مِنَ الْأَصْنَامِ وَالْأَنْصَابِ

شي، نو خلک به د الله تعالی په ځای باندې بتانو او انصابو (درګاهونه) عبادت کولو، په دوې کې به یو هم نه بچ

إِلَّا يَتَسَاقَطُونَ فِي النَّارِ

کیږي، او ټول به دوزخ ته ګوزار کړی شي، ځکه چې انصاب او بتان چې د هغوې عبادت کیدلو، دوزخ ته به ګوزار

حَتَّى إِذَا لَمْ يَبْقَ إِلَّا مَنْ كَانَ

کړی شي. لهٰذا د دوې سره به د دوې عبادت کونکي هم دوزخ ته ګوزار کړی شي. تردې چې کله د هغه خلکو نه غیره هیڅوک پاتې

يَعْبُدُ اللَّهَ مِنْ بَرٍّ وَفَاجِرٍ أَتَاهُمْ رَبُّ الْعَالَمِينَ قَالَ:

نشي چې هغوې د الله عبادت کولو ، که هغه نیکان وي او که بدان وي، نو د ټولو جهانونو رب به هغوې ته راشي او وبه فرمایې

فَمَاذَا تَنْظُرُونَ؟ يَتْبَعُ كُلُّ أُمَّةٍ مَا كَانَت تعبد. قَالُوا:

چې تاسو د چا انتظار کوئ؟ هره ډله هغه پسې لاړه چې د چايې عبادت کولو. (تاسو ولې نه ځئ) دغه خلک به جواب ورکړي

يا ربنا فَارَقْنَا النَّاسَ فِي الدُّنْيَا

چې زمونږ ربه! مونږ د هغه خلکو نه چې هغوې په دنیا کې د غیر الله عبادت کولو، به پوره توګه باندې بیلتون خپل کړی ؤ.

أَفْقَرَ مَا كُنَّا إِلَيْهِم وَلم نصاحبهم".[1]

او حال دا ؤ چې مونږ هغوې ته محتاج ؤ. خو مونږ کله هم د هغوې سره ناسته او مجلس ندی خوښ کړی.

وَ فِي رِوَايَةِ أَبِي هُرَيْرَةَ "

او د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روایت کې دلته دا سې نقل شوي دي چې دغه خلک به وو ایي چې مونږ

فَيَقُولُونَ : هَذَا مَكَانُنَا حَتَّى يَأْتِيَنَا رَبُّنَا

به دې ځای ندتر هغه وخته پورې لاړ نشو ، ترڅو چې زمونږ رب مونږ ته رانشي. او کله چې زمونږ رب راشي

فَإِذَا جَاءَ رَبُّنَا عَرَفْنَاهُ" وَفِي رِوَايَةِ أَبِي سَعِيدٍ:

نو مونږ به هغه وپیژنو ، او د حضرت ابو سعید خدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روایت کې دا الفاظ دي چې الله تعالی به د دوې

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۱۶۴ رقم الحديث (۱۸۲-۲۹۹)

"فَيَقُولُ هَلْ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُ آيَةٌ
نه پوښتنه وکړي چې آیا ستاسو او ستاسو د رب ترمينځ څه نښانې شته، چې د هغې په ذريعه سره تاسو هغه

تَعْرِفُونَهُ؟ فَيَقُولُونَ: نَعَمْ فَيُكْشَفُ عَنْ سَاقٍ
وپیژنئ؟ هغوی به ووایي چې هو! شته. هله به الله تعالی خپله پنډۍ رابرسيرته کړي، او په دې وخت کې به

فَلَا يَبْقَى مَنْ كَانَ يَسْجُدُ لِلّٰهِ مِنْ تِلْقَاءِ
الله تعالی هر هغه سړي ته د سجدې کولو اجازت او توفيق ورکړي چې هغه په دنيا کې چا ته د ښودنې،

نَفْسِهِ إِلَّا أَذِنَ اللهُ
اورونې او د څه خوف او لالچ د وجې نه نه بلکې خپله د نفس د تقاضې يعنې اخلاص او د عقيدې سره

لَهُ بِالسُّجُودِ وَلَا يَبْقَى مَنْ كَانَ يَسْجُدُ اتِّقَاءً
الله تعالی ته سجده کوله. او هر هغه سړی چې (په دنيا کې) د چا د ويرې يا خلکو ته د ښودنې اورونې لپاره

وَرِيَاءً إِلَّا جَعَلَ اللهُ ظَهْرَهُ طَبَقَةً وَاحِدَةً كُلَّمَا أَرَادَ أَنْ يَسْجُدَ
الله تعالی ته سجده کوله، الله تعالی به د هغه ملا (شاه) کلکه کړي، نو هغه به د سجدې لپاره ټيټيدل غواړي

خَرَّ عَلَى قَفَاهُ ثُمَّ يُضْرَبُ الْجِسْرُ عَلَى جَهَنَّمَ وَتَحِلُّ الشَّفَاعَةُ
نو په شا په ګوزار شي. بيا به پل صراط باندې پل کيخودلی شي او د شفاعت اجازت به وشي. ټول انبياء به دا

وَيَقُولُونَ اللّٰهُمَّ سَلِّمْ سَلِّمْ فَيَمُرُّ الْمُؤْمِنُونَ
دعاء کوي چې ای الله دوی په سلامتيا سره تير کړي، دوی په دوزخ کې د ګوزارولو نه روغ وساته. نو مسلمان

كَطَرْفِ الْعَيْنِ وَكَالْبَرْقِ
خلک به داسې تيريږي چې ځينې خو به د سترګو په رپ کې تير شي، ځينې به د برق (بجلی) د پړق په شان

وَكَالرِّيحِ وَكَالطَّيْرِ وَكَأَجَاوِيدِ
تير شي. ځينې به د هوا (باد) د چپې په شان. ځينې به د مارغانو په شان الوتلو باندې تير شي، په دوی کې به

الْخَيْلِ وَ الرِّكَابِ فَنَاجٍ
ځينې مسلمانان هغه وي چې هغه به د دوزخ د اور نه بيخي په سلامتيا او نجات موندونکې وي، او ځينې

مُسَلَّمٌ وَمَخْدُوشٌ مُرْسَلٌ

مسلمانان به هغه وي چې هغوی به ټپ (زخم) خوړولو باندې تیر شي، او خلاصی به بیامومي، دغه شان څه

وَمَكْدُوسٌ فِي نَارِ جَهَنَّمَ

مسلمانان به هغه وي چې هغه به زره زره شي، او دوزخ ته به دهيكه كړی شي. تردې چې كله مؤمن د دوزخ

حَتَّى إِذَا خَلَصَ الْمُؤْمِنُونَ مِنَ النَّارِ فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ

د اور نه نجات بیاموي نو قسم دی د هغه پاک ذات چې د هغه د قدرت په لاس کې زما ساه ده، په تاسو کې يو

مَا مِنْ أحد مِنْكُم بأشَدَّ مُناشدةً فِي الْحق قد تبين لَكُمْ

سړی هم د یو ظاهر ثابت شوي حق ترلاسه کولو لپاره دومره سخت کوښښ نکوي څومره سخت کوښښ

مِنَ الْمُؤْمِنِينَ لله يَوْمَ الْقِيَامَةِ لِإِخْوَانِهِمْ

چې د قيامت په ورځ د الله تعالى په دربار کې د خپلو وروڼو د خلاصون لپاره کوي، کوم چې په دوزخ کې

الَّذِينَ فِي النَّارِ يَقُولُونَ رَبَّنَا كَانُوا يَصُومُونَ مَعَنَا وَيُصَلُّونَ

وي. هغه مؤمنان به وايي چې زمونږ ربه! دې خلکو به زمونږ سره روژه نیوله، لمونځ به يې کولو، او زمونږ سره

وَيَحُجُّونَ فَيُقَالُ لَهُمْ: أَخْرِجُوا مَنْ عَرَفْتُمْ

به يې حج کولو. دوی ته به وویلی شي چې لاړ شئ او کوم خلک چې تاسو پیژنئ، هغه راوباسئ، نو دوزخ په

فَتَحَرَّمُ صُوَرَهُمْ عَلَى النَّارِ فَيُخْرِجُونَ خَلْقًا كَثِيرًا ثُمَّ يَقُولُونَ:

اور باندې به د دوی صورتونه حرام کړی شي، دغه مؤمنان به ډیر خلک د دوزخ نه راوباسي، بیا به وايي

رَبَّنَا مَا بَقِيَ فِيهَا أَحَدٌ مِمَّنْ أَمَرْتَنَا بِهِ.

چې زمونږ ربه! کومو خلکو چې تا د دوزخ نه د راویستلو حکم کړی و، په هغوی کې هیڅوک هم وس په

فَيَقُولُ: ارْجِعُوا فَمَنْ وجدْتُم

دوزخ کې پاتې ندی. الله تعالى به وفرمايي چې بیا وس لاړ شئ، او وس هر هغه سړی راوباسئ چې د هغه په

فِي قلبه مِثْقَالَ دنيار مِنْ خَيْرٍ فَأَخْرِجُوهُ فَيُخْرِجُونَ خَلْقًا كَثِيرًا

کې د دینار هومره نیکي بیامومئ، نو هغه مؤمنان به لاړ شي، او ډیر خلک به د دوزخ نه راوباسي، د ډېنه

ثُمَّ يَقُولُ: ارْجِعُوا فَمَنْ وَجَدْتُمْ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالَ نِصْفِ دِينَارٍ

وروسته به الله تعالی هغوې ته وفرمايي چې او وس هر هغه سړی راوباسی چې د هغه په زړه کې د نیم دینار

مِنْ خَيْرٍ فَأَخْرِجُوهُ فَيُخْرِجُونَ خَلْقًا كَثِيرًا

په اندازه نیکې بیاموم‌ی، نو هغه مؤمنان به لاړشي او ډیر خلک به د دوزخ نه راوباسي، بیا به الله تعالی

ثُمَّ يَقُولُ: ارْجِعُوا فَمَنْ وَجَدْتُمْ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ

حکم ورکړي چې لاړشی او هر هغه سړی د دوزخ نه راوباسی چې د هغوې به زړه کې تاسو د ذرې هومره

مِنْ خَيْرٍ فَأَخْرِجُوهُ فَيُخْرِجُونَ خَلْقًا كَثِيرًا ثُمَّ يَقُولُونَ: رَبَّنَا

نیکې بیاموم‌ی، دغه مؤمنان به لاړشي او ډیر خلک به د دوزخ نه راوباسیو او وبه وایي چې ربه! مونږ په

لَمْ نَذَرْ فِيهَا خَيْرًا فَيَقُولُ اللهُ شَفَعَتِ الْمَلَائِكَةُ وَشَفَعَ

دوزخ کې ښیکړه پرې نه ښودله، الله تعالی به وفرمايي: فرښتو شفاعت وکړو. او پیغمبرانو هم شفاعت وکړو.

النَّبِيُّونَ وَشَفَعَ الْمُؤْمِنُونَ

او مؤمنانو هم شفاعت وکړو. او د دې ټولو خلکو شفاعت تعلق د هغه خلکو سره ؤ چې د هغوې په اعمال نامه

وَلَمْ يَبْقَ إِلَّا أَرْحَمُ

کې څه نا څه نیکې خامخا وه، که هغه نیکې د ذرې برابر یا د دې نه د کمې درجې ولې نه وه، او وس هیڅوک

الرَّاحِمِينَ فَيَقْبِضُ قَبْضَةً مِنَ النَّارِ

پاتې نشو. لیکن وس د ارحم الرّاحمین ذات پاتې دی او (فرمان سره به) الله تعالی د دوزخ نه خپل موټې ډکولو

فَيُخْرِجُ مِنْهَا قَوْمًا لَمْ يَعْمَلُوا خَيْرًا قَطُّ قَدْ عَادُوا حُمَمًا

باندې خلک راوباسي چې هغوې به کله هم نیکې نه وي کړي. دا خلک به د دوزخ کې سکاره (کوئله) شوي

فَيُلْقِيهِمْ فِي نَهَرٍ فِي أَفْوَاهِ الْجَنَّةِ يُقَالُ لَهُ: نَهَرُ الْحَيَاةِ

وي، نو دوې په هغه نهر کې واچولی شي چې هغه د جنت د دروازو مخې ته دی، او چې هغې ته به نهر حیات

فَيَخْرُجُونَ كَمَا تَخْرُجُ الْحِبَّةُ فِي حَمِيلِ السَّيْلِ

ویلی کیږي، او بیا به دا خلک د هغه نهر نه داسې تازه راووځي لکه دانه چې د سیلاب په خټو کې راززغونه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَيَخْرُجُونَ | كَاللُّؤْلُؤِ | فِي | رِقَابِهِمُ | الْخَوَاتِمُ |
| شي ، دغه شان دا خلک به د ملغلرې په شان پاک صفا راووځي،د دوی په څټونو کې به مهرونه زړوند وي | | | | |
| فَيَقُولُ | أَهْلُ | الْجَنَّةِ: | هَؤُلَاءِ | عُتَقَاءُ | الرَّحْمَنِ |
| کله چې جنتیان دوی ووینی نو وایي به چې دا هغه خلک دي چې خپله رحمن خدای آزاد کړیدي، دوی لره | | | | |
| أدخلهم | الْجَنَّةَ | بِغَيْرِ | عمل | وَلَا | خَيْرٍ |
| الله سره د دې کار نه جنت ته داخل کړل چې هغوی هیڅ نیک عمل نهٔ کړی، او نه هغوی څه نیکې کولو | | | | |
| قَدَّمُوهُ | فَيُقَالُ | لَهُمْ | لَكُمْ | مَا | رَأَيْتُمْ |
| باندې مخکې لیږلي وه. او بیا به دې نوؤ آزاد شوؤ خلکو ته وویلی شي چې په جنت کې تاسو څه وینی ، | | | | |
| وَ ، مثله مَعَه". مُتَّفق عَلَيْهِ[1] | | | | |
| نه یو اځې دا بلکې دغه شان نو ره یر نعمتونه ټول ستاسو لپاره دي. | | | | |

**توضیح**: **اصنام** : بتانو ته وايي. او **انصاب**:هغه ځایونه دي چیرته چې به مشرکانو نذرونه وړل، چې هغې ته درګاهونه وايي. دغه شان ځایونو کې به دغه خلکو کله کانې لګول، کله به بوټي ولاړ ؤ.دېته په اسانو الفاظو کې درګاه ویلی شي.(مرقات۹/۵۳۲)

**اتاهم رب العلمین**:دا متشابه الفاظ دي .د سلفو په نزد باندې د دې هم دا ظاهري ترجمه کیږي. خو د ما یلیق بشانه‌تعبیر کوي، متشابهاتو کې داسې تاویل کول جائز ندي چې په هغې سره د دې ظاهري معنی ختمه شي، مثلا ید ترجمه په قدرت سره کول داحنافو په نزد جائز نه دي.

**افقر ما کنا**: یعنې کله چې مونږ په دنیا کې دې خلکو ته ښه محتاج ؤ ، هغه وخت مونږ د دې خلکو سره ملګرتیا نده کړي، نو نن یې ولې وکړو؟

**یضرب الجسر**:یعنې جهنم د پاسه په پل صراط کیخودلی شي.

**اجاوید الخیل**:د اجواد جمع ده. او اجواد ، د جود جمع ده. ښایسته اس ته وايي. د صفت اضافت موصوف ته دی. ای کالخیل الجواد ، هر سړی به د خپلو اعمالو په اعتبار سره پل صراط باندې سفر کوي. د هر مزل بیله بیله تشبیه ده. څوک تیز ، څوک په قلاره.

---

(۱)اخرجه البخاري في صحیحه ۱۳/۴۲۰ ومسلم في صحیحه ۱/۱۶۷ رقم الحدیث( ۱۸۳-۳۰۲) واحمد في المسند۲/۵۳۴.

**ركاب**:اوښانو ته وايي. **فناج**:يعنې ځينې خلک به روغ رمټ ووځي.

**ومخدوش**: دا د خدش نه د ټپي (زخمي) كيدلو په معنې دی.

**مرسل**:خلاصيدلو په معنی دی يعنې ځينې خلک به ټپي شي خو خلاص به كړی شي.

**ومكدوس**:په سينن سره كدس دی، دهيكه وركول په معنی دی. دې لپاره چې دوزخ ته ګوزار شي. دا لفظ د شين سره مكدوش هم لوستلی شويدی. دواړه لفظونه په يوه معنی دي.چې سخته منډه وركولو، ليرې كولو او ټيي كولو او زره زره كولو سره دوزخ ته ګوزارولو په معنٰی دی. په يو روايت كې **مكروس**: لفظ هم راغلی دی. چې دهغې معنی دا ده چې د واړو لاسونو نه تړلي د يو بل د پاسه په دوزخ ته ګوزار كړی شي.

**اشدمناشدة**: يعنې قسم په خدای چې په تاسو كې يو سړی هم د خپل واضح ثابت شوي حق لپاره دومره منډه او سخت كوښښ نكوی، څومره سخت كوښښ چې مؤمن د قيامت په ورځ د الله تعالی مخې ته د خپل مسلمان ورور د خلاصون لپاره به كوي. يعنې ښه ډيره غوښتنه او مناظره او سفارش به كوي. او وايي به چې ای الله! دوې د دوزخ نه راوباسي. (مرقات ۹/۵۳۶)

**لم نذر فيها خيرا ای لم نذر فيها من اهل الخير**: يعنې مونږ په دوزخ كې داسې څوک پرې نه خودلو چې په هغه كې د رتې په اندازه خير او ايمان او عمل صالح وي، ټول مو راوويستل.

**لم يعلموا خيرا قط**: يعنې مجرد ايمان به وي. د ډېنه غيره به هيڅ عمل نوي. (مرقات ۹/۵۳۸)

**حمماً**:يعنې سكاره شوي به وي. **افواه الجنة**:يعنې د جنت د دروازو مخې ته به واچولی شي، دې لپاره چې دننه تگ كې آسانتيا وي. الحبة:دا د حبوب نه دی ، دانې په معنی دی. د سيلاب سره يوه توره دانه راځي،او په يوه ورځ او شپه كې د هغې بوټی ډير ژر زرغونيږي، لكه څنګه چې بوټی ژر زرغونيږي، دغه شان په دې نهر كې به جهنميان خلک ډير ژر ښايسته شكل وصورت كې راووځي.دې دانې ته بقلة حمقآء هم وايي. دا داسې بيوقوفه دانه ده كه كاڼي وي، كه لرګی وي، كه هر څه وي. په هغې باندې پريوتلو سره په يوه شپه ورځ كې دا بوټی راخيژي،علامه كسائی ويلی دي چې دا دانه ګل ريحيان يعنې تخم ملنګ تخم دی. **قال هي حب الرياحين**.نورو شارحينو دا دانه صحرايي بی نسبه دانه ګرځولي ده. **هي بذر الصحراء**: دا قول ډير راجح دی.

**حميل السيل**: دا د محمول په معنی دی. يعنې سيلابو خس او خاشاک سره دا دانه د دشتې نه راوړي، لكه

څنګه چې د دې بوټي ښايسته وي، دغه شان په دې نهر سره به د دې سوزيدلو جهنميانو ښايسته شکلونه د ملغلرو په شان راووځي. **الخواتم**: دا د خاتم جمع ده. خاتم ګوتمې ته وايي. مهر ته هم وايي. يعنې څه نښې به داسې وي چې په هغې سره به د دوی پيژند ګلو کيږي، مثلاً مهرونه به لګيدلي وي، وغيره وغيره، صاحب تحرير ليکلي دي چې دلته د خواتم نه سره زر او سپين زرو هغه شيان مراد دي چې هغه به د دوی په څټونو کې زړوند وي. چې په هغې سره به د دوی پيژند ګلو کيږي، بهرحال د سرو او سپينو زرو تعويذونه که مراد واخستلی شي نو ډيره به غوره وي. (مرقات ۹/۵۳۹)

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا دَخَلَ أَهْلُ الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ وَأَهْلُ النَّارِ |
| او حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: کله چې جنتيان جنت ته او جهنميان |
| النَّارَ يَقُولُ اللهُ تَعَالَى: مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ مِنْ إِيمَانٍ |
| جهنم ته ورسولی شي، نو الله تعالى به وفرمايي چې د کوم سړي په زړه کې د ګدن د دانې هومره هم ايمان وي |
| فَأَخْرِجُوهُ فَيَخْرُجُونَ قَدِ امْتَحَشُوا وَعَادُوا |
| نو هغه د دوزخ نه راوباسئ، نو هغه خلک به د وزخ نه راوويستلی شي، حالانکې هغه به داسې سوزيدلي |
| حُمَمًا فَيُلْقَوْنَ فِي نَهْرِ الْحَيَاةِ |
| وي چې سکاره به تري جوړ شوي وي. بيا به هغوی په نهر حيات کې واچولی شي نو دوی به د هغه ځای نه |
| فَيَنْبُتُونَ كَمَا تَنْبُتُ الْحِبَّةُ فِي حَمِيلِ السَّيْلِ أَلَمْ تَرَوْا |
| داسې تازه راوځي لکه د سيلاب په څټو کې چې د ګياه دانه راززغون شي. آيا تاسو نه ليدلي، هغه دانه څنګه |
| أَنَّهَا تَخْرُجُ صَفْرَاءَ مُلْتَوِيَةً". (متفق عليه)[1] |
| نغختلي په زور سره راوځي. (بخاري ومسلم) |

**توضيح: خردل**: ګدن (شړشم) دانې ته خردل وايي. دا د شړشمو تخم ته وايي. زيت خردل د شړشمو تيلو ته وايي. اکثر خلک شړشم نه پيژني او معنی کوي. **قدامتحشوا**: يعنې ييخې سوزيدلي به وي. او سکاره شوي به وي. **صفراء**: ګلابي رنګ بوټي وي. **ملتوية**: راتاؤ شوی وي. يعنې ډکه تازه نرم او نازکه ښايسته تاؤ شوی بوټي، دغه شان دا خلک به آب حيات په اوبو کې راززغون کيدلو سره جنت ته لاړ شي. (مرقات ۹/۵۴۰)

---

[1] أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۴۱۶ رقم الحديث ۶۵۶۰ ومسلم في صحيحه ۱/۱۷۲ رقم الحديث (۱۸۴-۳۰۴)

# پل صراط او د شفاعت نور تفصیل

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّاسَ قَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روایت دی چې خلکو پوښتنه وکړه چې خلکو پوښتنه وکړه: یارسول الله! |
| هَلْ نَرَى رَبَّنَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟ فَذَكَرَ مَعْنَى |
| آیا د قیامت په ورځ به مونږ خپل رب وو ینو؟ د دېنه وروسته حضرت ابو هریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مضمون په |
| حَدِيثِ أَبِي سَعِيدٍ غَيْرَ كَشْفِ السَّاقِ |
| اعتبار سره هغه حدیث بیان کړو، کوم چې مخکې د ابوسعید خدری رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نقل شو. هو! |
| وَقَالَ: " يُضْرَبُ الصِّرَاطُ بَيْنَ ظَهْرَانَيْ جَهَنَّمَ |
| حضرت ابو هریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پنډی د برسیرته کولو خبره ونکړه. او بیا یې وو یل چې کله د دوزخ د پاسه پل صراط |
| فَأَكُونُ أَوَّلَ مَنْ يَجُوزُ |
| ودرولی شي نو په ټولو رسولانو کې د خپل امت سره اول په دې پل باندې تیریدونکی به ځم یم. او دغه |
| مِنَ الرُّسُلِ بِأُمَّتِهِ وَلَا يَتَكَلَّمُ يَوْمَئِذٍ الرُّسُلُ وَكَلَامُ الرُّسُلِ يَوْمَئِذٍ: اللهم سَلِّمْ |
| وخت به هیڅوک هم د خبرې کولو طاقت نلري. او رسول به هم فقط دومره وو ایي چې ای الله! د سلامتیا سره |
| سَلِّمْ. وَفِي جهنمَ كلاليب مثلُ شوك السعدان |
| مو وساته. دغه شان (د دې پل دواړو اړخ ته) جهنم کې به د سعدان د غنو په شان کونډې وي. او د دغه |
| وَلَا يَعْلَمُ قَدْرَ عِظَمِهَا إِلَّا اللهُ تَخْطَفُ النَّاسَ |
| کونډو اوږوالی د الله تعالی نه غیره هیڅوک نه پیژني. دغه کونډې به خلکو لره د هغوی د اعمالو په سبب |
| بِأَعْمَالِهِمْ فَمِنْهُمْ مَنْ يُوبَقُ بِعَمَلِهِ |
| باندې راکاږي. نو په دې خلکو کې به ځینې خو هغه وي چې هغه به د خپلو اعمالو د سزا د وجې نه هلاک |
| وَمِنْهُمْ مَنْ يُخَرْدَلُ ثُمَّ يَنْجُو |
| شي او ځینې به هغه وي چې (هغه به د دې کونډو د وجې نه) غوڅ غوڅ شي لیکن بیا به نجات بیامومي. |
| حَتَّى إِذَا فَرَغَ اللهُ مِنَ الْقَضَاءِ بَيْنَ عِبَادِهِ وَأَرَادَ |
| بیا کله چې الله تعالی د خپلو بندیګانو د فیصلې نه فارغه شي او دا اراده وکړي چې کومو خلکو د |

أَنْ يُخْرِجَ مِنَ النَّارِ

لااله الاالله گواهي ورکړېده. په هغوي کې چې کوم خلک هغه وغواړي، د دوزخ نه راوباسي، نو فرښتو ته

مَنْ أَرَادَ أَنْ يُخْرِجَهُ مِمَّنْ كَانَ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ أَمر المَلَائِكَةَ أَن يخرجوا من يَعْبُدُ اللهَ

به حکم وکړي چې دغه خلک دې دوزخ نه راوويستلی شي، څوک چې د الله معبود مني. نو فرښتي به هغه

فَيُخْرِجُونَهُمْ وَيَعْرِفُونَهُمْ بِآثَارِ السُّجُودِ

خلک د دوزخ نه راوباسي او دهغوي په تندو باندې د سجدو د نښانو په وجه باندې به هغوي وپيژني. او په

وَحَرَّمَ اللهُ تَعَالَى عَلَى النَّارِ أَنْ تَأْكُلَ أَثَرَ السُّجُودِ فَكُلُّ ابْنِ آدَمَ تَأْكُلُهُ النَّارُ

دوزخ باندې خو دا الله حرام کړيدي چې هغه د سجدو نښان وخوري. نو ځکه اور به د ابن آدم ټول بدن

إِلَّا أَثَرَ السُّجُودِ فَيَخْرُجُونَ

وخوري خو د سجدو ځايونه به نشي خوړلی. بهرحال هغه خلک به د دوزخ نه په دغه حالت کې بيرون

مِنَ النَّارِ قَدِ امْتَحَشُوا فَيُصَبُّ عَلَيْهِمْ مَاءُ الْحَيَاةِ

راوځي. چې هغوي به په اور کې سوزيدلو سره تور شوي وي،، نو په هغوي باندې به آب حيات وشيندلی شي

فَيَنْبُتُونَ كَمَا تَنْبُتُ الْحِبَّةُ فِي حَمِيلِ السَّيْلِ

او هغوي به داسې تازه او ښايسته شي لکه د سيلاب په خته کې پرته دانه چې رازرغونه شي، او يو سړی چې

وَيَبْقَى رَجُلٌ بَيْنَ الجنَّةِ والنارِ

د دوزخيانو نه به جنت ته داخليدونکی آخرې سړی وي، جنت او دوزخ ترمينځ به ولاړ وي، دهغه مخ به

وَهُوَ آخرُ أهلِ النارِ دُخولاً الْجَنَّةَ مُقْبِلٌ بِوَجْهِهِ قِبَلَ النَّارِ فَيَقُولُ: يَارب اصرف وَجْهي عَنِ النَّار

د دوزخ اړخ ته وي، هغه به ووايي چې زما ربه! زما مخ د دوزخ د اړخ نه واړوه، د دوزخ د اور بدبوۍ

فَإِنَّهُ قد قَشَبَنِي رِيحُهَا وَأَحْرَقَنِي ذَكَاؤُهَا. فَيَقُولُ:

زه په ډير سخت تکليف کې اخته کړې يم. او د دې د لمبو ګرمۍ زما بدن سيزللی دی، الله تعالی به وفرمايي

هَلْ عَسَيْتَ إِنْ أَفْعَلْ ذَلِكَ أَنْ تَسْأَلَ غَيْرَ ذَلِكَ؟ فَيَقُول: وَلَا وعِزَّتِكَ

چې که زه داسې وکړم نو کيدی شي چې ته نور څه هم وغواړې. هغه سړی به ووايي چې ستا په عزت قسم!

فيُعطي اللَّهَ مَا شاءَ الله مِنْ عَهْدٍ وَمِيثَاقٍ فَيَصْرِفُ الله وَجْهَهُ
ر...نور څه نه غواړم. بیا به هغه څه وعده او لوظ وکړي. څه چې الله وغواړي. او الله تعالی به د هغه مخ د
عَنِ النارِ فإِذا أقبلَ بِهِ على الجنةِ وَرأى بَهْجَتَهَا
دوزخ نه واړوي. خو کله چې د هغه مخ جنت اړخ ته واړولی شي، او هغه د جنت ښایست او خکلا او تازګی
سَكَتَ مَا شَاءَ الله أَنْ يَسْكُتَ ثُمَّ قَالَ: يَا رَبِّ
ووینې نو تر هغه وخته پورې به چپ وي چې ترڅو چې خدای غواړي. او بیا به ووایي چې زما ربه! ما د
قَدِّمْنِي عِنْدَ بَابِ الجنةِ فَيَقُول الله تبارك وَتَعَالَى: أَلَيْسَ أَعْطَيْتَ الْعُهُودَ
جنت دروازې ته ورسوه. الله تعالی به وفرمایي: آیا تا وعده او لوظ نهٔ کړی چې ته به د خپل دغه درخواست
وَالْمِيثَاقَ أَنْ لَا تَسْأَلَ غَيْرَ الَّذِي كُنْتَ سَأَلْتَ. فَيَقُولُ: يَا رَبِّ لَا أَكُونُ أَشْقَى خَلْقِكَ. فَيَقُولُ:
نه غیر نور هیڅ درخواست نه پیش کوي. هغه به فریاد وکړي چې زما ربه! ته ما په خپل مخلوق کې د ټولو نه
فَمَا عَسَيْتَ إِنْ أُعْطِيتُ ذَلِكَ أَنْ تَسْأَلَ غَيْرَهُ. فَيَقُولُ: لَا وَعِزَّتِكَ لَا أَسْأَلُكَ غَيْرَ ذَلِكَ فَيُعْطِي رَبَّهُ مَا شَاءَ مِنْ
ډیر بد نصیبه مه جوړوه. خو کله چې هغه د جنت دروازې ته ورسیږي. او د جنت پرق پروق او هغې کې د ننه
عَهْدٍ وَمِيثَاقٍ فَيُقَدِّمُهُ إِلَى بَابِ الْجَنَّةِ فَإِذَا بَلَغَ بَابَهَا فَرَأَى زَهْرَتَهَا وَمَا فِيهَا مِنَ النَّضْرَةِ وَالسُّرُورِ فَسَكَتَ
شیانو ښایست ووینې. نو اول به تر هغه وخته پورې چپ وي، ترڅو چې خدای وغواړي، او بیا به ووایي چې
مَا شَاءَ اللهُ أَنْ يَسْكُتَ فَيَقُولُ: يَا رَبِّ أَدْخِلْنِي الْجَنَّةَ فَيَقُولُ اللهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى: وَيْلَكَ يَا ابْنَ آدَمَ مَا أَغْدَرَكَ
زما ربه! ما جنت ته د ننه ورسوه. الله تعالی به وفرمایي: ابن آدم! افسوس ته څومره وعده ماتونکی او وعده
أَلَيْسَ قَدْ أَعْطَيْتَ الْعُهُودَ وَالْمِيثَاقَ أَنْ لَا تَسْأَلَ
هیرونکی یې.؟ آیا تا وعده او لوظ نهٔ کړی چې ته به د خپل دغه درخواست نه غیره چې هغه مې ستا د
غَيْرَ الَّذِي أُعْطِيتَ. فَيَقُولُ: يَا رَبِّ لَا تَجْعَلْنِي أَشْقَى
خوښې مطابق قبول کړو، نور څه درخواست به نه پیش کوي. هغه به ووایي چې زما ربه! ما په خپل مخلوق
خَلْقِكَ فَلَا يَزَالُ يَدْعُو حَتَّى
کې د ټولو نه ډیر بد نصیبه مه جوړوه. لنډه دا چې هغه به دغه شان فریاد کوي، تر دې چې الله تعالی به د ده نه

| |
|---|
| يَضْحَكَ اللهُ مِنْهُ فَإِذَا ضَحِكَ أَذِنَ لَهُ فِي دُخُولِ الْجَنَّةِ. |
| راضي شي او الله تعالى چې كله راضي شي، نو هغه ته به جنت ته د ننوتلو اجازت وركړي، بيا به فرمايي چې |
| فَيَقُولُ: تَمَنَّ فَيَتَمَنَّى حَتَّى إِذَا انْقَطَعَتْ أُمْنِيَّتُهُ |
| كه ته نور څه غوښتنه او خوښې لري نو هغه ظاهره كړه او څه چې غواړي، وغواړه. نو هغه به چې |
| قَالَ اللهُ تَعَالَى: تَمَنَّ مِنْ كَذَا وَكَذَا |
| ارزوګانې بيان كړي، او كله چې خپله آخري ارزو هم پورا كړي، نو الله تعالى به وفرمايي چې د فلانكې |
| أَقْبَلَ يُذَكِّرُهُ رَبُّهُ |
| فلانكې شي خواهش ولې نه ظاهروي! ګويا رب به يې هغه ته ياد ول غواړي. چې تا خو فلانكى فلانكى |
| حَتَّى إِذَا انْتَهَتْ بِهِ الْأَمَانِيُّ |
| شى ونه غوختلو. دغه شيان هم وغواړه. زه به نن تا ته هر څه دركوم. ترد چې كله هغه ارزوګاني هم پورا شي |
| قَالَ اللهُ: لَكَ ذَلِكَ |
| نو الله تعالى به وفرمايي چې نه يوائې دا شيان ستا لپاره دي بلكې دغه شان نور ډير نعمتونه تاته دركولى |
| ومثله معه "وَفِي رِوَايَةِ أَبِي سَعِيدٍ: " قَالَ اللهُ: لَكَ ذلكَ |
| كيږي. او د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه په روايت كې داسې دي چې الله تعالى به وفرمايي چې نه يوائې |
| وعشرةُ أمثالِهِ " . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ [1] |
| دا شيان ستا لپاره دي بلكې د دې سره لس چنده نور نعمتونه تا ته دركولى كيږي. |

**توضيح**: كلاليب: دا جمع ده د دې مفرد كلّوب دى. دا د وسپنې هغه سيخ ته ويل كيږي چې د هغې سر راتاؤ شوى وي، چې د هغې په ذريعه سره خلك د تنور نه ډوډۍ راوباسي، يا غوښه وريتلو لپاره ورته زوړنده شي، دېته كوندي هم ويلى شي، (پښتو كې ورته كونډي وايې) ديته ازغنې كونډي هم ويلى شي.

**شوك السعدان**: سعدان د يو بوټي نوم دى. اوښان يې په ډير شوق سره خوري. په د بكې د ښځو د سينو د چوشنې په شان غني وي، چې هغه ډيرې كلكې او سختې وي. دلته د هغه غنو ذكر دى. دې

---

(1) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۴۴۴ رقم الحديث ۶۵۷۳ ومسلم في صحيحه ۱/۱۶۳ رقم الحديث ۱۸۲-۲۹۹).

ته په عربۍ کې حسکة او حسیکة هم وایي.

**تخطف الناس**: یعنې د اعمال قبیحه د وجې نه به دا کونډي دا ګناهګاران راکاږي.

**یوبق**: یعنې ځینې به داسې خلک وي چې بیخې به هلاک شي ، دا به کافران وي.چې هغوی به د خپل کفر دوجې نه هیشه لپاره دوخل ته دننه کړی شي.**یخردل**: او ځینې به دا کونډي د شړشمو د دانو په شان زره زره او غوښ غوښ کړي. دا به فاسق مسلمانان وي.

**ثم ینجو**: یعنې غوښ غوښ کیدلو او سزا خوړلو نه ورسته به په اخر کې د دوزخ نه راوځي.

**قبل النار**:یعنې د دوزخ نه د راوتلو وروسته به یې مخ اور اړخ ته وي.

**قشبني**: یعنې ماته د وزخ بدبویې او تپ ډیر تکلیف رسولی دی، چې په هغې سره زما رنګ بدل شویدی، او د مخ ځرمنه مې بدله شویده.**ذکاءها**: یعنې د اور دې لمبو زه سیزلی یم.

**هل عسیت**: یعنې آیا د دې امکان نشته چې زه تا د دې حالت نه وباسم نو ته به نور غوختنه بیا نه کوې؟**فیعطی الله**: یعنې الله تعالی سره به کلکه وعده وکړي چې بیا به یې نه غواړم. (مرقات۹/۲۵۴)

**ما اغدرك**:دا د تعجب صیغه ده. یعنې ته څومره غدار او دهوکه کونکی یې. یوه نسخه کې **ما اعذرك** ذال سره راغلی دی. یعنې کوم شي ته بیا بیا سوال کولو او وعده ماتولو کې معذوره او صاحب عذر جوړ کړی یې؟

**اقبل یذکره**: یعنې الله تعالی به هغه شي اړخ ته متوجې کیدلو باندې ورته ورياد کړي، چې فلانکی فلانکی شی وغواړه، مطلب دا دی چې الله تعالی به دهغه په زړه کې د شیانو د غوختلو د جذبې القاء وکړي. او د الهام په ذریعه سره به هغه دغوختلو اړخ ته متوجې کړي، چې فلانکی فلانکی شی وغواړه. (مرقات۹/۴۵۴)

## جنت ته دتلو نه آخر کې تلونکی سړی

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " آخِرُ مَنْ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ |
| او حضرت ابن مسعود رضی الله عنه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: جنت ته بد تلو نه آخر کې تلونکی |

| مَرَّةً | وَيَكْبُو | مَرَّةً | يَمْشِي | رَجُلٌ |
|---|---|---|---|---|
| سړی چې کوم وي ، هغه چې کله روان شي نو یو قدم به مخکې ځي او په دویم ځل به پړمخې رالیږي. او په | | | | |

وَتَسْفَعُهُ النَّارُ مَرَّةً فَإِذَا جَاوَزَهَا الْتَفَتَ إِلَيْهَا

دریم ځل به د وزخ اور د هغه بدن سوزوي. بیا چې کله هغه د دوزخ نه مخکې تیر شي، نو په شا به وګوري

فَقَالَ: تَبَارَكَ الَّذِي نَجَّانِي مِنْكِ لَقَدْ أَعْطَانِي

او وایي به چې لویې دی د خدای ذات چا چې ما لره ستا نه خلاصی راکړو. په خدای قسم! ما ته زما رب ته

اللهُ شَيْئًا مَا أَعْطَاهُ أَحَدًا مِنَ الْأَوَّلِينَ وَالْآخِرِينَ

څه راکړل چې هغه یې مخکنې وروستنې خلکو کې هیچا ته هم ندي ورکړي، بیا به د هغه د نظر مخې ته یو

فَتُرْفَعُ لَهُ شَجَرَةٌ فَيَقُولُ: أَيْ رَبِّ أَدْنِنِي مِنْ هَذِهِ الشَّجَرَةِ

بوټی ودرولی شي، هغه به ووایي چې زما ربه! ما دې بوټي ته نژدې ورسوه. دې لپاره چې زه د دې سیورې

فَلِأَسْتَظِلَّ بِظِلِّهَا وَأَشْرَبَ مِنْ مَائِهَا فَيَقُولُ اللهُ: يَا ابْنَ آدَمَ لَعَلِّي إِنْ أَعْطَيْتُكَهَا

ترلاسه کړم. او د دې د چینې نه اوبه وڅکم. الله تعالی به وفرمایي: ابن آدم! که زه ستا دا آرزو پوره کړم

سَأَلْتَنِي غَيْرَهَا ؟ فَيَقُولُ : لَا يَا رَبِّ

نو کیدی شي چې ته زما نه نور څه وغواړي! هغه به ووایې چې زما ربه! داسې به نه کیږي، د دې نه وروسته

وَ يُعَاهِدُهُ أَنْ لَا يَسْأَلَهُ غَيْرَهَا

به هغه د الله تعالی سره د دې خبرې وعده وکړي چې هغه به د دېنه غیره هیڅ هم نه غواړي. هغه سړی به یو

وَ رَبُّهُ يَعْذُرُهُ لِأَنَّهُ

داسې څه ویني چې هغه به دا بې صبره کړي، نو ځکه پروردګار به دا معذوره ګڼلو باندې د هغې نه درګزر

يَرَى مَا لَا صَبْرَ لَهُ عَلَيْهِ فَيُدْنِيهِ مِنْهَا فَيَسْتَظِلُّ بِظِلِّهَا وَيَشْرَبُ مِنْ مَائِهَا

وکړي، او هغه به د غه بوټي ته ورسوي. هغه سړی به د دې بوټي سیورې ته کیني. او د دې د چینې نه اوبه

ثُمَّ تُرْفَعُ لَهُ شَجَرَةٌ هِيَ أَحْسَنُ مِنَ الْأُولَى

وڅکي. بیا به د ده نظر مخامخ په یو بل بوټي باندې ولګي. چې هغه به د اولنې بوټي نه ډیر ښه وي، دا سړی به

فَيَقُولُ: أَيْ رَبِّ أَدْنِنِي مِنْ هَذِهِ الشَّجَرَةِ

ووایي چې زما ربه! ما د غه بوټي ته ورسوه! دې لپاره چې د دې سیوری ترلاسه کړی شم او د دې د چینې

لِأَشْرَبَ مِنْ مَائِهَا وَأَسْتَظِلَّ بِظِلِّهَا لَا أَسْأَلُكَ غَيْرَهَا. فَيَقُولُ: يَا ابْنَ آدَمَ

او به وڅکم. دغه شان زه وس د دې بوټي نه غیره ستا نه نور هیڅ نه غواړم. الله تعالی به وفرمایې چې ابن آدم!

أَلَمْ تُعَاهِدْنِي أَنْ لَا تَسْأَلَنِي غَيْرَهَا؟ فَيَقُولُ:

آیا تا زما سره وعده نه وه کړې چې ته به د دې بوټي نه غیره نور هیڅ نه غواړې، د دېنه وروسته به الله تعالی

لَعَلِّي إِنْ أَدْنَيْتُكَ مِنْهَا تَسْأَلُنِي غَيْرَهَا؟

وفرمایې چې که زه تا دغه بوټي ته ورسوم نو کیدی شي ته زما نه نور څه وغواړې! لیکن د ده پروردګار به

فَيُعَاهِدُهُ أَنْ لَا يَسْأَلَهُ غَيْرَهَا وَرَبُّهُ يَعْذُرُهُ لِأَنَّهُ يَرَى مَا لَا صَبْرَ لَهُ عَلَيْهِ

دا معذوره ګڼلو باندې د دې نه درګزر وکړي. ځکه چې هغه به یو داسې څه وګوري چې هغه به دا بې صبره

فَيُدْنِيهِ مِنْهَا فَيَسْتَظِلُّ بِظِلِّهَا

کړي. او بیا به الله تعالی دا هغه بوټي ته ورسوي، دا سړی به د هغه بوټي سیورې ته کیني او د هغې د چینې

وَيَشْرَبُ مِنْ مَائِهَا ثُمَّ تُرْفَعُ لَهُ شَجَرَةٌ عِنْدَ بَابِ الْجَنَّةِ

نه به اوبه وڅکي. بیا (دریم) بوټی به د هغه مخې ته ودرولی شي چې هغه د جنت دروازې سره به نژدې وي. او

هِيَ أَحْسَنُ مِنَ الْأُولَيَيْنِ فَيَقُولُ: أَيْ رَبِّ أَدْنِنِي مِنْ هَذِهِ

د مخکنو بوټو نه به ډیر ښایسته وي. دغه سړی به ووایې چې زما ربه! ما دغه بوټي ته ورسوه! دې لپاره چې

فَلِأَسْتَظِلَّ بِظِلِّهَا وَأَشْرَبَ مِنْ مَائِهَا لَا أَسْأَلُكَ غَيْرَهَا. فَيَقُولُ: يَا ابْنَ آدَمَ

زه د دې سیوری ترلاسه کړم. او د دې د چینې نه اوبه وڅکم. حق تعالی به ورته وفرمایې چې ابن آدم! آیا

أَلَمْ تُعَاهِدْنِي أَنْ لَا تَسْأَلَنِي غَيْرَهَا؟ قَالَ: بَلَى يَا رَبِّ

تا زما سره دا وعده نه وه کړې چې ته به د دېنه غیره نور هیڅ زما نه غواړې، هغه به ووایې چې هو! د دېنه غیره

هَذِهِ لَا أَسْأَلُكَ غَيْرَهَا وَرَبُّهُ يَعْذُرُهُ

به نور هیڅ نه غواړم. نو د هغه پروردګار به هغه معذوره ګڼلو باندې د هغه نه درګزر وکړي. ځکه چې دا سړی

لِأَنَّهُ يَرَى مَا لَا صَبْرَ لَهُ عَلَيْهِ فَيُدْنِيهِ مِنْهَا

به یو داسې څه ووینې چې هغه به دا بې صبره کړي. او بیا به الله تعالی دا هغه بوټي ته ورسوي. او کله چې دا

فَإِذَا أَدْنَاهُ مِنْهَا سَمِعَ أَصْوَاتَ أَهْلِ الْجَنَّةِ

هغه بو تې ته ورسيږي او د ده غوږونو ته هغه خبرې راشي چې هغه به جنتيان د خپلو بيبيانو او خپلو ملګرو

فيقولُ: أَيْ رَبِّ أَدْخِلْنِيهَا فَيَقُولُ:

دوستانو سره کوي، نو دغه سړی به ووايي چې زما ربه! وس ما جنت ته هم ورسوه! الله تعالی به وفرمايي:

يَا ابْنَ آدَمَ مَا يصريني مِنْكَ؟ أيرضيك

ابن آدم! آيا داسې هم څه شته چې ستا نه ما خلاص کړي؟ آيا ته به په دې هم خوشحاله شې او که نا چې زه

أَن أُعْطِيكَ الدُّنْيَا وَمِثْلَهَا مَعَهَا. قَالَ:

تا ته په جنت کې د ټولې دنيا د مسافت په اندازه باندې او دغه شان نور ځاې هم درکړم؟ دغه سړی به ووايي

أَيْ رَبِّ أَتَسْتَهْزِئُ مِنِّي وَأَنْتَ رَبُّ الْعَالَمِينَ؟

چې ربه ته ما پورې خندا خو نه کوي. حالانکې ته خو د ټولو جهانونو رب يې. (د حديث دا الفاظ بيانولو

فَضَحِكَ ابْنُ مَسْعُودٍ فَقَالَ: أَلا تسألوني مِمَّ أَضْحك؟

نه وروسته) حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خندل، او بيا يې وويل چې آيا تاسو به پوښتنه نکوی، چې ما

فَقَالُوا: مِمَّ تضحك؟ فَقَالَ: هَكَذَا ضَحِكَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

ولې وخندل؟ خلکو پوښتنه وکړه چې هو! تا ولې وخندل؟ وې فرمايل: دغه شان رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم خندلي ؤ.

فَقَالُوا: مِمَّ تَضْحَكُ يَا رَسُولَ اللهِ؟ قَالَ:

او کله چې صحابؤ پوښتنه وکړه چې يارسول الله! تا ولې وخندل؟ نو نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: چې ما د دې وجې

" من ضحك رَبُّ الْعَالَمِينَ ؟

نه وخندل چې کله هغه سړی ووايي چې ربه آيا ته خو ما پورې ټوقې نه کوي؟ حالانکې ته خو د ټولو جهانونو

فَيَقُولُ : إِنِّي لَا أَسْتَهْزِئُ مِنْكَ

رب يې؟ نو بيا به د عالم پروردګار وخاندي. بهر حال الله تعالی به وفرمايي چې نا! زه تا سره ټوقې نکوم.

وَ لَكِنِّي على مَا أَشَاء قدير ". [1] رَوَاهُ مُسلم وَ فِي رِوَايَة لَهُ

ليکن زه چې څه غواړم، کولی يې شم. دا روايت مسلم نقل کړيدی. او د مسلم په يو بل روايت کې د

---

([1]) اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۱۷۹۴ رقم الحديث (۱۸۷-۳۱۰) والدارمي في السنن ۲/۴۰۹ رقم الحديث ۲۷۷۷.

| |
|---|
| عَنْ أَبِي سعيدٍ نَحْوَهُ إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ " فَيَقُولُ: يَا ابْنَ آدَمَ مَا يَصْرِينِي مِنْكَ؟ |
| حضرت ابو سعید خدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اسې الفاظ نقل شويدي. ليکن په دې روايت کې فيقول يا ابن آدم مايصريني |
| " إِلَى آخِرِ الْحَدِيثِ وَزَادَ فِيهِ: " وَيَذْكُرُهُ اللهُ: |
| منك نه تر آخره پورې الفاظ خو نشته البته دا الفاظ نقل شويدي چې بيا به الله تعالى دغه سړي ته وريادوي |
| سَلْ كَذَا وَكَذَا حَتَّى إِذَا انْقَطَعَتْ بِهِ الْأَمَانِيُّ |
| کړي او وبه وايي چې فلانکی شی وغواړه او کله چې دهغه ارزوګانې پوره شي، نو الله تعالى به |
| قَالَ اللهُ: هُوَ لَكَ وَعَشَرَةُ أَمْثَالِهِ |
| وفرمايې چې نه يوازې دا شيان بلکې د دې لس چونده نور شيان هم تاته درکولی کيږي. نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| قَالَ: ثُمَّ يَدْخُلُ بَيْتَهُ فَتَدْخُلُ عَلَيْهِ زَوْجَتَاهُ مِنَ الْحُورِ الْعِينِ |
| وفرمايل: د دېنه وروسته به دغه سړی په جنت کې خپل کورته ننوځي هلته به د ده خواته په حور عين کې |
| فَيَقُولَانِ: الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَحْيَاكَ لَنَا |
| دوه بيبيانې راشي او ورته به وايي چې ټولې ستاينې الله لوی ذات لره دي چې ته ېې زمونږ لپاره او مونږ |
| وَأَحْيَانَا لَكَ. قَالَ: فَيَقُولُ: |
| ستا لپاره پيدا کړو. نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: هغه سړی به ووايي چې ماته څومره راکړی شويده، |
| مَا أُعْطِيَ أَحَدٌ مِثْلَ مَا أُعْطِيتُ "(۱) |
| دومره هيچا ته نه ده ورکړی شوي. |

**توضيح**: يكبوا: كبا يكبوا، پړمخې راليدلو ته وايي.

**تسعفه**: يعني د اور لمبې به دا په خپله غيږه کې ونيسي.

**يعذره**: يعنې د عظيم نعمتونو مخې ته د دې سړي بې صبره کيدل الله تعالى ته به معلوم وي ځکه به الله تعالى دا په بيا بيا مخالفت او بيا سوال کولو باندې مجبور او معذور وګڼي. (مرقات ۹/۵۴۷)

**مايصريني منك**: صرى يصري صري، ضرب يضرب نه د ايسارولو په معنیٰ دی. د دې نه **بيع مصراة**

بمعنى حبس اللبن في الضرع ده. په يوه نسخه كې ما يصريك مني دى. د معنې په اعتبار سره دا ډير واضح دى. معنې يې دا ده چې اى ابن آدم هغه كوم شى دى چې هغه ستا بيا بيا سوالونه او غوختني نه ما خلاص كړي؟ دا به د الله تعالى د اړخ نه د ډير شفقت اظهار وي. (مرقات۹/۵۴۹)

**احياك لنا:** دواړه ځايه احياك تخليق او پيدا كيدلو په معنى دى. يعنې ته يې زمونږ لپاره او مونږ يې تا لپاره پيدا كړي يو. (مرقات۹/۵۰۵)

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَن أنس أَن النَّبِي الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " لَيُصِيبَنَّ أَقْوَامًا |
| او حضرت انس رضي الله عنه روايت دى چې نبى كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د مسلمانانو په څومره ډلي داسې وي چې |
| سَفْعٌ مِنَ النَّارِ بِذُنُوبٍ أَصَابُوهَا عُقُوبَةً |
| هغوې لره به د هغوې د ګناهونو د وجې نه چې هغوې به كړي وي، د دوزخ په اور كې به سيزل شوي وي، او |
| ثُمَّ يُدْخِلُهُمُ الله الْجَنَّةَ بِفَضْلِهِ وَرَحْمَتِهِ |
| د هغوې شكلونه به يې بدل كړي وي. او بيا به الله تعالى په خپل خاص فضل او كرم او رحمت سره هغوې جنت |
| فَيُقَالُ لَهُمُ: الجهنميون ". رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[1] |
| ته ورسوي او هغوې ته به جهنميان ويلى كيږي. |

**توضيح: سفع:** دا فاعل واقع شويدى. د اور لمبو ته وايي. يعنې ډيرې به داسې ډلې وي چې هغوې به د خپلو ګناهونو په سزا كې د دوزخ په اور كې وسوزولى شي. **الجهنميون:** دا لقب د تكليف وركولو په شكل نه وي بلكې تذكره خلاصى من النار او تذكره احسان خداوندي په توګه به وي. (مرقات۹/۵۵۱)

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَخْرُجُ أَقْوَامٌ |
| او حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ډير خلك به د محمد د شفاعت |
| مِنَ النَّارِ بِشَفَاعَةِ مُحَمَّدٍ فَيَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ وَيُسَمَّوْنَ الْجَهَنَّمِيِّينَ» . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ |
| په نتيجه كې راوويستلى شي او جنت ته به داخل كړى شي، او د هغوې نوم به جهنميان كيخودلى شي، (بخارى) |
| وَفِي رِوَايَةٍ: «يَخْرُجُ قَوْمٌ مِنْ أُمَّتِي مِنَ النَّارِ |
| او په يو روايت كې داسې دي چې نبى كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: زما د امت به ډير خلك زما د شفاعت |

---

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۴۱۶ رقم الحديث ۶۵۵۹ واخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۴۴۳ رقم الحديث ۴۳۱۵.

بِشَفَاعَتِي يُسَمَّوْنَ الْجَهَنَّمِيِّينَ ». [۱]

په نتيجه کې د دوزخ نه وويستلی شي او د هغوی نوم به جهنميان وي.

﴿۱۷﴾وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنِّي لَأَعْلَمُ

او حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: زه يقينا هغه سړی پيژنم چې هغه

آخِرَ أَهْلِ النَّارِ خُرُوجًا مِنْهَا وَآخِرَ أَهْلِ الْجَنَّةِ دُخُولًا رَجُلٌ

به د ټولو نه په آخر کې د دوزخ نه راوويستلی شي، او د ټولو نه به آخر جنت ته ورسولی شي. دا به يو سړی وي

يَخْرُجُ مِنَ النَّارِ حَبْوًا. فَيَقُولُ اللهُ: اذْهَبْ

چې هغه به په زنګونانو په مزل باندې دوزخ نه بيرون راووځي. الله تعالى به هغه ته وفرمايي چې لاړ شه او

فَادْخُلِ الْجَنَّةَ فَيَأْتِيهَا فَيُخَيَّلُ إِلَيْهِ

جنت ته داخل شه. هغه سړی چې کله هلته ورسيږي نو هغه ته به جنت په داسې حال کې ښکاره شي چې

أَنَّهَا مَلْأَى فَيَقُولُ يَارَبِّ وَجَدْتُهَا مَلْأَى

ګويا دا ډک شوی دی. او په دې کې نور د چا لپاره ځای نشته دی. هغه سړی به ووايي چې زما لپاره څه

فَيَقُولُ اللهُ: اذْهَبْ فَادْخُلِ الْجَنَّةَ فَإِنَّ لَكَ مِثْلَ الدُّنْيَا

ځای په نظر نه راځي؟ الله تعالى به وفرمايي: ته لاړ شه! او جنت ته داخل شه، هلته به ستا لپاره د دنيا په اندازه

وَعَشَرَةَ أَمْثَالِهَا. فَيَقُولُ: أَتَسْخَرُ مِنِّي

او د هغې ندلس چونده ډير ځای ستا لپاره دی. هغه سړی به ووايي چې آيا ته ما پورې ټوقې کوې؟ يا به دا

أَوْ تَضْحَكُ مِنِّي وَأَنْتَ الْمَلِكُ؟"

ووايي چې ته ما پورې خندا کوې او حال دا دی چې ته خو باچا يې؟ حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي

وَلَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَحِكَ حَتَّى

چې ما وکتل. رسول الله صلى الله عليه وسلم دې خبرې کولو سره وخندل، تردې چې د نبی کريم صلى الله عليه وسلم

---

(۱)أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۴۱۸ رقم الحديث ۶۵۶۶ والترمذي ۴/۶۱۶ رقم الحديث ۲۶۰۰.

| بَدَتْ نَوَاجِذُهُ وَكَانَ يُقَالُ: ذَلِكَ أَدْنَى أَهْلِ الْجَنَّةِ مَنْزِلَةً. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ [1] |
|---|
| مخکښې غاښونه ښکاره شو او ویل کیدل به چې دا سړی په جنتیانو کې د ټولو نه د کمې درجې سړی دی. |

**توضیح: حبوًا**: په زنګونانو باندې مزل ته حبوا وايي.

**وانت الملك**: یعنې باچا علی الاطلاق یې او باچا توقع نکوي، ته ما پورې توقې کوي چې په جنت کې د خپې کیخودلو ځاې نشته او ته د لس چونده خبري کوي. (مرقات۹/۵۵۲)

## کله چې د خدای رحمت جوش ووهي

| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنِّي لَأَعْلَمُ آخِرَ |
|---|
| او حضرت ابوذر رضی الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: زه یقینًا هغه سړی پیژنم چې هغه به د ټولو نه آخر |
| أَهْلِ الْجَنَّةِ دُخُولًا الْجَنَّةَ وَآخِرَ أَهْلِ النَّارِ خُرُوجًا مِنْهَا رَجُلٌ |
| جنت ته ننوځي. او د ټولو نه به آخر کې د دوزخ نه راوویستلی شی. دا به یو داسې سړی وي چې هغه به د |
| يُؤْتَى بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيُقَالُ: اعْرِضُوا عَلَيْهِ صِغَارَ ذُنُوبِهِ |
| قیامت په ورځ باندې پیش کړی شي، نو به ویلی شي چې د ده د وړکوټو ګناهونو ثابت شوی جرم د ده مخې |
| وَارْفَعُوا عَنْهُ كِبَارَهَا فتعرض عَلَيْهِ صغار ذنوبه |
| ته کیږدئ او د ده د غټو ګناهونو ثابت جرم ده ته وس مه ظاهروئ، نو د ده د وړکوټو ګناهونو ثابت جرم به |
| فيقال: عملت يَوْم كَذَا وَكَذَا |
| د ده مخې ته کیخودلی شي. او بیا به ده ته وویلی شي، چې آیا تا فلانکۍ فلانکۍ ورځ فلانکی فلانکی |
| وَكَذَا وَكَذَا وَعَمِلْتَ يَوْمَ كَذَا وَكَذَا كَذَا وَكَذَا؟ فَيَقُولُ: نَعَمْ. |
| کار کړی ؤ. او په فلانکۍ فلانکۍ ورځ دې اطاعت پریخودلی ؤ. هغه به اقرار وکړي چې هو! هغه به د خپلو |
| لَا يَسْتَطِيعُ أَنْ يُنْكِرَ وَهُوَ مُشْفِقٌ مِنْ كِبَارِ ذُنُوبِهِ |
| ګناهونو نه انکار نشي کولی. ځکه چې هغه به د خپلو غټو غټو ګناهونو په ویره کې اخته وي. چې هسې نه |
| أَنْ تُعْرَضَ عَلَيْهِ. فَيُقَالُ لَهُ: فَإِنَّ لَكَ مَكَانَ كُلِّ سَيِّئَةٍ حَسَنَةً. |
| د ده غټ ګناهونو جرم باندې پیش نکړی شي. ده ته به وویلی شي تا ته د هرې بدۍ به بدله کې یوه نیکي |

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۴۱۸ رقم الحديث ۶۵۷۱ ومسلم في صحيحه ۱/۱۷۳ رقم الحديث (۱۸۶-۳۰۸)

فَيَقُولُ: رَبِّ قَدْ عَمِلْتُ أَشْيَاءَ لَا أَرَاهَا هَهُنَا"

درکولی کیږي. دغه سړی به ووايي چې زما ربه! ما نور هم ډیر بد کارونه کړي ؤ. چې هغه زه دلته نه وينم

وَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَحِكَ حَتَّى

حضرت ابوذر رضي الله عنه فرمايي چې ما وکتل چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دې پيانولو سره په خندا شو تردې چې د

بَدَتْ نَوَاجِذُهُ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1]

نبی کريم صلی الله علیه وسلم مخکني غاښونه ښکاره شول.

**توضيح**: يعني زما څه غټ ګناهونه ؤ ، هغه دلته په نظر نه راځي. کله چې د غټو ګناهونو په وجه باندې دومره نعمت راکولی کيږي نو په غټو ګناهونو باندې به څومره انعام ورکول کيږي. ريښتيا دي چې کله د خدای رحمت په جوش کې راشي نو د ابليس به هم اميد پيدا شي چې کيدی شي مونږ ته هم څه معافي وشي.

لعل رحمة ربي حين يقسمها  تأتي على حسب العصيان في القسم

## د دوزخ نه راوتلي يو سړي قصه

﴿۱۹﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " يَخْرُجُ مِنَ النَّارِ أَرْبَعَةٌ

او حضرت انس رضي الله عنه روايت دی چې رسو الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: څلور کسان به هغه وي چې هغه کله د دوزخ

فَيُعْرَضُونَ عَلَى اللهِ ثُمَّ يُؤْمَرُ بِهِمْ

نه راويستلی شي او د الله تعالی مخې ته پيش کړی شي، نو د هغوی په اړه به دا حکم وي چې دا دې دوزخ ته

إِلَى النَّارِ فَيَلْتَفِتُ أَحَدُهُمْ

وليږلی شي، د دېنه وروسته چې کله هغوي دوزخ اړخ ته روان کړی شي نو په دوی کې به يو سړی په شاه

فَيَقُولُ: أَيْ رَبِّ؟ لَقَدْ كُنْتُ أَرْجُو إِذَا أَخْرَجْتَنِي مِنْهَا

راوګوري او وبه وايي چې زما ربه! ما خو دا اميد لرلو چې کله ته ما د دوزخ نه بيرون راوغواړي نو بيا به مې

أَنْ لَا تُعِيدَنِي فِيهَا " قَالَ: «فينجيه الله مِنْهَا» . رَوَاهُ مسلم[2]

ته نه ليږې؟ نبی کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل: الله تعالی به هغه ته د دوزخ نه خلاصی ورکړي.

---

([1]) اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۱۷۷ رقم الحديث (۱۹۰-۳۱۴) والترمذي ۴/۶۱۴ رقم الحديث ۲۵۹۶.

([2]) اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۱۸۰ رقم الحديث (۱۹۲-۳۲۱) واحمدفي المسند ۳/۲۸۵.

**توضیح**: **فیلتفت**: یعنې کله چې الله تعالی هغه سړی بیا دوزخ ته د لیږلو حکم ورکړي نو یو دوزخې به په ناشنا عاجزانه انداز سره ووایي چې زما خو دا خیال ؤ چې کله ته ما را وباسې نو بیا به مې نه لیږې، په دې باندې الله تعالی وفرمایې چې دا یو امتحان او ازمیښت ؤ! لاړ شه جنت کې وسیږه. د یو سره د دې خبرو ذکر دی. ګنې دا معامله به د څلورو واړو سره وي. ځکه چې کافر خو کله هم د دوزخ نه نه راویستلی کیږي، کله چې یې دا څلور راوویستل نو دا به مسلمانان وي، کله چې ووتل نو بس بیا ووتل. (مرقات ۹/۵۵۲)

## د مؤمن نه به په پل صراط باندې یو بله پوښتنه کیږي

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَخْلُصُ الْمُؤْمِنُونَ |
| او حضرت ابو سعید رضی الله عنه فرمایې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کله چې مؤمنانو ته د دوزخ نه خلاصی ورکړی |
| مِنَ النَّارِ فَيُحْبَسُونَ عَلَى قَنْطَرَةٍ بَيْنَ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ |
| شي نو هغوې به په هغه پل باندې ایسار کړی شي چې هغه د جنت او جهنم ترمینځه به وي او بیا به د هغوې |
| فَيُقْتَصُّ لِبَعْضِهِمْ مِنْ بَعْضٍ مَظَالِمُ كَانَتْ بَيْنَهُمْ فِي الدُّنْيَا حَتَّى |
| نه د یو بل د حقونو او غوختنو بدله اخستلی کیږي چې هغه یې په دنیا کې په یو بل باندې لرلو. تر دې چې |
| إِذَا هُذِّبُوا وَنُقُّوا أُذِنَ لَهُمْ فِي دُخُولِ الْجَنَّةِ فَوَالَّذِي |
| هغه خلک به بیخي پاک شي، نو هغوې ته به جنت ته د ننوتلو اجازت ورکړی شي، پس قسم دی په هغه ذات |
| نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ لَأَحَدُهُمْ |
| چې د هغه د قدرت په لاس کې د محمد ساه ده. کله چې هغه خلک جنت ته داخل شي، نو په دوي کې به هر یو |
| أَهْدَى بِمَنْزِلِهِ فِي الْجَنَّةِ مِنْهُ بِمَنْزِلِهِ كَانَ لَهُ فِي الدُّنْيَا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1] |
| سړی خپل هغه کور چې هغه ده لپاره به په جنت کې مخصوص وي، د خپل دنیا د کور نه به ډیر پیژندونکی وي |

**توضیح**: **علی قنطرة**: یعنې پل صراط باندې صله رحمې او داسې مظالم مستقل حساب کتاب به وي. د دې تفصیل د دې باب په حدیث نمبر ۹ کې تیر شویدی. **اهدی**: یعنې پل صراط نه تیریدلو نه وروسته مؤمن سړې ته د خپل جنت کور به داسې معلوم وي لکه څنګه چې هغه په دنیا کې خپل کور پیژندلو. دا به د هغه سړې د ایماني رڼا اثر وي. لکه څنګه چې هغه ته په دنیا کې د هدایت رڼا ترلاسه شوې وه. د غه شان به دا مؤمن په دې رڼا سره د جنت کور په آسانۍ سره معلوم کړی شي. (مرقات ۹/۵۵۴)

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۳۹۵ رقم الحديث ۶۵۳۵ وأحمد في المسند ۳/۱۳

## د هر سړي لپاره په جنت او دوزخ کې يوه يوه چوکۍ ټاکلې شويده

﴿۲۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا يَدْخُلُ أَحَدٌ الْجَنَّةَ

او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل: هيڅ يو سړی تر هغه وخته پورې جنت ته

إِلَّا أُرِيَ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ لَوْ

نشي ننوتلی ترڅو چې د ته په دوزخ کې هغه ځای نه ښودلی شي چې هغه به د ده ځای وی که ده بد کارونه

أَسَاءَ لِيَزْدَادَ شُكْرًا

کړي وی. او دا به ځکه وي چې هغه په دنيا کې بدو کارونو نه د ځان ساتلو توفيق په ور کړل کيدلو او دوزخ

وَلَا يَدْخُلُ النَّارَ أَحَدٌ

ته د تګ په ځای جنت ته ننوتلو باندې د ډير نه ډير شکر ادا کړی شي، او هيڅ يو سړی به تر هغه وخته

إِلَّا أُرِيَ مَقْعَدَهُ مِنَ الْجَنَّةِ

پورې دوزخ ته داخل نشي ترڅو چې هغه په جنت کې هغه ځای ونه ښودلی شي چې هغه د ده لپاره مخصوص

لَوْ أَحْسَنَ لِيَكُونَ عَلَيْهِ حسرة » . رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[1]

ؤ، که هغه نيک کارونه کړي وی او دا به ځکه وي چې دا د ډير نه ډير خفګان او پښيمانتيا کې اخته شي.

## کله چې مرګ ته خپله مرګ راشي

﴿۲۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا صَارَ أَهْلُ الْجَنَّةِ إِلَى الْجَنَّةِ وَأَهْلُ

او حضرت ابن عمر رضی الله عنهما فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: کله چې جنتيان جنت ته او

النَّارِ إِلَى النَّارِ جِيءَ بِالْمَوْتِ حَتَّى يُجْعَلَ بَيْنَ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ ثُمَّ يُذْبَحُ

دوزخيان دوزخ ته لاړ شي نو مرګ به راوستلی شي، او دا به د جنت او دوزخ ترمينځ کولو باندې حلال (ذبح)

ثُمَّ يُنَادِي مُنَادٍ: يَا أَهْلَ الْجَنَّةِ لَا مَوْتَ وَيَا أَهْلَ النَّارِ

کړی شي بيا به اعلان کونکی اعلان وکړي چې ای جنتيانو! وس د مرګ هيڅ وجود ندی پاتې او ای دوزخيانو!

لَا مَوْتَ. فَيَزْدَادُ أَهْلُ الْجَنَّةِ فَرَحًا إِلَى فَرَحِهِمْ وَيَزْدَادُ أَهْلُ النَّارِ

وس د مرګ هيڅ وجود ندی پاتې، د جنتيانو د خوشحالۍ او مستۍ به هيڅ اندازه نه وي، او دوزخيان به

---

(۱) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۴۱۸ رقم الحديث ۶۵۶۹ وأحمد في المسند ۲/۵۴۱

حُزْنًا إِلَى حزنهمْ". (مُتَّفق عَلَيْهِ).[1]

د غم او خفګان به دریاب کې نور زیات ډوب شي.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## حوض کوثر ته به د ټولو نه مخکې غریب مهاجرین راځي

﴿۲۳﴾ عَنْ ثَوْبَانَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «حَوْضِي

حضرت ثوبان رضي الله عنه نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: زما حوض (کوثر)

مِنْ عَدَنٍ إِلَى عُمَّانَ الْبَلْقَاءِ. مَاؤُهُ أَشَدُّ بَيَاضًا مِنَ اللَّبَنِ وَأَحْلَى مِنَ الْعَسَلِ

او ګدوالی دعدن او عمان بلقاء د مینځنی فاصلې په اندازه دی. د دې او به د پیو (شیدو) نه ډیرې سپینې او د شهدو نه

وَأَكْوَابُهُ عَدَدُ نُجُومِ السَّمَاءِ مَنْ

ډیر خوږې دي. د دې ګلاسونه (د اوبو څکلو لوښي) د آسمان د ستورو نه ډیر دي. کوم سړی چې هم په دې کې

شَرِبَ مِنْهُ شَرْبَةً لَمْ يَظْمَأْ بَعْدَهَا أَبَدًا أَوَّلُ النَّاسِ

یو ځل او به وڅکي، بیا به هغه ته کله هم تنده نه لګي. په دې حوض باندې د ټولو نه مخکې راتلونکې خلک

وُرُوداً فقراءُ المهاجرينَ الشُّعثُ رؤوساً الدُّنُس ثِيَابًا

غریبانان مهاجرین به وي. هم هغه غریبانان مهاجرین چې ببر ایختان، او پریشان حال او شلیدلو جامو

الَّذِينَ لَا يَنْكِحُونَ الْمُتَنَعِّمَاتِ

کې په نظر راځي، چې هغه د خوشحاله کورنیو د جینکو سره د نکاح کولو قابل نه ګڼلی کیدل، او د

وَلَا يُفْتَحُ لَهُمُ السُّدَدُ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[2]

چالپاره چې به دروازې نه برسیرته کیدلې. (مسند احمد، ترمذی، ابن ماجه، او ترمذی وائی دا حدیث غریب دې)

**توضیح**: عمان بلقاء: عمان د درې ځایونو نوم دی. یو عمان د بحر احمر سره دی. چې مخکې د شام برخه وه. اوس د اردن پایه تخت دی. دویم عمان په شام کې د یوې علاقې نوم دی. چې بانډه علاقه ده. دریم عمان بحرین کې دی بلقاء چې کوم مقام دی، دا د شام د دمشق علاقې سره نژدې د یو

(۱)اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۴۱۵ رقم الحديث ۶۵۴۸ ومسلم في صحيحه ۴/۲۱۸۹ رقم الحديث (۲۸۵۰-۴۳)

(۲)اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۴۳ رقم الحديث ۲۴۴۴. وابن ماجه في السنن ۲/۱۴۳۸ رقم الحديث ۴۳۰۳ .

پخوانۍ ښار نوم دی. په دې حدیث کې عمان بلقاء د شام مراد دی. د دې وجه نه دې ارخ ته اضافت شوی دیږدې لپاره چې عمان اردن او عمان بحرین نه احتراز وشي. په دې حدیث کې د مختلفو ځایونو نوموبه اخستلو سره د حوض کوثر طول او عرض تمثیل بیان کړی شویدی. او د مختلف مقاماتو نوم اخستلې شویدی. دې لپاره چې کوم سړی کوم مقام باندې پوهه شي، هغه د هغې د طول او عرض نه اندازه واخلي، په حدیث کې څه تحدید او تعین او مخصوص کول مقصود ندي. (مرقات ۹/۵۵۶)

**الشعث**: شین باندې ضمه ده. عین ساکن او ثاء باندې هم ضمه ده. دا جمع ده. د دې مفرد اشعث دی. چې ببر ایختانو ته وایي.

**الدنس**: دال باندې ضمه ده، نون باندې هم ضمه ده، سین باندې هم ضمه ده. دا جمع ده، د دې مفرد دنس دی. خیرنو جامو ته وایي.

**متنعمات**: یعنې نازکونکې ښایسته او مالداره ښځو سره به د دوې نکاحونه نه کیږي.

**السدد**: سین او دال باندې هم پیش دی. دا جمع ده. د دې مفرد سدة دی. دروازې ته وایي. مطلب دا دی چې دې فقیرانو ته دنیا کې خلک التفات نکوي، که په دروازه باندې ولاړ وي، نو د دوې لپاره دروازه نه برسیرته کیږي. او نه د دوې د نکاح پیغام څوک اوري، دا دنیا فقیران دي خو د آخرت باچاهان دي. د دوې په شان په یو درویش دې ټوله دنیا قربان شي. (مرقات ۹/۵۵۶)

## حوض کوثر ته دراتلونکو شمار نشته

| |
|---|
| ﴿۲۴﴾ وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَ: كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَزَلْنَا منزلا |
| او حضرت زید بن ارقم رضي الله عنه فرمایي چې مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره وُ چې یو ځای کې مونږ دیره واچوله |
| فَقَالَ: «مَا أَنْتُمْ جُزْءٌ مِنْ مِائَةِ أَلْفِ جُزْءٍ |
| هلته نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې کوم خلک زما خوا ته حوض کوثر ته راځي، د هغوې د تعداد په اعتبار سره تاسو |
| مِمَّنْ يَرِدُ عَلَى الْحَوْضِ» . قِيلَ: كَمْ كُنْتُمْ يَوْمَئِذٍ؟ |
| د لاکهونو جزونو کې یو جزء یاست. حضرت زید بن ارقم رضي الله عنه پوښتنه وشوه چې په دغه وخت کې |
| قَالَ : سَبْعَمِائَةٍ أَوْ ثَمَانَ مِائَةٍ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| تاسو ت عداد څومره وُ؟ هغه وویل اووه سوه یا اته سوه. |

[1] أخرجه أبوداود في السنن ۵/۱۱۰ رقم الحديث ۴۷۴۶ وأحمد في المسند ۴/۳۶۹.

﴿۲۵﴾ وَعَنْ سَمُرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ لِكُلِّ نَبِيٍّ

او حضرت سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل (په اخرت کې) به هر نبي ته حوض ورکړی شي

حَوْضًا وَ إِنَّهُمْ لَيَتَبَاهَوْنَ أَيُّهُمْ أَكْثَرُ

او د هر امت خلک به د خپل نبي حوض ته راځي او وبه به څکي. نو ټول انبياء به خپل مينځ کې فخر کوي

وَارِدَةً وَإِنِّي لَأَرْجُو أَنْ أَكُونَ أَكْثَرَهُمْ وَارِدَةً». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[1]

چې د چا په حوض باندې خلک ډير دي. او زما اميد دی چې د ټولو نه به ډير کسان زما حوض ته راځي.

## ميدان محشر کې به نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کوم ځای وي

﴿۲۶﴾ وَعَنْ أَنس قَا ل سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته درخواست وکړو چې ته د قيامت په ورځ باندې

أَنْ يَشْفَعَ لِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَقَالَ: «أَنَا فَاعِلٌ» . قُلْتُ

په خاصه توګه باندې زما ييل شفاعت وکړه. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: ښه زه به شفاعت وکړم. ما وويل چې

يَا رَسُولَ اللهِ فَأَيْنَ أَطْلُبُكَ؟ قَالَ اطْلُبْنِي أَوَّلَ مَا تَطْلُبُنِي عَلَى الصِّرَاطِ ".

يارسول الله! تا چيرته ولټوم، او ته به کوم ځای مخ شي؟ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د ټولو نه مخکې ما د پل صراط

قُلْتُ فَإِنْ لَمْ أَلْقَكَ عَلَى الصِّرَاطِ؟ قَالَ: «فَاطْلُبْنِي عِنْدَ الْمِيزَانِ» قُلْتُ فَإِنْ لَمْ أَلْقَكَ عِنْدَ الْمِيزَانِ؟

سره ولټوه. ما وويل که ته هلته مخ نشوي؟ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: نو بيا مې د ميزان خواته ولټوه. ما وويل که ته

قَالَ: «فَاطْلُبْنِي عِنْدَ الْحَوْضِ فَإِنِّي لَا أُخْطِىءُ هَذِهِ الثلاث المواطن» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وقالهَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[2]

هلته هم مخ نشوي؟ وې فرمايل: نو بيا ما د حوض کوثر سره ولټوه. زه دا درې ځايونه پرېښودلو باندې هيچرته نه ځم.

## نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مقام محمود کې

﴿۲۷﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَال : قيل لَهُ

او حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه پوښتنه وشوه چې

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۴۲ رقم الحديث ۲۴۴۳.

(۲) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۳۷ رقم الحديث ۲۴۳۳ واحمدفي المسند ۳/۱۷۸ .

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مَا . | المقَام | | الْمَحْمُود | | | | ؟ |

او د دې میت څه دی؟ چې د هغې په دې آیت کې ستا سره وعده شویده ﴿عَسٰٓى اَنْ يَّبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مقام محمود

قال: " ذَلِكَ يَوْمَ يَنْزِلُ الله تَعَالَى عَلَى كُرْسِيِّهِ

مَحْمُوْدًا﴾ نو نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: په هغه ورځ باندې به الله تعالی په خپله چوکۍ باندې د جلال نزول وکړي.

فَيَئِطُّ كَمَا يَئِطُّ الرحلُ الْجَدِيد من تضايقه بِهِ وَهُوَ كَسَعَةِ

او چوکۍ به چغاری وکړي لکه نوې څرمنې تنګ زین چې چغاری کوی. او د چوکۍ فراختیا به دومره وی

مَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ وَيُجَاءُ بِكُمْ حُفَاةً عُرَاةً غُرْلًا

څومره چې د زمکې او اسمان مینځې فضا. بیا تاسو ټول لوڅې خپې، بربنډ بدن، او ناسوته (میدان محشر) ته

فَيَكُونُ أَوَّلُ مَنْ يُكْسَى إِبراهيم

راوستلی شئ، او په هغه ورځ باندې چې چا ته د ټولو نه مخکې جامې اغوستل کیږي هغه به ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ

يَقُول الله تَعَالَى: أُكسوا خليلي بِرَيْطَتَيْنِ بَيْضَاوَيْنِ مِنْ رِيَاطِ الْجَنَّةِ

وي. الله تعالی به حکم وکړي چې زما دوست ته جامې واغوندئ، او د جنت د څادرونو نه به د نرم کتان

ثُمَّ أُكْسَى عَلَى أَثَرِهِ

دوه سپین څادرونه راوړی شي او ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ ته به واغوستلی شي، د دې نه وروسته به ما ته جامې

ثُمَّ أَقُومُ عَنْ يَمِينِ الله مقَاما يغبطني الْأَولونَ وَ الْآخرُونَ ". رَوَاهُ الدَّارِمِيّ[1]

واغوستلی شي. او بیا به زه د الله تعالی ښي اړخ ته ودریږم، نو مخکني او وروسته ټول خلک به زما سره غبطه کوي

**توضيح**: يئط: اط يئط اطا واطتطا: نوې چوکۍ باندې د ناستې په وخت کې چې کوم چغارې اواز راځي. هغې ته يئط وايي.

**الرحل**: کجاوې ته وايي.

**حفاة**: لوڅې خپو ته وايي.

**عراة**: بربنډ بدن ته وايي.

---

(1) اخرجه الدارمي في السنن ۲/۴۱۹ رقم الحديث ۲۸۰۰.

**غرلا**: اغرل، ناسوتنه ته وايي.

**اکسوا**: د امر صيغه ده. اغوستلو په معنی دی. (مرقات ۹/۵۷۲)

**ريطتين**: ريطة کتاس او تېسر څادر ته وايي. حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَام ته به اول جامې خکه اغوستل کړ . چې نمرود او ر ته کوزارلو په وخت دهغه جامې ويستلي وې. نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه مخکې يې ځکه واغو لمي چې دا د نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نيکه دی. هم دا د احترام تقاضا ده . يا نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نور ته وويله. خپله معامله به يې بيله وي. مګر په دې حديث کې تاخير تصريح ده. تاويل مناسب ندی. (مرقات ۹/۵۷۲)

| |
|---|
| ﴿۲۸﴾ وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شِعَارُ الْمُؤْمِنِينَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ |
| او حضرت مغيره بن شعبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د قيامت په ورځ پل صراط باندې د تيريدلو په وخت د |
| عَلَى الصِّرَاطِ: رَبِّ سَلِّمْ سَلِّمْ ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[1] |
| ايمان والاؤ نښه به دا الفاظ وي. رب سلم سلم (روايت کړې دې جامع ترمذی) |

## شفاعت به د کبيره ګناهونو والاؤ لپاره وي

| |
|---|
| ﴿۲۹﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «شَفَاعَتِي لِأَهْلِ الْكَبَائِرِ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: ګناه کبيره کونکو په حق کې زما شفاعت |
| مِنْ أُمَّتِي». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد[2] وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَه عَنْ جَابِرٍ[3] |
| به فقط زما د امت خلکو لپاره به مخصوص وي، (ترمذی، ابوداود ابن ماجه) |

## رحمت عالم در حمت شان

| |
|---|
| ﴿۳۰﴾ وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَتَانِي آتٍ مِنْ عِنْدِ رَبِّي |
| او حضرت عوف بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: يو فرښته زما خواته راغله او هغې |
| فَخَيَّرَنِي بَيْنَ أَنْ يُدْخِلَ نِصْفَ أُمَّتِي الْجَنَّةَ |
| ماته په دې دوه خبرو کې د يوې خبرې اخستلو اختيار راکړو چې يا خو به زما نيم امت جنت ته ځي يا |

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۳۶ رقم الحديث ۴۲۳۲.

(۲) اخرجه أبوداود في السنن ۵/۱۰۶ رقم الحديث ۴۷۳۹ والترمذي في السنن ۴/۵۳۹ رقم الحديث ۲۴۳۵.

(۳) اخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۴۴۱ رقم الحديث ۴۳۱۰.

| الشَّفَاعَةَ | فَاخْتَرْتُ | الشَّفَاعَةِ | وَبَيْنَ |
|---|---|---|---|

(د ټولو په حق کې) د شفاعت حق به ماته ترلاسه وي. نو ما د خپل امت په حق کې د شفاعت ترلاسه کول اختیار

| يُشْرِكُ | لَا | مَاتَ | لِمَنْ | وَهِيَ |
|---|---|---|---|---|

کړل. نو زما شفاعت د هر هغه سړي لپاره فیصله شوېدی چې هغه په دې حال کې مړ وي چې هغه د الله سره

بِاللّٰهِ شَيْئًا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَابْن مَاجَه[1]

ثوک شرک کولو کې اخته نه ؤ. (ترمذی، ابن ماجه)

## دعام شفاعت ذکر

﴿۲۱﴾ وَعَن عبدِ الله بن أبي الجدعاءِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ:

او حضرت عبدالله بن ابی جدعاء رضي الله عنه فرمایي چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا اوریدلي دي چې زما

«يَدْخُلُ الْجَنَّةَ بِشَفَاعَةِ رَجُلٍ مِنْ أُمَّتِي أَكْثَرُ مِنْ بَنِي تَمِيمٍ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ والدارمي وَابْن مَاجَه[2]

د امت د یو سړي په شفاعت سره به د بنی تمیم د کسانو د شمیرې نه هم ډیر کسان جنت ته داخل شي.

**توضیح: بشفاعة رجل:** ویل کیږي دا به حضرت عثمان رضي الله عنه وي، یا د دې سړی نه اویس قرني مراد دی. یا بل ثوک مراد دی. اللّٰهم ارزقنا شفاعة حبیبك محمد صلی الله علیه وسلم. (مرقات ۹/۵۶۶)

﴿۲۲﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِنَّ مِنْ أُمَّتِي مَنْ

او حضرت ابو سعید رضي الله عنه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: زما په امت کې خو به ثوک د

| يَشْفَعُ لِلْقَبِيلَةِ | وَمِنْهُمْ مَنْ يَشْفَعُ لِلْعُصْبَةِ | وَمِنْهُمْ مَنْ يَشْفَعُ لِلرَّجُلِ |
|---|---|---|

ګڼو جماعتونو شفاعت کوي، ثوک به د یو عصبه شفاعت کوي، او ثوک به فقط د یو سړي شفاعت

حَتَّى يَدْخُلُوا الْجَنَّةَ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[3]

کوي لنډه دا چې د غه شان د شفاعت په نتیجه کې به ټول امت جنت ته ننوځي.

**توضیح: ان من امتی:** یعنې ځینې امتیان به شفاعت کوي، لکه علماء، صلحاؤ او شهداء او داسې

(1) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۴۱ رقم الحديث ۲۴۴۱ وابن ماجه ۲/۱۴۴۱ رقم الحديث ۴۳۱۱.

(2) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۴۰ رقم الحديث ۲۴۳۸ وابن ماجه في السنن ۲/۱۴۴۳ رقم الحديث ۴۳۱۶.

(3) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۴۱ رقم الحديث ۲۴۴۰، واحمد في المسند ۳/۲۰.

نور.

**للفئام**: د دېنه قبائل اخستل ډیر بهتره دي. یعنې ګڼو قبیلو شفاعت به یو سړی کوي. که شفاعت کونکی شهید وي، یا عالِم وي یا ولی یا نیک سړی وي. (مرقات ۹/۵۶۶)

**للقبیلة**: یعنې د یوې قبیلې شفاعت به کوي. قبیله هغه قوم ته وایي چې د هغې نیکه یو وي.

**للعصبة**: عین باندې ضمه ده، صاد باندې سکون دی. لسو نه تر څلویښتو کسانو ته عصبه وایي. (مرقات ۹/۵۶۶)

## څلور لاکهه به بغیر د حساب نه جنت ته ننوځي

﴿۳۲﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ وَعَدَنِي

او حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: الله عزوجل زما سره وعده کړیده چې هغه به

أَن يُدخل الجنةَ من أُمتي أَربع مائةِ أَلفٍ بِلَا حِسَابٍ» . فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ

زما د امت نه څلور لاکهه کسان بغیر د حساب او کتاب نه جنت ته دننه کوي. حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمایل:

زِدْنَا يَا رَسُولَ اللهِ

یارسول الله! زمونږ په دې شمیره کې ډیروالی وکړه (ځکه چې ته د خدای په رحمت باندې اعتماد

قَالَ وَهٰكَذَا فَحَثَا

کولو زمونږ نه چې څومره ډیروې الله تعالی به هغه پوره کوي) نبی کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: بنه دومره نور ډیر،

بِكَفَّيْهِ وَجَمَعَهُمَا فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ:

نبی کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل لاسونو راغونډولو باندې لپه جوړه کړه. حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایل:

زِدْنَا يَا رَسُولَ اللهِ. قَالَ: وَهٰكَذَا

یارسول الله! زمونږ په شمیره کې ډیروالی وکړه. نبی کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: بنه دومره نور ډیر. حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په

فَقَالَ عُمَرُ دَعْنَا يَا أَبَابكر. فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ:

دغه مجلس کې ناست ؤ. هغه په محسوسولو باندې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته وویل (بس وس) مونږ په

وَمَا عَلَيْكَ أَنْ يُدْخِلَنَا اللهُ كُلَّنَا الْجَنَّةَ؟

خپل حال باندې پرېږده. حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایل که الله تعالی مونږ ټول جنت ته ولیږي نو ستا

| فَقَالَ عُمَرُ: إِنَّ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ إِنْ شَاءَ أَنْ يُدْخِلَ خَلْقَهُ الْجَنَّةَ بِكَفٍّ وَاحِدٍ |
|---|
| څه نقصان دی؟ حضرت عمر رضي الله عنه جواب ورکړو: که الله تعالی خپل ټول مخلوق په یو لاس باندې جنت |
| فَعَلَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «صَدَقَ عُمَرُ» رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ[1] |
| ته داخلول وغواړي نو کولی يې شي. نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمايل: عمر! بيخي رېښتيا وويله. |

**توضيح**: زدنا: د حضرت ابوبکر رضي الله عنه خواخوږي او د جنت حرص حذبه دومره لويه وه چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته يې وفرمايل: چې ته الله تعالی باندې نوره ډېروالی وکړه. ځکه چې ته به سفارش کوې. نو الله تعالی به اضافه وکړي. يو اړخ ته د الله تعالی د اړخ نه د دې فراخه شفاعت په صورت کې شميري په ځای د لاسونو لپې ډکول ؤ. نبی کریم صلی الله علیه وسلم هم لپې ډکولو باندې الله تعالی د فعل نقل وکړو. په دې باندې ابوبکر صديق رضي الله عنه نور ډېروالې درخواست رکړو. نبی کریم صلی الله علیه وسلم نور ډېروالی وکړو. په دې سره ابوبکر صديق رضي الله عنه نور ډېروالې درخواست وکړو. نو حضرت عمر فاروق رضي الله عنه وفرمايل: چې ابوبکر! بس کړه، که الله تعالی وغواړي نو په يوه لپه کې به ټول مخلوق جنت ته داخلولی شي. نبی کریم صلی الله علیه وسلم د ابوبکر رضي الله عنه په سفارش باندې ډېروالی وکړو، او بيا يې د ابوبکر رضي الله عنه رايې تائيد وکړو، نو د دواړو زړه ساتنه وشوه. (مرقات ۹/۵۶۷)

## د الله تعالی رحمت بهانه لټوي

| ﴿۲۴﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
|---|
| او حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: مؤمنانو کې چې کوم خلک دوزخيان ګرځولی |
| "يُصَفُّ أَهْلُ النَّارِ فَيَمُرُّ بِهِمُ الرَّجُلُ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ |
| شوي دي. د هغوي به صفونه جوړ کړی شي، بيا چې کله د يو جنتي د هغوي په مخه تيرېږي نو د دې دوزخيانو کې |
| فَيَقُولُ الرَّجُلُ مِنْهُمْ: يَا فُلَانُ أَمَا تَعْرِفُنِي؟ أَنَا الَّذِي سَقَيْتُكَ شَرْبَةً. |
| به يو سړی ورته وايي ای فلانکيه! آيا ته ما نه پيژني؟ زه هغه سړی وم چې هغه يو ځل په تا او به څکولي وي. |
| وَقَالَ بَعْضُهُمْ: أَنَا الَّذِي وَهَبْتُ لَكَ وَضُوءًا |
| په دوي کې به يو سړی وايي چې زه هغه سړی وم چې هغه يو ځل د اودس او به درکړي وي. هغه جنتي به |

(1) اخرجه البغوي في شرح السنة ۱۵/۱۶۳ رقم الحديث ۴۳۳۵ واحمد في المسند ۳/۱۶۵.

فَيَشْفَعُ لَهُ فَيُدْخِلُهُ الْجَنَّةَ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه[1]

د ده شفاعت وکړي او جنت ته به يې داخل کړي.

﴿۳۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّ رَجُلَيْنِ مِمَّنْ دَخَلَ النَّارَ

او حضرت ابو هريره رضي الله عنه روايت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: کوم خلک چې دوزخ ته ننوځي

اشْتَدَّ صِيَاحُهُمَا فَقَالَ الرَّبُّ تَعَالَى: أَخْرِجُوهُمَا.

په هغوي کې به دوه کسان ډير شور کوي. پروردګار به حکم وکړي چې دا دواړه بيرون راوباسئ. چې ولې

فَقَالَ لَهُمَا: لِأَيِّ شَيْءٍ اشْتَدَّ صِيَاحُكُمَا؟ قَالَا: فَعَلْنَا ذٰلِكَ لِتَرْحَمَنَا.

دومره چيغې وهې؟ هغوي به ووايي چې مونږ ځکه چيغې وهلې چې ستا رحمت مونږ ته متوجې شي. الله تعالى

قَالَ: فَإِنَّ رَحْمَتِي لَكُمَا أَنْ تَنْطَلِقَا فَتُلْقِيَا أَنْفُسَكُمَا حَيْثُ كُنْتُمَا مِنَ النَّارِ

به وفرمايي: چې ستاسو په حق کې زما رحمت دا دی چې تاسو بيرته لاړ شئ او په دوزخ کې چېرته وئ، هلته

فَيُلْقِي أَحَدُهُمَا نَفْسَهُ

وسئ، په دوي کې به يو سړی خو بيرته لاړ شي او خپله به ځان د دوزخ اور ته ګوزار کړي او الله تعالى به

فَيَجْعَلُهَا اللهُ بَرْدًا وَسَلَامًا وَيَقُومُ الْآخَرُ فَلَا يُلْقِي نَفْسَهُ

هغه اور د هغه لپاره يخ کړي. او دويم سړی به هغه شان ولاړ وي او خپله به اور ته ځان نه ګوزاروي. الله تعالى

فَيَقُولُ لَهُ الرَّبُّ تَعَالَى: مَا مَنَعَكَ أَنْ تُلْقِيَ نَفْسَكَ كَمَا أَلْقَى صَاحِبُكَ؟ فَيَقُولُ:

به ترينه پوښتنه وکړي چې ته ولې ځان نه ګوزاروي؟ ستا ملګري خو اور ته ودانګل؟ هغه به ووايي چې

رَبِّ إِنِّي لَأَرْجُو أَنْ لَا تُعِيدَنِي فِيهَا

چې ربه! زه خو په دې اميد بانديې ولاړ يم چې تا زه د دوزخ نه بيرون راوويستلم نو وس به مې بيا هلته نه

بَعْدَ مَا أَخْرَجْتَنِي مِنْهَا. فَيَقُولُ لَهُ الرَّبُّ تَعَالَى: لَكَ رَجَاؤُكَ. فَيُدْخَلَانِ

ليږې. الله تعالى به وفرمايي تا چې کوم اميد قائم کړيدی، هغه ستا په حق کې پورا کيدلی شي. نو دغه دواړه کسان

(1) اخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۲۱۵ رقم الحديث ۴۳۸۵.

جَمِيعًا الْجَنَّةَ بِرَحْمَةِ اللهِ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[1]

به الله تعالى په رحمت او عنايت سره يو ځاى جنت ته داخل كړى شي.

﴿۳۶﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَرِدُ النَّاسُ النَّارَ

او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: خلک به اور ته حاضروي، او بيا به

ثُمَّ يصدون مِنْهَا بِأَعْمَالِهِمْ فَأَوَّلُهُمْ

د خپلو خپلو اعمالو مطابق د هغې نه نجاب بيامومي. په دوي کې به د ټولو نه اول او افضل خلک هغه وي

كَلَمْحِ الْبَرْقِ ثُمَّ كَالرِّيحِ ثُمَّ كَحُضْرِ الْفَرَسِ

چې هغوي به د بجلۍ (برق) د پړق په شان تيرشي. بيا د باد (هوا) د چپې په شان بيا د اس د منډې په شان،

ثُمَّ كَالرَّاكِبِ فِي رَحْلِهِ ثُمَّ كَشَدِّ الرَّجُلِ ثُمَّ كَمَشْيِهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ[2]

بيا په اوښ د سپاره په شان، بيا د سړي د منډې په شان، او بيا د سړي د پيدل مزل کونکي په شان

# الْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د حوض كوثر فراخوالى

﴿۳۷﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِنَّ أَمَامَكُمْ حَوْضِي

حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ستاسو مخې ته زما حوض دى.

مَا بَيْنَ جَنْبَيْهِ كَمَا بَيْنَ جَرْبَاءَ وَأَذْرُحَ».

چې د هغې دواړو غاړو ته فاصله دومره ده څومره چې د جرباء او اذرح مينځنى فاصله ده. د يو راوي وينا ده

قَالَ بَعْضُ الرُّوَاةِ: هُمَا قَرْيَتَانِ بِالشَّامِ بَيْنَهُمَا مَسِيرَةُ ثَلَاثِ لَيَالٍ.

چې جرباء او اذرح د شام په هيواد کې دوه کلي دي، چې د هغوي په مينځ کې درې ورځې مزل دى. په يو بل

وَفِي رِوَايَةٍ: «فِيهِ أَبَارِيقُ كَنُجُومِ السَّمَاءِ

حديث کې دا الفاظ دي چې د دې په دواړو غاړو باندې ګلاسونه کېخودلى شويدي چې هغه د اسمان د ستورو

---

([1]) أخرجه الترمذي في السنن ۴/۶۱۵ رقم الحديث ۲۵۹۹

([2]) أخرجه الترمذي في السنن ۵/۲۹۷ رقم الحديث ۳۱۵۹ والدارمي في السنن ۲/۴۲۴ رقم الحديث ۲۸۱۰.

مَنْ وَرَدَهُ فَشَرِبَ مِنْهُ لَمْ يَظْمَأْ بَعْدَهَا أَبَدًا» . مُتَّفق عَلَيْهِ[1]

په شان دي. کوم سړی چې د حوض ته راشي او د دې او به وڅکي ، هغه به بیا کله هم تږی نشي.

﴿۳۸﴾ وَعَن حذيفةَ وَأَبِي هُرَيْرَةَ قَالَا: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

او حضرت حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دواړه بيان کوي چې رسو الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل

" يَجْمَعُ الله تَبَارَكَ وَتَعَالَى النَّاسَ فَيَقُومُ الْمُؤْمِنُونَ حَتَّى تُزْلَفَ لَهُمُ الْجَنَّةُ

الله تبارک و تعالی به خلک راغونډ کړي او بيا به ټول مؤمنان ولاړ وي چې جنت به هغوی ته رانژدې کړی

فَيَأْتُونَ آدَمَ فَيَقُولُونَ : يَا أَبَانَا

شي (د هر امت خاص خاص) مؤمنان به حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ ته به راشي او ورته به وايي چې ای زمونږ پلاره!

اسْتَفْتِحْ لَنَا الْجَنَّةَ. فَيَقُولُ: وَهَلْ أُخْرَجَكُمْ مِنَ الْجَنَّةِ

زمونږ لپاره جنت برسيره کړه. حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ به هغوی ته جواب ورکړي چې تاسو د جنت نه ستاسو د پلار

إِلَّا خَطِيئَةُ أَبِيكُمْ لَسْتُ بِصَاحِبِ ذَلِكَ اذْهَبُوا إِلَى ابْنِي إِبْرَاهِيمَ

لغزش راويستلی ياست. زه د دې کار والا نه يم. تاسو زما ځوی حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ ته لاړ شی چې د الله

خَلِيلِ الله " قَالَ : " فَيَقُولُ إِبْرَاهِيمُ : لَسْتُ بِصَاحِبِ ذَلِكَ

دوست دی. نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ به هم دغه جواب ورکړي چې زه د دې کار والا نه يم

إِنَّمَا كُنْتُ خَلِيلًا مِنْ وَرَاءَ وَرَاءَ اعْمَدُوا إِلَى مُوسَى الَّذِي كَلَّمَهُ الله

زه د خدای دوست د نن نه مخکې مخکې وم. تاسو موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ ته لاړ شی، چې هغه د الله تعالی سره خبرې

تَكْلِيمًا فَيَأْتُونَ مُوسَى. عَلَيْهِ السَّلَام فَيَقُولُ: لَسْتُ بِصَاحِبِ ذَلِكَ

کړيدي نو دغه خلک به موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ ته راشي . او هغه به هم دغه جواب ورکړي چې زه د دې کار والا نه يم

اذْهَبُوا إِلَى عِيسَى كَلِمَةِ الله وَرُوحِهِ فَيَقُولُ عِيسَى:

تاسو عيسی عَلَيْهِ السَّلَامُ ته لاړ شی چې د خدای کلمه او د هغې روح دی. نو حضرت عيسی عَلَيْهِ السَّلَامُ به هم دغه جواب

لَسْتُ بِصَاحِبِ ذَلِكَ فَيَأْتُونَ مُحَمَّدًا صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ورکړي چې زه د دې کار والا نه يم. نو دا خلک به محمد (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ته راشي او محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به ودرېږي

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۴۶۳ رقم الحديث ۶۵۷۷ واخرجه مسلم في صحيحه ۱۷۹۷ رقم الحديث ۳۲/۲۲۹۹

| | | |
|---|---|---|
| فَيَقُومُ | فَيُؤْذَنُ | لَهُ |

او ټولو انسانانو د ميدان محشر ته به د سختيو او پريشانيو نه راحت ورکونکې د شفاعت کولو اجازت وغواړي. نو ده ته به

| | | |
|---|---|---|
| وَتُرْسَلُ | الْأَمَانَةُ | وَالرَّحِمُ |

اجازت ورکړې شي، بيا چې کله د حساب کتاب وخت تير شي او ټول خلک په پل صراط باندې تيريږي نو

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَيَقُومَانِ | جَنَبَتَيِ | الصِّرَاطِ | يَمِينًا وَشِمَالًا |

امانت او رحم به راوستلى شي، او دا دواړه به د پل صراط په ښى او چپ اړخ باندې ودريږي، بيا به يوه طبقه

| | | |
|---|---|---|
| فَيَمُرُّ | أَوَّلُكُمْ | كَالْبَرْقِ". |

چې هغه به په تاسو کې افضل وي، او د ټولو نه مخکې به تيريږي. د بحلۍ (برق) په شان به په پل تير شي.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قَالَ: | قُلْتُ: | بِأَبِي | أَنْتَ | وَأُمِّي |

حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايې چې ما وويل چې په تادې زما مور پلار قربان شي، بجلۍ په شان تيريدلو

أَيُّ شَيْءٍ كَمَرِّ الْبَرْقِ؟ قَالَ: " أَلَمْ تَرَوْا إِلَى الْبَرْقِ كَيْفَ يَمُرُّ

په څه صورت وي؟ نبى کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: آيا تاسو نه ګورئ چې د بجلۍ پړق څنګه تيريږي، او د سترګو په رپ

وَيَرْجِعُ فِي طَرْفَةِ عَيْنٍ. ثُمَّ كَمَرِّ الرِّيحِ ثُمَّ كَمَرِّ الطَّيْرِ وَشَدِّ الرِّجَالِ

سره بيرته راستنه شي. بيا د باد (هوا) په شان، بيا د مارغانو په شان، او څه خلک به نارينو د منډې په شان

| | | | |
|---|---|---|---|
| تَجْرِي | بِهِمْ | أَعْمَالُهُمْ | وَنَبِيُّكُمْ |

منډه وهي. او هغوې ته به د هغوې د اعمالو طاقت او نورانيت او پاکوالې مخکې بوځي. او ستاسو نبى کريم صلى الله عليه وسلم

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَائِمٌ | عَلَى | الصِّرَاطِ | يَقُولُ: | يَا رَبِّ | سَلِّمْ |

به په پل صراط باندې ولاړ دا وايي چې رب سلم سلم چې ربه! دوې په سلامتيا سره راتير کړه، او دوې په

| | | | |
|---|---|---|---|
| سَلِّمْ. حَتَّى | تَعْجِزَ | أَعْمَالُ | الْعِبَادِ |

دوزخ کې د ګوزارولو نه روغ وساته. او بيا به د څه بنديګانو اعمال عاجز وي، ترڅو چې يو سړى به په

حَتَّى يَجِيءَ الرَّجُلُ فَلَا يَسْتَطِيعُ السَّيْرَ إِلَّا زَحْفًا ". وَقَالَ:

راخکلو راخکلو او په زنګونانو خويدونکى به راشي، د دېنه وروسته نبى کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: او د پل صراط

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| «وَفِي | حَافَتَيِ | الصِّرَاطِ | كَلَالِيبُ | مُعَلَّقَةٌ مَأْمُورَةٌ |
| دواړه اړخ ته به كونډي وي او هغوی ته به حكم وركړی شوی وي چې دوی هر هغه سړی ونيسي چې هغه | | | | |
| تَأْخُذُ | مَنْ | أُمِرَتْ | بِهِ | |
| د نيولو وړ ګرځولی شويدی. نو دغه كونډي به داسې خلک نيسي او بيا به څه خلک خو د دې كونډو د | | | | |
| فَمَخْدُوشٌ | نَاجٍ | وَمُكَرْدَسٌ | | |
| مصيبت برداشت كولو او ټپي (زخمي) كيدلو نه وروسته خلاصی بياموميي. او د څه خلكو به لاس خپي تړلي | | | | |
| فِي | النَّارِ» | وَالَّذِي | نَفْسُ | أَبِي هُرَيْرَةَ |
| دوزخ ته ګوزار كړی شي، قسم دی په هغه ذات باندې چې د هغه په قبضه كې د ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ساه ده | | | | |
| بِيَدِهِ إِنَّ قَعْرَ جَهَنَّمَ لَسَبْعِينَ خَرِيفًا. رَوَاهُ مُسلم[1] | | | | |
| د دوزخ ژورتيا د اويا كاله د مزل په برابرتيا سره ده. | | | | |

**توضيح**: وراء وراء: يعني نن الله تعالى په غضب (غصه) كې دی. زه نژدې نشم ورتللی. زه بيشكه د الله خليل او دوست وم، ليكن هغه زمانه ډيره مخكې مخكې وه، دنن نه ده. نن وروسته وروسته دوستي ده، زه مخامخ د تګ طاقت نه لرم. (مرقات ۹/۵۷۲)

## د دوزخ دراوتلو نه وروسته بنايسته منظر

| | | |
|---|---|---|
| ﴿۳۹﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَخْرُجُ مِنَ النَّارِ بِالشفاعة | | |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: هغه خلک چې د شفاعت په وجه باندې د دوزخ | | |
| كَأَنَّهُمُ | الثعارير. | قُلْنَا مَا الثَّعَارِيرُ |
| نه راوويستلی شي، د هغوی مثال به داسې وی لكه هغوی ثعارير دي. مونږ وويل چې يارسول الله! ثعارير نه | | |
| قَالَ: «إِنَّه الضغابيس». مُتَّفق عَلَيْهِ مَوْضُوع[2] | | |
| څه مراد دي؟ نبی كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د دېنه كوتره مراد دي. | | |

---

([1]) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۴۱۷ رقم الحديث ۶۵۶۵ ومسلم في صحيحه ۱/۱۸۶ رقم الحديث (۱۹۵-۳۲۹)

([2]) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۴۱۶ رقم الحديث ۶۵۵۸ وأحمد في المسند ۳/۳۷۶ .

**توضیح:** ثعاریر : دا جمع ده د دې مفرد ثعرور دی. دا بادرنګو ته وایي. بادرنګ خو ډیره تازه او ډک وي. هر وخت تازه وي، او دهغې د پاسه مزیدار څرمنه وي. نو څکه دوزخیان چې کله د دوزخ نه راوویستلو باندې نهر حیات کې واچولی شي نو هغه به پرق وهي او ښایسته به شي چې د بادرنګو په شا به شین او تازه وي. (مرقات ۹/۵۷۵)

## دقیامت په ورځ به کوم خلک شفاعت کوی

| |
|---|
| ﴿۴۰﴾ وَعَن عُثمَان بن عَفَّان قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " يُشَفَّعُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ |
| حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه راوي دي وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: شفاعت به کوي د قیامت په ورځ |
| ثَلَاثَةٌ: الْأَنْبِيَاءُ ثُمَّ الْعلمَاء ثُمَّ الشُّهَدَاء ". رَوَاهُ ابْن مَاجَه[1] |
| درې قسمه خلک: اول انبیاء، بیا علماء، بیا شهداء. |

**توضیح:** یعنې په اعزازي توګه باندې به په قیامت کې اول انبیاء، بیا علماء او بیا شهیداء شفاعت کوي.

اللهم ارزقنا شفاعة نبيك محمد صلی الله علیه وسلم وشفاعة انبيائك وعلمائك وشهدائك

آمین یارب العالمین

وصلی الله تعالی علی نبیه الکریم

تمت بالخیر



---

([1]) اخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۴۴۳ رقم الحدیث ۴۳۱۳.

